بسم الله الرحمن الرحيم

# معارف القرآن پښتو

مع

## آسان ترجمهٔ قرآن

از مفتي محمد تقي عثماني مدظله

تاليف

## مفتي محمد شفيع رحمه الله

د مترجم شاه فيصل له طرفه اضافات

1. لفظي او روان ترجمه
2. د خلاصه تفسير په صيغه کښې قرآني آياتونه
3. په مشکلو ځايونو کښې د تفسير شوو آياتونو تفسير
4. په ځينو ځايونو کښې پښتو ته د ضروري الفاظو اضافه
5. د حروفو او الفاظو اختصار ورته بڼه


فيصل کتب خانه

محله جنگي، پښاور

0321-9091835

محقق جدید ایډیشن

# معارف القرآن

جلد ۱۰ پښتو

تالیف

مفتی اعظم پاکستان مولانا محمد شفیع رحمۃ اللہ علیہ

مع

## آسان ترجمه قرآن

حضرت مولانا مفتی محمد تقی عثمانی صاحب مدظله

مترجم

حضرت مولانا شاه فیصل صاحب

فاضل وفاق المدارس امدادالعلوم وجامعه اسلامیه چارسده

### خصوصیات مع تسهیلات واضافات

① هر عبارت ته په حاشیه کښې حواله ورکول ② آسان ترجمه قرآن از مفتی محمد تقی عثمانی مدظله ③ ټکی په ټکی او رواله ترجمه ④ د خلاصه تفسیر په مینځ کښې قرآنی آیاتونه لیکل ⑤ په حاشیه کښې د غیر تفسیر شده آیاتونو تفسیر ⑥ د عربۍ او فارسۍ د اشعارو په پښتو کښې ترجمه ⑦ د اختلاف په صورت کښې یوسفزئ پښتو سره قندهاری الفاظ لیکل

فیصل کتب خانه (مدینه مارکیټ)

محله جنګی قصه خوانی بازار پیښور {۰۳۲۱-۹۰۹۱۸۳۵}

دکتاب نوم : معارف القرآن پښتو محقق ایډیشن

مؤلف : حضرت مولانا مفتی محمد شفیع صاحب رحمة الله علیه
مفتی اعظم پاکستان

خورونکی : فیصل کتب خانه محله جنګی

موبائیل نمبر ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

## د ملاویدو پتې :- د فیصل کتب خانې نه سوا

- مکتبه روغانیول جلال آباد
- مکتبه رحیمی خوست
- نعمت کتب خانه کابل
- صداقت کتب خانه قندهار وکابل
- علمی کتب خانه ګردیز
- مکتبه علمیه اکوړه ختک
- دینی کتب خانه تیمرګره
- شیخ الهند کتب خانه خوست
- فلاح کتب خانه جلال آباد
- مکتبه فریدیه خوست
- دیوبند کتب خانه خوست
- جدید رشیدیه کتب خانه کابل
- مکتبه خواجه عبدالله انصاری غزنی
- مکتبه نعمانیه غزنی
- مکتبه رحمانیه قندهار
- دعوت کتب خانه جلال آباد
- تقوٰی کتب خانه جلال آباد

# فهرست مضامين

| شميره | مضمون | صفحه |
| --- | --- | --- |

## پاره نمبر [۲۵]

## پاره نمبر [۲۶]

## پاره نمبر [۲۷]

## د اضافي مضامينو فهرست

إِلَيْهِ يُرَدُّ عِلْمُ السَّاعَةِ ۚ وَمَا تَخْرُجُ مِنْ ثَمَرَٰتٍ

خاص هغه ته | واپس کړې کيږي | علم دقيامت | اونه | راوځي | دميوو نه |

دقيامت علم صرف الله ﷻ سره خاص دې [بل چاته د دې علم نشته] | او کومه ميوه چې

مِّنْ أَكْمَامِهَا وَمَا تَحْمِلُ مِنْ أُنثَىٰ وَلَا تَضَعُ إِلَّا

دغلا فونو[قوځلو]خپلو نه | اونه حامله کيږي | يوه ښځه | اونه زيږوي يو بچې | مګر |

دخپلو غلافونو نه راوځي | يا کومه يوه ښځه چې حامله کيږي | يا بچې راوړي | نودا ټول

بِعِلْمِهِ ۚ وَيَوْمَ يُنَادِيهِمْ أَيْنَ شُرَكَاءِي

په علم دهغه کښې دی | او په کومه ورځ چې آواز اوکړي دوئ ته | چې کوم ځائې دي | شريکان زما |

هغه ته معلوم دي|اوپه کومه ورځ چې به الله ﷻ دوی ته آواز اوکړي| چې زما شريکان څه شول ؟

قَالُوا آذَنَّاكَ مَا مِنَّا مِن شَهِيدٍ

اوبه وائي دوئ | خبر درکړو مونږ تاته اوس | چې نشته زمونږ نه | هيڅوک ګواه ددې خبرې |

هغوی به اووائي چې مونږ تاته خبر درکوو| چې په مونږ کښې هيڅ څوک د دې ګواه نشته

وَضَلَّ عَنْهُم مَّا كَانُوا يَدْعُونَ مِن قَبْلُ

او ورك به شي | ددوئ نه | هغه ټول | چې وو دوئ | چې رابلل به دوئ | مخکښې ددې نه |

اودوی چې به وړاندې دکومو معبودانو عبادت کولو هغه ټول به ترې ورک شي |

وَظَنُّوا مَا لَهُم مِّن مَّحِيصٍ لَّا يَسْأَمُ الْإِنسَانُ

او پوهه به شي | چې نشته دوئ لره | خائې دتيښتې | نه ستړې کيږي | انسان |

اوپوهه به شي چې اوس د خلاصي هيڅ لار نشته |........ انسان د خير په دعا غوښتلو نه

مِن دُعَاءِ الْخَيْرِ وَإِن مَّسَّهُ الشَّرُّ فَيَئُوسٌ قَنُوطٌ

دغوښتلو دخير نه | او که اورسيږي هغه ته | مصيبت | نو هغه نا اميده وی | ډير نا اميده |

ستړې کيږي|او که چرې څه تکليف ورته اورسي | نوبيا مايوسه او نااميده شي

وَلَئِنْ أَذَقْنَاهُ رَحْمَةً مِّنَّا مِن بَعْدِ ضَرَّاءَ مَسَّتْهُ

او که اوڅکوو مونږ هغه ته | رحمت | دطرفه زمونږ نه | روستودهغې | سختې نه | چې رسيدلې وی هغه ته

او که چرته مونږ پرې د خپل رحمت نه څه اوکړو | د يو داسې مصيبت نه پس چې رسيدلې وو ورته | نو

لَيَقُولَنَّ هَٰذَا لِي وَمَا أَظُنُّ السَّاعَةَ قَائِمَةً وَلَئِن

نو خامخا اوبه وائي | دا لائق دې ماله | اونه کوم زه ګمان | په قيامت | چې رابه شي | او که

بيا وائي چې داخو زما خپل کمال وو | اوزه دا نه ګنړم چې قيامت راتلونکې دې | او که چرته زه

رُّجِعْتُ إِلَىٰ رَبِّي إِنَّ لِي عِندَهُ لَلْحُسْنَىٰ

واپس کړې شوم زه | رب خپل ته | بيشکه ماله دی | دهغه سره | خامخا ښې مزې |

بالفرض هډو الله ﷻ ته واپس کړې شم|.......... نو هلته به هم زما ښه حالت وی |

فَلَنُنَبِّئَنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِمَا عَمِلُوْا

پس خامخا به خبر ورکوو مونږ | هغه کسانو ته | چې کفر ئې کړې دې | په هغه عمل چې کړي دي هغوئ

نو مونږ به کافرانو ته دهغوئ د هر يو عمل خبر ورکړو [چې تاسو په دنيا کښې دا دا کارونه کړي وو]

وَلَنُذِيْقَنَّهُمْ مِّنْ عَذَابٍ غَلِيْظٍ ۝۵۰ وَاِذَآ اَنْعَمْنَا

اوخامخا به مونږ څکوو هغوئ ته | دعذاب ګنده نه | او کله چې | نعمت اوکړو مونږ |

او دسخت عذاب مزه ورباندې اوڅکوو | ........ اوکله چې مونږ په يو انسان باندې

عَلَى الْاِنْسَانِ اَعْرَضَ وَنَاٰ بِجَانِبِهٖ ۚ وَاِذَا مَسَّهُ

په انسان باندې | نو مخ واړوؤ هغه | او لرې ئې کړو اړخ خپل | او کله چې | اورسی هغه ته |

نعمتونه اوکړو | نودې مخ واړوی | او ډډه اوکړی | ..........اوڅه وخت چې [ورډير] تکليف

الشَّرُّ فَذُوْ دُعَآءٍ عَرِيْضٍ ۝۵۱ قُلْ اَرَءَيْتُمْ

تکليف | نو دې خاوند | ددعا | اوږدې وی | ورته اووايه | آيا کتل کړی دی تاسو په سوچ سره |

ورته اورسيږی | نوبيا دې اوږدې دعاګانې کونکې وی | [اې نبی ﷺ] ته ورته اووايه چې په دې

اِنْ كَانَ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ ثُمَّ كَفَرْتُمْ بِهٖ مَنْ اَضَلُّ

که وی [دا قرآن] | دطرفه دالله نه | بيا | انکار اوکړئ تاسو | په هغې سره | څوک به وی ډير بې لارې

مې پوهه کړئ که دا کتاب دالله ﷻ دطرفه راغلې وی | او تاسو ترې نه انکار اوکړئ | نو دهغه سړی نه غټ

مِمَّنْ هُوَ فِيْ شِقَاقٍۭ بَعِيْدٍ ۝۵۲ سَنُرِيْهِمْ اٰيٰتِنَا

دهغه چانه | چې هغه په مخالفت | لرې کښې وی | زر به مونږ اوښايو دوئ ته | نښې خپلې |

ګمراه به څوک وی | چې دومره لرې مخالفت کښې پروت وی | مونږ به دوئ ته په چارچاپير کښې

فِي الْاٰفَاقِ وَفِيْٓ اَنْفُسِهِمْ حَتّٰى يَتَبَيَّنَ لَهُمْ

په خواوشا دنيا کښې | او په نفسونو ددوئ کښې | تر دې پورې | چې ښکاره شی | دوئ ته |

خپلې نښې اوښايو | او ددوئ په خپل ذات کښې به ورته هم اوښايو | تردې چې دا به ورته ثابته شی

اَنَّهُ الْحَقُّ ۭ اَوَلَمْ يَكْفِ بِرَبِّكَ اَنَّهٗ

چې بيشکه دا قرآن | حق دې | آيا کافی نه ده | رب ستالره دا خبره | چې بيشکه هغه |

چې داکتاب حق دې | آيا ستا د رب دا خبره کافی نه ده | چې هغه پخپله په هر څيز

عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيْدٌ ۝۵۳ اَلَآ اِنَّهُمْ فِيْ مِرْيَةٍ مِّنْ لِّقَاۗءِ

په هر څيز باندې | شاهد [ليدونکې] دې | خبردار | بيشکه دوئ | په شک کښې دی | دملاقات |

باندې ګواه دې | ........ ياد ساته چې داخلق خپل رب ته دمخامخ کيدو په حق کښې

رَبِّهِمْ ۭ اَلَآ اِنَّهٗ بِكُلِّ شَيْءٍ مُّحِيْطٌ ۝۵۴

درب خپل نه | خبردار | بيشکه هغه | په هر څيز باندې | چاپيره دې |

په شک کښې پراته دی | [خو] ياد ساته چې هغه دهرڅيز نه راچاپيره دې

## آسان ترجمه قرآن

خاص هغه ته پوهه د قیامت واپس کیږي، او د الله تعالی د علم نه بغیر نه د میوو نه څه میوې د خپلو کخوړو نه راوځي، او نه یوه ښځه (ماده) څه حمل بارَوي، او نه دهغې نه څه ماشوم پیدا کیږي، او په هغه ورځ چه الله تعالی به دې مشرکانو ته آواز اوکړي چه: چرته دي زما شریکان؟ نو هغوی به اووائي چه: مونږ تاته هم دا خبر درکوو، چه په مونږ کښې هیڅوک ددې خبرې گواه نشته (چه ستا څوک شریک شته) او محکښې ددې نه دې خلقو چه به کوم (د دروغو خدایان) راپلل، هغوی به ددوی نه وُرک شي، او دوی به پوهه شي چه ددوی دپاره د خلاص هیڅ لاره نشته . د انسان حال دادې، چه هغه د خیر غوختلو نه نه ستړې کیږي، او که اورسیږي هغه ته څه تکلیف، نو داسې مایوسه کیږي، چه هر امید پرېږدي.او کوم تکلیف چه دهٔ ته رسیدلې وي، که دهغې نه پس مونږ په هغه باندې د خپل رحمت نه څه مزه اوڅکوو، نو هغه لازمًا دا وائي چه: دا خو زما حق وو، او زهٔ نه گنړم، چه قیامت راتلونکې دې، او که زهٔ خپل رب ته واپس اوبللې شوم، نو ماته یقین دې، چه هغه سره به هم ماته خوشحالي ملاوېږي. اوس به مونږ دغې کافرانو ته خامخا دا خبر ورکړو، چه هغوی څه عمل کړې دې، او خامخا هغوی ته به د سخت عذاب مزه اوڅکوو، او چه کله مونږ په انسان باندې څه انعام اوکړو، نو هغه مخ وارَوي، او جدا شي په اړخ خپل باندې، او کله چه دهٔ ته څه مصیبت اورسي، نو بیا اوږدې اوږدې دعاگانې کوي (اے پیغمبره! دغې کافرانو ته) اووایه چه: خبر را کړئ ماته . که دا (قرآن) د الله تعالی د طرف نه راغلې وي، بیا هم تاسو ددې نه انکار اوکړو، نو دهغې سړي نه به زیات څوک گمراه وي، چه ددې په مخالفت کښې ډیر لرې پورې تلې وي مونږ به دوی ته خپلې نښې په کائناتو کښې هم اوښایو، او خپله دَ دوی په وجود کښې هم. تردې پورې چه په دوی باندې به دا خبره واضحه شي، چه هم دا حق دې، آیا ستا د رب دا خبره کافي نه دهٔ. چه هغه د هر څیز گواه دې، یاد اوساته، چه دا خلق د خپل رب سره د پیشې په معامله کښې په شک کښې پراته دي، یاد اوساته، چه هغه په هر څیز باندې احاطه کړې دهٔ.

## خلاصه تفسیر

بره چه دکوم قیامت ذکردې چه په هغې کښې به هغوی ته جزا ملاویږي ﴿اِلَيۡهِ يُرَدُّ عِلۡمُ السَّاعَةِ﴾ د هغې [قیامت دعلم حواله د الله تعالی طرف ته کولې شي] یعنی ددې سوال په جواب کښې چه قیامت به کله راځي لکه چه کفارو به په غرض دانکار داسې وئیل هم دا وئیلې شي چه دهغې علم خاص الله تعالی ته دې مخلوق ته دهغې دعلم نه کیدو د هغې نه واقع کیدل نه لازمیږي [او] د قیامت څه تخصیص دې دهغې علم خو په هرشی باند احاطه کوونکې دې تردې چه ﴿وَمَا تَخۡرُجُ مِنۡ ثَمَرٰتٍ مِّنۡ اَكۡمَامِهَا﴾ [یوه میوه دخپل خول[پوښ] نه نه راوخی﴿وَمَا تَحۡمِلُ مِنۡ اُنۡثٰى﴾ اونه یوه ښځه حملداره کیږی ﴿وَلَا تَضَعُ اِلَّا بِعِلۡمِهٖ﴾ اونه هغه بچې زیږوی مگر داټول د هغه په علم کښې وی] او ددې علم لرلو په وجه د هغه دعلم صفت ذاتی دې کوم چه داعلی درجې د کمال په وجه دتوحید دلیل هم دې او دقیامت دعلم دلیل هم دې پس دې سره ددوارو مضمونونو تائید وشو [او] وړاند ددغې قیامت دیوې واقعې ذکر دې چه په دې سره دتوحید اثبات او دشرك ابطال هم کیږی یعنی ﴿وَيَوۡمَ يُنَادِيۡهِمۡ﴾ [په کومه ورځ چه الله تعالی دوی] مشرکانو [لره راوبلی] او ووائی ورته [چه] ﴿اَيۡنَ شُرَكَآءِيۡ﴾ کومو لره تاسو ماسره شریکان کړی وو هغه [زما

شریکان] اوس [چرته دی] هغو لره راوغواړئ چه تاسو لره ددې مصیبت نه خلاص کړی ﴿قَالُوْٓا اٰذَنّٰكَ ۙ﴾[هغوی به ووائی چه] اوس خو [مونږ تاته دا عرض کوو ﴿مَا مِنَّا مِنْ شَهِيْدٍ﴾ چه په مونږ کښې هیڅوك] ددې عقیدې [دعوی کوونکې نشته] یعنی په خپله غلطئ باند اقرار کوو چونکه هلته به دعقیدو حقیقتونه ښکاره شي پس دا اقرار یا اضطراری دې یا په دې وجه چه په دې سره ئې دنجات څه توقع کړې وی ﴿وَضَلَّ عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَدْعُوْنَ مِنْ قَبْلُ﴾[او کومو کومو لره چه دې خلقو د وړاندنه] یعنی په دنیاکښې [بلل هغه به ټول غائب شی او کله چې داحالات اووینی ﴿وَظَنُّوْا مَا لَهُمْ مِّنْ مَّحِيْصٍ﴾ نو داخلق به پوهه شی چې ددوئ دپاره د بچ کیدو هیڅ صورت نشته] هغه وخت به ورته د دورغو دخدایانو بې وسی او دالله تعالی واحد حقوالې معلوم شی وړاند دکفراو شرك یولوئ اثر په انسانی طبیعت باند بیانوی چه څوك سرې دتوحید او ایمان نه بې برخې شو د هغې [بنده] اخلاق او عادتونه عقیدې او عملونه داسې ناکاره شي چه یو خو په هیڅ حالت کښې یعنی په فراخئ او تنګئ دواړو کښې ﴿لَا يَسْـَٔمُ الْاِنْسَانُ مِنْ دُعَآءِ الْخَيْرِ ۡ﴾[دترقئ په خواهش سره ددهٔ زړهٔ نه مړیږی] کوم چه انتهائی د حرص نښه ده [او] خاص په حالت دتنګئ وغیره کښې خوئ داحالت وی چه ﴿وَاِنْ مَّسَّهُ الشَّرُّ فَيَـُٔوْسٌ قَنُوْطٌ﴾ [که دهٔ ته څه تکلیف رسیږی نو ناامیده او په ویره کښې وی] او دا د انتهائی ناشکرئ او دالله تعالی نه د بدګمانئ نښه ده [او] کله چه تنګی ترې نه لرې شی نو دغه وخت ددهٔ داحالت وی چه ﴿وَلَىِٕنْ اَذَقْنٰهُ رَحْمَةً مِّنَّا مِنْۢ بَعْدِ ضَرَّآءَ مَسَّتْهُ﴾[که مونږ دهٔ ته دتکلیف نه پس کوم چه په دهٔ واقع شوې وو دخپلې مهربانئ مزه وڅکوو ﴿لَيَقُوْلَنَّ هٰذَا لِيْ ۙ﴾ نووائی چه دا خو زما دپاره خامخا پکار وه] څکه چه زما تدبیر او لیاقت او فضیلت ددې مقتضی وو او دا هم انتهائی ناشکری او تکبردې [او] په دې نعمت کښې داسې بدمسته او ناخبره شئ چه داسې هم وائی چه ﴿وَمَآ اَظُنُّ السَّاعَةَ قَآىِٕمَةً ۙ﴾[زهٔ دقیامت دراتلو خیال نه کوم ﴿وَّلَىِٕنْ رُّجِعْتُ اِلٰى رَبِّيْٓ﴾ اوکه چرې] به فرض محال راهم شی او [زهٔ خپل رب ته اورسم هم] لکه چه نبی ﷺ وائی ﴿اِنَّ لِيْ عِنْدَهٗ لَلْحُسْنٰى ۚ﴾[نو زما دپاره به دهغه سره هم غوره والې وی] څکه چه زهٔ په حق یم او ددې مستحق یم دقیامت نه انکارکوم چه انتهائی درجه کفر دې او دقیامت واقع کیدو په صورت کښې داګمان چه هلته به هم ماته انعامات ملاویږی دا دالله تعالی په معامله کښې په انتهائی دوکه کښې اخته کیدل دی غرض دکفر اوشرك نه دامفاسد پیداشول هغه داسې ناکاره شې دې [پس] داخلق دلته چه څه غواړی دعوې د حقونو او استحقاقونو دې کوی اوس ډیر زر ﴿فَلَنُنَبِّئَنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِمَا عَمِلُوْا ۡ﴾[مونږ به دې منکرانو ته ددوی] دا [ټول کردارخامخا وښایو ﴿وَلَنُذِيْقَنَّهُمْ مِّنْ عَذَابٍ غَلِيْظٍ﴾ او دوی ته به دسخت عذاب مزه وڅکوو او] دارنګ دکفر شرك یو اثر دادې ﴿وَاِذَآ اَنْعَمْنَا عَلَى الْاِنْسَانِ﴾[چه کله مونږ] داسې [بنده ته نعمت ورکړو نو] زمونږ نه او زمونږ داحکامونه ﴿اَعْرَضَ وَنَاٰ بِجَانِبِهٖ ۚ﴾[مخ اړوی او ډډه ګرځوی] کومه چه انتهائی درجه ناشکری ده [او] په حالت دتنګئ او ضرر کښې دکفراوشرك دنښونه یوه داده چه ﴿وَاِذَا مَسَّهُ الشَّرُّ﴾ [کله دهٔ ته تکلیف رسیږی نو] دنعمت دلرې کیدو د ویرې نه په ژړا فریاد سره نه چه خپل منعم طرف ته په زارئ کولو سره ﴿فَذُوْ دُعَآءٍ عَرِيْضٍ﴾[ښې اوږدې او غټې دعاګانې کوی] او دا انتهائی درجه بې صبری او د دنیا په محبت کښې بوښتیدل[ننوتل] دی وړاندې درسالت او قرآن حقوالې طرف ته د دعوت ورکولو

دپاره ارشاد دي چه اے پیغمبر ﷺ ﴿قُلْ﴾[ته] دي منکرانوته [ووایه چه] اے منکرانو د قرآن په حقوالي چه کوم دلیلونه قائم دی لکه ددې معجزه کیدل او دغیبوخبرو نه صحیح ښودل که تاسو د عدم تدبر په وجه سره سبب دیقین نه گنړی نو کم نه کم ددې داحتمال په درجه کښې خونفی تاسو هم نه شئ کولې ځکه چه په نفی باند خوتاسوسره څه دلیل هم قائم نه دي پس ﴿أَرَءَيْتُمْ إِن كَانَ مِنْ عِندِ اللَّهِ﴾[ایا دا خو وښایئ چه که چرې] بناء په احتمال مذکور [داقرآن د الله تعالی طرف نه راغلي وی ﴿ثُمَّ كَفَرْتُم بِهِ﴾ او بیا تاسو ددې نه انکار کوئ ﴿مَنْ أَضَلُّ مِمَّنْ﴾ نو داسې سړی نه زیات به څوك په غلطئ وی ﴿هُوَ فِي شِقَاقٍ بَعِيدٍ﴾ کوم چه] دحق نه [په داسې لرې مخالفت کښې پروت وی] په دې وجه په انکار کښې د جلد بازئ نه کارمه اخلئ بلکه دسوچ پوهې نه کار واخلئ چه حق واضح او متعین شی او ددې خلقو نه څه امید دې چه داتدبیر به وکړی مگر خیر ﴿سَنُرِيهِمْ آيَاتِنَا فِي الْآفَاقِ﴾[مونږ] په خپله [به ډیر زر دوی ته خپلې] دقدرت [نښې] کومې چه دلالت کوی په صدق دقرآن [ددې خلقو په گیر چاپیر ماحول کښې هم اوښایو] چه ټول عرب به دپیشگوئ مطابق فتح شی ﴿وَفِي أَنفُسِهِمْ حَتَّىٰ يَتَبَيَّنَ لَهُمْ﴾[او په خپله د دوی په] خاص [ذات گښې هم] وښایو چه په بدر کښې به قتل کړې شی او ددوی داوسیدو ځائ مکه به هم فتح شی [تردې پورې چه] په مجبورئ ددې پیشگوئیو په وقوع سره به [دوی ته ښکاره شی﴿أَنَّهُ الْحَقُّ﴾ چه داقرآن حق دې] چه ددې پیشگوئ څنگه رښتیا کیږی اگر چه دا اضطراری علم بغیر د احتیاری تصدیق نه مقبول نه دې لیکن په اتمام دحجت کښې خو قوت زیاتیږی غرض ددې حقیقت به یوه ورځ داسې ظاهر شی باقی فی الحال چه کوم داخلق ستا دوحی رسالت نه انکار کوی ته غمژن کیږه مه ځکه چه که داخلق په دې شهادت ورنه کړی نو ﴿أَوَلَمْ يَكْفِ بِرَبِّكَ﴾[ایا ستادرب خبره] ستا دحقانیت د شهادت او تسلئ دپاره [کافی نه ده ﴿أَنَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدٌ﴾ چه هغه د هر] واقعی [شی گواه دې] او هغه ځائ په ځائ ستا درسالت شهادت ورکړې دې وړاند اصل وجه ددې انکاربنائی او په دې سره تسلی هم زیاتیدې شی ﴿أَلَا إِنَّهُمْ فِي مِرْيَةٍ مِّن لِّقَاءِ رَبِّهِمْ﴾[یادساته چه هغه خلق خپل رب ته د مخامخ کیدونه په شك کښې پریوتی دی] په دې وجه په زړه کښې ئې ویره نشته چه دحق طلب پرې وکړی﴿ أَلَا إِنَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ مُّحِيطٌ﴾ [مگر یادساته چه هغه هرشی لره] د خپل علم [په احاطه کښې راگیرکړې دې] پس ددوی په شك او شبهه باند هم پوه دې او سزا به پرې ورله ورکوی

## معارف او مسائل

﴿فَذُو دُعَاءٍ عَرِيضٍ﴾ ددې مقصد دادې چې د کافر انسان خصلت دادې چې کله الله ﷻ دوئ ته څه نعمت او دولت او عزت ورکړی نو دوئ په هغې فخر کوی او خپل حقیقی منعم یعنی الله ﷻ هیر کړی او نور هم د الله ﷻ څخه لرې شی . او ددوئ تکبر او غفلت زیات شی . او کله چې دوئ څه مصیبت کښې راگیر شی نو بیا د الله ﷻ څخه لوئې لوئې دعاگانې غواړی . اوږدې دعا ته دې ځائې کښې عریض وئیلې شوی دی او داهغه دعا ده چې په هغې کښې مبالغه زیاته وی. ځکه چې هر کله د یو څیز اوږدوالې زیات وی نو دا پخپله معلومیږی چې ددې طول به څومره وی. په دې وجه الله ﷻ د جنت وسعت بیانولو کښې فرمائی چې :﴿عَرْضُهَا السَّمَاوَاتُ وَالْأَرْضُ﴾ یعنی جنت دومره لوئې دې چې ددې په عرض کښې آسمان او زمکه راځی .

او اوردې اوردې دعاګانې غوښتل اګر چې يو ښه عمل دې لکه څنګه چې صحيح احاديثو کښې د دعاء آداب راغلي دي چې په دعاء کښې الحاح او زاري او بار بار تکرار کول بهتر دې. [کما اخرجه البخاري و مسلم وعامة المحدثين] [1].

ليکن دې ځائې کښې چې دکافر انسان کومه غندنه بيان کړې شوې ده هغه په حقيقت کښې په اوردې دعا باندې نه ده بلکه ددې په مجموعي مذموم خصلت باندې ده چې کله الله ﷻ په دوئ نعمتونه زيات کړي نو دوئ تکبر کوي او غرور کوي ، او کله چې دوئ ته څه مصيبت راپيښ شي نو دوئ بار بار الله ﷻ څخه دعا کوي . لکه څنګه چې دغافلو خلقو عادت وي چې د الله ﷻ څخه دعا کول ئې مقصود نه وي بلکه خپله په چغو ژړا کول او خلقو ته وئيل ئې مقصود وي . والله سبحانه وتعالى اعلم.

﴿سَنُرِيهِمْ اٰيٰتِنَا فِي الْاٰفَاقِ وَفِيٓ اَنْفُسِهِمْ﴾ يعني دوئ ته دخپل قدرت او وحدانيت نښې ښايو په آفاق کښې هم او ددوئ په خپل بدن کښې او نورو چاپير چل کښې هم شته دې . آفاق د افق جمع ده ، دا د آسمان لاندې غاړې ته وائي . د آفاق څخه مراد د عالم اطراف دي . يعني ددنيا وړوکې او لوئې مصنوعات او مخلوقات ، آسمان او زمکه او ددې مينځ کښې مخلوقاتو کښې هر څيز ته که اوګورئي نو دا د الله ﷻ د وجود او دهغه د علم او قدرت او وحدانيت ګواهي ورکوي . او دې ته زيات نزدې څيز د انسان خپل جسم او ځان دې . ددهٔ يو يو اندام او دې کښې کار کوونکې وارهٔ وارهٔ مشينونو ته اوګورئي چې په دې کښې د انسان آسانتيا دپاره څومره څومره انتظامات کړې شوې دي چې عقل ورته حيران شي . بيا ئې دا نازك مشينونه دومره مضبوط جوړ کړي دي چې تر اويا اتياؤ کالو پورې نه خرابيږي . د انسان عامو جوړونو کښې چې کوم سپرنګ لګيدلي دې که دا انساني صنعت کښې جوړ شوې وې نو دا فولادي سپرنګ هم به خراب شوې وې . د لاسونو څرمن او په دې باندې کرښې او خطونه هم تول عمر کښې نه خرابيږي . که د يو ادنى عقل والا سړې په دې باندې غور اوکړي نو په دې يقين به مجبوره شي چې ددې پيدا کوونکې او قائم ساتونکې يو داسې ذات دې چې د هغه د علم او قدرت هيڅ انتها نشته دې او دهغه هيڅ مثل نشته دې . ﴿فَتَبٰرَكَ اللّٰهُ اَحْسَنُ الْخٰلِقِيْنَ﴾

تمت سورة حم سجدة بعون الله وحده للعشرين من الربيع الثاني ۱۳۹۲ هـ يوالسبت

.....

[1] لکه چه بعضے احاديثو کی نبي عليه السلام نه درے درے ځل دعا کولو معمول نقل دی، اوګورئ: صحيح مسلم، کتاب الجهاد، باب ما لقي النبي صلى الله عليه وسلم من اذى المشرکين، رقم الحديث: ۳۳۴۹

| آیاتونه | | سورة الشورى ومكية وهي ثلاث وخمسون آية وخمس ركوعات | ركوع ګانې |
|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ۵۳ | | شروع كوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زیات رحم كونكې دې | ۷ |

حٰمٓ ۝ عٓسٓقٓ ۝ كَذٰلِكَ يُوْحِيْٓ اِلَيْكَ وَاِلَى الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكَ
ح . م | ع . س . ق | همدارنګې | وحی كوی | تاته | او هغه رسولانو ته | چې مخكښې ستا نه وو
ح م ع س ق ، دغه شان تاته او ستا نه وړاندې پیغمبرانو ته هغه الله ﷻ چې غالب

اللّٰهُ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ۝ لَهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ
الله | چې غالب دې | چې دحكمت خاوند دې | هغه لره دی | هغه څه | چې په آسمانونو كښې دی |
دحكمتونو خاوند دې وحی كړې ده | په زمكه او آسمانونو كښې چه هرڅه دی ټول هرڅه د هغه

وَمَا فِي الْاَرْضِ ۗ وَهُوَ الْعَلِيُّ الْعَظِيْمُ ۝ تَكَادُ السَّمٰوٰتُ
او هغه څه | چې په زمكه كښې دی | او هغه | اوچت دې او لوئ دې | نزدې ده | چې آسمانونه
ملكیت دې | ......... او هغه ډیر اوچت اوډیر لوئې دې | نزدې ده چې اسمانونه پورته نه

يَتَفَطَّرْنَ مِنْ فَوْقِهِنَّ وَالْمَلٰٓئِكَةُ يُسَبِّحُوْنَ بِحَمْدِ رَبِّهِمْ
اوشلیږی | دپاسه دهغوئ | او فرښتې | تسبیح وائی | دحمد درب خپل سره |
اوشلیږی | او فرښتې دخپل رب تسبیح دحمد سره وائی

وَيَسْتَغْفِرُوْنَ لِمَنْ فِي الْاَرْضِ ۗ اَلَآ اِنَّ اللّٰهَ
او بخښنه غواړی | دپاره دهغه چا | چې په زمكه كښې دی | خبردار شه | بیشكه الله |
اوڅوك [مومنان] چې په زمكه كښې دی د هغوی دپاره بخښنه غواړی | یادساته چې الله ﷻ

هُوَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ ۝ وَالَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِهٖٓ
خاص هم هغه بخښونكې | مهربانه دې | او هغه كسان | چې نیولی دی هغوئ | بې دالله نه |
بخښونكې او رحم كونكې دې | ......... اوچا چې دالله ﷻ نه سوا د ځان دپاره نور

اَوْلِيَآءَ اللّٰهُ حَفِيْظٌ عَلَيْهِمْ ۖ وَمَآ اَنْتَ عَلَيْهِمْ
نور دوستان | الله | نظر ساتونكې دې | په هغوئ باندې | اونه ئې ته | په هغوئ باندې |
كارساز نیولی دی | ..... الله ﷻ هغوئ وینې ګوری | ......... اوته د هغوئ ذمه وار

بِوَكِيْلٍ ۝ وَكَذٰلِكَ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ قُرْاٰنًا عَرَبِيًّا
مقرر كړې شوې حوالدار | او همدارنګې | وحی كړې دې مونږ | تاته | دا قران په عربئ ژبه كښې
نه یې | ......... اودغه شان مونږ تاته دا قران پاك په عربئ ژبه كښې نازل كړې دې

لِّتُنْذِرَ اُمَّ الْقُرٰى وَمَنْ حَوْلَهَا وَتُنْذِرَ
دپاره ددې چې اویروې | مركز دكلو [مكه] | او هغه څوك | چې چاپیره دهغې نه دی | او اویروې خلق
چې ته د كلو د اصل [مكې مكرمې] اوددې ګیرچاپیره خلق اوویروې | ......... اود قیامت

| يَوْمَ الْجَمْعِ | لَا رَيْبَ | فِيْهِ ؕ | فَرِيْقٌ | فِي الْجَنَّةِ | وَفَرِيْقٌ |
|---|---|---|---|---|---|
| د ورځ دجمع کیدونه | چې نشته شك | په هغې کښې | یوه ډله به | په جنت کښې وی | او بله ډله به |
| د ورځې نه ئې اوویروې \| چې دهغې په راتلو کښې هیڅ شک نشته \| یوډله به په جنت کښې او بله ډله به | | | | | |

| فِي السَّعِيْرِ ۞ | وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ | لَجَعَلَهُمْ | اُمَّةً وَّاحِدَةً | وَّلٰكِنْ |
|---|---|---|---|---|
| په دوزخ کښې وی | اوکه غوښتلې الله | نو جوړ کړی به ئې وې دوئ | ډله یوه | ولیکن |
| په دوزخ کښې وی \| اوکه الله ﷻ ته منظوره وې نو دوئ ټول به ئې [په زور] په یو لاره روان کړی وو | | | | |

| يُّدْخِلُ | مَنْ | يَّشَآءُ | فِيْ رَحْمَتِهٖ ؕ | وَالظّٰلِمُوْنَ |
|---|---|---|---|---|
| هغه دا خلوی | هغه څوك | چې غواړی ئې هغه | په رحمت خپل کښی | او ظالمان چې دی |
| خو هغه چې د چا په حق کښې اوغواړی \| نو دخپل رحمت [دسیوری] لاندې ئې راولی \| اود ظالمانو | | | | |

| مَا لَهُمْ | مِّنْ وَّلِيٍّ | وَّلَا نَصِيْرٍ ۞ | اَمِ اتَّخَذُوْا | مِنْ دُوْنِهٖۤ | اَوْلِيَآءَ ۚ |
|---|---|---|---|---|---|
| نشته هغوئ لره | څوك دوست | اونه مددګار | آیا نیولی دی دوئ | بې دالله نه | نور دوستان |
| هیڅوک ملګرې اومددګار نشته \| آیا دوئ د خان دپاره دالله ﷻ نه سوا نور کارسازان نیولې دی \| | | | | | |

| فَاللّٰهُ | هُوَ الْوَلِيُّ | وَهُوَ يُحْيِ | الْمَوْتٰى ز | وَهُوَ | عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ | قَدِيْرٌ ۞ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| پس الله چې دې | هم هغه ولی دې | اوهغه ژوندی کوی | مړی | او هغه | په هر څیز باندې | قادر دې |
| نو دهرچا کارساز [الله ﷻ] دې \| اوهغه مړی ژوندی کوی \| اوهغه په هر څیز قادر دې \| | | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

حٰمٓ عٓسٓقٓ. (اے پیغمبره) الله تعالیٰ چه عزیز او حکیم دې، په تا باندې او ستا نه مخکښې چه کوم (پیغمبران) وو، دغه شان وحی نازلوی. څه چه په آسمانونو کښې دی، او څه چه په زمکه کښې دی، ټول دهغه دی، اوهم هغه دې، چه د لویئ او عظمت مالک دې. نزدې ده چه آسمان د پره نه اوچوی او فرښتې د خپل پروردګار حمد سره تسبیح کوی، او د زمکې والو دپاره استغفار کوی. یاد اوساتئ، چه بے شکه الله تعالیٰ ډیر بخونکې، او لوئې مهربان دې. او کومو خلقو چه د الله تعالیٰ نه سوا نور دوستان جوړ کړي دی، الله تعالیٰ په هغوی باندې نګرانی کونکې دې، او ته دهغوی ذمه وار نه یې. او دغه شان مونږ دا عربی قرآن په تا باندې د وحې په ذریعې سره رالیږلې دې، دې دپاره چه ته خبردار کړې، مرکزی کلې (مکې) والا خلق او څوک چه ددې نه چاپیره دی او خبردار ئې کړې، دهغې ورځې نه، چه په هغې کښې به ټول راجمع کولې شی، او چه دهغې په راتلو کښې هیڅ شک نشته، یوه ډله به جنت ته لاړه شی، او بله ډله به بل کړې شوې اور کښې. او که الله تعالیٰ غوښتلې، نو خامخا دوی ټول به ئې یوه ډله ګرځولې وې. لیکن هغه چه چالره اوغواړی، په خپل رحمت کښې داخلوی، او کوم چه ظالمان دی، نه دهغوی دپاره څوک بچ کونکې شته، او نه مددګار. آیا دوی نیولې دی، سوا د الله تعالیٰ نه نور مددګاران؟ رښتیا خبره داده، چه مددګار صرف الله تعالیٰ دې، او هم هغه مړو لره ژوندې کوی، او هم هغه په هر څیز باندې قادر دې.

## خلاصه تفسیر

﴿حٰمٓ ۚ عٓسٓقٓ ۞﴾ ددې معنی خو الله تعالیٰ ته معلومه ده څنګه چه ددین داصولو د تحقیق او عظیمو فائدو دپاره داسورت نازلیږی ﴿كَذٰلِكَ يُوْحِيْٓ اِلَيْكَ وَاِلَى الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكَ ۙ﴾ [دغه شان په تا

اوکوم] پیغمبران [چه تانه وړانـد تیرشوی دی پـه هغوی ﴿اللهُ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ﴾ الله تعالی چه زبردست حکمت والا دی] دنورو سورتونو او کتابونو [وحی لیږلې ده] او دهغه شان دادې چه ﴿لَهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ﴾[د هغه دی څه چه په اسمانونو کښې دی او څه چه په مزکه کښې دی ﴿وَهُوَ الْعَلِيُّ الْعَظِيْمُ﴾ او هغه دټولو نه اوچت او عظیم الشان دې] ددۀ عظیم شان کیدل که څنې دمزکې خلق ونه پیژنی او ونه منی مګر په اسمانونو کښې ددۀ معرفت لرونکې او عظمت [پیژندونکې فرښتې دومره ډیرې دی چه ﴿تَكَادُ السَّمٰوٰتُ يَتَفَطَّرْنَ مِنْ فَوْقِهِنَّ﴾ څه لرې نه ده چه اسمان] ددوی دبوج په وجه [دخپل پاس نه] چه بوج د هغه ځائې نه پریوځی [څیرې شی] لکه چه په حدیث کښې دی [اطت السماء وحق لها ان تئط ما فيها موضع اربعة اصابع الا وملك واضع جبهته ساجدا لله رواه الترمذي وابن ماجه وبه فسر الاية في المدارك](1) یعني په اسمان کښې داسې اواز پیداشو لکه چه په یو شی دزیات بوج غورزیدو نه پیداکیږی او په دې کښې داسې اواز پکار دې ځکه چه په ټولو اسمانونو کښې دڅلورو ګوتو ځائ هم داسې نشته په کوم کښې چه څوك فرښته خپل تندی اینبونکې په سجده نه وی [وَالْمَلٰٓئِكَةُ يُسَبِّحُوْنَ بِحَمْدِ رَبِّهِمْ] [او] دغه [فرښتې د خپل رب تسبیح او حمد کوی اومزکې والو] کښې چه کوم خلق د هغه د عظمت حق نـه ادا کوی بلکه پـه شرك او کفر کښې مبتلا دی په دې وجه مستحق د عذاب دی [وَيَسْتَغْفِرُوْنَ لِمَنْ فِي الْاَرْضِ] دغه فرښتې د هغوی [دپاره] تریو خاص وخته پورې [معافی غواړی] ددې محدود معافئ غوښتلو نه مراد دادې چه فرښتې ددې دعاکوی چه په دوی په دنیا کښې څه سخت عذاب رانه شی چه ټول پرې هلاك شی ددنیا معمولی سزاګانې او داخرت اصلی عذاب ددې استغفار دمطلب نه بهر دې او الله تعالی د فرښتو دا دعا او درخواست قبلوی او دوی لره ددنیا دعام عذاب نه بچ کوی [اَلَآ اِنَّ اللهَ هُوَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ] [ښه پوه شئ چه الله تعالی معاف کوونکې او رحمت کوونکې دې] اګر چه دکفارو دامعافی محدوده او رحمت صرف ددنیاترحده پورې وی [وَالَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِهٖٓ اَوْلِيَآءَ] [اوکومو خلقو چه دالله تعالی نه سوا نور کار سازان مقرر کړی دی [اللهُ حَفِيْظٌ عَلَيْهِمْ] الله تعالی هغو] قبیحوعملونو [لره وینی پیژنی] چه سزا به یې ورته په مناسب وخت ملاوشی [وَمَآ اَنْتَ عَلَيْهِمْ بِوَكِيْلٍ] [اوتالره په دوی هیڅ اختیار نه دې درکړې شوې] چه ته کله غواړې په دوی عذاب نازل کړې [او] تالره پـه دې خلقو باندې پـه دې وجه غم او خفګان نه دې پکار چه پـه دوی فوری عذاب نه راځی ځکه چه ستا کار تبلیغ کول دی هغه تاوکړو ددې نه زیاتی فکر تـه مـه کوه چنانچه ﴿وَكَذٰلِكَ﴾[مونږ داسې] لکه څنګه چه ته وینې ﴿اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ قُرْاٰنًا عَرَبِيًّا﴾[په عربی ژبه قرآن د وحی په ذریعه] محض ددې دپاره [نازل کړې دې چه ته] د ټولو نه اول ﴿لِتُنْذِرَ اُمَّ الْقُرٰى وَمَنْ حَوْلَهَا﴾ [دمکې اوسیدونکولره اوکوم خلق چه ددوی خواوشاته دی هغوی لره ووېروی او] دا ویرول هم دیو لوئ شی نه دی یعني ﴿وَتُنْذِرَ يَوْمَ الْجَمْعِ﴾[دجمع کیدو د ورځې نه یې اوویروې] مراد ددې نه قیامت دې په کوم کښې چه به ټول اولین او اخرین په یو میدان کښې جمع کیږی ﴿لَا رَيْبَ فِيْهِ﴾[په کوم کښې چه یوه ذره شك نشته] چه فیصله به په کښې داوی چه ﴿فَرِيْقٌ فِي الْجَنَّةِ﴾[یوه ډله به جنت کښې] داخله [وی﴿وَفَرِيْقٌ فِي السَّعِيْرِ﴾ اویوه ډله به په دوزخ کښې] داخله

---

(1) جامع الترمذي، أبواب الزهد، باب في قول النبي صلى الله عليه وسلم لو تعلمون ما اعلم: ج ۲، ص ۵۷، وتفسير المدارك تحت هذه الآية: ج ۳، ص ۲۷٤

[وی] بس ستا کار دومره دې چه ددغې ورخې نه دوی وویروې [او] پاتې شو د دوی ایمان راوړل یا نه راوړل دا په مشیت الهی باند موقوف دی ﴿وَلَوۡشَآءَاللّٰهُ لَجَعَلَهُمۡ اُمَّةًوَّاحِدَةً﴾ [که الله تعالی ته منظوره وې نو دې ټولو لره به ئې په یوه طریقه جوړکړی وو] یعنی ټولو ته به ایمان نصیب شوې وو لکه چه الله تعالی فرمائي [وَلَوۡشِئۡنَالَاٰتَيۡنَاكُلَّ نَفۡسٍ هُدٰهَا] یعنی که مونږ غوښتلې نو هرسړی لره به موهدایت ته رسولې وو ﴿وَّلٰكِنۡ﴾ [لیکن] د ډیرو حکمتونو په بنا هغه ته دا منظوره نه شوه بلکه ﴿يُّدۡخِلُ مَنۡ يَّشَآءُ فِىۡ رَحۡمَتِهٖ﴾ [هغه چالره چه غواړی] ایمان ورکړی [په خپل رحمت کښې ئې داخلوی] او چالره چه غواړی دده په کفر او شرك باند پریږدی چه هغه په رحمت کښې داخل نه شی ﴿وَالظّٰلِمُوۡنَ﴾ [او د] دې [ظالمانویه] کوم چه په کفر او شرك کښې مبتلا دی دقیامت په ورځ ﴿مَا لَهُمۡ مِّنۡ وَّلِىٍّ وَّلَا نَصِيۡرٍ﴾ [څوك حامی او مددګار نه وی] وړاند دشرك ابطال کولې شی ﴿اَمِ اتَّخَذُوۡا مِنۡ دُوۡنِهٖۤ اَوۡلِيَآءَ﴾ [ایا دې خلقو د الله نه سوا نور کار سازان مقرر کړی دی پس] که کار ساز جوول وی نو ﴿فَاللّٰهُ هُوَ الۡوَلِىُّ﴾ [الله تعالی کارساز] جوړولو مستحق [دې ﴿وَهُوَ يُحۡىِ الۡمَوۡتٰى﴾ او هغه به مړو لره ژوندی کوی ﴿وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَىۡءٍ قَدِيۡرٌ﴾ او هغه په هرڅه باند قدرت لری] نو دکارساز جوړولو لایق هغه دې کوم چه په هرڅه باند تردې چه په مړو ژوندی کولو هم قادر دې د هغه دقدرت خصوصیت دادې چه په نورو څیزونو برای نام قدرت څه خو نوروته هم دا وخت حاصل دې مګر د مړو د ژوندی کولو په قدرت کښې څوك برای نام هم شریك نشته.

## معارف او مسائل

﴿يَتَفَطَّرۡنَ﴾ دې کښې د حدیث پاك حوالې سره مخکښې بیان شوی دی چې د فرښتو بوج سره آسمان کښې داسې آواز پیدا شی لکه څنګه چې په یو څیز باندې یو دروند څیز کیخودې شی او یو آواز ترې پیدا کیږی. ددې څخه معلوم شو چې فرښتو کښې ثقل والا بوج شته دې. او په دې کښې هیڅ استبعاد نشته دې. څکه چې دا خبره یقینی ده چې فرښتې هم اجسام لری اګر چې ددوئ جسم اجسام لطیفه دی. او هر کله چې اجسام لطیفه زیات شی نو ضروری خبره ده چې ددوئ بوج به هم زیات شی. [بیان القرآن][1]

﴿لِتُنۡذِرَ اُمَّ الۡقُرٰى﴾، د ﴿اُمَّ الۡقُرٰى﴾ څخه مراد د ټولو کلو او ښارونو اصل او بنیاد مکه مکرمه ده. ددې نوم ﴿اُمَّ الۡقُرٰى﴾ په دې وجه ایخودې شوې دې چې دا ښار د ټولې دنیا په ښارونو او کلو کښې الله ﷻ ته خوښ او افضل دې. لکه څنګه چې امام احمد رحمه الله مسند کښې عدی بن حمراء زهری څخه روایت کړې دې. هغوئ اوفرمائیل چې ما رسول اکرم ﷺ څخه هغه وخت کښې واوریدل چې کله رسول اکرم ﷺ مکې مکرمې څخه هجرت کولو او دمکې بازار کښې دحزوره په مقام باندې وو رسول اکرم ﷺ مکې مکرمې ته خطاب کښې اوفرمائیل چې: ﴿انك لخیر ارض الله واحب ارض الله الی ولولا انی أخرجت منك لما خرجت﴾ [ته زما په نزد دالله ﷻ په ټوله زمکه کښې بهتر یې، او په ټوله زمکه ټولو څخه زیات محبوب یې. که څه ددې زمکه څخه ویستلې شوې نه وې نو څه به په خپله مرضی کله هم ددې زمکه څخه نه وې وتلې او روی مثله الترمذی والنسائی و ابن ماجه وقال الترمذی حدیث حسن صحیح][2].

---

[1]) تفسیر بیان القرآن: ج ۱۰، ص ۶۵

[2]) جامع الترمذی، أبواب المناقب، باب فی فضل مکة: ج ۲، ص ۲۳۰، وسنن ابن ماجة، أبواب المناسك، باب فضل مکة: ج ۲، ص ۲۲٤، وسنن الکبری، رقم الحدیث: ٤۲٥۲

﴿وَمَنْ حَوْلَهَا﴾ يعنى د مكې مكرمې چاپيرچل ددې څخه مراد عرب سره نزدې ممالك كيدې شى او د پوره زمكې مشرق او مغرب هم.

قَدِيْرٌ۝ وَمَا اخْتَلَفْتُمْ فِيْهِ مِنْ شَيْءٍ فَحُكْمُهٗٓ

قادر دي |او هغه | چه اختلاف كوئ تاسو | په هغې كښې | دڅه څيز نه | نو فيصله دهغې |

............ | اوتاسو چې په كومه خبره كښې اختلاف كوئ | نو دهغې فيصله صرف الله ﷻ

اِلَى اللّٰهِ ؕ ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبِّيْ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ ۖۗ وَاِلَيْهِ

[حواله ده] الله ته | دغه الله | رب زما دې | په هغه باندې | بروسه اوكړه ما | او خاص هغه ته

ته حواله ده | اوهم دغه زما رب دې | زه په دهٔ توكل كوم |اوهم دهٔ ته رجوع كوم

اُنِيْبُ۝ فَاطِرُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ جَعَلَ لَكُمْ

رجوع كوم زهٔ | پيدا كونكې دې د آسمانونو | او دزمكې | جوړې ئې كړې | ستاسو دپاره |

...........دآسمانونو اودزمكې پيداكونكې دې | هغه تاسو دپاره ستاسو د خپل جنس نه

مِّنْ اَنْفُسِكُمْ اَزْوَاجًا وَّمِنَ الْاَنْعَامِ اَزْوَاجًا ۚ يَذْرَؤُكُمْ

دنفسونو ستاسو نه | جوړئ | او دڅاروؤ نه | جوړئ | زياتوى [خوروى] تاسو

جوړئ پيداكړې دى |اودغه شان په څاروؤ كښې ئې جوړئ پيداكړې دى| چې ددې په ذريعه

فِيْهِ ؕ لَيْسَ كَمِثْلِهٖ شَيْءٌ ۚ وَهُوَ السَّمِيْعُ الْبَصِيْرُ۝

په دې طريقې سره | نشته | په مثل دهغه | هيڅ څيز | او هغه هر څه اوريدونكې | ليدونكې دې |

ستاسو نسل خوروى | ددهٔ په شان هيڅوک نشته | او دې هرڅه آورى هرڅه وينى گورى

لَهٗ مَقَالِيْدُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ

هغه لره دى | كنجيانې | دخزانو داسمانونو | او دزمكې | فراخه كوى رزق | دپاره دهغه چا

د آسمانونو اود زمكې چابيانې دهغه په اختيار كښې دى| هم هغه چې د چا رزق اوغواړى فراخ ئې

يَّشَآءُ وَيَقْدِرُ ؕ اِنَّهٗ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ۝

چه غواړى هغه | او په اندازه كوى رزق | بيشكه هغه | په هر څيز باندې | عالم دې |

كړى |اودچا رزق تنگوى | ............ بيشكه هغه په هرڅه بنه پوهه دې |

## آسان ترجمه قرآن

او تاسو چه په كومه خبره كښې هم اختلاف كوئ، دهغې فيصله الله تعالىٰ ته حواله ده، اے خلقو! هغه الله دې، چه زما پروردگار دې، او په هغه باندې ما بهروسه كړې ده او هغه طرف ته زه رجوع كوم. هغه د آسمانونو او زمكې پيداكونكې دې، هغه ستاسو دپاره ستاسو د جنس نه جوړې پيداكړې دى، او د څاروؤ نه ئې هم جوړې پيداكړې دى، دهغې په ذريعې سره ستاسو نسل جارى كوى، هيڅ څيز دهغه په مثل نشته،او هم هغه دې، چه هره خبره اورى، او هر څه وينى.د آسمانونو او زمكې ټولې كنجيانې دهغه په قبضه كښې دى، هغه چه د چا دپاره اوغواړى، په رزق كښې فراخى او تنگى كوى، يقيناً هغه په هر څيز باندې پوهيدونكې دې.

## خلاصه تفسیر

[او] ته دې خلقو ته کوم چه په توحید کښې تاسره اختلاف ساتی دا ووایه چه ﴿وَمَا اخْتَلَفْتُمْ فِيهِ مِنْ شَيْءٍ﴾ [په کومه کومه خبره کښې چه تاسو] دحق دخاوندانو سره [اختلاف کوئ ﴿فَحُكْمُهُ إِلَى اللَّهِ﴾ دهغې] تولو [فیصله الله تعالی ته سپارلې ده] هغه داده چه په دنیا کښې ئې په دلیلونو او معجزو سره د توحید حق والې وضح کړو او په اخرت کښې به ایماندارولره په جنت کښې اوایمان نه راوړونکو لره په دوزخ کښې وغورزوی ﴿ذَٰلِكُمُ اللَّهُ رَبِّي﴾ [دا الله تعالی] چه دائې شان دې [زما رب دې] او ستاسو دخلاف او مخالفت نه چه دکوم تکلیف او نقصان رسیدو ویره کیدې شی ددې په باره کښې ﴿عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ﴾ [په هغه توکل ساتم او] ددنیا او دین تولو کارونو کښې ﴿وَإِلَيْهِ أُنِيبُ﴾ [د هغه طرف ته رجوع کووم] په دې سره د توحید مضمون بنه موکد شو وراند دکمال په نورو صفتونو بیانولوسره ددې زیات تاکید کولې شی یعنی ﴿فَاطِرُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ﴾ [هغه داسمانونو اومزکې پیدا کوونکې دې] او ستاسو هم پیدا کوونکې دې چنانچه ﴿جَعَلَ لَكُمْ مِنْ أَنْفُسِكُمْ أَزْوَاجًا﴾ [هغه تاسو دپاره ستاسو دجنس نه جوړې جوړې کړې او] دغه شان ﴿وَمِنَ الْأَنْعَامِ أَزْوَاجًا﴾ [دخارو جوړې ئې جوړې کړې] او ﴿يَذْرَؤُكُمْ فِيهِ﴾ [ددې] جوړو دملاویدو [په ذریعه ستاسو نسل خوروې] هغه په ذات او صفاتو کښې داسې کامل دې چه ﴿لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ﴾ [هیڅ شې د هغه مثل نشته ﴿وَهُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ﴾ او هغه دهرې خبرې اوریدونکې لیدونکې دې] په خلاف د نورو چه د هغوی لیدل اوریدل ډیر محدود دی او په مقابله دالله تعالی دسمع او بصر کښې کالعدم دی ﴿لَهُ مَقَالِيدُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ﴾ [د هغه په اختیار کښې دی کنجیانې داسمانونو او دمزکې] یعنی په دې کښې دتصرف کولو صرف هغه ته حق حاصل دې په کومو کښې چه یوتصرف دادې چه ﴿يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَشَاءُ وَيَقْدِرُ﴾ [چالره غواړی زیات رزق ور کوی او] چالره چه غواړی [کموی ﴿إِنَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ﴾ بیشکه هغه په هرڅه پوره پوه دې] هر چاته ئې دمصلحت مطابق ورکوی

## معارف او مسائل

﴿وَمَا اخْتَلَفْتُمْ فِيهِ مِنْ شَيْءٍ فَحُكْمُهُ إِلَى اللَّهِ﴾ ستاسو چې په یو کار او یو معامله کښې اختلاف پیدا شی نو ددې فیصله د الله ﷻ په حواله ده. ځکه اصل حکم صرف د الله ﷻ دې. لکه څنګه چې بل آیت مبارك کښې ارشاد دې چې ﴿إِنِ الْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ﴾ او نورو اکثرو آیتونو کښې چې د اطاعت په حکم کښې رسول کریم ﷺ لره او ځینو آیتونو کښې اولوالامر لره هم شامل کړې شوې دې. هغه ددې معارض نه دې ځکه چې رسول اکرم ﷺ یا اولوالامر چې کومه فیصله یا حکم کوی هغه یو حیثیت سره د الله ﷻ حکم دی. که د وحی په ذریعه سره یا نصوص کتاب وسنت وې. نو دا ښکاره ده چې دا د الله تعالی حکم دې. اوکه د خپل اجتهاد څخه وې نو چونکه اجتهاد هم په نصوص قرآن وسنت باندې اړه لری نو هغه هم په یو حیثیت سره دا الله تعالی حکم دې. د امت د مجتهدینو اجتهاد هم دې حیثیت سره د الله تعالی په حکم کښې داخل دی. په دې وجه علماء کرام فرمائی چې یو عام سړې چې هغه په قرآن وسنت باندې پوهه نه لری نو هغه دپاره د یو مفتی فتوی شرعی حکم دې.

شَرَعَ لَكُمْ مِّنَ الدِّيْنِ مَا وَصّٰى بِهٖ نُوْحًا

مقرر كړى ده ستاسو دپاره | دين نه | هغه طريقه | چه وصيت كړې وو | په هغې سره | نوح عليه السلام

او الله تعالى ستاسو دپاره هغه دين مقرر كړې دې | د كوم چې ئې نوح عليه السلام ته كړې وو

وَالَّذِيْٓ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ وَمَا وَصَّيْنَا

او هغه طريقه | چى وحى كړې ده مونږه | تاته | او هغه طريقه | چه هدايت كړې وو مونږه |

او دكوم حكم چې مونږ تاته كړې دې | او دكوم حكم چې مونږ

بِهٖٓ اِبْرٰهِيْمَ وَمُوْسٰى وَعِيْسٰٓى اَنْ اَقِيْمُوا الدِّيْنَ

په هغې سره | ابراهيم عليه السلام ته | او موسى عليه السلام | او عيسى عليه السلام ته | چه قائم كړئ | دا دين |

ابراهيم عليه السلام ته او موسى عليه السلام او عيسى عليه السلام ته كړې وو [هغه دادې] چې تاسو په دين باندې قائم اوسيږئ

وَلَا تَتَفَرَّقُوْا فِيْهِ ؕ كَبُرَ عَلَى الْمُشْرِكِيْنَ مَا

او ډلې ډلې كيږئ مه | په هغې كښې | ډېر ګران دې | په مشركانو باندې | هغه څيز |

او اختلاف په كښې مه كوئ | مشركانو ته دا خبره ډيره ګرانه ښكارى اكومې ته چې تاسو

تَدْعُوْهُمْ اِلَيْهِ ؕ اَللّٰهُ يَجْتَبِيْٓ اِلَيْهِ مَنْ يَّشَآءُ

چه تاسو رابلې هغوئ | هغې ته | الله راكاږى [غوره كوى] | خان خپل ته | هغه څوك | چې غواړى هغه

هغوئ رابلې | الله جل جلاله د خپل خان دپاره دهغه چا انتخاب كوى چې خوښ ئې شى |

وَيَهْدِيْٓ اِلَيْهِ مَنْ يُّنِيْبُ ۝ وَمَا تَفَرَّقُوْٓا

او لار ښائى | طرف دخان خپل ته | هغه چاته | چې رجوع كوى [الله ته] | او نه دى مختلف شوى خلق

او خپل طرفته هغه چا ته هدايت كوى څوك چې [الله تعالى ته] رجوع كوى |

اِلَّا مِنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَهُمُ الْعِلْمُ بَغْيًاۢ بَيْنَهُمْ ؕ

مګر | روستو دهغې نه | چه راغلو هغوئ ته | علم | دوجې دزياتى كولو نه | په منځ خپل كښى

خلقو د علم راتلو نه وروستو په خپل مينځ كښې صرف د بغض په وجه اختلاف كړې دې |

وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِنْ رَّبِّكَ اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى

او كه چرې نه وې خبره | هغه چې مخكښې شوى ده | د طرفه د رب ستا نه | د نيټې مقررې پورې

او كه ستا د رب د طرفه [د مهلت] يوه خبره تر مقررې نيټې پورې فيصله شوې نه وې |

لَّقُضِيَ بَيْنَهُمْ ؕ وَاِنَّ الَّذِيْنَ اُوْرِثُوا

نو خامخا فيصله به شوى وه | په منځ د دوئ كښې | او بيشكه هغه كسان | چه په ميراث كښې وركړې شو ورته

نو د دوئ په مينځ كښې به فيصله شوې وه | او چاته چې د دغې امتونو نه

الْكِتٰبَ مِنْۢ بَعْدِهِمْ لَفِيْ شَكٍّ مِّنْهُ مُرِيْبٍ ﴿۱۴﴾

کتاب | روستو دهغوئ نه | خامخا په شك کښې دی | ددغه کتاب نه | په شك پریشانه کښې

پس کتاب ورکړې شوې دې | نو هغوئ ددغې کتاب په حق کښې په شك کښې پریشانه دی

فَلِذٰلِكَ فَادْعُ ۚ وَاسْتَقِمْ كَمَآ اُمِرْتَ ۚ

پس هم دغه دین ته | رااوبله خلق | او محکم اودریږه | لکه څنګه چې | حکم شوې دې تاته

نو ته دوئ هم دې [حق دین] طرفته رابله | اولکه څنګه چې درته حکم شوې دې دهغه [په سمه لار] قائم

وَلَا تَتَّبِعْ اَهْوَآءَهُمْ ۚ وَقُلْ اٰمَنْتُ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ

اومه کوه ته پیروی | دخواهشاتو دهغوئ | اواووایه | ایمان راوړې دې ما | په هغه | چې نازل کړې دې الله

اوسیږئ | اود دوئ د خواهشاتو تابعداری مکوه | اواووایه چې الله ﷻ څومره کتابونه نازل کړی دی

مِنْ كِتٰبٍ ۚ وَاُمِرْتُ لِاَعْدِلَ بَيْنَكُمْ ۗ اَللّٰهُ رَبُّنَا

دکتاب نه | او حکم شوې دې ماته | چې زهٔ انصاف اوکړم | په منځ ستاسو کښې | الله رب زمونږ دې

ما په هغې ایمان راوړې دې | اوماته حکم شوې دې چې ستاسو ترمینځه [همیشه] انصاف کوم | الله ﷻ

وَرَبُّكُمْ ۗ لَنَآ اَعْمَالُنَا وَلَكُمْ اَعْمَالُكُمْ ۗ لَا حُجَّةَ

او رب ستاسو دې | مونږ لره عملونه زمونږ دی | او تاسو لره | عملونه ستاسو دی | نشته هیڅ جګړه

زمونږ اوستاسو دټولو رب دې | اوزمونږ دپاره زمونږ عملونه او ستاسو دپاره ستاسو عملونه دی

بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ ۗ اَللّٰهُ يَجْمَعُ بَيْنَنَا ۚ وَاِلَيْهِ الْمَصِيْرُ ﴿۱۵﴾

په منځ زمونږ | اوپه منځ ستاسو کښې | الله به راجمع کوی | مونږ ټولو لره | اوخاص هغه ته واپس ورتلل دی

زمونږ اوستاسو په مینځ کښې هیڅ جګړه نشته | الله ﷻ به مونږ ټول جمع کړی | اوهم دهغه طرفته واپس تلل دی

## آسان ترجمه قرآن

هغه ستاسو دپاره د دین هغه طریقه مقرر کړې ده. د کومې حکم چه هغه نوح علیه السلام ته ورکړې وو. او کومه چه (اے پیغمبره علیه السلام) مونږ تاته د وحې په ذریعې سره درلیږلې ده او د کومې حکم چه مونږ ابراهیم، موسٰی او عیسٰی ته ورکړې وو، چه تاسو دین قائم کړئ. او په هغې کښې ولې مه جوړوئ (بیاهم) مشرکانو ته هغه خبره ګرانه پریوځی. کومې طرف ته چه ته هغوی ته دعوت ورکوې. الله تعالٰی غوره کوی ځان طرف ته. هغه چالره چه اوغواړی. او څوک چه الله تعالٰی طرف ته رجوع کوی. هغه ته ځان طرف ته هدایت ورکوی. اوخلقو په خپل مینځ کښې د عداوتونو د وجې نه (په دین کښې) چه کومې ولې جوړې کړې دی. هغه ئې ددې نه پس جوړې کړې دی چه کله هغوی ته یقینی علم راغلو. او که ستا د رب د طرف نه یو معین کړې شوې نیټې پورې یوه خبره د مخکښې نه مقرر کړې شوې نه وه. نو خامخا ددوی په مینځ کښې به ئې فیصله کړې وې او ددې خلقو نه پس کومو کسانو لره چه د کتاب وارثان جوړ کړې شو. هغوی ددې بارهٔ کښې په داسې شک کښې مبتلا دی. چه ډیر قوی شک دې. لهٰذا (اے پیغمبره) ته هم هغې خبرې طرف ته خلقو ته دعوت ورکوه. او څرنګه چه تاته حکم درکړې شوې دې، (په دې

دین پاندې) ټینګ او سیږه او ددې خلقو خواهشاتو پسې مه زه. او اووایه چه ما خو په هغې کتاب پاندې ایمان راوړې دې، کوم چه الله تعالی نازل کړې دې او ماته دا حکم راکړې شوې دې. چه زه دې ستاسو په مینځ کښې انصاف او کړم. الله تعالی زمونږ هم رب دې، او ستاسو هم رب دې، زمونږ عملونه زمونږ دپاره دي، او ستاسو عملونه ستاسو دپاره دي. زمونږ او ستاسو په مینځ کښې (اوس) هیڅ بحث نشته. الله تعالی به مونږ ټولو لره راجمع کوی، او هم هغه طرف ته د ټولو ورګرځیدل دي.

## خلاصه تفسیر

﴿شَرَعَ لَكُمْ مِّنَ الدِّيْنِ﴾ [الله تعالی تاسو خلقو دپاره هغه دین مقرر کړو ﴿مَا وَصّٰى بِهٖ نُوْحًا﴾ دکوم چه هغه نوح ﷺ [ته حکم ورکړې وو ﴿وَّالَّذِيْٓ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ﴾ او کوم لره چه مونږ تاته دوحی په ذریعه رالیږلې دې ﴿وَمَا وَصَّيْنَا بِهٖٓ اِبْرٰهِيْمَ وَمُوْسٰى وَعِيْسٰٓى﴾ او دکوم چه مونږ ابراهیم او موسی ﷺ [ته] سره دهغو ټولو تابعدارو [حکم ورکړې وو] او دهغوی امتونوته مو دا وئیلی وو ﴿اَنْ اَقِيْمُوا الدِّيْنَ﴾ [چه دې دین لره قائم ساتئ] ﴿وَلَا تَتَفَرَّقُوْا فِيْهِ﴾ او په دې کښې اختلاف مه پیداکوئ] مراد ددې دین نه اصول ددین دی کوم چه مشترك دی په ټولو شریعتونو کښې لکه توحید رسالت او بیاژوندی کیدل وغیره او قائم ساتل داچه دغه بدلوئ مه او پریږدئ ئې مه او اختلاف داچه په څه خبره ایمان راوړې شی او په څه خبره ایمان رانه وړې شی یا څوك ایمان راوړی او څوك رانه وړی مطلب دا چه توحید وغیره پخوانی دین دې چه داول نه تردې وخته پورې ټول شریعتونه په دې کښې متفق دی او ددې په ضمن کښې دنبوت هم تائید وشو پس پکار وو چه ددې په قبلولو کښې خلقو ذره پس وپیش نه کولې مګر بیا هم ﴿كَبُرَ عَلَى الْمُشْرِكِيْنَ﴾ [په مشرکانو دغه خبره] یعنی توحید [ډیر ګران لګی ﴿مَا تَدْعُوْهُمْ اِلَيْهِ﴾ دکوم طرف ته چه ته دوی لره رابلې] او دې سره داهم چه ﴿اَللّٰهُ يَجْتَبِيْٓ اِلَيْهِ مَنْ يَّشَآءُ﴾ [الله تعالی خپل طرف ته چالره چه غواړی راکاږی] یعنی د حق دین د قبلولو توفیق ورکوی ﴿وَيَهْدِيْٓ اِلَيْهِ مَنْ يُّنِيْبُ﴾ [او کوم بنده چه] دالله تعالی طرف ته [رجوع کوی هغه لره خپل طرف ته رسائی ورکوی] دمشیت نه پس اجتباء وی او اجتباء یعنی د ایمان دتوفیق نه پس که انابت او اطاعت وی نو په دې قرب الهی او ثواب غیر متناهی مرتب کیږی لنډه داچه په مشرکانو کښې صفت دانکار [دې او په مؤمنانو کښې صفت د اجتباء] یعنی غوره کولو [او هدایت دې او] زمونږ چه کوم تیرو امتونو ته حکم وو [وان اقیموا الدین ولا تتفرقوا فیه] نو ډیر خلق په دې قائم پاتې نه شول او مختلف شول ددې سبب څه التباس او اشتباء نه وه چه د معذورئ احتمال وی بلکه ﴿وَمَا تَفَرَّقُوْٓا اِلَّا مِنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَهُمُ الْعِلْمُ بَغْيًاۢ بَيْنَهُمْ﴾ [دغه خلق پس ددې چه دوی ته] یعنی ددوی غوږونو او ذهنونو ته صحیح [علم رسیدلې وو محض په خپل مینځ کښې د ضد په وجه خپل مینځ کښې مختلف شول] داسې چه اول دمال دولت په طلب او دمرتبې او ریاست په طلب سره غرضونه مختلف شول بیا په کښې فرقې جوړې شوې په داسې وخت کښې دین په ډهال جوړولو سره د نورو تنقیص او تعییب کیږی او مذهب او مسلك مختلف کیږی بیا دفروعونه اصولو ته رسیږی [او دا خلق په دې عظیم جرم کښې چه سره د حق پیژندو مختلف شول او دداسې سخت عذاب مستحق شوی وو چه ﴿وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِنْ رَّبِّكَ اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى﴾ [که ستا دپرور دګار دطرف نه د یو معین وخته پورې] دمهلت ورکولو [یوه خبره د وړاند نه نه وې مقرر شوې] چه ددوی موعود عذاب به په اخرت کښې وی [نو] په دنیاکښې به

﴿لَّقُضِيَ بَيْنَهُمْ﴾ [ددوی] د اختلافاتو [فیصله شوې وه] یعنې په عذاب سره به ختم شوی وو اوګویا په تیر امتونو عذاب راغلې لیکن بغیر دمؤمنانو راغې په مؤمنانو کښې چه چااختلاف کړې وو په برکت د التزام د ایمان په هغوی رانغې که په خنو ثابت شی نو په ټولو نه دې راغلې په دې تقدیر به دامعنی وی چه په کومو څنو رانغې د هغې وجه عدم مقتضی والې نه دې بلکه ددې مانع وجه یعنې مهلت تراجل مسمی موجودیدل دی داخو قصه د تیرو امتونو شوه ﴿وَإِنَّ الَّذِينَ أُورِثُوا الْكِتَابَ مِنْ بَعْدِهِمْ﴾ [او کومو خلقو ته چه دهغو] تیرو امتونو [نه پس کتاب ورکړې شوې دې] مراد ددې نه مشرکین د عهد نبوی ﷺ دی چه ستا په ذریعه دوی ته قرآن ورسیدو ﴿لَفِي شَكٍّ مِنْهُ مُرِيبٍ﴾ [هغه] خلق [دهغې] کتاب [نه داسې په] کلك [شك کښې پراته دی کوم چه] هغوی لره [په تردد کښې اچولې دی] مطلب دادې چه په تیرو امتونو کښې څنو چه څنګه انکار کړې وو هغه شان اوس ددوی وار راغې ﴿فَلِذَٰلِكَ فَادْعُ﴾ [[پس ته] د چاپه انکار زړه ماتې کیږه مه بلکه کوم طرف ته چه ته دوی د وړاند نه رابلې چه ذکرئ په دې ایت کښې دې [کبرعلی المشرکین ماتدعوهم الیه] یعنې توحید [هغې طرف ته] دوی لره برابر] رابله ﴿وَاسْتَقِمْ كَمَا أُمِرْتَ﴾ او څنګه چه تاته حکم شوې دې] چه [فلذالك فادع] په دې [مستقیم اوسیږه ﴿وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَاءَهُمْ﴾ او ددوی په] فاسدو [خواهشونو پسې مه ځه] یعنې هغوی مخالفت کوی او دا غواړی چه مونږ ته خبرې کول پریږدی خوته مه پریږده ﴿وَقُلْ﴾ [اوته وایه چه] زۀ کوم طرف ته تاسو رابلل غواړم زۀ په خپله هم په هغې عمل کوونکې یم چنانچه ﴿آمَنْتُ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ مِنْ كِتَابٍ﴾ [الله تعالی څومره کتابونه نازل کړی دی] قرآن په کښې هم داخل دې [زۀ په ټولو ایمان راوړم] دکومو دمتفق علیها مضامینونه چه توحید هم دې ﴿وَأُمِرْتُ لِأَعْدِلَ بَيْنَكُمُ﴾ [او ماته دا] هم [حکم شوې دې چه] په خپل او [ستاسو په مینځ کښې عدل] او انصاف [وکړم] یعنې کوم شې چه په تاسو واجب او لازم وایم په خپل ځان هم هغه لازم ولرم داسې نه چه تاسو په تکلیف او مشقت کښې واچوم او په خپله ازاد شم په داسې مضامینو سره سلیم الطبع ته رغبت د اتباع کول راځی او که په دې هم نرم نه شی نو اخری خبره داده چه﴿اللَّهُ رَبُّنَا وَرَبُّكُمْ﴾ [الله تعالی زما هم مالك دې او ستاسو هم مالك دې] یعنې هغه دټولوحاکم دې او﴿لَنَا أَعْمَالُنَا وَلَكُمْ أَعْمَالُكُمْ﴾ [زمونږ عمل زمونږ دپاره دې او ستاسو عمل تاسودپاره ﴿لَا حُجَّةَ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمُ﴾ زمونږ او ستاسو په مینځ کښې هیڅ بحث نشته ﴿اللَّهُ يَجْمَعُ بَيْنَنَا﴾ الله تعالی] چه دټولو مالك دې په قیامت کښې [به مونږ ټولو لره جمع کړی] په دې کښې هیڅ شك نشته چه ﴿وَإِلَيْهِ الْمَصِيرُ﴾ [هغه طرف ته تلل دی] هغه به دټولو فیصله دعملونو موافق وکړی دا وخت تاسو سره بحث فضول دې هاه تبلیغ به کولې شی.

## معارف او مسائل

﴿شَرَعَ لَكُمْ مِنَ الدِّينِ مَا وَصَّىٰ﴾ مخکښې آیتونو کښې د الله ﷻ د ظاهری او جسمانی نعمتونو ذکر وو، اوس ددې ځائې څخه د باطنی او روحانی نعمتونوبیان دې. هغه دا چې الله ﷻ تاسوته داسې یو مضبوط او مستحکم دین در نصیب کړې دې چې دا ستاسو په انبیاء ﷺ کښې مشترك او متفق دې. دې آیتونو کښې د پنځو انبیاء ﷺ ذکر دې. ټولو څخه اول د نوح ﷺ او په آخر کښې د نبی کریم ﷺ او په مینځ کښې د ابراهیم ﷺ ځکه هغه ابو الانبیاء دې، اګر چې دعربو خلق په شرك او کفر باندې وو خو د ابراهیم ﷺ د نبوت قائل وو. او دې

څخه روستو ئې د موسى ﷺ ذکر په دې وجه او فرمائيلو چې د قرآن عظيم الشان د نزول په وخت کښې د دوؤ پيغمبرانو منلو والا موجود وو يعنى يهود او نصارى. سورة احزاب کښې هم د ميثاق انبياء ﷺ په ذکر کښې ددې پنځو پيغمبرانو ﷺ ذکر راغلې دې. ﴿وَإِذْ أَخَذْنَا مِنَ النَّبِيِّينَ مِيثَاقَهُمْ وَمِنكَ وَمِن نُّوحٍ وَإِبْرَاهِيمَ وَمُوسَىٰ وَعِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ﴾ فرق صرف دومره دې چې په سورة احزاب کښې د نبى کريم ﷺ ذکر اول او د نوح ﷺ ذکر روستو راغلې دې. او په سورة شورى کښې د نبى کريم ﷺ روستو او د نوح ﷺ مخکښې راغلې دې. شايد په دې کښې اشاره دې طرفته ده چې نبى کريم ﷺ اګر چې د زمانې او پيدائش په اعتبار سره تولو څخه آخر دې خو د نبوت په ازلى تقسيم کښې د تولو څخه مقدم دې لکه يو حديث پاک کښې راغلى دى چې د تخليق په اعتبار سره څه په تولو نبيانو ﷺ کښې تولو څخه اول يم او د پيدائش په لحاظ سره آخر کښې يم. [ابن ماجه دارمى عن بهز بن حکيم ﷺ وقال هذا حديث حسن کذا فى المشکوة ص ۵۱۳](١)

پاتې شو دا سوال چې د تولو څخه اول پيغمبر خو آدم ﷺ دې، د انبياء کرامو ﷺ ذکر ددوئ ﷺ څخه ولې شروع نه کړې شو. ددې وجه داده چې آدم ﷺ د تولو څخه اول پيغمبر دې چې دنيا ته ئې تشريف راوړې دې. اګر چې په اصولو د عقائدو او مهماتو ددين کښې هغوئ ﷺ هم مشترک وو خو دهغوئ ﷺ په زمانه کښې شرک او کفر په انسانانو کښې نه وو. د کفر او شرک دا سلسله د نوح ﷺ د زمانې څخه شروع شوې ده. په دې لحاظ نوح ﷺ اول پيغمبر دې چې هغوئ دداسې معاملاتو سره مخ شو. کوم چې واقعات روستو پيغمبرانو ﷺ ته راپيښ کيدونکيو. په دې وجه سلسله د نوح ﷺ څخه شروع کړې شوه والله اعلم.

﴿أَنْ أَقِيمُوا الدِّينَ وَلَا تَتَفَرَّقُوا فِيهِ﴾ دا جمله د اولې جملې تشريح ده چې هغه دين چې په هغې تول انبياء ﷺ مشترک او متحد دى هغه دين قائم اوساتئ. دې کښې اختلاف او تفرق پيدا کول جائز نه دى بلکه د هلاکت سبب دى.

**د دين اقامت فرض دې او په دې کښې تفرقې اچول حرام دى:** دې آيت مبارک کښې دوه احکام مذکور دى يو د اقامت دين او بل ددې منفى اړخ يعنى دې کښې د تفرق ممانعت. او د جمهورو مفسرينو په نزد ﴿أَنْ أَقِيمُوا الدِّينَ﴾ کښې د ﴿أَنْ﴾ حرف د تفسير دپاره دې، نو ددين معنى متعين شوه دې ددې څخه مراد هغه دين دې چې تولو انبياء ﷺ کښې مشترک راروان دې. اودا هم ظاهر دى چې هغه مشترکه دين د نبيانو ﷺ په مينځ کښې په اصولو او عقائدو باندې مشتمل دې يعنى توحيد، رسالت، آخرت باندې ايمان لرل او اصول عبادت، مونځ، روژه، حج، او د زکوة پابندى ده. لارې شوکول، زنا، په روغ، دهوکه او نورو لره بغير د شرعى وجې څخه تکليف ورکول وغيره او وعده خلافى حرامه ده. او دا په تولو اديانو کښې مشترک او متفق عليه راروان دى. او دا هم د نص قرآن پاک څخه ثابت دى چې دفروع احکام کښې د انبياء ﷺ په شريعتونو کښې جزوى اختلاف هم شته دې لکه چې فرمائي چې: ﴿لِكُلٍّ جَعَلْنَا مِنكُمْ شِرْعَةً وَمِنْهَاجًا﴾(٢) ددې مجموعې څخه ثابت شو چې د آيت مبارک په دې جمله کښې چې د کوم دين د اقامت حکم او پدې کښې د تفرق څخه دممانعت ذکر شوې دې هغه هم هغه الهى احکام دى

(١) داسې مفهوم والا حديث اوګورئ: مصنف ابن ابى شيبة رقم الحديث: ٣١٧٦٢

(٢) ترجمه: مونږ تاسو هر يو دپاره خاص شريعت او خاص طريقت منتخب کړى ده.

چې د ټولو انبیاء ﷺ په شریعتونو کښې مشترك او متفق علیه راروان دی. په هغې کښې تفرق او اختلاف حرام او هلاکت د امتونو سبب دې.

**حدیث**: عبدالله بن مسعود رضی الله عنه فرمائی چې یوه ورځ نبی کریم ﷺ زمونږ مخکښې یوه نیغه کرښه راښکله، بیا ئې ددې کرښې ښی او ګس طرفته ورې ورې کرښې راښکلې او وې فرمائیل چې دا ښی او ګس طرفته هغه کرښې دی چې دا دشیطانانو ایجاد کړې شوی دی. او ددې په هره لاره باندې یو شیطان مقرر دې او هغه خلقو ته دې طرفته د راتلو تلقین کوی او بیائې نیغې کرښې طرفته اشاره اوکړه او وې فرمائیل چې ﴿وَأَنَّ هَٰذَا صِرَاطِي مُسْتَقِيمًا فَاتَّبِعُوهُ﴾ یعنی دا زما نیغه لاره ده تاسو ددې اتباع اوکړئ. [رواه احمد والنسائی والدارمی مظهری][1].

په دې تمثیل کښې د صراط مستقیم څخه مراد ددین هغه لاره ده چې په ټولو انبیاء ﷺ کښې مشترکه راروانه ده. په دې کښې نورې نورې لارې راایستل دا تفرق، حرام او شیطانی عمل دې. او په دې اجماعی او متفق علیه احکامو کښې د تفرقې اچولو ډیر زیات ممانعت په صحیح احادیثو کښې راغلې دې. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل: ﴿من فارق الجماعة شبرا فقد خلع ربقة الاسلام من عنقه﴾ [رواه احمد و ابوداؤد][2] یعنی کوم کس چې د جماعت المسلمین څخه یو لیشت هم جدائی اختیار کړه نو هغه داسلام د عقیدې حلقه د خلې مرئی څخه اوویستله. او ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل: ﴿یدالله علی الجماعة﴾ [رواه الترمذی بسند حسن][3] یعنی د الله ﷻ لاس په جماعت باندې وی. او معاذ بن جبل رضی الله عنه څخه روایت دې چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې شیطان د انسانانو دپاره یو شرمخ دې لکه څنګه چې چیلو پسې شرمخ لګیدلې وی. نو دې هغه چیلئ رانیسی چې کومه د خپلې رمې څخه جدا اوروستو یا اخوا دیخوا شی. په دې وجه تاسو ته پکار دی چې جماعت څخه مه جدا کیږئ. [رواه احمد[4]] دا ټول احادیث په تفسیر مظهری کښې ذکر شوی دی]

د کلام خلاصه داشوه چې په دې آیت مبارك کښې چې کوم حکم دې هغه د هغه مشترك او متفق علیه دین د قائمولو دې په کوم باندې چې ټول انبیاء ﷺ متفق او مشترك راروان دی. او پدې کښې ئې اختلاف ته د تفرقې نوم ورکړې او داپې ممنوع اوګرځوله. او په دې مذکوره احادیثو کښې چې په قطعی احکامو کښې کوم اختلاف او تفرقه ذکر شوې ده هغه دایمان دپاره د خطرې سبب فرمائیلې شوې دې.

**د آمامانو فروعی اختلافات په تفرقه کښې داخل نه دی**: ددې څخه واضح شو چې په فروعی مسائلو کښې چې چرته په قرآن وحدیث کښې څه واضح حکم موجود نه وی یا په نصوص قرآن وسنت

---

[1] مسند أحمد، مسند عبدالله بن مسعود رضی الله عنه، رقم الحدیث: ۴۱۴۲، والسنن الکبریٰ للنسائی، رقم الحدیث: ۱۱۱۷۴، والدارمی رقم الحدیث: ۲۰۸، کتاب المقدمة، باب فی کراهیة اخذ الرأی. وتفسیر المظهری: ج ۸، ص ۳۱۲

[2] سنن ابی داود، کتاب السنة، باب فی قتل الخوارج: ج ۲، ص ۳۰۷، ومسند أحمد، حدیث أبی ذرالغفاری رضی الله عنه، رقم الحدیث: ۲۱۵۶۱

[3] جامع الترمذی، أبواب الفتن، باب ما جاء فی لزوم الجماعة: ج ۲، ص ۳۹

[4] مسند أحمد، حدیث معاذ بن جبل رضی الله عنه، رقم الحدیث: ۲۲۱۰۷، والمظهری: ج ۸، ص ۳۱۳

کښې څه ظاهري تعارض وي نو په هغه ځائې کښې د مجتهدينو دخپل اجتهاد په ذريعه يو حکم متعين کول ، په دې کښې خپلو کښې اختلاف کيدل ، د اختلاف رائې و نظر په بنا لازمي دي ، ددې تفرق ممنوع سره ددې هيڅ تعلق نشته دې . داسې اختلاف په صحابه کرامو ﷡ کښې پخپله د نبی کريم ﷺ د دور څخه راروان دې . اود فقهاء کرامو ﷭ په نزد دا رحمت دې .
اود اقامت دين څخه مراد په دين باندې قائم ودائم پاتې کيدل ، په دې کښې هيڅ شك نه کول او داپه هيڅ حال نه پريښودل دي ،[قرطبی] [1]

﴿كَبُرَ عَلَى الْمُشْرِكِينَ مَا تَدْعُوهُمْ إِلَيْهِ﴾ يعنی حق دين چې توحيد په هغې کښې يو اعظم رکن دې . د دنيا د شروع څخه د ټولو انبياء ﷨ په اتفاق سره د حق ثابتيدلو باوجود چې کوم خلق د شرك عادي شوي دي ، هغوئ دپاره ستا د توحيد دعوت ډير زيات ګران دې . اوددې وجه داده چې دوئ نفس پرست دي او خپل غرضونه ئې دي او شيطاني تعليماتو پسې روان دي ، او نيغه لاره ئې پريښودې ده . او ددې ممانعت پورته بيان شوې دې . مخکښې فرمائي چې :
﴿اللَّهُ يَجْتَبِي إِلَيْهِ مَن يَشَاءُ وَيَهْدِي إِلَيْهِ مَن يُنِيبُ﴾ يعنی د صراط مستقيم د هدايت دوه طريقې دي . يو دا چې الله ﷻ پخپله يو کس دخپل دين او صراط مستقيم دپاره منتخب کړي او دهغه فطرت او طبيعت ددې مطابق جوړ کړي لکه انبياء کرام ﷨ او خاص اولياء الله ﷭ ، چې دهغوئ باره کښې قرآن عظيم الشان فرمائي چې : ﴿إِنَّا أَخْلَصْنَاهُم بِخَالِصَةٍ ذِكْرَى الدَّارِ﴾ يعنی مونږ دوئ لره ديو خاص کار دپاره خاص کړي دي او هغه د آخرت فکر دې . او د خاص خاص انبياء کرام ﷨ باره کښې قرآن عظيم الشان ﴿مُخْلَصْ﴾ بفتح لام کيدو تصريح فرمائيلې ده . چې دهغې معنی منتخب او مخصوص ده . او د ﴿اللَّهُ يَجْتَبِي إِلَيْهِ مَن يَشَاءُ﴾ همدا مفهوم دې . د هدايت دا طريقه مخصوص او محدود ده . اود هدايت دموندلو بله عامه طريقه داده چې کوم کس الله ﷻ طرفته رجوع اوکړي اود هغه لوئې ذات ﷻ په دين باندې د تګ اراده اوکړي نو هغه ته الله ﷻ دحق دين هدايت فرمائي . د دويمې جملې ﴿وَيَهْدِي إِلَيْهِ مَن يُنِيبُ﴾ هم دامطلب دې .
خلاصه دا شوه چې د هدايت موندلو صرف دوه طريقې دي . يو خصوصي ده چې الله ﷻ پخپله يو بنده د صراط مستقيم دپاره منتخب کړي . دويمه عمومي چې کوم بنده الله ﷻ طرفته رجوع اوکړي او دالله ﷻ دين لره لټوي نو الله ﷻ هغه بنده دهغه مقصود يعنی هدايت ته رسوي . اود مکې مشرکانو ته چې دتوحيد منل ډير ګران دي ، ددې وجه داده چې په دين باندې پوهې او په دې باندې د تګ اراده نه لري .
﴿وَمَا تَفَرَّقُوا إِلَّا مِن بَعْدِ مَا جَاءَهُمُ الْعِلْمُ﴾ ، د ﴿مَا تَفَرَّقُوا﴾ ضمير ابن عباس ﷠ دمکې قريشو طرفته راجع فرمائيلې دې ، او مطلب ئې دا بيان کړې دې چې د قريشو کافرانو دحق دين او صراط مستقيم څخه بيزاري اختيار کړه دا پخپله ډيره بې وقوفي ده . او بله دا چې دالله ﷻ د طرفه علم راغلو او بيا هم دوئ داسې اوکړل . د علم راتلو څخه مراد د ابن عباس ﷠ په نزد د نبی کريم ﷺ راتګ دې ، او د نبی کريم ﷺ ذات مبارك دټولو الهی علومو سرچشمه وو . او ځينې حضرات د ﴿مَا تَفَرَّقُوا﴾ ضمير مخکښنو امتونو طرفته ګرځوي ، اوددې معنی ئې داشان اوکړه چې

[1] تفسير القرطبي: ج ١٦، ص ١١

دمخکښنو امتونو خلقو دخپلو خپلونبیانو ﷺ په دین کښې تفرقه پیدا کړه او ددې څخه ئې جدائی اختیار کړه. ددې باوجود چې هغوئ ته د انبیاء کرام ﷩ په ذریعه د صراط مستقیم علم راغلې وو. که مخکښینې امتونو ته خطاب وی اوکه د محمد ﷺ دامت کفارو، د دواړو تقاضا داده چې پخپله په ګمراهئ کښې پراته وو او دا ئې غوښتل چې خپل رسولان هم په دې لار باندې راولی. په دې وجې ددې څخه روستو نبی کریم ﷺ ته خطاب کیږی او فرمائی چې.

﴿فَلِذٰلِكَ فَادْعُ ۚ وَاسْتَقِمْ كَمَآ اُمِرْتَ ۚ وَلَا تَتَّبِعْ اَهْوَآءَهُمْ ۚ وَقُلْ اٰمَنْتُ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ مِنْ كِتٰبٍ ۚ وَاُمِرْتُ لِاَعْدِلَ بَيْنَكُمْ ۗ اَللّٰهُ رَبُّنَا وَرَبُّكُمْ ۗ لَنَآ اَعْمَالُنَا وَلَكُمْ اَعْمَالُكُمْ ۗ لَا حُجَّةَ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ ۗ اَللّٰهُ يَجْمَعُ بَيْنَنَا ۚ وَاِلَيْهِ الْمَصِيْرُ ۝﴾

حافظ ابن کثیر ﷫ فرمائی چې دا آیت مبارک په لسمو مستقلو جملو باندې مشتمل دې. او هره جمله په خاص احکامو باندې مشتمله ده. یعنی په دې یو آیت مبارک کښې داحکامو لس فصلونه ذکر شوی دی. ددې مثال په پوره قرآن عظیم الشان کښې د آیت الکرسی څخه علاوه بل خائې کښې نشته دې. آیت الکرسی کښې هم د لسو احکامو لس فصلونه راغلی دی[1].

**اول حکم**: ﴿فَلِذٰلِكَ فَادْعُ ۚ﴾ مشرکانو ته ستا د توحید دعوت منل ډیر ګران دی. مګر ددې په وجه تاسو خپل دعوت مه پریږدئی. او دا کار مسلسل جاری اوساتئ.

**دویم حکم**: ﴿وَاسْتَقِمْ كَمَآ اُمِرْتَ ۚ﴾ یعنی تاسو پخپله هم په دې دین باندې قائم اوسئ او ددې دعوت خلقو ته هم ورکوئی. او دا استقامت به داسې وی لکه څنګه چې تاته حکم کړې شوې دې. یعنی په ټولو احکامو، عقائدو، اعمالو، اخلاقو، عادتونو او په معاشره کښې په صحیح اعتدال باندې قائم اوسئ. او هیڅ کمې زیاتې به د هیڅ طرفنه نه وی. اودا ظاهره ده چې داسې استقامت څه آسان کار نه دې. کله چې د نبی کریم ﷺ په [سر مبارك او ږیره مبارکه] کښې سپین ویښته راغلل نو صحابه کرامو ﷢ تپوس اوکړو، نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې ﴿شیبتنی هود﴾ یعنی زه سورة هود بوډا کړم[2]. سورة هود کښې هم په دې الفاظو حکم راغلې دې. [معارف القرآن جلد: ۴، ص: ۶۷۰، د سورة هود د تفسیر په ضمن کښې د استقامت مفهوم او د هغه سختوالی او اهمیت باندې مستقل کلام شوې دې هلته اوګورئی]

**دریم حکم**: ﴿وَلَا تَتَّبِعْ اَهْوَآءَهُمْ ۚ﴾ یعنی تاسو د خپل تبلیغ په سلسله کښې د هیڅ یو مخالف د مخالفت پرواه مه کوئی.

**څلورم حکم**: ﴿وَقُلْ اٰمَنْتُ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ مِنْ كِتٰبٍ ۚ﴾ یعنی تاسو دا اعلان اوفرمائې چې الله ﷻ خومره کتابونه نازل کړې دی په هغه ټولو باندې زما ایمان دې.

**پنځم حکم**: ﴿وَاُمِرْتُ لِاَعْدِلَ بَيْنَكُمْ ۗ﴾ ددې مفهوم خو په ظاهره دادی چې ما ته د جنګ جګړو کوم معاملات راشی نو ماته حکم راکړې شوې دې چې څه په هغې کښې عدل و انصاف څخه کار واخلم. خینې حضراتو د عدل معنی دې خائې کښې دبرابر اخستې ده او د آیتونو مفهوم ئې بیان کړې دې چې ستاسو په مینځ کښې د دین ټول احکام برابر اولرم چې هر نبی او هر کتاب باندې ایمان راوړئی او د الله ﷻ دټولو احکامو اطاعت اوکړم. داسې نه چې په ځینو باندې مو

[1] تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآية: ج ۷، ص ۱۹۵
[2] المستدرک للحاکم، رقم الحديث: ۳۳۱۴، ومصنف ابن ابی شیبة، رقم الحديث: ۳۰۲۶۸

ایمان وی او په ځینو مو نه وی. او یا د ځینو احکامو تعمیل وی او د ځینو نه وی.

**شپږم حکم:** ﴿اَللّٰهُ رَبُّنَا وَرَبُّكُمْ﴾ یعنی الله ﷻ زمونږ د ټولو پاللو والا دې.

**اووم حکم:** ﴿لَنَآ اَعْمَالُنَا وَلَكُمْ اَعْمَالُكُمْ﴾ یعنی زمونږ اعمال به زمونږ په کار راځی. دې سره به هغوئ ته هیڅ نفع یا نقصان نه رسیږي. ځینې مفسرینو حضراتو لیکلی دی چې دا آیت په مکه مکرمه کښې په هغه وخت کښې نازل شوې وو چې کله کفارو سره د جهاد کولو حکم نازل شوې وو. د جهاد حکم دا حکم منسوخ کړو. ځکه چې د جهاد حاصل دادې چې کوم خلق نصیحت قبول نه کړی نو هغو قتال اوکړئی اوهغوئ مغلوب کړئی. دا نه چې هغوئ دې خپل کار کوی.
او ځینې حضراتو فرمائیلی دی چې داحکم منسوخ شوې نه دې. او ددې آیت مبارك مطلب دادې چې هرکله مونږ حق لره دلیلونو سره ثابت کړو نو ددې نه منل صرف د عناد او د ضد په وجه کیدې شی، او هرکله چې عناد راغلو نو د دلائلو خبرې فضول شوې. ستاسو عمل ستاسو مخکښې اوزما عمل زما مخکښې راځی. [قرطبی][1].

**اتم حکم:** ﴿لَا حُجَّةَ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ﴾ دحجت ځخه مراد بحث مباحثه ده. مراد دادې چې هر کله حق ثابت شی او بیا ددې ځخه تاسو عناد کوئی نو اوس خبرې فضول دی، اوس زمونږ او ستاسو په مینځ کښې هیڅ بحث نشته دې.

**نهم حکم:** ﴿اَللّٰهُ يَجْمَعُ بَيْنَنَا﴾ یعنی د قیامت په ورځ به مونږ ټول الله ﷻ ته جمع کیږو. او د هر عمل بدله به راکوی.

**لسم حکم:** ﴿وَاِلَيْهِ الْمَصِيْرُ﴾ یعنی مونږ ټول هغه طرفته واپس تلونکی یو.

| وَالَّذِيْنَ | يُحَآجُّوْنَ | فِي اللّٰهِ | مِنْۢ بَعْدِ | مَا اسْتُجِيْبَ | |
|---|---|---|---|---|---|
| او هغه خلق | چې جګړې کوی | په دین دالله کښې | روستو دهغې نه | چې قبولوالې شوې دې | |
| او هغه خلق چې د الله ﷻ په باره کښې جګړه کوی | ددې نه پس چې هغه منلې شوې دې | | | | |
| لَهٗ | حُجَّتُهُمْ | دَاحِضَةٌ | عِنْدَ رَبِّهِمْ | وَعَلَيْهِمْ | غَضَبٌ |
| هغه لره | دلیل دهغوئ | باطل دې | په نز درب دهغوئ | او په هغوئ باندې | غضب دې |
| دهغوئ دلیل درب په نیز باطل دې | ..........او په هغوی باندې غضب دې | | | | |
| وَّلَهُمْ | عَذَابٌ شَدِيْدٌ ﴿۱۶﴾ | اَللّٰهُ الَّذِيْٓ | اَنْزَلَ الْكِتٰبَ | بِالْحَقِّ | |
| او هغوئ لره دې | عذاب سخت | الله هغه ذات دې | چې نازل ئې کړو کتاب | دحق سره | |
| اودهغوی دپاره سخت عذاب مقرر دې | الله ﷻ هغه ذات دې چې کتاب او[دانصاف] تله ئې په حقه نازل | | | | |
| وَالْمِيْزَانَ | وَمَا يُدْرِيْكَ | لَعَلَّ السَّاعَةَ | قَرِيْبٌ ﴿۱۷﴾ | يَسْتَعْجِلُ | |
| او میزان [تله] هم | او څه پته ده تاته | کیدې شی چې قیامت | نزدې وی | تلوار کوی | |
| کړې ده | اوتاته څۀ معلومه ده | کیدې شی قیامت نزدې وی | ..........کوم خلق چې په دې | | |

[1] تفسیر القرطبی: ج ١٦، ص ١٣، ١٤

بِهَا الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِهَا ۚ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

په راتلو دهغې | هغه کسان | چې هغوئ ایمان نه لری | په هغې | او هغه کسان | چې ایمان یې راوړې دې

ایمان نه راوړی | هغې ته تلوار کوی | ............... او څوک چې ایمان دار دی | نو هغوئ ترې نه

مُشْفِقُوْنَ مِنْهَا ۙ وَيَعْلَمُوْنَ اَنَّهَا الْحَقُّ ۗ اَلَآ اِنَّ الَّذِيْنَ

یریدونکی دی | دهغې نه | او پوهیږی | چې بیشکه هغه حق دې | ښه واورئ | بیشکه هغه کسان

ویره کوی | او دا عقیده ساتی چې قیامت حق دې | ............... یاد ساته ! چې څوک د قیامت

يُمَارُوْنَ فِي السَّاعَةِ لَفِيْ ضَلٰلٍۭ بَعِيْدٍ ﴿۱۸﴾

چې دشك بحثونه کوی | په راتلو دقیامت کښې | خامخا هغوئ په گمراهۍ لرې کښې دی

په حق کښې جګړې کوی | هغوئ په ډیره غټه گمراهئ کښې پراته دی

## آسان ترجمه قرآن

او کوم خلق چه د الله تعالیٰ په باره کښې بحثونه کوی، هرکله چه خلقو د هغه خبره منلې ده، د هغوی بحث د هغوی د پروردګار په نزد باطل دې، او په هغوی باندې د الله تعالیٰ غضب دې، او دهغوی دپاره سخت عذاب دې الله تعالیٰ هغه ذات دې، چه هغه په حق باندې مشتمل کتاب، او د انصاف والا تله نازله کړه، او تاته څه پته ده، کیدې شي چه د قیامت وخت رانزدې وی. کوم خلق چه په دې باندې ایمان نه لری، هغوی ددې په راتلو کښې تلوار کوی، او کوم خلق چه په دې ایمان لری هغوی ددې نه ویریږی. او پوهیږی، چه دا ورځ حقه ده، او کوم خلق چه د قیامت باره کښې بحثونه کوی، هغوی په ګمراهۍ کښې ډیر لرې تللې دی.

## خلاصه تفسیر

﴿وَالَّذِيْنَ يُحَاۗجُّوْنَ فِي اللّٰهِ﴾ [او کوم خلق چه دالله تعالیٰ] د دین [په باره کښې] د مسلمانانو سره [جګړې راوباسی ﴿مِنْۢ بَعْدِ مَا اسْتُجِيْبَ لَهٗ حُجَّتُهُمْ﴾ وروستو دهغې نه چه هغه ومنلې شو] یعنی ډیر پوهه عاقلان خلق مسلمانان شول دائ منلې دې او دحجت واضح کیدونه پس جګړه زیاته مذمومه ده [د هغو خلقو حجت ﴿دَاحِضَةٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ﴾ د هغوی د رب په نزد باطل دې ﴿وَعَلَيْهِمْ غَضَبٌ﴾ او په هغوی] د الله تعالیٰ دطرف نه [غضب] راتلونکې [دې ﴿وَلَهُمْ عَذَابٌ شَدِيْدٌ ﴿۱۶﴾﴾ او دهغوی دپاره] په قیامت کښې [سخت عذاب] کیدونکې [دې] او ددې نه دبچ کیدو طریقه داده چه الله تعالیٰ لره ومنئ او دهغه دین لره ومنئ یعنی دهغه کتاب کوم چه په حقوق الله او حقوق العباد ټولو باندحاوی دې دا واجب العمل ومنئ خکه چه ﴿اَللّٰهُ الَّذِيْٓ اَنْزَلَ الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ وَالْمِيْزَانَ ۭ﴾ [الله تعالیٰ دې چاچه] دې [کتاب] یعنی قرآن [لره او] په دې کښې چه کوم خاص حکم دې د [انصاف] هغې [لره ئ نازل وفرمائیلو] هرکله چه داکتاب دالله تعالیٰ دې نو الله تعالیٰ لره منل بغیر ددې کتاب دمنلو نه معتبر نه دی خنې غیر مسلم کوم چه د الله تعالیٰ دمنلو دعوٰی خوکوی مګر قرآن نه منی داد نجات دپاره کافی نه ده [او] داخلق کوم چه تاته د قیامت د متعین وخت تپوس کوی نو ﴿وَمَا يُدْرِيْكَ﴾ [تاته] د هغې [څه پته ده] لیکن چه تاته ئ پته نشته نو په دې سره د دغې ورځې نفی نه لازمیږی بلکه د هغې واقع کیدل یقینی دی او

دتعين د وخت دپاره اجمالا دومره پوهيدل كافي دي چه ﴿لَعَلَّ السَّاعَةَ قَرِيبٌ﴾ [عجيبه نه ده چه قيامت نزدې وي] مګر ﴿يَسْتَعْجِلُ بِهَا الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِهَا﴾ [كوم خلق چه ددې يقين نه كوي] هغوى د دغې ورځې نه د ويريدوپه ځاى په طور دمسخرو او انكار [د هغې تقاضا كوى] چه هغه ژر ولې نه راځي ﴿وَالَّذِينَ آمَنُوا مُشْفِقُونَ مِنْهَا﴾ [اوكوم خلق چه يقين لرى هغوى ددې نه] ريږې او[ويريږى ﴿وَيَعْلَمُونَ أَنَّهَا الْحَقُّ﴾ او عقيده لرى چه هغه برحق ده ﴿أَلَا إِنَّ الَّذِينَ يُمَارُونَ فِي السَّاعَةِ﴾ يادساتئ چه] په دغو دوارو قسموخلقو كښې د اول قسم خلق يعنى [كوم خلق چه دقيامت] نه منكر دى او ددې په باره [كښې جګړې كوى ﴿لَفِي ضَلَالٍ بَعِيدٍ﴾ په ډيره لرې] اوږده [ګمراهئ كښې] اخته [دى].

## معارف او مسائل

﴿وَالَّذِينَ يُحَاجُّونَ فِي اللَّهِ﴾ مخكښې آيتونو كښې هغه دين قويم طرفته اهل عالم رابللې شوى وو چې په هغې ټول آسماني كتابونه او نبيان ﷺ متفق دى. په دې باندې د قائم اوسيدو او استقامت اختيارولو تلقين كړې شوې وو. خو ځينې كافران ددې د آوريدو او منلو اراده نه لرى او هغوئ په دې باندې هم مسلمانانو سره حجت بازى شروع كړه. ځينو روايتونو كښې دى چې څه يهودو نصارى دا حجت پيش كړو چې زمونږ نبى ستاسود نبى ﷺ څخه مخكښې او زمونږ كتاب ستاسو د كتاب څخه مخكښې دې. په دې وجه زمونږ دين ستاسو د دين څخه افضل دې. او ځينې روايتونو كښې هم دا مضمون د قريشو د كافرانو باره كښې ذكر شوې دې . څكه چې هغوئ به خپل ځان په دين ابراهيمى تابع ګڼړلو.

قرآن عظيم الشان دې پورته آيتونو كښې دوئ خبردار كړل چې دين اسلام او د قرآن پاك حجت په خلقو باندې پوره شوې دې. او تاسو كښې چې كوم خلق پوهه او انصاف والا خلق وو هغوئ دا دين قبول كړې دې. اوس ستاسو دا حجت غوښتل باطل او ګمراهى ده. اودې لره هيڅ قرار نشته دې. اوس كه تاسو دا نه منئ نو په تاسو باندې به دالله تعالى عذاب راشى. دې د قرآن پاك دالله تعالى دطرفه دنازل كيدلو او دحقوق الله او حقوق العباد دپاره دجامع قانون كيدلو ذكر دې.

﴿أَنْزَلَ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ وَالْمِيزَانَ﴾ كتاب څخه مراد دې ځاى كښې مطلق آسمانى كتاب دې. او په دې كښې قرآن پاك او وړاندينى كتابونه داخل دى. او د حق څخه مراد هغه حق دين دې چې د هغې ذكر پورته راغلې دې. او د ميزان د لفظ معنى تله ده او هغه د انصاف او حق قائميدو يو آله ده. په دې وجه ابن عباس ﷺ د ميزان تفسير عدل و انصاف كړې دې. امام تفسير مجاهد ﷺ فرمائى چې دلته د ميزان څخه مراد هغه عامه تله ده كومه چې خلق يې استعمالوى. او ددې څخه مراد د ټولو د حقوقو اداكول دى او انصاف دې. نو د حق په لفظ كښې حقوق الله او لفظ ميزان كښې ټول حقوق العباد طرفته اشاره ده.

دا چې ئې اوفرمائيل چې مؤمنان د قيامت څخه ويريږى. ددې څخه مراد اعتقادى ويره ده. چې د قيامت د سختو حالاتو نه ده. داشان خپل عملى كوتاهيانو باندې نظر كولو سره لازمى وى. خو كله كله په مؤمن باندې د الله ﷻ د ملاقات شوق غالب شى او په دې ويره باندې غالب شى. هغه ددې خلاف نه دې. لكه څنګه چې په قبر كښې د ځينو كسانو وينا ثابت ده چې

قیامت زر راشي. وجه داده چې په قبر کښې کله د فرښتو د طرفه انسان ته زیرې ورکړې شي او مغفرت ورته ملاؤ شي نو د قیامت ویره بهٔ مغلوبه شي.

| |
|---|
| اَللّٰهُ لَطِيۡفٌ ۔ بِعِبَادِهٖ ۔ يَرۡزُقُ ۔ مَنۡ ۔ يَّشَآءُ ۔ وَهُوَ الۡقَوِىُّ |
| الله مهربانه دې \| په بندګانو خپلو \| روزي ورکوي \| هغه چاته \| چې څه ورکول غواړي \| او هغه طاقتور دې |
| الله ﷻ په خپلو بندګانو مهربان دې \| چې چاته او غواړي نو فراخه رزق ورکوي \| او هغه قوي دې |
| الۡعَزِيۡزُ ۔ مَنۡ ۔ كَانَ ۔ يُرِيۡدُ ۔ حَرۡثَ الۡاٰخِرَةِ ۔ نَزِدۡ |
| او غالب دې \| هغه څوك \| چې وي \| چې غواړي \| فصل دآخرت \| زيات والې كوؤ مونږه |
| او زبردست دې \| څوک چې د آخرت فصلونه غواړي \| ...... مونږ به ورته |
| لَهٗ ۔ فِىۡ حَرۡثِهٖ ۔ وَمَنۡ كَانَ ۔ يُرِيۡدُ ۔ حَرۡثَ الدُّنۡيَا ۔ نُؤۡتِهٖ |
| هغه لره \| په فصل دهغه کښې \| او هغه څوك چې وي \| چې غواړي \| فصل ددنيا \| او ركوؤ مونږ هغه ته |
| د آخرت فصلونه ډېرورکړو \| او څوک چې ددنيا فصلونه غواړي \| نو مونږ به ورته څه قدرې |
| مِنۡهَا ۔ وَمَا لَهٗ ۔ فِى الۡاٰخِرَةِ ۔ مِنۡ نَّصِيۡبٍ |
| دهغې نه \| او نشته هغه لره \| په آخرت کښې \| هيڅ حصه |
| ګټه ورکړو \| او داسې سړي دپاره په آخرت کښې هيڅ حصه نشته \| |

**آسان ترجمه قرآن**

**الله تعالی په خپلو بندګانو باندې ډیر زیات مهربان دې، هغه چه چاته غواړي، رزق ورکوي، او هم هغه دې، چه د قوت مالک هم دې، او د اقتدار مالک هم دې. کوم سړې چه د آخرت فصل غواړي، مونږ به دهغه په فصل کښې نور هم زیاتوالې اوکړو، او کوم سړې چه (صرف) د دنیا فصل غواړي مونږ به هغه ته دهغې نه ورکړو او په آخرت کښې به دهغه هیڅ حصه نه وي.**

**خلاصه تفسیر**

او هغه خلق کوم چه ددنیا په ناز ونعمت مغروره شوي دی اخرت ئې هیر کړې دې او داګنړي او وائي چه که زمونږ عمل دالله تعالی درضا خلاف وې نو مونږ ته به ئې دا عیش او عشرت ولې راکولو نبه پوه شئ چه دا ددوی ناپوهی ده دا ددنیا نعمت او دولت دلیل د رضا نه دې بلکه ددې وجه خو داده چه ﴿اَللّٰهُ﴾ [الله تعالی] په دنیا کښې ﴿لَطِيۡفٌ بِعِبَادِهٖ﴾ [په خپلو بندګانو باند] په عـام طـور سره [مهربـان دی] ددې عـام رحمت په سبب سره تولوتـه رزق ورکـوی صـحت او تندرستی ورکوی چه په دې کښې دمصلحتونو او حکمتونو په بنا کمې زیاتې هم په کښې کیږي چه ﴿يَرۡزُقُ مَنۡ يَّشَآءُ﴾ [چاته] خومره قدرې [چه غواړی رزق ورکوی] مګر نفس رزق په تولو کښې مشترك دې [او] په دنیـا کښې په دې لطف او مهربانی سره داګنړل چه ددهٔ طریقه حقه ده او په اخرت کښې به هم دا لطف او مهربانی جاری وی سراسر دوکه ده هلته خویه ددوی په بدوعملونو باند عذاب وی کومه چه څه مستبعده نه ده ځکه چه ﴿وَهُوَ الۡقَوِىُّ الۡعَزِيۡزُ﴾ [هغه قوت والا زبردست دې] غرض ددوی دتولو خرابو جرړه په دنیا مغروره کیدل دی دوی لره پکار

دی چه ددې نه منع شي او داخرت فکر وکړی خکه چه ﴿مَنْ كَانَ يُرِيْدُ حَرْثَ الْاٰخِرَةِ﴾ [کوم سړی د اخرت پیداوار غواړی﴿نَزِدْ لَهٗ فِىْ حَرْثِهٖ﴾ مونږ دهٔ ته دده په پیداوارکښې ترقی ورکوو] نیك عملونه پیداوار یعنی فصل دې او په دې ملاویدونکې ثواب ددې میوه ده او ترقی ئې داده چه ثواب به ورته دوچند ملاویږی لکه چه په قرآن کښې ارشاد دې چه دیوې نیکۍ بدله به لس چنده ملاویږی ﴿وَمَنْ كَانَ يُرِيْدُ حَرْثَ الدُّنْيَا﴾ [او څوك چه ددنيا دپيداوار طالب وی] یعنی دټول عمل اوکوشش مقصد ئې ددنیا نفع وی د اخرت دپاره څه کوشش نه کوی ﴿نُؤْتِهٖ مِنْهَا وَمَا لَهٗ فِى الْاٰخِرَةِ مِنْ نَّصِيْبٍ﴾ [نو مونږ دهٔ ته څه دنیا] که وغواړو [ورکوو او په اخرت کښې به دده هیڅ حصه نه وی] خکه چه ددې شرط ایمان دې هغه په دوی کښې نشته

## معارف او مسائل [۱]

---

[۱] بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

**شکر نعمت**:: ۲۴ ربيع الثانی ۱۳۹۲ هجری د چار شنبې په سحر د معارف القرآن تفسیر تر دې ځائې پورې لیکلو او د دارالعلوم نورو کارونو څخه روستو د ماسپخین مونځ مې ادا کړو او دا پانړې مې د تکیه لاندې کیخودلې چې روتشی[دودی] خوړلو څخه روستو به بیا د تفسیر کار شروع کړم خو د انسان او ددهٔ دارادو دکمزورتې اندازه ددې څخه اوکړئ چې نن شپږپنځوس ورځې پس ۲۰ جمادی الثانی ۱۳۹۲ هجری د چا شنبې په ورځ مې دوباره لیکل شروع کړل ، او تر یو وخته پورې دژوند څخه مایوسی پیدا شوې وه ، د خپل حسرت مې لږ شان تدارك کړې وو او زړهٔ مې خالی کړې وو. واقعه څه داشان اوشوه چې زما په سینه کښې سخت درد شو او د ډاکټرانو د تشخیص مطابق زما په زړه سخته حمله اوشوه یعنی هارټ اټیك راته اوشو. حق تعالی زما مخلص محب محترم ډاکټر صغیر احمد هاشمی دامت برکاته مالره زما د یو نوی ژوند ذریعه جوړه کړه. هغوئ زر زه د زړونو هسپتال کښې داخل کړم. او اګر چې څه پخپل اختیار کښې په دې باندې راضی نه اوم. خکه چې هسپتال کښې مریضانو سره کوم سلوك ما کتلې وو دهغې په وجه زه مطمئن نه اوم چې څه دې په هسپتال کښې او خاص کر د دکشمکش په حالت کښې داخل شم. خو موصوف د څه تدبیرونو کولو څخه روستو څه هلته اورسولم دې څخه روستو ثابت شو چې هم دا زما د دوباره ژوند سبب جوړ شو. د هسپتال څخه بغیر علاج ممکن نه وو.

۲۵ ربيع الثانی کال ۱۳۹۲ هجری د جمعرات په ورځ د زړونو هسپتال کښې داخل شوم ، او بحمدالله ددې ځائې ډاکټران د مهارت سره سره ډیر همدرد او مهربان هم ثابت شو. څو ورځو کښې الله ﷻ د خطرې څخه راوویستم او احتیاطی تدابیر په غرض ۳۲ ورځې ما هسپتال کښې تیرې کړې. ۱۱ جولائی کال ۱۹۷۲ء کښې د اتوار په ورځ څه د هسپتال څخه کور ته راغلم او لسبیله کښې مې خپل کور کښې څو ورځې قیام اوکړو. دلته هم احتیاطی تدابیر او علاج جاری وو. نن ۲۰ جمادی الثانی چې اتفاق سره زما پاکستان کراچې ته د رارسیدو تاریخ دې ، او پاکستان ته چې راغلې یم نو نن څما څلریشت کاله پوره شو. او پنځویشتم شروع کیږی. او بحمدالله صحت او قوت ورځ تر ورځ زیاتیږی. د الله ﷻ په نوم مې دوبار دا پانړې راواخستې او داحاشیه مې اولیکله.

د تفسیر معارف القرآن صورت حال دادې چې کله ماته دا حادثه راپیښه شوه نو ما معارف القرآن تقریبا تر آخره پورې لیکلې وو. اود یو خاص وجې څخه دا مینځنې شپږم منزل پاتې وو. او ددې د لیکلو کار د سورة شوری تر دې ځائې پورې رارسیدلې وو. او مخکښې د سورة حجرات پورې تقریبا یوه نیمه پاره لیکل باقی وو. اوس الله ﷻ دوباره ژوند راکړو، او ډاکټرانو راته د لیکلو اجازت راکړو، نو خپل برخودار مولوی محمد تقی مې ځان سره کړو اود الله ﷻ په نوم مې بیا ددې کار شروع اوکړه. والله المستعان

﴿اَللّٰهُ لَطِيْفٌ بِعِبَادِهٖ﴾ د لطيف لفظ د لغت په اعتبار سره په څو معنوي کښې استعماليږي. ابن عباس ﷜ دې ځائې کښې ددې معنې حفي يعنې مهربان کړې ده او عکرمه ﷫ په بار يعنې محسن سره کړې ده.

مقاتل ﷫ فرمائي چې الله ﷻ په خپلو ټولو بندګانو باندې مهربان دې. تر دې چې په کافر او فاجر باندې هم دهغه نعمتونه ورېږي. د الله ﷻ په خپلو بند ګانو باندې بې شميره عنايات او د لطف او کرم بې شمار انواع و اقسام دی. په دې وجه تفسير قرطبي د لطيف د لفظ ډير معنې کړې دی[1]. او حاصل د ټولو په حفي او بار کښې شامل دی.

د الله ﷻ رزق خو ټول مخلوقات دپاره عام دې. په درياب او اوچه کښې اوسيدونکي ځناور چې دهغې چا ته معلومات نشته دې نو [الله ﷻ] هغوئ ته هم رزق ورکوي. دې آيت مبارك کښې چې دا ارشاد دې چې الله ﷻ چا ته اوغواړي رزق ورکوي، ددې حاصل زيات واضح هغه دې کوم چې تفسير مظهري اختيار کړې دې چې دالله ﷻ د رزق بې شميره قسمونه دی. د ضرورت په قدر د معاش رزق خو ټولو د پاره عام دې. بياخپل خاص خاص اقسامو درزق په تقسيم کښې خپل حکمت بالغه سره مختلف درجات او پيمانې ايښې دی. چا ته ئې د مال او دولت رزق زيات ورکړې دې، چا ته ئې صحت او قوت، چا ته علم او معرفت، چا ته ئې نور قسمونه، داشان هر انسان دبل محتاج هم وی او هم دا احتياج هغه په خپلو کښې په تعاون کولو سره آماده کوی او په دې باندې د انساني تمدن بنياد دې.

جعفر بن محمد ﷫ فرمائي چې د زرق په معامله کښې دالله ﷻ په بندګانو باندې دوه قسمه رحمت او مهربانئ دی. اول دا چې هر يو روح والا ته دهغه د حال مناسب خوراك ورکوي او دهغه ضرورتونه پوره کوي. بل دا چې هغه چا ته د ټول عمر رزق په يو ځائې نه ورکوي. ګنې اول خو به ددې حفاظت کول مشکل وو، چې هر څومره به ئې ددې حفاظت کولو، دا به بيا هم سخا کيدې خرابيدلې به او ده به هغه نشو بچ کولې. [مظهري و مثله في القرطبي][2].

يو مجرب عمل: مولانا شاه عبد الغني پهولپوري ﷫ فرمائي چې حاجي امداد الله ﷫ څخه منقول دی چې څوك سحر په پابندئ سره اويا ځل دا آيت مبارك وائی نو هغه به د رزق تنګئ څخه محفوظ وی. او وې فرمائيل چې دا ډير مجرب عمل دې. آيت مبارك هم دا دې کوم چې پورته ذکر شو. ﴿اَللّٰهُ لَطِيْفٌ بِعِبَادِهٖ يَرْزُقُ مَنْ يَّشَآءُ ۚ وَهُوَ الْقَوِيُّ الْعَزِيْزُ﴾

| شُرَكٰٓؤُا | اَمْ لَهُمْ |
|---|---|
| داسې شريکان | يا دوئ لره دی |
| آيا ددوئ شريکان دی | |

| لَمْ يَأْذَنْ | مَا | مِّنَ الدِّيْنِ | لَهُمْ | شَرَعُوْا |
|---|---|---|---|---|
| چې اجازت نه دې ورکړې | هغه | ددين نه | دپاره ددوئ | چې مقرر کړې ئې ده يوه طريقه |

چې داسې دين ئې ورته جوړ کړې دې دکوم چې الله ﷻ اجازت نه دې ورکړې

[1] ) القرطبي: ج ١٦، ص ٦٦

[2] ) القرطبي: ج ١٦، ص ٦٦، والمظهري: ج ٨، ص ٣١٥، ٣١٦

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| بِهِ | اللّٰهُ ؕ | وَلَوْلَا كَلِمَةُ الْفَصْلِ | لَقُضِيَ | بَيْنَهُمْ ؕ | |

په هغې سره | الله |او که چرې نه وې خبره دفیصلې |نو خامخا فیصله به شوې وه |په منځ ددوئ کښې

او که [دمهلت] فیصله نه وی شوې |نو ددوئ په مینځ کښې به خبره خلاصه شوې وه [او هلاک شوي به وې]

وَاِنَّ الظّٰلِمِيْنَ لَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ۝ تَرَى الظّٰلِمِيْنَ

او بیشکه ظالمان چې دی | مقرر دې هغوئ لره | عذاب دردناک | ته به اووینې | دا ظالمان خلق

او ظالمانو دپاره دردناک عذاب مقرر دې | ته به دا ظالمان اووینې | چې دخپلو عملونو د انجام نه به

مُشْفِقِيْنَ مِمَّا كَسَبُوْا وَهُوَ وَاقِعٌ بِهِمْ ؕ

یریدونکی | دهغې عمل نه | چې کړې وی دوئ | او هغه به واقع کیدونکې وی | په دوئ باندې

[پخپله] اوویریږی | حال دا چې هغه عذاب به پرې واقع شی |

وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ فِيْ رَوْضٰتِ الْجَنّٰتِ ۚ

او هغه کسان | چې ایمان ئې راوړو | او عملونه ئې اوکړل نیک | وی به په باغیچو ۰ | دجنت کښې

او کومو کسانو چې ایمان راوړې دی |او نیک عملونه کوی| هغوئ به دجنتونو په باغیچو کښې اوسیږی

لَهُمْ مَّا يَشَآءُوْنَ عِنْدَ رَبِّهِمْ ؕ ذٰلِكَ هُوَ الْفَضْلُ

وی به هغوئ لره | هغه | چې غواړی ئې هغوئ | په نز درب دهغوئ | دا هم هغه | فضل

د دوی دپاره به د خپل رب سره هر هغه څه وی کوم چې دوی غواړی| هم دغه لوئې فضل دې

الْكَبِيْرُ ۝ ذٰلِكَ الَّذِيْ يُبَشِّرُ اللّٰهُ عِبَادَهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

لوئ | دې | دا هغه څیز دې |چې زیرې ورکوی الله |بندګانو خپلو لره | هغه |چې ایمان ئې راوړو

............دا هغه فضل دې چې الله ﷻ خپلو ایماندارو بندګانو باندې کړې دې چا چې

وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ ؕ قُلْ لَّآ اَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ

او عملونه ئې اوکړل نیک | ورته اووایه | نه غواړم زه ستاسو نه | په دې کار ددین باندې

نیک اعمال کړی دی |.. [ائې پیغمبره]ته ورته اووایه چې زه ستاسو نه [نوره] هیڅ بدله نه غواړم| خو

اَجْرًا اِلَّا الْمَوَدَّةَ فِي الْقُرْبٰى ؕ وَمَنْ يَّقْتَرِفْ حَسَنَةً

څه بدله | مګر غواړم | محبت دوستی | په خپلولۍ کښې | او هغه څوک چې اوکړی | نیکی

د خپلولۍ مینه محبت درنه غواړم | او څوک چې دنیکۍ کارونه کوی | نو مونږ به ورته

نَّزِدْ لَهٗ فِيْهَا حُسْنًا ؕ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ شَكُوْرٌ ۝

زیات به کړو مونږ | هغه لره | په هغې کښې | ښه والې | بیشکه الله | بخښونکې | قدردان دې

په کښې نوره نیکی زیاته کړو | بیشکه الله ﷻ بښونکې [د نیکانو نیکۍ] قدردان دې

## آسان ترجمه قرآن

آیا ددې کافرانو دپاره داسې شریکان دي چه هغوی دوی دپاره داسې دین مقرر کړې دې، چه د هغې الله تعالی اجازت نه دې ورکړې؟ اوکه (د الله تعالی د طرف نه) فیصله کړې شوې خبره نه وې، نو ددوی معامله به ئې فیصله کړې وې، اویقین اوساته چه ددې ظالمانو دپاره ډیر دردناک عذاب دې. په هغه وخت کښې به) ته ظالمانو لره اووینې، چه دوی کوم عملونه کړې دی دهغې د وبال د وجې نه به ویریدونکې وی، اوهغه به واقع کیدونکې وی په دوی باندې، او کومو خلقو چه ایمان راوړې دې اونیک عملونه ئې کړې دی، هغوی به د جنت په باغیچو کښې وی، هغوی ته به د خپل پروردګار سره هغه څه ملاویږی، کوم چه هغوی غواړی، او هم دا لوئې فضل دې. هم دا هغه څیز دې، چه ددې زیرې الله تعالی خپلو هغې بندګانو ته ورکوی، کومو چه ایمان راوړې دې، او کومو چه نیک عملونه کړې دی (اے پیغمبره!) کافرانو ته اووایه چه: زه ستاسو نه په دې تبلیغ باندې هیڅ اجرت نه غواړم سوا د رشته دارئ د مینې نه او کوم سړې چه نیکی اوکړی، نو مونږ هغه لره په هغې کښې نور ډیر خائست زیاتوؤیقین اوکړئ، چه الله تعالی ډیر بخونکې او لوئې قدردان دې.

## خلاصه تفسیر

حق دین لره خو الله تعالی مشروع اومقرر فرمائیلې دې مګر داخلق چه دې لره نه منی نو ﴿أَمْ لَهُمْ شُرَكَاءُ﴾[آیا دهغوی] تجویز کړې شوی څه [شریکان] په خدایئ کښې شریك [شته ﴿شَرَعُوا لَهُمْ مِنَ الدِّينِ﴾کومو چه د هغوی دپاره داسې دین مقرر کړې دې ﴿مَا لَمْ يَأْذَنْ بِهِ اللَّهُ﴾ دکوم چه الله تعالی اجازت نه دې ورکړې] مطلب دادې چه هیڅوك ذات ددې قابل نشته چه دالله تعالی خلاف د هغه مقرّر شوې دین معتبر شی ﴿وَلَوْلَا﴾[اوکه چرې] دالله تعالی دطرف نه ﴿كَلِمَةُ الْفَصْلِ لَقُضِيَ بَيْنَهُمْ﴾[یوه خبره فیصله] شوې [نه وې] یعنی چه په دوی به اصل عذاب دمرګ نه پس وی [نو] په دنیا کښې به دهغوئ عمل فیصله شوې وه ﴿وَإِنَّ الظَّالِمِينَ لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ﴾ او په آخرت کښې دې ظالمانو دپاره به ضرور [دهغوی] ضرور دردناك[عذاب وی] ﴿تَرَى الظَّالِمِينَ مُشْفِقِينَ مِمَّا كَسَبُوا وَهُوَ وَاقِعٌ بِهِمْ﴾ په هغه ورځ [ته به دې ظالمانو لره ووینې چه دخپلو عملونو] د وبال [نه به ویریږی او هغه] وبال [په دوی به] خامخا [راپریوځی] دا خو دمنکرانو حال شو ﴿وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ﴾[اوکومو خلقو چه ایمان راوړو او هغوی نیك کارونه کړی وی ﴿فِي رَوْضَاتِ الْجَنَّاتِ﴾ هغوی به د جنت په باغونو کښې] داخل [وی] جنت لره ئ جمع ځکه راوړو چه دجنت مختلفې طبقې او درجې دی هره طبقه یو جنت دې او په هره طبقه کښې ډیر باغونه دي دخپلې خپلې مرتبې مطابق به خنې یو ځائ وی او خنې بل ځائ﴿لَهُمْ مَا يَشَاءُونَ عِنْدَ رَبِّهِمْ﴾ [هغوی چه څه غواړی د هغوی د رب سره به هغوی ته ملاویږی ﴿ذَلِكَ هُوَ الْفَضْلُ الْكَبِيرُ﴾ دا لوئ انعام دې] نه چه هغه فانی عیش عشرت کوم چه په دنیا کښې موجود دې﴿ذَلِكَ الَّذِي يُبَشِّرُ اللَّهُ عِبَادَهُ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ﴾ دادې دکوم خوشخبری چه الله تعالی خپلو بندګانو ته ورکوی کوم چه ایمان راوړی اونیك عملونه وکړی] او چونکه کفار دپوره مضمون اوریدونه اول دتکذیب کولو عادت وو په دې وجه ددې مضمون د ختمولو نه اول په یوه معترضه جمله سره کفارو ته دیوزړه نرم کوونکی مضمون د اوږدولو حکم فرمائی یعنی ﴿قُلْ﴾[ته] دوی ته [داسې

وایه ﴿لَآ أَسۡـَٔلُكُمۡ عَلَيۡهِ أَجۡرًا إِلَّا ٱلۡمَوَدَّةَ فِي ٱلۡقُرۡبَىٰ﴾ چه زۀ خو تاسو نه نور څه مطلب نه غواړم بغیر د رشته دارئ د محبت نه] یعني دومره غواړم چه ستاسو د رشته دارئ چه کوم تعلقات دي دهغې د حقوقو خیال وساتئ: ایا د رشته دارئ داحق نه دې چه ماسره په دښمنئ کښې تلوارمه کوئ بلکه په اطمنان سره زما پوره خبره واورئ او دا دعقل او دلیل په صحیح میزان سره وتلئ که مقبوله وی نو قبوله يې کړئ اوکه څه شبهه په کښې وی نو صفائ کړئ اوکه په فرض محال غلطه وی نو ماپوه کړئ غرض کومه خبره چه وی په خیر خواهئ سره دې وی داسې نه چه فورا په جوش کښې راشی [او] وړاند دمؤمنانو دپاره د خوشخبرئ تتمه ده یعني ﴿وَمَن يَقۡتَرِفۡ حَسَنَةً﴾ [کوم سړې چه څه نیکی وکړی ﴿نَّزِدۡ لَهُۥ فِيهَا حُسۡنًا﴾ مونږ به ددۀ په هغه] نیکئ [کښې نورې خوبئ زیاتې کړو] یعني د هغې نیکئ د فی نفسه مقتضا چه څومره ثواب دې مونږ به د هغې نه زیات ثواب ورکړو ﴿إِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٞ شَكُورٌ﴾ [بیشکه الله تعالی] د اطاعت ګذارو بندګانو ګناهونو لره [لوئ بخښنې والا] او ددوی دنیکو [لوئ قدردان] او لوئ ثواب ورکوونکې دې

## معارف او مسائل

﴿قُل لَّآ أَسۡـَٔلُكُمۡ عَلَيۡهِ أَجۡرًا إِلَّا ٱلۡمَوَدَّةَ فِي ٱلۡقُرۡبَىٰ﴾ ددې آیت مبارك تفسیر چې په مذکوره خلاصه کښې راغلې دې هم دا د مفسرینو څخه منقول ، ماثور او مختار دې . او ددې خلاصه داده چې زما تاسو باندې اصل حق دادې چې څه دالله ﷺ رسول یم او تاسو ددې اعتراف اوکړئ او د خپلې کامیابئ او اصلاح دپاره څما اطاعت اوکړئ . خو تاسو څما نبوت او رسالت نه قبلوئ ، مه ئې قبلوئ ، خو څما یو انساني او خانداني حق خو تاسو باندې شته دې چې دهغې څخه تاسو انکار نشئ کولې . ستاسو اکثرو قبیلو سره زما رشته ده او نزدیکت دې . تاسو د رشته دارئ د حقوقو او د صله رحمئ څخه انکار نه کوئ نو تاسو دپاره چې څه کوم خدمت د تبلیغ او ستاسو د اصلاح په سلسله کښې کوم، دهغې ستاسو څخه څه بدله نه غواړم . صرف دومره غواړم چې تاسو د رشته دارئ د حقوقو لږ خیال اوساتئ . د خبرې منل یا نه منل ستاسو په اوس دا خبره واضح ده چې د رشته دارئ د حقوقو رعایت دهغوئ خپل فرض وو . دې ته د اختیار کښې دی . خو دښمني خو راسره مه کوئ او لږ د رشته دارئ خیال په کښې اوساتئ . تعلیمي او تبلیغي خدمت بدله نشي وئیلې . دې مذکوره آیت مبارك کښې چې کومه استثناء ده نو دا خو یا په اصطلاحي الفاظو کښې استثناء منقطع ده . چې هغه کښې مستثنی د مجموعي مستثنی منه جزء نه وی نه شی کیدې . او یا ئې دې ته مجازی او ادعائي طور معاوضه وئیلې ده چې ددې حاصل دادې چې څه ستاسو څخه صرف دومره غواړم چې اګرچې هغه په حقیقت کښې څه معاوضه نه ده . که تاسو دې ته معاوضه وائې نو دا به ستاسو خپله غلطي وی . ددې نظارې په عربو او عجمو کښې په هره ژبه کښې کتلې شئ . متنبي یو شاعر دې هغه د یو قوم بهادری بیانوی او فرمائي بلکه دا خو هنر دې . ددې عربي شعر دادې :

ولا عیب فیهم غیر ان سیوفهم
بهن فلول من قراع الکتائب

چې په دوئ کښې څه عیب نشته دې سوا ددې څخه چې ددوئ د توررو د زیات جنګ په وجه مخونه آوړیدلې دی . اودا ظاهره ده چې د بهادرئ دپاره دا څه عیب نه دې .

یو بل شاعر هم داشان مضمون لیکلې دې :

مجھ میں ایک عیب بڑا ہے کہ وفادار ہوں میں

ده وفاداري په عيب سره تعبير كړه او خپله بې ګناهي ئې ډيره زياته ښكاره كړې ده.
خلاصه دا ده چې د رشته دارئى د حقوقو رعايت چې په واقع كښې معاوضه نه ده زه ستاسو
څخه ددې څخه سوا هيڅ نه غواړم.
ددې مذكوره آيت مبارك تفسير په صحيحينو كښې د ابن عباس رضي الله عنهما څخه منقول دې(١). او د
تفسير په امامانو كښې مجاهد رحمه الله، قتاده رحمه الله او يو لوئې جماعت هم دا تفسير اختيار كړې
دې. او د ټولو انبياء كرامو عليهم السلام په هر دور كښې هم دا آواز وو چې خپل قوم ته يې دا خبره
ښكاره كړې ده چې مونږ ستاسو د خيرښيګړې دپاره څه كوؤ نو دهغې مونږ ستاسو څخه څه
معاوضه نه غواړو. مونږ ته به زمونږ معاوضه الله جل جلاله راكوى. د سيد الانبياء صلى الله عليه وسلم شان خو په
دوئ كښې اعلى نو ارفع دې او هغه به څنګه د قوم څخه معاوضه غواړى.
د حديث امام سعيد بن منصور رحمه الله او ابن سعد رحمه الله او عبد بن حميد رحمه الله او حاكم رحمه الله او
بيهقى رحمه الله امام شعبى رحمه الله څخه دا واقعه نقل كړې ده. او حاكم ددې سند ته صحيح وئيلى دى
. واقعه داده چې امام شعبى رحمه الله فرمائى چې خلقو زمونږ څخه ددې آيت د تفسير متعلق
سوالونه اوكړل، نو مونږ ابن عباس رضي الله عنهما ته خط اوليكلو او دهغوئ څخه مو ددې صحيح
تفسير اوغوښتلو، هغوئ په جواب كښې اوليكل چې:
﴿ان رسول الله صلى الله عليه وسلم كان وسط النسب فى قريش ليس بطن من بطونهم الاوقد ولد وله فقال الله
تعالى: [قُل لَّآ أَسۡـَٔلُكُمۡ عَلَيۡهِ أَجۡرًا] على ما ادعوكم عليه [إِلَّا ٱلۡمَوَدَّةَ فِى ٱلۡقُرۡبَىٰ] تودونى لقرابتى منكمو
تحفظون ى بها﴾ [روح](٢)

**ترجمه:** نبى كريم صلى الله عليه وسلم د قريشو داسې نسب سره تعلق ساتلو چې ددې خاندان هر خيل سره ئې
رشته قائم وه. الله جل جلاله دا اوفرمائيل چې تاسو دې مشركانو ته اووائې چې څه ستاسو څخه په
دعوت باندې معاوضه نه غواړم، سوا ددې څخه چې تاسو ماسره د رشته دارى د مروت او
مودت معامله اوكړئى او تاسو ما ته ستاسو په مينځ كښې په اوسيدو څه تكليف نه راكوئى،
او زما حفاظت كوئى.
او ابن جرير رحمه الله دا الفاظ هم نقل كړى دى چې: ﴿ياقوم اذاابيتم ان تتابعونى فاحفظوا قرابتى منكم
ولاتكون غيركم من العرب اولى بحفظى ونصرتى منكم﴾ [روح](٣)
**ترجمه:** اې زما قومه! تاسو زما د اطاعت څخه انكار كوئى نو تاسو سره چې زما كومه رشته
دارى ده دهغې خو لږ شان خيال اوساتئ. او هسې نه چې د عربو نور خلق زما په حفاظت او
نصرت ستاسو څخه وړاندې شى.
او ابن عباس رضي الله عنهما څخه يو بل ضعيف سند سره منقول دى چې كله دا آيت مبارك نازل شو نو
خلقو نبى كريم صلى الله عليه وسلم څخه سوال اوكړو چې ستاسو په رشته دارئى كښې كوم خلق دى، نو نبى
كريم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چې على رضي الله عنه، فاطمه رضي الله عنها او ددوئ اولاد. ددې روايت سند په در منثور

---

(١) صحيح البخارى، كتاب التفسير، سورة الشورىٰ، باب قوله: الا المودة فى القربىٰ: ج ٢، ص ٧١٣
(٢) روح المعانى تحت هذه الآية: ج ١٨، ص ٢٦٢، والمستدرک للحاكم، رقم الحديث: ٣٦١٨، ودلائل النبوة للبيهقى، رقم الحديث: ٩٤
(٣) روح المعانى: ج ١٨، ص ٢٦٢، وتفسير الطبرى تحت هذه الآية: ج ٢١، ص ٥٢٥

کښې سیوطی او په تخریج احادیث کشاف کښې حافظ ابن حجر ضعیف گرځولې دې[1]. او چونکه دهغه حاصل دا راوځی چې څه ستاسو څخه دخپل خدمت دومره معاوضه نه غواړم چې تاسو څما اولاد سره رعایت اوکړئی. اودا د ټولو انبیاء کرامو ﷺ او په خصوصی توگه د نبی کریم ﷺ د شان سره مناسب هم نه دی. په دې وجه راجح او مختار تفسیر دجمهور امت په نزد هم هغه دې کوم چې پورته اولیکلې شو دا روایت نه صرف روافضو اختیار کړې دې بلکه په دې باندې ئې ډیرې خبرې کړی دی او په هغه یې لویې قلاگانې تعمیر کړی دی چې دهغې څه بنیاد نشته دې.

**د آل رسول ﷺ دتعظیم او محبت مسئله:** او پورته چې ذکر شو چې ددې تعلق صرف دې خبرې سره دې چې آیت مبارك کښې نبی کریم ﷺ د خپل خدمت په بدله کښې قوم څخه د خپل اولاد د محبت او عظمت دپاره هیڅ خواست نه وو کړې. ددې دا مطلب نه دې چې د آل رسول ﷺ د محبت او عظمت څه اهمیت نشته دې، اوداسې خیال به د یو بدبخته انسان په زړه کښې راځی. حقیقت دادې چې د نبی کریم ﷺ عظمت او محبت د ټول کائنات څخه زیات دې، دا د ایمان حصه ده، او مدار ایمان دې. اوددې نه دا لازم دی چې د چا نبی کریم ﷺ سره څومره نزدې قرابت دې نو د هغه تعظیم او محبت هم هغه شان زیات واجب او لازم دې او په دې کښې څه شك نشته دې د انسانی صلبی اولاد ته ټولو څخه زیات نسبت د قرابت حاصل وې او په دې وجه ددوئ محبت بلاشبه د ایمان حصه ده. خو ددې دامطلب نه دې چې د ازواج مطهرات او نورو صحابه کرامو ﷢ چې نبی کریم ﷺ سره ډیر زیات نسبتونه، قرابتونه حاصل دی، هغه دې گنی مونږ هیر کړو، [نه بالکل نه].

خلاصه دا ده چې د اهل بیتو او آل رسول ﷺ سره د محبت مسئله په دې امت کښې کله هم اختلافی شوې نه ده. باجماع واتفاق دهغوئ محبت او عظمت لازم دې. اختلاف په هغه ځائې پیدا کیږی چې چرته د نورو په عظمت باندې حمله کیږی. د ساداتو [سیدانو] که نبی کریم ﷺ سره هر څومره لرې نسب او رشته وی خو دآل رسول ﷺ په حیثیت سره د هغوئ سره محبت او دهغوئ عظمت کښې اجرو ثواب دې. او ډیر خلق پدې کښې کوتاهی کوی. امام شافعی ﷫ ددې په غندنه کښې څو اشعار وئیلی دی. او هغه اشعار دادې، او دا په حقیقت کښې د جمهور امت مسلك او مذهب دې.

> یا راکبا قف بالمحصب من منی　　واهتف بساکن خیفها والناهض
> سحرا اذا فاض الحجیج الی منی　　فیضا کملتطم الفرات الفائض
> ان کان رفضا حب آل محمد ﷺ　　فلیشهد الثقلان انی رافضی[2]

**ترجمه:** یعنې ائې شهسوار د منی وادئی محصب سره نزدې اودریږه، اوچې کله د سحر په وخت کښې حاجیان د سیلاب په شان منی ته روان شی نو ددې علاقې هر هر اوسیدونکی ته اووایه چې که صرف د آل محمد ﷺ د محبت نوم رفض وی نو ددې کائنات ټول انسانان او جنات دې گواه وی چې زه رافضی یم.

---

[1]) الدر المنثور تحت هذه الآية: ج ۹، ص ٦٦، ومجمع الزوائد، رقم الحديث: ١١٣٢٦، والسلسلة الضعيفة للألباني، رقم الحديث: ٤٩٧٤

[2]) روح المعاني تحت هذه الآية: ج ١٨، ص ٢٦٤، وتفسير الزازي تحت هذه الآية: ج ١٣، ص ٤٣٣

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| أَمْ يَقُولُونَ | افْتَرَىٰ | عَلَى اللَّهِ كَذِبًا | فَإِن يَشَإِ اللَّهُ | يَخْتِمْ | |
| آيا وائي دا خلق | چې دهٔ تړلې دی | په الله باندې | دروغ | پس که چرې اوغواړي الله | مهر به اولګوی |

آيا دوئ وائي چې دې پيغمبر په الله ﷻ دروغ جوړ کړی دی | که الله ﷻ اوغواړي نو ستا

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| عَلَىٰ قَلْبِكَ | وَيَمْحُ اللَّهُ | الْبَاطِلَ | وَيُحِقُّ | الْحَقَّ | بِكَلِمَاتِهِ |
| په زړهٔ ستا باندې | او ختموي الله | باطل | او حق ثابتوی | حق لره | په فرمانونو خپلو سره |

په زړهٔ به مهر اولګوی | او الله ﷻ باطلې خبرې ختموی | او حقې خبرې په خپل حکم ثابتې ساتی

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| إِنَّهُ | عَلِيمٌ | بِذَاتِ الصُّدُورِ | وَهُوَ الَّذِي | يَقْبَلُ |
| بيشکه هغه | خبردار دې | په پټو خبرو دسينو باندې | او هغه هغه ذات دې | چې قبلوی |

هغه ته د زړونو پټ رازونه ښه معلوم دی | او هغه [الله ﷻ] ........ هغه ذات دې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| التَّوْبَةَ | عَنْ عِبَادِهِ | وَيَعْفُوا | عَنِ السَّيِّئَاتِ | وَيَعْلَمُ | مَا |
| توبه | دبندګانو خپلو نه | او عفوه کوی | دګناهونو نه | او پوهيږی | په هغې |

چې د خپلو بندګانو توبه قبلوی | او ګناهونه ورته معاف کوئ | او تاسو چې څه کارونه کوئ

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| تَفْعَلُونَ ۝ | وَيَسْتَجِيبُ | الَّذِينَ | آمَنُوا | وَعَمِلُوا |
| چې کوئ ئې تاسو | او دعا قبلوی | دهغه کسانو | چې ايمان ئې راوړو | او وې کړل عملونه |

په هغې باندې خبر دی | او دهغو خلقو دعا قبلوی چې ايمان ئې راوړې دې | او نيک کارونه کوی

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| الصَّالِحَاتِ | وَيَزِيدُهُم | مِّن فَضْلِهِ | وَالْكَافِرُونَ | لَهُمْ |
| نيک | او زيات ورکوی هغوئ ته | دفضل خپل نه | او کافران چې دی | هغوئ لره دې |

او د خپل فضل نه ورته نورزيادت کوی | ........ او څوک چې کافران دی هغوئ دپاره

| | |
|---|---|
| عَذَابٌ | شَدِيدٌ ۝ |
| عذاب | سخت |

سخت عذاب مقرر دې |

### آسان ترجمه قرآن

آيا وائي دا خلق چه دې سرې د ځان نه په الله تعالیٰ باندې دروغ جوړ کړې دی؟ حالانکه که الله تعالیٰ اوغواړي، نوستا په زړهٔ به مهر اولګوي. او الله تعالیٰ خو باطل لره ختموی او حق لره په خپلو کلماتو سره ثابتوی يقيناً هغه په سينو کښې پټو خبرو باندې هم پوهيږی. او هم هغه دې چه د خپلو بندګانو توبه قبلوی، او ګناهونو لره معاف کوی، او څه چه تاسو کوئ، دهغې پوره پوره علم لری. او کومو خلقو چه ايمان راوړې دې، او نيک عملونه ئې کړې دی، هغه ددې خلقو دعا اوری، او دوی ته د خپل فضل نه نور زيات ورکوی. او دکافرانو دپاره سخت عذاب دې.

## خلاصه تفسير

﴿اَمۡ يَقُوۡلُوۡنَ افۡتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا﴾ [ايا داخلق] ستا په نسبت نعوذ بالله [داسې وائي چه دوى په الله تعالى باند دروغ جوړ كړي دي] چه خلاف واقع يې دنبوت او وحي دعوى كړې ده [پس] ددوى داقول په خپله افتراء ده ځكه چه ستاپه ژبه چه دحق ترجماني كوونكې ده دالله تعالى دا معجز كلام جاري شوى دې كوم چه دربنتوني نبي نه سوا د بل چا په ژبه نه شي جاري كيدې كه معاذالله ته په خپله دعوى د رسالت كښې ربنتوني نه وې نو الله تعالى به داكلام په تانه وو جاري كړې چنانچه [الله تعالى] ته داقدرت حاصل دې چه ﴿فَاِنۡ يَّشَاِ اللّٰهُ يَخۡتِمۡ عَلٰى قَلۡبِكَ﴾ [كه چرې] هغه [وغواړي نو ستا په زړه به بندولګوى] او داكلام به ستا په زړه القاء نه شي بلكه درنه به لرې شي او تانه به بالكل هير شي او په دې صورت كښې ظاهره ده چه بيا په ژبه به نه شي ادا كيدې ﴿وَيَمۡحُ اللّٰهُ الۡبَاطِلَ﴾ [او الله تعالى] عادت يې دادې چه هغه دنبوت [باطل] دعوې [لره ورك كوى] چليدو ته يې نه پريږدى يعنى دداسې دروغژن مدعى دلاسه معجزې نه ظاهروى ﴿وَيُحِقُّ الۡحَقَّ بِكَلِمٰتِهٖ﴾ [او] د نبوت [حق] دعوې لره په خپلو احكامو سره ثابته] او غالبه [كوى] پس ته صادق او دوى دروغژن دى ﴿اِنَّهٗ عَلِيۡمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوۡرِ﴾ او چونكه [هغه] يعنى الله تعالى [د زړونو خبرې پيژني] نو د ژبې خبرې او داندامونو كارونه څه دى پس الله تعالى ددې خلقو د عقيدو او خبرو او عملونو ټولو نه خبر دې په دې ټولو به ورله بنه سزا وركړئ البته كوم خلق چه دخپل كفر اوبدو عملونه توبه وكړي نو هغوى به معاف كړى ځكه چه داد هغه قانون دې ﴿وَهُوَ الَّذِيۡ﴾ [او هغه داسې] رحيم [دې ﴿يَقۡبَلُ التَّوۡبَةَ عَنۡ عِبَادِهٖ﴾ چه د خپلو بندګانو توبه] چه په خپلو شرطونو پوره وى [قبلوى ﴿وَيَعۡفُوۡا عَنِ السَّيِّاٰتِ﴾ او هغه] ددې توبې په بركت سره [ټول] تير [ګناهونه معاف كوى ﴿وَيَعۡلَمُ مَا تَفۡعَلُوۡنَ﴾ او څه چه تاسو كوئ هغه دا] ټول [پيژني] پس هغه ته داهم معلومه ده چه توبه يې خالصه كړې ده كه غير خالصه [او] هركله چه يوسړې د كفر نه توبه وكړي مسلمان شي نو دده چه كوم عبادتونه اول نه قبليدل اوس قبليږي ځكه چه الله تعالى ﴿وَيَسۡتَجِيۡبُ الَّذِيۡنَ﴾ [د هغوخلقو عبادت] په دې شرط چه درياءدپاره نه وى [قبلوى ﴿اٰمَنُوۡا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ﴾ كوم چه ايمان راوړى او هغوى نيك عملونه وكړي] هغه عبادتونه دانيك عملونه دى او ددې د قبلولو مطلب دادې چه دوى ته ثواب وركوى [او] علاوه ددې ثواب نه كوم چه في نفسه ددغې عمل مقتضاء ده ﴿وَيَزِيۡدُهُمۡ مِّنۡ فَضۡلِهٖ﴾ [هغوى ته د خپل فضل نه نورزيات] ثواب [وركوى] دا خو دايماندارو دپاره شوه ﴿وَالۡكٰفِرُوۡنَ لَهُمۡ عَذَابٌ شَدِيۡدٌ﴾ [اوكوم خلق چه كفر] باند اصرار [كوى] او ايمان نه راوړى [د هغوى دپاره سخت عذاب] مقرر [دې]

## معارف او مسائل

﴿ اَمۡ يَقُوۡلُوۡنَ افۡتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا﴾ په دې مذكوره آيتونو كښې په ړومبي آيت مبارك كښې الله ﷻ هغه خلقو ته جواب وركړې دې كوم خلق چې د رسول كريم ﷺ د نبوت نه انكار كوى ، قرآن پاك غلط بولي او په الله تعالى باندې افتراء لګوى . دهغې خلاصه داده چې داسې كارونه عام طور سره انسانان نه شي كولې كومې ته چې معجزه وئيلې كيږى . اګر چې ځينې ساحران او جادوګران هم په خپل سحر او جادو سره داسې كارونه كوى دا ښكاره خبره ده چې په دې دواړو كښې يو هم دالله تعالى د ارادې او حكم څخه بغير نشي كولې . الله ﷻ خپل فضل سره

د انبياء كرامو ﷺ د نبوت ثابتولو دپاره دوئ ته معجزې وركوى ، او په دې كښې د پيغمبر هيڅ اختيار نه وى .
داشان د جادوگر جادوگرى هم پخپل حكمت او امتحان او آزمينيت باندې ورچليوى . خو په سحر او معجزه كښې فرق او نبى او ساحر كښې فرق كولو د پاره دا ضابطه جارى كړې شوې ده چې كوم كس د نبوت په دروغه دعوى اوكړى دهغه د لاسه هيڅ سحر يا جادو نه كاميابيږى تر څو چې هغه مدعى د نبوت نه وو سحر يې چليږى . دنبوت په دروغه دعوى كولو څخه روستو دهغه سحر الله ﷻ نه كاميابوى .
او چې چاته الله ﷻ نبوت او رسالت وركوى هغه ته معجزې هم وركوى . دهغوئ معجزو سره سينې روښانه كيږى . داشان تكوينى او تقديرى لحاظ سره ددوئ نبوت ثابتوى . بل دخپل كلام په آيتونو سره ددوئ تصديق كوى .
هر كله چې دا ضابطه معلومه شوه نو په دې پوهه شئ چې قرآن عظيم الشان يو معجزه ده . او د دنيا ټول جنات او انسانان ددې د يو آيت مبارك جوړولو څخه عاجزه دى . دهغوئ عجز د نبوت په زمانه كښې ثابت شوې دې او تر ننه پورې ثابت دى . داسې ښكاره معجزه په دروغه دنبوت دعوى كوؤنكې نه دضابطه مذكوره مطابق نه شى ښكاره كيدلې . په دې وجه د رسول اكرم ﷺ د رسالت او نبوت دعوى بالكل صحيح او حق ده . او څوك چې دې ته غلط او افتراء وائى نو دا گمراه او مفترى دى .
دويم آيت مبارك كښې منكرينو او معاندينو ته نصيحت كړې شوې دې چې اوس هم وخت دې چې تاسو د كفر څخه منع شئ او توبه اوباسئ . الله ﷻ ډير رحيم او كريم دې ، توبه قبلوؤنكې دې او د توبه كوؤنكو توبه قبلوى . او ددوئ خطا گانې بخښى .
**د توبې حقيقت** :: د توبې لفظى معنى واپس كيدل او رجوع كول دى . او په اصطلاح كښې د يو گناه څخه منع كيدلو ته وائى . او ددې د صحيح كيدو دپاره درې شرطونه دى .
① يو دا چې كومه گناه دې فى الحال كوى دهغې څخه زر تر زره منع شى . ② دويم دا چې ماضى كښې ئې كوم گناهونه كړى وى په هغې نادم شى . ③ او دريم دا چې په راتلونكى وخت كښې ددې د نه كولو پخه اراده اوكړى . او كه څه شرعى فريضه ئې پريخودې وى نو دهغې په ادا كولو يا قضا كولو كښې اخته شى ، او كه د گناه تعلق حقوق العباد سره وى نو په هغې كښې يو شرط دادې چې كه د چا مال په ده واجب وى او هغه سړې ژوندې وې نو يا خو دې هغه ته هغه مال واپس كړى يا دې هغه ته اووائى چې هغه ئې ورته معاف كړى ، اوكه هغه ژوندې نه دې او دهغه په وارثانو كښې څوك موجود وى نو هغوئ ته دې واپس كړى . اوكه په وارثانو كښې هم څوك نه وى نو بيت المال كښې دې جمع كړى . اوكه بيت المال هم نشته دې يا دهغې انتظام صحيح نه دې نو هغه پسې دې صدقه كړى . او كه دده په ذمه يو غير مالى حق دې لكه چاته ئې په ناحقه تكليف رسولې دې يا ئې ورته بد رد وئيلى دى يا ئې دهغه غيبت كړې دې نو څنگه چې ممكن وى هغه دې راضى كړى او هغه څخه دې معافى حاصله كړى .

او دا خو هر قسم توبې دپاره ضروري دي چې د ګناه پریخودل د الله ﷻ دپاره وي ، دخپل بدني کمزورئ یا ضعف په وجه نه وي ، او په شریعت کښې اصل مطلوب دادې چې توبه دې د ټولو ګناهونو څخه اوکړی ، لیکن که صرف د یو خاص ګناه څخه توبه اوکړی نو د اهل سنت د مسلك مطابق ددې ګناه ترحده پورې معافي کیږي، او د نورو ګناهونو وبال به په دهٔ باندې وي.

وَلَوْ بَسَطَ اللّٰهُ الرِّزْقَ لِعِبَادِهٖ

| او که فراخه کړې وې الله | رزق | دپاره دبندګانو خپلو

| او که الله ﷻ خپلو بندګانو ته روزي فراخه کولې

لَبَغَوْا فِي الْاَرْضِ وَلٰكِنْ يُّنَزِّلُ بِقَدَرٍ

نو خامخا به سرکشي کړې وه هغوئ | په زمکه کښې | ولیکن نازلوی هغه | په اندازه سره [رزق]

نو هغوئ به په دنیا کښې شرارتونه کول | خو الله ﷻ چې څومره غواړي په یو اندازه رزق نازلوی

مَّا يَشَآءُ ۭ اِنَّهٗ بِعِبَادِهٖ خَبِيْرٌۢ بَصِيْرٌ ۝

هغه | چې غواړي هغه | بیشکه هغه | په بندګانو خپلو باندې | خبردار دې | نظر لرونکې دې

|..........بیشکه هغه [الله] دخپلو بندګانو نه خبردې | او هر څه وینې ګوری

وَهُوَ الَّذِيْ يُنَزِّلُ الْغَيْثَ مِنْۢ بَعْدِ مَا قَنَطُوْا وَيَنْشُرُ

او هغه هغه ذات دې | چې نازلوی باران | پس دهغې نه | چې ناامیده شو هغوئ | او راخوروی

او الله ﷻ هغه ذات دې | چې دخلقو دناامیدئ نه پس باران راوروی | او خپل رحمت

رَحْمَتَهٗ ۭ وَهُوَ الْوَلِيُّ الْحَمِيْدُ ۝ وَمِنْ اٰيٰتِهٖ خَلْقُ

رحمت خپل | او هغه ولي [ذمه وار] دې | ستائیلې شوې دې | او دنښو دهغه نه | پیدا کول

خوروی | او هغه دهرچا کار ساز ستائیلې شوې دې | او د الله ﷻ د [وحدانیت] په نښو کښې

السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا بَثَّ فِيْهِمَا مِنْ دَاۗبَّةٍ ۭ

د آسمانونو | او دزمکې دی | او هغه | چې خواره کړی ئې دی | په دې دواړو کښې | دساه مخلوق

دآسمانونو او د زمکې پیدا کول دی | او د ساه کوم څیزونه چې ئې په دې دواړو کښې خواره کړی دی

وَهُوَ عَلٰي جَمْعِهِمْ اِذَا يَشَاۗءُ قَدِيْرٌ ۝ وَمَآ اَصَابَكُمْ

او هغه | په راغوندولو ددوئ | کله چې اوغواړي | قادر دې | او هغه چې اورسیدو تاسو ته |

او هغه [الله] چې کله اوغواړي نو ددوئ په راجمع کولو قادر دې | او تاسو ته چې کوم مصیبت

مِّنْ مُّصِيْبَةٍ فَبِمَا كَسَبَتْ اَيْدِيْكُمْ وَيَعْفُوْا

څه مصیبت | نو په سبب دهغې عمل دې | چې کسب کړې دې لاسونو ستاسو | او عفوه کوی هغه

رسی | نو دخپل عمل دلاسه در رسی | او دیر داسې ګناهونه دی کوم چې درته الله ﷻ

عَنْ كَثِيْرٍ ۝ وَمَآ اَنْتُمْ بِمُعْجِزِيْنَ فِي الْاَرْضِ ۚ وَمَا لَكُمْ

د ډیرو ګناهونو نه | او نهٔ یئ تاسو | عاجزه کونکی [الله لره] | په زمکه کښې | او نشته تاسو لره |

معاف کوی | او تاسو هغه د زمکې په مخ باندې عاجزه کولې نشئ | او د الله ﷻ نه سوا

مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ مِنْ وَّلِيٍّ وَّلَا نَصِيْرٍ ۝ وَمِنْ اٰيٰتِهِ الْجَوَارِ

بې د الله نه | څوك دوست | ا ونه مدد گار | او د نښو دقدرت دهغه نه | کشتئ [جهازونه] دی

ستاسو هیڅوک ملګری یا مددګار نشته | ............او دهغه په نښو کښې [یوه نښه ستاسو]

فِي الْبَحْرِ كَالْاَعْلَامِ ۝ اِنْ يَّشَاْ يُسْكِنِ الرِّيْحَ فَيَظْلَلْنَ

په دریاب کښی | پشان دغرونو | که اوغواړی هغه | نو اوبه دروی هوا | پس شی به هغه کشتئ

جهازونه دی|چې دغرونو په شان په سمندر کښې روان دی | که هغه اوغواړی| نو بادونه بهٔ اودروی انو

رَوَاكِدَ عَلٰى ظَهْرِهٖ ۗ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّكُلِّ صَبَّارٍ

ولاړې | په شا دهغې [دریاب] | بیشکه په دې کار کښی | خامخا نښې دی | دپاره دهر صبر کونکی

سمندر به په څائې ولاړپاتې شی| په دې کښې دهرصابر شکرګذار بنده دپاره

شَكُوْرٍ ۝ اَوْ يُوْبِقْهُنَّ بِمَا كَسَبُوْا

شکرایستونکی | یا هلاکې [ډوبې] کړی دغه کشتئ | په سبب دهغه بدعمل چی کړې وی هغوئ |

نښې پرتې دی | یا [که اوغواړی نو] ددوئ دعملونو په سبب به دغه جهازونه

وَيَعْفُ عَنْ كَثِيْرٍ ۝ وَّيَعْلَمَ الَّذِيْنَ يُجَادِلُوْنَ

او معافی کوی | د ډیرو ګناهونو | او چی پته اولګی هغه کسانوته | چی جګړی کوی |

تباه کړی| او ډیرو ته بیا هم معافی کوی |او دې دپاره چې کوم خلق زمونږ په آیتونو کښې

فِيْٓ اٰيٰتِنَا ۭ مَا لَهُمْ مِّنْ مَّحِيْصٍ ۝

په آیتونو زمونږ کښی | چه نشته هغوئ لره | هیڅ ځائ دپناه |

جګړې کوی هغوی په دې پوهه شی چې هیڅ خلاصې ورله نشته |

## آسان ترجمه قرآن

او که الله تعالیٰ د ټولو بندګانو دپاره روزی فراخه کړې وې، نو خامخا به زمکه کښې به دوئ سرکشی شروع کړې وه لیکن هغه په یوخاص اندازه کښې څومره چه غواړی، رزق رالیږی. یقیناً هغه په خپلو بندګانو باندې پوره خبردار او په هغوی باندې نظر ساتونکې دې. او هم هغه دې، چه د خلقو د ناامیده کیدو نه پس باران رالیږی. او خپل رحمت خوروی او هم هغه دې چه (د ټولو خلقو) ستاپیلې هوې کارساز دې. او بعضو د نښو دهغه نه، د آسمانونو او زمکې پیدائش دې او هغه ساه لرونکې چه خواره کړې ئې دی په دواړو کښې. او کله چه هغه اوغواړی، ددوی په جمع کولو باندې پوره قدرت لری او تاسو ته چه کوم مصیبت رسیږی، نو هغه ستاسو د خپلو عملونو په سبب رسیږی چه ستاسو لاسونو کړې وی. او د ډیرو کارونو نه الله تعالیٰ معافی کوی. او ستاسو هیڅ مجال نشته چه الله تعالیٰ په زمکه کښې عاجزه کړئ. او د الله تعالیٰ نه سوا ستاسو دپاره نه څوک بچ کونکې هغه. او نه مددګار. او دهغه د نښو نه دادی، چه په سمندر کښې د غرونو په شان جهازونه چلیږی. که هغه اوغواړی، نو هوا به اودروی، پس پاتې به شی دا

کشتۍ د سمندر په ها باندې ولاړې، يقيناً په دې کښې د هر هغه سړي دپاره لوئې نښې دي، چه صبرناک هم وي، او شکر گزار هم. يا (که الله تعالىٰ اوغواړي) نو دې جهازونو لره به دخلقو د بعضو عملونو په وجه تباه کړي او الله تعالىٰ د ډېرو نه معافي کوي. او کوم خلق چه زمونږ په آيتونو کښې جګړې کوي، هغوي ته به پته اولګي چه دهغوي دپاره هيڅ ځائې د بچ کېدو نشته.

## خلاصه تفسير

[او] دالله تعالى دصفت حكمت د اثارونه داده چه دا ټولو بنيادموته زيات مال ورنه كړو څكه چه ﴿وَلَوْبَسَطَ اللّٰهُ الرِّزْقَ لِعِبَادِهٖ لَبَغَوْا فِي الْاَرْضِ﴾ [كه الله تعالى دخپلو ټولو بندګانو دپاره] په موجوده حالت كښې چه لكه د دوى طبيعتو نه دى [رزق فراخه كړې وې نو دغو به] په دنياكښې [شرارت كولو] څكه چه هركله ټول انسانان مالداروې او څوك د چا مطلق محتاجه نه وې نو هيڅوك به د چانه نه ويريدو ﴿وَلٰكِنْ﴾ [ليكن] داې هم ونه كړل چه بالكل ئې چاته څه لږ هم ورنه كړل بلكه﴿يُنَزِّلُ بِقَدَرٍ مَّا يَشَآءُ ؕ﴾ [څومره رزق چه غواړي په] مناسب [انداز سره] هريوته [نازلوى] څكه چه﴿اِنَّهٗ بِعِبَادِهٖ خَبِيْرٌۢ بَصِيْرٌ ۝﴾ [هغه خپلو بندګانو] مصلحتونو [لره پيژندونكې] او ددوى حال [ليدونكې دې ﴿وَهُوَ الَّذِيْ يُنَزِّلُ الْغَيْثَ مِنْۢ بَعْدِ مَا قَنَطُوْا﴾ او هغه داسې] رحيم [دې كوم چه] ډير كرته [دخلقو دنااميده كيدونه پس باران وروى ﴿وَيَنْشُرُ رَحْمَتَهٗ ؕ﴾ او دخپل رحمت] اثار په دنيا كښې [خوروى] د اثارونه مراد نباتات او ميوې ګلونه دى ﴿وَهُوَ الْوَلِيُّ الْحَمِيْدُ ۝﴾ [او هغه] دټولو [كارساز] او په دې كارسازئ [قابل دحمد] او ثنا [دې﴿وَمِنْ اٰيٰتِهٖ خَلْقُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ﴾ اومنجمله د هغه د] قدرت د [نښونه پيداكول دى داسمانونو او دمزكې ﴿وَمَا بَثَّ فِيْهِمَا مِنْ دَآبَّةٍ ؕ﴾ او دځناورو كوم چه هغه په مزكه او اسمانونو كښې خوارهٔ كړى دى ﴿وَهُوَ﴾ او هغه] د قيامت په ورځ په دوباره ژوندى كولو [د هغه] مخلوقاتو ﴿عَلٰى جَمْعِهِمْ اِذَا يَشَآءُ قَدِيْرٌ ۝﴾ [په جمع كولو هم كله چه هغه] جمع كول [وغواړى قادردې او] هغه بدل اخستونكې مګر ورسره معاف كوونكې هم دې چنانچه ﴿وَمَآ اَصَابَكُمْ مِّنْ مُّصِيْبَةٍ﴾ [تاسو ته] اے ګناهګارو [چه كوم مصيبت] حقيقتا [رسيږى ﴿فَبِمَا كَسَبَتْ اَيْدِيْكُمْ وَيَعْفُوْا عَنْ كَثِيْرٍ ۝﴾ نو هغه هم ستاسو د خپلو لاسونو دكړو په وجه رسيږى. او بيا هم په هره ګناه نه بلكه په څنو څنو ګناهونو [او د ډيرو] ګناهونو [نه دركذركوى] خواه په دواړه جهانه يا صرف په دنياكښې [او] كه هغه په ټولو مؤاخذه كول شروع كړى نو﴿وَمَآ اَنْتُمْ بِمُعْجِزِيْنَ فِي الْاَرْضِ ۚ﴾ [تاسو] د [مزكې] په يوه حصه [كښې] په پناه اخستو سره [هغه لره نه شى كمزورې كولې او] په داسې وخت كښې به ﴿وَمَا لَكُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ مِنْ وَّلِيٍّ وَّلَا نَصِيْرٍ ۝﴾ [دالله تعالى نه سوا ستاسو څوك حامى مددګارنه وى ﴿وَمِنْ اٰيٰتِهِ الْجَوَارِ فِي الْبَحْرِ كَالْاَعْلَامِ ۝﴾ اومنجمله د هغه د] قدرت د [نښو نه جهازونه دى په سمندركښې] داسې اوچت [لكه غرونه] مراد دادې چه د دغو په سمندر كښې تلل دليل دې دالله تعالى د عجيبه صنعت كارى ورنه﴿اِنْ يَّشَاْ يُسْكِنِ الرِّيْحَ﴾ [كه هغه وغواړى نو هوا لره به ودروى ﴿فَيَظْلَلْنَ رَوَاكِدَ عَلٰى ظَهْرِهٖ ؕ﴾ نو هغه] جهازونه [به سمندر په سطح ولاړپاتې شى] داد هغه كار دې چه هوا لره چلوى او په دې سره هغه جهازونه چليږى ﴿اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ﴾ [بيشكه په دې كښې] په قدرت دلالت كوونكې [نښې دى ﴿لِّكُلِّ صَبَّارٍ شَكُوْرٍ ۝﴾ دهرصبر كوونكى او شكر كوونكى] يعنى مؤمن [دپاره] ددې تشريح د سوره لقمان په اخرى ركوع كښې ددې قسمه جملې لاند تيره شوې ده غرض كه هغه

وغوارې نو هوا به بنده کړي جهازونه به اودروی ﴿أَوْ﴾[يا] که هغه وغوارې نو تيزه هوا به راولي ﴿يُوبِقْهُنَّ بِمَا كَسَبُوا﴾[هغې جهازونه] سورلي [الره به د هغوی د] بدو [عملونو] کفر وغيره [په سبب تباه کړي او] په دوی کښې ﴿وَيَعْفُ عَنْ كَثِيرٍ﴾[د ډيرو بنيادمونه درگذر کوی] يعنی دغه وخت غرق نه شی اگر چه په آخرت کښې به سزا مومی [او] ددې تباهئ په وخت کښې [به ﴿وَيَعْلَمَ الَّذِينَ يُجَادِلُونَ فِي آيَاتِنَا﴾ هغو خلقو ته کوم چه زمونږ په ايتونو کښې جگړې راوباسی معلومه شی چه] اوس ﴿مَا لَهُمْ مِنْ مَحِيصٍ﴾[د هغوی دپاره چرې د بچاؤ] صورت [نشته] خکه چه په داسې وختونو کښې به هغوی هم خپل خيالی شريکان عاجزگڼل

## معارف او مسائل

**ربط او شان نزول** :: دې آيتونو مبارکو کښې الله ﷻ دعقيدۀ توحيد ثابتولو دپاره دخپل حکمت بالغه ذکر فرمائيلې دې. چې ددې په ذريعه هغه لوئې ذات دا کائنات په يو مستحکم نظام کښې اچولې دې. او مقصد دادې چې دکائناتو دا مستحکم نظام ددې خبرې دليل دې چې داسې يو حکيم او خبير ذات شته دې چې هغه دا چلوی.

ددې مضمون ابتداء الله ﷻ د خپل دې معيشت نظام طرفته اشاره کولو سره فرمائيلې ده کوم چې هغه لوئې ذات پخپل حکمت سره دنيا کښې جاری کړې دې. اودا مضمون مخکښنو آيتونو سره دا شان جوړښت ساتی چې مخکښينو آيتونو کښې ددې خبرې بيان وو چې الله ﷻ د مؤمنانو عبادت قبلوی. او په دې کښې دهغوئ د دعاگانو قبوليت هم داخل دې. اوس دلته دا اشکال کيدې شو چې دا خبره ډيره په مشاهده کښې راغلې ده چې مسلمان دخپل څه دنياوی حاجت د پاره دعا کوی خو هغه مقصد نه پوره کيږی. ددې اشکال جواب مذکوره آيتونو کښې په اولنی آيت مبارك کښې ورکړې شوې دې. او دهغې خلاصه داده چې د انسان هر خواهش پوره کيدل څينې وخت کښې پخپله د انسان د انفرادی يا اجتماعی مصلحت خلاف وی. نو که د يو انسان يو دعا قبوله نشی نو په دې کښې د کائنات ډير عظيم مصلحتونه وی او هغه صرف هغه لوئې عليم او خبير ذات ته معلوم دی. که ددنيا هر انسان ته هر قسم نعمتونه ورکړې شی نو دې سره د دنيا دانظام چليدې نشی. [تفسير کبير][1].

چنانچه څينې روايتونو څخه ددې تائيد کيږی چې دا آيت مبارك د مؤمنانو باره کښې نازل شوې وو، چې هغوئ به دکافرانو مال دولت اوکتلو او خواهش بۀ ئې کولو زمونږ ته دې هم داشان فراخی حاصله شی. امام بغوی رحمه الله د خباب بن ارت رضی الله عنه دا قول نقل کړې دې چې کله مونږ د بنو قريظه، بنونضير او بنو قينقاع مال دولت اوکتل نو زمونږ په زړونو کښې هم دا خواهش پيدا شو چې کاش مونږ هم مالدار وې. نو په دې باندې دا آيت مبارك نازل شو. او عمرو بن حريث رضی الله عنه فرمائی چې اصحاب صفه کښې څينې حضراتو نبی کريم ﷺ ته ددې خواهش اظهار کړې وو چې الله ﷻ مونږ مالداره کړی. نو په دې باندې دا آيت مبارك نازل شو. [روح المعانی وغيره][2]

[1]) تفسير کبير للرازی: ج ۱۳، ص ٤٣٦

[2]) روح المعانی: ج ۱۸، ص ۲۷۳، وتفسير البغوی تحت هذه الآية: ج ۷،ص ۱۹٤

**دنیا کښې د دولت زیاتوالی د فساد سبب دی** :: بهر حال آیت مبارك کښې دا ارشاد کړې شوې دې چې که په دنیا کښې هر انسان ته هر قسم نعمت په فراخۍ سره ورکړې شی نو دوئ به خپلو کښې یو بل سره فساد شروع کړی. ځکه چې د زیات دولت په وجه به نه څوك د چا محتاج وې او نه به چا د بل زور منلو. بل طرفته د مالدارۍ یو خاصیت دادې چې څومره دولت زیاتیږی ، دومره ورسره حرص هم زیاتیږی. او ددې نتیجه بهٔ لازمی دا وه چې د یو بل په مالونو به دقبضې کولو دپاره حملې کولې. جنګ جګړې ، سرکشۍ ، او نور بدعملونه به د حد څخه زیات شوی وې. په دې وجه الله ﷻ هر سړی ته د هر قسمه رزق کولو په ځائې دا نعمتونه ئې پخپلو بندګانو باندې تقسیم کړی دی ، چا سره مال زیات دی ، څوك په قوت کښې د بل څخه زیات قوی دې ،د چا ته ئې حسن وجمال ورکړې دې ، چا د علم و حکمت دولت دنورو څخه زیات دې. غرض دا چې هر سړې څه نه څه صورت کښې د بل محتاج دې. او په دې باهمی احتیاج باندې تمدنی عمارت قائم دې:

د ﴿وَلٰكِنْ يُّنَزِّلُ بِقَدَرٍ مَّا يَشَآءُ﴾ مطلب هم دادې چې الله ﷻ خپل نعمتونه په یو خاص اندازې سره ددنیا په خلقو نازل کړی دی. او مخکښې فرمائی چې: ﴿إِنَّهٗ بِعِبَادِهٖ خَبِيْرٌ بَصِيْرٌ﴾ [بیشکه هغه خپل بندګان ښه پیژنی او کتوونکی دې] دې کښې ئې دې طرفته اشاره کړې ده چې چا دپاره کوم کوم نعمت مناسب دې او کوم ورله نقصانی دې ؟ الله ﷻ هر سړی ته مناسب نعمتونه ورکړی دی. او هغه عظیم ذات که د چا نه یو نعمت اخستې دې نو هغې کښې د ټول عالم مصلحت پټ دې. او دا بالکل ضروری نه دی چې د هر سړی باره کښې مصلحت دی زمونږ به پوهه کښې راشی ځکه چې هر انسان د خپلو معلوماتو په یو محدوده دائره کښې سوچ کولې شی. او دالله ﷻ په وړاندې د ټول کائنات مصلحتونه دی. په دې وجه دهغه لوئې ذات ټولو حکمتونو ته رسیدل ممکن نه دی. ددې یو مثال داسې دې چې اکثر دملك یو دیانتدار سرابراه داسې احکام جاری کړی چې هغه د ځینو خلقو خلاف وی. اودهغې په وجه هغوئ په مسائلو کښې راګیر شی. په دې وجه کوم چې ددې مسائلو په زد کښې راغلې وې هغه صرف د خپلې دائره کار مطابق سوچ کوی نو په دې وجه هغه ته ممکن دی چې د ملك د سربراه دا اقدام ورته ښه محسوس نه شی. خو چې د کوم کس نظر په ټول ملك باندې وی او هغه دا وائی چې صرف دیو سړی په مفادو باندې ټول ملك نشی قربان کولې نو هغه به دې اقدام ته غلط نه وائی. اوس چې کوم عظیم ذات د اکائنات چلوی دهغه دحکمتونو احاطه به مونږ ځنګه کولې شو؟ که چرې دا نکته په ذهن کښې وی نو هغه وهمونه او وسوسې به پخپله ختمې شی چې په دنیا کښې یو کس په مصیبت کښې اووینی او هغې څخه پیدا کیږی.

ددې آیت مبارك نه دا هم معلوم شو چې دا ممکن نه دی چې ټول انسانان دې په مال و دولت کښې یو شان وی. نه مطلوب او نه د عالم تکوینی مصلحتونه ددې تقاضا کوی. ددې مسئلې پوره تفصیل به ان شاء الله د سورة زخرف آیت مبارك ﴿نَحْنُ قَسَمْنَا بَيْنَهُمْ مَّعِيْشَتَهُمْ﴾ کښې راشی.

**دجنت او دنیا فرق** :: دې ځائې کښې دا اشکال کیدې چې په جنت کښې به ټولو انسانو ته ښه ډیر انعامات ورکولې شی. نو هلته ددې نه فساد ولې نه جوړیږی ؟ ددې جواب دادې چې په دنیا کښې د فساد سبب مال او دولت وی او دې سره سره د حرص هغه جذبات وی کوم چې په عمومی توګه زیات دولت سره پیدا کیږی. ددې په خلاف جنت کښې خو به د نعمتونو باران

وي ، خو د حرص او سرکشۍ دا جذباب به هلته ختم شي . هلته به دا فساد نه جوړيږي . حکيم الامت اشرف علی تهانوی ﷫ خلاصه تفسير کښې د [بحالات موجوده] الفاظ هم په دې وجه زيات کړی دی او دې طرفته ئې اشاره کړې ده . [بيان القرآن](١).

نو دې ځائې کښې دا اعتراض بالکل فضول دې چې هر کله په دنيا کښې مال دولت زيات کړې شو نو دې سره د حرص جذبات ولې ختم نه کړې شو . ځکه چې ددنيا دپيدا کولو مقصد هم دادې چې يو داسې جهان پيدا کړی چې د خير او شر قوتونو نه مرکب وی . ددې نه بغير د انسان هغه آزمائش ممکن نه دې کوم چې د عالم د تخليق مقصد دې . که دلته د انسانانو نه دا جذبات ختم کړې شی نو د دنيا دپيدا کولو اصلی مقصد به فوت شي . ددې په خلاف جنت به صرف په خير باندې مشتمل وی . په دې وجه به هلته دا جذبات ختم کړې شی .

﴿وَهُوَ الَّذِي يُنَزِّلُ الْغَيْثَ مِنْ بَعْدِ مَا قَنَطُوا﴾ او هغه داسې ذات دې چې د خلقو د نااميدئی نه پس باران وروی . هسې خو د الله ﷻ عام عادت دې چې کله زمکې ته اوبو سخت ضرورت وی نو باران وروی . خو دلته ئې اوفرمائيل چې د مااميده کيدو نه پس ، دې کښې دې طرفته اشاره ده چې کله کله الله ﷻ په باران ورولو کښې د عام عادت نه خلاف دومره تاخير اوکړی چې خلق تړې نااميده شی . په دې کښې يو آزميښت دې او بل ددې نه علاوه په ې کښې يو تنبيه وی چې باران او قحط صرف د الله ﷻ په قدرت سره رازی . هغه لوئې ذات چې کله اوغواړی نو د خلقو د بدعملونو په وجه باران نه وروی . او ددې وجه دا وی چې خلق د الله ﷻ رحمت طرفته متوجه شی او هغه زاری ګانې او عاجزئی اوکړی . که د باران څه وخت مقرر وې او ددې نه انحراف نه وې نو خلقو به دا خالص دظاهری اسبابو تابع ګڼړلو او د الله ﷻ دقدرت نه بې توجه کيدل . او دې ځائې کښې د نااميد نه مراد د خپلو تدبيرونو نه نااميده کيدل دی ، ګنی د الله ﷻ د رحمت نه نااميده کيدل کفر دې .

﴿وَمَا بَثَّ فِيهِمَا مِنْ دَابَّةٍ﴾ ، ﴿دَابَّةٍ﴾ اصل لغت کښې هر هغه څيز ته وئيلې کيږی چې هغه پخپل اختيار سره چليږی او حرکت کوی . روستو دا لفظ صرف څناورو دپاره استعمال شوېدې . دې آيت مبارك کښې آسمان او زمکې دواړو ته نسبت کړې شوې دې او وئيلې شوی دی چې الله ﷻ په دې کښې ډير حرکت کوونکی مخلوقات پيدا کړی دی . په زمکه چې کوم مخلوقات دی هغه خو ښکاره دی ، او په آسمان کښې ددې نه مراد ملائکې کيدې شی . اودا هم کيدې شی چې په آسمان کښې داسې څناور موجود وی چې تر اوسه پورې انسان نه وی ليدلی .

بهر حال مقصد دادې چې ددې عالم د نظام په مصلحت کښې الله ﷻ دهر انسان په مال او دولت کښې وسعت نه دې راوستې بلکه يو حکيمانه انداز سره ئې په دوئ کښې رزق تقسيم کړې دې . خو کائنات کښې چې کوم څيزونه د عمومی فائدې دی ، دهغې فائده هر کس ته رسيدلې ده . باران ، وريځ ، زمکه ، آسمان او ددې ټول مخلوقات ئې د انسان فائدې دپاره پيدا کړی دی . اودا ټول څيزونه د الله ﷻ په وحدانيت باندې دليلونه دی . اودې نه روستو که يو کس ته څه تکليف رسی نو هغه به د هغه خپله بد عملی وی . نو د الله تعالی نه د شکايت کولو په ځائې خپل ګريوان کښې کتل پکار دی .

---

(١) بيان القرآن: ج ١٠، ص ٧٣

﴿وَمَآ اَصَابَکُمۡ مِّنۡ مُّصِیۡبَةٍ فَبِمَا کَسَبَتۡ اَیۡدِیۡکُمۡ وَیَعۡفُوۡا عَنۡ کَثِیۡرٍ﴾ ددې هم دا مطلب دې ، حسن رضی الله عنه نه روایت دې چې کله دا آیت مبارك نازل شو نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې په هغه ذات مې دې قسم وی چې د هغه په قبضه کښې زما ساه ده ، کله چې یو کس په یو لرګی سره زخمی شی یا ئې یو رګ اووهلې شی یا ورسره ویره شی ،نو دا ټول دده د ګناهونو په وجه وی ، او د هرې ګناه سزا الله تعالی نه ورکوی بلکه چې کومه معاف کوی هغه د هغې نه ډیر زیات دی چې په کومې باندې الله ﷻ سزا ورکوی[1] . اشرف المشائخ فرمائیلی دی چې څنګه بدنی تکلیفونه او پریشانئ دګناهونو په سبب راځی ، داشان باطنی مرضونه هم د ګناهونو نتیجه ده[2] . کله چې یو سړی نه یوه ګناه اوشی نو هغه د بلې ګناه کیدو سبب جوړیږی . لکه څنګه چې حافظ ابن قیم رحمه الله په الدواء الشافی کښې لیکلی دی چې د ګناه یوه نقده سزا دا وی چې یوې نه پس په بله ګناه کښې اخته شی . او دا شان د نیکئ نقده سزا دا وی چې یوه نیکئ بلې نیکئ لره رابنکلې .

بیضاوی رحمه الله وغیره فرمائیلی دی چې داآیت مبارك هغه خلقو دپاره خاص دې چې دهغوئ نه ګناهونه کیږی[3] . انبیاء علیهم السلام چې دګناهونونه پاك دی ، یا نابالغه بچی او لیونی چې دهغوئ نه ګناه نه کیږی ، هغوئ ته چې کوم تکلیف او مصیبت اورسی نو هغه په دې حکم کښې داخل نه دی . دې کښې نور سببونه او حکمتونه وی . لکه د درجو اوچتوالئ ، او حقیقت کښې ددې حکمتونو احاطه انسان نشی کولې . [و الله اعلم].

**فائده** :: دحدیث په ځینې روایتونو کښې دی چې په کومو ګناهونو باندې په دنیا کښې سزا ورکولې کیږی ، مؤمن دپاره په آخرت کښې هغه دپاره معافی کیږی . لکه چې حاکم رحمه الله په مستدرك کښې او بغوی رحمه الله د علی رضی الله عنه نه مرفوعا نقل کړی دی . [مظهری][4].

| فَمَآ اُوۡتِیۡتُمۡ | | | | |
|---|---|---|---|---|
| پس هغه چې درکړې شوې دې تاسو ته | | | | |
| غرض دا چې څه تاسو ته | | | | |
| مِّنۡ شَیۡءٍ | فَمَتَاعُ | الۡحَیٰوةِ الدُّنۡیَا | وَمَا عِنۡدَ اللّٰهِ | خَیۡرٌ |
| څه ځیز | پس هغه سامان دې | دژوند ددنیا | او هغه چې دالله سره دی | هغه بهتر دی |
| درکړې شی | هغه تش ددنیا ساز وسامان دې | او الله ﷻ سره چې کوم نعمتونه دی هغه غوره او باقی پاتې کیدونکی | | |
| وَّاَبۡقٰی | لِلَّذِیۡنَ | اٰمَنُوۡا | وَعَلٰی رَبِّهِمۡ | |
| او باقی پاتې کیدونکې دی | دپاره دهغه کسانو | چې ایمان ئې راوړې وی | او په رب خپل باندې | |
| نعمتونه دی | هغه نعمتونه دهغه چا دپاره دی | چې ایمان راوړی او په خپل رب | | |

[1] ) تفسير البغوى تحت هذه الآية: ج ٧،ص ١٩٥، وكنز العمال، رقم الحديث: ٨٦٧٠، وشعب الإيمان للبيهقى، رقم الحديث: ٩٤٧٥

[2] ) بيان القرآن: ج ١٠، ص ٧٣

[3] ) تفسير البيضاوى تحت هذه الآية: ج ٥، ص ١٥٥

[4] ) المستدرک للحاکم، رقم الحديث: ٣٦٢٢، وتفسير البغوى: ج ٧، ص ١٩٦، والمظهرى: ج ٨، ص ٣٢٦

يَتَوَكَّلُوْنَ ۞ وَالَّذِيْنَ يَجْتَنِبُوْنَ كَبٰٓئِرَ الْاِثْمِ

بروسه کوی | او دپاره دهغه کسانو | چی خان ساتی هغوئ | دغټو ګناهونو نه |

باندې بهروسه کوی | اوخوک چې د لويو لويو ګناهونو او دبې شرمئ د خبرونه

وَالْفَوَاحِشَ وَاِذَا مَا غَضِبُوْا هُمْ يَغْفِرُوْنَ ۞

او دبې حيايئ دکارونو نه | او هر کله چی | غصه شی هغوئ | نو هغوئ معاف کول کوی |

خان بچ ساتی | اوکله چې هغوئ غصه شي نو معافي کوی

وَالَّذِيْنَ اسْتَجَابُوْا لِرَبِّهِمْ وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَاَمْرُهُمْ

او دپاره دهغه کسانو | چی حکم منی | درب خپل | او قائيموی مونځ | اوکار [معاملات] دهغوئ

او خوک چې دخپل رب حکم منی | اودمونځ پابندی کوی | اوهرکار پخپلو کښې

شُوْرٰى بَيْنَهُمْ وَمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ

په مشوره سره وی | په منځ دهغوئ کښی | او خينی دهغه رزق نه | چی ورکړې دې مونږ هغوئ ته |

په مشورې سره کوی | اومونږ چې څۀ ورکړی دی دهغې نه [د الله په لار کښې] خرڅ

يُنْفِقُوْنَ ۞ وَالَّذِيْنَ اِذَآ اَصَابَهُمُ الْبَغْيُ هُمْ

خرچ کوی | او دپاره دهغه کسانو | کله چی | اورسی هغوئ ته | ظلم زياتي | نو هغوئ |

کوی | اوداسې خلق چې ظلم زياتي پرې اوکړې شی نوپه برابر بدله اخلی [ظلم نه کوی]

يَنْتَصِرُوْنَ ۞ وَجَزٰٓؤُا سَيِّئَةٍ سَيِّئَةٌ مِّثْلُهَا فَمَنْ

مقابله کوی دهغې | او بدله | دبدئ | بدی ده | په مثل دهغې | پس چاچی |

........................ | او دبدئ بدله هم هغه شان په بدئ سره ورکول دی | ..........خوخوک چې

عَفَا وَاَصْلَحَ فَاَجْرُهٗ عَلَى اللّٰهِ اِنَّهٗ لَا يُحِبُّ

معافي اوکړه | او اصلاح ئې اوکړه | پس اجر دهغې | په الله باندې دې | بيشکه هغه | نۀ خوښوی

معافي اوکړی | او اصلاح اوکړی | نود هغه اجر د الله ﷻ سره دی | بيشکه الله تعالی ظالمان نه

الظّٰلِمِيْنَ ۞ وَلَمَنِ انْتَصَرَ بَعْدَ ظُلْمِهٖ

ظالمان | او خامخا هغه څوک چی بدل ئې واغستو | روستو دظلم کيدونه په هغه باندې |

خوښوی | ......... اوچا چې د مظلوم کيدو نه پس دهغې

فَاُولٰٓئِكَ مَا عَلَيْهِمْ مِّنْ سَبِيْلٍ ۞ اِنَّمَا السَّبِيْلُ

نو دغه کسان چی دی | نشته په هغوئ باندې | څه لار دملامتيا | بيشکه | لار دملامتيا |

هومره بدله واخسته | نو په هغه کسانو هيڅ الزام ملامتيا نشته | ملامتيا خو بس په هغه چا راځي

عَلَى الَّذِيْنَ يَظْلِمُوْنَ النَّاسَ وَيَبْغُوْنَ فِي الْاَرْضِ

په هغه کسانو باندې ده | چی ظلم کوی په خلقو باندې | او زياتې کوی | په زمکه کښی |

چې په خلقو باندې زياتې کوی | اوناحقه په زمکه کښې فساد خوروی

| بِغَيْرِ الْحَقِّ ؕ | أُولَٰٓئِكَ | لَهُمْ | عَذَابٌ أَلِيمٌ ۝ | وَلَمَنْ |
|---|---|---|---|---|
| په ناحقه سره | دا کسان چې دی | دهغوئ دپاره دي | عذاب دردناك | او خامخا هغه څوك |

داسې خلقو دپاره دردناک عذاب مقرر دي | ..................... اوڅوک چې

| صَبَرَ | وَغَفَرَ | إِنَّ ذَٰلِكَ | لَمِنْ عَزْمِ الْأُمُورِ ۝ |
|---|---|---|---|
| چې صبر ئې اوکړو | او معافي ئې اوکړه | بیشکه دا کار | خامخا دغوره کارونو نه دي |

صبر اوکړی | اومعافي اوکړی | نودا ډیر د اوچتو کارونو څخې دي |

## آسان ترجمه قرآن

غرض دا چه تاسو ته کوم څیز درکړې شوې دې، هغه د دنیوی ژوند سامان دې، او څه چه الله تعالیٰ سره دی، هغه د هغې خلقو دپاره بهتر او پائیدار دی، چه ایمان ئې راوړې دې، او په خپل پروردګار باندې توکل کوی. او کوم خلق چه د لویو ګناهونو او د بې حیایۍ د کارونو نه پرهیز کوی، او کله چه هغوی ته غصه راشی، نو د معافۍ نه کار اخلی او کومو چه دخپل پروردګار خبره منلې ده، او مونځ ئې قائم کړې دې، اودهغوی معاملات په خپلو کښې مشورې سره تېاکلې کیږی او مونږ چه هغوی ته کوم رزق ورکړې دې، دهغې نه هغوی (د نیکۍ په کارونو کښې) خرچ کوی. او کله چه په هغوی باندې څه زیاتې کیږی، نو خپله دفاع کوی. او بدله د بدۍ د هغې پشان بدی ده بیا هم چه څوک معافي اوکړی، او د اصلاح نه کار واخلی، نو دهغه ثواب الله تعالیٰ په خپله ذمه اخستلې دې، یقیناً هغه ظالمانو لره نه خوښوی او کوم سړې چه په خپل ځان باندې ظلم کیدو نه پس (د برابرۍ) بدله واخلی، نو په داسې خلقو باندې هیڅ الزام نشته الزام خو په هغې کسانو باندې دې، چه په خلقو ظلم کوی، او په زمکه کښې فساد کوی په ناحقه سره، دداسې خلقو دپاره دردناک عذاب دې او دا حقیقت دې، چه څوک د صبر نه کار واخلی، او معافي اوکړی، نو دا د لوئې همت خبره ده.

## خلاصه تفسیر

او تاسو ښره اوریدلی دی چه د دنیا دطالب هره دنیوی تمنا نه پوره کیږی او داخرت نه محروم وی او د اخرت طالب ترقی کوی دارنګ تاسو اوریدلی دی چه د دنیا دزیات سامان انجام ښه نه وی اکثر په دې سره مضر عملونه پیداکیږی [پس] ددې نه ثابته شوه چه دنیادمطلوب جوړولو قابله نه ده بلکه اخرت دې او باقی د دنیاد څیزونو نه ﴿فَمَآ أُوتِيتُم مِّن شَيْءٍ فَمَتَاعُ الْحَيَوٰةِ الدُّنْيَا﴾ [تاسو له چه څه درکولې شی هغه محض] د څو ورځو [ددنیوی ژوند سامان دې] چه دعمر ختمیدو سره به ددې هم خاتمه وشی ﴿وَمَا عِندَ اللَّهِ خَيْرٌ وَأَبْقَىٰ﴾ [او څه چه] اجر او ثواب په اخرت کښې [دالله تعالی سره دی هغه په ډیرو درجو ددې نه] د کیفیت په اعتبار سره هم [غوره دی او] د کمیت په لحاظ سره هم [زیات پائیدار] یعنی همیشه پاتې کیدونکی دی پس ددنیا طلب پریږدئ او داخرت طلب کوئ مګر داخرت د حصول دپاره دکم نه کم شرط خو ایمان راوړل اوکفر پریښودل دی او داخرت دمکملو درجو دپاره تول واجبات او فرائض اختیارول او تول ګناهونه پریښودل ضروری دی او دتقرب د درجوحاصلولو دپاره نفلی عبادتونه اختیارول او خلاف اولی مباحات پریښودل هم غوره دی چنانچه [هغه] ثواب د کوم تفصیل چه ښره تیرشو

﴿لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَلٰى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُوْنَ﴾ [د هغوخلقو دپاردې کوم چه ایمان راوړی او په خپل رب توکل کوی ﴿وَالَّذِيْنَ يَجْتَنِبُوْنَ كَبٰٓئِرَ الْاِثْمِ وَالْفَوَاحِشَ﴾ اوکوم چه د کبیره گناهونونه او] په دې کښې [د بې حیایئ د خبرو نه] بالخصوص زیات [ځان ساتی ﴿وَاِذَا مَا غَضِبُوْا هُمْ يَغْفِرُوْنَ﴾ اوکله چه هغوی ته غصه راشي نو معافی کوی ﴿وَالَّذِيْنَ اسْتَجَابُوْا لِرَبِّهِمْ﴾ اوکومو خلقو چه دخپل رب حکم ومنلو ﴿وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ﴾ او هغوی دمونځ پابند دی ﴿وَاَمْرُهُمْ شُوْرٰى بَيْنَهُمْ﴾ او دهغوی هر] هغه [کار] په کوم کښې چه دالله تعالی دطرف نه څه معین حکم نه وی [په خپل مینځ کښې په مشوره سره وی ﴿وَمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ﴾ اومونږ چه څه دوی له ورکړی دی هغوی په هغې کښې خرڅ کوی ﴿وَالَّذِيْنَ اِذَآ اَصَابَهُمُ الْبَغْيُ﴾اوکوم چه داسې] منصف [دی چه کله په هغوی] د چا دطرف نه څه [ظلم وشی ﴿هُمْ يَنْتَصِرُوْنَ﴾نو هغوی] که بدله اخلی نو [برابربدله اخلی] زیاتې نه کوی او دامطلب نه دې چه معافی نه کوی [او] د سرېه سر بدلې اخستو دپاره مونږه دا اجازت ورکړې دې چه ﴿وَجَزٰٓؤُا سَيِّئَةٍ سَيِّئَةٌ مِّثْلُهَا﴾[د بدئ بدله بدی ده د هغې په شان] په دې شرط چه دغه کار بذات خود گناه نه وی [بیا] د بدل اخستو داجازت باوجود ﴿فَمَنْ عَفَا وَاَصْلَحَ﴾[کوم سړې چه معافی وکړی او] په خپل مینځ کښې دمعاملې [اصلاح وکړی] چه دښمنی پرې ختمه شی او دوستی جوړه شی ﴿فَاَجْرُهٗ عَلَى اللّٰهِ﴾[نو ددې ثواب] د وعدې مطابق [دالله تعالی په ذمه دې] او ځوك چه په بدله اخستو کښې زیاتې وکړی نو دا واوریئ چه ﴿اِنَّهٗ لَا يُحِبُّ الظّٰلِمِيْنَ﴾ [واقعی الله تعالی ظالمانو لره نه خوښوی ﴿وَلَمَنِ انْتَصَرَ بَعْدَ ظُلْمِهٖ فَاُولٰٓئِكَ مَا عَلَيْهِمْ مِّنْ سَبِيْلٍ﴾ او ځوك چه] زیاتې نه کوی بلکه [په خپل ځان د ظلم کیدو نه پس برابر په برابر بدله واخلی پس په داسې خلقو هیڅ الزام نشته ﴿اِنَّمَا السَّبِيْلُ عَلَى الَّذِيْنَ يَظْلِمُوْنَ النَّاسَ﴾ الزام صرف په هغو خلقو دې کوم چه په خلقو باند ظلم کوی] خواه د ابتداء نه یا دبدل اخستو په وخت کښې ﴿وَيَبْغُوْنَ فِى الْاَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ﴾[او په ناحقه په دنیاکښې سرکشی] اوتکبر[کوی] گرځی او داتکبر دظلم سبب شی او ناحقه یې ځکه ووئیل چه سرکشی اوتکبر همیشه په ناحقه وی وړاند ددې الزام بیان دې چه ﴿اُولٰٓئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ﴾[دداسې خلقو دپاره دردناك عذاب] مقرر [دې ﴿وَلَمَنْ صَبَرَ وَغَفَرَ﴾ اوکوم سړې چه] د بل په ظلم [صبر وکړی او معافی وکړی ﴿اِنَّ ذٰلِكَ لَمِنْ عَزْمِ الْاُمُوْرِ﴾ دا البته دلوئ همت د کارونو نه دې] یعنی داسې کول غوره او د اولوالعزمئ تقاضا ده.

**معارف او مسائل**

مذکوره آیتونو مبارکو کښې فرمائیلې شوی دی چې ددنیا نعمتونه ناقص او فانی دی ، او ددې په مقابله کښې د آخرت نعمتونه کامل او دائمی دی. او د آخرت د نعمتونو دحاصلولو دپاره د ټولو نه لوئې شرط ایمان دې ، ددې نه بغیر دا نعمتونه به هلته نه ملاویږی. خو که ایمان سره سره ئې نیك عملونه هم اوکړل نو د آخرت دا نعمتونه بهٔ اول ملاویږی. گنی د خپلو گناهونو او کوتاهیانو سزا خوړلو نه پس به ورته دا ملاویږی. په دې وجه مذکوره آیتونو مبارکو کښې اول شرط ﴿الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا﴾ فرمائیلې دې. دې نه پس دخاص خاص نعمتونو ذکر دې. او چې د هغې نه بغیر د ضابطې مطابق به د آخرت نعمتونه سمدستی نه ملاویږی بلکه د خپلو گناهونو سزا خوړلو نه پس به ملاویږی. او د ضابطې مطابق په دې وجه اووئیلې شو چې که الله ﷻ اوغواړی نو ټول گناهونه معاف کولوسره د شروع د آخرت نعمتونه لوئې لوئې

فاسقانو ته هم ورکول شي. او هغه د څه قانون پابند نه دي. اوس هغه او صفات اوګورئ دکوم چې دې خائې کښې ذکر شوې دي.

**دوېم صفت:** ﴿وَعَلٰى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُوْنَ﴾ يعنې په هر کار او هر حال کښې په الله تعالى باندې بهروسه لرئې. او دهغه نه سوا بل هيڅا لره کارسازنه جوړوي.

**دوېم صفت:** ﴿وَالَّذِيْنَ يَجْتَنِبُوْنَ كَبٰٓئِرَ الْاِثْمِ وَالْفَوَاحِشَ﴾ يعنې څوك د کبيره ګناهو نه او د بې حيائي دکار نه ډډه کوي. کبيره ګناه څه ته وائې ؟ ددې تفصيل په سورة نساء وغيره کښې مخکښې تير شوې دې او احقر په يوه مختصره رساله کښې د کبيره او صغيره ګناهونو يو فهرست ليکلې دې. او هغه رساله په ګناه بې لذت نوم سره شائع شوې ده.

کبيره ګناهونو کښې خو ټول ګناهونه شامل وو خو ﴿فَوَاحِش﴾ ئې په کښې خانله بيان اوفرمائيله دې کښې حکمت دادې چې ﴿فَوَاحِش﴾ د عامو ګناهونو نه زياته سخته ګناه ده. او دا د يو متعدي مرض پشان وي. او دې نه نور خلق هم متاثر کيږي. د ﴿فَوَاحِش﴾ لفظ هغه ګناهونو دپاره استعماليږي چې په هغې کښې بې حيائي وي لکه زنا او ددې مقدمات. او دا شان هغه بد عملونه چې په زرورتيار سره اوکړې شي هغه هم په فواحش کښې رازي، د هغې وبال هم ډير سخت او پوره انساني معاشرې دپاره خطرناك دې.

**دريم صفت:** ﴿وَاِذَا مَا غَضِبُوْا هُمْ يَغْفِرُوْنَ﴾ يعنې کله چې هغوئ ته غصه راشي نو معاف کوي. دا د ښو اخلاقو يوه اعلى نمونه ده. ځکه چې په چا باندې غصه يا چا سره محبت دواړه غالب راشي نو بيا ښه او عاقل او فاضل سړې هم ړوند کونړ شي هغه په جائز، ناجائز، حق او باطل او دخپل کار په نتيجه باندې غور کولو نه محرومه شي. څوك چې چا ته غصه شي نو کوشش کوي چې په هغه باندې ښه غصه سړا کړي. د نيکانو صالحانو دا صفت بيان شوې دې چې هغوئ صرف په دې باندې هم اکتفاء نه کوي چې دغصې په وخت کښې د حق او ناحق په حد باندې قائم وي بلکه خپل حق کيدلو سره بيا هم معاف کوي.

**څلورم صفت:** ﴿وَالَّذِيْنَ اسْتَجَابُوْا لِرَبِّهِمْ وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ﴾ د استجابت نه مراد دادې چې د الله ﷻ نه کوم حکم ملاؤ شي نو په هغې کښې هډو [د سره] خبرې نه کوي او هغه زر تر زره قبلوي او په هغې باندې عمل کوي. که هغه دخپل طبيعت مطابق وي او که خلاف وي، په هر حال کښې دهغې تعمل کوي. دې کښې د اسلام د ټولو فرائضو ادائيګي، او ټولو محرماتو او مکروهاتو نه بچ کيدل شامل دي چونکه په فرائض کښې مونځ ټولو نه لهم فرض دې. او په دې کښې يوه خاص خبره دا هم ده چې په دې باندې عمل کولو سره د فرضو پابندي او دممنوعه څيزونو نه د بچ کيدو توفيق ورته کيږي. ځکه دې ته ئې يو ممتاز حيثيت ورکړو. ﴿وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ﴾ يعنې دا خلق مونځ لره ددې د فرائضو او واجباتو سره صحيح صحيح ادا کوي.

**پنځم صفت:** ﴿وَاَمْرُهُمْ شُوْرٰى بَيْنَهُمْ﴾ يعنې خپل کارونه په مشورې سره کوي. شورى بروزن بشرى مصدر دې. تقدير د عبارت ذو شورى دې. مراد دادې چې کومو احکامو کښې شريعت څه خاص حکم نه وي متعين کړې نو د هغې په پوره کولو کښې دوئ مشوره کوي. د مهمات امورقيد پخپله د لفظ امر نه مستفاد دې. ځکه چې په عرف کښې امر داسې کاورنو دپاره

استعماليږي چې هغه څه اهميت لري. لکه د سورة آل عمران آيت مبارک ﴿وَشَاوِرْهُمْ فِي الْأَمْرِ﴾(۱)
لاندې ددې تفصيل تير شو بدې. په هغې کښې دا هم واضح کړې شوې دی چې اهمو کارونو
کښې مملکت او حکومت هم شامل دې او عام معاملات هم. ابن کثير رحمه الله فرمائيلی دی چې
د مملکت په کارونو کښې مشوره اخستل واجب دی. اسلام کښې د امير انتخاب هم په
مشوره د کولو حکم دې اود جاهليت د زمانې هغه شخصي بادشاهت ئې ختم کړو. په هغې
کښې رياست ميراث ګڼړلې شو. تولو نه مخکښې اسلام دا ختم او د حقيقي جمهوريت بنياد
ئې کيخودو. خود مغربي جمهوريت په شان عوامو ته هر قسمه اختيارات نه ورکوی، اهل
شوری باندې څه پابندئی ايښودی دی. په دې وجه اسلامی چې دې دا د شخصي نظام نه او
مغربي جمهوريت نه يو ځانته معتدل دستور دې. ددې تفصيل په معارف القرآن دويم جلد
ص: ۲۱۵ تر ۲۲۲ کښې کتلې شئ.

امام جصاص رحمه الله په احکام القرآن کښې فرمائيلی دی چې دې آيت مبارک نه د مشورې اهميت
واضح شو. اودا چې مونږ په دې باندې مامور يو چې په کومو کارونو کښې مشوره اخستل
ضروري وی په هغې کښې د تيزئی نه او خودپسندئی نه کار نه وانخلو. عاقلانو سره او پوهه
خلقو سره د مشورې کولو نه پس قدم پورته کړو(۲).

**د مشورې اهميت او ددې طريقه**: خطيب بغدادی علي رضي الله عنه نه روايت کړې دې چې هغوئ اوفرمائيل
چې ما نبی کريم ﷺ ته عرض اوکړو چې ستاسو نه پس که مونږ ته يو داسې معامله راپيښه
شی چې په هغې کښې قرآن عظيم الشان څه فيصله نه وی کړې او تاسو ﷺ نه هم په هغې
کښې څه حکم مونږ ته نه وی ملاو شوې نو مونږ به څه چل کوؤ؟ نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل
چې: ﴿اجمعواله العابدين من امتی واجعلوا بينکم شوری ولا تقضوا برای واحد﴾(۳) [ددې دپاره زما د امت
عابدان راجمع کړئی او خپلو کښې مشوره اوکړئی او د يو په رائې سره فيصله مه کوئی]
ددې روايت په ځينې الفاظو کښې د فقهاء او عابدين لفظ راغلې دې چې دهغې نه
معلوميږی چې مشوره دهغه خلقو نه اخستل پکار دی چې فقهاء وی يعنی په دين باندې پوهه
لري او عابدان وی.

صاحب دروح المعاني فرمائی چې کومه مشوره په دې طريقه باندې نه وی بلکه بې علمه خلقو
سره وی نو دې کښې به فساد وی او اصلاح به په کښې نه وی(۴).

بيهقی رحمه الله په شعب الايمان کښې د ابن عمر رضي الله عنه نه روايت نقل کړې دی چې نبی کريم ﷺ
اوفرمائيل چې کوم يو کس د يو کار اراده اوکړه او په هغې کښې مشوره اوکړه نو الله ﷻ به ده ته
هدايت ارشد امور طرفته اوکړی(۵). يعنی ده ته ذهن کښې به هغه کار راولی چې آخر کار ده ته
دپاره خير او بهتر وی. داشان يو حديث امام بخاری په الادب المفرد کښې او عبد بن حميد

۱) ترجمه: او دهغوی نه په خاص خاص خبرو کښې مشوره اخله.
۲) احکام القرآن للجصاص (بالاختصار) تفسير سورة الشوری: ج ۸، ص ۳۹۰
۳) روح المعاني: ج ۱۸، ص ۲۸۷
۴) روح المعاني: ج ۱۸، ص ۲۸۷
۵) شعب الإيمان للبيهقي، رقم الحديث: ۷۲۷۹

په مسند کښې حسن رحمه الله نه هم نقل کړې دې چې په هغې کښې دوئ مذکوره آيت مبارك لوستلو سره فرمائيلې دې:

﴿ماتشاور قوم قط الاهدوا الارشد امرهم﴾[1] کله چې يو قوم مشورې سره کار کوی نو د ضروريۀ دوئ صحيح لارې طرفته هدايت کولې شي.

**حديث:** يو حديث پاك کښې نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې تر کومې پورې ستاسو امراء او حکام هغه خلق وی چې تاسو کښې بهتر دی او ستاسو مالداره سخيان وی [چې د الله تعالى په لار کښې او په غريبانانو باندې خرچ کوی] او ستاسو کارونه په خپلو کښې مشورې سره کيږی نو په هغه وخت ستاسو په زمکه باندې اوسيدل يعنی ژوندی اوسيدل بهتر دی. او چې کله ستاسو امراء او حکام د قوم خراب خلق وی او ستاسو مالداره بخيلان وی او ستاسو کارونه ستاسو د ښځو په حواله شی چې هغوئ څنګه غواړی نو کوی دې، نو هغه وخت کښې ستاسو دپاره د زمکې د ملا يعنی شا په ځائې د زمکې خيټه بهتره ده، يعنی ژوند نه مرګ بهتر دې [روح المعانی][2].

**شپږم صفت:** ﴿وَمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ﴾ يعنی دې خلقو ته چې الله ﷻ کوم رزق ورکړې دې دوئ هغه په نيك کار کښې خرچ کوی. او پدې کښې زکوة، فرض او نفلی صدقات ټول شامل دی. د قرآن عظيم الشان د عامې طريقې مطابق د زکوة او صدقاتو ذکر د مونځ نه پس راتلل پکار وو خو دلته د مونځ نه پس د مشورې کولو مسئله بيان شوه اوبيا وروستو د زکوة بيان راغلو. په دې کښې شايد چې دې طرفته اشاره وی چې د مونځ قائميدو دپاره په مساجدو کښې پنځه وخته اجتماع کيږی. دې اجتماع نه دا کار هم اخستلې شی چې کومو کارونو کښې مشوره کول وی په هغې کښې مشوره اوکړې شی. [روح المعانی][3].

**اووم صفت:** ﴿وَالَّذِيْنَ اِذَآ اَصَابَهُمُ الْبَغْيُ هُمْ يَنْتَصِرُوْنَ﴾ يعنی دوئ باندې چې کله څوك ظلم کوی نو دوئ برابره بدله اخلی. په دې کښې زياتې نه کوی. دا صفت په حقيقت کښې د دريم صفت تشريح ده. څکه چې د دريم صفت مضمون دا وو چې دا خلق خپل مخالف معاف کوی. خو څينې حالات داسې هم راپيښيدې شی چې معاف کولو سره فساد نور هم زيات شی. نو هغه ځائې کښې بدله اخستل بهتر دی. ددې قانون ئې په دې آيت مبارك کښې اوخودلو چې که چرې په يو ځائې کښې بدله اخستلو کښې مصلحت وی نو ددې خيال ساتل ضروری دی چې ددې بدلې اخستلو کښې دې د برابرئ خيال اوساتلې شی. او په دې کښې زياتې نه کوی چې هسې نه دې پخپله ظالم شی. په دې وجه ئې ددې نه پس اوفرمائيل چې: ﴿وَجَزٰٓؤُا سَيِّئَةٍ سَيِّئَةٌ مِّثْلُهَا﴾ يعنی د بدئ بدله ددې دبدئ برابره کول دی. يعنی تاته چې څومره مالی يابدنی نقصان دررسولې دې، نوهغه هومره ته ورته وراورسوه، هغه چې تاسره څومره بدی کړې دهغې هومره بدی ورسره ته هم

[1] ) الادب المفرد للبخاري، رقم الحديث: ۲۶۲

[2] ) روح المعاني: ج ۱۸، ص ۲۸۷، وجامع الترمذي، أبواب الفتن، باب ما جاء في النهي عن سب الرياح: ج ۲، ص ۵۱

[3] ) روح المعاني: ج ۱۸، ص ۲۸۷

اوکړه خو په دې کښې دا شرط دې چې هغه بدی پخپله بدی نه وی لکه یو کس ده ته شراب ورکړل نو ددې په جواب کښې ددهٔ دپاره دا جائز نه دی چې هغه ته په زبردستئ سره شراب ورکړی دې آیت مبارک کښې د برابرې بدلې اخستلو اجازت ورکړې شوېدې خو مخکښې ئې دا هم فرمائیلی دی چې : ﴿فَمَنْ عَفَا وَأَصْلَحَ فَأَجْرُهُ عَلَى اللّٰهِ﴾ ، یعنی څوک چې معافی اوکړی اود اصلاح لار اختیار کړی نو دهغه اجر د الله ﷻ په ذمه دې . په دې کښې دا هدایت کړې شوې دې چې معاف کول افضل دی . دې نه پس دوؤ آیتونو کښې ددې نور تفصیل راغلې دې .

**عفو او انتقام کښې معتدله فیصله:** ابراهیم نخعی رحمه الله فرمائی چې سلف صالحینو دا نه خوښول چې مؤمنان دې د فاسقانو او فاجرانو په وړاندې خپل ځان ذلیل کړی او هغوئ نور هم زیات شی. په دې وجه چې کوم ځائې کښې هم دا خطره وی چې معاف کولو سره فاسقان او فاجران نور هم زیاتیږی او هغوئ بهٔ نیکانو خلقو ته تکلیفونه ورکوی نو بیا بدله اخستل بهتر دی . او دمعافئ افضل کیدل په هغه صورت کښې دی چې کله ظالم په خپل ظلم باندې پښیمانه وی او دهغه د ظلم زیاتې د زیاتیدو خطره نه وی . قاضی ابوبکر ابن عربی په احکام القرآن کښې او قرطبی په خپل تفسیر کښې هم دا اختیار کړی دی دعفو او انتقام دواړه حکمونه د مختلفو حالاتو په اعتبار سره دی . څوک چې دظلم نه پس شرمنده شی نو دهغه معاف کول افضل دی . او چې څوک په خپل ظلم باندې په ضد ولاړ وی نو د هغه نه بدله اخستل بهتر دی[1] .

او اشرف المشائخ په بیان القران کښې دا اختیار کړې دې چې الله ﷻ دې دواړآیتونو کښې د مخلصانو مؤمنانو او صالحانو دوه خصوصیتونه بیان کړی دی . ﴿هُمْ يَغْفِرُونَ﴾ کښې ئې خو دا اووئیل چې دوئ په غصه کښې نه مغلوبه کیږی . بلکه ددوئ په مزاج کښې رحم او کرم غالب وی او معاف کول کوی .

او ﴿هُمْ يَنْتَصِرُونَ﴾ کښې ئې دا اووئیل چې دا هم ددې صالحانو خصوصیت دې چې چرته ددوئ په زړونو کښې د ظلم دبدلې جذبه راپیدا شی او دوئ بدله اخلی نو په بدله اخستو کښې زیاتې نه کوی . اگر چې ددوئ دپاره معاف کول افضل دی[2] .

| وَمَنْ يُضْلِلِ اللّٰهُ | فَمَا لَهُ | مِنْ وَلِيٍّ | مِنْ بَعْدِهِ |
|---|---|---|---|
| او هغه څوک چې گمراهه کړی هغه لره الله | پس نشته هغه لره | څوک دوست کارساز | روستو دهغه نه |
| اوکوم سړې چې الله ﷻ ئې گمراه کړی \| نو د هغهٔ نه پس د هغه دپاره بل هیڅوک کارساز نشته | | | |

| وَتَرَى الظّٰلِمِيْنَ | لَمَّا رَأَوُا | الْعَذَابَ | يَقُوْلُوْنَ | هَلْ إِلٰى مَرَدٍّ |
|---|---|---|---|---|
| او ته به اووینې دا ظالمان | هر کله چې اووینی هغوئ | عذاب | چې وائی به | آیا شته واپس تلوته |
| اوته به ظالمان اووینی کله چې هغوی عذاب اووینی \| نو دا به وائی چې آیا [دنیا] ته د واپس | | | | |

[1]) أحكام القرآن لابن العربي في تفسيرهذه الآية: ج ۷، ص ۸۸، وتفسير القرطبي تحت هذه الآية: ج ۱۶، ص ۳۹

[2]) بيان القرآن تحت هذه الآية: ج ۱۰، ص ۷۶

مِّنْ سَبِيلٍ ۞ | وَتَرٰىهُمْ | يُعْرَضُونَ | عَلَيْهَا

څه لار | اوته به اووينې هغوئ | چې وړاند به کړې شي | په دغه وور باندې |

تلو هم څه صورت شته ؟| اوته به هغوی اووينې چه جهنم ته به وړاندې کولې شي

خٰشِعِينَ | مِنَ الذُّلِّ | يَنْظُرُونَ | مِنْ طَرْفٍ خَفِيٍّ ۗ

حال دا چې يريدونکې به وی |دوجې دذلت نه | اوگوری به [دوزخ ته] | په کتلو پټو سره |

د ذلت په وجه به سر ټيټ ولاړ وی| ............ او پټ پټ به جهنم ته گوری

وَقَالَ الَّذِينَ | اٰمَنُوٓا | اِنَّ الْخٰسِرِينَ | الَّذِينَ

اووائی به هغه کسان | چې ايمان ئې راوړی دې | بيشکه تاونيان دی | هغه کسان |

اومومنان به وائی | چې حقيقت کښې هغه څوک تاوانيان شول | چې خپل ځانونه

خَسِرُوٓا | اَنْفُسَهُمْ | وَاَهْلِيهِمْ | يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ۗ | اَلَآ

چې په خساره کښې ئې واچول | ځانونه خپل | او اهل خپل | په ورځ دقيامت | خبردار |

اوخپل بال بچ ئې دقيامت په ورځ په تاوان کښې واچول | ............ياد ساته !

اِنَّ الظّٰلِمِينَ | فِي عَذَابٍ مُّقِيمٍ ۞ | وَمَا كَانَ لَهُمْ | مِّنْ اَوْلِيَآءَ

بيشکه ظالمان خلق | به په عذاب هميشه کښې وی | اونه به وی هغوئ لره | څوک سرپرستان |

چې بيشکه ظالمان به هميشه په عذاب کښې پراته وی | اود هغوئ به دالله ﷻ نه

يَنْصُرُونَهُمْ | مِّنْ دُونِ اللّٰهِ ۗ | وَمَنْ | يُّضْلِلِ اللّٰهُ

چې امداد اوکړی دهغوئ | په مقابله دالله کښې | او هغه څوک | چې گمراهه ئې کړی الله |

سوا هيڅوک مددگار نه وی | چې دهغوئ مدد اوکړی | اوڅوک چې الله ﷻ گمراه کړی

فَمَا لَهٗ | مِنْ سَبِيلٍ ۞ | اِسْتَجِيبُوا | لِرَبِّكُمْ | مِّنْ قَبْلِ

پس نشته هغه لره | څه لار د بچکيدو | قبوله کړئ بلنه | درب خپل | مخکښې ددې نه |

نوهغه دپاره [دهدايت] هيڅ لار نشته | تاسو دخپل رب د حکمونو قبولوالې کوئ | ددې نه وړاندې

اَنْ يَّاْتِيَ | يَوْمٌ | لَّا مَرَدَّ | لَهٗ | مِنَ اللّٰهِ ۗ | مَا لَكُمْ

چې راشی | هغه ورځ | چې نشته واپس کيدل | هغې لره | دطرفه دالله نه | نه به وی تاسو لره |

چې هغه ورځ راشی | دالله ﷻ دطرف نه به دهغې واپس کيدل نه وی | په هغه ورځ به ستاسو دپاره چرته

مِّنْ مَّلْجَاٍ | يَّوْمَئِذٍ | وَّمَا لَكُمْ | مِّنْ نَّكِيرٍ ۞ | فَاِنْ اَعْرَضُوا

هيڅ ځائ دپناه | په دغه ورځ | اونه به وی تاسو لره | هيڅ انکار | اوس که چری مخ واړوو دوئ |

د پناه ځائې نه وی | اونه به [دفيصلې منلونه] انکار کولې شئ | که اوس هم دوئ [دقرآن نه] مخ واړوی

فَمَآ اَرْسَلْنٰكَ | عَلَيْهِمْ | حَفِيظًا ۗ | اِنْ عَلَيْكَ | اِلَّا الْبَلٰغُ ۗ

پس نه ئې ليږلې مونږ ته | په دوئ باندې | په حيثيت دنگران | نشته په تا باندې | مگر رسونه |

نو مونږ ته په دوئ څه نگران نه ئې مقرر کړې | ستاسو په ذمه خو صرف پيغام رسول دی

وَاِنَّآ اِذَآ اَذَقْنَا الْاِنْسَانَ مِنَّا رَحْمَةً فَرِحَ

او بیشکه مونږه | کله چې | اوڅکوو مونږه | انسان ته | د طرفه زمونږ نه | رحمت | نو خوشحاله شي

او مونږ چې یو انسان باندې څه نعمت اوکړو | نو هغه په هغې باندې ځان ته غاوره شي

بِهَا ۚ وَاِنْ تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ ۢ بِمَا قَدَّمَتْ

په هغې سره | او که اورسیږي دوئ ته | څه مصیبت | په سبب د هغې عمل | چې مخکښې لیږلی وی

...... | او که چرې خلقو ته د هغه ګناهونو په وجه کوم چې هغوی کړي وی څه تکلیف اورسیږي

اَيْدِيْهِمْ فَاِنَّ الْاِنْسَانَ كَفُوْرٌ ۝ لِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۭ

لاسونو د دوئ | نو بیشکه انسان دې | ناشکره | الله لره ده | بادشاهي د آسمانونو | او د زمکې

نو هم دغه انسان ناشکري شروع کړي | د آسمانونو او د زمکې بادشاهي صرف د الله ﷻ ده

يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ ۭ يَهَبُ لِمَنْ يَّشَآءُ اِنَاثًا وَّيَهَبُ

پیدا کوی هغه | هغه | چې غواړي | چاله چې غواړي | ورکوی | لونړه | او ورکوی |

هغه چې څه او غواړي نو پیدا کوی ئې | چې چا ته او غواړي لونړه ورکړي | او چا ته چې او غواړي نو

لِمَنْ يَّشَآءُ الذُّكُوْرَ ۝ اَوْ يُزَوِّجُهُمْ ذُكْرَانًا وَّاِنَاثًا ۚ وَيَجْعَلُ

چاله چې غواړي | خامن | یا ورکوی هغوئ ته | خامن | او لونړه ګډوډ | او ګرزوی |

خامن ورته ورکړي | او یا ورته خامن او لونړه دواړه ورکړي | او چې چا ته او غواړي نو

مَنْ يَّشَآءُ عَقِيْمًا ۭ اِنَّهٗ عَلِيْمٌ قَدِيْرٌ ۝

هغه څوک چې غواړي | شنډ | بیشکه هغه | عالم دې | قادر دې |

شنډ ئې کړي | هغه په هر څۀ پوهه دې | او په هر څه قادر دې |

## آسان ترجمه قرآن

او چا لره چې الله تعالیٰ ګمراه کړي، نو د دې نه پس هیڅوک نشته، چې د هغه مددګار شي. او کله چې ظالمانو باندې عذاب راشي، نو وبه ګورې چې دوی لره به داسې وائي: آیا د واپس تللو څه لاره شته؟ او وبه ګورې به ته دوی لره، چې دوزخ ته به داسې وړاندې کړې شي، چې د ذلت د وجې نه به ښکته سترګو سره ګوري، او کومو خلقو چې ایمان راوړي دي، هغوی به وائي چې: واقعي په اصل نقصان کښې هغه خلق دي، چې هغوی د قیامت په ورځ خپل ځان او خپله کورنۍ په نقصان کښې اچولې ده. یاد او ساتئ، ظالمان خلق به په داسې عذاب کښې وی چې همیشه دپاره به قائم وی. او نه به وی دوی لره داسې مددګاران، چې د دوی مدد اوکړي، سوا د الله تعالیٰ نه. او چا لره چې الله تعالیٰ ګمراه کړي، نو د هغه د بچ کیدو هیڅ لاره نشته.
اے خلقو! د خپل پروردګار خبره د هغې ورځې د راتللو نه مخکښې مخکښې اومنئ، چې هغه به د الله تعالیٰ طرف نه واپس کیدې نشي. په هغه ورځ به تاسو لره هیڅ ځائې د پناه نه وی، او نه به ستاسو دپاره د پوښتنې کولو څه موقع وی (اے پیغمبره!) که دا خلق بیا هم مخ اړوي نو مونږ ته په دوی باندې نګهبان نه ئې لیږلې، په تا باندې د خبرې رسولو نه سوا هیڅ ذمه داري نشته. او (د انسان حال دا دې

چه) چه كله مونږ انسان ته د خپل رحمت له څه مزه اوڅكوو، نو خوشحال كوي په هغې پاندې او كه اورسيږي دوى ته څه تكليف، په سبب د هغې عملونو چه مخكښې كړې دي لاسونو د دوى، نو هم هغه انسان ډير ناشكره جوړيږي. د ټولو آسمانونو او زمكې سلطنت د الله تعالى دپاره دې، هغه چه څه غواړي، پيدا كوي، او چاته چه اوغواړي، جينكۍ وركوي، او چاته چه اوغواړي، هلكان وركوي. يا دواړه قسمه، هلكان هم وركوي او جينكۍ هم، او چالره چه اوغواړي، نو هغه شنډ جوړ كړي. يقيناً هغه دعلم هم مالک دې. او د قدرت هم مالک دې.

## خلاصه تفسير

داحال خو داهل هدايت وو چه هغه په دنيا كښې دالله تعالى دطرف نه په هدايت او په اخرت كښې په ثواب مشرف شو[او] وړاند دګمراهانو حال واورئ هغه داچه ﴿وَمَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ﴾[كومو لره الله تعالى ګمراه كړى ﴿فَمَا لَهٗ مِنْ وَّلِيٍّ مِّنْۢ بَعْدِهٖ﴾ نو ددې نه پس د هغه سرى] په دنيا كښې هم [څوك كارساز نشته] چه دې په لاره كړى [او] په قيامت كښې به ئې هم بد حال وى چنانچه په دغه ورځ﴿وَتَرَى الظّٰلِمِيْنَ لَمَّا رَاَوُا الْعَذَابَ﴾ [ته به] دې [ظالمانو لره وينې څه وخت چه هغوى ته عذاب وښودې شى] په ډير افسوس سره به ﴿يَقُوْلُوْنَ هَلْ اِلٰى مَرَدٍّ مِّنْ سَبِيْلٍ﴾ [وائى چه ايا] دنيا ته [د واپس تلو څه صورت كيدې شى؟] چه بياښه عمل وكړو راشو [او] دا رنګ﴿وَتَرٰىهُمْ يُعْرَضُوْنَ عَلَيْهَا﴾ [ته به هغوى لره په داسې حالت كښې وينې چه هغوى به دزوخ ته مخامخ راوستلې شى ﴿خٰشِعِيْنَ مِنَ الذُّلِّ﴾ د ډيرذلت نه به ټيټ وى]او دوى به هغه ته ﴿يَنْظُرُوْنَ مِنْ طَرْفٍ خَفِيٍّ﴾[په سست] سست [نظر سره ګورى] لكه وريدلې بنده چه ګورى او په يوبل ايت كښې چه ئې كوم درنديدو خبر وركړې دې هغه د حشر وخت دې او دادهغې نه پس واقعه ده چنانچه هلته د لفظ د نحشره وضاحت دې ﴿وَقَالَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِنَّ الْخٰسِرِيْنَ الَّذِيْنَ خَسِرُوْٓا اَنْفُسَهُمْ وَاَهْلِيْهِمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ﴾ [او] دغه وخت [ايماندار به] په خپل بچ كيدو باند دشكر دپاره او په دوى د ملامت كولو دپاره [او وائى چه پوره تاوان كوونكى هغه خلق دى كوم چه خپلو ځانونو سره او خپلو متعلقينو لره] نن [دقيامت په ورځ په خساره كښې پريوتل] ددې تفسير دسوره زمر په دويمه ركوع كښې تير شوې دې ﴿اَلَآ اِنَّ الظّٰلِمِيْنَ فِيْ عَذَابٍ مُّقِيْمٍ﴾ [ياد ساتئ چه ظالمان] يعنى مشركان او كافران [خلق به په دائمى عذاب كښې] ګرفتار [وى او] هلته به ﴿وَمَا كَانَ لَهُمْ مِّنْ اَوْلِيَآءَ يَنْصُرُوْنَهُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ﴾[ددوى څوك مددګارنه وى كوم چه دالله تعالى نه جدا] شى [ددوى مدد وكړى ﴿وَمَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ فَمَا لَهٗ مِنْ سَبِيْلٍ﴾ او چالره چه الله تعالى ګمراه كړى د هغه د] نجات د [پاره هيڅ لار نشته] يعنى نه معذرت نه د چامدد اونه نور څه وړاند كافرانو ته خطاب دې چه اے خلقو هركله چه تاسو د دوزخ دا هولناك حالات واوريدل نو ﴿اِسْتَجِيْبُوْا لِرَبِّكُمْ﴾[تاسو دخپل رب حكم] د ايمان وغيره [ومنئ ﴿مِّنْ قَبْلِ اَنْ يَّاْتِيَ يَوْمٌ لَّا مَرَدَّ لَهٗ مِنَ اللّٰهِ﴾ وړاند د هغې نه چه داسې ورځ راشى دكومې دپاره چه دالله تعالى دطرف نه واپس كيدل نه وى] يعنى لكه څنګه چه به په دنيا كښې عذاب واپس كيدې شو په اخرت كښې په داسې څه صورت نه وى او﴿مَا لَكُمْ مِّنْ مَّلْجَاٍ يَّوْمَئِذٍ﴾[نه به په هغه ورځ تاسوته څه] بله [پناه ملا شى ﴿وَمَا لَكُمْ مِّنْ نَّكِيْرٍ﴾ اونه به ستاسو په باره كښې څوك] د الله تعالى سره [روك ټوك كوونكې وى] چه

دومره تپوس وکړی چه ددوی داحال ولې جوړشو او اے پیغمبر ﷺ دې خلقو ته داواوړوه ﴿فَإِنْ أَعْرَضُوا﴾[بیا که داخلق] دا واوړی هم او [دده کوی] او ایمان رانه وړی [نو] ته فکر او غم مه کوه څکه چه [مونږه ته په دوی باند نګران کړې نه یې لیږلې] چه تانه به ګوند دتپوس احتمال وی چه ستاپه نګرانۍ کښې ددوی نه دا کارونه ولې وشول بلکه ﴿إِنْ عَلَيْكَ إِلَّا الْبَلَاغُ﴾[ستا په ذمه خو صرف] دحکم [رسول دی] کوم چه ته کوی بیاته ددې نه زیاتی فکرولې کوې [او] ددوی دحق نه د ددې کولو سبب دالله تعالی سره دتعلق کمزوری ده چه د هغې نښه داده چه ﴿وَإِنَّا إِذَا أَذَقْنَا الْإِنْسَانَ مِنَّا رَحْمَةً﴾[مونږ هرکله] داقسم [بنده ته څه دخپلې مهربانۍ مزه وڅکوو ﴿فَرِحَ بِهَا﴾ نو هغه په دې] مست شی [خوشحاله شی] اومنعم ته نه ګوری چه شکرې وکړی ﴿وَإِنْ تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ﴾[اوکه چرې په] داسې [خلقو باند ددوی د] بدو [عملونو په بدله کښې ﴿بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيهِمْ﴾ کوم چه دوی وړاند په خپلو لاسونو سوه کړی وی څه مصیبت راپرېوځی ﴿فَإِنَّ الْإِنْسَانَ كَفُورٌ﴾ نو] داسې [بنده ناشکری کول شروع کړی] او داسې نه کوی چه دګناهونونه توبه او استغفار وکړی د عبادت او اطاعت په ذریعه الله تعالی طرف ته رجوع شی﴾ او دا دواړه حالتونه د دې خبرې علامت دې چه دده تعلق د خپلو نفسانی لذتونو سره زیات او دالله تعالی سره معدوم یا کمزورې دې او په دې سره هغه په کفر کښې اخته شوې دې او چونکه دا حالت د هغو خلقو طبیعت ثانیه جوړ شوې دې په دې وجه ته ددوی نهدایمان توقع ولې ساتې چه داموجب د غم شی وړاند بیا دتوحید بیان دې چه ﴿لِلَّهِ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ﴾ [دالله تعالی دې] تول [حکومت د اسمانونو اودمزکې ﴿يَخْلُقُ مَا يَشَاءُ﴾ هغه چه څه غواړی پیداکوی] چنانچه ﴿يَهَبُ لِمَنْ يَشَاءُ إِنَاثًا﴾[چالره چه غواړی لونړه ورکوی ﴿وَيَهَبُ لِمَنْ يَشَاءُ الذُّكُورَ﴾ او چالره چه غواړی خامن ورکوی ﴿أَوْ يُزَوِّجُهُمْ ذُكْرَانًا وَإِنَاثًا﴾ یادوی لره] د چادپاره چه غواړی [په جمع ورکوی] چه [خامن هم] ورکوی [او لونړه هم ﴿وَيَجْعَلُ مَنْ يَشَاءُ عَقِيمًا﴾ او چالره چه غواړی بې اولاده یې ساتی ﴿إِنَّهُ عَلِيمٌ قَدِيرٌ﴾ بیشکه هغه لوی پوهه لوی قدرت والا دې].

**معارف او مسائل**

﴿وَمَنْ يُضْلِلِ اللَّهُ فَمَا لَهُ مِنْ وَلِيٍّ مِنْ بَعْدِهِ﴾: دې مذکوره ابتدائی آیتونو کښې دهغه خلقو دانجام ذکر دې کوم چې د مؤمنین صالحین په مقابله کښې د آخرت د فکر په ځائې صرف د دنیا د لذت او راحت طلبګار وی . دې څخه روستو په ﴿اسْتَجِيبُوا لِرَبِّكُمْ﴾ کښې دوئ ته نصیحت کړې شوې دې چې دقیامت دعذاب راتلو څخه وړاندې توبه اوباسئ او ایمان کښې داخل شئ . او بیا رسول اکرم ﷺ ته تسلی او اطمینان ورکړې شوې دې که ستاسو د بار بار تبلیغ او کوشش کولو باوجود بیا هم دا خلق هوش کښې نه رازی نو تاسو هیڅ غم مه کوئی د ﴿فَإِنْ أَعْرَضُوا فَمَا أَرْسَلْنَاكَ عَلَيْهِمْ حَفِيظًا﴾ هم دا مطلب دې .

آخری آیت کښې ﴿لِلَّهِ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ﴾ څخه آخر پورې ددې خبرې دعوت ورکړې شوې دې چې ددې آیتونو څخه دالله تعالی د قدرت کامله او حکمت بالغه مشاهده کیږی ، چې په دې کښې د هغه لوئې ذات سره څوک شریک نشته دې . دې سلسله کښې د زمکې او آسمان د تخلیق ذکر کولو څخه روستو یو ضابطه د قدرت بیان کړې شوې ده فرمائی چې ﴿يَخْلُقُ مَا يَشَاءُ﴾ یعنی هغه د وړوکی او لوئې هر څیز په پیدا کولو باندې قدرت لری . هغه عظیم ذات چې څه غواړی

او کله غواړي نو پيدا کوی. دې سلسله کښې ئې د انسان د تخليق ذکر هم کړې دې ، فرمائی چې ﴿يَهَبُ لِمَنْ يَشَآءُ إِنَاثًا وَيَهَبُ لِمَنْ يَشَآءُ الذُّكُورَ ۝ أَوْ يُزَوِّجُهُمْ ذُكْرَانًا وَإِنَاثًا ۚ وَيَجْعَلُ مَنْ يَشَآءُ عَقِيمًا ۚ إِنَّهُ عَلِيمٌ قَدِيرٌ ۝﴾
يعنې د انسان په پيدا کولو کښې د چا د ارادې اختيار بلکه د علم او خبر هم دخل نشته دې.
او بل څوك لا څه کوې پخپله ددهٔ مور پلار چې ددې تخليق سبب دی دهغوئ د اختيار هم د بچی پيدا کولو کښې دخل نشته دې. په پيدا کولو کښې دخل خو لا څه کوې ،دبچی د پيدا کيدو څخه وړاندې مور ته دا هم نه وی معلوم چې ددې په رحم کښې څه دی. او دا څنګه او په څه شان جوړيږی. دا صرف دالله تعالى کار دې چې چاته نارينه اولاد ورکوی او چا ته زنانه اولاد ورکوی ، چا ته نارينه زنانه دواړه قسمه اولاد ورکوی او چاته بالکل نه ورکوی او هغه شنډ کړی. او ددهٔ هيڅ اولاد نه کيږی.
په دې آيتونو مبارکو کښې د بچو د قسمونو بيانولو کښې الله ﷻ اول د جينکو ذکر کړې دې. او د هلکانو ذکر ئې روستو کړې دې. هم ددې آيت مبارك اشارې سره واثله بن اسقع رضی الله عنه فرمائی چې دکومې ښځې اول جينئ پيدا شی هغه مبارکه ده. [قرطبی][1].

| |
|---|
| وَمَا كَانَ لِبَشَرٍ |
| \| اونهٔ دې دا مقام \| د يو بشر \| |
| \| .......اود هيڅ بشر دا قدرت نشته |
| أَنْ يُّكَلِّمَهُ اللّٰهُ إِلَّا وَحْيًا أَوْ مِنْ وَّرَآئِ حِجَابٍ أَوْ يُرْسِلَ |
| چې خبرې اوکړی دهغه سره الله \| مگر په وحی سره \| يا شاته دپردې نه \| يا راليږی هغه \| |
| چې الله تعالى دې ورسره خبرې اوکړی\| البته دا چې وحی ورته اوکړی\| يا ورسره د پردې نه اخوا خبرې اوکړی |
| رَسُولًا فَيُوحِيَ بِإِذْنِهٖ مَا يَشَآءُ ۚ إِنَّهٗ |
| پيغام رسانه فرښته \| پس هغه وحی کوی \| په حکم دهغه سره \| هغه چې غواړی هغه \| بيشکه هغه \| |
| يا يوه فرښته راوليږی\| نوهغه ورته دالله ﷻ په حکم هغه وحی راوړی کومه چې دالله ﷻ خوښه وی |
| عَلِيٌّ حَكِيمٌ ۝ وَكَذٰلِكَ أَوْحَيْنَآ إِلَيْكَ رُوحًا |
| اوچت دې \| دحکمت خاوند دې \| او همدارنګې \| وحی کړې دې مونږ \| تاته \| يو روح \| |
| الله ﷻ ډير اوچت دې صاحب دحکمت دې \|اودغسې مونږ تاته دا وحی يعنی خپل حکم |
| مِّنْ أَمْرِنَا ۚ مَا كُنْتَ تَدْرِی مَا الْكِتٰبُ وَلَا الْإِيمَانُ |
| دحکم خپل نه \| نهٔ وې ته \| چې پوهيدلې \| چې څه څيز دی کتاب \| اونهٔ ايمان \| |
| درليږلې دې \| تا خو نه پيژندل چې کتاب څه څيز دې اونه دې ايمان پيژندلو چې ايمان څه څيزدې |
| وَلٰكِنْ جَعَلْنٰهُ نُورًا نَّهْدِی بِهٖ مَنْ |
| وليکن \| جوړ کړو مونږ ددغه روح \| يوه رڼا \| چې لار ښايو مونږ \| په هغې سره \| هغه چاته \| |
| ليکن مونږ دا [کتاب] رڼا جوړه کړه\| او د دې په ذريعه مونږ پخپلو بندګانو کښې |

[1] ) تفسير القرطبي: ج ١٦، ص ٤٨

نَشَآءُ　مِنْ عِبَادِنَا　وَاِنَّكَ　لَتَهْدِیْٓ　اِلٰی صِرَاطٍ مُّسْتَقِیْمٍ
چې غواړو مونږ | د بندګانو زمونږ نه | او بیشکه ته | خامخا هدایت کوې | لارې | نیغې ته |
چاته چې اوغواړونو هدایت کوو | او ته نیغې لارې طرفته خودنه کوې

صِرَاطِ اللّٰهِ الَّذِیْ　لَهٗ　مَا فِی السَّمٰوٰتِ　وَمَا
لاره دهغه الله | چې هغه لره دی | هغه څه چې په آسمانونو کښې دی | او هغه څه |
[یعنی] دهغه الله ﷻ لاره چې دآسمانونو او زمکې د ټولو څیزونو مالک دې

فِی الْاَرْضِ　اَلَآ　اِلَی اللّٰهِ　تَصِیْرُ　الْاُمُوْرُ
چې په زمکه کښې دی | خبردار شئ | چې خاص الله ته | واپس ورځی | ټول معاملات |
یاد ساتئ چې ټولې معاملې [جګړې او مقدمې] به الله ﷻ ته پیش کیږی [او هغه به ئې فیصله کوی]

## آسان ترجمه قرآن

او په هیڅ یو انسان کښې دا طاقت نشته چه د الله تعالیٰ سره (مخامخ) خبره اوکړی سوا ددې نه، چه هغه د وحې په ذریعې سره وی یا د پردې نه هاخه، یا پیغام راوړونکې فرښته رااولیږی، نو هغه فرښته وی رسوی په حکم د الله تعالیٰ سره هغه چه الله تعالیٰ غواړی. یقیناً هغه لوئې شان والا دې، او د لوئې حکمت مالک دې. او دغه شان مونږ تاته په خپل حکم سره یو روح بطور وحی نازل کړې دې تاته ددې نه مخکښې نه دا معلوم وو، چه کتاب څه څیز دې، او نه دا چه ایمان څه دې لیکن مونږ ددې قرآن لره یو نور جوړ کړې دې، چه ددې په ذریعې سره مونږ په خپلو بندګانو کښې چاته چه اوغواړو، هدایت ورکوو او په دې کښې هیڅ شک نشته، چه ته خلقو ته هغه نیغه لاره ښائې. کومه لار چه د الله تعالیٰ ده. هغه الله تعالیٰ چه دهغه په ملکیت کښې هغه څه دی، چه په آسمانونو کښې دی، او هغه څه چه په زمکه کښې دی، یاد اوساتئ، چه ټول معاملات خاص الله تعالیٰ ته واپس کیږی.

## خلاصه تفسیر

﴿وَمَا كَانَ لِبَشَرٍ اَنْ یُّكَلِّمَهُ اللّٰهُ﴾[او دیو بشر] په موجوده حالت کښې [داشان نه دې چه الله تعالیٰ د هغه سره خبرې وکړی ﴿اِلَّا وَحْیًا﴾ مګر] په درې طریقې سره [یاخو په الهام سره] چه په زړه کښې ورته څه بنه خبره واچوی ﴿اَوْ مِنْ وَّرَآئِ حِجَابٍ﴾[یاد پردې نه وروستو] ورته څه خبره واوروی لکه حضرت موسیٰ ؑ ته ئې چه اوزرولې وه ﴿اَوْ یُرْسِلَ رَسُوْلًا فَیُوْحِیَ بِاِذْنِهٖ مَا یَشَآءُ﴾[یا چا فرښتې لره ولیږی چه هغه دالله تعالیٰ په حکم سره چه څه الله تعالیٰ ته منظوره وی پیغام ورسوی] ددې وجه داده چه ﴿اِنَّهٗ عَلِیٌّ﴾[هغه لوئې عالیشان دې] په دې سره چه هر کله هغه په خپله طاقت ورنه کړی څوك ورسره هم کلام کیدې نه شی مګر ددې سره ﴿حَكِیْمٌ﴾[لوئې حکمت والا] هم [دې] په دې وجه د بندګانو په مصلحت سره د هغه د خبرو کولو درې ذکر شوې طریقې بیان شوې ﴿وَكَذٰلِكَ﴾[دغه شان] یعنی ددې قاعدې مطابق ﴿اَوْحَیْنَآ اِلَیْكَ رُوْحًا مِّنْ اَمْرِنَا﴾[مونږ تاته] هم [وحی یعنی خپل حکم لیږلې دې] او ته مو نبی جوړ کړې یې او داوحی داسې هدایت نامه ده چه ستا په بې مثله علومو کښې ددې په وجه ترقی وشوه چنانچه ددې نه وړاند ﴿مَا كُنْتَ تَدْرِیْ﴾[تاته نه داخبر وو چه] ﴿مَا الْكِتٰبُ﴾ دالله تعالیٰ [کتاب څه شې دې ﴿وَلَا الْاِیْمَانُ﴾ اونه

داخبر وو چه ایمان] مکمل ترین درجه یٔ کومه چه اوس درته حاصله ده [څه شي دي] اګر چه نفس ایمان نبی ته دنبوت نه وړاند هم حاصل وی ﴿وَلٰكِنْ جَعَلْنٰهُ نُوْرًا﴾[او لیکن مونږه] تاته نبوت او قرآن درکړو او [دې قرآن لره مو] ستادپاره اولا او دنورو دپاره ثانیا [یونور جوړکړو] چه په دې سره تاته داعظیم علوم او دلویٔ مرتبې احوال حاصل شول او ﴿نَّهْدِیْ بِهٖ مَنْ نَّشَآءُ مِنْ عِبَادِنَا﴾[دکوم په ذریعه چه مونږ د خپلو بندګانو نه چاته چه غواړو هدایت کوو] پس ددې نور په عظیم کیدو کښې هیڅ شبهه نشته اوس چه څوك ړوندوی هغه ددې نو ر دنفع نه محروم بلکه ددې نه منکردې لکه دا اعتراض کوونکی ﴿وَاِنَّكَ لَتَهْدِیْۤ﴾[او په دې [کښې هیڅ شك نشته چه ته] ددې قرآن او وحی په ذریعه سره عامو خلقو ته ﴿اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِیْمٍ﴾[دیوې نیغې لارې هدایت کوې یعنی ﴿صِرَاطِ اللّٰهِ الَّذِیْ لَهٗ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَمَا فِی الْاَرْضِ﴾ د هغه الله تعالی دلارې چه دهغه دی څه چه په اسمانونو کښې دی او څه چه په مزکه کښې دی] وړاند ددې احکامو منونکو اونه منونکوته دجزا او سزا ذکر دې چه ﴿اَلَاۤ اِلَى اللّٰهِ تَصِیْرُ الْاُمُوْرُ﴾[یاد ساتئ ټول کارونه به هغه طرف ته واپس کیږی] پس هغه به په ټولو جزا او سزا ورکړی.

## معارف او مسائل

مذکوره آیتونو کښې رومبې آیت مبارك د یهودو د یو معاندانه مطالبې په جواب کښې نازل شوې دې. لکه څنګه چې بغوی رحمه الله او قرطبی رحمه الله وغیره لیکلی دی چې یهودو نبی کریم ﷺ ته اووئیل چې مونږ په تاسو ﷺ باندې څنګه ایمان راؤړو، تاسو ﷺ خونه الله ﷻ لیدلې دې، او نه مو هغه سره په مخامخ خبرې کړدی دی لکه څنګه چې موسی علیه السلام کلام کولو او الله ﷻ به لیدلو.

نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې دا وینا غلطه ده چې موسی علیه السلام الله ﷻ لیدلې دې. نو په دې دا آیت مبارك نازل شو چې یو انسان دپاره په دې دنیا کښې الله تعالی سره په مخامخ خبرې کول ممکن نه دی. پخپله موسی علیه السلام هم په مخامخ کلام نه دې آؤریدلې بلکه دپردې نه ئې یو آواز واؤریدو([1]).

دې آیت مبارك کښې دا هم اووئیلې شو چې یو بشر سره دالله تعالی د کلام کولو درې صورتونه کیدې شی.

**رومبی صورت:** وحیًا یعنی مضمون په زړه کښې اچول. دا په ویښه هم کیدلې شی او په خوب کښې هم د خوب په لیدو سره. لکه څنګه چې احادیثو کښې منقول دی چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې ﴿القی فی روعی﴾([2]) یعنی ما ته ددې خبرې القاء کړې شوې ده او د انبیاء علیهم السلام خوبونه هم وحی وه. په هغې کښې شیطانی تصرف بالکل نه شی کیدې. په دې صورت کښې عموما الفاظ دالله تعالی دطرفنه نه وی. صرف یو مضمون په زړه کښې راځی چې هغه په خپلو الفاظو کښې تعبیر کوی.

---

[1]) تفسیر القرطبي: ج ۱٦، ص ۵۳

[2]) مثال په طور وګورئ: مسند أحمد، مسند أبي سعید الخدری رضی الله عنه، رقم الحدیث: ۱۱۴۷۲، والمستدرک للحاکم، رقم الحدیث: ۲۰۹۵

**دويم صورت**: دويم صورت د ﴿مِنْ وَّرَآئِ حِجَابٍ﴾ دي. يعنى په وينبنه د پردې نه يو كلام واؤرى لكه ځنگه چې موسى ﷺ ته په كوه طور كښې راپيښنه شوه چې د الله ﷻ كلام ئې واؤريدو مگر زيارت ئې نه دې كړې. په دې وجه ئې د زيارت د پاره خواست اوكړو چې ﴿رَبِّ أَرِنِي أَنْظُرْ إِلَيْكَ﴾ چې دهغې جواب په نفى كښې وركړې شوې دې. ﴿لَنْ تَرَانِي﴾

او دا حجاب چې انسان د پاره په دنيا كښې د الله تعالى زيارت نه مانع دې هغه يو داسې څيز نه دې چې الله تعالى لره پټ كړې شى. ځكه چې دهغه لوئې ذات نور هيڅ يو څيز نشى پټولې بلكه د انسان دبينائى قوت دومره ضعيف دې چې دهغه د پاره د زيارت حق په مينځ كښې حجاب وى. په دې وجه جنت كښې به ده ته بينائى قوت وركړې شى نو هلته به هر جنتى د الله ﷻ زيارت كولې شى. لكه ځنگه چې احاديث صحيحه كښې وضاحت سره راغلى دى او دا داهل سنت والجماعت مذهب دې[۱].

دا قانون كوم چې په مذكوره ارشاد كښې فرمائيلې شوې دې، د دنيا متعلق دې چې په دنيا كښې هيڅ يو انسان الله ﷻ په مخامخ يعنى بې د پردې نه خبرې نه شى كولې. او د انسان تخصيص په كلام كښې په دې وجه دې چې خبره د انسان متعلق ده. گنى ظاهر خودادى چې فرښتو سره هم د الله ﷻ كلام په مخامخ نه شې كيدې. لكه ځنگه چې په ترمذى شريف روايت دې چې جبرائيل ﷺ نه منقول دى چې څه ډير نزدې شوې اوم او بيا هم اويا حجابونو په مينځ كښې وو[۲]. او په معراج په شپه كښې د نبى كريم ﷺ د الله ﷻ كلام له مخ په مخ ثابت شى لكه ځنگه چې د ځينې علماء كرامو قول دې نو هغه ددې خلاف نه دى. ځكه چې هغه كلام په دې دنيا كښې نه وو. آسمانى دنيا كښې وو. والله اعلم.

**دريم صورت**: ﴿أَوْ يُرْسِلَ رَسُولًا﴾: يعنى يو فرښتې جبرائيل ﷺ ته ئې خپل كلام وركړو او راوليږلو چې هغه رسول ﷺ ته اووائى. او هم دا طريقه عامه ده. ټول قرآن عظيم الشان همداشان د ملائكو په ذريعه نازل شوې دې. مذكوره تفصيل كښې د وحى لفظ صرف د القاء فى القلب په معنى اخستې شوې دې. خو اكثر دا لفظ د ټولو اقسامو د كلام ربانى د پاره استعماليږى لكه صحيح بخارى شريف كښې يو اوږد حديث پاك كښې د وحى په اقسامو كښې يو قسم دا هم خودلې شوې دې چې د فرښتې په ذريعه كلام كول. او په هغې كښې دا هم تفصيل دې چې د فرښتې په ذريعه چې كومه وحى راځى دهغې هم دوه صورتونه دى. كله فرښته په خپل اصلى صورت كښې وى او كله په انسانى شكل كښې[۳]. والله سبحانه وتعالى اعلم.

﴿مَا كُنْتَ تَدْرِي مَا الْكِتٰبُ وَلَا الْإِيْمَانُ وَلٰكِنْ الخ﴾: دا آيت هم د رومبى آيت مبارك تكمله ده. چې دهغې حاصل دادې چې په دنيا كښې مخ په مخ كلام كول نه چا كړې دې او نه كيدې شى. البته الله ﷻ پخپلو بندگانو ته فرښتې د خپلې وحى سره ليږى. او د هغې درې طريقې په مخكښې آيت مبارك كښې بيان شوى دى. د الله تعالى سره ددې طريقې مطابق په دوئ ﷺ باندې هم وحى راځى. د يهودو دا مطالبه چې ته الله تعالى بالمشابه ولې كلام نه كوې، دا صرف يو جاهلانه

---

[۱] ) صحيح مسلم، كتاب الإيمان، باب اثبات رؤية المؤمنين فى الأخرة الخ. رقم الحديث: ۲۶۶
[۲] ) كنز العمال، رقم الحديث: ۹۹۰۴
[۳] ) صحيح البخارى، باب كيف كان بدء الوحى الى رسول الله صلى الله عليه وسلم: ج ۱، ص ۲

او د عناد نه ډك سوال دې خکه ئې اوفرمائيل چې يو انسان ته او تر دې چې يو رسول ﷺ ته کوم علم ملاويږي هغه ټول د الله ﷻ ورکړه ده او تر څو چې دوئ ته الله ﷻ د وحی په ذريعه اونه وائي نو دوئ ته د هيڅ کتاب نه واقفيت نشی کيدې او نه د ايمان تفصيلات د کتاب نه واقفيت د وحی نه مخکښې نه ظاهريدل خو ښکاره دی د ايمان نه دناواقفيت معنی داده چې د ايمان تفصيلات او شرائع ايمان يا د ايمان اعلی مقام چې د وحی نه پس حاصليږی . وحی نه مخکښې د هغې واقفيت نشی کيدې . ګنی په اجماع د امت سره دا خبره ثابته ده چې کوم انسان لره الله ﷻ خپل نبی او رسول ليږی نو هغه لره د اول نه ايماندار پيدا کوی دهغه فطرت په ايمان باندې مبنی وی . دنبوت د عطاء کيدو نه وړاندې هغوئ پاخه مؤمنان وی اصول ايمان دهغوئ په فطرت او خلقت کښې داخل وی . هم دا وجه ده کله چې د انبياء ﷺ سره دهغوئ قومونه مخالف شو نو په هغوئ ﷺ ئې رنګ په رنګ الزامونه اولګول خو هيچا هم دا الزام په هيڅ يو پيغمبر نه دې لګولې چې تا به هم د نبوت ددعوې نه وړاندې زمونږ په ښان د بتانو عبادت کولو . قرطبی رحمه الله پخپل تفسير کښې او قاضی عياض رحمه الله په شفاء کښې هم دا مضمون په پوره تفصيل سره ليکلې دې (١)

| آياتونه | سورة الزخرف مکية وهي تسع وثمانون اٰية وسبع رکوعات | رکوع ګانې |
|---|---|---|
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | |
| ۸۹ | شروع کوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم کونکې دې | ۷ |

| حٰمٓ ۚ ① | وَالۡكِتٰبِ | الۡمُبِيۡنِ ۙ ② | اِنَّا | جَعَلۡنٰهُ | قُرۡءٰنًا |
|---|---|---|---|---|---|
| ح م | قسم دې په کتاب | واضحه باندې | بيشکه مونږه | جوړ کړې دې دا کتاب | قرآن |

حم په دې واضحه کتاب باندې قسم دې | مونږ دا د عربئ ژبې قران ( په دې غرض جوړ کړې دې

| عَرَبِيًّا | لَّعَلَّكُمۡ | تَعۡقِلُوۡنَ ۚ ③ | وَاِنَّهٗ | فِىۡۤ اُمِّ الۡكِتٰبِ |
|---|---|---|---|---|
| دعربئ ژبې (٢) | دپاره ددې چې تاسو | پوهه شئ | او بيشکه دا قرآن | په اصل دکتاب کښې |

چې تاسو پرې پوهه شئ | او بيشکه دا قران پاک مونږ سره په لوح محفوظ کښې موجود دې (٣)

---

(١) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ج ١٦، ص ٥٩، ٦٠، والشفاء للقاضی عياض: ج ٢، ص ١١٣، ١١٤

(٢) **د قرآن نورانيت اوعظمت** : د قرآن قسم يې اوخودلو چه واضح دې او ددې معنی ښکاره دی چه الفاظ يې نورانی دی چه د ټولو نه زياته فصيح اوبليغ ژبه عربی کښې نازل شوې دې دا د دې د پاره چه خلق سوچ اوکړی او نصيحت او عبرت حاصل کړی . مونږ دا قرآن په عربی ژبه کښې نازل کړې دې . څنګه چه بل ځائې کښې دی عربی واضح ژبه کښې مو دا نازل کړې دې .

(٣) ددې شرافت او لويه مرتبه کومه چه عالم بالا کښې ده هغه بيان فرمائی چه زمکې والو ته د هغه منزلت او قدر معلوم شی وې فرمائيل چه دا په لوح محفوظ کښې ليکلې شوې دې **لدينا** نه مراد مونږ سره د **لعلي** نه مراد مرتبې والا عزت والا شرافت او فضيلت والا دې د حکيم نه مراد محکم او مضبوط چه د باطل د ملاويدو نه او د نا حق سره د خلط ملط کيدو نه ...

[باقی په راروانه صفحه...

| لَدَيْنَا | لَعَلِيٌّ | حَكِيمٌ ۝ | أَفَنَضْرِبُ | عَنْكُمُ |
|---|---|---|---|---|
| زمونږ سره | داوچتې مرتبې | او دحکمت نه ډك كتاب دې | آيا پس مونږه اوګرځوؤ | ستاسو نه |

داوچتې مرتبې کتاب دې او حکمت نه ډک دې | آیا مونږ به ستاسو نه دا د نصیحت [کتاب]

| الذِّكْرَ | صَفْحًا | أَنْ كُنْتُمْ | قَوْمًا | مُّسْرِفِينَ ۝ |
|---|---|---|---|---|
| دا نصيحت | په ګرځولو سره | صرف په دې وجه چې يئ تاسو | يو قوم | دحد نه اوړيدونکي |

د دې وجې واړوو | چې تاسو داسې خلق يې چه د مناسب حد نه تيريدونکي يئ

| وَكَمْ | أَرْسَلْنَا | مِنْ نَّبِيٍّ | فِي الْأَوَّلِينَ ۝ | وَمَا يَأْتِيهِمْ | مِّنْ نَّبِيٍّ |
|---|---|---|---|---|---|
| او ډير ليږلی دی مونږه | پيغمبران | په مخکينو خلقو کښې | اونه به راتلو هغوئ ته | يو پيغمبر | |

اومونږ پخوانو خلقوته څومره ډير پيغمبران ليږلی وو؟(۱) | او دغې خلقو ته يو پيغمبر هم داسې نه وو

...بقيه د تيرمخ]. پاك دې يو بل آيت کښې د دې کلام پاك د بزرګې بيان په دې الفاظو سره دې (اِنَّهٗ لَقُرْاٰنٌ كَرِيْمٌ) يو بل خائې دی (كَلَّآ اِنَّهَا تَذْكِرَةٌ) يعنی د قرآن کريم په لوح محفوظ کښې درج دې دې ته سوا د پاك فرشتو نه څوك لاس هم نه شي لګولې . دا درب العالمين د طرف نه نازل شوې دې.او وې فرمائيل چه قرآن د نصيحت څيز دې د چا چه زړه غواړی قبول دې کړی . هغه په داسې صحيفو کښې دې چه معززې دی او اوچت درجې والا دی او مقدس دی چه د داسې ليکلو والا په لاس کښې دی چه عزت والا او پاکې دی . د دې دواړو آيتونو نه علماء استنباط کړيدې چه بې اودسه قرآن له لاس اوړل نه دی پکار لکه څنګه چه په يو حديث کښې هم راغلې دی (حديث لا يمس القران ،طرفته اشاره ده موطا امام مالک :۱۹۹/۱) په شرط ددې چه هغه صحيح ثابت شی . څکه چه په عالم بالا کښې فرښتې د دې کتاب ډير عزت او تعظيم کوی په څه کښې چه دا قرآن ليکلې شوې دې د دې وجې په دې عالم کښې مونږ له بدرجه اولی د دې قرآن ډير عزت او اکرام پکار دې څکه چه دا زمکې والو د پاره راليږلې شوې دې او د دې خطاب هم دوی ته دی نو دوی له د قرآن ډير زيات ادب او تعظيم پکار دې او ورسره ورسره د دې احکام منل او په هغې عامل جوړيدل پکار دی . څکه چه د الله ﷻ فرمان دې چه دا مونږ سره په ام الکتاب کښې دې او ډير اوچت او حکمت والا دې .

د دې نه پس د آيت خو يو معنی دا شوې ده آيا تاسو دا ګنړلې ده چه د اطاعت او فرمان بردارې نه کولو باوجود به مونږه تاسو پريږدو او تاسو ته به عذاب نه درکوو .

دويمه معنی دا ده چه ددې امت مخکنو خلقو کله چه قرآن دروغ اوګنړلو که هغه وخت دا قرآن اوچت کړې شوې وې نو ټوله دنيا به هلاك کړې شوې وه . خو د الله ﷻ وسيع رحمت دا خوښه نه کړله او برابر د شلو کالو نه زياته مودې پورې دا قرآن نازليدلو . ددې قول مطلب دا دې چه دا د الله ﷻ لطف او رحمت دې چه هغه د نه منونکو د انکار او د بد باطن خلقو د شرارت په وجه هغوئ ته نصيحت او وعظ کول نه پريږدی ددې وجې چه په دوی کښې چه کوم نيکې والا دی هغه درست شی او چه کوم درست کيږی نه په هغوئ باندې حجت تمام شی .

(۱) بيا الله تبارك و تعالی خپل نبی محمد ﷺ ته تسلی ورکوی او فرمائ چه ته د خپل قوم په تکذيب مه پريږه صبر او تسلی ساته د دوی نه مخکښې چه کوم قومونه وو هغوئ له هم مونږ رسولان او نبيان ليږلې وو او دوی ټولو خپل خپل نبيانو سره تمسخر کړې وو بيا مونږه هغوئ هلاك کړل . هغوئ ستاسو د زمانې والا خلقو نه زيات زور والا او طاقت والا وو . لکه چه په بل آيت کښې دی آيا هغوئ په زمکه باندې او نه ګرځيدل او وې نه ليدل ؟ چه د دوی نه د مخکښنو...[باقی په راروانه صفحه...

| إِلَّا | كَانُوا | بِهِ | يَسْتَهْزِءُونَ ۝ | فَأَهْلَكْنَا |
|---|---|---|---|---|
| مګر \| وو هغوئ \| چي په هغه پوري به ئي | توقي | کولي \| | | پس هلاک کړل مونږه هغه خلق \| |

راغلي چي هغوئ ورپوري توقي نه وي کړي\| نو مونږ هغه ټول خلق هلاک کړل \| کوم چي

| أَشَدَّ | مِنْهُمْ | بَطْشًا | وَّمَضَىٰ | مَثَلُ الْأَوَّلِينَ ۝ |
|---|---|---|---|---|
| چي زيات سخت وو \| | ددوئ نه \| | په قوت کښي \| | او تير شوي دی \| | مثالونه دمخکينو خلقو \| (۱) |

ددې خلقو نه طاقتور وو\| اودغه شان سلوک د پخوانو ډيرو خلقو سره شوي دي

## آسان ترجمه قرآن

حٰمٓ. قسم دې په دې واضحه کتاب باندې. مونږ دې لره د عربي ژبې قرآن جوړ کړي دي، دې دپاره چه تاسو پوهه شئ او حقيقت دا دې، چه دا زمونږ سره په لوح محفوظ کښې د لوئې او چتې درجې والا د حکمت نه ډک کتاب دې آيا مونږ وارؤ ستاسو نه دا نصيحت ددې وجې نه چه تاسو د حد نه تيريدونکې خلق يئ او ډير پيغمبران مونږ ستاسو نه پخوانو خلقو کښې هم ليږلي دی. او دغې خلقو ته هيڅ يو نبي داسې نه دې راغلي، چه هغه پورې دوی ټوقې نه وی کړې بيا چه کوم خلق ددوی (مکې والو) نه زيات زورآور وو، مونږ هغوی هلاک کړل، او ددې پخوانو خلقو حال تير شوې دې.

## خلاصه تفسير

﴿حٰمٓ ۝﴾ ددې معنى الله تعالى ته معلومه ده ﴿وَالْكِتٰبِ الْمُبِيْنِ ۝﴾ [قسم] دې [په دې کتاب واضح ﴿اِنَّا جَعَلْنٰهُ قُرْءٰنًا عَرَبِيًّا لَّعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ ۝﴾ چه مونږ داپه عربئ ژبه جوړکړې دې ددې دپاره چه] اے عربو [تاسو] په اسانئ سره [پوه شئ ﴿وَاِنَّهٗ فِيْٓ اُمِّ الْكِتٰبِ لَدَيْنَا لَعَلِيٌّ حَكِيْمٌ ۝﴾ او هغه مونږ سره په لوح محفوظ کښې دلوئ مرتبې او حکمت نه ډك کتاب دې] پس هرکله چه هغه په پوهيدو کښې اسان او خاص زمونږ د حفاظت او اعجاز په وجه دلوئ مرتبې والا اوحکيمانه مضامينو باند مشتمل دې نو داسې کتاب ضرور منل پکاردی ليکن که تاسونه منئ نو بيا هم مونږ دخپل حکمت په تقاضا سره ددې ليږل او تاسو لره ئ مخاطب جوړول نه پريږدو چنانچه ارشاد دې چه﴿] اَفَنَضْرِبُ عَنْكُمُ الذِّكْرَ صَفْحًا﴾ [ايا مونږ تاسونه دې نصيحت] نامې [لرمحض [په دې خبره واپس کړو﴿اَنْ كُنْتُمْ قَوْمًا مُّسْرِفِيْنَ ۝﴾ چه تاسو د حد] داطاعت [نه تيريدونکې يئ] او دې لره نه منئ يعنې خواه که تاسو منئ اوکه نه منئ مګر نصيحت به برابر کولې شي او دافيض به خامخا کامليږی چه په دې سره مؤمنان نفع واخلي او په تاسو حجت قائم شي﴿وَكَمْ اَرْسَلْنَا مِنْ نَّبِيٍّ فِي الْاَوَّلِيْنَ ۝﴾ [او مونږ په وړاندينوخلقو کښې] سره د هغوی د دورغږن کولو [ډيرنبيان ليږلی

---

...بقيه د تيرمخ]... خلقو څه انجام اوشو؟ چه د دوی نه په تعداد او په طاقت کښې ډير وړاندې وو . د دې مضمون نور هم ډير آيتونه دی .

(۱) بيا فرمائي چه د مخکښينو خلقو مثالونه تير شول يعنې د هغوئ عادتونه سزاګانې اوعبرتونه لکه چه د دې سورت په آخر کښې يئ اوفرمائيل چه مونږ هغوئ تير شوی خلق او د راتلونکو د پاره عبرت جوړ کړل . او لکه چه فرمان دې سنته الله التي يعنې د الله ﷻ طريقه چه د هغه په بندګانو کښې د مخکښې نه راروانه ده اوته به دا بدليدو والا بيا نه مومې .

دی] داسې نه ده شوې چه دهغوی د دروغژن کولو په وجه سره سلسله دنبوت بنده شوې ده [او] اے پیغمبر ﷺ لکه څنګه چه مونږ ددوی د دورغژن کولو پرواه نه کوو دغه شان ته هم څه پرواه او غم مه کوه ځکه چه د[هغو] ورومبو [خلقو] هم داحال وو چه ﴿وَمَا يَأْتِيهِم مِّن نَّبِيٍّ إِلَّا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِءُونَ﴾ هغوی [ته هم څوك نبی داسې نه دې راغلې چه هغوی ورپورې مسخرې نه دی کړې ﴿فَأَهْلَكْنَا أَشَدَّ مِنْهُم بَطْشًا﴾ بیا مونږ هغو خلقو لره کوم چه ددې] مکې والونه [زیات زور اور وو] د دروغژن کولو اومسخرو په سزا کښې [تباه کړل ﴿وَمَضَىٰ مَثَلُ الْأَوَّلِينَ﴾ او دورومبو خلقو دا حالت تیرشوې دې] پس مه ته غم کوه چه د دوی هم داسې حال کیدونکې دې لکه چه په بدر وغیره کښې وشو اونه دې دوی بې فکره کیږی چه نمونه موجوده ده

## معارف او مسائل

﴿حم ۝ وَالْكِتَابِ الْمُبِينِ﴾ دامکی سورت دې البته مقاتل رحمه الله فرمائی چې دا آیت ﴿وَاسْأَلْ مَنْ أَرْسَلْنَا﴾ مدنی دې[1]. او یو قول دا هم دې چې دا سورة د معراج په وخت آسمان څخه نازل شوې دې [روح المعانی][2]. والله اعلم.

﴿وَالْكِتَابِ الْمُبِينِ﴾[قسم دې په واضح کتاب باندې] ددې څخه مراد قرآن کریم دې ، الله ﷻ چې کله په یو څیز باندې قسم خوری نو عموما هغه څیز د روستو دعوې دپاره دلیل وی . دې ځائې په قرآن کریم باندې قسم خوړلو څخه دې طرفته اشاره کړې شوې ده . چې قرآن عظیم الشان پخپله د خپلو معجزو په وجه دخپل حقانیت دلیل دې ، او قرآن عظیم الشان ته د واضح وئیلو مطلب دادې چې په دې کښې د وعظ او نصیحت کوم مضامین دی هغه په آسانئ سره پوهه کښې رازی . خو تر څو چې ددې څخه د شرعی احکامو د استنباط تعلق دې نو بلاشبه دا ډیر مشکل کار دې . او دا پوره اجتهاد غواړی او ددې څخه بغیر دا ممکن نه دی . چنانچه بل ځائې کښې دا خبره واضحه کړې شوې ده چې ﴿وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِن مُّدَّكِرٍ﴾ دې کښې فرمائیلې شوی دی چې قرآن عظیم الشان د نصیحت اخستلو دپاره آسان کړې شوې دې . خو ددې څخه د اجتهاد او استنباط آسانیدل نه لازمیږی . بلکه نورو دلائلو سره ثابت دی چې ددې کار دپاره متعلقه علوم په پوره مهارت سره حاصلول ضروری دی .

**مبلغ لره مایوسه کیدل نه دی پکار** ﴿أَفَنَضْرِبُ عَنكُمُ الذِّكْرَ صَفْحًا أَن كُنتُمْ قَوْمًا مُّسْرِفِينَ﴾ [آیا مونږ به ستاسو نه دا نصیحت په دې خبره باندې لرې کړو چې تاسو دحد نه تیریدونکی یئ؟] مطلب دا دې چې تاسو پخپله سرکشئ او نافرمانئ کښې څومره هم د حد نه تیر شئ خو تاسو د قرآن عظیم الشان په ذریعه نصیحت کول نه پریږدو . ددې نه معلوم شو چې کوم کس د دعوت و تبلیغ کار کوی نو هغه ته پکار دی چې هر سړی ته ددې پیغام اورسوی . او صرف په دې خبره باندې یو دلې ته تبلیغ کول نه دی پریښودل پکار چې دا خلق خو ډیر زیات ملحدان ، بې دینه او فاسقان فاجران دی . دوئ ته به څه تبلیغ کوو

[1]) تفسیر القرطبی: ج ۱۶، ص ۶۱
[2]) تفسیر روح المعانی: ج ۲۳، ص ۲۷، مطبوعة مکتبة الرشید، لاهور.

وَلَئِنْ سَأَلْتَهُمْ مَّنْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ

او که چرې | تپوس اوکړې ته ددوئ نه | چې چا | پیدا کړی دی | آسمانونه | او زمکه |

او اې نبی ﷺ! که ته د دوی نه تپوس اوکړې | چې آسمانونه او زمکه چا پیدا کړی دی

لَيَقُولُنَّ خَلَقَهُنَّ الْعَزِيزُ الْعَلِيمُ ۙ الَّذِي جَعَلَ

نو خامخا به اووائی | چې پیدا کړی دی دا | غالب | او عالم الله | هغه [الله] | چې جوړه ئې کړه

نو دوئ به خامخا اووائی | چې دا زبردست او پوهه الله ﷻ پیدا کړی دی | هغه الله ﷻ

لَكُمُ الْأَرْضَ مَهْدًا وَّجَعَلَ لَكُمْ فِيهَا سُبُلًا

ستاسو دپاره زمکه | زانګو | او جوړ ئې کړې | ستاسو دپاره | په هغې کښې لارې |

چې زمکه ئې فرش جوړه کړې ده | ..........او ستاسو دپاره یې په دې کښې لارې جوړې کړې دی

لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ ۚ وَالَّذِي نَزَّلَ مِنَ السَّمَاءِ

دپاره ددې چې تاسو | دخپل منزل لار بیا مومئ | او هغه [الله] | چې نازلې ئې کړې | دآسمان نه |

چې تاسو خپل منزل مقصود ته اورسیږئ | او الله ﷻ هغه ذات دې چې د پورته نه ئې په اندازه اوبه

مَاءً بِقَدَرٍ ۚ فَأَنْشَرْنَا بِهِ بَلْدَةً مَّيْتًا ۚ كَذٰلِكَ

اوبه | په خاص مقدار سره | پس ژوندئ کړه مونږه | په دې سره | زمکه مړه | همدارنګې به |

راووړلې | ..........نو بیا مونږ په هغې سره مړه زمکه راژوندئ کړه | هم دغه شان به تاسو

تُخْرَجُونَ وَالَّذِي خَلَقَ الْأَزْوَاجَ كُلَّهَا وَجَعَلَ

تاسو راااویستل شئ | او هغه [الله] | چې پیدا ئې کړې جوړې | ټولې | او جوړه ئې کړه |

[دقبرونو نه] راویستلئ شئ | او الله ﷻ هغه ذات دې | چې ټول څیزونه ئې جوړې پیدا کړی دی

لَكُمْ مِّنَ الْفُلْكِ وَالْأَنْعَامِ مَا تَرْكَبُونَ ۙ

ستاسو دپاره | دکشتئ نه | او دخناورو نه | هغه ذریعه | چې تاسو پرې سورلی کوئ |

او ستاسو دپاره ئې بیړئ او څاروی پیدا کړی دی | ...چې تاسو پرې سورلئ کوئ

لِتَسْتَوُوا عَلٰى ظُهُورِهِ ثُمَّ تَذْكُرُوا نِعْمَةَ رَبِّكُمْ

دپاره ددې چې تاسو برابر سواره شئ | په شاګانو دهغې | بیا تاسو یاد کړئ | نعمت د رب ستاسو |

دپاره ددې چې تاسو دهغې په شا برابر کینئ | اوکله چې پرې سوارۀ شئ | نو د الله ﷻ نعمت یاد کړئ

إِذَا اسْتَوَيْتُمْ عَلَيْهِ وَتَقُولُوا سُبْحٰنَ الَّذِي سَخَّرَ

کله چې برابر کینئ تاسو | په هغې باندې | او اووایئ | پاک دې هغه ذات | چې تابع ئې کړل |

اودا اووائې چې هغه ذات پاک دې | چې دا سې الوئې لوئې مخلوق ئې زمونږ تابع کړی دی

لَنَا | هٰذَا | وَمَا كُنَّا | لَهٗ | مُقْرِنِيْنَ ﴿۱۳﴾ | وَاِنَّآ | اِلٰى رَبِّنَا

دپاره زمونږه | دا څيزونه | اونه وو مونږه | دې لره | تابع كونكي | او بيشكه مونږه | رب خپل ته |

...... | گڼى مونږ خو [په خپل طاقت] دا قابو كولي نه شو | او مونږ به تول خپل

لَمُنْقَلِبُوْنَ ﴿۱۴﴾ | وَجَعَلُوْا | لَهٗ | مِنْ عِبَادِهٖ | جُزْءًا ؕ

خامخا واپس ورتلونكي يو | او جوړ كړو دې كافرانو | هغه لره | دبندگانو دهغه نه | يوه حصه يعني اولاد

رب ته واپس ورځو | اودوئ د الله ﷻ په بندگانو كښې هغه دپاره يوه حصه مقرر كړې ده

اِنَّ الْاِنْسَانَ | لَكَفُوْرٌ | مُّبِيْنٌ ﴿۱۵﴾ؕ | اَمِ اتَّخَذَ | مِمَّا

بيشكه | انسان | خامخا ناشكره دې | ښكاره | آيا اونيولې [خوښې كړې] الله | د هغې نه

حقيقت دا دې چې انسان ښكاره ناشكره دې | ...... آيا هغه دخپل مخلوق نه

يَخْلُقُ | بَنٰتٍ | وَّاَصْفٰكُمْ | بِالْبَنِيْنَ ﴿۱۶﴾ | وَاِذَا

چې پيدا كوى ئې هغه | لونړه | او غوره ئې كړئ تاسو | په ځامنو سره | او هر كله چې

ځان دپاره [هيله] لونړه خوښې كړې دى | اوتاسو ئې په ځامنو سره غوره كړئ | او حال دادې

بُشِّرَ | اَحَدُهُمْ | بِمَا | ضَرَبَ | لِلرَّحْمٰنِ

زيرى وركړې شى | يو ددوئ ته | په هغې اولاد سره | چې بيان كړې دې دوئ | دپاره درحمان

چې څه وخت دوئ په هغه څيز خبر كړې شى | كوم چې دوئ د رحمن [الله ﷻ] دپاره

مَثَلًا | ظَلَّ | وَجْهُهٗ | مُسْوَدًّا | وَّهُوَ | كَظِيْمٌ ﴿۱۷﴾ | اَوَمَنْ

په مثال كښى | نوشى | مخ دهغه | تور | او هغه | دك وى دغم نه | آيا هغه څوك |

بيان كړى دى | نو [د غم اوغصې د وجې] مخ ئې تور شى | اوډير زيات غمژن شى | آيا هغه څوك چې په دول

يُنَشَّؤُا | فِى الْحِلْيَةِ | وَهُوَ | فِى الْخِصَامِ | غَيْرُ مُبِيْنٍ ﴿۱۸﴾

چى لويوي كيږى | په كالو كښى | او هغه | په جگړه كښى | نه شى بيانولې مدعا خپله |

كښې ساتلې شي اوپه جگړه كښې په وضاحت سره دليل نشى بيانولې | [هغه دنارينه سره برابركيدېشى]

وَجَعَلُوا | الْمَلٰۤئِكَةَ | الَّذِيْنَ | هُمْ | عِبٰدُ الرَّحْمٰنِ | اِنَاثًا ؕ | اَشَهِدُوْا

اووې گڼړلې | فرښتې | هغه | چې هغوئ | بندگانې دخدائې دى | ښځې | آيا حاضر وو دوئ

اودوئ فرښتې چې دالله ﷻ بندگانې دى زنانه گڼړلې دى | نو آيا دوئ په هغه وخت كښې موجود وو

خَلْقَهُمْ ؕ | سَتُكْتَبُ شَهَادَتُهُمْ | وَيُسْئَلُوْنَ ﴿۱۹﴾

په وخت دجوړښت دهغوئ كښى | زر به ليكلې كيږى گواهى ددوئ | او تپوس به اوكړې شى ددوئ نه

څه وخت چې هغوى الله پيدا كولې | ددوئ دا دعوې ليكلې شى | اوتپوس به ترې كيږى

وَقَالُوْا | لَوْشَآءَ | الرَّحْمٰنُ | مَا عَبَدْنٰهُمْ ؕ | مَالَهُمْ

اووايى دوئ | كه غوښتلې | رحمان خدائې | نونه به كولې مونږ عبادت ددوئ | نشته دوئ لره

اودوئ وائي چې كه الله ﷻ غوښتلې نو مونږ به ددې [فرښتو] عبادت نه كولو | دوئ د

بِذٰلِكَ مِنْ عِلْمٍ ۚ إِنْ هُمْ إِلَّا يَخْرُصُونَ ۝٢٠ أَمْ آتَيْنٰهُمْ

په دې خبره | څه علم | نه دي دوی | مګر اټکل چلوی | آیا ورکړې وو مونږ دوی ته

حقیقت نه هډو خبر نه دی | خو په اټکل پسې روان دی | ........آیا مونږ دې خلقو ته

كِتٰبًا مِّنْ قَبْلِهٖ فَهُمْ بِهٖ مُسْتَمْسِكُوْنَ ۝٢١ بَلْ قَالُوْا

کتاب | مخکښې ددې نه | چې ګنې دوئ | په هغې سره | منګولې لګونکې دی | بلکه وائې دوئ

ددې نه وړاندې څه کتاب ورکړې دې | چې دوئ بې بنیاده په شرک باندې ټینګ دی ؟| بلکه دوئ وائی

إِنَّا وَجَدْنَا آبَاءَنَا عَلٰى أُمَّةٍ وَإِنَّا عَلٰى آثٰرِهِمْ

بیشکه|موندلی دی مونږه|پلاران زمونږه|په یوه طریقه باندې|اوبیشکه مونږه|په قدمونو دهغوئ باندې

چې مونږ خپل پلار نیکه په یوه لار موندلی وو | اوس مونږ په هغوئ پسې روان یو

مُهْتَدُوْنَ ۝٢٢ وَكَذٰلِكَ مَا أَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ فِيْ قَرْيَةٍ

تلونکې یو | او دارنګې | نه وؤ لیږلی مونږه | مخکښې ستا نه | په یو کلي کښې

........اودغه شان مونږ ستانه وړاندې چې کوم یو کلي ته هم څوک

مِّنْ نَّذِيْرٍ إِلَّا قَالَ مُتْرَفُوْهَا ۙ إِنَّا وَجَدْنَا

یو یرونکې پیغمبر | مګر اووئیل | مالدارو خلقو دهغه کلي | بیشکه موندلی دی مونږه

ویرونکې لیږلې دې | نو د هغې کلي خوشحاله خلقو ورته دا وئیلی وو | چې مونږ خپل پلار نیکه

آبَاءَنَا عَلٰى أُمَّةٍ وَإِنَّا عَلٰى آثٰرِهِمْ مُّقْتَدُوْنَ ۝٢٣

پلاران زمونږه | په یوه طریقه باندې | او بیشکه مونږه | په قدمونو دهغوئ باندې | روان یو

هم په دې طریقه موندلی وو | اومونږ د هغوی په تابعدارئ کښې په هغوئ پسې روان یو

قٰلَ أَوَلَوْ جِئْتُكُمْ بِأَهْدٰى مِمَّا

ورته اووئیل پیغمبر | آیا اګر که راوړې دې ماتاسو ته | زیات ښه لار ښودونکې | دهغې نه

پیغمبر ورته اووئیل | اګر که ما درته د هغې نه بهترینه طریقه راوړې وی | په کومه چې تاسو

وَجَدْتُّمْ عَلَيْهِ آبَاءَكُمْ ۚ قَالُوْا إِنَّا

چې موندلی دی تاسو | په هغې باندې | پلاران ستاسو | اووئیل هغوئ | بیشکه مونږه

خپل پلار نیکه موندلی وو انوبیا هم تاسو زما خبره نه منئ؟| ......هغوئ به ورته اووئیل | چې [بیاهم]

بِمَا أُرْسِلْتُمْ بِهٖ كٰفِرُوْنَ ۝٢٤ فَانْتَقَمْنَا مِنْهُمْ

په هغې چې لیږلی شوی یئ تاسو | په هغې | انکار کونکې یو | پس بدل واغستو مونږه | دهغوئ نه

مونږ ستاسو د پیغام قبلولو نه انکاریان یو | ......نومونږ د هغوی نه بدله واخستله

فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِيْنَ ۝٢٥

پس اوګوره | څرنګې وؤ | انجام | ددروغ ګڼړونکو |

نوته اوګوره چې د دروغ ګڼړونکو انجام څه شو |

## آسان ترجمه قرآن

او که ته ددې (مشرکانو) نه تپوس اوکړې. چه دا ټول آسمانونه او زمکه چا پیدا کړې دی. نو هغوی به ضرور دا اووائی چه دې لره هغه ذات پیدا کړې دی چه د اقتدار مالک هم دې، او دعلم مالک هم دې. هغه ذات دې، چه ستاسو دپاره ئې زمکه بستره د آرام جوړه کړه، او په دې کښې ئې ستاسو دپاره لارې جوړې کړې، دې دپاره چه تاسو منزل ته اورسئ او کوم ذات چه د آسمان نه یو خاص اندازه کښې اوبه راورولې دی، بیا مونږ دهغې په ذریعې سره یوه مړه زمکه ژوندئ کړه دغه شان به تاسو (د قبرونو نه) راویستلې کیږئ، (او نوې ژوند به درکولې شي). او کوم ذات چه هر قسمه جوړې پیدا کړې دی او ستاسو دپاره ئې هغه کشتئ او چارپایان جوړ کړې دی، چه په هغې باندې تاسو سورلی کوئ دې دپاره چه تاسو اوخیژئ په شاګانو د هغې باندې، بیا چه کله اوخیژئ او کینئ، نو د خپل پروردګار نعمت یاد کړئ، او دا اووایئ چه: پاک دې هغه ذات، چه هغه دا سورلی زمونږ دپاره تابع کړه، ګنې په مونږ کښې دا طاقت نه وو، چه دې لره مو په قابو کښې راوستلې وې. او بے شکه مونږ خپل پروردګار طرف ته واپس کیدونکې یُو او دغې (مشرکانو) خلقو دا خبره جوړه کړې ده چه د الله تعالی په خپله دهغه په بندګانو کښې څوک جزء دې حقیقت دادې، چه انسان ښکاره ناشکره دې آیا الله تعالی په خپل مخلوق کښې د خپل ځان دپاره لونړه خوښې کړې، او تاسو ئې د ځامنو دپاره غوره کړئ. حالانکه په دوی کښې چه کله چاته د هغې (لور) د پیدائش خوشخبری ورکړې شي، کومه چه ده رحمٰن (خدائې) ته منسوب کړې ده نو دده مخ تور شي، او په زړه کښې د غم نه ډک وي. او آیا (الله تعالی داسې اولاد خوښ کړې دې) چه په ګانو کښې پاللې شي او چه د جګړې په وخت کښې خپله خبره په وضاحت سره وئیلې هم نشي؟ ددې نه علاوه هغوی فرښتو لره چه د رحمن خدائې بندګان دی، مؤنث جوړ کړې دی، آیا دا خلق د هغوی د تخلیق په وخت کښې موجود وو؟ ددوی دا دعوٰی به اولیکلې شي، او دوی نه به دې باره کښې تپوس کولې شي. او دوی وائی چه: که الله تعالی غوښتلې، نو مونږ به ددې (فرښتو) عبادت نه وې کړې، دوی ته ددې خبرې د حقیقت لږ شان علم هم نشته، او ددوی کار سوا ددې نه هیڅ نه دې، چه اندازې لګوی. آیا مونږ دوی ته ددې نه مخکښې څه کتاب ورکړې وو، چه دوی هغې لره کلکه نیونکی دی نه، بلکه دوی وائی، چه مونږ خپل پلار نیکه په یوې طریقې باندې موندلې وو، او مونږ د هغوی په نقش قدم باندې په صحیح لاره روان یو او (اے پیغمبره) مونږ ستا نه مخکښې چه کوم کلی ته هم خبردار کونکې (پیغمبر) اولیږو، نو د هغه ځائې دولت مندو خلقو به هم دا اووئیل چه: مونږ خپل پلار نیکه په یوې طریقې باندې موندلې دی، او مونږ دهغوی په نقش قدم باندې روان یو، پیغمبر اووئیل چه: تاسو خپل پلار نیکه چه په کومې طریقې باندې موندلې وو، که زه تاسو ته دهغې نه زیات هدایت والاخبرې سره راغلې یم، نو آیا بیا به هم (تاسو په خپلې طریقې باندې کار کوئ؟) هغوی جواب ورکړو چه: ته په کوم پیغام سره رالیږلې شوې ئې، مونږ دهغې منونکې نه یو. نتیجه دا شوه، چه مونږ دهغوی نه انتقام واخستلو. اوس اوګوره، چه څرنګه انجام شو د دروغژن کونکو.

## خلاصه تفسیر

﴿وَلَىِٕنْ سَاَلْتَهُمْ﴾ [او که ددوی نه تپوس وکړې ﴿مَّنْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ﴾ چه اسمانونه اومزکه چاپیدا کړی دی ﴿لَيَقُوْلُنَّ خَلَقَهُنَّ الْعَزِيْزُ الْعَلِيْمُ﴾ نو دوی به خامخا دا ووائی چه هغوی لره

زبردست پوه] خدایٔ [پیداکړی دی] او ظاهره ده چه کوم ذات یوازې دا عظیم مخلوقات پیداکړی وی عبادت هم یوازې د هغه کول پکاردی په دې وجه توحید په خپله ددوی په اقرار سره ثابت شو وړاند الله تعالی توحید لره د زیات مدلل کولو دپاره خپل هغه کارونه بیانوی کوم چه په توحیددلالت کوونکی دی یعنی دامزکه او اسمانونه هغه پیداکړی دی ﴿ٱلَّذِى جَعَلَ لَكُمُ ٱلْأَرْضَ مَهْدًا﴾ [کوم چه ستاسو د] ارام د [پاره مزکې لره] په مثل د [فرش جوړه کړه] چه په دې ارام کوئ ﴿وَجَعَلَ لَكُمْ فِيهَا سُبُلًا﴾ [او په هغه] مزکه [کښې هغه ستاسو] منزل مقصود ته درسیدو [دپاره لارې جوړکړې چه] په هغولارو لاړ شئ ﴿لَّعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ﴾ [تاسو منزل مقصود ته ورسیږئ ﴿وَٱلَّذِى نَزَّلَ مِنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءًۢ بِقَدَرٍ﴾ او چاچه داسمان نه اوبه په یو خاص [اندازه سره دخپل مشیت او حکمت مطابق [راوورولې ﴿فَأَنشَرْنَا بِهِۦ بَلْدَةً مَّيْتًا﴾ بیا مونږ په هغو] اوبو [سره اوچې مزکې لره] دهغې په مناسب [ژوندئ کړه] او په دې سره دتوحیدد دلالت نه علاوه داهم پوهیدل پکار دی چه ﴿كَذَٰلِكَ تُخْرَجُونَ﴾ [دغسې به تاسو] هم دخپلو قبرونونه [راوستلې شئ ﴿وَٱلَّذِى خَلَقَ ٱلْأَزْوَٰجَ كُلَّهَا﴾ او چاچه] په مختلفو انواعواو اجناسو کښې ټول مختلف [اقسام] یعنی اصناف [جوړکړل ﴿وَجَعَلَ لَكُم مِّنَ ٱلْفُلْكِ﴾ او ستاسو دپاره هغه کشتئ ﴿وَٱلْأَنْعَٰمِ مَا تَرْكَبُونَ﴾ او څاروی ئې جوړکړل په کومو چه تاسو سوریږئ ﴿لِتَسْتَوُۥا عَلَىٰ ظُهُورِهِۦ﴾ چه تاسو په هغو] کشتو او څاروو په سطح او [شاګانو باند جوخت] په اطمینان سره [کښینئ ﴿ثُمَّ تَذْكُرُوا نِعْمَةَ رَبِّكُمْ إِذَا ٱسْتَوَيْتُمْ عَلَيْهِ﴾ بیا هرکله چه په هغې کښینئ نو دخپل رب نعمت لره] په زړه سره [یادکړئ او] په ژبه سره استحبابا [داسې ﴿وَتَقُولُوا سُبْحَٰنَ ٱلَّذِى سَخَّرَ لَنَا هَٰذَا﴾ او تاسو اووایئ چه دهغه ذات پاك دې کوم چه داڅیزونه زمونږ په قابو کښې کړل ﴿وَمَا كُنَّا لَهُۥ مُقْرِنِينَ﴾ اومونږ خو داسې] طاقتور او هنر مند [نه وو چه هغه موقابو کړی وې] ځکه چه دڅاروی نه زیات طاقت نشته او دالهام حق نه بغیر دکشتئ چلولو په تدبیر سره واقف نه وو د دواړو متعلق الله تعالی تدبیرونه وښودل ﴿وَإِنَّآ إِلَىٰ رَبِّنَا لَمُنقَلِبُونَ﴾ [اومونږ لره د خپل رب طرف ته واپس تلل دی] په دې وجه چه مونږ په دې سواره شو دشکر نه غفلت یا تکبر نه کوو[او] باوجود د توحید د دلیلونو د واضح کیدو ﴿وَجَعَلُوا لَهُۥ مِنْ عِبَادِهِۦ جُزْءًا﴾ [دې خلقو] شرك اختیار کړې دې او هغه هم خومره قبیح چه فرښتو ته دالله تعالی لونړه وائی او دهغو عبادت کوی پس یوه خرابی خو داشوه چه هغوی [د الله تعالی په بندګانو کښې] چه کوم مخلوق دې [د الله تعالی جزء مقرر کړې دې] حال دادې چه د الله تعالی څه جزء کیدل عقلا محال دی [واقعی] ﴿إِنَّ ٱلْإِنسَٰنَ لَكَفُورٌ مُّبِينٌ﴾ داسې [انسان واضح ناشکره دې] چه دالله تعالی سره دومره لوئ کفر کوی چه هغه لره صاحب جزء ګرځوی په کوم سره چه دالله تعالی معاذالله حادث والې لازمیږی غرض یوه خرابی خو داشوه او دویمه خرابی داده چه دا خلق خو لور لره ناقصه ګنړی او بیا دالله تعالی دپاره لونړه منی نو ﴿أَمِ ٱتَّخَذَ مِمَّا يَخْلُقُ بَنَاتٍ﴾ [ایا الله تعالی په خپل مخلوق کښې] ستاسو په ګمان کښې دخپل ځان دپاره خو [لونړه خوښې کړې ﴿وَأَصْفَىٰكُم بِٱلْبَنِينَ﴾ او تاسولره ئې په ځامنو سره مخصوص کړل ﴿وَإِذَا بُشِّرَ أَحَدُهُم بِمَا ضَرَبَ لِلرَّحْمَٰنِ مَثَلًا﴾ حال دا چه] تاسو لونړو لره دومره بدې ګنړئ چه[هرکله په تاسوکښې چاته د هغې شی دپیداکیدو خبر ورکړې شی کوم لره چه ئې د الله تعالی رحمن نمونه] یعنی اولاد [جوړکړې دې] مراد لونړه دی [نو] دومره ناراضه شی چه ﴿ظَلَّ وَجْهُهُۥ

﴿مُسْوَدًّا وَهُوَ كَظِيمٌ﴾ [تو له ورځ دده مخ وران وی او دی په زړه زړه کښې ویلی کیږی] نو د حیرانی
خبره ده چه دالله تعالی طرف ته د نقص نسبت کوی تردې پورې خو د دوی دفاسدې عقیدې
الزامی تردید وو چه تشریح یې په سوره صافات کښې تیره شوې ده وړاند ددې عقیدې تحقیقی
تردید کولې شی چه اګر چه جینئ کیدل بذات خود څه د ذلت یا شرم خبره نه ده لکه چه یې
تاسو ګڼړئ لیکن مونږ ته خو په دې کښې هیڅ شك نشته چه دا دخپل اصل خلقت په اعتبار
سره ناقص العقل او ضعیف الرائ خامخا دی هرکله چه داخبره ده نو ﴿أَوَمَنْ يُنَشَّؤُا فِي الْحِلْيَةِ﴾ [آیا
الله تعالی د اولادګرخولو دپاره جینکئ خوښې کړې [کومې چه] عادتا [په ارائش] او زیبائش
[کښې ویاللې شی] کومې چه دګاڼو [زیوراتو] او ډول سنګار طرف ته د دوی د رغبت سبب
وی او د هغې لازمی نتیجه د عقل او رائ کچه والې وی ﴿وَهُوَ﴾ [او هغه] د فکری قوت
دکمزورئ په بنا ﴿فِي الْخِصَامِ غَيْرُ مُبِينٍ﴾ [په مباحثه کښې قوت دبیان] هم [نه لری] چنانچه ښځې
عموما خپل مافی الضمیر لره په قوت او فصاحت سره په بیانولو کښې دسړو په نسبت کمې
قادر وی اکثر نیمګړې خبره کوی او فضول خبرې ورسره یوځائ کوی دکومو چه په اصل
مقصد کښې هیڅ دخل نه وی دا دوه خرابئ شوې [او] دریمه خرابی د شرك لازمیدونه قطع
نظر داده چه ﴿وَجَعَلُوا الْمَلَائِكَةَ الَّذِينَ هُمْ عِبَادُ الرَّحْمَٰنِ إِنَاثًا﴾ [دغو خلقو فرښتو لره کومې چه د الله
تعالی] مخلوق [بندګان دی] په دې وجه الله تعالی ته ددوی پوره حالت معلوم دې او چونکه
هغه په نظر نه راځی په دې وجه ددوی څه صفت بغیر دالله تعالی دښودلو نه هیڅ ته نه شی
معلومیدې او الله تعالی چرته دانه دی ښودلی چه فرښتې ښځې دی لیکن ددې باوجود دوی
هغولره بې دلیله [ښځې مقررکړی دی] او د هغوی په ښځو کیدونه څه عقلی دلیل موجود دې
نه نقلی په دې وجه مشاهده پکار ده نو ﴿أَشَهِدُوا خَلْقَهُمْ﴾ [آیا دوی د هغوی دپیدائش په وخت
کښې موجود وو] اولیدل یې جواب ظاهر دې چه دوی دفرښتو پیدائش نه دې لیدلې په دې وجه
د دوی ددې احمقانه دعوې حقیقت واضح شو ﴿سَتُكْتَبُ شَهَادَتُهُمْ﴾ [د دوی دا دعوی] کومه چه بې
دلیله ده د اعمالو په دفتر کښې [لیکلې شی او] په قیامت کښې به ﴿وَيُسْأَلُونَ﴾ [د دوی نه
تپوس کیدې شی] دا خبره خو دفرښتو دلونړ کیدو سره متعلق وه [او] وړاند د دغو دمعبود
کیدو متعلق بیان دې چه ﴿وَقَالُوا﴾ [هغه خلق داسې وائی ﴿لَوْ شَاءَ الرَّحْمَٰنُ﴾ چه که الله تعالی]
داخبره په خوشحالئ سره [غوښتلې] چه دملائکو عبادت د نه وی یعنی د هغوی په عبادت سره
هغه ناخوښه وې ﴿مَا عَبَدْنَاهُمْ﴾ [نو مونږ به] چرې هم [د هغوی عبادت نه ووکړې] ځکه چه هغه
به مونږ کولو ته نه پرېښودو بلکه جبرا به یې منع کولو هرکله چه مونږ نه منع کوی نو معلومه
شوه چه هغه د هغوی په عبادت کولو سره ناراضه نه دې بلکه په عبادت کولو سره یې خوشحاله
دې وړاند ددوی تردید دې چه ﴿مَا لَهُمْ بِذَٰلِكَ مِنْ عِلْمٍ﴾ [هغوی ته ددې] خبرې [هیڅ تحقیق
نشته ﴿إِنْ هُمْ إِلَّا يَخْرُصُونَ﴾ محض بې تحقیقه خبره کوی] ځکه چه دالله تعالی خپلو بندګانو ته
په یو کار قدرت ورکول ددې خبرې دلیل نه دې چه هغه په هغې کار راضی هم دې لکه داتمې
پارې دنیمې نه وړاندې آیت سیقول الذین اشرکوا الخ [(۱) کښې ددې تفصیل تیر شوې دې اوس

---

۱) ترجمه: زر ده چه دا مشرکان به وائی که الله غوښتلے نو مونږ به شرک نهٔ کولو او نه به مو پلار نیکه کولو
او نه به مونږ یو څیز ته حرام وګڼلے.

دا وښايئ چه ﴿أَمْ آتَيْنَاهُمْ كِتَابًا مِّن قَبْلِهِ﴾ [ايا مونږ دوی ته ددې] قرآن [نه وړاندې څه كتاب وركړې دې ﴿فَهُم بِهِ مُسْتَمْسِكُونَ﴾ چه دوی] په دې دعوی كښې [د هغې نه استدلال كوی] حقيقت دادې چه نه ددوی سره دليل عقلی شته نه دليل نقلی ﴿بَلْ﴾ [بلكه] محض دخپلو پلارانو نيكونو اتباع ده چنانچه ﴿قَالُوا إِنَّا وَجَدْنَا آبَاءَنَا عَلَىٰ أُمَّةٍ﴾ [هغه خلق وائی چه مونږ خپلو پلارانو نيكونو لره په يوه طريقه موندلی دی ﴿وَإِنَّا عَلَىٰ آثَارِهِم مُّهْتَدُونَ﴾ اومونږ هم په هغوی پسې وروستو وروستو په لاره خو او] لكه څنګه چه داخلق بې دليله بلكه ددليل نه خلاف خپل پخوانې رسم په طور د سندپيش كوی ﴿وَكَذَٰلِكَ مَا أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ فِي قَرْيَةٍ مِّن نَّذِيرٍ﴾ [دغه شان مونږ تانه وړاندې يو كلی ته هيڅ يو پيغمبر نه دې ليږلې ﴿إِلَّا قَالَ مُتْرَفُوهَا﴾ مګر د هغه ځائ خوشحاله خلقو] اولا او متبعينو ئې ثانيا داووئيل ﴿إِنَّا وَجَدْنَا آبَاءَنَا عَلَىٰ أُمَّةٍ﴾ [چه مونږ خپلو پلارانو نيكونو لره په يوه طريقه موندلی دی ﴿وَإِنَّا عَلَىٰ آثَارِهِم مُّقْتَدُونَ﴾ اومونږ هم په هغوی پسې وروستو روان يو] په دې ﴿قَالَ﴾ [د هغوی] هغې [پيغمبر] هغوی ته [ووئيل ﴿أَوَلَوْ جِئْتُكُم بِأَهْدَىٰ﴾ چه ايا] د پلارانو نيكه د رسمونو تابعداری به كوئ [اګر چه ماخو د دې نه ښه] منزل [مقصود ته رسونكې طريقه تاسوته راوړې ده ﴿مِمَّا وَجَدتُّمْ عَلَيْهِ آبَاءَكُمْ﴾ چه په كومه باند تاسو خپلو پلارانو نيكونو لره موندلی دی ﴿قَالُوا إِنَّا بِمَا أُرْسِلْتُم بِهِ كَافِرُونَ﴾ هغوی] په ضد سره [ووئيل چه مونږ خو دهغې] دين منونكی نه يو كوم چه تاته دركړې شوې دې ته پرې] په خپل ګمان سره [راغلې يئ ﴿فَانتَقَمْنَا مِنْهُمْ﴾ پس هركله چه ضد اوعناد د حد نه] زياته شوه دغه وخت [مونږ د هغوی نه بدل واخستو ﴿فَانظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِينَ﴾ پس وګورئ د دروغژن كوونكو څنګه] بد [انجام شو]

## معارف او مسائل

﴿الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ الْأَرْضَ مَهْدًا﴾ [هغه الله ﷻ چې زمكه ئې فرش جوړه كړې ده] مطلب دادې چې د زمكې ظاهری صورت اوددې آرام د فرش په شان دې. نو دا دزمكې د ګول كيدو خلاف نه دی. ﴿وَجَعَلَ لَكُم مِّنَ الْفُلْكِ وَالْأَنْعَامِ مَا تَرْكَبُونَ﴾ [اوستاسو دپاره ئې بيړئ او څاروی پيدا كړی دی ...چې تاسو پرې سورلئ كوئ] د انسان سورلئ په دوه قسمه وی. يو هغه سورلئ چې هغه انسان پخپل صنعت او حرفت سره پخپله جوړوی او بل هغه څناور چې دهغې په پيدا كولو كښې دانسان هيڅ دخل نشته دې. د كشتئ لفظ نه د سورلئ اول قسم مراد دې. او چارپايانو نه دويم قسم مراد دې. بهرحال مقصد دادې چې د انسان په استعمال كښې چې كومې سورلئ دی كه د هغې په تيارولو كښې د انسان د صنعت دخل وی اوكه نه وی ، دا د الله ﷻ يو ډير لوئې نعمت دې. د چارپايانو نعمت كيدل خو بالكل ښكاره دی چې هغه د انسان نه خو څنده زيات طاقتور وی. خو الله تعالی دا د انسان دپاره داسې جوړ كړی دی چې يو ماشوم هم ددوئ په پوزه كښې رسئ اچولو نه پس چرته ئې بوزی نو بوتلئ شی. داشان هغه سورلئ هم دالله تعالی ډير لوئې نعمت دې چې دهغې په تيارئ كښې د انسانی صنعت دخل دې. د هوائی جهاز نه واخله تر سائيكل پورې دا ټولې سورلئ اګر چې انسان پخپله جوړې كړی دی خو ددې صنعت طريقو خودلو والا د الله تعالی نه سوا بل څوك كيدې شی ؟ دا هغه قادر مطلق ذات دې چې انسانی دماغ ته ئې هغه طاقت وركړې دې چې اوسپنه د موم پشان راماتوی ، ددې نه

علاوه ددي صنعت کښې چې کوم کچه مال استعماليږي هغه او دهغې خواص اوآثار خو نيغ په نيغه د الله ﷻ تخليق دی

﴿ثُمَّ تَذۡكُرُواْ نِعۡمَةَ رَبِّكُمۡ﴾ [بيا نو د الله ﷻ نعمت ياد کړئ] په دې کښې اشاره کړې شوې ده چې د يو صاحب عقل کار دادې چې هغه د حقيقي منعم د نعمتونو په استعمال کښې د غفلت نه کار نه اخلي او په دې کښې دې بې پرواهي نه کوي بلکه داخبره دې په ذهن کښې ساتی چې دا د الله تعالی نعمتونه دی په ما باندې ددې شکر کول او د عاجزئی مظاهره کول لازم دی. يو کافر او مؤمن کښې په حقيقت کښې هم دا فرق دې چې دوئ دواړه د کائنات نعمتونه استعمالوی، خو کافر دا په غفلت اوبې پرواهئ سره استعمالوی، اومؤمن دا الله ﷻ دا نعمتونه ډير په عاجزئ سره او انکسارئی سره استعمالوی هم ددې مقصد دپاره قرآن عظيم الشان کښې د مختلفو کارونو په وخت کښې د صبر او شکر کولو او د مختلف دعاګانو غوښتلو تلقين کړې شوېدې اوکه انسان په خپل ژوند په ناسته ولاړه او روانه کښې ددې دعاګانو د غوښتلو معمول جوړ کړی نو ددهٔ هر مباح کار به هم عبادت وی. دا دعاګانې د علامه جزری ﷫ په کتاب حصن حصين کښې او د حکيم الامت اشرف علی تهانوی په کتاب مناجات مقبول کښې کتلې شی.

**د سفر په وخت کښې دعاګانې:** ﴿سُبۡحَٰنَ ٱلَّذِي سَخَّرَ لَنَا هَٰذَا﴾ [اودا اووائې چې هغه ذات پاک دې [چې داسې [الوئې لوئې] مخلوق ئې زمونږ تابع کړی دی] دا په سورلئ باندې د سوريدو نه پس دعا ده. نبی کريم ﷺ نه ډيرو رواياتو کښې دا منقول دی چې کله به نبی کريم ﷺ په سورلئ کيناستل نو دا کلمات به وئيل. او په سورئی د سوريدو پورا مستحب طريقه د علی ﷛ نه منقول ده چې په سورلئ باندې دپښې ايښودو په وخت کښې دې بسم الله اووائی، بيا د سوريدو نه پس دې الحمد لله اووائی. اودهغې نه پس دې دا کلمات اووائی: ﴿سُبۡحَٰنَ ٱلَّذِي تر لَمُنقَلِبُونَ﴾ پورې. [قرطبی] (١).

او د نبی کريم ﷺ نه دا هم مروی دی چې کله به نبی کريم ﷺ په يو سفر تلل نو د مذکوره کلماتو وئيلو نه پس به ئې دا دعا وئيله:

﴿اللهم انت الصاحب في السفر والخليفة في الاهل والمال، اللهم اني اعوذبك من وعثاء السفر وكآبة المنقلب والحور بعد الكور وسوء المنظر في الاهل والمال﴾(٢) او يو روايت کښې دا الفاظ هم منقول دی چې ﴿اللهم لا اله الا انت ظلمت نفسي فاغفرلي وانه لايغفر الذنوب الا انت﴾ [قرطبی](٣)(٤).

﴿وَمَا كُنَّا لَهُۥ مُقۡرِنِينَ﴾ [ګنی مونږ خو[په خپل طاقت] دا قابو کولې نه شو] دا خبره په مشينی سورلو باندې هم صحيح ده لکه څنګه په چارپانو باندې ده. څکه که الله تعالی کچه مال پيدا کړې نه وې، يا ئې په دې کښې هغه آثار او خواص ايښودې نه وې، يا ئې انسانی دماغ ته ددې د

(١) تفسير القرطبي: ج ١٦، ص ٦٨، وسنن ابي داود، كتاب الجهاد، باب ما يقول الرجل اذا ركب: ج ١، ص ٣٥٧
(٢) صحيح مسلم، كتاب الحج، باب استحباب الذكر اذاركب دابته متوجهاً لسفرحج اوغيره- الخ: ج ١، ص ٤٣٤
(٣) تفسير القرطبي: ج ١٦، ص ٦٩، ومسند أحمد، مسند على بن أبي طالب رضى الله عنه، رقم الحديث: ٩٣٠
(٤) ترجمه: اے الله! تا نه علاوه څوک هم دعبادت لائق نشته، بے شک ما خپل ځان باندی ظلم کړی دی، ماته ښښنه اوکړې، څکه چې ته د ګناهونو ښښنکے ذات يې.

استعمالولو هنر نه وي خودلې نو که ټول کائنات يو ځائې شوې وي نو بيا به ئې هم داسې سورلئ نه وي جوړې کړې.

﴿وَإِنَّآ إِلَىٰ رَبِّنَا لَمُنقَلِبُونَ﴾ [او مونږ به ټول خپل رب ته واپس ورځو] ددې الفاظو په ذريعه تعليم ورکړې شوېدې چې کله انسان دنياوي سفر کوي نو دۀ ته پکار دي چې دې هغه مشکل سفر هم راياد کړي چې هغه په هر حال کښې راتلونکې دې او هغه په آسانئ سره دکولو دپاره نيک عملونو نه سوا بل هيڅ سواري به نه وي.

﴿وَجَعَلُوا لَهُۥ مِنْ عِبَادِهِۦ جُزْءًا﴾ [اودوئ د الله ﷻ په بندګانو کښې هغه دپاره يوه حصه مقرر کړې ده] دلته د جزء نه مراد اولاد دې. مشرکانو به فرښتو ته دالله تعالى لونړه وئيلې. او د اولاد په ځائې جزء لفظ ئې استعمال کړو او د کافرانو دهغه باطلې دعوى د عقلي ترديد طرفته يې اشاره کړې ده چې دهغه خلاصه داده چې که د الله ﷻ څوك اولاد وې نو هغه به د هغه ذات جزو وى ځکه چې ځوئې د پلار جزو وى او دا عقلي قاعده ده چې هر کس په خپل وجود کښې د جزء محتاج دې. نو په دې به دا لازم شي چې معاذ الله الله ﷻ هم دخپل اولاد محتاج دې. او ښکاره خبره ده چې الله ﷻ د هيڅ څيز محتاج نه دې.

﴿أَوَمَن يُنَشَّؤُا فِى ٱلْحِلْيَةِ﴾ [آيا هغه څوک چې په ډول کښې ساتلې شي] ددې نه دا معلوم شوه چې د ښځې دپاره دکالو استعمال د شرع موافق جائز دى. اوپه دې باندې اجماع ده خو دې سره دا هم بيان دې چې سنګار کښې دومره زيات شغل نه کوي چې سحر ماښام هر سنګار او سنګار وى نو دا مناسب نه دى بلکه دا رائې او عقل کمزورتيا ده او دا ددې سبب هم دې.

﴿وَهُوَ فِى ٱلْخِصَامِ غَيْرُ مُبِينٍ﴾ [اوهغه په جګړه کښې په وضاحت سره دليل نشي بيانولې] مطلب دادې چې د ښځو اکثريت داسې دې چې هغوئ ما في الضميرله په قوت او وضاحت سره بيانولو باندې د سړو برابر نه دى. ځکه که يو ځائې کښې بحث شي نو دا خپله دعوى نشي ثابتولې او نه د بل دعوى رد کولې شي. خو دا حکم د اکثريت په اعتبار سره دى. که څه ښځو ته د خبرو د طريقې مهارت وى او په دې معامله کښې د سړو نه هم مخکښې لاړې شي نو دا ددې آيت خلاف نه دى. ځکه چې حکم په اکثريت باندې کيږي، او اکثريت بيشکه هم داسې دې.

| | | |
|---|---|---|
| وَإِذْ | قَالَ | إِبْرَٰهِيمُ |
| او کله چې | اووئيل | ابراهيم |
| او کله چې ابراهيم ﷺ ......... | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لِأَبِيهِ | وَقَوْمِهِۦٓ | إِنَّنِى | بَرَآءٌ | مِّمَّا | تَعْبُدُونَ |
| پلار خپل ته | او قوم خپل ته | بيشکه زۀ | بيزاره يم | دهغې نه | چې تاسو ئې عبادت کوئ |
| خپل پلار او خپل قوم ته اووئيل ......... چې زۀ ستاسو دمعبودانو نه بيزاره يم | | | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| إِلَّا ٱلَّذِى | فَطَرَنِى | فَإِنَّهُۥ | سَيَهْدِينِ |
| ماسوا دهغه ذات نه | چې پيدا ئې کړم زۀ | پس بيشکه هم هغه به | لار ښائي ماته |
| سوا د هغه ذات نه چې زۀ ئې پيدا کړې يم | نو هم هغه به راته سمه لاره اوښائي | | |

وَجَعَلَهَا كَلِمَةً بَاقِيَةً فِيْ عَقِبِهٖ لَعَلَّهُمْ

اواوگرزوله ابراهیم دغه کلمه|باقی پاتې کیدونکی|په پشت [اولاد] خپل کښې |دپاره ددې چې هغوئ
اوهغه دا [دتوحید] خبره په خپل اولاد کښې باقي پاتې پرېښوده | ........ د دې دپاره چې

يَرْجِعُوْنَ۝ بَلْ مَتَّعْتُ هٰٓؤُلَآءِ وَاٰبَآءَهُمْ

واپس شي [توحیدته] | بلکه | مابه دژوند سا مانونه ورکول | دوئ له | او پلارانو ددوي له
آئنده هم خلق [دشرک] نه واپس اوګرځي | حقیقت دا دي| چې مادوئ اوددوئ پلار نیکونو ته ډیرډیر

حَتّٰى جَآءَهُمُ الْحَقُّ وَرَسُوْلٌ مُّبِيْنٌ۝ وَلَمَّا جَآءَهُمُ الْحَقُّ

تر دې پورې | چې راغې دوئ ته حق | او رسول صفا بیانونکې | او هر کله چې | راغې دوئ ته حق
سامانونه ورکړی دی|تردې چې رښتینې[قرآن] او واضحه وینا کونکې پیغمبر ورته راغلو|اوکله چې ورته رښتینې

قَالُوْا هٰذَا سِحْرٌ وَّاِنَّا بِهٖ كٰفِرُوْنَ۝

نو اوویېل دوئ | دا جادو دې | او بیشکه مونږه | په دې | انکار کونکی یو |
قرآن راغلو| نو دوئ اووئیل چې دا خو جادو دې | اومونږ خودا نه منو |

## آسان ترجمه قرآن

او هغه وخت یاد کړه، چه کله ابراهیم علیه السلام خپل پلار اوخپل قوم ته وئیلي وو، چه: زه دهغې ځیزونو نه بیزاره یم، د کومو چه تاسو عبادت کوئ. سوا د هغې ذات نه، چاچه زه پیدا کړې یم نوهم هغه ماته لاره ښائي. او ابراهیم علیه السلام دې (عقیدې) لره داسې خبره جوړه کړه، چه دهغه په اولاد کښې باقي پاتې شوه، دې دپاره چه خلق (د شرک نه) راوګرځي. (بیا هم ډیر خلق راونه ګرځیدل) دهغې باوجود ما هغوی ته او دهغوی پلارانو ته د ژوند فائدې ورکړې، تردې پورې چه هغوی ته حق او صفا صفا هدایت ورکونکې پیغمبر راغلو. او کله چه هغه حق هغوی ته راغلو، نو هغوی اووئیل چه: دا خو جادو دې، او مونږ ددې نه انکار کوو.

## خلاصه تفسیر

[او] هغه وخت دیادولو قابل دې ﴿وَاِذْ قَالَ اِبْرٰهِيْمُ لِاَبِيْهِ وَقَوْمِهٖٓ﴾ [هر کله چه ابراهیم] علیه السلام [خپل پلار ته او خپل قوم ته وفرمائیل ﴿اِنَّنِيْ بَرَآءٌ مِّمَّا تَعْبُدُوْنَ۝﴾ چه زه د هغه ځیزونو] دعبادت [نه بیزاره] او بې تعلقه [یم دکومو چه تاسو عبادت کوئ ﴿اِلَّا الَّذِيْ﴾ مګر] د هغه الله تعالی سره تعلق لرم ﴿فَطَرَنِيْ فَاِنَّهٗ سَيَهْدِيْنِ۝﴾ [کوم چه ما لره پیدا کړو بیا هغه ماته] زما دین دنیا د مصلحتونو [لاره ښائی] مطلب دادې چه دې خلقوته د حضرت ابراهیم علیه السلام حال یادول پکاردی چه هغه په خپله هم د توحید معتقد وو [او] د وصیت په ذریعه ﴿وَجَعَلَهَا كَلِمَةًۢ بَاقِيَةً فِيْ عَقِبِهٖ﴾ [هغه هغې] عقیدې [لره په خپل اولاد کښې] هم [یوه قائم پاتې کیدونکې خبره وګرځوله] یعنی خپل اولاد ته ئې هم وصیت وکړو چه دهغې لړ. لړ. اثر د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د بعثت پورې برابر پاتې شو تردې چه په زمانه د جاهلیت کښې هم په عربو کښې ځینې خلقو د شرک نه نفرت کولو او دا وصیت هغوی په دې وجه کړې وو ﴿لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ۝﴾ [چه] په هره زمانه کښې مشرك [خلق] د موحدینونه د توحید عقیده اوږی دشرك نه [واپس کیږی] مګر دا خلق بیا هم نه واپس کیږی او

دې طرف ته توجه نه کوي ﴿بَلْ﴾ [بلکه ﴿مَتَّعْتُ هٰٓؤُلَآءِ وَاٰبَآءَهُمْ﴾ ما] چه کوم [دوی ته او د دوئ پلار نیکه ته] د دنیا [بنه سامان ورکړې دې] په دې کښې منهمك او غافله کیږي ﴿حَتّٰى جَآءَهُمُ الْحَقُّ﴾ [تردې چه] د دې انهماك خوب د غفلت نه د بیدارولو د پاره [دوی ته ربښتونې قرآن] کوم چه د معجز کیدو په وجه د خپل ربښتونوالی خپل دلیل په خپله دې ﴿وَرَسُوْلٌ مُّبِيْنٌ﴾ [او صفا صفا ښودونکې رسول] د الله تعالی د طرف نه [راغې ﴿وَلَمَّا جَآءَهُمُ الْحَقُّ﴾ او هرکله چه دوی ته د اربښتونې قرآن راورسیدو] او اعجازئ ظاهر شو ﴿قَالُوْا هٰذَا سِحْرٌ وَّاِنَّا بِهٖ كٰفِرُوْنَ﴾ [نو وئ ونیل چه دا جادو دې او مونږ دانه منو].

## معارف او مسائل

﴿وَاِذْ قَالَ اِبْرٰهِيْمُ﴾ تیرو شوؤ آیتونو مبارکو کښې په آخر کښې الله ﷻ دا بیان فرمائیلی وو چې د عربو مشرکانو سره د خپل شرك هیڅ دلیل نشته سوا د خپل پلار نیکه. او دا واضح دی چې کله واضح عقلي او نقلي دلائل موجود وی نو د دې په مقابله کښې د خپل پلار نیکه تقلید کول د انصاف څخه ډیره لرې خبره ده. او س د دې آیتونو کښې دې طرفته اشاره کړې شوې ده چې که تاسو د خپل پلار نیکه په لار تگ کول غواړئ نو د ابراهیم ﷺ په لار باندې ولې نه ځئ ځکه چې هغه ستاسو جد اعلی دې او هغه سره خپل نسبی نزدیکت تاسو خپل ځان د پاره فخر گنړئ. هغه نه صرف د توحید قائل وو بلکه خپل اولاد ته ئې د دې نصیحت هم کړې وو. خپله د هغوئ طرز عمل دا ښائی چې هر کله عقلي او نقلي دلائل موجود وی نو صرف د خپل پلار نیکه تقلید کول جائز نه دی. هرکله چې هغوئ مبعوث شو نو د هغوئ ټول قوم د خپل پلار نیکه په تقلید کښې اخته وو، خو هغوئ ﷺ د خپل پلار نیکه د تقلید په ځائې د واضح دلائلو اتباع ئې اوکړه او د قوم څخه بیزاره شو او وې فرمائیل چې ﴿اِنَّنِيْ بَرَآءٌ مِّمَّا تَعْبُدُوْنَ﴾.
د دې څخه معلوم شو چې که یو سړې په یو بد عمله یا بد عقیده ډله کښې اوسیږی، او د خاموش اوسیدو په صورت کښې دا اندیښنه وی چې خلق دې هم په دې ډله کښې شمار کړی نو صرف د عقیدې او عمل درست کول کافی نه دی. بلکه د دې ډلې د عقیدو او عملونو څخه برئ والې هم ضروري دې. د لته ابراهیم ﷺ صرف دومره اونه کړل چې خپل عقائد او عملونه ئې د مشرکانو څخه ممتاز کړل بلکه په ژبه مبارکه ئې هم براءت ظاهر کړو.
﴿وَجَعَلَهَا كَلِمَةًۢ بَاقِيَةً فِيْ عَقِبِهٖ﴾ مطلب دا دې چې هغه د توحید عقیده صرف خپل ځان پورې محدوده او نه ساتله بلکه خپل اولاد ته ئې هم په دې عقیده باندې د اوسیدو وصیت اوفرمائیلو. د دوئ ﷺ په اولاد کښې ډیر زیات خلق موحدین وو. او د مکې مکرمې په چاپیرچل کښې د رسول اکرم ﷺ د بعثت په وخت داسې سلیم الفطرت حضرات موجود وو چې د ډیرو صدو تیریدو څخه روستو هم د ابراهیم ﷺ په دین باندې قائم وو.
د دې نه دا هم معلومه شوه چې د خپل ځان نه علاوه خپل اولاد لره په صحیح دین باندې د راوستلو فکر هم د انسان په فرائضو کښې شامل دی. انبیاء ﷺ کښې ابراهیم ﷺ نه سوا د یعقوب ﷺ باره کښې هم قرآن عظیم الشان بیان کړې دې چې هغوئ د وفات په وخت خپلو خامنو ته په صحیح دین باندې د قائم اوسیدو وصیت کړې وو. نو چې په کوم صورت سره ممکن وی د اولاد د عملونو او اخلاقو په صحیح کولو کښې پوره کوشش کول پکار دې او

داد انبياء ﷺ سنت هم دی . او هسې خو د اولاد د اصلاح کولو ډيرې طريقې دی چې په خپلو موقعو باندې استعمالولې شی . شيخ عبدالوهاب شعراني رحمه الله په لطائف المنن والاخلاق کښې ليکلی دی چې د اولاد د اصلاح دپاره د ټولو نه ښه عمل دادې چې مور پلار دې دهغوی دپاره په دين باندې د اوسيدو دعاګانې کوی . خو ډير افسوس دې چې نن صبا خلق ددې آسان تدبير کولو نه هم په غفلت کښې دی . او پخپله مور پلار ددې د بدانجام مشاهده کوی .

| وَقَالُوْا | لَوْلَا نُزِّلَ | هٰذَا الْقُرْاٰنُ | عَلٰى رَجُلٍ | مِّنَ الْقَرْيَتَيْنِ | عَظِيْمٍ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| اووائی دوئ | ولې نازل نهٔ کړې شو | دا قرآن | په يو سړی باندې | ادووٚ کلونه | سړی لوئ باندې |
| اووائي اووئيل چې دا قران پاک د دوو [الويو] کلو په چا لوئي سړی باندې ولې نه نازليدلو [چې يو مکه او بل طائف دې] | | | | | |

| اَهُمْ | يَقْسِمُوْنَ | رَحْمَتَ رَبِّكَ ؕ | نَحْنُ | قَسَمْنَا |
|---|---|---|---|---|
| آيا دا خلق | تقسيموی | رحمت درب ستا | دا خو مونږه يو | چې تقسيم کړی دی مونږه |
| آيا دوئ ستا د رب رحمت تقسيموی؟ | ........ هم مونږ ددوئ روزی په دنيا | | | |

| بَيْنَهُمْ | مَّعِيْشَتَهُمْ | فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا | وَرَفَعْنَا |
|---|---|---|---|
| په منځ ددوي کښې | ذريعې دګذران ددوئ | په ژوند ددنيا کښې | او پورته کړی دی مونږه |
| کښې ددوئ په منيځ کښې تقسيم کړې ده | او مونږ بعضو ته په بعضو نورو کسانو باندې | | |

| بَعْضَهُمْ | فَوْقَ | بَعْضٍ | دَرَجٰتٍ | لِّيَتَّخِذَ | بَعْضُهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| خينی ددوئ | دپاسه | دخينو نورو | په مرتبو کښې | دپاره ددې چې اونيسی | خينی ددوئ |
| مرتبې اوچتې کړی دی | ..............چې يو کس [افضل] د بل کس [مفضول] نه کار اخلی | | | | |

| بَعْضًا | سُخْرِيًّا ؕ | وَرَحْمَتُ رَبِّكَ | خَيْرٌ | مِّمَّا | يَجْمَعُوْنَ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| خينو نورو لره | خدمت ګار | او رحمت درب ستا | بهتر دې | ادهغې دولت نه | چې دوئ ئې جمع کوی |
| او ستا درب رحمت د هغې مال نه ډېرغوره دې کوم چې داخلق را جمع کوی | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

او وې وئيل چه: دا قرآن په دوؤ کلو کښې يو لوئې سړی باندې ولې نازل نه کړې شو؟ آيا دا خلق دی، چه ستا د پروردګار رحمت تقسيموی؟ په دنيوی ژوند کښې د دوی د روزئ ذريعې هم مونږ ددوی په مينځ کښې تقسيم کړې دی، او مونږ دوی د يو بل نه په درجو کښې پورته کړې دی. دې دپاره چه دوی د يو بل نه کار واخلی، او ستا د پروردګار رحمت خو دهغې (دولت) نه ډير زيات بهتر شيز دې، کوم چه دوی جمع کوی.

## خلاصه تفسير

دا خو کافرانو دقرآن په باره کښې ووئيل [او] دمحمد صلی الله عليه وسلم په باره کښې ﴿وَقَالُوْا لَوْلَا نُزِّلَ هٰذَا الْقُرْاٰنُ عَلٰى رَجُلٍ مِّنَ الْقَرْيَتَيْنِ عَظِيْمٍ۝﴾ [اوائی چه دا قرآن] که کلام الهی دې او په حيثيت د رسالت راغلی دې نو [په دې دواړو کلو] يعنی دمکې او طائف په اوسيدونکو [کښې په چالوئ سړی ولې نازل نه کړې شو؟] يعنی درسول دپاره عظيم الشان والې ضروری دې او نبی کريم ﷺ مال او رياست نه لری نو دې پيغمبر نه شی کيدې باری تعالی ددوی د

شبهې تردید فرمائی چه ﴿أَهُمْ يَقْسِمُونَ رَحْمَتَ رَبِّكَ﴾ [ایا داخلق ستاد رب] خاص [رحمت] یعنی نبوت [لره] په خپله [تقسیمول غواړی] یعنی دا غوښتل چه نبوت زمونږ د رایٔ مطابق خلقو ته ملاویدل پکاردی ګویا په خپله دتقسیمولو هوس کول دی چه دا تقسیم د مونږ ته سپارلې شوې وې حال دادې چه دا هوس صرف ناپوهی ده خکه چه ﴿نَحْنُ قَسَمْنَا بَيْنَهُم مَّعِيشَتَهُمْ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا﴾ [په دنیوی ژوندی کښې] خو [ددوی رزق مونږ تقسیم کړې دې او] په دې تقسیم کښې ﴿وَرَفَعْنَا بَعْضَهُمْ فَوْقَ بَعْضٍ دَرَجَاتٍ﴾ [مونږ یو لره په بل اوچتوالې ورکړې دې ﴿لِّيَتَّخِذَ بَعْضُهُم بَعْضًا سُخْرِيًّا﴾ د دې دپاره چه] په دې سره دامصلحت حاصل شو چه [دیو بل نه کار اخلی] او دعالم انتظام قائم وی [او] ظاهره او یقینی خبره ده چه ﴿وَرَحْمَتُ رَبِّكَ خَيْرٌ﴾ [ستاد رب [خاص] رحمت [یعنی نبوت] په څوچنده د هغې [دنیوی مال او اسباب او مرتبې او منصب] نه غوره دې ﴿مِّمَّا يَجْمَعُونَ﴾ کوم لره چه داخلق جمع کوی] پس هرکله چه ددنیوی معیشت تقسیم مونږ ددوی په رایٔ نه دې ایښودې حال دادې چه داد ادنی درجې څیز دې نو نبوت چه په خپله هم د اعلی درجې څیز دې او ددې مصلحتونه هم د ډیرې عظیمې درجې دی هغه به څنګه د دوی په رایٔ تقسیمولې شی؟

## معارف او مسائل

دې آیتونو کښې قرآن عظیم الشان د عربو د مشرکانو د اعتراض جواب ورکړې دې کوم چې به هغوئ د نبی کریم ﷺ په رسالت باندې کولو. اول خو هغوئ په دې یقین کولو ته تیار نه وو چې دالله تعالی یو رسول انسان هم کیدې شی. او د هغوئ دا اعتراض قرآن عظیم الشان خائې په خائې ذکر کړې دې چې مونږ محمد ﷺ لره څنګه رسول اومنو حال دادې چې هغه دعامو انسانانو په شان خوراك څكاك كوی او په بازارونو کښې ګرځی. نو د قرآن عظیم الشان په ډیرو آیتونو سره دا واضح کړې شو چې دا صرف د نبی کریم ﷺ خصوصیت نه دې بلکه دنیا ته چې څومره پیغمبرانو ﷺ تشریف راوړې دې هغه ټول انسانان وو. اوس دوئ خبره بدله کړه او اعتراض ئې اوکړو چې هر کله ئې یو انسان ته نبوت ورکړې وو نو نبی کریم ﷺ خو مالی لحاظ سره هم څه مالدار نه دې. دا منصب د مکې او طائف یو مالدار او عقل مند کس ته ولې ورنکړې شو؟ روایاتو کښې راځی چې دې سلسله کښې هغوئ مکې مکرمې نه د ولید بن مغیره او عتبه بن ربیعه، طائف نه د عروه بن مسعود ثقفی، حبیب بن عمرو ثقفی یا کنانه بن عبد یا لیل نومونه پیش کړی وو. [روح المعانی][1]

الله ﷻ د مشرکانو ددې اعتراض په باره کښې دوه جوابونه ورکړی دی. ړومبی جواب په مذکوره آیتونو کښې دویم آیت مبارك کښې او دویم جواب راتلونکی آیت مبارك کښې ورکړې شوې دې. ددې تشریح به هم هغه خائې راشی. ددې نه د مخکښې جواب خلاصه داده چې تاسو ته په دې معامله کښې دخل اندازی نه ده پکار چې الله ﷻ د نبوت منصب چا ته ورکوی او چا ته نه ورکوی؟ د نبوت تقسیم ستاسو په لاس کښې نه دې چې یو کس ته نبوت ورکولو نه وړاندې دې ستاسو نه رائې واخستې شی. دا کار صرف او صرف دالله تعالی په لاس کښې دې. او هغه لوئې ذات ئې د خپل عظیم مصلحتونو مطابق کوی. ستاسو وجود او عقل

---

[1]) روح المعانی تحت هذه الآية: ج ۱۸، ص ۳۵۱

کښې دداعظیم کار د کولو صلاحیت نشته دې چې تاسو ته دې د نبوت کار حواله شوې وې ،او د نبوت تقسیم خو ډېر د اوچتې درجې څیز دې. ستاسو حیثیت او ستاسو وجود خو دا بوج نشي پورته کولې چې تاسو ته دې ستاسو د معیشت او سامان معیشت تقسیم کار حواله کړې شي ځکه چې مونږته معلومه ده چې که مونږ داشان اوکړل نو تاسو به یوه ورځ هم دا نظام او نه چلولې شی. او ټول نظام به ګډوډ شی. په دې وجه الله ﷻ ستاسو د رزق تقسیم هم ستاسو په ذمه نه دې کړې بلکه د معیشت د تقسیم کار ئې په خپل لاس کښې اخستې دې. هرکله د ادنی درجې دا کار تاسو ته نشی حواله کولې نو د نبوت پشان عظیم کار څنګه تاسو ته حواله کړې شی. د آیتونو مقصد خو صرف دومره دې خو مشرکانو ته دجواب ورکولو په ضمن کښې الله ﷻ ددنیا د معیشت نظام ته هم څه اشارې کړې دی ، دهغې اشارو نه ډېر معاشی اصول راوځی ، دلته دهغې مختصر شان تفصیل بیانیږی.

**د معیشت د تقسیم قدرتی نظام:** ﴿نَحۡنُ قَسَمۡنَا بَیۡنَهُم مَّعِیشَتَهُمۡ﴾ [هم مونږ ددوئ روزی په دنیا کښې ددوئ په مینځ کښې تقسیم کړې ده]: مقصد دادې چې مونږ په خپل حکمت بالغه سره ددنیا نظام داسې جوړ کړې دې چې دلته هر کس د خپلو ضرورتونو پورا کولو دپاره بل ته محتاج دې. او ټول خلق د احتیاج ددې باهمی رشتې په تار کښې پیللې شوی دی او د پوره معاشرې تکمیل کوی. ددې آیت مبارک نه دا خبره واضحه شوه چې الله تعالی د معیشت د تقسیم کار یو انسانی ادارې ته نه دې حواله کړې چې هغوئ د یو منصوبې لاندې دا خبره اوکړی چې دمعاشرې څه ضرورتونه دی دا څنګه پوره کړې شی؟ او د پیداوار وسائل تر کومه حده پورې په کومو کارونو کښې اولګولې شی؟. او ددوئ په مینځ کښې د آمدن تقسیم په کومه طریقه اوکړې شی؟. ددې په ځائې الله ﷻ دا ټول کارونه پخپله ذمه اخستی دی. او خپل لاس کښې د اخستلو مطلب دادې چې په دنیا کښې هر سړې د بل محتاج کړې دې او ددنیا نظام ئې داسې جوړ کړې دې چې په دې کښې [د اجاره داریو وغیره په ذریعې] که غیر فطری بندیزونه رانه وستې شی نو دا نظام پخپله ټول مسائل حل کوی. خپل مینځ کښې د احتیاج دې نظام ته په معاشی اصطلاح کښې د طلب و رسید نظام وئیلې کیږی. د طلب و رسد دا قدرتی قانون دې چې د کوم څیز رسد یعنی استعمال کم وی او طلب ئې زیات وی نو د هغې قیمت زیاتیږی ، پیداوار دهغه څیز په تیارئ کښې زیاته ګټه کتلو سره دې طرفته متوجه شی. او چې کله رسد د طلب په مقابله کښې زیات شی نو قیمتونه کمیږی. او ددې څیزنور تیارولو کښې څه فائده پاتې نشی. او دپیداوار وسائل ددې په ځائې په بل داسې څیز کښې مصروف شی چې دهغې ضرورت زیات وی. اسلام هم ددې طلب و رسد هم ددې قدرتونو په ذریعه د دولت د پیدائش او د تقسیم کار اخستې دې. او په عام حالاتو کښې ئې د معیشت د تقسیم کار یو انسانی ادارې ته نه دې حواله کړې. ددې وجه داده که د منصوبه بندئ څومره د پرمختګ طریقې دریافت کړې شی خو دهغې په ذریعه د معیشت د یو یو جز د ضرورت احاطه کول ممکن نه دی اوداسې قسمه معاشرتی مسائل عمومی طور هم دداسې قدرتی نظام لاندې چلیږی. د ژوند اکثر معاشرتی مسائل هم داشان قدرتی طور سره حل کیږی. اوکه دا حکومت ته حواله کړې شی نو دې سره په ژوند کښې یو پابندیانې پیدا شی او ددې نه به بل څه حاصل نه شی. مثلاً دا چې ورځ د کار دپاره ده او شپه د آرام دپاره ، دا نظام څه د عمرانی یا انسانی منصوبې لاندې

نه دي جوړ شوي بلکه دالله تعالی قدرتی نظام دا فیصله کړې ده . داشان دا مسئله چې يو سړي به څه سره واده کوي ، دا کار هم د طبعي مناسبتونو لاندې پخپله کيږي . اوددې منصوبه جاته هډو خيال نه راځي . يا لکه دا خبره چې کوم يو کس دې د علم او فن کومه يوه شعبه خپله کړي . دا د طبعي ذوق او مناسبت په ځائې حکومتی منصوبې بندئی ته پريښودل صرف او صرف يوه زبردستی ده . او دې سره د فطرت نظام ګډوډ کيدې شي . داشان د معيشت نظام هم قدرت په خپل لاس کښې اخستې دې . او دهر سړي په زړه کښې ئې هر هغه کار اچولې دې چې کوم دهغه دپاره مناسب دې اوکوم چې هغه په ښه طريقې سره سرته رسولې شی . نو هر سړې که هغه دې يو خاکروب [بنګی] ولې نه وی هغه په خپل کار کښې خوشحاله دې . او دا خپل ځان دپاره قابل فخر ګڼړي . ﴿كُلُّ حِزْبٍ بِمَا لَدَيْهِمْ فَرِحُونَ﴾(۱). البته دسرمايادارانه نظام په شان اسلام خلقو ته دومره آزادی نه ده ورکړې چې هغوئ په جائز او ناجائزه طريقې سره دولت راغونډ کړي اونورو دپاره د رزق دروازې بندې کړي . بلکه د آمدن په ذريعو کښې ئې تفريق کړې دې او سود ، جواری [خمار] ، او ذخيره اندوزی ئې حرامه ګرځولې ده . بيا ئې په جائز آمدنی باندې هم زکوة ، عشر وغيره واجبات ئې لازم کړل او هغه خرابئ ئې لرې کړې کومې چې په سرمايادارانه نظام کښې موندې شی . او ددې باوجود که يو ځائې اجارداری قائمې شی نو حکومت لره جائز دی چې ددې د ماتولو دپاره کوشش اوکړي . دې ځائې کښې ددې د تفصيل موقع نشته دې . په دې موضوع باندې د احقر رساله [مسئله سود] [اسلامی نظام کښې د دولت تقسيم] او [اسلامی نظام کښې معاشی اصلاحات] اوګورئ .

**د معاشی مساواتو حقيقت:** ﴿وَرَفَعْنَا بَعْضَهُمْ فَوْقَ بَعْضٍ دَرَجٰتٍ﴾ [اومونږ بعضو ته په بعضو نورو کسانو باندې مرتبې اوچتې کړې دی] ددې نه معلوم شو چې په دنيا کښې معاشی مساوات نه مطلوب دې او نه ممکن دې. ددې تفصيل داددې چې الله ﷻ ددې کائنات په هر هر فرد باندې څه ذمه وارئی او څه حقوق ايښودی دی. او په دواړو کښې ئې په خپل حکمت سره دا تناسب ايښودې دې چې د چا په ذمه څومره فرائض دی نو هغه هومره حقوق هم دی . دانسان نه علاوه چې څومره مخلوقات دی دهغوئ په ذمه چونکه فرائض د ټولو نه کم دی ، اوهغوئ شرعی لحاظ سره د حلال ، حرام او جائز او ناجائز مکلف نه دی . په دې وجه دهغوئ حقوق هم د ټولو نه کم دی . دې معامله کښې انسان ته ډيره فراخه آزادی ورکړې شوې ده چې هغه يعنی دا انسان دوئ ته په لږو حقوق ورکولو سره لوئې فائدې اخستې شی . ځينې حيوانات حلال کړی او بيا ئې خوری ، ځينې باندې سورلی کوی . ځينې مخلوق لره تباه کوی ، او دا دهغه مخلوقو حق تلفی نه ګڼړلې کيږی . ځکه چې په دې مخلوقاتو باندې فرائض کم دی په دې وجه ددوئ حقوق هم کم دی . بيا په کائناتو کښې ټولو نه زيات فرائض په انسان او جنات باندې ايښودې شوی دی . ځکه چې هغوئ د خپل هر يو قول او هر يو فعل به الله تعالی ته جواب ورکوی . اوکه خپلې ذمه دارئی ئې پوره نه کړې نو آخرت کښې به د عذاب مستحق وی . په دې وجه الله ﷻ انسان ته او جناتو ته حقوق هم زيات ورکړی دی . بيا په انسانانو کښې هم ددې چې فرق شته دې چې د چا فرائض زيات دی نو دهغه حقوق هم زيات دی . انسانانو کښې د ټولو نه زياتې ذمه وارئی په انبياء ﷺ باندې

---

(۱) ترجمه: هر يو ډلے سره چې کوم دين دی هغوی دهغے نه خوشحاله دی۔

عائد کیږي. نو په دې وجه د نورو په مقابله کښې دهغوئ حقوق هم زيات دي.
په معاشي نظام کښې هم الله ﷻ د دې حقوق رعايت ايښودې دې چې هر سړی ته هغه هومره معاشي حقوق ورکړې شي څومره چې هغه په خپل سر باندې فرائض اخستې شي. او دا ظاهره خبره ده چې په فرائضو کښې برابروالئ بالکل ناممکن او په دې کښې تفاوت ضروري دې داسې بالکل نشي کيدې چې د هر سړي فرائض دې د نورو سره بالکل برابر وي ځکه چې د هر سړي معاشي وظائف او فرائض دانسانانو په فطري صلاحيتونو باندې موقوف دي چې په دې کښې بدني طاقت، صحت، دماغي قوت، عمر، ذهني معيار، چالاکي، او تيزئ غوندې څيزونه داخل دي، اودا خبره هر سړې په خپلو سترګو سره کتلې شي چې د دې اوصافو په اعتبار سره انسانانو کښې برابروالئ او مساوات پيدا کول د لوئې نه لوئې اشتراکي حکومت په وس کښې نه دي. هرکله چې په انسانانو کښې تفاوت ضروري دی نو د دوئ په فرائض کښې به ضرور تفاوت وي. او معاشي حقوق په دې فرائضو باندې موقوف دي نو په دې وجه معاشي حقوق يعني آمدنئ کښې هم تفاوت ضروري دې. ځکه چې د ټولو آمدني يو شان کړې شي او په فرائضو کښې تفاوت وي نو دې سره هيڅکله عدل او انصاف نه شي قائم پاتې کيدې. ځکه چې په دې صورت کښې د ځينو خلقو آمدني به د هغوئ د فرائضو نه زياته او د ځينو د هغوئ د فرائضو نه کمه وي. او دا بالکل نا انصافي ده. د دې نه واضح شو چې په آمدنئ کښې مساوات هيڅکله او په هيڅ دور کښې نشي کيدې. او د اشتراکيت په خپل انتهائي [1] پرمختګ دور کښې هم چې د کوم مساوات دعوی کوي هغه په هيڅ حال کښې قابل عمل نه دې اونه عدل و انصاف ته نژدې دې. البته دا معلومول چې د چا فرائض زيات دي او د چا کم، او د دې مناسبت سره څومره حقوق ملاويدل پکار دي، نو دا يو ډير مشکل او نازک کار دې. او انسان سره هغه پيمانه نشته دې چې په هغې سره هغه د دې معلومات حاصل کړي. ځينې وختونو کښې دا محسوسيږي چې يو ماهر او تجربه کار انجنيئر په يوه ګهنټه کښې دومره آمدني حاصله کړه چې دا يو مزدور په ټوله ورځ سخت کار کولو سره نه شوه حاصلولې. خو که د انصاف نظر واچولې شي نو د دې قطع نظر چې د مزدور د ټولې ورځې د آزاد محنت د ذمه دارئ د هغه بوج برابر نه شي کيدې چې کوم يو انجنيئر اوچت کړې دې. د انجنيئر په آمدنئ کښې صرف د يوې ګنټې صله نه ده بلکه په دې کښې د ډيرو کلونو محنت، دماغ ستړی کول او بدن ستړې کول شامل دي. ځکه چې ده د انجنيئرئ په دې تعليم حاصلولو کښې او بيا د دې په تجربه حاصلولو کښې ډير محنت کړې دې.
اشتراکيت خپل ابتدائي دور کښې د آمدنئ دا تفاوت منلې دې چنانچه اشتراکي ممالکو کښې د مختلف طبقاتو د تنخواګانو په مينځ کښې يو زبردست تفاوت موندې شي. نو دهوکه ئې دلته خوړلې ده چې د پيداوار ټول وسائل ئې د حکومت په تحويل کښې ورکړي دي او ټولو وسائلو تعين او بيا د دې مناسبت سره په دې باندې د آمدنئ تقسيم هم ټول هر څه ئې حکومت ته حواله کړي دي. حالانکه پورته عرض شو چې د فرائضو او حقوقو تر مينځه

[1] اشتراکيت وائي چې فی الحال خو د آمدنئ مکمل مساوات ممکن نه دې خوچې د اشتراکيت په ابتدائي اصولو باندې عمل اوکړې شي نو يو وخت به داسې راشي چې په آمدنئ کښې او په املاک کښې به مکمل مساوات راشي او دا به د مکمل کميونزم دور وي.

تناسب ساتلو دپاره انسان سره څه پیمانه نشته دې. نو د اشتراکیت په طریق کار کښې د ټول ملك د انسانانو د روزئ تعین د حکومت د یو څو کسانو لاس کښې راغلې دې. او هغوئ ته دا اختیار ورکړې شوې دې چې چاته څومره ورکوي او چا نه څومره منع کوي. اول خو په دې کښې د بدنیتئ او بیا د رشته دارئی یو باب پرانیستئ شی او دې سره افسرشاهی هم په مزو کښې شی. بل طرفته که د حکومت ټول کارکنانو فرښتې تصور کړې شی او هغوئ په حقیقت کښې هم دا اوغواړی چې په ملك کښې دې د آمدنئی تقسیم په حق او انصاف سره وی نو دوئ سره آخر هغه کومه یوه پیمانه ده چې په هغې سره هغوئ فیصله اوکړې شی چې د یو انجنیئر او یو مزودر په فرائضو کښې څومره تفاوت دې. او ددې نسبت سره ددوئ په آمدنو کښې څومره تفاوت د انصاف سره برابر دی. واقعه داده چې ددې خبرې صحیح صحیح فیصله کول د انسانی عقل نه ډیره لرې خبره ده. پدې وجه قدرت دا پخپل لاس کښې اخستې ده. زیر بحث آیت ﴿وَرَفَعْنَا بَعْضَهُمْ فَوْقَ بَعْضٍ دَرَجٰتٍ﴾ کښې الله ﷻ دې طرفته اشاره کړې ده چې ددې تفاوت تعین مونږ انسانانو ته حواله کولو په ځائې پخپل لاس کښې اخستې دې. او په خپل لاس کښې د اخستلو مطلب دادې چې په دنیا کښې د هر سړی ضرورتونه مو د بل سره تړلی دی او یو داسې نظام مو جوړ کړې دې چې هر سړې د خپل حاجت پوره کولو دپاره بل ته په دومره ورکولو مجبوره دې چې د څومره هغه مستحق دې. دلته هم خپل مینځ په احتیاجی باندې د طلب او رسد نظام د هر سړی د آمدنئ تعین کوی. یعنی هر سړې ددې خبرې فیصله پخپله کوی چې ما پخپله ذمه څومره فرائض اخستی دی د هغې څومره معاوضه زما دپاره کافی ده. که ددې نه ورته کمه ملاویږی نو دې کار نه کوی او که زیاته غواړی نو بیا مالك دځ ته دا نه ورکوی. د ﴿لِيَتَّخِذَ بَعْضُهُمْ بَعْضًا سُخْرِيًّا﴾ هم دا مطلب دې چې مونږ په آمدنئ کښې تفاوت په دې وجه اېښودې دې چې یو کس د بل کس په کار راشی. که د ټولو آمدنی برابر وې نو یو کس به دبل په کار نه راتلو.

البته ځینې وخت غیر معمولی حالاتو کښې لوئې لوئې سرمایه دار دطلب او رسد د دې قدرتی نظام نه ناجائزه فائده اوچتوی او غریبانانو په دې مجبوره کوی چې هغوئ خپل حقیقی استحقاق نه په کم اجرت باندې کار اوکړی. اول خو اسلام د حلال او حرام او جائز او ناجائز او ډیرو احکامو په ذریعه او د اشان د اخلاقی هدایاتو او د آخرت دتصور په ذریعه یې د داسې صورت حال پیدا کولو نه منع کړې ده. او که چرته په یو مقام باندې داسې صورت حال پیدا شی نو اسلامی حکومت ته دا اختیار ورکړې شوې دې چې هغه ددې غیر معمولی حالاتو تر حده پورې هغه د اجرتونو تعین کولې شی. خو ظاهرداده چې دا صرف غیر معمولی حالاتو دپاره ده. په دې وجه ددې مقصد دپاره د پیداوار ټول وسائل حکومت ته د حواله کولو هیڅ ضرورت نشته دې. ځکه چې ددې نقصانات د فوائدو په مقابله کښې ډیر زیات دی.

**د اسلامی مساواتو مطلب:** ددې مذکوره اشارو نه دا خبره واضحه کیږی چې آمدنئی کښې مساوات نه د عدل وانصاف تقاضا ده او نه دا چرته عملی طور قائم شوې ده او قائمیدې شی. او نه دا اسلام ته مطلوب ده. البته اسلام چې کوم مساوات قائم کړې دې هغه قانون، معاشرت او د رائې د حقوقو مساوات دې. ددې مطلب دادې چې د مذکوره بالا قدرتی طریق کار لاندې دکوم کس چې څومره حقوق متعین کړې شی دهغې په حاصلولو کښې قانونی،

تمدني او معاشرتي لحاظ سره ټول برابر دي. ددې خبرې هډو څه معنى نشته دې چې يو مالدار او منصب والا انسان دې خپل حق عزت سره ښه په آسانتيا سره حاصل کړي او غريب دې د خپلو حقوقو حاصلولو دپاره در په در وي او ذليل او خوار دې شي. قانون دې د مالدار د حق حفاظت کوي او غريب دې بې سهارې پريږدي. هم دا ابوبکر صديق ﷛ په خپله يوه خطبه کښې ارشاد فرمائيلې وو:

﴿والله مـا عندي اقوى من الضعيف حتى اخذ الحق له ولا عندي اضعف من القوي حتى اخذ الحق منه﴾ [په الله مې دې قسم وي چې ماته نزدې ديو کمزوري سړي نه زيات قوي بل نشته دې تر دې چې هغه ته دهغه حق ورکړم او ماته نزدې د يو قوي سړي نه زيات کمزورې بل نشته دې تر دې چې دهغه نه د کمزوري حق وصول نه کړم][^1]

دا شان د معاشي نقطهٔ نظر سره د اسلامي مساوات مطلب دادې چې د اسلام په نظر کښې هر سړي ته د ګټې برابر مواقع حاصلې دي. او اسلام دا خبره نه خوښوي چې يو څو مالداران په دولت باندې قبضه واچوي او خپله يوه اجاره داري قائمه کړي. او وړوکو وړوکو تاجرانو ته بازار کښې ناسته بې آرامه کړي. نو اسلام د سود ، جواري [خمار] ، ذخيره اندوزي او اجاره دارانه تجارتي معاهدو نه سخته منع اوکړه ، او زکوة ، عشر ، خراج ، نفقات ، صدقات او نور واجبات ئې عائد کړل او يو داسې ماحول ئې جوړ کړو چې په دې کښې هر انسان دخپل صلاحيت او محنت به تناسب سره د ګټې مناسب مواقع حاصلولې شي. او دې سره د خوشحاله معاشرې تعمير کيدې شي. ددې باوجود دآمدنۍ چې کوم تفاوت باقي دې هغه په حقيقت کښې ضروري دې، اولکه څنګه چې د انسانانو په مينځ کښې د حسن و جمال ، قوت و صحت، عقل او ذهانت او آل واولاد د تفاوت ختمول ممکن نه دي ، داشان دا تفاوت هم نشي ختمولې.

وَلَوۡلَاۤ | اَنۡ يَّكُوۡنَ النَّاسُ | اُمَّةً وَّاحِدَةً | لَّجَعَلۡنَا

او که نه وې [دا يره] | چې شي به خلق [ټول] | ډله يوه | نو خامخا به جوړ کړي وو مونږه |

اوکه دا خبره نه وې چې ټول خلق به يوه ډله [کافران] شي | نو مونږ به

لِمَنۡ | يَّكۡفُرُ | بِالرَّحۡمٰنِ | لِبُيُوۡتِهِمۡ | سُقُفًا | مِّنۡ فِضَّةٍ

دپاره دهغه چا | چې کفر کوي | دخدائې سره | کورونو دهغوئ لره | چتونه | دسپينو زرو

د رحمان [الله ﷻ] منکرانو دپاره دکوټو چتونه دسپينو زرو جوړ کړي وو

وَّمَعَارِجَ | عَلَيۡهَا | يَظۡهَرُوۡنَ ۝ | وَلِبُيُوۡتِهِمۡ | اَبۡوَابًا | وَّسُرُرًا

اواندرپانې | چې په هغې | خيژي هغوئ | اوکورونو دهغوئ لره | دروازې | او تختونه

او پوړئ چې په هغې به ورختل اودهغوئ دکورونو دروازې اوتختونه

عَلَيۡهَا | يَتَّكِـُٔوۡنَ ۝ | وَزُخۡرُفًا | وَاِنۡ كُلُّ ذٰلِكَ | لَمَّا

چې په هغې باندې | تکيه ګانو ته ددې وهي هغوئ | او دسروزرو | اونه دي دا ټول | مګر

چې په هغې به ئې ددې وهلې دا ټول هم سرو زرو نه جوړ کړي وو | اودا ټول څيزونه هيڅ نه دي | دا خو

[^1]: سيرة ابن هشام خطبة أبي بكر ﷛: ج ۲، ص ٦٦١، والبداية والنهاية: ج ٦، ص ۳۳۳ (بألفاظ مختلفة)

| مَتَاعُ | الْحَيٰوةِ الدُّنْيَاؕ | وَالْاٰخِرَةُ | عِنْدَ رَبِّكَ | لِلْمُتَّقِيْنَ۠ ﴿۳۵﴾ |
|---|---|---|---|---|
| سامان | دي ژوند ددنيا | او آخرت | په نز درب ستا | دپاره دمتقيانو دي |

| د دنيا د ځو ورځو د نفعې سامان دې او آخرت ستا د رب په نيز پرهيزګارانو دپاره دي |
|---|

## آسان ترجمه قرآن

او كه دا خطره نه وې، چه ټول انسانان به په يوه طريقه پاڼدې (يعنې كافر شي نو كوم خلق چه د الله تعالی نه منكر دي، مونږ به هغوی لره د هغوی د كورونو چتونه هم د سپينو زرو نه جوړ كړې وو او هغه پوړۍ هم چه دوی پرې خيژی. او دهغوی د كورونو دروازې هم، او هغه تختونه هم، په كوم پاڼدې چه دوی تكيه لګولې ناست وی. بلكه دهغې نه به مو سره زر جوړ كړې وې. اوحقيقت دادې چه دا ټول هيڅ څيز نه دې، صرف د دنيوی ژوند سامان دې او آخرت ستا د پروردګار په نزد د پرهيزګارانو دپاره دې.

## خلاصه تفسير

او دا كافران خلق دمال دولت زياتي لره دنبوت د صلاحيت شرط ګنړی حال دادې چه نبوت يو عظيم الشان شې دې په دې وجه ددې دصلاحيت شرط هم عظيم الشان پكار دې [او] ددنيا دولت او جاه زمونږ په نزد دومره سپك دی چه ﴿وَلَوْلَآ اَنْ يَّكُوْنَ النَّاسُ اُمَّةً وَّاحِدَةً﴾ [كه دا خبره متوقع [نه وې چه] قريب [ټول خلق به په يوه طريقه شي] يعنې كافران به شی ﴿لَّجَعَلْنَا لِمَنْ يَّكْفُرُ بِالرَّحْمٰنِ لِبُيُوْتِهِمْ سُقُفًا مِّنْ فِضَّةٍ﴾ [نوكوم خلق چه په الله تعالی باند كفر كوی] او د الله تعالی په نزد سخت مبغوض دی [مونږ به د هغو] ټولو [دپاره د هغوی دكورونو چتونه د سپينوزروكړی وو ﴿وَّمَعَارِجَ عَلَيْهَا يَظْهَرُوْنَ﴾ او پوړۍ هم] دسپينو زرو كړې وې [په كومو چه خيژی] كوزيږی ﴿وَلِبُيُوْتِهِمْ اَبْوَابًا﴾ [او د هغوی دكورونو دروازې به مو هم] دسپينوزرو كړې وې ﴿وَّسُرُرًا عَلَيْهَا يَتَّكِـُٔوْنَ ۝ وَزُخْرُفًا﴾ [او تختونه هم] به د سپينو زرو كړی وو [په كومو چه تكيه لګولی ناست وی او] دا څيزونه [دسرو زرو به هم] كړی وو يعنې څه دسرو زرو او څه دسپينو زرو مګر داسامان مونږ كفارو ته ځكه ورنه كړو چه داكثرو انسانانو په طبيعت كښې دمال اسباب حرص غالب دې او په دې مفروضه صورت كښې كفر به ددې مال اسباب د حصول يقينې سبب جوړيدو پس دلږو كسانونه علاوه به قريب قريب ټولو كفر اختياركړې وو په دې وجه مونږه ټولو كافرانو ته دمال دولت دافراخی ورنه كړه كه دامصلحت نه وې نو مونږ به داسې كړی وو او ظاهره ده چه دښمن ته د قدر او فراخۍ څيز نه شی وركول كيدئ ددې نه معلومه شوه چه ددنيا مال متاع په حقيقت كښې څه عظيم الشانه شې نه دې پس دا دنبوت په شان ديو عظيم الشان منصب دپاره دصلاحيت شرط هم نه شی كيدې ددې په ځاې دنبوت شرط هغه اعلی درجه ملكات دی كوم چه دالله تعالی د طرف نه انبياؤ ﷺ د ته وركړې كيږی او داملكات په محمدصلی الله عليه وسلم كښې په پوره شان سره جمع دی پس نبوت ددوی ﷺ دپاره زيبا وو نه چه دمكې او طائف د رئيسانو دپاره [او] ددنيا دحقارت يوه بالكل واضحه وجه بيان فرمائی چه ﴿وَاِنْ كُلُّ ذٰلِكَ لَمَّا مَتَاعُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَاؕ﴾ [دا ټول] سازو سامان دكومو چه بره ذكر وشو [هيڅ هم نه دی صرف ددنيا دژوند دځو ورځو كامرانی ده] بيا فنا اخر فنا ﴿وَالْاٰخِرَةُ﴾ [او اخرت] كوم چه ابدی دې او په دې وجه ددې نه غوره دې هغه ﴿عِنْدَ رَبِّكَ لِلْمُتَّقِيْنَ﴾ [ستا دپروردګار په نزد د خداترسو دپاره دې]

## معارف او مسائل

**د مال دولت زيادت دا څه د فضيلت سبب نه دي** ﴿وَلَوْلَآ اَنْ يَّكُوْنَ النَّاسُ اُمَّةً وَّاحِدَةً﴾ كافرانو دا وئيلي وو چي د مكې او طائف يو مالدار سړي ته نبوت ولې ورنكړې شو؟ دې آيتونو كښې ددې دوئم جواب وركړې شوې دې او ددې خلاصه داده چې بيشكه د نبوت د پاره څه شرطونه او صلاحيتونه ضروري دي. خو كه چا سره مال دولت زيات وي نو په دې وجه هغه ته نبوت نشي وركولې. ځكه مال دولت زمونږ په نظر دومره حقير څيز دې چې كه د ټولو خلقو د كافر كيدو انديښنه نه وې نو مونږ به ټولو كافرانو باندې سرو سپينو باران كړې وې. او د صحيح ترمذي يو حديث پاك كښې دي چې رسول اكرم ﷺ فرمائي: ﴿لوكانت الدنيا تعدل عندالله جناح بعوضة ماسقى كافرامنها شربة ماء﴾[۱] ددې څخه معلوم شو چې د مال دولت زياتوالې څه د فضيلت څيز نه دې اونه ددې كمى سره انساني رتبه كښې څه فرق راځي. البته د نبوت د پاره څه اعلى درجې او صفات ضروري دي، هغه ټول صفات رسول اكرم ﷺ كښې موجود دي نو په دې وجه دا اعتراض بالكل غلط دې.

او مذكوره آيتونو كښې چې اووئيلې شو چې كه په كافرو باندې مال او دولت دومره زيات كړې شوې وې نو ټول خلق به كافران شوي وو. په دې كښې مراد د خلقو اكثريت دې. گنې د الله ﷻ څه نيك بندگان نن هم داسې موجود شته دې چې دهغوئ دا يقين دې چې كه هغوئ كفر اختيار كړي دوئ د مال او دولت نه مالا مال كيدې شي. ليكن هغوئ د مال دولت په خاطر كفر نه اختياروي. خو شايد داسې څه خلق هغه وخت هم په ايمان باندې قائم وې ليكن داسې خلق به په اوړو كښې دمالگي برابر وي.

| وَمَنْ يَّعْشُ | عَنْ ذِكْرِ الرَّحْمٰنِ | نُقَيِّضْ | لَهٗ | شَيْطٰنًا | فَهُوَ |
|---|---|---|---|---|---|
| او هغه څوك چې بې پرواهي كوي | اذكر درحمان نه | مونږ مسلط كوؤ | په هغه | يو شيطان | پس هغه |
| اوڅوك چې د رحمان د ذكر نه غفلت اختيار كړي | نومونږ دهٔ دپاره يوشيطان مقرر كړو | | | | |
| لَهٗ | قَرِيْنٌ ۝ | وَاِنَّهُمْ | لَيَصُدُّوْنَهُمْ | عَنِ السَّبِيْلِ | |
| هغه لره | ملگرې شي | او بيشكه دا شيطانان | خامخا منع كوي خپل ملگرى | دلارې [نيغې] نه | |
| نو هغه د ده ملگرې وي | اوبيشكه هغوئ ئې د نيغې لارې نه منع كوي | او دوئ | | | |
| وَيَحْسَبُوْنَ | اَنَّهُمْ | مُّهْتَدُوْنَ ۝ | حَتّٰٓى | اِذَا جَآءَنَا | |
| او گمان كوي هغوئ | چې بيشكه هغوئ | په نيغه لار دي | تر دې پورې | چې كله راشي مونږ ته | |
| خيال كوي | چې گنې دوي په نيغه لار روان دي | تر دې چې دا سړې مونږ ته راشي | | | |
| قَالَ | يٰلَيْتَ | بَيْنِيْ | وَبَيْنَكَ | بُعْدَ الْمَشْرِقَيْنِ | |
| نو وائي به | كاش چې | په منځ زما | او په منځ ستا كښې | لرې والې ددوؤ مشرقونو وې | |
| نوادې شيطان ته] به اووائي چې افسوس ! زما اوستا په مينځ كښې دمشرق اودمغرب لرې والې وې | | | | | |

[۱] جامع الترمذي، أبواب الزهد، باب ماء جا في هوان الدنيا على الله: ج ۲، ص ۵۸

فَبِئْسَ الْقَرِيْنُ۝ وَلَنْ يَّنْفَعَكُمُ الْيَوْمَ اِذْ ظَّلَمْتُمْ

پس ډير بد ملګري ئې ته | او هرګز به فائيده درنه کړي تاسو ته | نن ورځ | هر کله چې ظلم کړي دې تاسو

ته خومره خراب ملګري يئ | او | اوس به درته هيڅ فائده درنه کړي | خکه چې کفر مو اختيار کړي وو

اَنَّكُمْ فِي الْعَذَابِ مُشْتَرِكُوْنَ۝ اَفَاَنْتَ تُسْمِعُ الصُّمَّ

چې بيشکه تاسو | په عذاب کښې | شريک يئ | ايا پس ته به | اورول اوکړې | کونړ سړي ته

اوس به تاسو ټول په عذاب کښې شريک يئ | ............ ايا ته کنړو ته خپل اواز اورولې شې ؟

اَوْ تَهْدِي الْعُمْيَ وَمَنْ كَانَ فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ۝ فَاِمَّا

يا به لار اوښائې | ړوند ته | او هغه چاته | چې وي | په ګمراهئ | ښکاره کښې | پس که چرې

يا ړندو ته لار خودلې شې | او هغه چاته چې په ښکاره ګمراهئ کښې پراته دي | نو که

نَذْهَبَنَّ بِكَ فَاِنَّا مِنْهُمْ مُّنْتَقِمُوْنَ۝ اَوْ نُرِيَنَّكَ

بوزو مونږ تالره | پس بيشکه مونږه | ددوئ نه | بدله اغستونکي يو | يا اوښايو مونږ تاته

مونږ تا [ددې دنيا نه] بوځو [وفات کړو] | نو بيا هم ددې کافرونه خو به بدله اخلو | او يا به تا ته

الَّذِيْ وَعَدْنٰهُمْ فَاِنَّا عَلَيْهِمْ

هغه انجام | چې وعده ئې کړې ده مونږ ددوئ سره | پس بيشکه مونږه | په دوئ باندې

هغه عذاب اوښايو | دکوم چې مونږ دوئ سره وعده کړې ده | نو مونږ په دوئ باندې هر

مُّقْتَدِرُوْنَ۝ فَاسْتَمْسِكْ بِالَّذِيْٓ اُوْحِيَ اِلَيْكَ ۚ اِنَّكَ

قدرت لرونکي يو | پس مضبوط اونيسه | هغه کتاب | چې وحی کړې شوې دې | تاته | بيشکه ته

خنګه قدرت لرو | نو ته په دې قرآن باندې قائم او سيږه | ............ چې تاته رالیږلې شوې دې

عَلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ۝ وَاِنَّهٗ لَذِكْرٌ لَّكَ وَلِقَوْمِكَ ۚ

په لاره | نيغه باندې ئې | او بيشکه دا کتاب | يو نصيحت دې | تالره | او قوم ستالره

بيشکه ته په سمه لاره باندې قائم يئ | او بيشکه دا قرآن پاک ستا او ستا دقوم دپاره ښه نصيحت دې

وَسَوْفَ تُسْـَٔلُوْنَ۝ وَسْـَٔلْ مَنْ اَرْسَلْنَا

او ډير زر به | تپوس اوکړې شي ستاسو نه | او تپوس اوکړه | دهغه چانه | چې ليږلي دي مونږه

او ډير زر به تاسو نه تپوس کيږي | او ته د هغې پيغمبرانو نه تپوس اوکړه | چې مونږ

مِنْ قَبْلِكَ مِنْ رُّسُلِنَآ اَجَعَلْنَا مِنْ دُوْنِ الرَّحْمٰنِ اٰلِهَةً

مخکښې ستا نه | درسولانو زمونږ نه | ايا مقرر کړي وو مونږه | بې | درحمن نه | نور خدايان

ستا نه مخکښې ليږلي وو | چې ايا مونږ د رحمان نه سوا نور معبودان مقرر کړي وو

يُّعْبَدُوْنَ۝

چې عبادت داوکړې شي دهغوئ |

چې دهغوئ عبادت دې کولې شي |

## آسان ترجمه قرآن

او کوم سړي چه د رحمن خدائې د ذکر نه ړوند شي، نو مونږ په هغه باندې یو شیطان مسلط کړو، چه دهغه ملګرې جوړ شي او دا شیطانان هغوی لره د نیغې لارې نه منع کوي او هغوی دا ګنړي چه مونږ په صحیح لاره باندې یو. تردې پورې چه کله دغه سړې زمونږ خوا ته راشي نو (خپل شیطان ملګری ته به) اووائي چه: کاش! زما او ستا په مینځ کښې د مشرق او مغرب هومره فاصله وې، ځکه چه ته ډیر بد ملګرې وې. او نن هرکله چه تاسو ظلم کړي دې، نو تاسوته به دا خبره هیڅ فائده نه درکوي، چه تاسو په عذاب کښې د یو بل سره شریک یئ نو بیا (اے پیغمبره) آیا ته کنړو ته اورولې شې، یا ړندو لره او هغې خلقو لره په لاره باندې راوستلې شې، چه په ښکاره ګمراهئ کښې اخته دي؟ پس اوس خو به هم دا کیږي، چه مونږ به تالره د دنیا نه پورته کړو، بیا مونږ ددوی نه بدله اخستونکې یو. یاکه تاته هم هغه (عذاب) اوښایو، د کوم عذاب چه مونږ دوی سره وعده کړې ده، پس یقیناً مونږ ته په دوی باندې قدرت حاصل دې. لهٰذا په تا باندې چه کومه وحې نازله کړې شوې ده، هغې لره مضبوطه اونیسه یقیناً ته په نیغه لار باندې ئې. او حقیقت دادې، چه دا وحې ستا دپاره او ستا د قوم دپاره د نیک نامئ یوه ذریعه ده اوستاسو د ټولونه به پوښتنه کولې شي (چه تاسو ددې څه حق ادا کړې دې؟) او ستا نه مخکښې چه مونږ کوم پیغمبران لیږلې دی دهغوی نه تپوس اوکړه، چه آیا مونږ د رحمٰن خدائې نه سوا نور معبودان هم مقرر کړې دی، چه دهغې عبادت کولې شي؟

## خلاصه تفسیر

﴿وَمَنْ يَعْشُ عَنْ ذِكْرِ الرَّحْمٰنِ﴾ [اوکوم سړې چه دالله تعالى دنصیحت] یعنی قرآن [نه] قصدا [ځان ړوند کړي] لکه چه داکافران دی چه د کافی شافي دلیلونو باوجود ځان غافله کوي ﴿نُقَيِّضْ لَهٗ شَيْطٰنًا﴾ [مونږ په هغوی یوشیطان مسلط کړو ﴿فَهُوَ لَهٗ قَرِيْنٌ ۝﴾ پس هغه] هروخت [دهغه سره وي ﴿وَاِنَّهُمْ لَيَصُدُّوْنَهُمْ عَنِ السَّبِيْلِ﴾ اوهغه] د هغوی سره او سیدونکی شیطانان] هغو [سد قرآن نه اعراض کوونکو [لره] برابر [دلارې] حقې [نه منع کوي] او دادتسلط اثر دې ﴿وَيَحْسَبُوْنَ اَنَّهُمْ مُّهْتَدُوْنَ ۝﴾ [او دا خلق] سره ددې چه دحقې لارې نه لرې دی داخیال کوي چه هغوی [یعنی مونږ] په لاره [نیغه] باندې دی [پس د چا دګمراهئ چه دا حالت او داصورت وی د هغه په لارې دکیدوڅه امید دې پس غم ولې کوې او داهم تسلی ساته چه ددوی د اتغافل به زر ختم شي او ژر به دوی ته خپله غلطی ښکاره شی ځکه چه داتغافل صرف ددنیا پورې دې ﴿حَتّٰۤى اِذَا جَآءَنَا﴾ [تر دې چه هرکله داسې سړې مونږ ته راشي] او دده غلطی ظاهره شی [نو] دغه ملګری شیطان ته [به ﴿قَالَ يٰلَيْتَ بَيْنِيْ وَبَيْنَكَ﴾ ووائی چه کاش زما او ستا په مینځ کښې] په دنیا کښې ﴿بُعْدَ الْمَشْرِقَيْنِ﴾ [دمشرق او مغرب هومره فاصله وې] ځکه [چه ته] خو ﴿فَبِئْسَ الْقَرِيْنُ ۝﴾ [بدملګرې وې] چه تازه ګمراه کړم مګر دا حسرت به دغه وخت په کار رانه شی [او] دارنګ دوی ته به ووئیلې شی چه ﴿وَلَنْ يَّنْفَعَكُمُ الْيَوْمَ اِذْ ظَّلَمْتُمْ﴾ [کله چه تاسو] په دنیا کښې [کفر کړې وو نو] لکه څنګه چه نن حسرت ستاسو په کار نه راځی دغه شان [نن داخبره] هم [ستاسو په کار نه راځی ﴿اَنَّكُمْ فِى الْعَذَابِ مُشْتَرِكُوْنَ ۝﴾ چه تاسو] او شیطانان [ټول په عذاب کښې شریک یئ] لکه په دنیا کښې چه څنې وخت نورو لره په مصیبت کښې شریک ووینی یو قسم له تسلی

کیږی هلته به چونکه عذاب ډیر سخت وی په دې وجه بل طرف ته به التفات هم نه وی هرسړې
به په خپل حال کښې اخته وی او خپل ځان به دټولو نه زيات مبتلا وینی [پس] تاتـه چـه هرکله
ددوی دا حالت معلوم شو چه ددوی د هدایت هیڅ امید نشته نو ﴿اَفَاَنۡتَ تُسۡمِعُ الصُّمَّ﴾ [ایا تـه]
داسې [کڼږو ته اوږولې شې ﴿اَوۡ تَهۡدِی الۡعُمۡیَ وَمَنۡ كَانَ فِیۡ ضَلٰلٍ مُّبِیۡنٍ﴾ یا] داسې [ړندو تـه او
هغو خلقو تـه کـوم چـه پـه ښکـاره ګمراهئ کښـې] مبتـلا [دی پـه لاره کـولې شې] یعنی د دوی
هدایت ستا د اختیار نه خارج دې ته مه وریسې کیږه [بیا] د دوی داسرکشی خالی تلونکې نه
ده بلکه په دې ضرور سزا مرتب کیدونکې ده خواه ستا په ژوند کښې وی خـواه ستـا دوفـات نـه
پس وی ﴿فَاِمَّا نَذۡهَبَنَّ بِكَ﴾ [پس کـه چرې مونږ] د دنیـا نـه [تـالره اوچت کـړو ﴿فَاِنَّا مِنۡهُمۡ
مُّنۡتَقِمُوۡنَ﴾ نو مونږه د دوی [کافرانو] نه بدله اخستونکی یو ﴿اَوۡ نُرِیَنَّكَ الَّذِیۡ وَعَدۡنٰهُمۡ﴾ یا کـه د
دوی سره چه کومه مونږ دعذاب وعده کړې ده هغه] ستا په ژوند کښې په دوی نـازل کـړو [تاتـه
یې] هم [وښایو ﴿فَاِنَّا عَلَیۡهِمۡ مُّقۡتَدِرُوۡنَ﴾ نو بیا هم] څه بعیده نـه ده ځکـه چـه [پـه دوی زمونږ
هرقسم قـدرت دې] مطلب دادې چه عـذاب بـه خامخا وی خواه هرکله چه وی او هرکله چه
داخبره ده [نو ته] تسلی ساته او په اطمنان سره ﴿فَاسۡتَمۡسِكۡ بِالَّذِیۡۤ اُوۡحِیَ اِلَیۡكَ﴾ [په دې قـرآن قـائم
وسیږه کـوم چـه پـه تـادوحی پـه ذریعـه نـازل کـړې شوې دې] ځکـه چـه ﴿اِنَّكَ عَلٰی صِرَاطٍ مُّسۡتَقِیۡمٍ﴾
[بیشکه ته په نیغه لاره یې] مطلب دادې چه ته خپل کـار کـوه او د نـورو دکـارغم مـه کـوه ﴿وَاِنَّهٗ
لَذِكۡرٌ لَّكَ وَلِقَوۡمِكَ﴾ [او داقرآن] په کوم چه د قـائم اوسیدو مونږ وایـو [ستـادپاره او ستـادقوم دپاره
دلوئ شرف شې دې] ستادپارخو په دې وجه چه تـه بلاوسطه مخاطب یئ او دقوم دپاره په دې
وجه چه هغه بالواسطه مخاطب دی د عامو بادشاهانو سره هم کلامی لوئ شرف ګڼړلې شی نـو
لابیـا دباشاهانو د باشـاه مخـاطـب کیـدل ﴿وَسَوۡفَ تُسۡـَٔلُوۡنَ﴾ [او ډیرزر] د قیـامت پـه ورځ [بـه
تاسوټولو نه] د خپلې خپلې ذمې د واجبو حقونو [تپوس وشی] پس تانـه بـه صرف دتبلیغ پـه
حقله تپوس وی کوم چه تابڼه اداکړو او دعمل متعلق به ددوی نه تپوس وی پس هرکله چه تانـه
ددوی د عملونـو پـه بـاره کښـې تپـوس نـه وی نـو تـه غـم ولـې کـوې [او] مونږ چـه کومـه پـه
تانازلیدونکې وحی حقه ګرځوو په دې کښې کفارو ته دټولو نه لوئ اعتراض په عقیده دتوحید
دې دکومې په حقوالې کښې چه دوی خبرې کوی پس په حقیقت کښې دا داسې حق کار دې چه
په دې دټولو انبیاؤ ﷺ اجماع ده او چونکه انبیاء ﷺ د عقلی اونقلی دلائلو جامع دی په دې
وجه ګویا په دې پـه زرګونـو عقلی اونقلی دلیلونـه قـائم دی چنانچـه کـه ستـازړه غـواړی نـو
﴿وَسۡـَٔلۡ مَنۡ اَرۡسَلۡنَا مِنۡ قَبۡلِكَ مِنۡ رُّسُلِنَاۤ﴾ [ته د هغو ټولو پیغمبرانو نه کومولره چه مونږه تانه وړانـد
لیږلی دی تپوس وکړه] یعنی د هغوی [دکتابونو او صحیفونه دکومو چه څه بقیـه موجود] دی
تحقیق وکړه ﴿اَجَعَلۡنَا مِنۡ دُوۡنِ الرَّحۡمٰنِ اٰلِهَةً یُّعۡبَدُوۡنَ﴾ [چه ایا مونږ د الله تعالی نه سوا] چرې هم
[نور معبودان مقرر کړی وو چه دهغوی عبادت د وشی] ددې نـه نـورو تـه اوږول منظور دی چه
کـه د چازړه غواړی تحقیق دې اوکړی او په کتابونو کښې کتلوتـه یې درسولاتو نـه تپوس کـول
مجازا وئیلی دی.

**معارف او مسائل**

**د الله تعالی د یاد څخه مخ اړول د خراب صحبت په وجه کیږی** ﴿وَمَنۡ یَّعۡشُ عَنۡ ذِكۡرِ الرَّحۡمٰنِ﴾ مطلب دادې چې
کوم کس د الله ﷻ نصیحت یعنی رسول اکرم ﷺ او وحی څخـه مـخ واړوی نومونږ پـه دوئ

باندې يو شيطان مسلط كوؤ ، او هغه په دنيا كښې هم دهٔ سره وى او دې د نيكو كارونو څخه منع كوى او غوارى چې دې ګناهونو كښې اخته شى ، او آخرت كښې چې كله د ا سړې دقبر څخه پورته كيږى نو دا شيطان به دهٔ سره سره وى تر دې چې دواړه جهنم كښې داخل شى [قرطبى]([1]).

ددې څخه معلومه شوه چې د الله ﷻ د يادو څخه اعراض كولو سره به دومره سزا خو هم په دنيا كښې ملاويږى چې دې سره د انسان صحبت خراب شى . او انسانى شياطين او جنات دې نيكو كولو څخه لرې او ګناهونو ته نزدې كوى ، دې ټول كارونه د ګمراهئ كوى او دا ګنړى چې دې ښه كارونه كوى ، [قرطبى]([2]).

او دې ځاى كښې چې د كوم شيطان د مسلط كيدو ذكر دې هغه ددې شيطان څخه علاوه دى كوم چې هر مؤمن او كافر سره وى . ځكه چې هغه په يو خاص وخت كښې د مؤمن څخه جدا كيږى هم او دا به ورسره هميشه وى . [بيان القرآن]([3])

﴿وَلَن يَنفَعَكُمُ الْيَوْمَ﴾ددې آيت مبارك دوه تفسيرونه دى . يو دا چې كله ستاسو كفر او شرك ثابت شوې دې نو آخرت كښې به ستاسو هيڅ خواهش په كار نه رازى . او هغه خواهش دا چې كاش زما څخه شيطان لرې وى ځكه چې هغه وخت كښې به تاسو ټول عذاب كښې شريك يئ ، دې صورت كښې د ﴿أَنَّكُمْ فِي الْعَذَابِ﴾ جمله ﴿لِأَنَّكُمْ﴾ په معنى كښې به وى او د ينفع ضمير فاعل مقوله يا ليت بينى طرفته به راجع وى .

او بل تفسير دا ممكن دې چې هلته د رسيدو څخه روستو چې تاسو او شيطانان په عذاب كښې سره شريك يئ نو دا به ستاسو دپاره هيڅ مفيد نه وى . بيشكه چې په دنيا كښې داسې وى چې كله په يو مصيبت كښې څو كسان شريك شى نو د هر يو غم سپك شى ، خو هلته به هر سړې په خپل ځان اخته وى . او يو به د بل غم كښې شريك نه وى . دې صورت كښې به انكم الخ د ينفع فاعل وى .

**نيك شهرت هم يو دينى ښيګړه ده** :: ﴿وَإِنَّهُ لَذِكْرٌ لَّكَ وَلِقَوْمِكَ﴾: [او دا قرآن ستا دپاره او ستا د قوم دپاره د لوئې شرف څيز دې] ﴿ذِكْرٌ﴾ نه دلته مراد نيك شهرت دې . او مطلب دادې چې قرآن عظيم الشان د نبى كريم ﷺ دپاره او د نبى كريم ﷺ د قوم دپاره يو عظيم شرف او د نيك شهرت باعث دې . امام رازى رحمه الله فرمائى چې ددې آيت مبارك نه معلوم شو چې نيك شهرت يو قابل رغبت څيز دې . په دې وجه الله ﷻ دلته د احسان په طور ذكر فرمائيلى دى او پدې وجه ابراهيم عليه السلام دا دعا فرمائيلې وه چې ﴿وَاجْعَل لِّي لِسَانَ صِدْقٍ فِي الْآخِرِينَ﴾([4]) [تفسير كبير]([5]) ليكن دا ياد ساتل پكار دى چې نيك شهرت په هغه وخت كښې ښه دى چې دهغې نه د ژوند څه مقصد جوړولو نه بغير انسان ته نيك عملونو نه پخپله حاصل شى . او كه يو انسان صرف په دې غرض

---

[1]) تفسير القرطبي تحت هذه الآية: ج ١٦، ص ٨٩، ٩٠

[2]) تفسير القرطبي: ج ١٦، ص ٨٩، ٩٠

[3]) بيان القرآن تحت هذه الآية: ج ١٠، ص ٨٩

[4]) ترجمه: او زما ذكر آئنده راتلونكو خلقوكښ جارى اوساته.

[5]) التفسير الكبير تحت هذه الآية: ج ١٣، ص ٤٧٨

سره نیکی کوی چې په دنیا کښې ددۀ شهرت اوشی نو دا به ریا وی. او دې سره تولې نیکئ ختمیږی. او دا گناه هم ده. دې آیت مبارك ددوئ د قوم نه مراد د ځینو مفسرینو په نزد صرف د قریش قبیله ده. او په دې ئې د قریشو فضیلت ثابت کړې دې. خو علامه قرطبی رحمه الله فرمائی چې صحیح دادی چې ددې نه مراد د نبی کریم ﷺ پوره امت دې که دهغه تعلق هر رنګ یا نسل سره وی. قرآن کریم دهغه ټولو دپاره د عظمت و شرف او د نیك شهرت باعث دې. [قرطبی][1]

﴿وَسْئَلْ مَنْ أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ مِن رُّسُلِنَآ﴾ [مونږ چې ستاسو نه مخکښې کوم پیغمبران لیږلی دی دهغوئ نه تپوس اوکړه] دې ځائې کښې دا سوال پیدا کیږی چې مخکښې انبیاء علیهم السلام خو وفات شوی دی دهغوئ نه د پوښتنې کولو حکم څنګه کیږی؟ ددې جواب ځینې مفسرینو دا ورکړې دې چې ددې آیت مبارك مطلب دادې چې الله ﷻ د معجزې په طور ستاسو ملاقات سابقه انبیاء علیهم السلام سره اوکړل نو په هغه وخت کښې تاسو دهغوئ نه تپوس اوکړئ، نو د معراج په شپه د نبی کریم ﷺ ملاقات ټولو انبیاء علیهم السلام سره اوشو. او علامه قرطبی رحمه الله ځینې روایتونو نه نقل کړی دی چې دهغې نه معلومیږی چې نبی کریم ﷺ د انبیاء علیهم السلام امامت کولو نه پس د هغوئ علیهم السلام نه هم دا تپوس کړې وو[2] خو مونږ ته ددې روایاتو سندونه نشو معلوم. چنانچه اکثر مفسرین ددې آیت مبارك دا مطلب بیانوی چې پخپله د انبیاء علیهم السلام نه تپوس کول مراد نه دې بلکه په هغوئ باندې چې کومې صحیفې نازلې شوې وې دهغې تحقیق کول او د هغه امتونو د عالمانو نه تپوس کول مراد دی. د بنی اسرائیلو پیغمبرانو علیهم السلام باندې چې کومې صحیفې نازلې شوې وې په هغې کښې د تحریفاتو کولو باوجود په هغې کښې دتوحید تعلیم او دشرك نه د منع کیدو تعلیم نن هم موجود دې. د مثال په طور د موجوده بائبل دا لاندې عبارتونه اوګورئ:

**د انبیاء علیهم السلام په صحیفو کښې د توحید تعلیم:** موجوده تورات کښې:

دې دپاره چې تاته معلوم شی چې خداوند الله ﷻ دې او دهغه نه سوا بل څوك نشته دې [استثناء ۴: ۳۵]

او اې اسرائیل واؤرۀ: خداوند زمونږ یو خدائې هم یو خدائې دې. [استثناء: ۶: ۴]

او د اشعیاء علیه السلام په صحیفه کښې دی چې:

هم څه خدائې یم، او بل څوك نشته دې، څما نه سوا بل څوك نشته دې، چې د مشرق نه تر مغربه پورې خلق پوهه شی چې څما نه سوا بل څوك نشته دې، هم څه خدائې یم، څما نه سوا بل څوك نشته دې. [یسعیاه ۴۵: ۵ و ۶]

او د مسیح علیه السلام د اقول په موجوده بخیلونو کښې مذکور دې چې:

اې اسرائیل! واؤرۀ، خداوند زمونږ خدا هم یو خداوند دې او ته خداوند دخپل خدائ سره د خپل ټول زړه نه او خپل ټول ځان، او خپل ګران عقل او خپل ټول طاقت سره محبت اوساته [مرقس: ۱۲ ۲۹ ومتی ۲۲: ۳۶]

منقول دی چې دوئ یو ځل مناجات کول او وې فرمائیل چې:

---

[1] ) تفسير القرطبي: ج ١٦، ص ٩٤
[2] ) تفسير القرطبي: ج ١٦، ص ٩٥

او د همیشه ژوند دادې چې هغه تا لره واحد خداوند برحق یسوع مسیح لره کوم لره چې تا لیږلې دې او پیژنې [یوحنا: ۱۷:۳]

وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا مُوْسٰى بِاٰيٰتِنَآ

| اوبې شکه لیږلې وو مونږه | موسی | دنښو خپلو سره |

اومونږ موسیٰ علیه السلام په خپلو نښنو سره

اِلٰى فِرْعَوْنَ وَمَلَا۟ئِهٖ فَقَالَ اِنِّيْ رَسُوْلُ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ۝

| فرعون ته | اوملګرو دهغه ته | پس اووئیل هغه | بیشکه زهٔ | رسول یم درب العالمین |

فرعون او دهغه سردارانو ته لیږلې وو | نو ورته ئې اووئیل چې زهٔ د رب العالمین رسول یم

فَلَمَّا جَآءَهُمْ بِاٰيٰتِنَآ اِذَا هُمْ مِّنْهَا يَضْحَكُوْنَ۝

| پس هر کله | چې راغې هغه هغوئ ته | دنښو زمونږ سره | نو بیا هغوئ | په هغې پورې | خندل |

بیا چې موسیٰ علیه السلام ورته زمونږ ورکړې نښې وړاندې کړې | نو هغوئ ورپورې خند اګانې شروع کړې

وَمَا نُرِيْهِمْ مِّنْ اٰيَةٍ اِلَّا هِيَ اَكْبَرُ مِنْ اُخْتِهَا وَاَخَذْنٰهُمْ

| اونهٔ به ښودله مونږ هغوئ ته | یوه نښه | مګر | هغه به لویه وه | دهغه بلې نه | اواونیول مونږ هغوئ |

او مونږ چې به ورته کومه نښه خودله | نو هغه به د بلې نه غټه وه | اومونږ دغه خلق په

بِالْعَذَابِ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ۝ وَقَالُوْا يٰٓاَيُّهَ السّٰحِرُ

| په عذاب سره | دپاره ددې چې هغوئ | راواوځئ [دکفرنه] | او اووئیل هغوئ | اے جادوګره |

عذاب کښې راونیول | چې هغوئ [دخپلو غلطو لاروچارو] نه منع شي | او هغوئ اووئیل چې ائې جادوګره

ادْعُ لَنَا رَبَّكَ بِمَا عَهِدَ عِنْدَكَ ۚ

| اوغواړه دپاره زمونږه | درب خپل نه | په سبب دهغې وعدې | چې کړې ئې ده | تاسره |

ته زمونږ دپاره د خپل رب نه سوال اوکړه | چې دکومې خبرې چې هغه تاسره وعده کړې ده

اِنَّنَا لَمُهْتَدُوْنَ۝ فَلَمَّا كَشَفْنَا عَنْهُمُ الْعَذَابَ

| بیشکه مونږه | خامخا هدایت موندونکې یو | پس هر کله چې | لرې کړو مونږه | دهغوئ نه عذاب |

نو مونږ به ضرور په نیغه لار روان شو | ..................نو بیا چې ترې مونږ عذاب لرې کړو | نو

اِذَا هُمْ يَنْكُثُوْنَ۝ وَنَادٰى فِرْعَوْنُ فِيْ قَوْمِهٖ قَالَ

| بیا دوئ وو | چې اوریدو دخبرې نه | او آواز اوکړو | فرعون | په قوم خپل کښې | وې وئیل |

هغوئ [هم هغه وخت] خپله وعده ماته کړه | اوفرعون خپل قوم ته اعلان اوکړو | او دا یې اووئیل

يٰقَوْمِ اَلَيْسَ لِيْ مُلْكُ مِصْرَ وَهٰذِهِ الْاَنْهٰرُ تَجْرِيْ

| اے قومه زما | آیا نهٔ ده | مالره | بادشاهي | دمصر | او دا نهرونه | چې بهیږی |

چې ائې زما قومه آیا د مصر بادشاهي زما نه ده | او دا ټول نهرونه چې زما په حکم باندې

مِنْ تَحْتِيْ ۚ اَفَلَا تُبْصِرُوْنَ ۝ اَمْ اَنَا خَيْرٌ مِّنْ هٰذَا الَّذِيْ هُوَ

لاند دحکم زما نه | آیا پس نه وینئ تاسو | آیا زهٔ | بهتر یم | ددې سړي نه | هغه سړي | چې هغه

بهیږي | نو آیا تاسو دا نه وینئ ؟ | نو [اوس فیصله په تاسو ده چه] زه د دې سړي [موسی] نه غوره نه یم

مَهِيْنٌ ۙ وَّلَا يَكَادُ يُبِيْنُ ۝ فَلَوْلَاۤ اُلْقِيَ عَلَيْهِ

سپک دي | اونهٔ دي داسې | چې واضحه بیا نکړي خبره خپله | پس ولې نه واچول شو | ده ته

چې ددهٔ هیڅ مقام نشته | او سمې واضحه خبرې هم نشي کولې | نو ده ته د سرو زرو

اَسْوِرَةٌ مِّنْ ذَهَبٍ اَوْ جَآءَ مَعَهُ الْمَلٰٓئِكَةُ مُقْتَرِنِيْنَ ۝

بنګړي | دسرو زرو | یا [ولې] رانغلې | ددهٔ سره | فرښتې | پیوست [ملګري] |

بنګړي ولې نه دي اچولې شوي [یا ده سره یوځائې فرښتې ولې نه دي راغلي [چه د ده تصدیق یې کولې]

فَاسْتَخَفَّ قَوْمَهٗ فَاَطَاعُوْهُ ۭ اِنَّهُمْ كَانُوْا

پس هغه سپک اوموندو | قوم خپل | پس هغوئ اطاعت اوکړو د هغه | بیشکه هغوئ | وو |

دغه شان دهٔ خپل قوم بې وقوفه جوړ کړو | نو د هغه تابعداري یې اوکړه | بیشکه دوئ

قَوْمًا فٰسِقِيْنَ ۝ فَلَمَّآ اٰسَفُوْنَا انْتَقَمْنَا مِنْهُمْ

یو قوم | نافرمانه | پس هر کله چې | هغوئ په قهر کړو مونږه | نو بدله واغستله مونږه | دهغوئ نه

نافرمانه خلق وو | بیا کله چې هغوئ مونږ خفه کړو | نو مونږ دهغوئ نه بدله واخسته

فَاَغْرَقْنٰهُمْ اَجْمَعِيْنَ ۙ فَجَعَلْنٰهُمْ سَلَفًا وَّمَثَلًا

پس ډوب کړل مونږه هغوئ | ټول | پس اوګرځول مونږه هغوئ | پیشوایان | اویوه نمونه دعبرت

بیا مونږ هغوی ټول هلاک کړل | نو د نورو [راتلونکو] خلقو دپاره مو مشران او [دعبرت]

لِّلْاٰخِرِيْنَ ۝

دپاره دروستنو خلقو |

نمونې جوړ کړې |

## آسان ترجمه قرآن

او مونږ موسی علیه السلام ته خپلې نښې ورکړې، او فرعون او دهغه سردارانو ته مو لیږلې وو، نو موسی علیه السلام اووئیل چه زهٔ د رب العالمین رالیږلې شوې پیغمبر یم. بیا چه کله هغه زمونږ نښې د فرعون مخکښې پیش کړې، نو فرعون هغې پورې توقې کولې. او مونږ چه هغه ته کومه نښه هم اوښودله، نو هغه به د ړومبۍ نښې نه لویه وه. او مونږ هغوی لره په عذاب کښې هم راګیر کړل، دې دپاره چه هغوئ رامنع شي او هغوئ دا اووئیل چه: اے جادوګره! تاسره چه ستا پروردګار کومه وعده کړې ده، دهغې په واسطې سره دهغه نه زمونږ دپاره دعا اوغواړه، مونږ یقیناً په نیغه لار باندې راتلونکي یو. بیا به چه کله مونږ د هغوی نه عذاب لرې کړو، نو په لږ وخت کښې به هغوی خپله وعده ماته کړه. او فرعون د خپل قوم په مینځ کښې آواز اوکړو چه: اے زما قومه! آیا د مصر سلطنت زما په قبضه کښې نه دې، او

دا (اوګورئ) دا دریابونه چه زما لاندې بهیږی، آیا تاسو ته په نظر نه راځی یا تاسو منئ، چه زه د هغه سړی نه ډیر بهتر یم، چه ډیر سپک دې، او خپله خبره واضحه طریقې سره کول هم هغه دپاره مشکل دی. آیا (که دې پیغمبر دې) نو په ده باندې د سرو زرو بنګړی ولې نه راغورزیږی؟ یا ولې نه راځی ده سره فرشتې چه صفونه ئې جوړ کړې وی. دغه شان هغه خپل قوم لره بے وقوف جوړ کړو او هغوی ده خبره اومنله. حقیقت دادې چه هغه ټول ګناهګار خلق وو نو چه کله هغوی مونږ لره ناراضه کړل. نو مونږ دهغوی نه انتقام واخستلو او هغوی ټولو لره مو غرق کړل. او مونږ هغوی یو تیر شوې قوم. او روستنو خلقو دپاره د عبرت نمونه جوړه کړه.

## خلاصه تفسیر

﴿وَلَقَدۡ اَرۡسَلۡنَا مُوۡسٰی بِاٰیٰتِنَاۤ اِلٰی فِرۡعَوۡنَ وَمَلَا۟ئِهٖ﴾ [اومونږ موسی] ﷺ [لره خپل دلیلونه] یعنی معجزې عصا او یدبیضا [ورکړل فرعون او دده سردارانو ته مولیږلې وو پس دوی] ﷺ هغو خلقو ته راغلل ﴿فَقَالَ اِنِّیۡ رَسُوۡلُ رَبِّ الۡعٰلَمِیۡنَ ﴾ [نو وئې فرمائیل چه زه د رب العلمین دطرف نه] ستاسو خلقو د هدایت دپاره [پیغمبر] شوې راغلې [یم] مګر فرعون او دفرعون خلقو ونه منلو [بیا] مونږ نور دلیلونه دسزاګانو په رنګ کښې ددوی دنبوت ثابتولو دپاره ظاهر کړل یعنی قحط سالئ وغیره مګر ددغو خلقو بیا هم دا حالت وو چه ﴿فَلَمَّا جَآءَهُمۡ بِاٰیٰتِنَاۤ﴾ [کله به موسی] ﷺ [هغوی ته زمونږ] هغه [نښې راوړې] کومو ته چه نهه ایتونه وئیلې شی ﴿اِذَا هُمۡ مِّنۡهَا یَضۡحَکُوۡنَ ﴾ [نو هغوی به یکدم په هغو] معجزو [پورې خنداوکړه] چه داځه معجزې دی محض معمولی واقعات او حادثې دی ځکه چه قحط وغیره خو هسې هم راځی مګر دا ددوی حماقت وو ځکه چه په نورو قرائنو سره صفا معلومیده چه دا واقعات غیر معمولی دی او د معجزې په طور کیږی په دې وجه پرې هغوی د جادو تهمت لګولې وو لکه چه په سوره اعراف کښې [لتسحرنا به] الفاظ په دې ګواه دی [او] د هغو نښو کیفیت دا وو چه ﴿وَمَا نُرِیۡهِمۡ مِّنۡ اٰیَةٍ اِلَّا هِیَ اَکۡبَرُ مِنۡ اُخۡتِهَا﴾ [مونږ به هغوی ته کومه نښه ښوده هغه به د بلې نښې نه زیاته وه] مطلب داچه ټولې نښې لوې وې او دامطلب نه دې چه هره نښه دبلې یوې نښې نه لویه وه دایوه محاوره ده هرکله چه ډیرو څیزونو کمال بیانول غواړی نو داسې وائی چه یو دبل نه زیات دی او داهم ممکنه ده چه واقعتا هم هرې راتلونکې نښې دبلې نښې نه څه زیات فضیلت لرلې وی ﴿وَاَخَذۡنٰهُمۡ بِالۡعَذَابِ لَعَلَّهُمۡ یَرۡجِعُوۡنَ ﴾ [اومونږ] ددې نښو په واقع کولو سره [هغوخلقو لره په عذاب کښې نیولی وو چه هغوی] دخپل کفر نه [واپس شی] یعنی هغه نښې دنبوت دلیلونه هم وو او دهغوی دپاره سزاګانې هم وې مګر هغه خلق واپس نه شول سره ددې چه دهرې نښې په واقع کیدو ئې ددې څوپیرې عهد هم وکړو ﴿وَقَالُوۡا یٰۤاَیُّهَ السّٰحِرُ﴾ [او هغوی] موسی ﷺ ته په هره نښه باندې دا [ووئیل چه اے جادوګره] داالفظ دتیر عادت موافق په ډیره بدحواسئ سره د خلې نه به وتلې وی ورنه دداسې عاجزانه درخواست په موقع باند دادشرارت لفظ وئیل خو مستبعد معلومیږی په هرحال مطلب ئې داوو چه اے موسی ﷺ ﴿ادۡعُ لَنَا رَبَّکَ بِمَا عَهِدَ عِنۡدَکَ﴾ [زمونږ دپاره دخپل رب نه د هغې خبرې دعا وکړه دکومې چه هغه تاسره عهد کړې دې] او هغه خبره ده زمونږ په واپس کیدو د قهر لرې کول مونږ وعده کوو چه که تاداعذاب لرې کړونو ﴿اِنَّنَا لَمُهۡتَدُوۡنَ ﴾ [مونږ به خامخا په لارې شو ﴿فَلَمَّا کَشَفۡنَا عَنۡهُمُ الۡعَذَابَ﴾ بیا] کله چه [مونږ

هغه عذاب د هغوی نه لرې کړو ﴿اِذَا هُمْ يَنْكُثُوْنَ﴾ نو بيا هغوی] خپله [وعده ماته کړه] ددې
نښو بيان په سوره اعراف کښې تير شوې دې ﴿وَنَادٰى فِرْعَوْنُ فِيْ قَوْمِهٖ﴾ [او فرعون] غالبا په دې
خيال سره چه دمعجزو په ليدو چرته عام خلق مسلمانان نه شي [په خپل قوم کښې اواز وکړو]
او په دغه اواز کښې ئې ﴿قَالَ يٰقَوْمِ اَلَيْسَ لِيْ مُلْكُ مِصْرَ﴾ [داخبره وکړه چه اے زما قومه ايا دمصر]
سره دتوابعو [حکومت زما نه دې] وګورئ ﴿وَهٰذِهِ الْاَنْهٰرُ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِيْ﴾ [اودا نهرونه زما] د
محل [لاند چه بهيږی ﴿اَفَلَا تُبْصِرُوْنَ﴾ ايا تاسو] دا څيزونه [وينئ نه] او دحضرت موسی ؑ
سره هيڅ سامان هم نشته نو وښايئ ﴿اَمْ اَنَا خَيْرٌ مِّنْ هٰذَا الَّذِيْ هُوَ مَهِيْنٌ﴾ چه زه غوره او قابل اتباع
يم اوکه موسی ؑ [بلکه زه] خاص [غوره يم ددې سړی نه] يعنی موسی ؑ نه [کوم چه] په
اعتبار دمال اومرتبې [کم قدره] سړی [دې ﴿وَلَا يَكَادُ يُبِيْنُ﴾ او قوت بيانيه هم نه لري] اوکه
داسړی خپل ځان ته پيغمبر وائی ﴿فَلَوْلَآ اُلْقِيَ عَلَيْهِ اَسْوِرَةٌ مِّنْ ذَهَبٍ﴾ [نو ده] په لاسو نو کښې [دسرو
زرو بنګړی ولې وانه چولې شول] لکه چه ددنيا دبادشاهانو عادت دې چه کله په چا خاص
عنايت کوی نو ده ته په عام دربار کښې دسرو زروبنګړی په لاس کوی مطلب داچه که دې سړی
ته نبوت ورکړې شوې وې نو ده په لاسونو کښې به دسرو زرو بنګړی وو ﴿اَوْ جَآءَ مَعَهُ الْمَلٰٓئِكَةُ
مُقْتَرِنِيْنَ﴾ [يا فرښتې ده په خوا کښې په قطار ولې نه راغلې] لکه چه د خاصو اميرانو شاهی
جلوس دغه شان وخی [غرض هغه] داسې خبرې وکړې ﴿فَاسْتَخَفَّ قَوْمَهٗ﴾ [خپل قوم ئې مغلوب
العقل [کړو ﴿فَاَطَاعُوْهُ﴾ نو هغوی ده په خبرو کښې راغلل] او ﴿اِنَّهُمْ كَانُوْا قَوْمًا فٰسِقِيْنَ﴾ [هغه
خلق] د وړاند نه هم [د شرارت نه ډک وو] په دې وجه فرعون د خبرو په دوی زيات اثر وشو
﴿فَلَمَّآ اٰسَفُوْنَا انْتَقَمْنَا مِنْهُمْ﴾ [بيا چه هر کله هغو خلقو] برابر په کفر اوضد باندې اصرار کولو [مونږه
ئې غصه کړو نو مونږه د دوی نه بدله واخسته ﴿فَاَغْرَقْنٰهُمْ اَجْمَعِيْنَ﴾ او هغه ټول مو ډوب کړل
﴿فَجَعَلْنٰهُمْ سَلَفًا وَّمَثَلًا لِّلْاٰخِرِيْنَ﴾ اومونږ هغوی لره د ائنده راتلونکو دپاره په خاص طور سره متقد
مين اونمونه] د عبرت [جوړکړه] په خاص طور د متقدمينو جوړولو مطلب دادې چه خلقو ته
ددوی قصه د عبرت اخستو دپاره ذکر کولې شی چه وګورئ په تيرو خلقو کښې داسې داسې
خلق تير شوی دی او دهغو داسې داسې حال شوې دې.

## معارف او مسائل

د موسی ؑ واقعه مخکښې بار بار تيره شوې ده. او دې آيتونو کښې چې کومې واقعې
طرفته اشاره کړې شوې ده هغه په سورة اعراف کښې تفصيل سره تيره شوې ده. او دې ځائې
کښې د هغه واقعه يادولونه مقصد دادې چې د مکې کافرانو د رسول اکرم ﷺ په نبوت
باندې دا اعتراض کولو چې دا نبوت يو مالدار سړی ته ولې ورنکړې شو، هم دا شان فرعون دا
اعتراض په موسی ؑ باندې کړې وو. فرعون دا دعوی کوله چې زه د مصر دملك بادشاه يم او
زما د محلو لاندې نهرونه روان دی نو په دې وجه زه د موسی ؑ نه افضل يم [معاذالله].
نو زما مقابله کښې هغه ته څنګه نبوت ورکولې شی؟ نو څنګه چې د هغه دا اعتراض دهغه څه
پکار رانغلو او هغه دخپل قوم سره غرق شو. داشان د مکې د کافرانو دې اعتراض هغوئ
د دنيا او آخرت د عذاب څخه بچ نه کړل.

﴿وَلَا يَكَادُ يُبِيْنُ﴾ اګر چې الله ﷻ د موسی ؑ په دعا سره دهغه د ژبې لکنت ختم کړې وو خو

فرعون ته د موسی علیه السلام ړومبې منظر یاد وو. نو په دې وجه هغه په موسی علیه السلام باندې عیب اولګولو. او دا هم کیدې شي چې دلته د قوت بیانیه څخه مراد دژبې د روانۍ په ځائې د دلائلو قوت او وضاحت وی. او د فرعون مطلب دا وی چې موسی علیه السلام سره داسې کافی دلائل نشته دې چې ما مطمئن کړې شي. حالانکه دا د فرعون یو وهم وو. ګنې موسی علیه السلام په دلائلو او براهینو کښې فرعون لاجوابه کړې وو. [تفسیر کبیر و روح المعانی][1]

﴿فَاسْتَخَفَّ قَوْمَهُ﴾ ددې دوه ترجمې کیدې شي. یو دا چې فرعون خپل قوم لره په آسانۍ سره خپل تابع جوړ کړل. ﴿طلب منهم الخفة فی مطاوعته﴾ او بل دا چې هغه خپل قوم لره بې وقوف جوړ کړو. ﴿وجدهم خفیفة احلامهم﴾ [روح المعانی][2]

﴿فَلَمَّا آسَفُونَا﴾ دا د اسف نه مشتق دې. او ددې معنی افسوس کول دی. نو ددې جملې لفظی معنی دا شوه چې: پس هرکله چې مونږ ته هغوئ افسوس راؤیستلو. او اکثر افسوس د غصې په معنی هم استعمالیږی. نو په دې وجه ددې باومحاوره ترجمه عمومی طور دا کیږی چې کله مونږ هغه غصه کړو. او چونکه الله ﷻ د غصې انفعالی کیفیت نه پاک دې ځکه ددې مطلب دا دې چې هغوئ کارونه داسې اوکړل چې د هغې په وجه مونږ هغوئ ته د سزا ورکولو اراده اوکړه. [روح][3]

| وَلَمَّا | ضُرِبَ | ابْنُ مَرْيَمَ | مَثَلًا | إِذَا قَوْمُكَ |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| او هر کله چې | بیانکړې شو | خوئې دمریم | په مثال کښې | نو بیا قوم ستا |
| او کله چې د بی بی مریم دخوئې مضمون واورولې شو | نو څه ګورو چې ستا قوم په | | | |

| مِنْهُ | يَصِدُّونَ | وَقَالُوا | ءَأَلِهَتُنَا | خَيْرٌ | أَمْ هُوَ |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| په هغې پورې | شور جوړوی خاندی | اووې وئیل | آیا معبودان زمونږه | بهتر دی | او که هغه |
| دې باندې دخوشحالۍ نه چغې وهل شروع کړل | اووې وئیل چې آیا زمونږ معبودان غوره دی | او که هغه [عیسی] | | | |

| مَا ضَرَبُوهُ | لَكَ | إِلَّا جَدَلًا | بَلْ هُمْ | قَوْمٌ | خَصِمُونَ |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| نه بیانوی دوئ دا مثال | تاته | مګر دپاره دجګړې | بلکه دوئ | قوم | جګړمار دې |
| دوئ داخبره صرف د جګړې په غرض کړې ده | ......... بلکه دا خلق هسې هم جګړ مار دی | | | | |

| إِنْ هُوَ | إِلَّا | عَبْدٌ | أَنْعَمْنَا | عَلَيْهِ | وَجَعَلْنَاهُ |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| نه وو هغه [ابن مریم] | مګر | یو بنده وو | چې انعام کړې وو مونږ | په هغه باندې | اوجوړ کړې وو مونږ هغه |
| عیسی خو زمونږ یو [نیک] بنده وو | چې مونږ پرې فضل کړې وو | او هغه مو دبنی اسرائیلو دپاره | | | |

| مَثَلًا | لِبَنِي إِسْرَائِيلَ | وَلَوْ نَشَاءُ | لَجَعَلْنَا |
| --- | --- | --- | --- |
| یو مثال [نمونه] | دپاره دبنی اسرائیلو | او که غوښتلې مونږه | نو ګرځولې به وې مونږه |
| [دخپل قدرت] نمونه جوړه کړې وه | او که چرې مونږ غوښتلې نوتاسو په ځائې به مو فرښتې | | |

[1] تفسیر کبیر: ج ۱۳، ص ۱۸۲، وروح المعانی تحت هذه الآیة: ج ۱۸، ص ۳۷۸

[2] روح المعانی: ج ۱۸، ص ۳۷۸

[3] روح المعانی: ج ۱۸، ص ۳۷۹

مِنْكُمْ مَّلٰٓئِكَةً فِي الْاَرْضِ يَخْلُفُوْنَ ﴿٦٠﴾ وَاِنَّهٗ

ستاسو نه | فرښتې | په زمكه كښې | چې اوسيدلې به په ځاني ستاسو | اوبيشكه هغه |

پيدا كړې وې | چې په زمكه كښې به ستاسو په ځاني اوسيدې | او حضرت عيسى د قيامت د راتلو

لَعِلْمٌ لِّلسَّاعَةِ فَلَا تَمْتَرُنَّ بِهَا وَاتَّبِعُوْنِ ط

خامخا نښه ده | دپاره دقيامت | پس مه كوئ شك تاسو | په دې قيامت كښې | او پيروى اوكړئ زما

يوه نښه ده | نو تاسو په دې باره شک مه كوئ | ..........اوزما تابعدارى اوكړئ (قيامت اومنئ) |

هٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيْمٌ ﴿٦١﴾ وَلَا يَصُدَّنَّكُمُ الشَّيْطٰنُ اِنَّهٗ لَكُمْ

دا | لاره | نيغه ده | او منع د نه كړي تاسو | شيطان | بيشكه هغه | تاسو لره |

دانيغه لاره ده | اوشيطان دې تاسو د نيغې لارې دتلونه منع نكړى | ..........بلكه هغه ستاسو

عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ ﴿٦٢﴾ وَلَمَّا جَآءَ عِيْسٰى بِالْبَيِّنٰتِ قَالَ

دشمن ښكاره دې | او هر كله چې | راغې عيسى عليه السلام | دښكاره نښو سره | نو اوونيل هغه |

ښكاره دښمن دې | اوكله چې عيسى عليه السلام ښكاره نښې راوړې | نو خلقو ته ئې اووئيل

قَدْ جِئْتُكُمْ بِالْحِكْمَةِ وَلِاُبَيِّنَ لَكُمْ بَعْضَ الَّذِيْ

چې راغلې يم زه تاسو ته | دحكمت سره | او دپاره ددې چې بيان كړم زه تاسو ته | خينې خبرې | هغه

چې تاسو ته مې دحكمت خبرې راوړې دى | او ځكه راغلې يم چې تاسو ته بعضې هغه خبرې ښكاره كړم

تَخْتَلِفُوْنَ فِيْهِ ج فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوْنِ ﴿٦٣﴾ اِنَّ اللّٰهَ

چې تاسو اختلاف كوئ | په هغې كښى | پس اويريږئ دالله نه | اواطاعت اوكړئ زما | بيشكه الله چې دې

په كومو كښې چې تاسو اختلاف كوئ | نو دالله ﷻ نه اوويريږئ | او زما تابعدارى اوكړئ | بيشكه الله

هُوَ رَبِّيْ وَرَبُّكُمْ فَاعْبُدُوْهُ ط هٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيْمٌ ﴿٦٤﴾

هغه رب زما دې | او رب ستاسو دې | پس عبادت كوئ دهغه | دا لار نيغه ده |

زما هم رب دې | او ستاسو هم رب دې | نو صرف دهغه عبادت كوئ | هم داسمه نيغه لاره ده

فَاخْتَلَفَ الْاَحْزَابُ مِنْۢ بَيْنِهِمْ ج فَوَيْلٌ لِّلَّذِيْنَ

پس اختلاف اوكړو | ډلو | په خپل منځ كښى | پس تباهى ده | دپاره دهغه كسانو |

نوبيا (په دې پسې هم) مختلفوډلو په خپل مينځ كښې اختلاف پيدا كړو | نو ظالمانو دپاره

ظَلَمُوْا مِنْ عَذَابِ يَوْمٍ اَلِيْمٍ ﴿٦٥﴾

چې ظلم ئې اوكړو | دعذاب دورځې دردناكې نه

د دردناكې ورځې دعذاب په وجه لويه تباهى ده |

## آسان ترجمه قرآن

او چه كله د (عيسىٰ) ابن مريم مثال وركړې شو، نو ناساپه ستا قوم شور ددې وجې نه جوړ كړو او وې وئيل چه: زمونږ معبودان بهتر دي او كه هغه؟ هغوى ستا مخكښې دا مثال صرف د ضد د وجې نه پيش كړې

دي بلکه دا خلق جګړه مار دي. هغه (يعنې عيسٰی بن مريم) خو بس زمونږ يو بنده وو، چه په هغه باندې مونږ انعام کړي وو او د بنی اسرائيلو دپاره مو يوه نمونه جوړه کړې وه. او که مونږ اوغواړو، نو ستاسو په ځائې به فرشتې پيدا کړو، چه په زمکه کښې به د يو بل خليفه ګان اوسيږي او يقين اوساته چه هغه (يعنې عيسٰی عليه السلام) د قيامت يوه نښه ده ددې وجې نه ته په دې کښې شک مه کوه. او زما خبره اومنئ، هم دا نيغه لار ده. اوداسې دې چرې هم اونه شي، چه شيطان تاسو لره ددې لارې نه بند کړي. يقين اوکړئ چه هغه ستاسو دپاره ښکاره دشمن دې او هرکله چه عيسٰی عليه السلام په ښکاره نښو سره راغلو، نو هغه (خلقو ته) اووئيل چه: زه تاسو ته د حکمت خبرې سره راغلې يم او دې دپاره راغلې يم، چه ستاسو مخکښې هغه څيزونه واضحه کړم، په کومو کښې چه تاسو اختلاف کوئ، لهٰذا تاسو د الله تعالٰی نه اويريږئ، او زما خبره اومنئ. يقيناً صرف الله تعالٰی زما رب دې، او ستاسو هم رب دې، ددې وجې نه دهغه عبادت کوئ، هم دا نيغه لاره ده. بيا هم په هغوی کښې بعضو ډلو اختلاف پيدا کړو، پس دغې ظالمانو دپاره تباهي ده د عذاب د ورځې دردناکې نه.

## خلاصہ تفسیر

يو ځل نبی کريم ارشاد فرمائيلې وو چه دالله تعالٰی نه سوا د څومره خلقو وغيره چه ناحق عبادت کولې شي په هغوکښې په هيچا کښې هم خير نشته په دې قريشو خنو خلقو اعتراض وکړو چه نصرانيان خو دحضرت عيسٰیؑ عبادت کوی مګر د هغوی په باره کښې خوته هم منې چه په هغوی کښې خو سراسر خير وو د هغوی په جواب کښې الله تعالٰی ارشادفرمائی ﴿وَلَمَّا ضُرِبَ ابْنُ مَرْيَمَ مَثَلًا﴾ [او هرکله چه د] عيسٰیؑ [ابن مريم] [متعلق] د يو معترض د طرف نه [يوعجيبه مضمون بيان کړې شو] عجيبه ځکه چه په سراسری نظر سره د هغې بطلان دوئ ته په خپله معلوميدې شو پس سره د عقله داسې اعتراض کول ډير عجيبه ووغرض هرکله چه دا اعتراض وشو ﴿إِذَا قَوْمُكَ مِنْهُ يَصِدُّونَ﴾ [نويکدم ستاسو دقوم خلق په هغې] اعتراض اوريدو [سره] د خوشحالئ نه [په چغوسروشو او] د هغه معترض سره متفق شو ﴿وَقَالُوا﴾ [وې ونيل چه] ووايئ ستاسوپه نزد ﴿ءَأَلِهَتُنَا خَيْرٌ أَمْ هُوَ﴾ [زمونږ معبودان زيات غوره دې يا عيسٰیؑ] غوره دې مقصد دادې چه ته عيسٰیؑ لره خو يقيناً غوره ګڼړې حال دادې تا چه کوم داوئيل وو چه دالله تعالٰی نه سوا د څومره چه ناحق عبادت کولې شي په هغې کښې هيڅ خير نشته ددې تقاضا خو داده چه په حضرت عيسٰیؑ کښې د بالکل خيرنه وی په دې سره يو خو ستا داقول معاذالله درست پاتې نه شو دويمه معلومه شوه چه کومو ته ته خير وايئ په خپله د هغوی هم عبادت شوې دې نو په دې وجه په دې سره د شرک صحت ثابت شو وړاندې ددې اعتراض جواب دې اول اجمالا بيا تفصيلا اجمالا خو داچه ﴿مَا ضَرَبُوهُ لَكَ إِلَّا جَدَلًا﴾ [دې خلقو چه کوم دا] عجيبه اعتراض [تاته بيان کړې دې نو محض دجګړې په غرض سره] نه چه دحق دطلب دپاره ورنه په خپله په دوی ددې اعتراض لغو کيدل څه پټ ندی او ددې خلقو جګړه کول څه ددې اعتراض سره مخصوصه نه ده ﴿بَلْ هُمْ قَوْمٌ خَصِمُونَ﴾ [بلکه داخلق] عادتا [جګړه مار دی] چه اکثريه حقوخبرو کښې جګړې راوباسی وړاند تفصيلی جواب دې يعنی ﴿إِنْ هُوَ إِلَّا عَبْدٌ أَنْعَمْنَا عَلَيْهِ﴾ [عيسٰیؑ] [خومحض يو داسې بنده دې په کوم چه مونږه] مقبوليت اوکمالاتو دنبوت ورکولو سره [خپل فضل اوکړو] ﴿وَجَعَلْنَاهُ مَثَلًا لِبَنِي إِسْرَائِيلَ﴾ او هغه مود بنی اسرائيلو دپاره] اولا

او دنورو دپاره هم ثانيا دخپل قدرت [يوه نمونه جوړه كړي وه] چه خلق په دې پوه شي چه الله تعالى ته دغه شان بغير پلار نه پيداكول هم څه مشكل نه دى په دې سره د هغو دوارو اعتراضاتو جواب راووتلو د كومو تشريح چه به په معلوماتو اومسئلو كښې راشي [او] مونږ خو ددې نه په زياتو عجيبه اوناآشنا كارونو باند قادر يو چنانچه ﴿وَلَوْنَشَآءُلَجَعَلْنَامِنْكُمْ مَّلٰٓئِكَةً فِي الْاَرْضِ يَخْلُفُوْنَ۝﴾ [كه مونږ غوښتلي نو مونږ به تاسو نه فرښتو لره پيداكړې وې] لكه څنگه چه تاسو نه ستاسو بچې پيداكيږي] چه هغه په مزكه [دانسان په شان [په يو بل پسې اوسيږي] يعني پيدائش به ئې هم دبنيادمو په شان وو اومرګ هم پس بغير د پلار نه په پيداكيدو سره دانه لازميږي چه حضرت عيسى ﷺ د الله تعالى بنده او دهغه په قدرت كښې نه دې پاتې په دې وجه دآكار د حضرت عيسى ﷺ دمعبود كيدو دليل نه شي جوړيدې بلكه په دغسې پيداكولو كښې څنې حكمتونه وو دكومو نه چه يو څوېره بيان شو چه دوى لره دخپل قدرت نمونه جوړول وو [او] دويم حكمت دا وو چه ﴿وَاِنَّهٗ﴾ [هغه] يعني د حضرت عيسى ﷺ په داسې پيداكيدو كښې ﴿لَعِلْمٌ لِّلسَّاعَةِ﴾ [دقيامت] دامكان [يقيني ذريعه ده] داسې چه په قيامت كښې په دوباره ژوندى كيدو كښې ددې نه زيات نور څه بعد دې چه دوباره ژوندى كيدل خلاف عادت دى او دحضرت عيسى ﷺ بغير دپلار نه په كيدو سره ثابته شوه چه الله تعالى د خلاف عادت كارونو په صادرولو قادر دې پس په دې سره د اخرت او قيامت د عقيدې صحيح والې ثابت شو او هركله چه تاسو د اخرت د عقيدې دا دليل واوريدو ﴿فَلَا تَمْتَرُنَّ بِهَا وَاتَّبِعُوْنِ ۭ﴾ [نو تاسو خلق په] صحت د [هغې كښې شك مه كوئ او] د توحيد او اخرت وغيره په عقيدو كښې [تاسو خلق زما تابعداري كوئ ﴿هٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيْمٌ۝﴾ دا] مجموعه دكومو طرف ته چه زه تاسو رابلم [نيغه لار ده ﴿وَلَا يَصُدَّنَّكُمُ الشَّيْطٰنُ ۚ﴾ او تاسو لره دې شيطان] په دې لاره د راتلو] منع نه كړي ﴿اِنَّهٗ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ۝﴾ هغه بيشكه ستاسو ښكاره دښمن دې او] تردې پورې خو دكفارو د ذكرشوى اعتراض جواب وو او وړاندې په خپله د حضرت عيسى ﷺ د دعوت په مضمون سره دتوحيد داثبات او دشرك د ابطال تائيد دې يعني ﴿وَلَمَّا جَآءَ عِيْسٰى بِالْبَيِّنٰتِ﴾ [كله چه عيسى ﷺ ښكاره ښكاره [معجزې راوړې ﴿قَالَ﴾ نو هغوى] خلقو ته [ووئيل ﴿قَدْ جِئْتُكُمْ بِالْحِكْمَةِ﴾ چه ماتاسو ته دپوهيدو خبرې راوړې دى] چه ستاسو د عقيدو اصلاح وكړم ﴿وَلِاُبَيِّنَ لَكُمْ بَعْضَ الَّذِيْ تَخْتَلِفُوْنَ فِيْهِ ۚ﴾ [او چه څنې خبرې] لكه حلال او حرام [په كومو كښې چه تاسو اختلاف كوئ تاسو ته بيان كړم] چه اختلاف او اشتباه پرې رفع شي هركله چه زه داسې راغلې يم ﴿فَاتَّقُوا اللّٰهَ﴾ [نو تاسو خلق دالله تعالى نه ووېريږئ] او زما دنبوت نه انكارمه كوئ څكه چه دا دالله تعالى نه مخالفت دې ﴿وَاَطِيْعُوْنِ۝﴾ [او زما خبره ومنئ] څكه چه دنبوت د تصديق دپاره داضرورى ده او حضرت عيسى ﷺ داهم ووئيل [﴿اِنَّ اللّٰهَ هُوَ رَبِّيْ وَرَبُّكُمْ﴾ بيشكه الله تعالى زما هم رب دې او ستاسو هم رب دې ﴿فَاعْبُدُوْهُ ۭ﴾ پس] صرف [د هغه عبادت كوئ] او ﴿هٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيْمٌ۝﴾ [دا] دتوحيد [نيغه لار ده پس] باوجود د حضرت عيسى ﷺ ددې واضحه بيان دتوحيد نه بيا هم ﴿فَاخْتَلَفَ الْاَحْزَابُ مِنْۢ بَيْنِهِمْ ۚ﴾ [مختلفو ډلو] په دې باره كښې [په خپل مينځ كښې اختلاف جوړكړو] يعني دتوحيد خلاف ئې قسم قسم مذهبونه ايجاد كړل چنانچه په توحيد كښې دنصاراؤ او غير نصاراو اختلاف هم معلوم دې ﴿فَوَيْلٌ لِّلَّذِيْنَ ظَلَمُوْا مِنْ عَذَابِ يَوْمٍ

أَلِيمٍ﴾ [پس د هغو ظالمانو] يعنى مشركينو اهل كتابو او غير اهل كتابو [دپاره د يوې دردناكې ورځې د عذاب لويه خرابى] كيدونكې [ده] پس دحضرت عيسى ؑ په دې دعوت سره په خپله دتوحيدتائيدوشو لهذا د حضرت عيسى ؑ په ناحقه عبادت سره دشرك په صحت استدلال دمدعى سست گواه چست مثال دې

## معارف او مسائل

﴿وَلَمَّا ضُرِبَ ابْنُ مَرْيَمَ مَثَلًا إِذَا قَوْمُكَ مِنْهُ يَصِدُّونَ﴾ ددې آيتونو په شان نزول كښې مفسرينو درې روايتونه بيان فرمائيلى دى.

① يو دا چې يو ځل نبى كريم ﷺ د قريشو قبيلې ته خطاب كولو او وې فرمائيل چې: ﴿يامعشرقريش لاخيرفى احديعبدمن دون الله﴾ [ائې د قريشو خلقو! دالله تعالى نه سوا چې د چا عبادت كيږى هغې كښې خير نشته] په دې مشركانو اووئيل چې نصارى د عيسى ؑ عبادت كوى او تاسو پخپله هم منئې چې هغه د الله تعالى نيك بنده او د الله ؑ نبى وو. نو دهغوئ د اعتراض په جواب كښې دا آيت مبارك نازل شو. [قرطبى] ([1]).

② دويم روايت دادې چې كله د قرآن عظيم الشان آيت ﴿إِنَّكُمْ وَمَا تَعْبُدُونَ مِنْ دُونِ اللَّهِ حَصَبُ جَهَنَّمَ﴾ [بيشكه ائې مشركانو! تاسو او تاسو چې دچا عبادت كوئى د جهنم خشاك به جوريږئې] نازل شو نو په دې باندې عبدالله بن الزبعرى چې په هغه وخت كښې كافر وو اووئيل چې ماسره ددې آيت مبارك بهترين جواب شته دې ، او هغه دا چې نصارى د عيسى ؑ عبادت كوى او يهوديان د عزيز ؑ عبادت كوى ، نو آيا دا دواړه به د جهنم خشاك وى څه ؟ ددې خبرې آوريدو سره د قريشو مشركان ډير خوشحاله شو. نو په دې الله ﷻ دا آيت مبارك نازل كړو چې: ﴿إِنَّ الَّذِينَ سَبَقَتْ لَهُمْ مِنَّا الْحُسْنَىٰ أُولَٰئِكَ عَنْهَا مُبْعَدُونَ﴾ ([2]) او بل د سورة زخرف مذكوره آيتونه مبارك [ابن كثير وغيره] ([3]).

③ دريم روايت دادې چې يو ځل د مكې مشركانو دا بيهوده سوال اوكړو چې محمد ﷺ د خدائې دعوى كول غواړى ، د نبى كريم ﷺ دا خوښه ده چې څنگه نصارى د عيسى ؑ عبادت كوى نو داشان مونږ دې هم ددوئ ﷺ عبادت اوكړو. نو په دې باندې مذكور آيت مبارك نازل شو. او په حقيقت كښې په دريو واړو روايتونو كښې څه تعارض نشته دې. كيديشى چې كفارو درې واړه خبرې كړې وى چې ددې په جواب كښې الله تعالى داسې يو جامع آيت مبارك نازل كړو چې په هغې سره دهغوئ د دريو واړو اعتراضونو جواب اوشو. د آخرى اعتراض جواب چې په مذكوره آيتونو مباركو كښې بالكل واضح دې چې كومو خلقو د عيسى ؑ عبادت شروع كړې دې ، هغوئ دا نه د الله ﷻ په حكم سره كړې دى ، نه پخپله د عيسى ؑ دا خواهش وو ، او نه قرآن عظيم الشان ددې تائيد كوى. دوئ ته خو د عيسى ؑ د پلار نه بغير په پيدا كيدو كښې مغالطه شوې وه ، او قرآن عظيم الشان ددې مغالطې ترديد

---

[1] ) تفسير القرطبي: ج ١٦، ص ١٠٣، والمعجم الكبير للطبراني، رقم الحديث: ١٢٥٧٢ (بالاختصار)

[2] ) ترجمه: هغه خلق د كومو دپاره چه مونږ د طرف نه دوړاندے د نيكى فيصله شوے ده هغوئ به ددے عذاب نه بالكل لرے ساتلے شى۔

[3] ) تفسير ابن كثير: ج ٧، ص ٢٣٣، والمعجم الكبير للطبراني (بالاختصار) رقم الحديث: ١٢٥٧١

کوي بيا دا څنګه ممکن دي چې معاذ الله نبي کريم ﷺ د عيسايانو په کتلو سره د خپلې خدائي دعوی اوکړي.

او په رومبی او دويم روايت کښې د کافرانو د اعتراض حاصل تقريبا يو شان دې. د هغوئ جواب ددې مذکوره آيتونو مبارکو نه داسې راؤزي چې الله ﷻ چې دا فرمائيلي وو چې کومو خلقو د الله ﷻ نه سوا معبودان جوړ کړي دي هغوئ د جهنم خشاك دي. يا نبي کريم ﷺ فرمائيلي وو چې په دې کښې خير نشته دې، ددې نه مراد به هغه معبودان وي چې يا خو بې ساه دي لکه د کاڼي بتان يا د ساه والا وي. خو پخپله به ئې د خپل عبادت حکم کولو. يا به ئې هغه خوښولو. لکه شيطانان، فرعون او نمرود وغيره. عيسی ﷺ په دوئ کښې څنګه داخليدې شي؟. حالانکه هغه ﷺ به په هيڅ حال کښې دخپل ځان عبادت نه خوښولو. نصاری د هغوئ د هيڅ هدايت په بناء دهغوئ عبادت نه کولو. بلکه هغه ﷺ لره مونږ دخپل قدرت يو نمونه جوړ کړی بغير د پلار نه پيدا کړې وو چې خلقو ته خبره واضح وي چې الله ﷻ ته په تخليق کښې د پلار نه بغير په پيدا کولو کښې هيڅ دواسطې ضرورت نشته دې، خو نصاری ددې نه غلط مطلب واخستو او هغه ئې خپل معبود جوړ کړو. حالانکه دهغه معبود جوړول عقلي لحاظ سره هم غلط وو. او پخپله د عيسی ﷺ د دعوت نه هم خلاف وو. ځکه چې هغوئ هميشه د توحيد تعليم ورکړې وو. غرض عيسی ﷺ دخپل عبادت نه بيزاره کيدل ددې خبرې نه منع کول دي چې هغوئ دې دنور باطلو معبودانو په صف کښې شامل کړې شي.

دې سره د کافرانو دا اعتراض هم ختم شو چې د کومې ذکر په خلاصه تفسير کښې راغلي دې چې هغه تاسو پخپله خير وائې يعني عيسی ﷺ دهغه هم عبادت شوې دې نو ددې نه معلومه شوه چې د غير الله عبادت څه بده خبره نه ده. دې مذکوره آيتونو مبارکو کښې ددې جواب واضح دې چې د عيسی ﷺ کوم عبادت اوشو هغه د الله ﷻ د مرضئ خلاف وو او پخپله د عيسی ﷺ د دعوت هم. نو ددې نه د شرك په صحت باندې هم استدلال نشي کولې.

﴿ وَلَوْ نَشَآءُ لَجَعَلْنَا مِنكُم مَّلَـٰٓئِكَةً فِى ٱلْأَرْضِ يَخْلُفُونَ ۝ ﴾ دا د نصارا او د دهغه مغالطې جواب دې چې د هغې په بناء هغوئ عيسی ﷺ لره ئې معبود ګرځولې وو. چونکه مسيح ﷺ بغير د پلار نه پيدا شوې وو په دې وجه نصاراؤ ددوی ﷺ په خدائی استدلال کړې وو. الله ﷻ ددې په ترديد کښې فرمائی چې دا خوصرف زمونږ د قدرت يوه ننداره وه. او مونږ ددې نه په زيات خلاف عادت کار کولو باندې قادر يو. دپلار نه بغير پيدا کيدل خو زيات خلاف عادت کار نه دې. ځکه چې آدم ﷺ بغير د مور پلار نه پيدا شوې وو. که مونږ اوغواړو نو داسې کار هم کولې شو چې دهغې تر اوسه پورې هيڅ نظير نشته دې. او هغه دا چې د انسانانو نه فرښتې پيدا کړو.

﴿وَإِنَّهُۥ لَعِلْمٌ لِّلسَّاعَةِ﴾ [او بيشکه عيسی ﷺ دقيامت ديقين کولو يوه ذريعه دې] ددې دوه تفسيرونه کړې شوی دی. يو هغه چې خلاصه تفسير کښې بيان شوې دې. يعنی د عيسی ﷺ خلاف عادت يعنی بغير د پلار نه پيدا کيدل ددې خبرې دليل دې چې الله ﷻ بغير د ظاهری اسبابو نه خلق پيدا کولې شی. ددې نه دا ثابت شو چې د مړو دوباره راژوندی کول د هغه عظيم ذات دپاره څه مشکل نه دی. خو اکثرو مفسرينو ددې آيت مبارك مطلب دا بيان کړې دې چې د عيسی ﷺ د آسمان نه د دوباره رانازليدل د قيامت علامت دې. چنانچه د عيسی ﷺ په آخری زمانه کښې تشريف راوړول او دجال قتل کول احاديث متواتره نه ثابت دی. ددې مسئلې

څه تفصیل په سورة آل عمران کښې په آیت ﴿اِنِّیْ مُتَوَفِّیْكَ وَرَافِعُكَ اِلَیَّ﴾ (۱) کښې او څه په سورة مائده کښې هم تیر شوې دې. د مزید تفصیل دپاره دې د احقر رساله [التصریح بماتواتر في نزول المسیح] او [مسیح موعود کی پہچان] وغیره کښې اوکتلې شي.

﴿وَلِاُبَیِّنَ لَكُمْ بَعْضَ الَّذِیْ تَخْتَلِفُوْنَ فِیْهِ﴾ [او چې زه بیان کړم هغه خبرې چې په هغې کښې تاسو اختلاف کوئ] بنی اسرائیلو کښې د عناد او ضد غلبه وه نو په دې وجه هغوئ ځینې شرعي احکامو کښې تحریف کړې وو. عیسی ؑ دهغې حقیقت واضح کړو. او ځینې خبرې ئې په دې وجه اوفرمائیل چې ځینې امور خالص دنیاوی وو. عیسی ؑ به هغې کښې د اختلاف ختمولو ضرورت نه ګڼړلې. [بیان القرآن](۲)

هَلْ يَنْظُرُوْنَ اِلَّا السَّاعَةَ

| آیا دا خلق انتظار کوی | بس دقیامت |

| .............دا خلق بس دقیامت د ورځې

اَنْ تَاْتِيَهُمْ بَغْتَةً وَّهُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ ﴿۶۶﴾ اَلْاَخِلَّاءُ يَوْمَئِذٍۢ بَعْضُهُمْ

چې راشي دوئ ته | ناساپه | او دوئ هیڅ خبر نه وی | دوستان به | په دغه ورځ | ځینې دهغوئ

انتظار کوی | چې ناګهانه ورته راشي | او دوئ پرې خبر هم نه وی | د پرهیزګارانو نه سوا به ټول

لِبَعْضٍ عَدُوٌّ اِلَّا الْمُتَّقِيْنَ ﴿۶۷﴾ يٰعِبَادِ لَا خَوْفٌ عَلَيْكُمُ

دپاره دځینو | دشمنان وی | بغیر دمتقیانو نه | اے بندګانو زما | نشته یره | په تاسو باندې

دوستان په دغه ورځ دیو بل دشمنان شي | .............اې زما بندګانو نن ورځ په تاسو هیڅ

الْيَوْمَ وَلَا اَنْتُمْ تَحْزَنُوْنَ ﴿۶۸﴾ اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِاٰيٰتِنَا

نن ورځ | او نه به تاسو | غمژن کیږئ | هغه کسان | چې ایمان ئې راوړو | په آیتونو زمونږه

ویره نشته | اونه به درباندې څه غم راشي | دا هغه کسان دی چې زمونږ په آیتونو ئې ایمان راوړې دې

وَكَانُوْا مُسْلِمِيْنَ ﴿۶۹﴾ اُدْخُلُوا الْجَنَّةَ اَنْتُمْ

او وو هغوئ | مسلمانان | ورته به اوونیلې شي چې ننوزئ | جنت ته | تاسو |

اوزمونږ حکم ئې منلې دې | ............. تاسو اوستاسو بیبیانې هم جنت ته په خوشحالئ

وَاَزْوَاجُكُمْ تُحْبَرُوْنَ ﴿۷۰﴾ يُطَافُ عَلَيْهِمْ بِصِحَافٍ

او بنځې ستاسو | چې خوشحاله به کړې شئ | ګرزولې کیږی به | په هغوئ باندې | تالی |

خوشحالئ داخل شئ | په هغې کښې به د سرو زرو د رکیبو او ګلاسونو دور چلیږی

(۱) ترجمه: بے شک زه تاسو لره وفات کوم او زه تاسو لره خپل خان طرف ته به اوچتوم.
(۲) بیان القرآن: ج ۱۰، ص ۹۳

مِّنْ ذَهَبٍ وَّاَكْوَابٍ ۚ وَفِيْهَا مَا تَشْتَهِيْهِ الْاَنْفُسُ

دسرو زرو | او پيالئ | اووى به په هغې كښې | هغه څه | چې غواړى هغه | نفسونه |

............ | او په هغې كښې به هغه ټول څيزونه وركولې شى چې څه ته ئې زړه كيږى

وَتَلَذُّ الْاَعْيُنُ ۚ وَاَنْتُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ۚ وَتِلْكَ الْجَنَّةُ

او خوند اخلى تر | سترګې | او تاسو به | په هغې كښې | هميشه اوسئ | او دغه جنت دې |

اوسترګې پرې خوشحاليږى | اوتاسو به په كښې هميشه اوسيږئى | ............اودا هغه جنت دې

الَّتِيْٓ اُوْرِثْتُمُوْهَا بِمَا كُنْتُمْ

هغه | چې په ميراث كښې دركړې شوې دې هغه تاسو ته | په سبب دهغې عملونو | چې وئ تاسو |

چې تاسو ئې دهغه اعمالو په وجې وارثان جوړ كړې شوئ | كوم چې تاسو كړى وو |

تَعْمَلُوْنَ ۝ لَكُمْ فِيْهَا فَاكِهَةٌ كَثِيْرَةٌ مِّنْهَا تَاْكُلُوْنَ ۝

چې كول به مو | تاسو لره دى | په دې كښې | ميوې | ډيرې | دهغې نه | خورئ تاسو |

............په دې كښې تاسو دپاره ډيرقسمه ميوې دى | چې خوراكونه به ترې كوئ

اِنَّ الْمُجْرِمِيْنَ فِيْ عَذَابِ جَهَنَّمَ خٰلِدُوْنَ ۚ لَا يُفَتَّرُ عَنْهُمْ

بيشكه مجرمان خلق | په عذاب ددوزخ كښې | به هميشه وى | كم به نه كړې شى | دهغوئ نه عذاب

نافرمانه خلق به هميشه په دوزخ كښې پراته وى | ............عذاب به ترې سپكولې نشى

وَهُمْ فِيْهِ مُبْلِسُوْنَ ۚ وَمَا ظَلَمْنٰهُمْ وَلٰكِنْ

او هغوئ به | په هغې كښې | نااميده پراته وى | اواونه كړو ظلم مونږ په هغوئ باندې | وليكن

اومايوسه به په كښې پراته وى | ............اومونږ پرې هيڅ ظلم نه ووكړې | خودوئ

كَانُوْا هُمُ الظّٰلِمِيْنَ ۝ وَنَادَوْا يٰمٰلِكُ لِيَقْضِ عَلَيْنَا

ووه | هغوئ ظالمان | اوآوازونه به كوى هغوئ | اے مالكه | حكم داوكړى | په مونږ باندې

پخپله [په خان باندې] ظالمان وو | او دوئ به آواز اوكړى | چې ائې مالكه ! ستا رب دې زمونږ

رَبُّكَ ۭ قَالَ اِنَّكُمْ مّٰكِثُوْنَ ۝

رب ستا | هغه به اووائى | بيشكه تاسو به هم دغسې پراته يئ |

د مرګ فيصله اوكړى | هغه به اووائى چې تاسو به هميشه دلته پراته يئ |

## آسان ترجمه قرآن

دا خلق بس ددې خبرې انتظار كوى، چه قيامت ددوى مخكښې ناساپه راشى، او دوى ته خبر هم نه وى. په هغه ورځ به ټول دوستان د يو بل دشمنان وى، سوا د متقيانو نه. (چه هغوى ته به اووئيلې شى) اے زما بندګانو! نن به په تاسو باندې نه څه ويره وى او نه به تاسو غمژن يئ. اے زما هغې بندګانو. چه تاسو زمونږ په آيتونو باندې ايمان راوړې وو. او فرمان بردار وئ تاسو هم او ستاسو بيبيانې هم په

خوشحالۍ سره څليدونکي مخونو سره جنت کښې داخل شئ. کرځولي به شي په دوی پاندې د سرو زرو کاسې او ګلاسونه، او په دې جنت کښې به هر هغه څيز وي، چه دهغې زړونو ته خواهش کيږي او چه هغې سره سترګو ته خوند حاصليږي، (دوی ته به اوويلې شي) چه په دې جنت کښې تاسو هميشه اوسيږئ او دا هغه جنت دې، چه ددې تاسو د خپلو عملونو په بدله کښې وارثان جوړ کړې شوي يئ. په دې کښې تاسو لره ډيرې ميوې دي، چه دهغې نه تاسو خورئ. البته چه کوم خلق مجرمان وو، هغوی به د دوزخ په عذاب کښې هميشه دپاره وي. هغه عذاب به په هغوی پاندې سپکولې نه شي، او هغوی به په هغې کښې نااُميده پراته وي او مونږ په هغوی پاندې هيڅ ظلم نه دې کړې، ليکن هغوی په خپله ظالمان خلق وو. او هغوی به (د دوزخ فرشتې ته) آواز اوکړي چه اے مالکه! ستا پروردګار دې زمونږ کار ختم کړي هغه به ورته اووائي چه: تاسو به هم په دې حال کښې اوسيږئ.

## خلاصه تفسير

﴿هَلْ يَنظُرُونَ إِلَّا السَّاعَةَ﴾ [داخلق] د حق واضح کيدو باوجود په باطل اصرارکوی نو [بس د قيامت انتظار کوی ﴿أَن تَأْتِيَهُم بَغْتَةً﴾ چه هغه په دوی ناڅاپه راشی ﴿وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ﴾ او ددوی دليلونه نه منل داسې دی لکه يوسړي چه دمشاهدې منتظروی چه هرکله په سترګو سره وويننو هله به يې منم او دقيامت ددغې ورځې واقعات دادی چه ﴿الْأَخِلَّاءُ يَوْمَئِذٍ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ﴾ [تول] ددنيا دوستان [به په دغه ورځ ديو بل دښمنان شی ﴿إِلَّا الْمُتَّقِينَ﴾ بغير د هغونه کوم چه د الله تعالى نه ويريږی] يعنې ايماندار ځکه چه په دغه ورځ به دباطل د دوستۍ نقصان ښکاره شی نو خامخا به يې بدګنړي او د دوستانو نه به يې نفرت وی چه دنقصان سبب دغه خلق شول اودحق د دوستۍ نفع او ثواب به ښکاره شي په دې وجه به دغه باقی وی او هغو مؤمنانو ته به دالله تعالى د طرف نه اواز وشي ﴿يَا عِبَادِ لَا خَوْفٌ عَلَيْكُمُ الْيَوْمَ﴾ [اے زما بندګانو په تاسو نن څه ويره] واقع کيدونکي نشته ﴿وَلَا أَنتُمْ تَحْزَنُونَ﴾ اونه به تاسو غمژن [شئ ﴿الَّذِينَ آمَنُوا بِآيَاتِنَا﴾ يعنې هغه بندګان کومو چه زمونږ په ايتونو ايمان راوړې وو ﴿وَكَانُوا مُسْلِمِينَ﴾ او] علما او عملا زمونږ [فرمانبردار وو ﴿ادْخُلُوا الْجَنَّةَ أَنتُمْ وَأَزْوَاجُكُمْ تُحْبَرُونَ﴾ تاسو او ستاسو] ايماندارې [بيبيانې په خوشحالۍ سره په جنت کښې داخل شئ] او جنت ته دتلو نه پس به ددوی دپاره د اوی چه ﴿يُطَافُ عَلَيْهِم بِصِحَافٍ مِّن ذَهَبٍ وَأَكْوَابٍ﴾ [هغوی ته به د سروزرو پليټونه] دخوراك د څيزونو نه ډك شوی [اوګلاسونه] دشربتونونه ډك دسرو زرو يا دبل شی [راوړې شی] يعنې غلمان خادمان به يې راوړی ﴿وَفِيهَا مَا تَشْتَهِيهِ الْأَنفُسُ﴾ [او هلته به هغه څيزونه ملاويږی کوم چه زړهٔ] غواړی ﴿وَتَلَذُّ الْأَعْيُنُ﴾ او په کومو سره چه سترګوته مزه حاصليږی [او] دوی ته به ووئيلې شي چه ﴿وَأَنتُمْ فِيهَا خَالِدُونَ﴾ [تاسودلته هميشه وسيږئ او] دابه ورته هم ووئيلې شی چه ﴿وَتِلْكَ الْجَنَّةُ الَّتِي أُورِثْتُمُوهَا﴾ [دا هغه جنت دې دکوم چه تاسو مالکان کړې شوئ] تاسو نه به چرې نه شی اخستې ﴿بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ﴾ [دخپلو] نيکو [عملونو په بدله کښې] او ﴿لَكُمْ فِيهَا فَاكِهَةٌ كَثِيرَةٌ﴾ [تاسو دپاره په دې کښې ډيرې ميوې دی ﴿مِّنْهَا تَأْكُلُونَ﴾ دکومو نه چه خورئ] داخودايماندارو حال شو وراند دکفارو ذکر دې چه ﴿إِنَّ الْمُجْرِمِينَ فِي عَذَابِ جَهَنَّمَ خَالِدُونَ﴾ [بيشکه نافرمان] يعنې کافران [خلق به د دوزخ په عذاب کښې هميشه وی ﴿لَا يُفَتَّرُ عَنْهُمْ وَهُمْ فِيهِ مُبْلِسُونَ﴾ او هغه]

عذاب به ددوئ نه سپك نه كړې شي او هغوئ به په هغه عذاب [كښې مايوسه وسيږي او] وړاند د الله تعالى ارشاد دې چه ﴿وَمَا ظَلَمْنٰهُمْ﴾ [مونږ په هغوى] ذره [ظلم نه دې كړې] چه ناحق عذاب وركوو ﴿وَلٰكِنْ كَانُوْا هُمُ الظّٰلِمِيْنَ﴾ [ليكن هغوى په خپله ظالمان وو] چه كفر اوشرك ئې وكړو خپل نقصان ئې وكړو [او] وړاند د هغوى دباقي حال ذكر دې چه هركله د نجات نه بالكل مايوسه شي نو دغه وخت به دمرګ ارزو كاني كوى او د دوزخ داروغه مالك نوم فرښتې ته [به ﴿وَنَادَوْا يٰمٰلِكُ﴾ اواز وكړى چه اے مالكه] ته دعا وكړه ﴿لِيَقْضِ عَلَيْنَا رَبُّكَ﴾ چه ستا [پروردګار] مونږ لره مرګ راولى او [زمونږ كار تمام كړى ﴿قَالَ اِنَّكُمْ مّٰكِثُوْنَ﴾ هغه [فرښته] به جواب وركړى چه تاسو به هميشه په دې حال كښې وسيږئ [نه به تړې نه وتې شى نه به مرئ].

## معارف او مسائل

**حقيقت كښې دوستي هغه ده چې دالله تعالى دپاره وي:** ﴿اَلْاَخِلَّاءُ يَوْمَئِذٍ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ اِلَّا الْمُتَّقِيْنَ﴾ [تول دوستان به په هغه ورځ د يو بل دښمنان شي صرف د الله تعالى نه ويريدونكي] دې آيت مبارك دا خبره ښه واضحه كړه چې دا دوستانه تعلقات چې انسان پرې په دنيا كښې فخر كوى، اوددې په خاطر حلال او حرام يو كوى، د قيامت په ورځ به دا هيڅ په كار نه راځي بلكه په دښمنۍ كښې به بدل شي. ابن كثير رحمه الله ددې آيت مبارك لاندې د علي رضي الله عنه دا ارشاد د مصنف عبد الرزاق او ابن ابى حاتم رحمه الله په روايت سره نقل كړې دې چې دوه دوستان مؤمنان وو او دوه كافران. كوم چې مؤمنان وو هغوئ كښې يو وفات شو. اوهغه ته د جنت زيرې وركړې شو نو هغه ته خپل دوست راپه ياد شو. هغه دعا اوغوښتله چې يا الله ﷻ! څما فلانى دوست به ما ته ستا او ستا درسول ﷺ د اطاعت تاكيد كولو. دنيكۍ حكم به ئې راكولو او د بدئى نه به ئې منع كولم. او دا به ئې راته رايادول چې څه به يوه ورځ ستا په وړاندې پيش كيږم. نو يا الله ﷻ! څما نه پس هغه ګمراه مه كړې چې هغه هم د جنت ننداره اوكړى چې كومې تا ماته اوخودلې. او ته چې څنګه څما نه راضى شوې دغه شان هغه نه هم راضى شې. ددې دعا په جواب كښې به ورته اووئيلې شي چې څه لاړه شه، كه تاته معلوم شي چې ما ستا هغه دوست دپاره څه اجرو ثواب ساتلې دې نو ته به ژاړې كم او خاندې به زيات. دې نه پس كله چې هغه بل دوست وفات شي نو د دواړو ارواح به راجمع كړې شي او الله ﷻ به اوفرمائى چې تاسو د يو بل تعريف بيان كړئى. نو هغوئ كښې به هر يو د بل باره كښې اووائى چې هغه يو بهترين رور، بهترين ملګرې او بهترين دوست دې.

ددې پخلاف كله چې دې كافرانو كښې د يو انتقال اوشى نو هغه به جهنم كښې داخل كړې شي. او هغه ته به هم خپل دوست رایاد شي. هغه وخت كښې به دعا كوى چې يا الله ﷻ! څما فلانى دوست ماته ستا او ستا د رسول ﷺ دنافرمانئى حكم راكولو، د نيكئ نه به ئې منع كولم او د بدى حكم به راته راكولو، او ماته به ئې وئيل چې څه به هيڅكله ستا په مخكښې نه پيش كيږم. نو يا الله ﷻ! هغه ته څما نه پس هدايت اونه كړې چې هغه هم د دوزخ ننداره اوكړى چې كوم تا ماته خودلې دى. او ته چې څنګه څما نه خفا يې دغه شان هغه نه هم خفه شې. دې نه پس به ددې بل دوست هم انتقال اوشى نو د دواړو روحونه به جمع كړې شي او هغوئ ته به اووئيلې شى چې تاسو د يو بل تعريف بيان كړئى. نو هغوئ به هر يو دبل باره كښې وائى چې دا يو

بدترین رور ، بدترین ملګري او بدترین دوست دي. [ابن کثیر ص: ۱۳۴ ج: ۴] (۱).

په دې وجه په دنیا کښې بهترینه دوستي هغه ده چې د الله ﷻ دپاره وي. د کومو دوؤ مسلمانانو چې خپلو کښې د الله ﷻ د رضا دپاره دوستي وي نو احادیث کښې ددې ډیر زیات فضائل راغلي دي. په هغې کښې یو داده چې میدان حشر کښې به دا خلق د الله ﷻ د عرش د سیورې لاندې وي (۲). او د الله ﷻ دپاره د محبت مطلب دادې چې بل سره صرف په دې وجه تعلق وي چې هغه د الله ﷻ د دین ریښتوني انسان دې. همدا شان استاذ، شیخ و مرشد ، علماء او اهل الله او داشان د عالم اسلام ټولو مسلمانانو سره بر غرضه محبت ساتل هم په دې کښې داخل دي.

لَقَدْ جِئْنٰكُمْ بِالْحَقِّ

یقینا راوړې وؤ مونږ تاسو ته | حق

مونږ تاسو ته ریښتیني دین درلیږلي وو

وَلٰكِنَّ أَكْثَرَكُمْ لِلْحَقِّ كٰرِهُوْنَ ۝ أَمْ أَبْرَمُوْا أَمْرًا

ولیکن | زیات خلق ستاسو | حق لره | نه خوښونکي دي | آیا فیصله کړې ده دې خلقو | دیو کار

خو په تاسو کښې زیات خلق د حق دین نه بیزاره شول | آیا دوئ د خپلو خانونو په باره کښې څه فیصله کړې ده

فَإِنَّا مُبْرِمُوْنَ ۝ أَمْ يَحْسَبُوْنَ أَنَّا لَا نَسْمَعُ

پس بیشکه مونږه هم | فیصله کونکي یو | آیا ګمان کوي دوئ | چې بیشکه مونږه | نه اورو |

خو مونږ هم د دوی په باره کښې فیصله کونکي یو | آیا د دوئ دا خیال دې چې مونږ

سِرَّهُمْ وَنَجْوٰىهُمْ ۚ بَلٰى وَرُسُلُنَا لَدَيْهِمْ

پټې خبرې د دوئ | او پټې مشورې د دوی | مونږ هر څه اورو | او فرښتې زمونږه | د دوئ سره خواته |

د دوئ پټې او د راز خبرې نه اروؤ؟ | ولې نه ؛ حالانکه زمونږ لیږلي [فرښتې] دوئ سره دی | لیکل

يَكْتُبُوْنَ ۝ قُلْ إِنْ كَانَ لِلرَّحْمٰنِ وَلَدٌ ۖ فَأَنَا أَوَّلُ الْعٰبِدِيْنَ ۝

لیکل کوي | ورته اووایه | که چرې وي | رحمن لره | اولاد | پس زۀ به وې | اول د عبادت کونکونه

کوی | [اې نبي] او وایه که چرې د رحمان [الله] اولاد وي | نو د ټولو نه وړاندې به ما د هغه عبادت کولو

سُبْحٰنَ رَبِّ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ رَبِّ الْعَرْشِ عَمَّا

پاکي ده | د رب د اسمانونو | او د زمکې لره | مالك د عرش لره | د هغه خبرونه |

پاک دې د اسمانونو او د زمکې رب چې د عرش مالک دې | د هغه ټولو خبرونه چې دوئ ئې

يَصِفُوْنَ ۝ فَذَرْهُمْ يَخُوْضُوْا وَيَلْعَبُوْا

چې جوړوي ئې دا خلق | پس پرېږده دوئ | چې مشغوله وي به بحث کښې | او لوبې کوي |

بیانوي | ...........نو دوئ په خپلو شغلونو او لوبو کښې پراته پرېږده

(۱) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية: ج ۷، ص ۲۳۷، ۲۳۸، وشعب الإيمان للبيهقي، رقم الحديث: ۹۱۲٤

(۲) صحيح البخاري، كتاب المحاربين من اهل الكفر والردة، باب فضل من ترك الفواحش: ج ۲، ص ۱۰۰۵، وجامع الترمذي، أبواب الزهد، باب ما جاء في الحب في الله: ج ۲، ص ٦٤

حَتّٰى يُلٰقُوْا يَوْمَهُمُ الَّذِيْ يُوْعَدُوْنَ ﴿۸۳﴾

تر دې پورې | چې ملاقات اوکړي | دورځې خپلې سره | هغه ورځ | چې دکومې نه يرولې کيږي دوئ

تردې چې هغه ورځ راشي | دکومې چې دوئ سره وعده کولې شي

وَهُوَ الَّذِيْ فِي السَّمَآءِ اِلٰهٌ وَّفِي الْاَرْضِ اِلٰهٌ

او هغه | هغه ذات دې | چې په آسمان کښې | معبود دې | او په زمکه کښې | هم معبود دې |

او الله ﷻ هغه ذات دې چې په آسمانونو کښې هم معبود دې | او په زمکه کښې هم معبود دې

وَهُوَ الْحَكِيْمُ الْعَلِيْمُ ﴿۸۴﴾ وَتَبٰرَكَ الَّذِيْ لَهٗ

او هغه دحکمت خاوند دې | او عالم دې | او برکتناك دې | هغه ذات | چې هغه لره ده |

اوهغه د حکمت خاوند او پوهه ذات دې | ..........او الله ﷻ ډير مبارک ذات دې

مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا وَعِنْدَهٗ

بادشاهي دآسمانونو | او دزمکې | او دهغې چې په منځ ددې دواړو کښې دی | او دهغه سره دې

چې دآسمانونو اود زمکې اود دواړو په مينځ کښې چې څه دی د ټولو بادشاه دې

عِلْمُ السَّاعَةِ وَاِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ﴿۸۵﴾ وَلَا يَمْلِكُ الَّذِيْنَ

علم دقيامت | او خاص هغه ته به | تاسو واپس بوتلې کيږئ | اونه لري اختيار | هغه خدايان

اوهغه ته دقيامت [وخت] معلوم دې | اوتاسوټول به ورته واپس کيږئ | اودوئ چې دالله ﷻ نه سوا

يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهِ الشَّفَاعَةَ اِلَّا مَنْ شَهِدَ بِالْحَقِّ

چې رابلې ئې دوئ | بې دهغه نه | دشفاعت | مگر | هغه څوك | چې گواهي اوکړي | په حقه سره

دکومو معبودانو عبادت کوي | هغوئ ته دسفارش کولو هيڅ اختيار نشته | خوچا چې دحقې خبرې اقرار اوکړو

وَهُمْ يَعْلَمُوْنَ ﴿۸۶﴾ وَلَئِنْ سَاَلْتَهُمْ مَّنْ خَلَقَهُمْ

او هغوئ | پوهه لري | او كه چرې | تپوس اوکړې ته ددوئ نه | چې چاپيدا کړی دی دوئ

او په هغې پوهه لري | [نوهغوئ به سفارش کولې شي] اوکه ته ددوئ نه تپوس اوکړې چې تاسو چاپيدا اکړی يئ

لَيَقُوْلُنَّ اللّٰهُ فَاَنّٰى يُؤْفَكُوْنَ ﴿۸۷﴾ وَقِيْلِهٖ

نو اوبه وائي خامخا | چې الله | پس کوم طرفته | گرځولې کيږي دوئ | اوقسم دې په دې وينا درسول

نو خامخا به وائي | چې الله ﷻ [پيدا اکړي يو] | نوبيا دوئ کوم ارخ ته اړولې شي | او الله ﷻ ته د[رسول]

يٰرَبِّ اِنَّ هٰٓؤُلَآءِ قَوْمٌ لَّا يُؤْمِنُوْنَ ﴿۸۸﴾ فَاصْفَحْ عَنْهُمْ

چې اے ربه | بيشکه دا خلق | داسې قوم دې | چې ايمان نه راوړي | پس مخ واړوه | ددوئ نه

داوينا هم معلومه ده | چې اې ربه ادا داسې خلق دی چې په هيڅ وجه ايمان نه راوړي | [نوائې نبی] ته ددوئ

وَقُلْ سَلٰمٌ فَسَوْفَ يَعْلَمُوْنَ ﴿۸۹﴾

اواووايه | سلام دې تاسو ته | پس ډير زر به | پوهه شي دوئ |

نه مخ واړوه | اوو رته اووايه چې زۀ درته سلام کوم | نوزر ده چې حقيقت به ورته معلوم شي

## آسان ترجمه قرآن

او حقیقت دادې، چه مونږ تاسو ته حقه خبره راوړې وه، لیکن په تاسو کښې اکثر خلقو حقه خبره نه خوښوله آیا دې خلقو د څه کولو فیصله کړې ده؟ ښه ده، نو مونږ هم د څه کولو فیصله کونکې یُو آیا دوی دا ګنړلې ده، چه مونږ ددوی پټې خبرې او ښکاره خبرې نه اورو؟ ولې نه اورو؟ او زمونږ فرشتې دوی سره دی، هغوی هر څه لیکی (اے پیغمبره) اووایه چه: که د رحمٰن خدائې څه اولاد وې، نو د ټولو نه مخکښې عبادت کونکې به هم زه وومر هغه چه د آسمانونو او زمکې هم مالک دې، د عرش هم مالک دې، هغه ددې ټولو خبرو نه پاک دې، کومې چه دوی جوړوی لهٰذا (اے پیغمبره علیه السلام) دوی لره په خپل حال باندې پریږده، چه په دې خبرو کښې ډوب پراته وی، او لوبې کوی ترڅو پورې چه دوی یوځائې شی، دهغې ورځې سره، د کومې چه دوی سره وعده کولې شی. هم هغه (الله) دې، چه په آسمانونو کښې هم معبود دې، اوپه زمکه کښې هم معبود دې، او هم هغه دې، چه د حکمت مالک هم دې، او د علم مالک هم دې. او لوئې شان دې د هغه، چه دهغه په قبضه کښې د آسمانونو او زمکې او ددې په مینځ کښې د ټولو څیزونو سلطنت دې، او هم هغه سره د قیامت علم دې، او هم هغه ته به تاسو ټول راګرځولې شئ او دا خلق د هغه نه سوا چه کومو معبودانو لره رابلی، هغوی ته به د هیڅ سفارش کولو اختیار نه وی، هاؤ، البته چه کومو خلقو د حقې خبرې ګواهی ورکړې وی، او هغوی ته دهغې علم هم وی او که ته ددې خلقو نه تپوس اوکړې چه دوی لره چا پیدا کړې دی، نو دوی به ضرور اووائی چه الله تعالیٰ. نو څرنګه اړولې شی دوی (د توحید نه) او الله تعالیٰ ته د پیغمبر ددې خبرې هم علم دې چه: یا ربه! دا داسې خلق دی، چه ایمان نه راوړی لهٰذا (اے پیغمبره علیه السلام) ته ددوی پروا مه کوه. او اووایه: سلام، پس زرده چه دوی به پوهه شی.

## خلاصه تفسیر

او بره چه دکوم سزاګانو بیان وشو د هغې وجه داده چه ﴿لَقَدْ جِئْنٰكُمْ بِالْحَقِّ﴾[مونږه ربښتونې دین] چه رکن اعظم ئې په توحید او رسالت عقیده ده [تاسو ته ورسولو ﴿وَلٰكِنَّ اَكْثَرَكُمْ لِلْحَقِّ كٰرِهُوْنَ۝﴾ لیکن په تاسوکښې اکثر خلق د ربښتونی دین نه نفرت کوی] اکثر خلق خوئې په دې وجه ووئیل چه څنې خلق ائنده ایمان راوړونکی وو او یا څکه چه نفرت خو په صحیح معنی سره څنو ته وو نورو څنو محض په تقلید سره حقه لار پریښودې وه او دانفرت شامل دې مخالفت درسول او مخالفت د توحید دواړوته وړاند د دواړو تفصیل دې چه ﴿اَمْ اَبْرَمُوْٓا اَمْرًا﴾[البته ایادوی] رسول ته دنقصان رسولو په باره کښې [څه انتظام برابرکړې دې ﴿فَاِنَّا مُبْرِمُوْنَ۝﴾ پس مونږ هم یو انتظام برابرکړې دې] او ظاهره ده چه د خدائی انتظام په وړاند د دوی انتظام نه شی چلیدې چنانچه ته محفوظ شوې او هغه خلق ناکامه شول او اخر په بدر کښې هلاك شول ددې په تفصیل سره ذکر د سورت انفال په څلورمه رکوع ایت [واذیمکروبك الذین کفروالخ][1] کښې تیر شوې دې [البته] داخلق کوم چه تاته د نقصان رسولو دپاره پټ تدبیرونه کوی ﴿اَمْ يَحْسَبُوْنَ اَنَّا لَا نَسْمَعُ سِرَّهُمْ وَنَجْوٰىهُمْ﴾[ایا ددې خلقو داخیال دې چه مونږ دهغوی

[1] ترجمه: او دهغه واقعه هم ذکر کړه چې کافرانو ستا دپاره تدبیرونه (منصوبې) جوړولې.

پټوپټو] کړې شوو [خبرو لره او د هغوی] پټو [مشورولره نه اورو] ورنه که مونږ لره ئ اوریدونکی ګنړلې نو بیا به ئ داسې جرءت ولې کولې؟ وړاند د دوی ددې خیال تردید فرمائی چه ﴿بَلٰى﴾[مونږ خامخا اورو او] ددې نه علاوه ﴿وَرُسُلُنَا لَدَيْهِمْ يَكْتُبُونَ۝﴾[زمونږ فرښتې] کومې چه عملونه لیکی [د هغوی سره دی هغوی هم لیکی] اګر چه ددې ضرورت نشته لیکن عام عادت دادې چه د مجرم دپاره د پولیس لیکلې شوې رپورټ د حاکم دمعاننې نه زیات قابل الزام وی داخو ددوی د رسول دمخالفت بیان شو وړاند د توحید دمخالفت په باره کښې فرمائی چه اے پیغمبر ﷺ ﴿قُلْ﴾[ته] دې مشرکانو ته [ووایه چه] تاسوکوم په خپلوخنو مشرکانه خبروکښې د الله تعالی طرف ته د اولاد نسبت کوئ نو ﴿إِنْ كَانَ لِلرَّحْمٰنِ وَلَدٌ﴾[که چرې] به فرض محال داسې وی یعنی [دالله تعالی اولاد وی ﴿فَأَنَا أَوَّلُ الْعٰبِدِينَ۝﴾ نو دټولو نه اول د هغه عبادت کوونکې زهٔ یم] څنګه چه تاسو فرښتو لره دالله تعالی لونړه ګنړئ او عبادت ئ کوئ دغه شان به ماهم په دغه صورت کښې دالله تعالی د اولاد عبادت کولو مطلب دا چه زهٔ ستاسو په شان دحقې خبرې نه انکار نه کووم که تاسوئ ثابته کړئ نو دټولو نه اول به ئ زهٔ ومنم او هرکله چه ورلره دخدائ اولاد ومنم نو چونکه دخدائ اولاد هم خدائ پکار دې او خدائ مستحق د عبادت دې په دې وجه به د هغه عبادت هم کوم مګر چونکه دا کار محض باطل دې په دې وجه ئ زهٔ نه منم اونه ئ عبادت کوم وړاندې دشرك نه دالله تعالی دپاکوالی بیان دې یعنی ﴿سُبْحٰنَ رَبِّ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ﴾ [دآسمانونو او دمزکې مالك ﴿رَبِّ الْعَرْشِ عَمَّا يَصِفُونَ۝﴾ کوم چه د عرش هم مالك دې د هغو خبرونه منزه دې کومې چه دا] مشرکان [خلق] د هغه په جناب کښې [بیانوی] هرکله چه دا خلق د حق واضح کیدو باوجود دخپلې نارامئ نه نه راګرځی ﴿فَذَرْهُمْ يَخُوضُوا وَيَلْعَبُوا﴾ [نو ته دوی لره په دې شغل اولویو کښې پریږده ﴿حَتّٰى يُلٰقُوا يَوْمَهُمُ الَّذِي يُوعَدُونَ۝﴾ تردې چه دوی دخپلې هغې ورځې سره مخامخ شی دکومې چه ددوی سره وعده کیږی] دغه وخت به ټول حقیقت معلوم شی او دپریښودو مطلب دانه دې چه تبلیغ مه کوه بلکه مطلب دادې چه د دوی مخالفت ته مه ګوره او د دوی په ایمان نه راوړو غمژن کیږه مه ﴿وَهُوَ الَّذِي فِي السَّمَاءِ إِلٰهٌ وَفِي الْأَرْضِ إِلٰهٌ﴾[او هغه ذات کوم چه په اسمانونو کښې هم د عبادت قابل دې اوپه مزکه کښې هم د عبادت قابل دې ﴿وَهُوَ الْحَكِيمُ الْعَلِيمُ۝﴾ او هغه لوئ حکمت والا او لوئ علم والا دې] بل هیڅوك په علم او حکمت کښې د هغه سره شریك نشته پس خدائی هم د هغه سره خاصه ده ﴿وَتَبٰرَكَ الَّذِي لَهُ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا﴾[او هغه ذات لوئ عالی شان دې دکوم دپاره چه داسمانونو اودمزکې او کوم چه د دې مینځ کښې] مخلوقات [دی د هغه حکومت ثابت دې او] علم ئ داسې کامل دې چه ﴿وَعِنْدَهُ عِلْمُ السَّاعَةِ﴾[هغه ته د قیامت خبر] هم [دې] دکوم چه هیڅ مخلوق ته پته نشته [او] د جزا او سزا مالك هم هغه دې چنانچه ﴿وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ۝﴾[تاسو ټول به هغه ته واپس کیږئ] او هغه لره به حساب ورکوئ [او] دغه وخت به دالله تعالی بغیر دشرکت دغیر نه دجزا او سزا مالکوالې داسې ظاهر او ښکاره شی چه ﴿وَلَا

يَمْلِكُ الَّذِينَ يَدْعُونَ مِنْ دُونِهِ الشَّفَاعَةَ﴾ [دالله تعالى نه سوا كومو معبودانو لره داخلق بلي هغه هغوئ د سفارش] قدرې [اختيار نه لرى ﴿إِلَّا مَنْ شَهِدَ بِالْحَقِّ﴾ البته كومو خلقو چه دحقې خبرې] يعنى د ايمان دكلمې [اقرار كړې وو ﴿وَهُمْ يَعْلَمُونَ﴾ اود هغه ئې] په زړه سره تصديق هم كولو] هغوى به البته د الله تعالى په اذن دايماندارو سفارش كوى مګر د دوى نه كفارو ته څه فائده ده؟ [او] مونږ چه كوم بره د توحيد مضمون بيان كړې دې په كوم كښې چه داخلق اختلاف كوى پس د دغې مقدماتو لره خو دوى هم تسليموى چنانچه ﴿وَلَئِنْ سَأَلْتَهُمْ مَنْ خَلَقَهُمْ﴾ [كه ته د دوى نه تپوس وكړې چه دوى لره] يعنى تاسولره [چاپيداكړى دى ﴿لَيَقُولُنَّ اللَّهُ﴾ نو دا به ووائى چه الله تعالى] پيداكړى دى [پس ظاهره ده چه مستحق د عبادت هغه كيدې شى كوم چه په پيداكولو قادر وى پس ﴿فَأَنَّىٰ يُؤْفَكُونَ﴾ [داخلق] مقدماتو لره خومنى مګر بيا د مطلوب دمنلو په وخت كښې خدائې خبر چه [كوم طرف ته الټه چليږى] ددې ټولو خبرو نه واضحه ده چه ددې كافرانو جرمونه څومره سخت دى په دې وجه سزاء به ئې هم يقينا چه سخته وى او وړاندې د سزا سختى زياته دموَكد كولو دپاره يوه بله خبره بيان فرمائى چه لكه څنګه چه الله تعالى دقيامت نه خبر دې دغه شان ﴿وَقِيلِهِ﴾ [هغه ته درسول الله] ﷺ [ددې خبرې هم خبر دې ﴿يَا رَبِّ إِنَّ هَٰؤُلَاءِ قَوْمٌ لَا يُؤْمِنُونَ﴾ چه اے زما ربه دا داسې خلق دى چه] سره زما د دومره پوهولو نه [ايمان نه راوړى] په دې سره د سزا سختى نوره زياته شوه چه جرمونه خوئې سخت وو د دې سره درسول پريشان كيدل هم موجود دې پس پوهيدل پكاردى چه څومره سخت عذاب به وى او هركله چه تاته معلومه شوه چه د دوى انجام داسې كيدونكې دې ﴿فَاصْفَحْ عَنْهُمْ﴾ [نو ته ددوى نه مخ واړوه] يعنى د دوى دايمان داسې اميد مه ساته كوم چه وروستو موجب د غم وى [او] كه هغوى تاسره دمخالفت او جهالت خبرې كوى نو ته د شر رفع كولو دپاره ﴿وَقُلْ سَلَامٌ﴾ [داسې ووايه چه تاسو ته سلام كوم] اونورهيڅ نه وايم اونه درسره څه واسطه ساتم وړاندې الله تعالى دتسلئ دپاره فرمائى چه ته لږ صبر وكړه ﴿فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ﴾ [پس دوى ته به اوس] دمرګ سره [معلومه شى]

## معارف او مسائل

﴿قُلْ إِنْ كَانَ لِلرَّحْمَٰنِ وَلَدٌ فَأَنَا أَوَّلُ الْعَابِدِينَ﴾ ددې مطلب دا نه دې چې معاذالله په څه موقع باندې د الله ﷻ د اولاد امكان شته دې. بلكه ددې مطلب دادې چې څه ستاسو د عقائدو څخه انكار د څه عناد په وجه نه كوم بلكه د دلائلو په وجه ئې كوم. كه په صحيح دلائلو سره دالله تعالى اولاد ثابت كيدل شوې وې نو ما به منلې وې. ليكن د عقل او نقل هر دليل ددې ترديد كوى. په دې وجه ددې د منلو هيڅ سوال نه پيدا كيږى. ددې څخه معلوم شو چې اهل باطل سره د مباحثې په وخت كښې دخپلې حق پسندئې منلو دپاره دا وئيل جائز دى او مناسب دى چې كه ستاسو دعوى په صحيح دلائلو سره ثابته شى نو څه به دا منم. ځكه داسې انداز كلام سره كله كله د مخالف په زړه كښې نرمى پيدا كيږى او هغه حق لار قبلوى.

﴿وَقِيْلِهٖ يٰرَبِّ اِنَّ هٰٓؤُلَآءِ قَوْمٌ لَّا يُؤْمِنُوْنَ﴾ دا جمله ددې خبرې د وضاحت دپاره راوړلې شوې ده چې په دې کافرانو باندې د الله ﷻ د غضب نازليدو ډيرې وجې موجود دی. يو طرفته پخپله ددوئ جرمونه ډير سخت دی. بل طرفته رحمة للعالمين او شفيع المذنبين راليږلې شوې دې هغه چې هر کله پخپله ددې خلقو شکايت کوی چې د نبی کريم ﷺ دبار بار تبليغ کولو باوجود بيا هم دوئ ايمان نه راوړی. نو ددې څخه اندازه کيږی چې دې خلقو به رسول اکرم ﷺ ته څومره تکاليف رسولی وی. ګنی رسول اکرم ﷺ په معمولی تکليف باندې د الله ﷻ څخه داسې دردناك شکايت نه کوی. ددې تفسير مطابق وقيله يو آيت مبارك وړاندې لفظ الساعة باندې معطوف دې. ددې آيت مبارك نور تفسيرونه هم شوی دی. لکه دا چې دلته واؤ د عطف دپاره نه دې بلکه د قسم دې. مثلا يارب دقيل مقوله ده. او ﴿اِنَّ هٰٓؤُلَآءِ﴾ دقسم جواب دې. ددې تفسرينو تفصيل اهل علم په روح المعانی وغيره کښې کتلې شی.

﴿وَقُلْ سَلٰمٌ﴾ آخر کښې هم هغه تلقين کړې شوې دې کوم چې دحق هر يو داعی ته کړې شوې دې چې د مخالفينو د دلائلو او شبهاتو جواب ورکړه. خو کوم کس چې د جهالت او حماقت خبره کوی، نو دهغوئ جواب دهغوئ په ژبه ورکولو په ځائې سکوت اختيار کړه. او دا ئې اوفرمائيل چې تاسو اووائې چې زه تاسو ته سلام کوؤم. ددې مقصد دا نه دې چې هغه ته دې السلام عليکم اووائی، ځکه چې يو غير مسلم ته په دې الفاظو سره سلام کول جائز نه دی. بلکه دا يو محاوره ده چې کله يو سړی سره تعلق ختمول وی نو داسې وائی چې زما د طرفه سلام، يا تاته مې سلام دې. دې څخه حقيقی سلام مقصد نه دې. بلکه ددې مطلب دا وی چې زه ډير په ښې طريقې سره ستاسره تعلق ختموم. کومو خلقو چې ددې آيت مبارك نه دا استدلال کړې دې چې کافرانو ته سلام کول جائز دی نو دهغوئ دا قول مرجوح دې. [روح المعانی] (۱)

الحمد لله نن په ۳ تاريخ د رجب د دوشنبې په ورځ ماسختن
په وخت د سورۀ زخرف تفسير اووۀ ورځو کښې ختم شو.

والحمد لله اولا واخرا وصلى الله على خير خلقه محمد وعلى اله واصحابه اجمعين

.........

(۱) روح المعانی: ج ۱۸، ص ۴۲۱

| ایاتونه | سورة الدخان مكية وهي تسع وخمسون اياة وثلاث ركوعات | ركوع گاني |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ۵۹ | شروع كوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم كونكې دې | ۳ |

حٰمٓ ۝ وَالْكِتٰبِ الْمُبِيْنِ ۝ اِنَّآ اَنْزَلْنٰهُ

ح م | قسم دې په كتاب بيانونكى باندې | بيشكه نازل كړې دې مونږه دا كتاب |

حم | په دې واضحه كتاب باندې قسم دې | مونږ داكتاب په يوه بركتى شپه كښې

فِيْ لَيْلَةٍ مُّبٰرَكَةٍ اِنَّا كُنَّا مُنْذِرِيْنَ ۝ فِيْهَا يُفْرَقُ

په شپه بركتناكه كښى | بيشكه مونږه يو | خبردارونكى | په دې شپه كښى | فيصله كولې شى |

نازل كړې دې | بيشكه مونږ [د عذاب] نه ويرونكې يو | ......................... په دې شپه كښې هره

كُلُّ اَمْرٍ حَكِيْمٍ ۝ اَمْرًا مِّنْ عِنْدِنَا ؕ اِنَّا كُنَّا مُرْسِلِيْنَ ۝

دهر كار | حكمتناك | په حكم سره | دطرفه زمونږ نه | بيشكه مونږه يو | ليږونكى ديو رسول |

دحكمت معامله زمونږ په حكم سره فيصله كيږي | اومونږ د دې حكمونو ليږونكى يو |

رَحْمَةً مِّنْ رَّبِّكَ ؕ اِنَّهٗ هُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ۝

دپاره درحمت | دطرفه درب ستا نه | بيشكه هغه | هم هغه اوريدونكې | دهر څه نه خبر دې |

دا ستا د رب مهربانى ده | ........... بيشكه هغه هر څه آورى | او په هر څه پوهه دې

رَبِّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا ۘ اِنْ كُنْتُمْ

چى رب دآسمانونو او دزمكې دې | او دهغې چى په منځ ددې دواړو كښى دى | كه يئ تاسو |

د آسمانونو او د زمكې اوددې په مينځ كښې چې څه دى د ټولو رب دې | كه تاسو پرې

مُّوْقِنِيْنَ ۝ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ يُحْيٖ وَيُمِيْتُ ؕ

يقين كونكى | نشته لائق دعبادت | مگر هم هغه دې | چى ژوندى كول كوى | او مړه كول كوى |

يقين كوئ | د هغه نه سوا بل هيڅوک دعبادت لائق نشته | هم هغه ژوندې كول كوى او مړه كول كوى

رَبُّكُمْ وَرَبُّ اٰبَآئِكُمُ الْاَوَّلِيْنَ ۝ بَلْ هُمْ فِيْ شَكٍّ

رب ستاسو دې | او رب دپلارانو ستاسو | رومبنو دې | بلكه دا خلق | په شك كښى دى |

ستاسو او ستاسود پلار نيكه ټولو رب دې | ......................... خو دا خلق په شك كښې پراته دى

يَّلْعَبُوْنَ ۝

لوبې كوى |

په لوبو كښې اخته دى |

## آسان ترجمه قرآن

حٰمٓ. قسم دې په دې کتاب باندې، چه حق لره واضحه کوونکې دی. چه مونږ دې کتاب لره په یوه مبارکه شپه کښې نازل کړې دې (ځکه چه) مونږ خلقو لره خبرداروونکې وو. په دغه شپه کښې هر حکمت والا معامله زمونږ په حکم سره فیصله کولې شي (او) مونږ یو پیغمبر رالیږوونکې وو. دې دپاره چه ستا د رب د طرف نه د رحمت معامله اوشي، یقیناً هم هغه دې، چه هر ه خبره اوریدونکې او هر څیز باندې پوهیدونکې دې. چه د ټولو آسمانونو او زمکې او ددې په مینځ کښې د هر څیز رب دې، که تاسو واقعي یقین کوونکې یئ. دهغه نه سوا هیڅوک معبود نشته، هغه ژوند هم ورکوی، او مرګ هم، هغه ستاسو هم رب دې، او ستاسو نه مخکښې ستاسو د پلارنیکه هم رب دې (بیا هم کافران ایمان نه راوړی) بلکه هغوی په شک کښې پراته دی لوبې کوی.

## خلاصه تفسیر

﴿حٰمٓ﴾ ددې معنی الله تعالی ته معلومه ده ﴿وَالْكِتٰبِ الْمُبِيْنِ﴾[قسم دې په دې واضح کتاب] چه معنې ئې واضحه دی ﴿اِنَّآ اَنْزَلْنٰهُ فِيْ لَيْلَةٍ مُّبٰرَكَةٍ﴾[چه مونږ ده لره] د لوح محفوظ نه اسمان ددنیا ته [په یوه برکت والا شپه] شب قدر [کښې نازل کړې] ځکه چه ﴿اِنَّا كُنَّا مُنْذِرِيْنَ﴾[مونږه] په وجه د شفقت په خپله اراده کښې خپلو بندګانو لره [خبردارکوونکی وو] یعنی مونږ ته دا منظوره شوه چه دوی لره مضرتونونه دبچ کولو دپاره په خیر او شرباند خبرداکړو دا دقرآن دنازلولو مقصد وو وراند ددغې شپې دبرکتونو او دنفعو بیان دې چه ﴿فِيْهَا يُفْرَقُ كُلُّ اَمْرٍ حَكِيْمٍ﴾[په دې شپه کښې هره یوه حکمت والا معامله زمونږ په وراند حکم] صادر [کولوسره طې کولې شی] یعنی دټول کار معاملې کومې چه سراسر ټولې په حکمت مبنی وی څنګه انجام ته رسول ئې چه الله تعالی ته منظور وی په هغه طریقه سره متعین کولې او اطلاع ئې متعلقه فرښتو ته ورکولې شی هغوی ته سپارلې شی چونکه هغه شپه داسې ده او دقرآن نازلول د ټولو نه زیات حکمت والا کار وو په دې وجه ددې دپاره هم داشپه منتخب شوه او داقرآن ځکه نازل کړې شو چه ﴿اَمْرًا مِّنْ عِنْدِنَا اِنَّا كُنَّا مُرْسِلِيْنَ رَحْمَةً مِّنْ رَّبِّكَ﴾[مونږ په وجه درحمت کوم چه ستا د رب دطرف نه وی تالره پیغمبر جوړونکی یو] چه ستاپه معرفت سره خپلو بندګانو لره خبردار کړو ﴿اِنَّهٗ هُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ﴾[بیشکه هغه لوئ اوریدونکې لوئ پوهیدونکې دې] په دې وجه د بندګانو رعایت کوی او هغه داسې دې ﴿رَبِّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا﴾[کوم چه مالك دې داسمانونو اودمزکې اوکوم] مخلوق [چه ددې دواړو په مینځ کښې دی د هغې هم ﴿اِنْ كُنْتُمْ مُّوْقِنِيْنَ﴾ که تاسو یقین کوئ] نو دادتوحید دلیلونه د یقین کولو دپاره کافی موجود دی وړاند دتوحید وضاحت دې چه ﴿لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ يُحْيٖ وَيُمِيْتُ﴾ [د هغه نه سوا بل څوك لایق د عبادت نشته هغه دې روح ورکوونکې او هغه دې روح ویستونکې ﴿رَبُّكُمْ وَرَبُّ اٰبَآئِكُمُ الْاَوَّلِيْنَ﴾ هغه ستاسو هم پروردګار دې او ستاسو د تیرو پلارانو نیکونو هم پروردګار دې] او ددې تصریح او وضاحت تقاضا خو داوه چه دغو خلقو منلې وې مګر دغه خلق بیا هم نه منی ﴿بَلْ هُمْ فِيْ شَكٍّ يَّلْعَبُوْنَ﴾[بلکه هغوی] دتوحید په شان د حقیقتونو نه [په شك کښې] پریوتی [دی] او په دنیوی [مشغلو کښې مصروف دی] داخرت فکر ورسره نشته کوم چه د حق طلب وکړی او په دې کښې دغور کولو نه کار واخلی.

## معارف او مسائل

**دسورت فضيلت:** ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي چې نبي كريم ﷺ اوفرمائيل چې څوك د جمعې په شپه سورت دخان اووائي نو تر سبا پورې به ددهٔ ګناهونه معاف شوي وي([1]). او امامه رضي الله عنه نه روايت دي چې نبي كريم ﷺ اوفرمائيل چې كوم كس د جمعې په شپه يا په ورځ كښې سورهٔ دخان اوو‌ئيلو نو الله ﷻ به هغه دپاره په جنت كښې يو كور جوړ كړي. [قرطبي بروايت ثعلبي]([2]).

دې مذكوره آيتونو مباركو كښې د قرآن پاك د عظمت او خاص صفاتو بيان دې. ﴿وَالْكِتٰبِ الْمُبِيْنِ﴾ يعنې واضح كتاب نه مراد قرآن عظيم الشان دې. دې آيت مبارك كښې الله ﷻ د قرآن عظيم الشان قسم خوړلې دې او فرمائيلي ئي دي چې دا مونږ په يوه مباركه شپه كښې نازل كړې دې. او ددې مقصد غافل انسانانو لره رابيدارول دي. داشان قسم هم په دې الفاظوسره د سورهٔ زخرف په شروع كښې تير شوې دې. هغه ځائې كښې ددې بيان راغلې دې.

﴿لَيْلَةٍ مُّبٰرَكَةٍ﴾: ددې نه مراد د مفسرينو په نزد د شب قدر شپه ده چې د رمضان المبارك په آخرى عشره كښې وي. دې شپې ته ئې مباركه په دې وجه اوو‌ئيل چې په دې شپه كښې د الله ﷻ د طرفنه په خپلو بندګانو باندې بې شميره خيرات و بركات نازليږي. او د قرآن عظيم الشان د شب قدر په شپه نازليدل د قرآن عظيم الشان په سورهٔ قدر كښې بيان شوي دي. ﴿اِنَّآ اَنْزَلْنٰهُ فِيْ لَيْلَةِ الْقَدْرِ﴾ ددې نه معلومه شوه چې دې ځائې كښې هم د ليلهٔ مبارك نه مراد شب قدر ده. او په يو روايت كښې د نبي كريم ﷺ نه دا هم منقول دي چې الله ﷻ ددنيا د شروع نه تر آخره پورې ټول آسماني كتابونه په خپلو نبيانو ﷺ باندې نازل كړي دي هغه د رمضان په مختلفو تاريخونو باندې نازل شوي دي. قتاده رحمه الله د واثله رضي الله عنه نه نقل كړې دي چې نبي كريم ﷺ اوفرمائيل چې د ابراهيم عليه السلام صحيفې د رمضان په رومبي تاريخ باندې اوتورات د رمضان په شپږم تاريخ او زبور په دولسم تاريخ او انجيل په اتلسم تاريخ او قرآن عظيم الشان د څلريشتم تاريخ په تيريدو يعنې په پنځويشتمه شپه باندې نازل كړو. [قرطبي]([3]).

د قرآن عظيم الشان په شب قدر كښې د نازليدو مطلب دا دې چې ټول قرآن پاك د لوح محفوظ نه آسماني دنيا ته هم په دې شپه نازل شوې وو. بيا د درويشتو كالو په موده كښې لږ لږ په نبي كريم ﷺ باندې نازليدو. او ځينې حضراتو فرمائيلي دي چې څومره قرآن عظيم الشان به په يو كال كښې نازليدل وو هغه هومره به په شب قدر كښې د لوح محفوظ نه آسماني دنيا ته نازلولې شو. [قرطبي]([4]).

او ځينې مفسرينو عكرمه وغيره نه نقل دي چې دې آيت مبارك كښې د ليلهٔ مباركه نه مراد شب براءت يعنې د شعبان په نيمې كښې ددې نازليدل صحيح ګرځولې دي. مګر په دې شپه د

---

[1] ) تفسير القرطبي: ج ١٦، ص ١٢٥، وشعب الإيمان للبيهقي، رقم الحديث: ٢٢٤٧

[2] ) تفسير القرطبي: ج ١٦، ص ١١٥، والمعجم الكبير للطبراني، رقم الحديث: ٧٩٥٢

[3] ) تفسير القرطبي: ج ١٦، ص ١٢٦، ومسند أحمد، حديث واثلة بن الأسقع، رقم الحديث: ١٦٩٨٤ (بألفاظ مختلفة) والمعجم الكبير للطبراني، رقم الحديث: ١٧٦٤٦

[4] ) تفسير القرطبي: ج ١٦، ص ١٢٦

قرآن عظیم الشان نازلیدل د نورو ټولو نصوص قرآن او د حدیثو د روایتونو نه خلاف دي.
﴿شَهْرُ رَمَضَانَ الَّذِىٓ أُنزِلَ فِيهِ الْقُرْآنُ﴾[1] او ﴿إِنَّآ أَنزَلْنَٰهُ فِى لَيْلَةِ الْقَدْرِ﴾[2]، پشان د ښکاره نصوصو په موجودګۍ کښې بغیر د څه قوي دلیل نشي وئیلي کیدي چې دا قرآن عظیم الشان په شب براءت کښې نازل شوي دي. البته د شعبان پنځلسمي شپې ته داحادیثو په ځینې روایتونو کښې د شب براءت یا د لیلة الصك نوم ورکړې شوي دي او ددې شپې مبارك كيدل او په دې د الله ﷻ د رحمتونو د نازلیدو ذکر دي. دې سره سره ځینې روایتونو کښې دا مضمون هم راغلي دې چې په دې کښې ځانې د لیلة مبارکه په صفت کښې چې بیان شوې دي چې: ﴿فِيهَا يُفْرَقُ كُلُّ أَمْرٍ حَكِيمٍ أَمْرًا مِّنْ عِندِنَآ﴾ یعني په دې شپه د هر حکمت زمونږ د طرفنه کیږي. ددې معنی ابن عباس رضي الله عنهما دا بیان فرمائیلي ده چې دا شپه چې په دې کښې قرآن عظیم الشان نازل شو یعني شب قدر، هم په دې کښې د مخلوق د ټولو اهمو امورو فیصلې کیږي، هغه امور کوم چې دې کال کښې د آئنده شب قدر پورې کیدونکي وي هغه طې کیږي مثلا دې کال کښې څوك پیدا کیږي، دې کال کښې به کوم کوم سړې مړ کیږي، دې کال کښې به یو کس ته څومره رزق ورکولي کیږي. هم دا تفسیر دنورو امامانو قتاده رحمه الله، مجاهد رحمه الله، حسن رحمه الله وغیره نه هم منقول دې. او مهدوي فرمائیلي دي چې ددې معنی داده چې دا ټولې فیصلې چې په تقدیر الهی کښې د مخکښې نه شوې وې په دې کال کښې فرښتو ته حواله کیږي. ځکه چې د قرآن عظیم الشان نور نصوص په دې باندې ګواه دي چې الله ﷻ دا فیصلې د انسان د پیدائش نه وړاندې په ازل لیکلې وې. نو په دې شپه کښې دا خبره غوټه کیږي چې د قضاء و قدر تنفیذ چې د فرښتو په ذریعه کیږي، په دې شپه کښې دا د ټول کال حساب کتاب دوئ ته حواله کیږي. [قرطبي][3].
چونکه ځینې روایتونو دحدیث کښې د شعبان د پنځلسمې شپې متعلق هم راغلي دي چې پدې کښې د اجلونو او رزق فیصلې لیکلې کیږي. په دې وجه ځینې حضراتو په مذکوره آیت مبارك کښې د ﴿لَيْلَةٍ مُّبَٰرَكَةٍ﴾ تفسیر په لیلة البراءت سره کړې دې. مګر دا صحیح نه دی، ځکه چې دلته د نزول قرآن ذکر تولونه مخکښې دې. او ددې په رمضان کښې کیدل د قرآن عظیم الشان د نصوص نه متعین دي او ځینې روایاتو کښې د شب براءت متعلق داکوم مضمون چې راغلي دي چې په دې کښې د رزق وغیره فیصلې کیږي، اول خو ابن کثیر رحمه الله ددې متعلق فرمائیلي دي چې دا روایت مرسل دې. او داسې روایتونه دښکاره نصوص په مقابله کښې قابل اعتماد نشي کیدي[4]. داشان قاضي ابوبکر بن عربي رحمه الله فرمائیلي دي چې دنیم شعبان متعلق څه داسې قابل اعتماد روایت نشته دې چې دهغې نه دا ثابت شي چې د رزق، مرګ او ژوند فیصلې په دې شپه کښې کیږي.[5] خو په روح المعاني کښې یو بلاسند روایت کښې د ابن عباس رضي الله عنهما نه دا

[1] ترجمه: میاشت د رمضان ده، چې په هغې کښې قرآن مجید نازل کړې شوې دی.
[2] ترجمه: بې شک مونږ قرآن مجید په شب قدر کښې نازل کړې دی.
[3] تفسير القرطبي: ج ١٦، ص ١٢٦
[4] تفسير ابن كثير: ج ٧، ص ٢٤٦
[5] أحكام القرآن لابن العربي، سورة الدخان: ج ٧، ص ١٢٠

مضمون نقل کړې شوې دې چې د رزق او مرګ او ژوند وغیره فیصلې د نیم شعبان په شپه کښې کیږی . او په شب قدر کښې فرښتو ته حواله کیږی[1] . که دا روایت ثابت وی نو دا شان په دواړو اقوالو کښې تطبیق کیدې شی . ګنی اصلی خبره چې د قرآن عظیم الشان نه ظاهره ده او صحیح احادیثو نه ثابته ده هغه داده چې د سورة دخان آیت مبارك ﴿لَيْلَةٍ مُّبٰرَكَةٍ﴾ او ﴿فِيْهَا يُفْرَقُ﴾ وغیره د ټولو الفاظ هم د شب قدر باره کښې دی . پاتې شو د شب براءت فضیلت نو هغه یوه مستقله معامله ده چې د حدیثو په څینې روایتونو کښې منقول ده . خو هغه اکثر ضعیف دی . په دې وجه قاضی ابوبکر رحمه الله ددې شپې د فضیلت نه انکار کړې دې . خود شب براءت د فضیلت روایتونه اګرچې د سند لحاظ سره ضعیف دی خو د تعدد طرق او تعدد روایات نه دوئ ته یو رنګ قوت حاصلیږی[2] . په دې وجه ډیرو مشائخ ودا قبول کړی دی . ځکه فضائل اعمال کښې په ضعیف روایتونو باندې د عمل کولو هم ګنجائش شته دې . والله اعلم

فَارْتَقِبْ　يَوْمَ　تَأْتِي السَّمَآءُ　بِدُخَانٍ مُّبِيْنٍ ۝

| پس انتظار کوه | دهغه ورځ | چی راشی آسمان | دلوګی ښکاره سره |

| نود هغې ورځې انتظار کوه | چې آسمان به په ښکاره لوګی سره راشی.

يَّغْشَى　النَّاسَ ؕ　هٰذَا عَذَابٌ اَلِيْمٌ ۝　رَبَّنَا　اكْشِفْ

چی ورخوریږی به | په خلقو | دا عذاب دې دردناك | اے ربه زمونږه | لرې کړه زمونږ نه |

خلق به ټول پټ کړی |..........دغه به ډیر دردناک عذاب وی | [دوی به وائی] ائې زمونږ ربه ؛ داعذاب

عَنَّا الْعَذَابَ　اِنَّا　مُؤْمِنُوْنَ ۝　اَنّٰى　لَهُمُ الذِّكْرٰى

عذاب | بیشکه مونږ | ایمان راوړنکی یو | څرنګ به فائده مندشی | دپاره ددوئ نصیحت |

لرې کړه | مونږ یقین کونکی یو | ..................دوئ به کله نصیحت قبول کړی

وَقَدْ جَآءَهُمْ　رَسُوْلٌ مُّبِيْنٌ ۝　ثُمَّ تَوَلَّوْا　عَنْهُ　وَقَالُوْا

او حال دا چی راغې دوئ ته | رسول ښکاره کونکې | بیا اوګرزیدل دوئ | دهغه نه | اووې وئیل |

حال دادې چې واضحه بیان کونکې پیغمبر ورته راغلې دې | نود دوئ نه یې مخ اوګرځولو

مُعَلَّمٌ　مَّجْنُوْنٌ ۝　اِنَّا　كَاشِفُوا　الْعَذَابِ　قَلِيْلًا

ښودنه شوی ده دهٔ ته | لیونې دې | بیشکه مونږه | لرې کونکی یو | دعذاب | لږه موده |

اودائې اووئیل | چې دهٔ ته زده کړه شوې ده | لیونې دې | مونږ به داعذاب د لږې مودې دپاره لرې کړو

---

[1] ) روح المعانی: ج ۱۸، ص ٤۲۷

[2] ) دی روایات دپاره اوګورئ: جامع الترمذی، أبواب الصوم، باب ما جاء فی لیلة النصف من شعبان: ج ۱۰، ص ۱۵۶، وسنن ابن ماجة، أبواب ما جاء فی قیام شهر رمضان، باب ما جاء فی لیلة النصف من شعبان: ج ۱،ص ۹۹، المعجم الکبیر للطبرانی، رقم الحدیث: ۱۶٦۳۹

| إِنَّكُمْ | عَآئِدُوْنَ ﴿۱۵﴾ | يَوْمَ | نَبْطِشُ |
|---|---|---|---|
| بیشکه تاسو | دوباره کونکی یئ دکارونو خپلو | په کومه ورځ | چې مونږ نیول کوؤ |
| خو تاسو خپل زوړ حالت ته ګرځېدونکې یئ | ............ په کومه ورځ چې به مونږ | | |
| الْبَطْشَةَ الْكُبْرٰى | | إِنَّا | مُنْتَقِمُوْنَ ﴿۱۶﴾ |
| نیول | لوئ | بیشکه مونږه | بدل اغستونکی یو |
| سخت نیول اوکړو | مونږ خامخا بدله اخستونکې یو | | |

## آسان ترجمه قرآن

لهٰذا هغې ورځې انتظار اوکړه، چه کله آسمان یو ښکاره لوګې سره راښکاره شي. چه په خلقو باندې به خور شي دا یو دردناکه سزا ده. (هغه وخت کښې به خلق دا وائي چه) اے زمونږ پروردګاره، زمونږ نه دا عذاب لرې کړه، مونږ ضرور ایمان راؤړونکې یو څرنګه به وي دوی لره نصیحت؟ حالانکه دوی ته داسې پیغمبر راغلې دې، چه هغه حقیقت لره ښکاره کړې دې بیا هم دا خلق دهغه نه مخ اړونکې دي. او وائي چه: دا ته زده کړه شوې دې، لیونې دې. (صحیح ده) مونږ عذاب لره څه وخت پورې لرې کوؤ. یقیناً تاسو واپس راګرځئ هغه زوړ حالت ته. په هغه ورځ چه زمونږ د طرف نه به لوئې نیول وي یقیناً په هغه ورځ مونږ پوره انتقام اخستونکې یو.

## خلاصه تفسیر

او هر کله چه دا خلق د حق واضح کیدو باوجود نه مني [پس ته] د دوی دپاره ﴿فَارْتَقِبْ يَوْمَ تَأْتِي السَّمَآءُ بِدُخَانٍ مُّبِيْنٍ﴾ [د هغې ورځې انتظار کوه چه داسمان د طرف نه په نظر راتلونکې لوګې پیدا شي ﴿يَّغْشَى النَّاسَ﴾ کوم چه په دې ټولو خلقو باند به عام شي ﴿هٰذَا عَذَابٌ أَلِيْمٌ﴾ دا] هم [یوه دردناکه سزاده] کومه چه به دوی لره وی ددې نه مراد د غلې قحط دې په کومه کښې چه دمکې خلق دنبی کریم ﷺ په ښیرو سره اخته شوی وو او داخیرې یو ځل په مکه کښې شوې وې او یو ځل په مدینه منوره کښې او قاعده ده چه سخته لوږه او سوکړه دآسمان او مزکې په مینځ کښې دسترګویه وړاند لوګې شان په نظر راولی غرض دمکې خلق په خپلو خانونو پورې تنګ شول او عاجزی ئې شروع کړه چنانچه دپیشینګویئ په طور فرمائي چه دغه وخت به دالله تعالی په دربار کښې عرض کوی چه ﴿رَبَّنَا اكْشِفْ عَنَّا الْعَذَابَ إِنَّا مُؤْمِنُوْنَ﴾ [اے زمونږ ربه زمونږ نه دامصیبت لرې کړې مونږ ضرور ایمان راوړو] چنانچه پیشینګوئي داسې پوره شوه چه ابوسفیان اونورو قریشو دوی ته اولیکل هم او راغلل هم چه ته دعا وکړه او ثمامه رئیس دیمامه لره کوم چه غله بنده کړې وه پوهه کړی او صاحب دروح المعاني دابوسفیان دایمان وعده هم نقل کړې ده وړاند ددوی ددې وعدې په زړه سره نه کول ارشاد فرمائي ﴿أَنّٰى لَهُمُ الذِّكْرٰى﴾ [دوی ته به] په دې سره [کله نصیحت حاصل شي] په کوم سره چه د دوی دایمان توقع وکړې شي ﴿وَقَدْ جَآءَهُمْ رَسُوْلٌ مُّبِيْنٌ﴾ [حال دادې چه] ددې نه وړاند [دوی ته په ظاهر شان سره پیغمبر راغې] چه دنبوت شان ئې ظاهر وو ﴿ثُمَّ تَوَلَّوْا عَنْهُ﴾ [بیا هم دې خلقو د هغه نه مخ واړولو ﴿وَقَالُوْا مُعَلَّمٌ مَّجْنُوْنٌ﴾ او دائې وئیل چه] بل بشر [ده لره پوه کړې دې] او [دیوانه یعنی لیونې دې] پس

هر کله چه د دومره لوئ رسول په راتلو چه د رسالت په دليلونو کښې ئ هيڅ تاويل نه شي کيدي دي خلقو ايمان رانه وړو نو په قحط باند چه په دې کښې يو بې انصافه سړي داهم احتمال راويستې شي چه دايو معمولي واقعه ده چه دطبعي اسبابو لاندشوې ده او دکفر سزانه ده کله ترې نه دايمان راوړو اميد دي؟ د دوي دا وينا محض دفع الوقتي ده مګر خير ﴿إِنَّا﴾[مونږ] د حجت تمامولو دپاره ﴿كَاشِفُوا الْعَذَابِ قَلِيلًا﴾[لږ نور داعذاب لرې کوو] مګر ﴿إِنَّكُمْ عَائِدُونَ﴾[تاسو به بيا خپل هغه حالت باند شئ] چنانچه داپيشينګوئی داسې پوره شوه چه دوی ﷺ دعا وکړه باران وشو او ثمامه ته ئ هم خطوليکلو چه غله د راپريږدی او دمکې خلقو ته تسلی نصيب شوه مګر ايمان ئ څه راوړو چه د وړاندې نه هم زيات سر تيز او زور شور کوونکی شول او ترلږ وخت پورې ئ څکه وفرمائيل چه ددې عذاب د واپس کيدو موده صرف ترد نيوی ژوند پورې ده بيا دمرګ نه پس چه کوم مصيبت راشی د هغې خاتمه چرې نشته چنانچه ارشاد دي چه ﴿يَوْمَ نَبْطِشُ الْبَطْشَةَ الْكُبْرَىٰ﴾[په کومه ورځ مونږ په سختونيولو سره ونيسو] په هغه ورځ [به﴿إِنَّا مُنتَقِمُونَ﴾ مونږ] پوره [بدله واخلو] يعنی په اخرت کښې به پوره سزا وی.

## معارف او مسائل

دې مذکوره آيت مبارك کښې چې د ﴿بِدُخَانٍ مُّبِينٍ﴾ ذکر په طور دپيشن ګوئی راغلې دې چې تاسو انتظار کوئی چې دهغه ښکاره لوګی چې په آسمان باندې به وی او په خلقو باندې به راخور شی . ددې متعلق د حضرات صحابه کرامو ﷺ نه درې قولونه منقول دی .

① اول دا چې دا د قيامت د نخښو نه يوه نخښه ده. او دا به بالکل قيامت ته نزدې وی. دا قول د علی ﷺ ، ابن عباس ﷺ ، ابن عمر ﷺ ، ابوهريره ﷺ او زيد بن علی ﷺ او حسن بصری ﷺ ، ابن ابی مليکه ﷺ وغيره دې. او ابوسعيد خدری ﷺ او حذيفه بن اسيد غفاری ﷺ نه دا قول مرفوعا هم روايت کړې شوې دې اوددې تفصيل مخکښې راروان دې .

② دويم قول دادې چې دا پيشن ګوئی واقع شوې ده . او ددې مصداق د مکې مکرمې قحط دې چې د نبی کريم ﷺ په بد دعا سره په هغوئ باندې راغلې وو. هغوئ د اولږې نه مړه کيدل، مردار ځناور ئې خوړل ، په آسمان باندې د باران په ځائې هغوئ ته لوګې په نظر راتلو. دا قول د عبدالله بن مسعود ﷺ دې.

③ دريم قول دادې چې ددې دخان نه هغه لوګې دې چې د فتح مکه په ورځ په مکه مکرمه کښې په آسمان باندې خور شوې وو. دا قول د عبدالرحمان بن اعرج وغيره دې [قرطبی][1]. زيات معروف ړومبی دوه قولونه دی .

④ د دريم قول متعلق ابن کثير ﷺ فرمائيلی دی چې هذاالقول غريب جدابل منکر[2]. باقی د دوؤ ذکر په صحيح احاديثو کښې راغلې دې. روح المعانی دويم قول ته ترجيح ورکړې ده[3]. اومذکورالصدرخلاصه تفسيربيان القرآن کښې هم دااختيارکړې شوې ده.ابن کثير ﷺ او قرطبی ﷺ ړومبی قول ته ترجيح ورکړې ده. والله اعلم د دواړو قولونو روايات لاندې ذکر کيږی.

---

[1] تفسير القرطبي: ج ١٦، ص ١٣٠، ١٣١

[2] تفسير ابن كثير: ج ٧، ص ٢٤٧

[3] روح المعاني: ج ١٨، ص ٤٣٦

صحیح مسلم کښې حذیفه بن اسید رضی الله عنه نه روایت دې چې نبی کریم ﷺ یو بالاخانې نه مونږ ته اوکتل ، مونږ خپلو کښې د قیامت د نخښو تذکره کوله نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې قیامت به تر هغه وخته پورې نه قائمیږی چې تاسو لس نخښې او نه گورئی . ① دنمر مغرب طرفنه راختل ② دخان ③ دوآبه ④ یاجوماجوج راوتل ⑤ دعیسی علیه السلام نازلیدل ⑥ د دجال راوتل ⑦ او درې خسفه یعنی په زمکه کښې ښخیدل یو خسف په مشرق کښې ⑧ بل خسف په مغرب کښې ⑨ دریم جزیرة العرب کښې ⑩ او اور چې قعر عدن نه به راوځی او خلق به شړی تر دې چې کوم ځائې شپه راشي نو خوب کولو دپاره به اودریږی اور به هم اودریږی ، او چې کوم ځائې کښې غرمه شی نوچې آرام دپاره اودریږی اور به هم اودریږی [ابن کثیر]([1]).

ابن جریر رحمه الله د ابومالك اشعری رضی الله عنه نه روایت کړې دې چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې څه تاسو د دریو څیزونو نه ویروم. یو دخان یعنی لوګې ، دا به مؤمن باندې صرف یو زکام راولی ، اوکافر په ټول بدن باندې به خور شی او تر دې چې دهغه د هر یومسمع الو مسام نه به راوځی . او دویم څیز دآبه یعنی دابة الارض چې ناآشنا قسم ځناور په د زمکې نه راوځي . او دریم دجال ([2]). دا روایت ابن کثیر نقل کړیدې او فرمائیلي ئې دی چې هذا اسناد جید([3]). هم داشان یو روایت بحواله ابن ابی حاتم د ابوسعید خدری رضی الله عنه نه هم ابن کثیر نقل کړې دې([4]). او بحواله ابن ابی حاتم علی رضی الله عنه نه دا روایت نقل کړې شوې دې چې د دخان پیشن گوئی نه ده تیره شوې بلکه دا به قیامت ته نزدې مؤمن دپاره صرف د یو زکام په شان وی او کافر به ټول راګیر کړی اود هغه د هر مسمع او مسام نه به راوځی([5]) ، هم داشان مضمون بحواله عبدالله بن عمر رضی الله عنه او ابن عباس رضی الله عنه نه هم نقل کړې شوې دې . او هغه ابن کثیر نقل کړې دې او بیافرمائی چې:

﴿هذا اسناد صحیح الی ابن عباس رضی الله عنه حبر الامة وترجمان القران وهكذا قول من وافقه من الصحابة والتابعین مع الاحادیث المرفوعه من الصحاح والحسان وغیرهما التی اوردوها مما فیه مقنع ودلالة ظاهرة علی ان الدخان من الایات المنتظرة مع انه ظاهر القران [فَارْتَقِبْ يَوْمَ تَأْتِي السَّمَاءُ بِدُخَانٍ مُّبِينٍ] وعلی ما فسره ابن مسعود انما هو خیال راوه فی اعینهم من شدة الجوع والجهد وهكذا قوله تعالی [یغشی الناس] ای یتغشاهم ویعمهم ولو كان امرا خیالیا لم یعض اهل مكة المشركین لما قیل فیه یغشی الناس﴾([6])

[ترجمه] ابن عباس رضی الله عنه حبر امت او ترجمان القرآن پورې دا اسناد صحیح دی . او هم دا قول د نور صحابه کرامو رضی الله عنهم او تابعینو دې . او هغوئ د ابن عباس رضی الله عنه موافقت کړې دې . دې سره ځینې هغه مرفوعه احادیث دی چې په هغې کښې ځینې صحیح ځینې حسن دی هغه هم دا ثابتولو دپاره کافی دی چې دخان د قیامت د هغه نخښو نه دې چې دهغه انتظار دې . اوس لا راغلې نه دې . خصوصا چې په دې باندې د قرآن پاك ظاهری الفاظ هم شاهد دی . او دعبدالله بن مسعود رضی الله عنه په مشهور تفسیر هغې کښې چې د کوم لوګی ذکر دې . هغه یو خیالی لوګې

---

[1]) تفسیر ابن کثیر: ج ۷، ص ۲۴۷، وصحیح مسلم، کتاب الفتن، باب فی ظهور عشر آیات:ج ۲، ص ۳۹۳
[2]) المعجم الکبیر للطبرانی،رقم الحدیث: ۳۳۶۲
[3]) تفسیر ابن کثیر: ج ۷، ص ۲۴۹
[4]) تفسیر ابن کثیر: ج ۷، ص ۲۴۹
[5]) تفسیر ابن کثیر: ج ۷، ص ۲۴۹
[6]) تفسیر ابن کثیر: ج ۷، ص ۲۴۷ نه ۲۴۹ پورې.

وو ، چې دلوږې په وجه په هغوئ ته ښکاریدو. دې دپاره د یغشی الناس معلومیږی خکه دا خیالی لوګې ذ اهل مکې دپاره مخصوص وو. اود یغشی الناس الفاظ دا ښائی چې هغه تولو خلقو باندې عام طور راغلې وی.

او د رومبې یعنی د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه د قول روایت په صحیحین او مسند احمد او ترمذی ، نسائی وغیره کښې داسې راغلې دې چې مسروق رحمه الله ته روایت دې چې یوه ورځ مونږ د کوفې مسجد ته داخل شوچې ابواب کنده ته نزدې دې. هلته مو او کتل چې یو واعظ خلقو ته وعظ کوی. او دې آیت مبارك یعنی ﴿يَوْمَ تَأْتِي السَّمَاءُ بِدُخَانٍ مُّبِينٍ﴾ متعلق هغه دمخاطبو خلقو نه سوال اوکړوچې تاسو ته معلومه ده چې دخان څه ته وائی. بیا ئې اوفرمائیل چې دا به یو لوګې وی چې د قیامت په ورځ به راوځی او دا به د منافقینو غوږونو او سترګو ته راتاؤ شی او دې سره به مؤمن ته صرف زکام وی.

مسروق رحمه الله فرمائی چې مونږ کله ددې واعظ خبرې واؤریدې نو مونږ عبدالله بن مسعود رضی الله عنه ته ورغلو او هغوئ ته مو ددې ذکر اوکړو. هغوئ ملاست وو ، زر په ویره کښې راپاسیدل او کیناستل او وې فرمائیل چې الله جل جلاله ستاسو نبی صلی الله علیه وسلم ته دا هدایت فرمائیلې دې چې: ﴿قُلْ مَآ أَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ وَمَآ أَنَا۠ مِنَ الْمُتَكَلِّفِينَ﴾ یعنی څه ستاسو نه د ستاسو د خدمت تعلیم و تبلیغ هیڅ بدله نه غوارم او نه څه د هغه خلقو نه یم چې په تکلف سره یوه خبره کوی. په دې وجه د علم تقاضا داده چې سړې په یو څیز باندې نه پوهیږی نو صفا دې اووائی چې څه په دې نه پوهیږم ددې علم الله تعالی ته دې. بیا ئې اوفرمائیل چې اوس څه تاسو ته ددې آیت مبارك د تفسیر یوه واقعه وایم. هغه داده چې کله قریشو د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د دعوت قبلولو نه انکار اوکړو او په خپل کفر باندې کلك ولاړ وو نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم هغوئ دپاره داسې بد دعا اوفرمائیل چې یا الله جل جلاله! په دوئ باندې داسې قحط راولې لکه څنګه چې تا د یوسف علیه السلام په وخت کښې راوستې وو. ددې بددعا اثر داشو چې خلق په قحط کښې اخته شو تر دې چې هډوکی او مردارخناور به ئې خوړل. دې خلقو به آسمان طرفته نظر واچولو نو د اولږې نه به دوئ ته په آسمان یو لوګې ښکاریدو. او په یو روایت کښې دی چې کله به ددوئ یو کس آسمان ته نظر پورته کړو نو د اولګې په وجه به ورته په آسمان کښې لوګې شان ښکاریدو. دې نه پس عبدالله بن مسعود رضی الله عنه ددې په استدلال کښې دا آیت مبارك اولوستو چې: ﴿فَارْتَقِبْ يَوْمَ تَأْتِي السَّمَاءُ بِدُخَانٍ مُّبِينٍ﴾ هرکله چې دا واقعه راپیښه شوه نو خلق د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضر شو او عرض ئې اوکړو چې تاسو د خپلې قبیلې مضر دپاره د الله جل جلاله نه د باران دپاره دعا اوکړئ ګنی تول به هلاك شی. نبی کریم صلی الله علیه وسلم دعا اوفرمائیله او الله تعالی باران اوروَلو. نو په دې باندې دا آیت مبارك نازل شو چې: ﴿إِنَّا كَاشِفُوا الْعَذَابِ قَلِيلًا إِنَّكُمْ عَآئِدُونَ﴾ یعنی مونږ ستاسو دا عذاب څو ورځودپاره لرې کوؤ خو هسې بیاخپل کفرطرفته واپس شئ. نو همداشان اوشو ، هغوئ بیا هغه خپل مخکښې حال ته واپس شو نو الله جل جلاله دا آیت مبارك نازل کړو چې: ﴿يَوْمَ نَبْطِشُ الْبَطْشَةَ الْكُبْرَىٰٓ إِنَّا مُنتَقِمُونَ﴾ یعنی په کومه ورځ چې مونږ کله په سخت رانیولو سره راؤنیسو نو د هغه ورځې نه ویریږئ. بیا ابن مسعود رضی الله عنه اوفرمائیل چې دا بطشه کبری یعنی ډیر سخت رانیول په بدر کښې تیرشویدی. عبدالله بن مسعود رضی الله عنه ددې واقعې نقل کولو نه پس اوفرمائیل

چې پنځه څیزونه مخکښې تیر شوي دي يعني دخان ، روم ، قمر ، بطشه ، لزام.[ابن کثیر]([1]).
دخان نه مراد په دې تفسیر کښې دمکې مکرمې قحط دې. او د روم نه مراد هغه پیشن ګوئی
ده کومه چې په سورهٔ روم کښې دهغویٔ د غلبې متعلق راغلې دې چې: ﴿وَهُمْ مِّنْۢ بَعْدِ غَلَبِهِمْ سَيَغْلِبُوْنَ﴾ او قمر نه انشقاق قمر مراد دې چې د هغې ذکر په: ﴿اِقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ وَانْشَقَّ الْقَمَرُ﴾ کښې
دې. او بطشه د تفسیر مذکوره مطابق غزوهٔ بدر کښې د کافرانو انجام دې. او لزام نه اشاره
دې آیت مبارك طرفته ده چې: ﴿فَسَوْفَ يَكُوْنُ لِزَامًا﴾.
دې مذکوره آیتونو مبارکو کښې غور اوکړئی، په دې کښې څو پیشن ګویانې دی.
① اول په آسمان د لوګی راتلل، او په ټولو خلقو باندې راخوریدل. ② دویم د مشرکانو ددې
عذاب نه عاجزه کیدل او د ایمان په وعده باندې د الله تعالی نه دعا غوښتل. ③ دریم د هغوئ
وعده خلاف کوی او بیا انکار کول. ④ څلورم د اتمام حجت په طور د الله ﷻ دهغوئ نه څه
وخت پورې عذاب لرې کول او دا ورته وئیل چې تاسو به په دې وعده باندې قائم پاتې نشئ.
⑤ پنځم بیا دوباره هغوئ لره رانیول.
د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه د تفسیر مطابق دا ټولې پیشن ګویانې پوره شوی دی. رومبئ څلور
څو په مکې والو باندې د سخت قحط په صورت کښې او ددې دلرې کولو په دوران کښې پوره
شوې. او پنځمه په غزوهٔ بدر کښې پوره شوه. ددې تفسیر نه واضح شو چې دقرآني الفاظو نه
دا ډیره لرې معلومیږی چې د اولږې د سختئ په وجه په آسمان باندې یو خیالی لوګې په نظر
راتلل قرآن عظیم الشان ﴿تَأْتِي السَّمَآءُ﴾ او ﴿بِدُخَانٍ مُّبِيْنٍ﴾ او ﴿يَغْشَى النَّاسَ﴾ الفاظ سره تعبیر کړی
وی ځکه چې په ظاهره ددې الفاظو نه په آسمان باندې یو ښکاره لوګې راخوریدل او ټول خلق
ددې نه متاثره کیدل معلومیږی. دې مذکوره تفسیر کښې نه په آسمان باندې دلوګی راخوریدل
ثابت دی اونه د خلقو ددې نه متاثره کیدل ثابت دی. بلکه دا لوګې څو دهغوئ د خپل زیات
مصیبت اثر وو ، په دې وجه ابن کثیر رحمه الله دظاهر قرآن مطابق دې ته ترجیح ورکړې ده چې دا
دخان مبین د قیامت د نخښو نه دې. او دې ته ئې په دې وجه هم ترجیح ورکړې ده چې دا
مرفوع روایتونو نه ثابت دی. او دا صرف د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه خپل قول دې مګر په دې
تفسیر باندې په ظاهره په ﴿اِنَّا كَاشِفُوا الْعَذَابِ قَلِيْلًا اِنَّكُمْ عَآئِدُوْنَ﴾ سره دا اشکال کیږی چې په قیامت
کښې به کافرانو نه هیڅ عذاب نشی پورته کولې. نو دې ځائې به د څو ورځو دپاره د عذاب
لرې کولو ذکر څنګه صحیح وی؟ ابن کثیر رحمه الله اوفرمائیل چې ددې دوه معنې کیدې شی. یوه
دا چې ددې نه مراد دا وی چې که چرې ستاسو د وینا مطابق عذاب لرې کړی او بیا تاسو دنیا
ته واپس کړی نو تاسو به بیا هم هغه کفر اختیاروئی. لکه څنګه چې یو آیت مبارك کښې هم دا
مضمون داشان راغلې دې چې: ﴿وَلَوْ رَحِمْنٰهُمْ وَكَشَفْنَا مَا بِهِمْ مِّنْ ضُرٍّ لَّلَجُّوْا فِيْ طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُوْنَ﴾([2]) او یو بل

---

[1]) تفسیر ابن کثیر: ج ۷، ص ۲۴۶ نه ۲۴۸ پورے، وصحیح البخاری، کتاب التفسیر، تفسیر سورة الدخان: ج ۲، ص ۷۱۴، ۷۱۵

[2]) ترجمہ: او کہ مونږ په دوی باندے رحم وکړو او ددوئ تکلیفونه لرے کړو نو بیا به هم دوئ په خپله ګمراهی کښں سرو هل کرځی.

آیت مبارك كښې دى چې: ﴿وَلَوْرُدُّوْالَعَادُوْالِمَانُهُوْاعَنْهُ﴾[1]، بلـه معنى ئې دا هم كيـدې شى چې ﴿إِنَّا كَاشِفُوْالْعَذَابِ﴾ كښې د كشف عذاب نه مراد داوى چې يعنى اگر چې د عذاب راتلو اسباب مكمل شوى دى او تاسو ته عذاب نزدې راغلې دې خو مونږ دا څو ورځو دپاره روستو كوؤ لكه څنگه چې ديونس عليه السلام قوم باره كښې چې راغلى دى: ﴿كَشَفْنَاعَنْهُمُ الْعَذَابَ﴾[2]، حالانكه په قوم يونس عليه السلام باندې عذاب نه وو راغلې، صرف آثار ئې په نظر راغلى وو. اودا ئې په كشف عذاب سره تعبير كړل[3]. خلاصه دا ده چې كه د دخان پيشن گوئى د قيامت په نخښو كښې شمار كړې شى نود ﴿إِنَّاكَاشِفُوْالْعَذَابِ﴾ الفاظ سره به په دې باندې هيڅ اشكال نه كيږى او په دې تفسير كښې د ﴿يَوْمَ نَبْطِشُ الْبَطْشَةَ الْكُبْرٰى﴾ نه مراد دقيامت د ورځې رانيول دى. د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه په تفسير كښې چې د غزوهٔ بدر كوم رانيول دى هغه په خپل ځائې صحيح دى. هغه هم يو سخت رانيول وو. خو دې سره دا نه لازميږى چې گنى په قيامت كښې به ددې نه زيات سخت رانيول نه وى. او پدې كښې هم څه بعيد نه معلوميږى چې قرآن عظيم الشان كفار د راتلونكى عذاب نه په دې آيتونو كښې ويرولى وى او دې نه پس چې كوم عذاب په هغوئ باندې راغلو هغه ئې په څه درجه كښې ددې مصداق گرځلو سره صحابه كرامو رضي الله عنهم ددې آيتونو ذكر فرمائيلې وى، اودې سره دقيامت د نخښو څه نفى نه كيږى. لكه څنگه چې روح المعانى كښې د علامه سفارينى كتاب البحور الزاخره حوالې سره پخپله ابن مسعود رضي الله عنه نه روايت كړې دې چې:

﴿هما دخانان مضى واحد والذى بقى يملا ما بين السماء والارض ولا يصيب المؤمن الا بالزكمة واما الكافر فيشق مسامعه فيبعث الله تعالى عند ذلك الريح الجنوبى من اليمن فتقبض روح كل مؤمن و يبقى شرار الناس﴾ [روح][4]

[ترجمه]: دخان دوه دى. يو تير شوې دې [يعنى د قحط په وخت كښې] او دويم باقى دې، هغه به د آسمان او زمكې مينځ كښې فضا ډكه كړى، او دې سره به مؤمن ته صرف زكام وى، او دكافرانو ټول منافذ به ډا وشلوى، هغه وخت كښې به الله تعالى يمن طرفنه جنوبى يوه هوا راؤليږى چې هغه به دهريو مؤمن روح قبض كړى اوصرف كافران اوشرار الناس به باقى پاتې شى.
اگر چې صاحب د روح المعانى د خپل مختار تفسير مطابق ددې روايت د صحت متعلق د خپل شك اظهار كړې دې مگر كه دا روايت ثابت شى نو ظواهر قرآن او روايت ترمينځه به څه تعارض پاتې نشى. والله سبحانه وتعالى اعلم.

......

[1] ) ترجمه: اوكه دوى دنيا ته واپس هم كړے شى نو بيا به هم هغه كارونه كوى دكومونه چه دوى منع كړے شوى وو.
[2] ) ترجمه: مونږ ترے نه شرمونكے عذاب په دے دنيا كښ لرے كړو.
[3] ) تفسير ابن كثير: ج ۷، ص ۲۵۰
[4] ) روح المعانى: ج ۱۸، ص ٤۳۵

وَلَقَدْ فَتَنَّا

| او په آزمیښت کښی اچولی ووه مونږه

| ..........اومونږ ددې نه مخکښې د

قَبْلَهُمْ قَوْمَ فِرْعَوْنَ وَجَآءَهُمْ رَسُوْلٌ كَرِيْمٌ أَنْ أَدُّوْٓا

مخکښې ددې نه | قوم دفرعون | او راغي هغوئ ته | يو رسول شريف | چې حواله کړئ |

فرعون په قوم امتحان کړې وو | او هغوئ ته يو عزتمند پيغمبر راغلې وو | چې دالله ﷺ

إِلَيَّ عِبَادَ اللّٰهِ إِنِّيْ لَكُمْ رَسُوْلٌ أَمِيْنٌ وَّأَنْ لَّا تَعْلُوْا

ماته | بندګان دالله | بيشکه زهٔ | ستاسو دپاره | رسول امانتدار يم | او دا چې سرکشي مهٔ کوئ |

بندګان ماته حواله کړه | زه تاسوته راليږلې شوې امانت دار پيغمبر يم | اودا چې تاسو د

عَلَى اللّٰهِ إِنِّيْٓ اٰتِيْكُمْ بِسُلْطٰنٍ مُّبِيْنٍ وَإِنِّيْ

په مقابله دالله کښې | بيشکه زهٔ | راوړم تاسو ته | دليل ښکاره | او بيشکه ما

الله ﷺ په مقابله کښې سرکشي مه کوئ | زه تاسوته يو ښکاره دليل پيش کوم | او بيشکه زه

عُذْتُ بِرَبِّيْ وَرَبِّكُمْ أَنْ تَرْجُمُوْنِ وَإِنْ لَّمْ تُؤْمِنُوْا

پناه اغستلی ده ادرب زما اودرب ستاسو سره اچې تاسو سنګسار کوئ ما | اوکه تاسو خبره نهٔ منئ

ستاسواو خپل رب سره د دې خبرې نه پناه غواړم چې تاسوما په کاڼړو اولئ|اوکه چرې تاسوپه ما ايمان نه راوړئ

لِيْ فَاعْتَزِلُوْنِ فَدَعَا رَبَّهٗٓ أَنَّ هٰٓؤُلَآءِ قَوْمٌ

زما | نو خان ساتئ زما نه | پس آواز اوکړو هغه | رب خپل ته | چې بيشکه دا خلق | يو قوم دي

نوزما نه لرې شئ | ..........بيا موسی ﷺ خپل رب ته دعا اوکره | چې دا خو ډير لوئي

مُّجْرِمُوْنَ فَأَسْرِ بِعِبَادِيْ لَيْلًا إِنَّكُمْ مُّتَّبَعُوْنَ

مجرم | پس روان کړه | بندګان زما دشپې | بيشکه په تاسو پسې به خلق درځی |

مجرمان دی|نو[اې موسی] ته زمابندګان دشپې شپې [دمصر] نه اوباسه |رالاندې کولې به شئ

وَاتْرُكِ الْبَحْرَ رَهْوًا إِنَّهُمْ جُنْدٌ مُّغْرَقُوْنَ كَمْ تَرَكُوْا

او پريږده درياب | په حال خپل | بيشکه دوئ | لښکر دي | ډوبيدونکې | څومره ډير پريښودل هغوئ

او درياب غلې په قلاره پريږده | ددوئ ټول لښکر به ډوبيږی | نودغه خلقو څومره

مِنْ جَنّٰتٍ وَّعُيُوْنٍ وَّزُرُوْعٍ وَّمَقَامٍ كَرِيْمٍ وَّنَعْمَةٍ

د باغونو | او چينو نه | او دفصلونو نه | او دخايونو شاندارونه | او نعمتونه |

باغونه |..........اوچينې | او فصلونه او ښائسته ښائسته محلونه | او نور ډيرنعمتونه ئې پريخودل

كَانُوْا فِيْهَا فٰكِهِيْنَ ﴿٢٧﴾ كَذٰلِكَ وَاَوْرَثْنٰهَا

چې وؤ هغوی | په هغې کښې | مزې کونکی | داسې شو انجام دهغوئ | اوپه میراث کښې ورکړل مونږه دغه څیزونه

کوم کښې چې دوئ خوشحالي کونکي وو | هم دغسې اوشوه | او مونږ یو بل قوم دهغې ټولو څیزونو

قَوْمًا اٰخَرِيْنَ ﴿٢٨﴾ فَمَا بَكَتْ عَلَيْهِمُ السَّمَآءُ وَالْاَرْضُ وَمَا كَانُوْا

قوم بل ته | پس اونه ژړل | په هغوئ باندې | آسمان | او زمکې | او نه وؤ هغوئ

مالک کړو | ......نو نه خو پرې آسمان او زمکې ژړا اوکړه | اونه ورته مهلت

مُنْظَرِيْنَ ﴿٢٩﴾ وَلَقَدْ نَجَّيْنَا بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ مِنَ الْعَذَابِ

مهلت ورکړې شوی | او بیشکه خلاصې ورکړو مونږه | بنی اسراءیلو ته | دعذاب

ورکړې شو | اومونږ بنی اسرائیل دسپکونکی عذاب نه خلاص کړل

الْمُهِيْنِ ﴿٣٠﴾ مِنْ فِرْعَوْنَ ۭ اِنَّهٗ كَانَ عَالِيًا مِّنَ الْمُسْرِفِيْنَ ﴿٣١﴾

سپکونکی نه | [یعنی] دفرعون نه | بیشکه هغه وؤ | اوچت سرکشه | دحد نه اوړیدونکي خلقو کښې

......یعنی دفرعون نه | او هغه ډیر سرکشه وو | د حد نه وړاندې تیریدنکي وو

وَلَقَدِ اخْتَرْنٰهُمْ عَلٰي عِلْمٍ عَلَي الْعٰلَمِيْنَ ﴿٣٢﴾ وَاٰتَيْنٰهُمْ

اوبیشکه غوره کړې وؤمونږه هغوئ لره | په علم سره | په خلقو دزماني باندې | او ورکړې مونږ هغوئ ته

او مونږ په خپل علم سره بنی اسرائیلو ته په ټول مخلوق باندې فضیلت ورکړو | اومونږ هغوئ

مِّنَ الْاٰيٰتِ مَا فِيْهِ بَلٰۗؤٌا مُّبِيْنٌ ﴿٣٣﴾

دنښو نه هغه | چې په هغې کښې | آزمیښت ښکاره وؤ |

ته داسې نښې ورکړې | چې په کښې ښکاره امتحان وو |

## آسان ترجمه قرآن

او ددوی نه مخکښې مونږ د فرعون قوم آزمائیلې وو، او هغوی ته یو عزت مند پیغمبر راغلې وو. (او هغه اووئیل چه) د الله تعالی بندګان ماته حواله کړه زه تاسو ته یو امانت دار پیغمبر راغلې یم. او دا چه: د الله تعالی مخکښې سرکشي مه کوئ، زه تاسو ته یو ښکاره دلیل پیش کوم او زه ددې خبرې نه په خپل پروردګار سره، او ستاسو په پروردګار سره پناه غواړم، چه تاسو ما سنګسار کړئ، او که تاسو په ما باندې ایمان نه راوړئ، نو زما نه جدا شئ، بیا هغه خپل پروردګار ته آواز اوکړو، چه دا خلق مجرمان دی. (الله تعالی اوفرمائیل چه) ته زما بندګان د شپې شپې روان کړه یقیناً تاسو پسې به درتلل ضرور کیږی، او ته سمندر لره ولاړ پریږده یقیناً دا لښکر غرقیدونکې دې. څومره باغونه او چینې وې، چه دغې خلقو پریخودې، او څومره پټې او ښائسته کورونه. او دَ عَیش څومره سامانونه چه په هغې کښې به دوی مزې کولې. د دوی انجام دا رنګې شو، او مونږ ددې ټولو څیزونو وارث یو بل قوم جوړ کړو، بیا نه په دوی باندې آسمان اوژړل او نه زمکې، او نه دوی ته څه مهلت ورکړې شو. او بنی اسرائیلو ته مونږ د ذلت دعذاب نه نجات ورکړو، یعنی د فرعون نه، حقیقت دادې، چه هغه لوئې سرکش، او د حد نه تیریدونکو

خلقو نه وو. او مونږ هغوی ته د خپل علم مطابق په دنیا والو باندې اوچتوالې ورکړو. او هغوی ته مونږ داسې نښې ورکړې، چه په هغې کښې ښکاره انعام وو.

## خلاصه تفسیر

﴿وَلَقَدْ فَتَنَّا قَبْلَهُمْ قَوْمَ فِرْعَوْنَ﴾[او مونږ د دوی نه وړاند دفرعون دقوم ازمائش کړې دې او] هغه ازمائش دا وو چه ﴿وَجَآءَهُمْ رَسُولٌ كَرِيمٌ﴾[دوی ته یو معزز پیغمبر] یعنی موسی [راغلې وو] د پیغمبر په راتلو سره ازمائش داسې کیږی چه کوم ایمان راوړی اوکوم نه راوړی او دوی راغلل دفرعون قوم ته یې وفرمائیل ﴿أَنْ أَدُّوا إِلَيَّ عِبَادَ اللَّهِ﴾[چه دې دالله تعالی بندګانو] یعنی بنی اسرائیلو [لره] کوم چه تاسو په قسم قسم تکلیفونو کښې نښلولی دی [ماته حواله کړئ] او د دوی نه لاس واخلئ چه زه کوم ځائ او څنګه مناسب وی دوی لره ازاد وساتم ﴿إِنِّي لَكُمْ رَسُولٌ أَمِينٌ﴾[زه تاسو طرف ته] دالله تعالی [پیغمبر] جوړکړې شوې راغلې [یم] او [دیانتداریم] په یوه خبره د وحی کښې کمې زیاتې نه کوم کوم حکم چه وی هغه تاسوته رسوم پس تاسو لره منل پکار دی [او دا] یې هم وفرمائیل ﴿وَأَنْ لَا تَعْلُوا عَلَى اللَّهِ﴾[چه تاسو دالله تعالی نه سرکشی مه کوئ] بره د حق العباد حکم وو دلته د حق الله ﴿إِنِّي آتِيكُمْ بِسُلْطَانٍ مُبِينٍ﴾[زه ستاسو په وړاندې یو واضح دلیل] د خپل نبوت [پیش کوم] مراد ددې نه معجزه عصا او ید بیضاء دې [او] هرکله چه فرعون او آل فرعون ونه منله بلکه د دوی په مینځ کښې مشوره د دوی دقتل وشوه دغه وخت چه دوی واوریدل نو وې فرمائیل ﴿وَإِنِّي عُذْتُ بِرَبِّي وَرَبِّكُمْ أَنْ تَرْجُمُونِ﴾[زه دخپل پروردګار او ستاسو دپروردګار پناه غواړم ددې نه چه تاسو خلق ماله په ګټو] وغیره [قتل کړئ] ﴿وَإِنْ لَمْ تُؤْمِنُوا لِي فَاعْتَزِلُونِ﴾ اوکه تاسو په ما ایمان نه راوړئ نو تاسو زمانه لرې شئ] یعنی زما په تکلیف رارسولوپسې مه کیږی څکه چه ماته هیڅ نقصان نه رسیږی زما سره دالله تعالی وعده ده [فلا يصلون اليكما الخ](١) لیکن ستاسو جرم پرې نور زیاتیږی په دې وجه په خیر خواهئ سره وایم چه داسې مه کوئ مګر هغوی کله منع کیدل ﴿فَدَعَا رَبَّهُ﴾[پس موسی] [خپل رب ته دعا وکړه ﴿أَنَّ هَؤُلَاءِ قَوْمٌ مُجْرِمُونَ﴾چه دا ډیر سخت مجرمان خلق دی] چه دجرمونو نه نه منع کیږی اوس د دوی فیصله وکړې ارشاد وشو چه مونږ دعا قبوله کړه او د دوی د فیصلې وخت راغې ﴿فَأَسْرِ بِعِبَادِي لَيْلًا إِنَّكُمْ مُتَّبَعُونَ﴾[نو اوس زما بندګانو] یعنی بنی اسرائیلو[لره ته شپه شپه کښې روان کړه اوځه] څکه چه [ستاسوبه] دفرعون دطرف نه [تعاقب] هم [کیږی] په دې وجه [چه تاسو دشپې وځئ نو دومره لرې به لاړشئ چه دوی به تاسو] لاتد نه کړی [او] په سفر کښې چه درله دریاب مخې له راشی ﴿وَاتْرُكِ الْبَحْرَ رَهْوًا﴾ [تاسو دغې دریاب لره] اول په همسا ووهئ چه هغه اوچ شی لارې درکړی بیا د پورې وتلو نه پس هرکله چه دۀ لره په دغه حالت ووینئ نو فکر مه کوئ چه دغه شان به فرعون هم شاید چه پورې وځی بلکه تاسو دۀ لره دغسې [د سکون په حالت کښې] یعنی د اوبو بیرته کیدو او لارې اوچیدو سره چه ددریاب کوم هینت جوړ شوې دې په دغې هینت یې [پریږدئ] او بې فکره وسیږئ څکه چه ددې په دې حالت کښې په پاتې کیدو کښې داحکمت دې چه ﴿إِنَّهُمْ

(١) ترجمه: پس دوی به نه شی دررسیدلې تاسوته.

﴿جُندٌ مُّغْرَقُونَ﴾ [د دوی] فرعونیانو [ټول لښکر] په دې دریاب کښې [به ډوب کړې شی] داسې چه هغوی به ورته وردننه شی اوچې ټول په کښې ورشی نو دڅلور طرفه نه به پرې اوبه راشی چنانچه داسې وشوه چه حضرت موسی علیه السلام پورې وتلو او فرعونیان غرق شول او ﴿كَمْ تَرَكُوا مِن جَنَّاتٍ وَعُيُونٍ﴾ [دغو خلقو څومره باغونه او] څومره چینې] یعنې نهرونه ﴿وَزُرُوعٍ وَمَقَامٍ كَرِيمٍ﴾ [اوڅومره فصلونه او] څومره [عمده مکانونه] او ﴿وَنَعْمَةٍ كَانُوا فِيهَا فَاكِهِينَ﴾ [څومراد آرام سامانونه په کومو چه هغوی خوشحاله اوسیدل پریښودل] داقصه ﴿كَذَٰلِكَ ۖ وَأَوْرَثْنَاهَا قَوْمًا آخَرِينَ﴾ [دغه شان وشوه او مونږ یوبل قوم لره ددې مالکان جوړ کړل] مراد ترې نه بنی اسرائیل دی [پس] چونکه هغوی نهایت مبغوض وو ﴿فَمَا بَكَتْ عَلَيْهِمُ السَّمَاءُ وَالْأَرْضُ وَمَا كَانُوا مُنظَرِينَ﴾ او په دې وجه نه خو په دوئ باندې زمکې و آسمان ته ژړا راغله او نه هغوئ [ته] دعذاب نه [څه مهلت ورکړې شو] یعنی که لږ نور ژوندی پاتې شوی وې نو دجهنم دعذاب نه به څه ورځې بچ پاتې شوی وو ﴿وَلَقَدْ نَجَّيْنَا بَنِي إِسْرَائِيلَ مِنَ الْعَذَابِ الْمُهِينِ﴾ [اومونږه] دغه شان [بنی اسرائیل لره د سخت ذلت د عذاب نه ﴿مِن فِرْعَوْنَ﴾ یعنی د فرعون] د ظلم او ستم [نه نجات ورکړو ﴿إِنَّهُ كَانَ عَالِيًا مِّنَ الْمُسْرِفِينَ﴾ واقعی هغه] فرعون [لوئ سر کش] او [د حد] د بندګئ [نه د وتونکونه وو] یو نعمت خو په بنی اسرائیلو دا وشو [او] ددې نه علاوه ﴿وَلَقَدِ اخْتَرْنَاهُمْ عَلَىٰ عِلْمٍ عَلَى الْعَالَمِينَ﴾ [مونږ بنی اسرائیلو لره] نور نعمتونه ورکړل [دخپل علم] او حکمت [مطابق] په ځنې کارونو کښې دټولې [دنیا په خلقو باندې] یا په ټولو کارونو کښې په لویه حصه د مخلوق باند مثلا د دغه زمانې په خلقو مو [فوقیت ورکړواو] په دغو نعمتونو کښې دانعام کیدونه علاوه دالله تعالی په قدرت باند دلالت هم وو چه مطلب ئې دادې چه ﴿وَآتَيْنَاهُم مِّنَ الْآيَاتِ مَا فِيهِ بَلَاءٌ مُّبِينٌ﴾ [مونږ دوی ته] د خپل قدرت [داسې] لوئ لوئ [نښې ورکړې په کومو کښې چه صریح انعام وو] یعنی کوم احسان چه په دوی وشو په دې کښې دوه صفتونه موندې شول انعام والې ئې هم او دقدرت دلیلوالې ئې هم بیاځنې په دغو کښې حسی نعمتونه وو لکه د فرعون نه نجات ورکول او ځنې معنوی وو لکه علم او کتاب او مشاهده دمعجزاتو.

## معارف او مسائل

﴿وَإِنِّي عُذْتُ بِرَبِّي وَرَبِّكُمْ أَن تَرْجُمُونِ﴾ د رجم معنی سنګسارول دی یعنی په کاڼو ویشتلو ویشتلو سره یو کس هلاك کړی . او ددې معنی چاته کنځل کول او بدرد وئیل هم ده . دلته دواړه معنې مراد اخستې شی . خو راجح قول دادې چې دلته د سنګسار معنی اخستې شوې ده . ځکه چې د فرعون قوم موسی علیه السلام ته د قتل کولو ویناګانې کولې .

﴿وَاتْرُكِ الْبَحْرَ رَهْوًا﴾ او دریاب په ولاړ حالت کښې پریږده ، د رهو معنی ده ساکن ، اصل کښې موسی علیه السلام او ددوئ ملګری چې کله پورې وتل ، دهغوئ طبعی خواهش دا وو چې سمندر دې دوباره پخپل حالت شی چې د فرعون لښکرې بل طرفته پورې وتلو کښې ناکام شی . په دې وجه الله ﷻ دوئ ته خبرداری ورکړو چې کله تاسو سمندر څخه پورې اوزئ نو سمندر په خپل حالت باندې پریږدئی . او د اوبو د دوباره جاری کیدو فکر مه کوئی . ځکه چې فرعون اوچه لار اوګوری او چې د سمندر مینځ ته اورسی نو په هغه وخت کښې به مونږ سمندر جاری کړو او

ددهٔ لښکر به ډوب کړو [ابن کثیر] ([1]).

﴿وَأَوْرَثْنَاهَا قَوْمًا آخَرِينَ﴾ او مونږ دهغه وارثان يو بل قوم اوګرځولو ، سورة شعراء کښې ددې وضاحت شته دې چې ددې بل دوئم قوم څخه مراد بني اسرائيل دی او په دې باندې چې کوم مشهور اشکال کيږی ، او د مشهور تاريخ څخه نه ثابتيږی چې بنی اسرائيل دوباره په مصر کښې آباد شو . ددې جواب هم په سورة شعراء کښې تير شوې دې .

**د زمکې او آسمان ژړيدل:** ﴿فَمَا بَكَتْ عَلَيْهِمُ السَّمَاءُ وَالْأَرْضُ﴾ [پس په دوئ باندې آسمان او زمکې اونه ژړل] ددې مطلب دادې چې دوئ په زمکه باندې داسې يو نيك عمل نه وو کړې چې ددوئ په مرګ باندې زمکه اوژاړی . او نه د دوئ يو نيك عمل آسمان ته رسيدلې وو چې پرې آسمان اوژاړی . حافظ ابويعلى رحمه الله د انس رضي الله عنه په روايت سره د نبي کريم ﷺ دا ارشاد نقل کړې دې چې په آسمان هر بنده دپاره دوه دروازې مقرر دی . يوې نه ددهٔ رزق نازليږی او بلې سره ددهٔ عمل اوددهٔ خبرې پورته خيژی . پس کله چې دا بنده مړ شی نو دا دروازې دې يادوی او ژاړی . دې نه پس نبیٔ کريم ﷺ دا آيت مبارك په طور د اشتهاد تلاوت اوفرمائيل چې : ﴿فَمَا بَكَتْ عَلَيْهِمُ السَّمَاءُ وَالْأَرْضُ﴾ . ابن عباس رضي الله عنه نه هم دا قسم روايات مروی دی .[ابن کثير] ([2]) يو بل حديث پاك کښې دی چې شريح بن عبيد جعفری رضي الله عنه نه روايت دې چې نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې کوم يو مؤمن داسې غريب الوطنئ په حالت کښې مړ شی چې په ده باندې څوك د ژړا والا نه وی نو په هغه باندې آسمان او زمکه ژاړی . په دې باندې هم نبی کريم ﷺ د اآيت مبارك تلاوت اوفرمائيلو . او وې فرمائيل چې آسمان په يو کافر باندې نه ژاړی . [ابن جرير رحمه الله] ([3]) علی رضي الله عنه نه منقول دی چې هغوئ دنيك سړی په مرګ باندې د آسمان او زمکې د ژړيدو ذکر فرمائيلې دې [ابن کثير رحمه الله] ([4]).

او څينې حضراتو د آيت مبارك الفاظ مجاز او استعاره ګرځولې ده . او وئيلی ئې دی چې ددې نه په حقيقت کښې د آسمان او زمکې ژړا مراد نه ده بلکه مقصد دادې چې ددهٔ وجود داسې ناقابل التفات وو چې ددهٔ مرګ باندې هډو چا افسوس او نه کړو . خو مذکوره روا يتونو کښې راجح هم دا معلوميږی چې دلته په حقيقت کښې د آسمان او زمکې ژړيدل مراد دی . څکه چې د آيت مبارك حقيقی معنی ممکن وی او دروايتونو نه هم ددې تائيد کيږی نو هيڅ بې هيڅه دې نه د استعارې او مجاز وئيلو ضرورت نشته دې . پاتې شو دا شك چې په آسمان او زمکه کښې دومره شعور چرته دې چې اوژاړی ؟ نو ددې جواب دادې چې د کائنات په هر مخلوق کښې څه نه څه شعور شته دې لکه د قرآن عظيم الشان آيت ﴿وَإِنْ مِنْ شَيْءٍ إِلَّا يُسَبِّحُ بِحَمْدِهِ﴾ ([5]) نه معلوميږی . اواوس خو په کرار کرار جديد سائنس هم په دې نتيجه رسيدلې دې . او دا ضروری نه دی چې

[1]) تفسير ابن كثير: ج ٧، ص ٢٥٢

[2]) تفسير ابن كثير: ج ٧، ص ٢٥٣

[3]) تفسير الطبرى تحت هذه الآية: ج ٢٢، ص ٣٥، وشعب الإيمان للبيهقى، رقم الحديث: ٩٤٢٢، باب فى الصبر على المصائب---الخ: فصل فى ذكر ما فى الأوجاع---الخ.

[4]) تفسير ابن كثير: ج ٧، ص ٢٥٤، وشرح السنة للبغوى، رقم الحديث: ١٤٥٤، ومسند ابى يعلى الموصلى، رقم الحديث: ٤٠٢٢

[5]) ترجمه: او کوم يو څيز هم داسې نه دے چه دهغه ذات پاکی نه بيانوی.

د زمکي او آسمان ژړل دي داسې وي لکه څنګه چي انسان ژاړي. دهغه د ژړا کيفيت به يقيني طور مختلف وي. اومونږ ته ددې حقيقت معلوم نه وي.

﴿ وَلَقَدِ اخْتَرْنٰهُمْ عَلٰى عِلْمٍ عَلَى الْعٰلَمِيْنَ ﴾ [اومونږ بني اسرائيلو ته دعلم مطابق په ټول جهان باندې فضيلت ورکړو] ددې نه دا نه معلوميږي چې بني اسرائيل ته په امت محمديه ﷺ باندې فضيلت حاصل دې، ځکه چې ددې نه مراد دهغه زماني خلق دی. او په هغه وخت کښې بيشکه چې هغوئ په ټول باندې افضل وو اودا داسې دی لکه بی بی مريمې ته قرآن عظيم الشان فضيلت ورکړې وو اوفرمائيلي ئې دی چې: ﴿نِسَآءِ الْعٰلَمِيْنَ﴾. اودا هم ممکن دی چې بني اسرائيلوته په يوخاص وجه په ټولو دنيا والو او د هرې زماني خلقو باندې فضيلت حاصل وی خومجموعي فضيلت صرف امت محمديه ته حاصل دې [تفصيل دپاره اوګورئې ابن کثير وغيره] ([1]) او ﴿عَلٰى عِلْمٍ﴾ [دخپل علم مطابق] مطلب دادې چې زمونږ په هر کار کښې حکمت وی نو هغوئ ته فضيلت ورکولو کښې زمونږ حکمت او مصلحت وو. په دې وجه مونږ هغوئ ته فضيلت ورکړو.

﴿وَاٰتَيْنٰهُمْ مِّنَ الْاٰيٰتِ مَا فِيْهِ بَلٰٓؤٌا مُّبِيْنٌ﴾ [او مونږ هغوئ ته داسې نخښې ورکړې چې په هغې کښې ښکاره انعام وو] نخښو نه مراد د عصا او يد بيضا وغيره معجزې دی، او د ﴿بَلٰٓؤٌا﴾ دوه معنې دی، يو انعام او بله آزميښت، دلته دواړه معنې بلا تکلف ممکن دی، [قرطبي] ([2]).

| | | |
|---|---|---|
| | اِنَّ هٰٓؤُلَآءِ | لَيَقُوْلُوْنَ |
| | بيشکه دا خلق | خامخا وائي |
| | ...........بيشکه دا [کافرا] وائي | |

| اِنْ هِيَ | اِلَّا | مَوْتَتُنَا | الْاُوْلٰى | وَمَا نَحْنُ | بِمُنْشَرِيْنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| نه دي عاقبت | مګر | مرګ زمونږ | رومبني دي | اونۀ يو مونږ | چې دوباره به راپورته کړې شو |
| چې بس دغه ددنيا مرګ [زمونږ آخرې انجام] دی | ........... اومونږ بيان راوژندی کيدونکی نه يو | | | | |

| فَاْتُوْا | بِاٰبَآئِنَآ | اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ | اَهُمْ خَيْرٌ | اَمْ قَوْمُ تُبَّعٍ |
|---|---|---|---|---|
| پس راولئ | پلاران زمونږه | که يئ تاسو رښتينی | آيا دوئ بهتر دی | او که قوم دتبع |
| نوکه تاسو پيغمبران رښتينی يئ انوزمونږ پلار نيکه راواپس کړئ | آيا داخلق بهتر دی يا دتبع قوم | | | |

| وَالَّذِيْنَ | مِنْ قَبْلِهِمْ | اَهْلَكْنٰهُمْ | اِنَّهُمْ كَانُوْا |
|---|---|---|---|
| او هغه خلق | چې مخکښی دهغوئ نه وو | هلاك کړل مونږه هغوئ | بيشکه چې هغوئ |
| او هغه خلق | چې دوئ نه وړاندې تير شوي وو | کوم چې مونږ هلاک کړل | بيشکه هغوئ لوئې مجرمان |

| مُجْرِمِيْنَ | وَمَا خَلَقْنَا | السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضَ | وَمَا |
|---|---|---|---|---|
| وو مجرمان | او نه دی پيدا کړی مونږه | اسمانونه | او زمکه | او هغه چې |
| وو | ...........اومونږ اسمانونه او زمکه او څۀ چې د دې دواړو په مينځ کښې دی | | | |

([1]) تفسير ابن کثير: ج ۷، ص ۲۵۵ و ۲۵۶

([2]) تفسير القرطبي: ج ۱۶، ص ۱۴۳

بَيۡنَهُمَا لٰعِبِيۡنَ۝ مَا خَلَقۡنٰهُمَآ اِلَّا بِالۡحَقِّ

په منځ ددې دواړو کښې دی | لوبې کونکی | نه دی پیدا کړي مونږه دا دواړه | مګر په حقه سره

بې فائدې نه دی پیدا کړې | او مونږ دا دواړه په ډیر حکمت سره پیدا کړی دي

وَلٰكِنَّ اَكۡثَرَهُمۡ لَا يَعۡلَمُوۡنَ۝ اِنَّ يَوۡمَ الۡفَصۡلِ مِيۡقَاتُهُمۡ

ولیکن اکثر ددوئ نه | نه پوهیږی | بیشکه ورځ دفیصلې | مقرر وخت ددوئ دې |

خو په دوئ کښې زیات خلق نه پوهیږی | بیشکه چې ددې ټولو مقرره نیټه ده

اَجۡمَعِيۡنَ۝ يَوۡمَ لَا يُغۡنِىۡ مَوۡلًى عَنۡ مَّوۡلًى شَيۡـًٔا

دټولو | هغه ورځ | چې په کار به نه راځی | یو دوست | دبل دوست | هیڅ قدرله |

په دغه ورځ به هیڅ یو دوست د بل دوست هیڅ څه په کار نشی..........

وَّلَا هُمۡ يُنۡصَرُوۡنَ۝ اِلَّا مَنۡ رَّحِمَ اللّٰهُ اِنَّهٗ

اونه به دهغوئ | امداد کیدې شی | سوا ددې نه چې په چا | رحم اوکړی الله | بیشکه هغه |

اونه به ورسره مدد اوکړې شی | مګر په چا چې الله ﷻ رحم اوکړی | ..................بیشکه هغه

هُوَ الۡعَزِيۡزُ الرَّحِيۡمُ۝

هم هغه غالب | مهربانه دي

ډیرزبردست مهربان دې |

**آسان ترجمه قرآن**

دا خلق ښکاره وائی. چه: هیڅ نه. بس زمونږ به دا ړومبې مرګ وی، او مونږ لره به دوباره نشی ژوندې کولې. که تاسو رښتونی یئ نو زمونږ پلار نیکه راولئ. آیا دا خلق بهتر دی، یا قوم د تبع. او هغه خلق چه ددوی نه مخکښې وو؟ مونږ هغې ټولولره هلاک کړل (ځکه چه) هغوی یقیناً مجرمان خلق وو. او مونږ آسمانونه او زمکه او ددې په مینځ کښې شیزونه بے فائدې د لوبو دپاره نه دی پیدا کړې. مونږ دې لره برحق مقصد دپاره پیدا کړې دی لیکن په دوی کښې اکثر خلق نه پوهیږی. حقیقت دادې، چه د فیصلې ورځ ددې ټولو مقرر کړې شوې نیټه ده په هغه ورځ به یو حمایتی د بل حمایتی په هیڅ کار نه راځی، او نه به دوی کښې چاسره مدد کولې شی. سوا د هغه کس نه چه په هغه باندې الله تعالیٰ رحم اوکړی. یقیناً هغه د مکمل اقتدار مالک هم دې، او ډیر مهربان هم دې.

**خلاصه تفسیر**

﴿اِنَّ هٰٓؤُلَآءِ لَيَقُوۡلُوۡنَ۝﴾ [دا خلق] د قیامت وعدې اوری او دقیامت نه انکار کوی او [وائی ﴿اِنۡ هِىَ اِلَّا مَوۡتَتُنَا الۡاُوۡلٰى﴾ اخری حالت بس دا زمونږ ددنیا مرګ دې ﴿وَمَا نَحۡنُ بِمُنۡشَرِيۡنَ۝﴾ او مونږ به دوباره ژوندی نه شو] مطلب داچه اخری حالت هغه بغیر وی زندګی نه ده بلکه عام دغه دنیوی مرګ بس آخری حالت دې چه ددې نه پس هیڅ حالت نشته [پس] اے مسلمانانو ﴿فَاۡتُوۡا بِاٰبَآئِنَآ اِنۡ كُنۡتُمۡ صٰدِقِيۡنَ۝﴾ [که تاسو] د اخرت په دعوی کښې [رښتونی یئ نو] انتظار به څوک کوی اوس [زمونږ پلارانو نیکونولره] ژوندی کړئ [راوړئ موجود کړئ] وړاند د دوی په کفریاتو

باند زور نه ده چه ﴿اَهُمْ خَيْرٌ اَمْ قَوْمُ تُبَّعٍ﴾ [دوی لره لږ سوچ پکار دي چه دا خلق] په قوت او شوکت کښې [زيات لوئ شوی وو يا دتبع] بادشاه ديمن [قوم ﴿وَّالَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ﴾ اوکوم قومونه چه ددوی نه وړاند تيرشوی دی] مثلا عاديان ثموديان وغيره يعنی دا قومونه ډير زيات شوی وو مګر ﴿اَهْلَكْنٰهُمْ﴾ [مونږ هغو لره] هم [هلاك كړل] محض په دې وجه چه ﴿اِنَّهُمْ كَانُوْا مُجْرِمِيْنَ﴾ [هغوی نافرمان وو] پس دا خلق که دنافرمانۍ نه واپس نه شول نو دوی به څنګه خانونه بچ کړې شی [او] وړاند دقيامت د صحت او حکمت بيان دې چه ﴿وَمَا خَلَقْنَا السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا لٰعِبِيْنَ﴾ [مونږ اسمانونو اومزکې لره او څه چه ددې په مينځ کښې دی دې لره په دې طور سره نه دی جوړکړی چه مونږه عبث کار کونکی يو] بلکه ﴿مَا خَلَقْنٰهُمَآ اِلَّا بِالْحَقِّ﴾ [مونږ دې دواړو لره] د دوی دنور مخلوقاتو سره [په څه حکمت باند جوړکړی دی] مثلا د دوی نه يو خو دالله تعالی په کامل قدرت باند دلالت کيدې شی دويم ترې نه د جزا او سزا ثبوت ملاويږی ﴿وَلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ﴾ [ليکن اکثرخلق نه پوهيږی] چه کوم ذات دداسې عظيمو اجسامو په اول وار پيداکولو باند قادر دې هغه ددې په دوباره پيداکولو هم قادر دې ﴿اِنَّ يَوْمَ الْفَصْلِ مِيْقَاتُهُمْ اَجْمَعِيْنَ﴾ [بيشکه د فيصلې ورځ] يعنی د قيامت ورځ [ددې ټولو] د دوباره ژوند کيدو او دجزا او سزا ملاويدو [وخت مقرردې] چه وقوع به ئې په خپله موقع ضرورروی وړاند د قيامت څه واقعات دی يعنی ﴿يَوْمَ لَا يُغْنِيْ مَوْلًى عَنْ مَّوْلًى شَيْئًا﴾ [په کومه ورځ چه يودوست دبل دوست يوه ذره په کاررانه شی ﴿وَّلَا هُمْ يُنْصَرُوْنَ﴾ اونه] بل څوك د چا د طرف نه مثلا د دوی د اټکلی خدايانو دطرف نه به [د دوی څه حمايت کولې شی ﴿] اِلَّا مَنْ رَّحِمَ اللّٰهُ﴾ البته مګر په چا چه الله تعالی رحم وکړی] چه په رحمت سره دده په حق کښې دباری تعالی په اجازت سره شوې سفارش په کار راشی او الله تعالی به دده مددګار وی ﴿اِنَّهٗ هُوَ الْعَزِيْزُ الرَّحِيْمُ﴾ [هغه] الله [زبردست دې] دکافرانونه به بدله واخلی [مهربانه دې] په مسلمانانو به رحمت وکړی

## معارف او مسائل

﴿فَاْتُوْا بِاٰبَآئِنَآ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ﴾ قرآن عظيم الشان د دوئ د اعتراض جواب په دې وجه ورنکړو چې با لکل ظاهر وو ، او هغه دا چې د ټولو انسانانو د دوباره ژوندی کيدلو دعوی آخرت کښې کولې شی. هغه وخت کښې به الله ﷻ ټول خلق ژوندی کړی. دنيا کښې مرګ او ژوند د قدرت د يو خاص قانون او مصلحت پابند دې. که الله ﷻ دې وخت کښې چا ته بل ژوند نه ورکوی نو دا ددې خبرې دليل څنګه شو چې په آخرت کښې به هم دوباره نشی ژوندی کولې. منطقی لحاظ سره ددې تعبير داسې کولې شی چې د مقيد عدم وقوع د مطلق عدم وقوع لره مستلزم نشی کيدلې. [بيان القرآن][1]

﴿اَهُمْ خَيْرٌ اَمْ قَوْمُ تُبَّعٍ﴾ قرآن کريم کښې د قوم تبع ذکر دوه ځل راغلې دې. يو دلته او بل په سورة ق کښې راغلې دې. خو دواړو ځايونو کښې دده قوم صرف نوم مذکور دې. او څه مفصل واقعه نشته دې. په دې وجه مفسرينو په دې باره کښې اوږده بحثونه کړی دی چې ددې څخه کوم خلق مراد دی؟

[1]) بيان القرآن: ج ۱۰، ص ۱۰٤

واقعه څه دا شان ده چې تبع د یو معین سړي نوم نه دي بلکه دا د یمن دحمیري بادشاهانو لقب وو. دغه بادشاهانو په یمن باندې څه وخته پورې حکومت کړې وو او د دوئ دارالخلافه د یمن مغربي حصه وه. دوئ د عربو، شام، عراق او د افریقې په څه حصه باندې حکومت کړې وو. په دې وجه د تبع جمع تبابع رازي. او دې بادشاهانو ته تبابعة یمن وئیلې شي. دلته ددې تبابعه څخه کوم تبع مراد دې؟ دې باره کښې د ابن کثیر رحمه الله تحقیق زیات راجح معلومیږي چې ددې څخه مراد تبع اوسط دې چې دهغه نوم اسعد ابوکریب بن ملکیکرب یماني دې.

دا بادشاه د نبي کریم ﷺ د پیدائش نه کم از کم اووه سوه کاله مخکښې تیر شوېدې. او په حمیري بادشاهانو کښې د حکومت تولو نه زیات وو. دهٔ په خپل دور کښې ډیرې علاقې فتح کړې وې او تر سمرقند پورې رارسیدلې وو. د محمد بن اسحاق رحمه الله نه روایت دې چې هم ددې فتوحاتو په دوران کښې هغه یو ځل په مدینه منوره باندې تیر شو او په دې ئې دحملې کولو اراده اوکړه. مدینې والو دا طریقه اختیار کړه چې د ورځې به ئې هغه سره جنګ کولو او د شپې به ئې دهغه میلمستیا کوله. په دې ورته شرم ورغلو او مدینې والو سره ئې د جنګ کولو اراده منسوخ کړه. دې دوران کښې دوه یهودي عالمانو هغه ته اووئیل چې ته دا ښار نه شې قبضه کولې ځکه چې دا د نبي آخرالزمان محمد ﷺ د هجرت ځائې دې. دهٔ هغه یهودیان ځان سره کړل او یمن ته راغلو او د یهودیانو تعلیم و تربیت نه ډیر متاثره شو او موسوي دین ئې قبول کړو. اودا دین په هغه وخت کښې حق دین وو. بیا ددهٔ قوم ددهٔ نه متاثره شو او ایمان ئې راؤړو. خو دهغه د وفات نه پس دا قوم بیا ګمراه شو. او هغوئ بت پرستي او آتش پرستي شروع کړه او ددې په نتیجه کښې په هغوئ باندې دالله تعالی عذاب نازل شو اوددې تفصیلي بیان په سورة سبا کښې راغلې دې. [خلاصه از تفسیر ابن کثیر رحمه الله ص: ۱۴۴ ج: ۴][1] ددې واقعې نه دا معلومه شوه چې د کوم چې تبع دې ځائې کښې ذکر دې هغه پخپله اسلام قبول کړې وو. البته دده قوم روستو ګمراه شوې وو. هم دا وجه ده چې قرآن عظیم الشان دوه ځایونو کښې د قوم تبع ذکر دې د تبع نه دې. ددې تائید سهل بن سعد رضی الله عنه او ابن عباس رضی الله عنهما روایتونو نه کیږي، او دا روایتونه ابن ابي حاتم رحمه الله، امام احمد رحمه الله او طبراني رحمه الله وغیره روایت کړي دي چې نبي کریم ﷺ اوفرمائیل: ﴿لاتسبوا تبعا فانه قد كان اسلم﴾ [تبع ته بد مه وائې ځکه چې هغه اسلام قبول کړې وو] [حواله مذکوره][2].

﴿مَا خَلَقْنَاهُمَا إِلَّا بِالْحَقِّ وَلَكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ﴾ [مونږ دا دواړه یعنې زمکه او آسمان په حکمت سره جوړ کړي دي خو اکثر خلق نه پوهیږي] مطلب دادې چې که ښه په عقل سره سوچ اوکړې شي نو په آسمان کښې او زمکه کښې چې کوم مخلوقات پیدا کړې شوي دي هغه ټول په ډیرو حقائقو باندې دلالت کوي. لکه یو په قدرت خداوندي باندې. بل د آخرت په امکان باندې، ځکه چې کوم ذات دا عظیم اجسام د عدم وجود نه وجود کښې راوستل نو یقینا هغه په دې قادر دې چې دا بیا یو ځل فناه کړي او دوباره به ئې بیا راژوندي کړي. دریم د جزا او سزا په ضرورت

[1] تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة: ج ۷، ص ۲۵۶ نه ۲۵۸ پورې.
[2] تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة: ج ۷، ص ۲۵۶ نه ۲۵۸ پورې، ومسند احمد، حدیث ابی مالک سهل بن سعد رضی الله عنه، رقم الحدیث: ۲۲۸۸۰، والمعجم الکبیر للطبراني، رقم الحدیث: ۵۸۸۱، ومجمع الزوائد، رقم الحدیث: ۱۳۰۳۰

باندې، ځکه که سزا او جزا نه وی نو دا کارخانهٔ وجود بیکاره ده. ددې د تخلیق مقصد دادې چې دا دارالامتحان جوړه کړې شی. او دې نه پس په آخرت کښې سزا او جزا ورکړې شی. ګنې د نیک او بد انجام به یو شی. او دا دالله تعالی د شان نه لرې خبره ده. ټلورم دې کائنات کښې چې څوك سوچ کوی نو هغوئ ته دالله تعالی د اطاعت توفیق ملاویږی. ځکه چې دا ټول مخلوقات ددې لوئې انعام دې. او بنده باندې واجب دی چې ددې نعمت شکر اداکړی. ددې د خالق اطاعت اوکړی.

إِنَّ شَجَرَتَ الزَّقُّومِ ۝ طَعَامُ الْأَثِيمِ ۝

|بیشکه ونه د زقوم | خوراك دګنهګار دې |

| ............بیشکه د زقوم ونه به د ګناهګارو خوراک وی

كَالْمُهْلِ ۚ يَغْلِي فِي الْبُطُونِ ۝ كَغَلْيِ الْحَمِيمِ ۝

پشان دخیرې دتیلو دویخ | ایشیږی به | په خیټو کښې | پشان دایشیدلو ګرمو اوبو |

لکه د تیلو د ویخ خیرې | په خیټو کښې به ویشیږی | لکه څنګه چې ګرمې اوبه ویشیږی

خُذُوهُ فَاعْتِلُوهُ إِلَىٰ سَوَاءِ الْجَحِيمِ ۝ ثُمَّ صُبُّوا فَوْقَ رَأْسِهِ

اونیسئ دې | پس راکاږئ دې | منځ د دوزخ ته | بیا واړوئ | دپاسه دسر دده

[حکم به اوشی]دې راونیسئ | او ددوزخ مینځ ته ئې راکاږئ | بیا د ده په سر باندې تکلیف ورکونکی

مِنْ عَذَابِ الْحَمِيمِ ۝ ذُقْ إِنَّكَ أَنْتَ الْعَزِيزُ الْكَرِيمُ ۝ إِنَّ هَٰذَا

دعذاب دګرمو اوبو نه | اوڅکه | بیشکه ته | غالب او عزتمند ئې | بیشکه دا

ګرمې اوبه تویې کړئ | [اوبه وئیلې شی]ددې خوند اوڅکه | ته خو غالب عزت مند سړې وې

مَا كُنْتُمْ بِهِ تَمْتَرُونَ ۝ إِنَّ الْمُتَّقِينَ

هغه څیز دې | چې وئ تاسو | په باره ددې کښې | چې شك به مو کولو | بیشکه متقیان خلق |

داهغه عذاب دې چې تاسو به د دې په راتلو کښې شک کولو | ..........بیشکه پرهیزګار خلق

فِي مَقَامٍ أَمِينٍ ۝ فِي جَنَّاتٍ وَعُيُونٍ ۝ يَلْبَسُونَ مِنْ سُنْدُسٍ

به وی په ځائ | دامن کښې | په باغونو اوچینو کښې | چې اغوندی به جامې | دنرمو تازګو ریښمونه

به دامن په ځائې کښې اوسیږی | په باغونو او په چینو کښې به وی | دریښمو نرئ او غټې جامې

وَإِسْتَبْرَقٍ مُتَقَابِلِينَ ۝ كَذَٰلِكَ وَزَوَّجْنَاهُمْ

اودغټو ریښمونه | مخامخ به ناست وی یو بل ته | دا به دهغوئ شان وی | او ورواده به کړو مونږ هغوئ ته

به اغوندی | یو بل ته مخامخ به ناست وی | داخبره هم دغسې ده | اومونږ به ورته سړې سپینې

بِحُورٍ عِينٍ ۝ يَدْعُونَ فِيهَا بِكُلِّ فَاكِهَةٍ

سرې سرې ښځې | غټ سترګې | او غواړی به هغوئ | په هغې کښې | هر قسم میوې

دغټو سترګو والا ښځې واده کړو | هرقسمه میوې به په اطمینان سره راغواړی

آمِنِيْنَ ۝ لَا يَذُوْقُوْنَ فِيْهَا الْمَوْتَ اِلَّا الْمَوْتَةَ الْاُوْلٰى ۚ

په اطمینان سره | نه به څکي هغوئ | په هغې کښې | مرګ | مګر مرګ | اولنې |

........ | دوی به د دنیا د اولنی [تیرشوی] مرګ نه بغیر بل مرګ نه څکی

وَوَقٰىهُمْ عَذَابَ الْجَحِيْمِ ۝ فَضْلًا مِّنْ رَّبِّكَ ۭ ذٰلِكَ هُوَ

او اوبه ساتی هغوئ لره | دعذاب د دوزخ نه | په فضل خپل سره | دطرفه درب ستا نه | دا هغه

او الله ﷻ به ئې د دوزخ دعذاب نه بچ کړی | ..........داټول ستا د رب فضل دي | او هم دغه

الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ۝ فَاِنَّمَا يَسَّرْنٰهُ بِلِسَانِكَ

کامیابی ده لویه | پس بیشکه | آسان کړې دې مونږه دا قرآن | په ژبه ستا سره |

لویه کامیابی ده | ........نومونږ دا قران پاک ستا په ژبه آسان کړې دې

لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُوْنَ ۝ فَارْتَقِبْ اِنَّهُمْ مُّرْتَقِبُوْنَ ۝

دپاره ددې چې دا خلق | نصیحت حاصل کړی | پس انتظار کوه ته | بیشکه دوئ هم انتظار کونکی دی

چې دوئ نصیحت قبول کړی | ..............نو ته انتظار کوه | او دوئ هم انتظار کوی

## آسان ترجمه قرآن

یقین او کړئ، چه د زقوم اونه. د ګناه ګار خوراک به وی. پشان د ویلې کړې شوې تانبې، هغه به د خلقو په ګیډو کښې داسې ځتکیږی. لکه ځتکیدلې اوبه. (فرشتو ته به او وئیلې شی) دا لره اونیسئ، او راکاږئ دا لره مینځ د دوزخ ته. بیا ددا د سر دپاسه د ځتکیدلو اوبو عذاب واړوئ. (اوبه وئیلې شی چه) اوڅکه. ته ئې هغه لوئې صاحب اقتدار، لوئې عزت والا. دا هغه څیز دې، چه د دې باره کښې تاسو شک کولو (بل طرف ته) پرهیزګار خلق به یقیناً د امن او امان په ځائې کښې وی. په باغونو کښې او په چینو کښې. هغوی به یو بل ته مخامخ ناست وی، د سندس او استبرق جامې به ئې اغوستې وی هغوی سره به همداسې معامله کیږی او مونږ به د ښتو ښتو سترګو والا حورو سره ددوی واده او کړو. هغوی به هلته کښې دیږه اطمینان سره هر قسمه میوې راغواړی کوم مرګ چه هغوی ته مخکښې راغلې وو، دهغې نه سوا د بل مرګ مزه به نه څکی، او الله تعالٰی به هغوی لره د دوزخ دعذاب نه محفوظ کړی. دا ټول به ستا د پروردګار دطرف نه فضل وی. (د انسان دپاره) زبردسته کامیابی هم داده غرض (اے پیغمبره علیه السلام مونږ دې قرآن لره ستا په ژبه آسان جوړ کړې دې، دې دپاره چه خلق نصیحت حاصل کړی. اوس ته هم انتظار کوه. او دا خلق هم انتظار کوی.

## خلاصه تفسیر

﴿اِنَّ شَجَرَتَ الزَّقُّوْمِ ۝﴾ [بیشکه دزقوم اونه] چه تحقیق ئې دسوره صافات په دویمه رکوع کښې تیرشوې دي ﴿طَعَامُ الْاَثِيْمِ ۝﴾ [دلوئ مجرم] یعنی کافر [خوراك به وی ﴿كَالْمُهْلِ ۚ﴾ کوم چه] دصورت په مکروهیت کښې [دتیلود ویخ د خیری په شان به وی] او ﴿يَغْلِيْ فِي الْبُطُوْنِ ۝﴾ [هغه به په ګیډه کښې داسې جوش کوی ﴿كَغَلْيِ الْحَمِيْمِ ۝﴾ لکه تیزې ګرمې اوبه چه جوش کوی] او فرښتو ته به حکم وی چه ﴿خُذُوْهُ فَاعْتِلُوْهُ اِلٰى سَوَآءِ الْجَحِيْمِ ۝﴾ [دې ونیسئ بیا ئې راکاږئ د دوزخ مینځ

ته یې ورسوئ ﴿ثُمَّ صُبُّوا فَوْقَ رَأْسِهِ مِنْ عَذَابِ الْحَمِيمِ﴾ بیا دده دسرپاسه تکلیف ورکوونکې گرمې اوبه واړوئ] او ده ته به په طور د مسخرې ووئیلې شي چه ﴿ذُقْ إِنَّكَ أَنْتَ الْعَزِيزُ الْكَرِيمُ﴾ [واخله وڅکه ته لوئ عزتمند مکرم وې] داستاتعظیم کیږی لکه چه تابه په دنیا کښې خان عزتمند اومکرم گڼړلو زمونږ داحکامو نه به دشرم کولو او دوزخیانو ته به ووئیلې شي چه ﴿إِنَّ هَٰذَا مَا كُنْتُمْ بِهِ تَمْتَرُونَ﴾ [داهغه شې دې په کوم کښې چه تاسو شك] او انکار[کولو] داخو دکافرانو دوزخیانوحال شو وړاند دایماندارو ذکر دې چه ﴿إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي مَقَامٍ أَمِينٍ﴾ [بیشکه دالله تعالی نه ویریدونکی به دامن] ارام [په ځای کښې وی ﴿فِي جَنَّاتٍ وَعُيُونٍ﴾ یعنی په باغونو کښې او په نهرونو کښې] او ﴿يَلْبَسُونَ مِنْ سُنْدُسٍ وَإِسْتَبْرَقٍ مُتَقَابِلِينَ﴾ [هغوی به لباس اغوندی دباریکو اوپنډو ریښمو مخامخ به یو بل ته ناست وی] ﴿كَذَٰلِكَ وَزَوَّجْنَاهُمْ بِحُورٍ عِينٍ﴾ او دا [خبره دغسې ده اومونږ به ددوی غټوغټو سترگو والۍ حورو سره ودونه وکړو] او ﴿يَدْعُونَ فِيهَا بِكُلِّ فَاكِهَةٍ آمِنِينَ﴾ [هلته به په اطمنان سره د هرقسم میوې راغواړی] او ﴿لَا يَذُوقُونَ فِيهَا الْمَوْتَ إِلَّا الْمَوْتَةَ الْأُولَىٰ﴾ [هلته به هغوی بغیر د هغه مرگ نه کوم چه په دنیاکښې راغلې وو دبل مرگ خوند هم ونه څکی] یعنی مرۀ کیږی به نه ﴿وَوَقَاهُمْ عَذَابَ الْجَحِيمِ﴾ [او الله تعالی به دوی لره د دوزخ نه] هم [بچ کړی] او ﴿فَضْلًا مِنْ رَبِّكَ﴾ [دا هرڅه به ستا درب په فضل سره وی ﴿ذَٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ﴾ لویه کامیابی داده] او اے پیغمبر ﷺ ستاکار دومره دې چه ته دوی ته ووایه ﴿فَإِنَّمَا يَسَّرْنَاهُ بِلِسَانِكَ﴾ [پس] په دې غرض سره [مونږ دې قرآن لره ستاپه ژبه] عربئ [کښې اسان کړو ﴿لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُونَ﴾ چه دوی] په دې باند پوه شی ددې نه [نصیحت قبول کړی نو] که داخلق نه منی ﴿فَارْتَقِبْ إِنَّهُمْ مُرْتَقِبُونَ﴾ نو [ته] په دوی دمصیبتونو دنزول [منتظر اوسه داخلق هم] په تادمصیبتونو دنزول [منتظردی] پس ته دتبلیغ نه سوا نور فکر مه کوه او مه په مخالفت غم کوه د دوی معامله خدائ ته وسپاره او صبر کوه دوئ به په خپله پوهه شی

## معارف او مسائل

دې آیتونو کښې د آخرت څه احوال بیان شوېدې . او د عادت مطابق دلته هم قرآن عظیم الشان د دوزخ او جنت دواړو احوال بیان کړی دی.

﴿إِنَّ شَجَرَتَ الزَّقُّومِ﴾ د زقوم متعلق څه ضروري خبرې سورة صافات کښې بیان کړې شوی دی. هغه ځائې کښې دې اوکتلې شی. دلته صرف دومره خبره قابل ذکر ده چې د قرآن عظیم الشان ددې آیتونو مبارکو څخه دا خبره راوځي مترشح کیږی چې کفارو ته به زقوم جهنم ته د داخلیدو څخه وړاندې څکولې شی. څکه چې دلته د زقوم څکولو څخه روستو دا حکم دې چې دوئ په راښکو راښکو جهنم مینځ ته بوځئ. دې څخه علاوه د سورة واقعه آیت مبارك ﴿هَٰذَا نُزُلُهُمْ يَوْمَ الدِّينِ﴾(۱) څخه هم ځینې حضراتو هم دا گڼړلی دی څکه چې نزل ددوئ په نزد اصلا د میلمه هغه تواضع اوخاطر او عزت کولو ته وئیلې شی چې د اصل دعوت څخه مخکښې اوکړې شی. روستو چې کوم خوراك ورکولې شی هغې ته ضیافت یا مادبة وئیلې شی. هسې خو قرآنی آیتونو کښې ددې احتمال هم شته دې چې زقوم به جهنم ته د داخلیدو څخه روستو ورکولې

---

(۱) ترجمه: دے خلقو ته به دقیامت په ورځ دا دعوت وی.

شي. نو بيا دې صورت کښې به د نزل استعمال د دعوت اصل خوړولو معنی کښې توسعاوی ، او زير تفسير آيت مبارك کښې چې ددې نه پس جهنم ته د راښکلو ذکر دې دهغې مطلب به داوی چې هغه خو اول نه جهنم کښې وو خو زقوم خوړلو نه پس به هغه نور ذليله کړې شي او تکليف به ورته ورکړې شي او د دوزخ مينځ ته به داخل کړې شي. [ملخص ازبيان القرآن](۱)

﴿إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي مَقَامٍ أَمِينٍ﴾ ددې آيتونو په ذريعه د جنت د نعمتونو طرفته اشاره کړې شوې ده. او دنعمت تقريبا ټول اصناف جمع کړې شوی دی. ځکه چې د انسانی ضرورت عموما دا څيزونه وی. ① ښکلې استوګنه ② ښکلې لباس ③ ښکلې د ژوند ملګرې ④ بهتر ماکولات ⑤ بيا ددې ټولو نعمتونو دباقی پاتې کيدو ضمانت ⑥ د تکليف او غم څخه مکمل طور په امن کښې د اوسيدو يقين.

دې ځائې کښې دا شپږ خبرې جنتيانو دپاره ثابت کړې شوی دی لکه څنګه چې په دې شپږو آيتونو باندې د غور کولو څخه واضح کيږی. دلته د جنتيانو د استوګنې ځائې ته امين يعنی پرامن وئيلې شوی دی يعنی د امن ځائې. او دې سره ئې دې طرفته اشاره کړې ده چې د انسانی استوګنې دټولو څخه قابل تعريف صفت دهغه ځائې امن او خطرو څخه پاك کيدل دی.

﴿سُنْدُسٍ وَإِسْتَبْرَقٍ مُتَقَابِلِينَ﴾ د ادواړه د ريښمو کپړو نومونه دی. سندس نرئ ريښمی کپړې ته وائی او استبرق غټې ريښمی کپړې ته وائی.

﴿وَزَوَّجْنَاهُمْ بِحُورٍ عِينٍ﴾ دتزويج معنی اصل کښې ده. يو لره دبل جوړا ګرځول. دې نه پس دا لفظ د نکاح په معنی په کثرت سره استعمال شو. دې ځائې کښې دواړه معنې کيدې شی. د دويمې معنی لحاظ سره به مطلب دا شی چې د جنتيانو سرو به باقاعده حورو سره نکاح کيږی. او جنت کښې به اګر چې هيڅ انسان احکامو مکلف نه وی. اودا عقد ونکاح به په طور د اکرام اواعزاز وی ځکه په کښې هيڅ اشکال نشته دې. او که اوله معنی واخستې شی نو مطلب به داشی چې حورعين به د جنتيانو سرو جوړې اوګرځولې شی. اودوئ ته به دا جنتی حورې په طور دهبه ورکړې شی. اودې دپاره به د دنيا پشان د عقد ضرورت نه وی.

﴿لَا يَذُوقُونَ فِيهَا الْمَوْتَ إِلَّا الْمَوْتَةَ الْأُولَىٰ﴾ مطلب دادې چې کوم يو مرګ يو ځل راغلو بس هغه راغلو ، دې نه پس به په دوئ باندې مرګ نه راځی. او دا خبره اګر چې جهنم والو ته به هم حاصله وی. ليکن ښکاره خبره ده چې دا به هغوئ دپاره زياته دتکليف باعث وی. او د جنيتانو په خوشحالئ کښې به زياتوالئ کيږی. ځکه يو نعمت که هر څومره لوئې وی خو هر کله چې په دې کښې د زوال قصور راشی نو ددې نه لازما کدورت پيدا کيږی. او کله چې جنتيان دا تصور اوکړی چې زمونږ به دا نعمتونه هيڅ کله نشی اخستې کيدلې نو دې نه به دهغوئ به خوشحالو کښې اضافه کيږی.

الحمد لله چې نن په شپږ رجب ۱۳۹۲ هجری
د پنشجنبې په ورځ د ماسختن په وخت کښې د سورة دخان تفسير مکمل شو
ولله الحمد اولا واخرا وصلی الله تعالی علی خير خلقه محمد واله اصحابه اجمعين

(۱) تفسير بيان القرآن: ج ۱۰، ص ۱۰۵

| اياتونه | سورة الجاثية مكية وهي سبع وثلاثون اية واربع ركوعات | ركوع گاني |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ۳۷ | شروع كوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم كونكې دې | ۴ |

حٰمٓ ۝ تَنْزِيْلُ الْكِتٰبِ مِنَ اللهِ الْعَزِيْزِ الْحَكِيْمِ ۝

ح م | نازليدل ددې كتاب | دطرفه دالله نه دى | چې غالب دې | او حكمت والا دې |

حم | ددې كتاب نازليدل دالله ﷻ دطرفه دى | چې زبردست او صاحب د حكمت دې

اِنَّ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ لَاٰيٰتٍ لِّلْمُؤْمِنِيْنَ ۝

بيشكه | په آسمانونو كښى | او په زمكه كښى | خامخا ډيرې نښې دى | دپاره دمومنانو |

په آسمانونو او زمكه كښې دايمان دارو خلقو دپاره [دالله د وحدانيت] ډيرې نښې دى

وَفِيْ خَلْقِكُمْ وَمَا يَبُثُّ مِنْ دَآبَّةٍ اٰيٰتٌ

او په پيدائش ستاسو كښى | او په هغې كښى چې الله خوروى | دخناورونه | ډيرې نښې دى |

اوپخپله ستاسو په پيدائش كښې او خومره ساه لرونكى ځيزونه چې دى په دې ټولو كښې د يقين

لِّقَوْمٍ يُّوْقِنُوْنَ ۝ وَاخْتِلَافِ الَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَمَآ

دپاره دهغه قوم چې يقين كوى | او په اختلاف دشپې | او دورځ كښى | او په هغې كښى |

لرونكو دپاره ډيرې نښې دى | او دشپې په پرله پسې تګ راتګ كښې او كوم رزق چې الله تعالى

اَنْزَلَ اللهُ مِنَ السَّمَآءِ مِنْ رِّزْقٍ فَاَحْيَا بِهِ الْاَرْضَ

چې نازل كړې دې الله | دآسمان نه | درزق [باران] نه | پس ژوندۍ ئې كړه | په هغې سره | زمكه |

د آسمان د طرفه نازلوى | نو په هغې باندې د مرګ [اوچوالى] نه پس زمكه ژوندۍ

بَعْدَ مَوْتِهَا وَتَصْرِيْفِ الرِّيٰحِ اٰيٰتٌ لِّقَوْمٍ

روستو | دمرګ دهغې نه | او په چليدلو | دهواګانو كښى | ډيرې نښې دى | دپاره دهغه قوم |

[تازه] كوى | او د بادونو په اوريدو رااوريدو كښې دهوښيارانو دپاره ډيرې نښې دى

يَّعْقِلُوْنَ ۝ تِلْكَ اٰيٰتُ اللهِ نَتْلُوْهَا عَلَيْكَ بِالْحَقِّ

چې دعقل نه كار اخلى | دا نښې دالله دى | چې مونږه بيانوو دا | تاته | دحق سره |

............دا دالله ﷻ آيتونه دى | چې مونږ ئې تاته په حق سره آوروو

فَبِاَيِّ حَدِيْثٍۭ بَعْدَ اللهِ وَاٰيٰتِهٖ يُؤْمِنُوْنَ ۝ وَيْلٌ

پس په كومه خبره باند به | روستو دالله نه | او دنښو دهغه نه ايمان راوړى دوئ | تباهى ده |

نو دا خلق به دالله ﷻ اودهغهٔ د آيتونو نه پس په كومه خبره ايمان راوړى | د هر دروغژن

لِّكُلِّ اَفَّاكٍ اَثِيْمٍ ۙ يَّسْمَعُ اٰيٰتِ اللّٰهِ تُتْلٰى عَلَيْهِ ثُمَّ

دپاره دهر دروغژن | گنهگار سړی | چې اوري | آيتونه دالله | چې لوستلې کيږي | په هغه باند | بيا

نافرمان دپاره تباهي ده | ............ چې دالله ﷻ آيتونه کوم چې ده ته اورولې شي آوري

يُصِرُّ مُسْتَكْبِرًا كَاَنْ لَّمْ يَسْمَعْهَا ۚ فَبَشِّرْهُ

ټينګتيا کوی | په غرور سره | لکه چې هغه نه دي اوريدلی هغه | پس زيري ورکړه هغه ته |

نوپه خپل غرور کښې پروت وی | لکه چې هډو آوريدلي نې نه وی | نوته داسې کس ته

بِعَذَابٍ اَلِيْمٍ ۝ وَاِذَا عَلِمَ مِنْ اٰيٰتِنَا شَيْئًا اتَّخَذَهَا

په عذاب | دردناک سره | او هر کله چې | پوهه شي | دآيتونو زمونږ نه | په څه څيز | نو نيسي هغه

ددردناک عذاب زيرې ورکړه | او څه وخت چې زمونږ په آيتونو کښې ديو آيت نه خبر شي | نو په هغې

هُزُوًا ۗ اُولٰٓئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ ۝ مِنْ وَّرَآئِهِمْ

په توقو سره | دا خلق چې دی | دپاره ددوئ | عذاب سپکونکې دې | په مخکښې ددوئ |

پورې توقې کوی | داسې خلقو دپاره سپکونکې عذاب مقرر دې | ........ددوئ نه مخکښې

جَهَنَّمُ ۚ وَلَا يُغْنِيْ عَنْهُمْ مَّا كَسَبُوْا شَيْئًا وَّلَا

دوزخ دې | او دفع به نه کړي ددوئ نه | هغه عمل | چې کړې وئ دوئ | هيڅ څيز | اونه

دوزخ تيار دې | دوی چې په دنيا کښې څه کړی وی هغه به ورته هيڅ فائده ورنکړی | اونه به ورته هغه

مَا اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ اَوْلِيَآءَ ۚ وَلَهُمْ عَذَابٌ

هغه [سرپرستان] | چې نيولي دي دوئ | ماسوا دالله نه | سرپرستان | او دپاره دهغوئ | عذاب

معبودان څه فائده ورکړي کوم چې دوی دالله ﷻ نه سوا خان دپاره دوستان نيولی وو | اوهغوئ دپاره لوئې عذاب

عَظِيْمٌ ۝ هٰذَا هُدًى ۚ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِاٰيٰتِ رَبِّهِمْ

لوئ دې | دا قرآن | هدايت دې | او هغه کسان | چې انکار ئې اوکړو | دآيتونو درب خپل نه |

مقرر دې | دا [قرآن پاک سراسر] هدايت دې | اوچا چې دخپل رب د آيتونونه انکار کړې دې

لَهُمْ عَذَابٌ مِّنْ رِّجْزٍ اَلِيْمٌ ۝

دپاره دهغوئ | عذاب دې | دعذاب دردناک نه |

هغوئ دپاره دسختئ نه ډک عذاب تيار دې |

## آسان ترجمه قرآن

حٰمٓ. داکتاب د الله تعالیٰ د طرف نه نازلولې شی. چه لوئې صاحبِ اقتدار او لوئې حکمت والا دې. حقيقت داد ې. چه په آسمانونو او زمکه کښې د منونکو دپاره ډيرې نښې دی. او خپله ستاسو په پيدائش کښې هم ، او په هغې څناورو کښې چه هغه په زمکه کښې خواره کړې دی، د هغې خلقو دپاره لوئې نښې دی. چه يقين لری. او د شپې او ورځې په تلو راتلو کښې او الله تعالیٰ چه د آسمان نه د رزق کومه ذريعه راليږلې ده، بيائې هغې سره زمکې ته د هغې د مرګ نه پس نوې ژوند ورکړو په هغې کښې او د هواګانو په الوتلو کښې.

دهغې خلقو دپاره لوئې لښې دي، چه د عقل نه کار اخلي. دا د الله تعالیٰ آیتونه دي چه مونږ تاسو باندې صحیح صحیح اوروؤ. اوس د الله تعالیٰ او د هغه د آیتونو نه پس څه خبره ده، چه په هغې به دا خلق ایمان راؤړي. هلاکت دې، د هر هغه دروغژن او ګنهګار دپاره. چه د الله تعالیٰ آیتونه اؤري، هرکله چه هغه لوستلې کیږي په ده باندې، بیا هم د تکبر په حالت کښې په کفر باندې داسې اصرار (ټینګوالې) کوي، لکه چه هغه زمونږ آیتونه اوریدلي هم نه وي لهٰذا داسې سړي ته د دردناک عذاب خوشخبري واؤروه. او کله چه زمونږ په آیتونو کښې یو آیت د داسې سړي په علم کښې راشي، نو هغې پورې توقې کوي، داسې کس دپاره به عذاب وي، چه هغوي به ذلیله کړي، ددوي مخښې ته به جهنم وي، او کوم کسب چه دوي کړې دې، هغه به ددوي هیڅ پکار رانشي، او نه به هغه (معبودان) په کار راشي، کومو لره چه دوي د الله تعالیٰ نه سوا کارسازان ګرځولي دي، او دوي دپاره یو زبردست عذاب دې. (دا قرآن) سراسر هدایت دې، او کومو خلقو چه د خپل پروردګار د آیتونو نه انکار کړې دې دهغوي دپاره ډیر دردناک عذاب دې.

## خلاصه تفسیر

﴿حٰمٓ ۚ تَنۡزِیۡلُ الۡکِتٰبِ مِنَ اللّٰهِ الۡعَزِیۡزِ الۡحَکِیۡمِ ۝﴾ [حمٓ دا نازل کړې شوې کتاب دې دالله تعالیٰ غالب حکمت والا دطرف] اوهرکله چه دا داسې کتاب دې نو ددې مضامین ښه په توجه سره اؤریدل په کار دي چنانچه په دې مقام یو مضمون خو دتوحید دې چه بیان يې دادې چه ﴿اِنَّ فِی السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضِ لَاٰیٰتٍ لِّلۡمُؤۡمِنِیۡنَ ۝ؕ﴾ [په اسمانونو او په مزکه کښې دایماندارو [د استدلال] د پاره ډیر دلیلونه [د قدرت او توحید [دي او] دغه شان ﴿وَفِیۡ خَلۡقِکُمۡ وَمَا یَبُثُّ مِنۡ دَآبَّةٍ اٰیٰتٌ لِّقَوۡمٍ یُّوۡقِنُوۡنَ ۝ۙ﴾ [په خپله ستاسو او دهغو حیواناتو په پیداکولو کښې کومو لره چه يې] په مزکه [خواره کړې دي] دارنګ [دلیلونه] د قدرت اوتوحید [دي دهغو خلقو د] پوهیدو د [پاره کوم چه یقین لري او] دغه شان ﴿وَاخۡتِلَافِ الَّیۡلِ وَالنَّهَارِ﴾ [دشپې او ورځې په یو بل پسې په تلو راتلو کښې او] دغه شان ﴿وَمَاۤ اَنۡزَلَ اللّٰهُ مِنَ السَّمَآءِ مِنۡ رِّزۡقٍ﴾ [په هغه] ماده د [رزق کښې کوم لره چه الله تعالیٰ داسمان نه نازل کړو] مراد باران دې ﴿فَاَحۡیَا بِهِ الۡاَرۡضَ بَعۡدَ مَوۡتِهَا﴾ [بیا په هغه] باران [سره مزکه تروتازه کړه دهغې داوچیدونه پس او] دغه شان ﴿وَتَصۡرِیۡفِ الرِّیٰحِ اٰیٰتٌ لِّقَوۡمٍ یَّعۡقِلُوۡنَ ۝﴾ [د هواګانو په بدلیدو کښې] په اعتبار دطرف او کیفیت چه کله مشرقي وي او کله مغربي کله ګرمه وي کله یخه غرض په دې ټولو څیزونو کښې [دلیلونه] د قدرت او توحید موجود [دي د هغو خلقو دپاره کوم چه] سلیم [عقل لري] په دې سره په توحید داستدلال طریقه په دویمه پاره [ان فی خلق السموٰت الخ] کښې تیره شوې ده او دویم مضمون دنبوت دې دهغې بیان دادې چه ﴿تِلۡکَ اٰیٰتُ اللّٰهِ نَتۡلُوۡهَا عَلَیۡکَ بِالۡحَقِّ ۚ﴾ [دا د الله تعالیٰ ایتونه دي کوم چه په صحیح صحیح طور سره مونږ تاته اورو] چه په دې سره نبوت ثابتیږي لیکن د دومره لوئ معجز دلیل باوجود هم که داخلق نه مني ﴿فَبِاَیِّ حَدِیۡثٍۭ بَعۡدَ اللّٰهِ وَاٰیٰتِهٖ یُؤۡمِنُوۡنَ ۝﴾ [نو بیا دالله تعالیٰ او دهغه د] داسې [ایتونو نه پس به کومه خبره] ددې نه لویه وي چه په هغې [به داخلق ایمان راوړي] او دریم مضمون د اخرت دې چه په دې کښې به دې دحق مخالفینو ته سزا هم وي لکه بیان يې دادې چه ﴿وَیۡلٌ لِّکُلِّ اَفَّاکٍ اَثِیۡمٍ ۝ۙ﴾ [لویه خرابي به وي د هرداسې سړي دپاره کوم چه] د عقیدو متعلق خبرو کښې [دورغژن وي] او په اعمالو کښې [نافرمانه وي] سره ددې چه ﴿یَّسۡمَعُ اٰیٰتِ اللّٰهِ﴾ [دالله تعالیٰ ایتونه اوري] هم ﴿تُتۡلٰی

عَلَيۡهِ﴾[هر کله چه هغه ددهٔ په وړاند لوستلې شی] او ﴿ثُمَّ يُصِرُّ مُسۡتَكۡبِرٗا كَأَن لَّمۡ يَسۡمَعۡهَا﴾[بيا هم هغه تکبر کوونکې] په خپل کفر [داسې ټينګ وی لکه چه دهٔ دې] ايتونو [لره اويدلی نه وی ﴿فَبَشِّرۡهُ بِعَذَابٍ أَلِيمٖ﴾ پس داسې سړی ته د يو درد ناك عذاب خبر واوروه] او دهغه سړی د شرارت داحال دې چه ﴿وَإِذَا عَلِمَ مِنۡ ءَايَٰتِنَا شَيۡـًٔا ٱتَّخَذَهَا هُزُوًا﴾[هر کله هغه زمونږ په ايتونو کښې ديوايت خبرمومی نو خندا اوريوړې کوی ﴿أُوْلَٰٓئِكَ لَهُمۡ عَذَابٞ مُّهِينٞ﴾ د داسې خلقو دپاره] په اخرت کښې [دذلت عذاب دې] مطلب داچه کومو ايتونو لره په تلاوت کښې اوزی هغه دروغژن کوی اوکومو ايتونو نه چه هسې خبرېږی هغه هم درغژن کوی غرض دايتونو په دروغژن کولو کښې ډير زيات شوې دې وړاند ددغه عذاب تعين دې يعنی ﴿مِّن وَرَآئِهِمۡ جَهَنَّمُ﴾[ددهٔ په وړاندې جهنم] راروان [دې او] هغه وخت به ﴿وَلَا يُغۡنِي عَنۡهُم مَّا كَسَبُواْ شَيۡـًٔا﴾[نه خوهغه څيزونه ددهٔ يوه ذره په کار راشی کوم چه يې] په دنيا کښې [ګټلی وو] په دې کښې مالونه او عملونه ټول راغلل ﴿وَلَا مَا ٱتَّخَذُواْ مِن دُونِ ٱللَّهِ أَوۡلِيَآءَ﴾[او نه هغه] به يې په کار راشی [کومو لره چه دوی دالله تعالی نه سوا کار سازان] او معبودان [جوړکړی وو ﴿وَلَهُمۡ عَذَابٌ عَظِيمٌ﴾ او د هغوی دپاره به لوی عذاب وی] او وجه د هغې عذاب داده چه ﴿هَٰذَا هُدٗى﴾[دا قرآن سراسر هدايت دی] او واجب ده چه ومنلې شی [او] ددې مقتضا داده چه ﴿وَٱلَّذِينَ كَفَرُواْ بِـَٔايَٰتِ رَبِّهِمۡ لَهُمۡ عَذَابٞ مِّن رِّجۡزٍ أَلِيمٌ﴾[کوم خلق چه دخپل رب] دې [ايتونو لره نه منی د هغوی دپاره به سخت دردناك عذاب وی].

## معارف او مسائل

﴿حمٓ ۝ تَنزِيلُ ٱلۡكِتَٰبِ مِنَ ٱللَّهِ ٱلۡعَزِيزِ ٱلۡحَكِيمِ﴾دا پوره سورت مکی دې. صرف يو قول دادې چې په دې کښې صرف يو آيت مبارك ﴿قُل لِّلَّذِينَ ءَامَنُواْ يَغۡفِرُواْ لِلَّذِينَ لَا يَرۡجُونَ أَيَّامَ ٱللَّهِ﴾(١) مدنی دې. او باقی مکی دې. خود جمهورو دقول مطابق پوره سورت د هجرت څخه مخکښې نازل شوې دې. او نورو سورتونو په شان ددې سورت بنياد هم دعقائدو د اصلاح دپاره دې. دې کښې د آخرت، رسالت او توحيد عقائد مختلفو طريقو سره ښه مدلل بيان کړې شوی دی. خاص کر د آخرت د اثبات دلائل، دمنکرينو شبهات او دهريانو ترديد، دا په دې کښې ښه په تفصيل سره بيان کړې شوی دی.

﴿إِنَّ فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ لَأٓيَٰتٖ لِّلۡمُؤۡمِنِينَ﴾ ددې آيتونو څخه د توحيد اثبات مقصود دې. دې سره يو شان آيتونه د دويمې پارې په رکوع ﴿إِنَّ فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ﴾ کښې په تفصيل تير شوی دی. هغه ځائې کښې ددې مفصل تفسير مذکور دې. او دا هم چې ددې څخه توحيد ثابتيږی، دواړو ځايونو کښې د عنواناتو څه لږ ډير فرق شته دې، که اهل علم کتل غواړی د امام رازی رحمه الله تفسير کبير کښې اوګوری. البته دا خبره قابل ذکر ده چې دلته د کائنات مختلفې برخې بيانولو څخه روستو فرمائيلې شوی دی چې په دې کښې د ايمان راوړنکو دپاره نښې دی. بل ځائې کښې فرمائی چې د يقين والو دپاره نښې دی. او دريم ځائې کښې فرمائی چې د عقل والو دپاره په دې کښې نښې دی. دې کښې د اسلوب تنوع څخه علاوه دې طرفته اشاره کړې شوې ده چې ددې نښو څخه پوره فائده هغه کس اوچتولې شی چې ايمان قبول کړی

---

(١) ترجمه: ته مومنانو ته ووايه چه هغه خلق دخپل طرف نه معاف وکړی چه دالله تعالی په ورځو يقين نه ساتی.

بل هغه کسانو دپاره مفید کیدې شي چې هغوئ خواه زر ایمان قبول نه کړي خو دهغوئ په زړونو کښې دا یقین پیدا شي چې دا څیزونه په توحید باندې دلالت کوي. ځکه چې هم دا یقین کله کله د ایمان راوړلو سبب جوړ شي. او په دریم نمبر هغه خلقو دپاره مفیدې کیدې شي چې فی الحال اګر چه نه ایماندار وي او نه یقین کولو والا، خو یو عقل سلیم لري او په دې کښې بصیرت سره غور اوکړي. ځکه که کله هم په دې باندې عقل و بصیرت سره په دې نخښو باندې غور اوکړي نو دې سره به ایمان او یقین پیدا شي. خو چې کوم خلق عقل سلیم نه لري او یا په دې معاملاتو کښې خپل عقل سترې کول هم برداشت کوي نو که هغه ته په زرګونو دلیلونه پیش کړشي نو بیا هم ناکافي دي.

﴿وَيْلٌ لِّكُلِّ أَفَّاكٍ أَثِيمٍ﴾ [هغه سړي دپاره ډیره لویه خرابي ده چې دروغژن او نافرمان وي] دې آیت مبارك په شان نزول کښې ډیر روایات دي. د ځینې نه معلومیږي چې دا دحارث بن نضر باره کښې نازل شوې دې. او ځینو روایاتو کښې دي چې د حارث بن کلده باره کښې. او ځینې وائي چې ددې نه مراد ابوجهل او دده ملګري دي [قرطبي]([1]).

او په حقیقت کښې د قرآن عظیم الشان مفهوم دپاره د یو کس متعین کولو ضرورت نشته دې. د کُلُّ نه دا معلومیږي چې اګر که ددې آیت شان نزول ددې دریو واړو کسانو باره کښې شوې وي خو په حقیقت کښې ددې نه مراد هر هغه کس چې دا قسمه صفات په کښې وي.

﴿مِنْ وَرَآئِهِمْ جَهَنَّمُ﴾ د وَرَاءَ لفظ په عربئ کښې د روستو دپاره زیات او مخکښې دپاره کم استعمالیږي. خو اکثرو مفسرینو دې ځائې کښې ددې معنی په مخکښې سره کړې ده. او په خلاصه تفسیر کښې ترجمه ددې مطابق کړې شوې ده. البته ځینو مفسرینو د روستو معنی اخستې ده او مطلب ئې دا اخستې دې چې په د نیا کښې دوئ ځنګه تکبر سره ژوند تیروي یعنی ددوئ شاته ددې نه روستو جهنم راتلونکې دې. [قرطبي رحمه الله]([2]).

| | | |
|---|---|---|
| اَللّٰهُ الَّذِیْ | سَخَّرَ | لَكُمُ |
| الله هغه ذات دې | چې تابع ئې کړو | دپاره ستاسو |

الله ﷻ هغه ذات دې چې ستاسو دپاره ئې سمندر تابع

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| الْبَحْرَ | لِتَجْرِیَ | الْفُلْكُ | فِیْهِ | بِاَمْرِهٖ | وَلِتَبْتَغُوْا |
| دریاب | دپاره ددې چې اوګرځي | کشتئ | په هغې کښې | په حکم دهغه سره | اودپاره ددې چې تاسو تلاش کړئ |

کړې دې چې بیړئ په کښې دهغه په حکم سره رواني دي او ددې دپاره چې تاسو دهغه دفضل

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِنْ فَضْلِهٖ | وَلَعَلَّكُمْ | تَشْكُرُوْنَ ﴿۱۲﴾ | وَسَخَّرَ | لَكُمْ | مَّا |
| دفضل دهغه نه | اودپاره ددې چې تاسو | شکر ادا کړئ | او تابع ئې کړل | دپاره ستاسو | هغه څیزونه |

اولټوئ او ددې دپاره چې تاسو شکر اوباسئ او ځومره څیزونه چې په آسمانونو او په زمکه کښې

[1]) تفسیر القرطبي: ج ۱۶، ص ۱۵۸
[2]) تفسیر القرطبي: ج ۱۶، ص ۱۵۹

فِي السَّمٰوٰتِ　وَمَا　فِي الْاَرْضِ　جَمِيْعًا　مِّنْهُ　اِنَّ

چي په آسمانونو کښي دي | او هغه | چي په زمکه کښي دي | ټول | دطرفه خپل نه | بیشکه

کښي پراته دي | هغه ټول ئې ستاسو دپاره د خپل طرف نه تابع کړي دي | بیشکه په دي کښي د

فِيْ ذٰلِكَ　لَاٰيٰتٍ　لِّقَوْمٍ　يَّتَفَكَّرُوْنَ ⑬　قُلْ　لِّلَّذِيْنَ

په دي کتاب | ډيري نښې دي | دپاره دهغه قوم | چي فکر کوي | اووايه | هغه کسانوته

فکرد خاوندانو دپاره نخښې پرتي دي | ..........ته مومنانو ته اووايه چي هغه خلق

اٰمَنُوْا　يَغْفِرُوْا　لِلَّذِيْنَ　لَا يَرْجُوْنَ　اَيَّامَ اللّٰهِ

چي ایمان راوړو هغوئ | چي ببښنه کوئ | هغه کسانوته | چي امید نه لري هغوئ | دبدو ورځو دالله

............[دخپل اړخ نه] معاف کړي | چي دالله ﷻ په عذابونو یقین نه ساتي |

لِيَجْزِيَ　قَوْمًا　بِمَا　كَانُوْا　يَكْسِبُوْنَ ⑭

دپاره ددې چي بدله ورکړي الله | يو قوم ته | په سبب دهغي عمل | چي وو هغوئ | چي کوۏ به ئې

د دي دپاره چي الله ﷻ يو قوم ته د هغه اعمالو بدله ورکړي کوم چي هغوي کوي

مَنْ عَمِلَ　صَالِحًا　فَلِنَفْسِهٖ　وَمَنْ اَسَآءَ　فَعَلَيْهَا

چاچي عمل اوکړو | نیک | نو دپاره دخان دهغه دي | اوچاچي عمل اوکړويد | نو ضررئې په هغه دي

چاچې دنیکۍ کار اوکړو نو خپل ځان له ئې اوکړو اوڅوک چي بد کوي نو دخپل ځان سره بد کوي

ثُمَّ　اِلٰى رَبِّكُمْ　تُرْجَعُوْنَ ⑮

بیا به | رب ستاسو ته | واپس کړې شئ تاسو |

بیا تاسوټولو دپاره خپل رب ته واپس ورتګ دی |

## آسان ترجمه قرآن

الله تعالى هغه ذات دې، چه هغه سمندر ستاسو په کار باندې لګولې دې، دې دپاره چه دهغه په حکم سره په دې کښې کشتۍ جارۍ وي، او دې دپاره چه تاسو دهغه فضل تلاش کړئ. او دې دپاره چه تاسو شکر ادا کړئ. او په آسمانونو او زمکه کښې چه څه دي، هغې ټولو لره الله تعالى د خپل طرف نه ستاسو په کار باندې لګولي دي، يقيناً په دې کښې د هغې خلقو دپاره لوئې نښې دي، چه د غور او فکر نه کار اخلي، (اے پيغمبره!) کومو خلقو چه ايمان راوړې دې، هغوی ته اووايه، چه کوم خلق د الله تعالى د ورځو نه خطره نه لري دهغوی نه درګذر اوکړئ دې دپاره چه الله تعالى خلقو ته دهغې کارونو بدله ورکړي، کوم چه هغوی کول کوم سرې چه نيک کار کوي، هغه د خپلې فائدې دپاره کوي. او څوک چه بد کار کوي. نو د خپل نقصان دپاره کوي بيا به تاسو ټول خپل پروردګار طرف ته واپس راوستلې شئ.

## خلاصه تفسیر

﴿اَللّٰهُ الَّذِيْ سَخَّرَ لَكُمُ الْبَحْرَ لِتَجْرِيَ الْفُلْكُ فِيْهِ بِاَمْرِهٖ﴾ [الله تعالى هغه ذات دې چاچه ستاسو د] فائدې د [پاره دریاب لره په قابو کښې کړو چه دهغه په حکم سره په دې کښې کشتۍ وچلوی ﴿وَلِتَبْتَغُوْا مِنْ فَضْلِهٖ﴾ اوچه] په دې کشتو کښې سفر وکړئ [تاسو د هغه رزق تلاش کړئ ﴿وَلَعَلَّكُمْ

﴿تَشْكُرُوْنَ﴾ او چه] دغه رزق حاصل کولوسره [تاسو شکر وکړئ او] دغه شان ﴿وَسَخَّرَ لَكُمْ مَّا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ جَمِيْعًا مِّنْهُ﴾ [څومره څيزونه چه په آسمانونو کښې دي او څومره څيزونه چه په مزکه کښې دی دې ټولو لره يې د خپل طرف نه] يعنې په خپل حکم او فضل سره [مسخر [د قدرت] جوړ کړل چه ستاسو د نفع سبب شی ﴿اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّتَفَكَّرُوْنَ﴾ [ېيشکه په دې خبرو کښې د هغو خلقو دپاره دليلونه] دقدرت [دی کوم چه غور کوی] او دکفارو په شرارتونو په څنې وخت مسلمانانو لره غصه راتله وراندې دوئ ته د درګزر کولو حکم دې ﴿قُلْ لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا يَغْفِرُوْا لِلَّذِيْنَ لَا يَرْجُوْنَ اَيَّامَ اللّٰهِ﴾ [ته ايماندارو ته وفرمايه چه د هغو خلقو نه درګزر کوی کوم چه دالله تعالى په معاملاتو] يعنې د اخرت په جزا سزا [يقين نه لری ﴿لِيَجْزِيَ قَوْمًا بِمَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ﴾ چه الله تعالى يو قوم ته] يعنې مسلمانانو ته [د دوی په] دې نيک [عمل باند] غوره [بدله ورکړی] ځکه چه هلته قاعده کليه داده چه ﴿مَنْ عَمِلَ صَالِحًا فَلِنَفْسِهٖ﴾ [کوم سړې نيک کار کوی پس د خپلې ذاتی نفع] او ثواب [دپاره] کوی ﴿وَمَنْ اَسَآءَ فَعَلَيْهَا﴾ [اوکوم سړې چه بدکارکوی نو دهغه وبال په هغه پريوځی ﴿ثُمَّ اِلٰى رَبِّكُمْ تُرْجَعُوْنَ﴾ بيا] دټول نيک او بدکارکولونه پس [به تاسو خپل رب طرف ته واپس کيږئ] پس هلته به تاسو ته ستاسو دښوعملونو او اخلاقو بهترينه بدله او ستاسو مخالفينوته به ددوی دکفر اومعصيت په بدله کښې بدترينه سزا ورکړې شی په دې وجه تاسوله درګذر مناسب دې.

## معارف اومسائل

﴿اَللّٰهُ الَّذِيْ سَخَّرَ لَكُمُ الْبَحْرَ﴾ تر ﴿وَلِتَبْتَغُوْا مِنْ فَضْلِهٖ﴾ قرآن عظيم الشان کښې د فضل تلاش کولو څخه عام طور د ګټې دپاره کوشش کول دی. دلته ددې مطلب دا هم کيدې شی چې تاسوته په سمندر کښې په کشتئ چلولو باندې قدرت په دې وجه درکړې شو چې تاسو ددې په ذريعه تجارت اوکړئ شئ. او دا هم ممکن دی چې د فضل تلاش کولو د کشتئ چلولو سره هيڅ تعلق نه وی بلکه دا په سمندر باندې د غالب کيدو دتسخير مستقل يو قسم وی. چې تاسو دا تلاش کړئ او منافع اوچتې کړئ. د جديد سائنس څخه دا معلوميږی چې په سمندر کښې دومره معدنيات او د زمکې پټ دولتونه دی چې دومره په اوچه باندې نشته دې.

﴿قُلْ لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا يَغْفِرُوْا لِلَّذِيْنَ لَا يَرْجُوْنَ اَيَّامَ اللّٰهِ﴾ ددې آيت مبارك په شان نزول کښې دوه روايات دی. يو دا چې مکه مکرمه کښې يو مشرك د عمر فاروق رضی الله عنه په حق کښې ګستاخی کړې وه او عمر فاروق رضی الله عنه اراده اوکړه چې هغه ته څه تکليف ورکړی. نو په دې دا آيت مبارك نازل شو. ددې روايت مطابق دا آيت مبارك مکی دې.

بل روايت دادې چې د غزوهٔ بنو المصطليق په موقعه باندې نبی کريم صلی الله عليه وسلم او د نبی کريم صلی الله عليه وسلم صحابه کرامو رضی الله عنهم د مريسيع نومی يو کوهی سره نزدې پړاؤ واچولو. دمنافقانوسردار عبدالله بن ابی هم د مسلمانانو په لښکر کښې شامل وو. هغه خپل غلام اوليږلو چې د کوهی نه اوبه راوړه. هغه ايسار شو. عبدالله بن ابی ترې تپوس اوکړو چې ولې ايسار شوې نو هغه ورته اووئيل چې د عمر فاروق رضی الله عنه غلام کوهی په غاړه ناست وو او هغه اووئيل چې تر څو د نبی کريم صلی الله عليه وسلم او د عمر فاروق رضی الله عنه مشکونه نه وی ډك شوی نو چا ته هم د اوبو اجازت نشته دې په دې باندې عبدالله بن ابی اووئيل چې ددوئ دپاره دا مثل په ربښتيا دې چې ﴿سمن کلبك

یا کلك﴾ يعني خپل سپي ښه تيار کړه نو هغه به هم تا خوري. عمر فاروق رضي الله عنه چي کله دا واؤريدل نو توره ئې راواخسته او عبدالله بن ابی طرفته روان شو. نو په دي باندي دا آيت مبارك نازل شو. ددې روايت مطابق دا آيت مبارك مدني دې. [قرطبی و روح المعانی][1] كه ددې روايتونو د سند لحاظ سره تحقيق اوكړې شي او صحت ئې صحيح ثابت شي نو دې دواړو كښې تطبيق داسي كيد ښي چې په اصل كښې دا آيت مبارك په مكه كښې نازل شوې وو ، بيا چې كله د غزوهٔ بنو المصطلق په موقع باندې چې داشان يوه واقعه راپيښه شوه نو نبی کريم ﷺ په هغه موقع باندې دا آيت مبارك بيا تلاوت كړو او پدې واقعه باندې ئې منطبق كړو. او په شان نزول كښې داشان ډير شوی دی. يا دا هم ممكن دی چې جبرائيل عليه السلام ياد دهانئی دپاره دوباره دا آيت مبارك د غزوهٔ بنو المصطلق په موقع باندې راؤړلې وی چې په دې آيت مبارك باندې د عمل كولو هم دا موقع ده. د تفسير په اصولو كښې دې ته نزول مكرر وائی. او آيت مبارك كښې د ﴿أَيَّامَ اللَّهِ﴾ لفظ نه مراد د ډيرو مفسرينو په نزد د الله ﷻ هغه معاملات دی چې كوم به په آخرت كښې انسانانو سره كيږی. يعنی جزا او سزا ځكه چې د ﴿أَيَّامَ﴾ لفظ د واقعاتو او معاملاتو په معنی كښې په عربی كښې ډير استعماليږی.

دلته بله خبره قابله غور ده چې خبره خو داسې هم كيدې شوه چې تاسو ايماندارو ته اووائې چې مشركانو ته معافی اوكړی. ددې په ځائې داسې وئيلې شوی دی چې دې خلقوته معافی اوكړئی چې كوم د الله ﷻ د معاملاتو يقين نه لری. دې كښې شايد چې دې طرفته اشاره وی چې دې خلقو ته به اصل سزا په آخرت كښې وركولې كيږی. او چونكه دا خلق په آخرت باندې يقين نه لری نو په دې وجه به ددوئ دپاره دا سزا غير متوقع او ناګاهانی وی. او غير متوقع تكليف ډير زيات خراب وی. په دې وجه دوئ ته به چې كوم عذاب وركولې شی هغه به ډير زيات سخت وی. او ددې په ذريعه ددوئ نه ددوئ دبدو پورا پورا بدله اخستې كيږی. تاسو په دنيا كښې ددوئ په دې وړو وړو خبرو پسې مخ مه اوړئی.

ځينې حضراتو فرمائيلی دی چې ددې آيت مبارك حكم د جهاد دداحكامو نازليدو نه پس منسوخ شو خو ډيرو مفسرينو وئيلی دی چې ددې آيت مبارك د جهاد حكم سره هيڅ تعلق نشته دا خو په عام ژوند كښې د وړو وړو خبرو د بدلې تعليم دې چې هرې زمانې دپاره عام دې. او بن هم ددې حكم باقی دې. نو دا منسوخ ګرځول درست نه دی. خصوصا كه ددې شان نزول د غزوهٔ بنو المصطلق واقعه وی نو دا آيت د جهاد دپاره منع كوؤنكئ نه شی جوړيدې ځكه چې د جهاد آيتونه ددې نه مخكښې نازل شوی وی.

| | |
|---|---|
| وَلَقَدْ آتَيْنَا | بَنِيٓ إِسْرَآءِيلَ |
| او بيشكه وركړو مونږ | بنی اسرائيلو ته |
| او مونږ بنی اسرائيلوته كتاب | |

| الْكِتَٰبَ | وَالْحُكْمَ | وَالنُّبُوَّةَ | وَرَزَقْنَٰهُم | مِّنَ الطَّيِّبَٰتِ |
|---|---|---|---|---|
| كتاب | او حكم | او پيغمبری | او وركړو مونږ هغوئ ته | دپاكو سامانونه |
| او حكمت او نبوت وركړې وو | | | او ښه پاكيزه خوراكونه مو ورته وركړی وو | |

[1] ) تفسير القرطبي: ج ١٦، ص ١٦١، وروح المعاني: ج ١٩، ص ١١

وَفَضَّلْنٰهُمْ عَلَى الْعٰلَمِيْنَ ۝ وَاٰتَيْنٰهُمْ

او فضیلت ورکړو مونږ هغوئ ته | په خلقو دزمانې خپلې باندې | او ورکړل مونږ هغوئ ته

اوپه ټول جهان مو ورته فضیلت ورکړې وو | .................. اوهغوئ ته مو ددین متعلق

بَيِّنٰتٍ مِّنَ الْاَمْرِ ۚ فَمَا اخْتَلَفُوْٓا اِلَّا مِنْۢ بَعْدِ مَا

واضحه هدایات | دکار ددین نه | پس اختلاف اونه کړو هغوئ | مګر | روستو | دهغې نه

ښکاره دلیلونه ورکړې وو | .................. نودغه خلقو د علم راتلونه پس دخپل

جَآءَهُمُ الْعِلْمُ ۙ بَغْيًاۢ بَيْنَهُمْ ۭ اِنَّ رَبَّكَ

چې راغې هغوئ ته علم | د وجې د زیاتې کولو نه | په منځ خپل کښې | بیشکه رب ستا به

ضد په وجه اختلاف شروع کړو | .................. بیشکه ستارب به

يَقْضِيْ بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فِيْمَا كَانُوْا

فیصله کوی | په منځ دهغوئ کښې | په ورځ دقیامت | په هغه معاملو کښې | چې وو هغوئ

دهغوئ په مینځ کښې د قیامت په ورځ په هغه خبرو کښې فیصله اوکړی | په کومو کښې چې دوی

فِيْهِ يَخْتَلِفُوْنَ ۝ ثُمَّ جَعَلْنٰكَ عَلٰى شَرِيْعَةٍ مِّنَ الْاَمْرِ

په هغې کښې | چې اختلاف به ئې کولو | بیا اوګرخولې مونږ ته | په غټه لاره | دکار ددین نه

اختلاف کوی | .................. بیا [ائې پیغمبره] مونږ ته ددین په یوه خاصه طریقه روان کړې

فَاتَّبِعْهَا وَلَا تَتَّبِعْ اَهْوَآءَ الَّذِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ ۝

پس خه ته هم په دغه لار | او مه خه ته | په خواهشاتو | دهغه کسانو پسې | چې علم نه لری |

نوته د دغه طریقې تابعداری کوه | او دهغه خلقو د خواهشاتو تابعداری مکوه چه نه پوهیږی |

اِنَّهُمْ لَنْ يُّغْنُوْا عَنْكَ مِنَ اللّٰهِ شَيْـًٔا ۭ وَاِنَّ الظّٰلِمِيْنَ

بیشکه دوئ | هر ګزبه پکار نه شی ستا | په مقابله دالله کښې | هیڅ قدرله | ابیشکه چې ظالمان خلق

دوئ دالله ﷻ په مقابله کښې ستا هیڅ په کار نشی راتلې | .................. او ظالمان خلق

بَعْضُهُمْ اَوْلِيَآءُ بَعْضٍ ۚ وَاللّٰهُ وَلِيُّ الْمُتَّقِيْنَ ۝ هٰذَا بَصَآئِرُ

خپنی دهغوئ | دوستان | دخینو نورو دی | او الله | دوست دمتقیانو دې | دا دعقلمندئ رڼا ګانې دی

پخپل مینځ کښې دیو بل دوستان دی | اوالله ﷻ د پرهیزګارانو دوست دې | دا قران پاک د عامو

لِلنَّاسِ وَهُدًى وَّرَحْمَةٌ لِّقَوْمٍ يُّوْقِنُوْنَ ۝

دپاره دخلقو | او هدایت دې | او رحمت دې | دپاره دهغه قوم | چې یقین کوی

خلقو دپاره دهوښیارتیا اودهدایت ذریعه ده |

## آسان ترجمه قرآن

او مونږ بنی اسرائیلو ته کتاب، حکومت او نبوت ورکړي وو، او هغوی ته مو د پاکیزه څیزونو نه رزق ورکړي وو. او هغوی ته مو د ټولې دنیا په خلقو باندې فضیلت ورکړي وو. اوهغوی ته مو ښکاره ښکاره احکامات ورکړي وو. ددې نه پس هغوی کښې چه کوم اختلاف پیدا شو، هغه هغوی د علم راتلو نه پس پیدا کړو. صرف ددې وجې نه چه هغوی یو بل سره په ضد شوي وو یقیناً ستا پروردګار به د قیامت په ورځ ددوی په مینځ کښې د هغې خبرو فیصله اوکړی په کومو کښې چه دوی اختلاف کولو. بیا (اے پیغمبره (صلی الله علیه وسلم)) مونږ تاله د دین په یو خاص شریعت باندې کړخولې دې، لهٰذا ته دهغې تابعداری کوه، او دهغې خلقو خواهشاتو پسې مه ځه، چه د حقیقت علم نه لری هغوی د الله تعالیٰ په مقابله کښې ستا هیڅ پکار نه راځی، او حقیقت دادې، چه ظالمان خلق د یو بل دوستان دی، او الله تعالیٰ د متقیانو خلقو دوست دې. دا (قرآن) د ټولو خلقو دپاره د بصیرت مجموعه ده، او کوم خلق چه یقین لری هغوی دپاره منزل ته د رسیدلو ذریعه او سراسر رحمت دې.

## خلاصه تفسیر

[او] نبوت څه نوې شې نه دې چه ددې نه انکار وشی چنانچه ددې نه وړاند ﴿وَلَقَدْ اٰتَیْنَا بَنِیْٓ اِسْرَآءِیْلَ الْکِتٰبَ وَالْحُکْمَ وَالنُّبُوَّةَ﴾ [مونږ بنی اسرائیلو ته کتاب] اسمانی [اوحکمت] یعنی علم د احکامو [او نبوت ورکړې وو] یعنی په هغوی کښې مو انبیاء ﷺ پیدا کړی وو ﴿وَرَزَقْنٰهُمْ مِّنَ الطَّیِّبٰتِ﴾ [اومونږ هغوی ته عمده عمده څیزونه دخوراك ورکړی وو] داسې چه په میدان تیه کښې موږې من او سلوی نازل کړل او هغوی مو دشام دملك مالکان جوړ کړل کوم چه دمزکې دبر کتونو خزانه ده ﴿وَفَضَّلْنٰهُمْ عَلَی الْعٰلَمِیْنَ﴾ [اومونږه] په ځنې کارونه کښې مثلاً په سمندر کښې دلارې ورکولو د وریځې پرې سورې کولو وغیره [هغوی ته ددنیا په مخلوق باند فوقیت ورکړو ﴿وَاٰتَیْنٰهُمْ بَیِّنٰتٍ مِّنَ الْاَمْرِ﴾ او مونږ هغوی ته ددین په باره کښې ښکاره ښکاره دلیلونه ورکړل] یعنی هغوی ته مو ډیرې واضحه معجزې وښودې غرض حسی معنوی علمی هرقسم نعمتونه مو ورکړل [پس] پکار وه چه ښه اطاعت ئې کولې مګر ﴿فَمَا اخْتَلَفُوْٓا اِلَّا مِنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَهُمُ الْعِلْمُ﴾ [هغوی دعلم د راتلونه پس دیوبل سره اختلاف وکړو ﴿بَغْیًا بَیْنَهُمْ﴾ په وجه په خپل مینځ کښې د ضد] چه بیان ئې په دویمه پاره دویمه رکوع [سل بنی اسرائیل الخ] کښې شوې دې مطلب دادې چه کوم علم د اختلافاتو ختمولو سبب پکار وو هغوی د نفسا نفسئ په وجه الټه هغه داختلاف موجب جوړ کړو پس ﴿اِنَّ رَبَّکَ یَقْضِیْ بَیْنَهُمْ یَوْمَ الْقِیٰمَةِ فِیْمَا کَانُوْا فِیْهِ یَخْتَلِفُوْنَ﴾ [ستارب به د هغوی په مینځ کښې د قیامت په ورځ په هغه کارونو کښې] عملی فیصله وکړی په کومو کښې چه هغوی په خپل مینځ کښې اختلاف کولوبیا] په بنی اسرائیلو کښې د نبوت د دورختمیدو نه پس ﴿ثُمَّ جَعَلْنٰکَ عَلٰی شَرِیْعَةٍ مِّنَ الْاَمْرِ﴾ [مونږ تاله] نبوت درکړو او تاله مو [ددین په یوه خاص طریقه باند کړو ﴿فَاتَّبِعْهَا﴾ پس ته هم په هغه طریقه چلیږه] یعنی په عمل کښې هم او په تبلیغ کښې هم ﴿وَلَا تَتَّبِعْ اَهْوَآءَ الَّذِیْنَ لَا یَعْلَمُوْنَ﴾ [او ددې جاهلانو په خواهشونو پسې مه ځه] یعنی د هغوی خواهش خو دادې چه ته تبلیغ پریږدې او ددې دپاره هغوی په قسم قسم طریقو سره تا پریشانه کوی چه ته تنګ شې تبلیغ پریږدې پس ستانه اګر چه دا احتمال نشته مګر د

تبليغ دكار د اهتمام دپارتاته بيا ددې حكم كيږي وړاند په دې طرز باند ددې حكم علت فرمائي چه ﴿إِنَّهُمْ لَن يُغْنُوا عَنكَ مِنَ اللَّهِ شَيْئًا﴾ [داخلق د الله تعالى په مقابله كښې ستا يوه ذره په كار نه شي راتلې] پس چه ددوى تابعدارى ونه كړې ﴿وَإِنَّ الظَّالِمِينَ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ﴾ [او ظالمان خلق ديو بل دوستان وى] او ديو بل خبره منى ﴿وَاللَّهُ وَلِيُّ الْمُتَّقِينَ﴾ [او الله تعالى دوست دې دمتقيانو] او متقيان د هغه خبره منى پس هركله چه ته ظالم نه يې بلكه سردار دمتقيانو يې نو ستاد هغوى د تابعدارۍ سره څه نسبت دې؟ البته دالله تعالى دحكمونو سره دې خاص نسبت دې غرض ته صاحب نبوت او شريعت حقه يې او دا قرآن كوم چه تاته ملاؤ دې ﴿هَٰذَا بَصَائِرُ لِلنَّاسِ وَهُدًى وَرَحْمَةٌ لِّقَوْمٍ يُوقِنُونَ﴾ دا [دعامو خلقو دپاره دپوهيدو سبب او دهدايت ذريعه ده او ديقين] يعنى ايمان [راوړونكو دپاره دلوې رحمت] سبب [دې] .

## معارف او مسائل

﴿وَلَقَدْ آتَيْنَا بَنِي إِسْرَائِيلَ الْكِتَابَ﴾ ددې آيتونو موضوع د رسول اكرم ﷺ درسالت ثابتول دي او ددې په ضمن كښې د كافرانو په تكليفونو باندې رسول اكرم ﷺ ته تسلي وركول دى.

﴿إِنَّ رَبَّكَ يَقْضِي بَيْنَهُمْ﴾ تر دې ځائې پورې مضمون سره دوه خبرې مخې ته راغلې. يو بنى اسرائيلو ته كتاب او نبوت وركولو څخه د رسول اكرم ﷺ د نبوت تائيد. دويم رسول اكرم ﷺ ته تسلي وركول دى چې بنى اسرائيلو ته د اختلاف كومه وجه راپيښ شوې وه نو هم دا ددوئ قوم ته د دوئ سره په اختلاف كولو كښې راپيښ شوې دهٔ. او هغه دى ددنيا محبت او حسد او نفساني خواهشات. د ا نه ده چې ستاسو په دليلونو كښې څه كمې دې نو تاسو هيڅ غم مه كوئى. [بيان القرآن](۱)

**زمونږ دپاره د تيرو شوؤ امتونو حكم:** ﴿ثُمَّ جَعَلْنَاكَ عَلَىٰ شَرِيعَةٍ مِّنَ الْأَمْرِ﴾ [بيا مونږ تاسو د دين په يو طريقه باندې كړئى] دلته دا خبره ياد ساتل دى چې د دين اسلام څه عقائد او اصول دى. لكه توحيد او آخرت وغيره او څه احكام دعملى ژوند متعلق وى. تر كومې چې د اصولى عقائدو تعلق دې هغه خو د هر نبى په امت كښې يو شان وو. او په هغې كښې كله ترميم او بدلون نه وو شوې. خو عملى احكام د مختلفو انبياء كرامو ﷺ په شريعتونو كښې د زمانې په لحاظ سره بدل وو. دې مذكوره آيت مبارك كښې هم دا دويم قسم احكام ئې د دين په خاص طريقې سره تعبير كړل. او پدې وجه فقهاء كرامو ﷺ ددې آيت مبارك نه دا نتيجه راويستې ده چې د امت محمديه ﷺ دپاره صرف دشريعت محمدى ﷺ احكام واجب العمل دى. تيرو شوؤ امتونو ته چې كوم احكام وركړې شوى وو نو هغه زمونږ دپاره تر هغه وخته پورې واجب العمل نه دى تر څو چې ددې تائيد قرآن عظيم الشان نه وى كړې. بيا د تائيد يو شكل دادې چې قرآن عظيم الشان يا احاديثو كښې ښكاره فرمائيلې شوى وى چې د فلانى نبى ﷺ د امت دا حكم زمونږ دپاره واجب العمل دې. او بل صورت دادې چې قرآن عظيم الشان يا نبى كريم ﷺ د تير شوى يو امت څه حكم د تحسين او تعريف په طور بيان اوفرمائى اودهغې باره كښې دا او نه فرمائى چې دا حكم زمونږ په زمانه كښې منسوخ شوې دې. ددې نه دا هم معلوميږى چې دا حكم زمونږ په شريعت كښې جارى دې. او په حقيقت كښې ددې حكم واجب العمل كيدل هم په دې صورت

(۱) بيان القرآن: ج ۱۰، ص ۱۰۹

کښې د شریعت محمد ﷺ د یو جزء په حیثیت سره وی . دلته ددې مسئلې د پوهولو دپاره دومره کافي دی . تفصیلات د فقه په کتابونو کښې مذکور دی .

أَمْ حَسِبَ الَّذِينَ اجْتَرَحُوا السَّيِّئَاتِ أَن نَّجْعَلَهُمْ كَالَّذِينَ

آیا گمان کوی هغه خلق | چی کوی | بدکارونه | چی اوبهٔ گرزوؤ مونږ دوئ | پشان دهغه کسانو |

آیا څوک چې بدکارونه کوی | د هغوئ دا خیال دې | چې مونږ به هغوی د هغه خلقو سره برابر کړو

آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ ۙ سَوَاءً مَّحْيَاهُمْ وَمَمَاتُهُمْ ۚ

چی ایمان ئې راوړو | او عملونه ئې اوکړل نیك | چی برابر به وی | ژوند دهغوئ | او مرگ دهغوئ

کوم چې ایماندار دی | او دنیکئ کارونه کوی | چې ددې ټولوژوندا ومرگ به یو برابر شی

سَاءَ مَا يَحْكُمُونَ ﴿٢١﴾ وَخَلَقَ اللَّهُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ

ډیر بد دې هغه | چی دوئ ئې حکم کوی | او پیدا کړل الله | آسمانونه | او زمکه |

دوئ ډیره خرابه فیصله کوی | .............. او الله ﷻ آسمانونه او زمکه په یو مقصد سره پیدا

بِالْحَقِّ وَلِتُجْزَىٰ كُلُّ نَفْسٍ بِمَا كَسَبَتْ

دحق سره | او دپاره ددې چی بدله ورکړې شی | هر نفس ته | هغه | چی گټلی دی هغه

کړی دی | ..........او دا چې هر چاته د هغه عمل بدله ورکړې شی کوم چې هغه کړې وی |

وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴿٢٢﴾

او په دوئ به | هیڅ ظلم نهٔ کیږی

او په هغوئ به هیڅ ظلم نه کیږی |

## آسان ترجمه قرآن

او کوم خلق چه بدکارونه کوی، آیا دوی دا گنړی، چه مونږ به دوی د هغې خلقو سره برابر کړو، کومو چه ایمان راوړې دې، او نیک عملونه ئې کړې دی، چه دهغې په نتیجه کښې به ددوی ژوند او مرگ یو شان شی؟ څومره بده خبره ده، چه دوی دهغې فیصله کړې ده الله تعالیٰ ټول آسمانونه او زمکه د برحق مقصد دپاره پیدا کړی دی، او دې دپاره ئې پیدا کړې دی، چه هر سړی ته دهغه د عمل بدله ورکړې شی، او د ورکولو په وخت کښې په هغوی باندې هیڅ ظلم نهٔ کیږی.

## خلاصه تفسیر

﴿أَمْ حَسِبَ الَّذِينَ اجْتَرَحُوا السَّيِّئَاتِ﴾ [دا] دقیامت نه انکار کوونکی [خلق چه ناکاره کارونه] کفر شرك ظلم او معصیت [کوی] په مخه [آیا داخیال کوی ﴿أَن نَّجْعَلَهُمْ كَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ﴾ چه مونږ به دوی د هغو خلقو سره برابر کړو کومو چه ایمان اونیك عمل اختیار کړو ﴿سَوَاءً مَّحْيَاهُمْ وَمَمَاتُهُمْ﴾ چه دهغوی ټولو ژوند اومرگ یو شان شی] یعنی د مؤمنانو مرگ ژوند په دې معنی برابر شی چه لکه څنګه په ژوند کښې دخوندونو مزو حصه ئې ونه مونده دغه شان دمرگ نه پس هم محروم پاتې شی او دغه شان دکافروانو مرگ او ژوند هم په دې معنی یوشان شی چه لکه څنګه په دې ژوند کښې د عذاب اوتکلیفونو نه بچ پاتې شو دغه شان د مر کیدو نه پس هم د

عذاب نه په امن کښې پاتې شي مطلب دا چې ددوباره ژوندي کيدونه د انکار کولو نه دا لازميږي چه اطاعت شعار بندګانو ته چرته د دوی د اطاعت ميوه ملاؤ نه شي او په مخالفينو باند چرته د مخالفت وبال پرې نه وځي ﴿سَآءَ مَا يَحۡكُمُوۡنَ﴾ [دوی ناکاره حکم لګوی] ﴿وَخَلَقَ اللّٰهُ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضَ بِالۡحَقِّ﴾ او الله تعالى اسمانونو اومزکې لره په حکمت سره پيدا کړل] يو حکمت خو دادې چه ددې عظيم الشان مخلوقات په پيداکولو کښې دالله تعالى قدرت وليدې شي او هر دعقل خاوند په دې پوه شي چه څوك په اول ځل داځيزونه پيداکولې شي هغه دا دفناکولونه پس دوباره هم دغسې موجود کولې شي چه ددې نه دقيامت او اخرت وجودثابتيږي [او] دويم حکمت دادې چه ﴿وَلِتُجۡزٰى كُلُّ نَفۡسٍۢ بِمَا كَسَبَتۡ﴾ [ددې دپاره چه [هرسړی ته د هغه دکار بدله ورکړې شي] او په دې سره تول پوهيږي چه په دنيا کښې پوره بدله نشته په دې وجه داخرت راتلل ضروری شول [او] په دې بدله کښې ﴿وَهُمۡ لَا يُظۡلَمُوۡنَ﴾ [په هغوی ظلم نه شي کيدې]

## معارف او مسائل

**عالم آخرت او په هغې کښې سزا او جزا عقلا ضروري ده:** مذکوره دوؤ آيتونو کښې د رومبی آيت مبارك حاصل يو عقلي استدلال دې د جزا په ورځ ضرور کيدلو باندې دې. هغه دا چې داخبره د هر سړي په مشاهده کښې ده او هيڅوك ددې نه انکار نشي کولې چې په دنيا کښې د نيك او بدو عملونو بدله پوره نه ملاويږي. بلکه عام طور سره کفار ، فجار ، ددنيا په دولت او د عيش و عشرت کښې ژوند تيروی. او د الله ﷻ تابعدار خلق په اولړوتندو کښې او په مصيبتونو کښې راګير وی. اول خو دا چې اکثرو مجرمانو ته په دنيا کښې د جرم معلومات نه وی. که علم ورته اوشی خو بيا هم نه نيولې کيږی. اوکه اونيولې شي نو بيا هم د سزا نه د بچ کيدو دپاره د حلالو او حرامو د رښتيا او دروغو هيڅ پرواه نه کوی او غواړی چې د سزاء نه خان خلاص کړی او که چرته سوؤنو کښې يو ته هم سزا ملاؤ شي خو بيا هم هغه ته پوره سزا نه ملاويږی. داشان د الله ﷻ نه چې کوم خلق باغيان شوی دی هغه په دنيا کښې ګرځی ، او بل طرفته مؤمنان د شريعت پابند وی او ډيرو دولتونو او لذتونو لره خو حرام ګڼړی او هغه پريږدی او د مصيبتونو او آفتونو نه د بچ کيدو دپاره هم صرف جائز لارې لټوی. نو دوئ په دنيا کښې د ډيرو لذتونو او راحتونو نه محرومه وی. او هر کله چې دا معلومه شوه چې په دنيا کښې د عملونو پوره بدله نه ملاويږی نو اوس که ددې نه پس بله دنيا يعنی عالم آخرت او په هغې کښې دوباره ژوند او د سزا او جزا نافذ کيدل نه وی بيا نو په دنيا کښې غلا ، شوکې ، زنا او قتل وغيره ته جرم وئيل حماقت دې. دا خلق خو په دنيا کښې اکثر کامياب ژوند تيروی. يو غل او ډاکو په يوه شپه کښې دومره دولت حاصلوی چې دا دولت يو تعليم يافته انسان د کلونو محنت کولو نه پس هم نه شي حاصلولې. نو که د آخرت سزا او جزا نه وی نو بيا دې غل اوډاکو ته به شريف وايو دې تعليم يافته ته به افضل نه وايو. او دا عقل نه منی. پاتې شو دا سوال چې په دې خلقو باندې په دنيا کښې د هر حکومت د طرفنه سزاګانې مقرر وې ، خو د نن سبا تجربه دا ښائی چې صرف هغه مجرم نيولې کيږی چې کوم بې قوف وی. کوم چې هوښيار او عادی مجرم وی نو هغه دپاره د سزا نه دبچ کيدو دپاره ډيرې لارې وی. د سزا نه د بچ کيدو دپاره ده لره يوه د رشوت لار کافی ده.

خلاصه دا شوه چې يا خو دا اومنلې شي چې په دنيا کښې هيڅ ، نيکی ، بدی نشته دې. خپل مطلب چې څنګه هم حاصل کړې نو دا ثواب دې. مګر په دنيا کښې ددې هيڅوک قائل نشته وې. اوبيا که د نيکئ او بدئ امتياز اومنلې شي نو بيا د دواړو انجام برابر دې. بلکه بد او مجرم دې د نيک نه زيات په آرام کښې وی نو ددې نه زيات غټ ظلم بل نشته دې. د قرآن عظيم الشان په مذکوره آيت مبارک کښې هم دا فرمائيلې شوی دی چې آيا تاسو دا غواړئ چې مجرم او غير مجرم په دنيا کښې برابر کړې شي ، ﴿سَوَآءً مَّحۡيَاهُمۡ وَمَمَاتُهُمۡ﴾ دا يوه د بې وقوف توب فيصله ده. اوهر کله چې په دنيا کښې د نيکئ او بدئ پوره سزا نه ملاويږي. نو د آخرت ژوند او پدې کښې سزا ملاويدل لازمی دی. بل آيت مبارک هم ددې مضمون د مکمل کيدو دپاره فرمائيلې شوی دی چې : ﴿وَلِتُجۡزٰى كُلُّ نَفۡسٍۢ بِمَا كَسَبَتۡ وَهُمۡ لَا يُظۡلَمُوۡنَ﴾ يعنی د ظلم د ختمولو دپاره د آخرت د جزا ورځ ضروری ده. پاتې شوه دا شبه چې په دنيا کښې د نيک او بد عمل بدله ولې ورنکړې شوه؟ نو دا د تکوينی حکمت خلاف ده. ځکه چې دا دنيا الله تعالی دارالعمل او دارالامتحان ګرځولې ده ، دار الجزاء نه ده. والله اعلم.

اَفَرَءَيۡتَ | مَنِ اتَّخَذَ | اِلٰهَهٗ

| آيا پس وينې ته | هغه څوک چې وې نيوو | معبود خپل

| آيا تا هغه کس نه دې ليدلې چې دخپل نفس خواهش ئې

هَوٰىهُ | وَاَضَلَّهُ | اللّٰهُ | عَلٰى عِلۡمٍ | وَّخَتَمَ

خواهشاتو خپلو لره | او بې لارې کړو هغه لره | الله | سره د علمه | او مهر ئې اووهو |

خپل معبود جوړ کړې دې | او الله ﷻ دغه کس د پوهې باوجود ګمراه کړې دې | او دهغه

عَلٰى سَمۡعِهٖ | وَقَلۡبِهٖ | وَجَعَلَ | عَلٰى بَصَرِهٖ | غِشٰوَةً

په غوږونو دهغه باندې | او په زړه دهغه باندې | اووائې چوله | په سترګو دهغه باندې | پرده

په غوږونو او په زړه ئې مهرلګولې دې | او دهغه په سترګو ئې پرده اچولې ده

فَمَنۡ | يَّهۡدِيۡهِ | مِنۡۢ بَعۡدِ اللّٰهِ | اَفَلَا تَذَكَّرُوۡنَ | وَقَالُوۡا

پس څوک دې | چې لاراوښائی هغه ته | روستو دالله نه | آيا پس تاسو نصيحت نه اخلئ | اووائی دا خلق

نودالله ﷻ [ دپريخودو] نه پس به ورته بل څوک لاراوښائی ؟ | نوتاسوغور نه کوئ ؟ | او دوی وائی

مَا هِىَ | اِلَّا | حَيَاتُنَا | الدُّنۡيَا | نَمُوۡتُ | وَنَحۡيَا

نه دې دا ژوند | مګر | ژوند زمونږ دې | ددنيا | مونږه مرو [هم دلته] | اومونږه ژوندی کيږو [هم دلته]

چې زمونږ [ژوند] خوبس هم دا دنياوی ژوند دې | چې مونږ مرو اوپيدا کيږو [او دا سلسله روانه ده]

وَمَا يُهۡلِكُنَاۤ | اِلَّا الدَّهۡرُ | وَمَا لَهُمۡ | بِذٰلِكَ | مِنۡ عِلۡمٍ

او نه هلاکوی مونږ | مګر زمانه | او نشته دوئ لره | په دې خبره باندې | هيڅ علم

اوبس دغه زمانه ده چې مونږ وژنی | ........اودوئ سره په دې خبره هيڅ دليل نشته

اِنْ هُمْ اِلَّا يَظُنُّوْنَ۝ وَاِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِمْ اٰيٰتُنَا

نه دي دوئ | مگر | گمان کوي | او هر کله چي | لوستلې کيږي | په دوئ باندي | آيتونه زمونږ |

دوئ خو صرف گمان کوي | او کله چي ورته زمونږ ښکاره آيتونه اولوستې شي

بَيِّنٰتٍ مَّا كَانَ حُجَّتَهُمْ اِلَّآ اَنْ قَالُوا ائْتُوْا بِاٰبَآىِٕنَآ اِنْ كُنْتُمْ

واضحه | نو نه وي | دليل ددوئ | مگر | دا چي وائي | راولئ | پلاران زمونږه | که يئ تاسو

نو دوئ سره ددې نه سوا بل هيڅ جواب نه وي | چي دا اووائي که تاسو رښتينى يئ | نو زمونږ [مړه] پلاران

صٰدِقِيْنَ۝ قُلِ اللّٰهُ يُحْيِيْكُمْ ثُمَّ يُمِيْتُكُمْ ثُمَّ يَجْمَعُكُمْ

رښتينى | اووايه چي الله | ژوند درکوي تاسو ته | بيا به مړه کوي تاسو | بيا به راجمع کوي تاسو

نيکونه راولئ | ورته اووايه چي هغه الله دې چې تاسو ژوندي کوي | بيا تاسو مړه کوي | بيا به تاسو ژوندي کړي

اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ لَا رَيْبَ فِيْهِ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ

ورځي دقيامت ته | چي نشته شك په هغې کښې | وليکن | زيات خلق |

بيابه هم هغه تاسو دقيامت په ورځ راجمع کړي | چې په هغې کښې هيڅ شک نشته || خو زيات خلق

لَا يَعْلَمُوْنَ۝

نه پوهيږي

[په دې هم] نه پوهيږي |

## آسان ترجمه قرآن

آيا تا هغه سړې ليدلې دې چه هغه خپل خدائې خپل نفساني خواهشات جوړ کړې دي، او سره د علمه الله تعالیٰ هغه په گمراهئ کښې اچولې دې، او دهغه په زړه او غوږونو باندې ئې مهر لګولې دې، او دهغه په سترګو باندې ئې پرده اچولې ده؟ اوس د الله تعالیٰ نه پس څوک دې، چه هغه په نيغه لار باندې راولي؟ آيا بيا هم تاسو سبق نه اخلئ. او دا خلق وائي، چه: کوم ژوند دې، بس هم دا زمونږ دنيوي ژوندې دې (هم په دې کښې) مونږ مرو او ژوند تيروؤ، او مونږ لره بل څوک نه بلکه زمانه مړه کوي. حالانکه ددې خبرې هغوي ته هيڅ علم نشته، بس وهمي اندازې لګوي. او کله چه زمونږ آيتونه پوره وضاحت سره هغوي ته اوروليې شي، نو ددې ويلو نه سوا هغوي سره هيڅ دليل نه وي چه: که تاسو رشتونې يئ، نو زمونږ پلار نيکونه راژوندي کړئ. اووايه چه الله تعالیٰ تاسو ته ژوند درکوي، بيا به هغه تاسو ته مرګ درکړي، بيا به تاسو ټولو لره دقيامت په ورځ راجمع کړي، چه په هغې کښې هيڅ قسمه شک نشته، ليکن اکثر خلق نه پوهيږي.

## خلاصه تفسير

﴿اَفَرَءَيْتَ مَنِ اتَّخَذَ اِلٰهَهٗ هَوٰىهُ وَاَضَلَّهُ اللّٰهُ عَلٰى عِلْمٍ﴾ [پس ايا] دتوحيد او اخرت ددې واضحو بياناتونه پس [تاد هغه سړي حالت هم ليدلې دې کوم چه خپل خدائې خپل خواهش نفساني لره جوړ کړې دې] چه څه ئې په زړه کښې راځي هغه کوي او پوه پرې هم شو مګر دنفساني خواهش په پيروي سره ګمراه شو ﴿وَّخَتَمَ عَلٰى سَمْعِهٖ وَقَلْبِهٖ﴾ [او] خدائې تعالیٰ [دده په غوږونو او زړه مهرلګولې دې

﴿وَجَعَلَ عَلٰى بَصَرِهٖ غِشٰوَةً﴾ او دده په ستر‌گو يې پرده اچولې ده] يعني دنفس پرستۍ په وجه يې د حق صلاحيت نهايت کمزورې شو ﴿فَمَنْ يَّهْدِيْهِ مِنْۢ بَعْدِ اللّٰهِ﴾ [پس داسې سړي ته پس دخدای] دګمراه کولو [نه به څوك هدايت وکړي] په دې کښې تسلي هم ده وړاند دې منکرانو ته په طور د زجر خطاب دې چه ﴿اَفَلَا تَذَكَّرُوْنَ﴾ [اياتاسو] ددې بيانونو په اوريدو [بيا هم نه پوهيږئ] يعني داسې پوه چه نفع منده وی اګر چه دعامې معنې په اعتبار سره پوهيدل ﴿وَقَالُوْا مَا هِيَ اِلَّا حَيَاتُنَا الدُّنْيَا﴾ [اود] دقيامت انکار کوونکي [خلق داسې وائی چه بغير زمونږ ددې دنيوی ژوند نه بل ژوند] په اخرت کښې [نشته ﴿نَمُوْتُ وَنَحْيَا﴾ مونږه] دغه يوځل [مرو او] دغه يوځل [ژوندی کيږو] مقصود دادې چه دمرګ په شان ژوندهم ددنيا سره خاص دې ﴿وَمَا يُهْلِكُنَآ اِلَّا الدَّهْرُ﴾ [اومونږ لره صرف د زمانې] په ګردش [سره مرګ راځی] مطلب داچه دزمانې دتيريدو سره سره جسمانی قوتونه خرڅ کيږی او په دې طبعي اسبابو سره مرګ راځی او دغه شان د ژوند سبب هم طبعی امور دی پس هرکله چه مرګ او ژوند د طبعی اسبابوتابع دی او طبعی اسباب داخرت د ژوند تقاضانه کوی نو د اخرت ژوند به نه وی ﴿وَمَا لَهُمْ بِذٰلِكَ مِنْ عِلْمٍ﴾ [او ددې خلقو سره په دې هيڅ دليل نشته ﴿اِنْ هُمْ اِلَّا يَظُنُّوْنَ﴾ نه دی وی مګرمحض اټکلی چلوی] يعني د اخرت د ژوند په نفی باند هيڅ دليل نشته [او]نه د اهل حقو ددليل غوی څه جواب ورکولې شی چنانچه ﴿وَاِذَا﴾ [څه وخت چه] په دې باره کښې ﴿تُتْلٰى عَلَيْهِمْ اٰيٰتُنَا بَيِّنٰتٍ﴾ [د دوی په وړاند زمونږ ښکاره ايتونه لوستلې شی] کوم چه د مطلب ثابتولو دپاره کافی وی ﴿مَا كَانَ حُجَّتَهُمْ اِلَّآ اَنْ قَالُوا ائْتُوْا بِاٰبَآئِنَآ﴾ [نو د هغوی] په دې باند [بغيرد دې نه بل هيڅ جواب نه وی چه وائی چه زمونږ پلارنيکه لره] ژوندی کړئ [مخامخ يې راولئ ﴿اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ﴾ که تاسو] په دې دعوی کښې [رښتونی يئ] او ددې جواب نه سوا بل جواب نه شی ورکولې مثلا داچه په څه عقلي دليل سره ددې عقلا محالوالې ثابت کړي [ته] د دوی په جواب کښې ﴿قُلِ اللّٰهُ يُحْيِيْكُمْ﴾ [داسې ووايه چه الله تعالی تاسو لره] ترکومه پورې چه غواړي [ژوندی ساتی ﴿ثُمَّ يُمِيْتُكُمْ﴾ بيا] هرکله چه وغواړي [تاسو ته به مرګ درکړي ﴿ثُمَّ يَجْمَعُكُمْ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ لَا رَيْبَ فِيْهِ﴾ بيا به دقيامت په ورځ د کومې]په وقوع [کښې چه ذره شك نشته تاسو لره] ژوندی کړي او [جمع به موکړي] پس دعوی په دغه ورځ کښې دژوندی کولو ده او په دنياکښې مړو لره دنه ژوندی کولو نه په دغه ورځ دنه ژوندی کولو نفی نه راځی ﴿وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ﴾ [ليکن اکثر خلق نه پوهيږي] او بې دليله دحق نه انکار کوی.

## معارف او مسائل

﴿مَنِ اتَّخَذَ اِلٰهَهٗ هَوٰىهُ﴾ يعني هغه کس چې هغه خپل نفسانی خواهشات يې خپل معبود اوګڼړلو. دا خو ظاهر دی چې يو کافر خپل نفسانی خواهشاتو لره خپل خدائې يا معبود نه ګڼړی مګر د قرآن عظيم الشان دې آيت مبارك دا ښکاره کړه چې عبادت په حقيقت کښې د اطاعت نوم دې کوم کس چې د الله ﷻ د اطاعت په مقابله کښې د بل چا اطاعت کوی نو هغه به ددهٔ معبود وی. نو کوم کس ته چې د جائزاو ناجائز پرواه نه وی ، الله تعالی چې کوم څيز حرام کړې دې هغه په دې کښې د الله ﷻ حکم د منلوپه ځائې د خپل نفس تابعداری کوی ،نو اګر چې دې په ژبه دا خپل معبود نه ګڼړی خو په حقيقت کښې دا ددهٔ معبود شو.

سوده گشت از سجدهٔ راه بتان پیشانیم
چند برخود تهمت دین مسلمانی نهم

[بتانو ته دې په سجدو کولو کولو سره مې تندې تور شو او بیا هم پخپل ځان د مسلمان تهمت لګوم چې مسلمان یم]

دې کښې ئې نفساني خواهشات په بتانو سره تعبیر کړې دی. چا چې خپل خواهشات خپل امامان او مقتداء جوړ کړل او هسې پسې روان شول نو داسې شو لکه چې خواهشات ددوئ بتان دی. ابوامامه رضي الله عنه فرمائي چې ما نبی کریم ﷺ نه آوریدلی دی چې د آسمان لاندې د څومره معبودانو عبادت کړې شوې دې په هغې کښې د ټولو نه زیات مبغوض د الله ﷻ په نزد نفساني خواهشات دی. شداد بن اوس رضي الله عنه نه روایت دې چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل: عقل مند هغه کس دې چې خپل نفس په قابو کښې اوساتی، او د مرګ نه پس ژوند دپاره عمل اوکړی، او فاجر هغه کس دې چې د نفس په خواهشونو پسې روان شی او ددې باوجود بیا هم دالله تعالی نه په آخرت کښې د ښیګړې خواهش لری[1]. او سهل بن عبدالله تستری رحمه الله فرمائي چې ستاسو بیمارئ ستاسو نفساني خواهشونه دی. خوکه تاسو ددې مخالف اوکړئ نو د ابیمارۍ ستاسو دوائی هم ده [داټول روایات د قرطبی نه اخستې شوی دی][2].

﴿وَمَا يُهْلِكُنَآ إِلَّا الدَّهْرُ﴾ د دهر لفظ په اصل کښې د ټولې مودې د مجموعې نوم دې. او هغه ددې دنیا د ابتداء څخه تر خاتمې پورې ده. او کله کله ډیرې لوئې مودې ته هم دهر وئیلې کیږی. کافرانو دا قول په طور د دلیل پیش کړې دې چې زمونږ د مرګ او ژوند تعلق د الله تعالی د حکم سره هیڅ تعلق نه ساتی بلکه دا د اسباب طبعیه تابع دې چې ددې مشاهده خو د مرګ په وخت کښې ټول کوی چې انساني اندامونه او دې قوتونه ددې استعمال سره په کرار کرار کمیږی او ډیرې زمانې تیریدو نه پس دا بالکل خراب شی، نو هم ددې نوم مرګ دی. په دې باندې حیات هم قیاس کړئ چې دا د الله ﷻ په هیڅ حکم سره نه چلیږی بلکه ددې تعلق مادی طبعی حرکتونو سره دې.

**زمانې ته بد وئیل به نه وی:** کافرانو به وئیل چې ددې دنیا ګردش کښې د ټولو حالتونو علت پروت دې. او هم دې طرفته به ئې منسوب کولو لکه څنګه چې پدې آیت مبارك کښې ذکر کړې شوی دی. حالانکه دا ټول کارونه په حقیقت کښې دالله تعالی په قوت او ارادې سره کیږی. هم پدې وجه احادیثو کښې زمانې ته بدو وئیلو نه منع راغلې ده. څکه چې کفارو کوم قوت د دهر لفظ سره تعبیر کوی نو په حقیقت کښې هغه قوت او قدرت هم د الله ﷻ ذات دې. دهر ته بد وئیل دا الله ﷻ ته بد وئیل دې. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې زمانې ته بد مه وائې څکه دهر په حقیقت کښې الله ﷻ دې[3]. مراد دادې چې دا جاهلان کوم کار ته د دهر کار وائی هغه په حقیقت کښې د الله ﷻ د قوت او قدرت کار دې. دهر هیڅ څیز نه شته دې. دې سره دا نه

[1] ) سنن ابن ماجة، أبواب الزهد، ذكر الموت والاستعداد له: ج ۲، ص ۳۱٤، وجامع الترمذی، أبواب صفة القيامة، باب منه: ج ۲، ص ۷۲

[2] ) تفسير القرطبي: ج ١٦، ص ١٦٧، ١٦٨

[3] ) صحیح مسلم، کتاب الألفاظ من الادب وغيره، باب النهى عن سب الدهر: ج ۲، ص ۲۳۷

لازمیږي چي دهر کنی د الله ﷻ په نوموونو کښې یو نوم دې ځکه چې دې ځائي کښې مجازی طور سره الله ﷻ ته دهر وئیلي شوی دی.

وَلِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۗ وَيَوْمَ

|او خاص الله لره ده | بادشاهي دآسمانونو | او دزمکې | او په کومه ورځ

|اود آسمانونو اودزمکې سلطنت صرف دالله ﷻ دپاره دي

تَقُوْمُ السَّاعَةُ يَوْمَئِذٍ يَّخْسَرُ الْمُبْطِلُوْنَ ۝ وَتَرٰى

چي قائم شی | قیامت | په هغه ورځ به |په خساره کښې پریوزي | باطل پرست خلق|اوبهٔ وینې ته

اوپه کومه ورځ چې قیامت را شي|نو په دغه ورځ به باطل پرست لوئي تاوان اوکړي | اوته به

كُلَّ اُمَّةٍ جَاثِيَةً ۗ كُلُّ اُمَّةٍ تُدْعٰى اِلٰى كِتٰبِهَا ۗ اَلْيَوْمَ

هره ډله | پرمخي پراته | هره ډله به | رابللې کيږي | عملنامې خپلې ته | نن ورځ

هره یوه ډله اووینې|چې په ګوډو به پریوتی وی | هره ډله به خپلې عمل نامې ته رابللې شي

تُجْزَوْنَ مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ۝ هٰذَا كِتٰبُنَا

به بدله درکړې کيږي تاسو ته | دهغه عملونو | چې وئ تاسو | چې کول به مو | دا زمونږه کتاب دې

[اودا به ورته وئیلې شي] نن به تاسو ته دخپلو کارونو بدله درکولې شي| دا زمونږ جوړ کړې دفتر دې

يَنْطِقُ عَلَيْكُمْ بِالْحَقِّ ۗ اِنَّا كُنَّا نَسْتَنْسِخُ

چې [خبرې] ګواهي کوی | په تاسو باندې | په حقه سره | بیشکه وو مونږه | چې مونږ به لیکل په چا

چې ستاسو خلاف ربنتیا ربنتیا وینا کوی| ..........مونږ خو به ستاسو ټول کارونه [په

مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ۝ فَاَمَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

هغه څه | چې وئ تاسو | چې کول به مو | پس هر چې هغه کسان دی | چې ایمان ئې راوړو

فرښتوباندې] لیکل | ..........نو کومو کسانو چې ایمان راوړې وو

وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ فَيُدْخِلُهُمْ رَبُّهُمْ فِيْ رَحْمَتِهٖ ۗ

او عملونه ئې کړی وه نیک | پس داخل به کړی هغوئ لره | رب دهغوئ | په رحمت خپل کښې

اونیک عملونه ئې کول | نو دهغوئ رب به هغوئ په خپل رحمت کښې داخل کړی

ذٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْمُبِيْنُ ۝ وَاَمَّا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ۗ

دا | هغه | کامیابی | ښکاره ده | او هر چې هغه کسان دی | چې کفر ئې کړې وو

اوښکاره کامیابی هم دغه ده | ..........اوڅوک چې کافران وو |نو [هغوئ ته بهٔ اووئیلې شي چې]

اَفَلَمْ تَكُنْ اٰيٰتِيْ تُتْلٰى عَلَيْكُمْ فَاسْتَكْبَرْتُمْ

[اورته به اووئیلې شي]آیا نه ووه [آیتونه زما |چې لوستلې کیدل به |په تاسو باند |پس تکبراوکړو تاسو

ولې تاسو ته به زما آیتونه نهٔ لوستلې کیدل ؟ [ولې نه] | خو تاسو [دهغې د منلونه] تکبر اوکړو

وَكُنْتُمْ قَوْمًا مُّجْرِمِيْنَ۝ وَاِذَا قِيْلَ اِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ

اووئ تاسو | قوم | مجرمان | او هر كله چي | به اوونيلي شو | چي بيشكه | وعده دالله

اوتاسو نافرمانه خلق وئ| اوكله چې به دا اوونيلې شو چې دالله ﷻ وعده حقه ده | اودقيامت

حَقٌّ وَّالسَّاعَةُ لَا رَيْبَ فِيْهَا قُلْتُمْ

حقه ده | او قيامت چي دې | نشته هيڅ شك | په راتلو دهغې كښې | نو اوبه وئيل تاسو

[په راتلو] كښې هيڅ شک نشته | ..........نوتاسو بۀ وئيل چې مونږ نه پوهيږو چې

مَّا نَدْرِيْ مَا السَّاعَةُ اِنْ نَّظُنُّ اِلَّا ظَنًّا وَّمَا نَحْنُ

چي نۀ پيژنو مونږ | چي څه دې قيامت | نۀ كوؤ مونږ ګمان | مګر ګمان لږ | اونۀ يو مونږه

قيامت لاڅه څيز دې | .....؛......مونږ خو دا صرف يو خيالي څيز ګڼړو | او زمونږ[په دې]

بِمُسْتَيْقِنِيْنَ۝ وَبَدَا لَهُمْ سَيِّاٰتُ مَا عَمِلُوْا

يقين كونكي | او ښكاره به شي | هغوئ ته | ناكاروالي | دهغې عمل | چي كړې وې هغوئ

هيڅ يقين نشته | ......اودوئ چې كوم عملونه كړې وې هغه ټول به ورته ښكاره شي

وَحَاقَ بِهِمْ مَّا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ۝

او چاپيره به شي دهغوئ نه | هغه څه | چي وؤ هغوئ | په هغې پورې | چي توقې به ئې كولې

او په كوم څيزپورې چې به دوئ توقې كولې هغه به وربانديې واقع شي

وَقِيْلَ الْيَوْمَ نَنْسٰكُمْ كَمَا نَسِيْتُمْ

اواوبۀ وئيلې شي | چي نن ورځ به | مونږه هير كړو تاسو | لكه څنګه چي هير كړې وؤ تاسو

اودابه ورته اووئيلې شي | چې نن ورځ به مونږ تاسو داسې هير كړو | لكه څنګه چې تاسو

لِقَاءَ يَوْمِكُمْ هٰذَا وَمَاْوٰىكُمُ النَّارُ وَمَا لَكُمْ

ملاقات | دورځې ستاسو | چي داده | او ځائې داوسيدو ستاسو | وور دې | او نشته تاسو لره

دا ورځ هيره كړې وه | ..اوستاسو د استوګنې ځائې دوزخ دې | اوستاسودپاره هيڅوک مددګار نشته

مِّنْ نّٰصِرِيْنَ۝ ذٰلِكُمْ بِاَنَّكُمُ اتَّخَذْتُمْ اٰيٰتِ اللّٰهِ

دمددګارانو نه [هيڅوك] | دا انجام ستاسو | په دې وجه شو چي بيشكه تاسو | نيولې وؤ آيتونه دالله

.............. | دا څكه چې تاسو دالله ﷻ په ايتونو پورې توقې كولې | او

هُزُوًا وَّغَرَّتْكُمُ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا ۚ فَالْيَوْمَ لَا يُخْرَجُوْنَ

په توقو سره | او په دوكه كښې اچولې وئ تاسو | ژوند | ددنيا | پس نن ورځ | به نۀ ايستلې كيږي دا خلق

ددنيا ژوند په دهوكه كښې اچولې وئ| ..........نو نن ورځ به نه دوئ د دوزخ نه بهر راويستې

مِنْهَا وَلَا هُمْ يُسْتَعْتَبُوْنَ۝ فَلِلّٰهِ الْحَمْدُ رَبِّ السَّمٰوٰتِ

ددې دوزخ نه | اونۀ به دهغوئ عذر قبليږي | پس الله لره ثنا ده | چي رب دآسمانونو |

شي | او نه به ددوئ توبه قبلولې شي | نوټول تعريفونه دالله ﷻ دپاره دي | چې دآسمانونو

| وَرَبِّ الْأَرْضِ | رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۝ | وَلَهُ الْكِبْرِيَآءُ | فِي السَّمٰوٰتِ |
|---|---|---|---|
| او رب دزمکې دي | رب دمخلوقاتو دي | او هغه لره لوئي ده | په آسمانونو کښې |
| او زمکې او د ټول مخلوق رب دي | ...............او په آسمانونو او زمکه کښې ټوله لوئي صرف دهغه | | |
| وَالْأَرْضِ | وَهُوَ الْعَزِيْزُ | الْحَكِيْمُ ۝ | |
| او په زمکه کښې | او هغه غالب | او حکیم دي | |
| دپاره ده | اوهغه غالب دي صاحب دحکمت دي | | |

## آسان ترجمه قرآن

او د آسمانونو او زمکې سلطنت الله تعالى دپاره دې، او په کومه ورځ چه قيامت قائم شي، په هغه ورځ کوم خلق چه په باطل پاندې دي، هغوی به سخت نقصان اوچت کړي. او ته به وينې هرې ډلې لره، چه هغوی به پړمخې راغورزيدلې وي، هره ډله به دهغوی اعمال نامې طرف ته رابللې شي، (او ورته به وئيلې شي چه) نن به تاسو ته دهغې عملونو بدله درکولې شي، کوم چه تاسو کول. دا زمونږ (ليکلې شوې) رجسټر دې، چه ستاسو باره کښې ټهيک ټهيک وينا کوي، تاسو چه څه کول، هغه مونږ ټول په ټوله ليکل. نو چه کومو خلقو ايمان راوړې دې، او نيک عملونه ئې کړي دي، هغوی لره به دهغوی پروردګار په خپل رحمت کښې داخل کړي، او هم دا ښکاره کاميابي ده او کومو خلقو چه کفر اختيار کړې وو، (هغوی ته به اووئيلې شي چه) آيا تاسو باندې زما آيتونه نه لوستلې کيدل؟ بيا هم تاسو د تکبر نه کار واخستلو، او مجرمان جوړ شوئ. او کله چه تاسو ته به اووئيلې شو، چه د الله تعالى وعده رشتونې ده او قيامت هغه حقيقت دې، چه په هغې کښې هيڅ شک نشته، نو تاسو به دا وئيل چه: مونږ نه پوهيږو، چه قيامت څه څيز دې؟ دهغې باره کښې چه مونږ څه خيال کوؤ، بس يو ګمان هان دې، او مونږ ته بالکل يقين نشته او (په دغې موقع) دوی چه کوم عملونه کړي وو، دهغې بدئ به ښکاره ددوی مخښې ته راشي. او هم هغه به دوی نه چاپيره شي کوم څيز پورې چه دوی ټوقې کولې. اودوی ته به اووئيلې شي، چه: نن به مونږ تاسودغه رنګې هير کړو، لکه څرنګه چه تاسو دا خبره هيره کړې وه، چه تاسو به په دې ورځ کښې پيش کيږئ، او ستاسو ځائې اور دې، او تاسو لره به هيڅ قسمه مددګار نه وي دا ټول ددې وجې نه دی چه تاسو به د الله تعالى آيتونو پورې ټوقې کولې، او دنيوی ژوند تاسو په دهوکه کښې اچولې وئ نو نن به داسې خلق نهٔ د هلته نه راويستلې شي، او نه به هغوی ته د معافئ غوختلو وئيلې کيږی غرض ټول تعريفونه الله تعالى دپاره دی، چه د ټولو آسمانونو هم مالک دې، د زمکې هم مالک دې، او د ټولو جهانونو هم مالک دې، او ټوله لوئي هغه ته حاصله ده، په آسمانونو کښې هم، او په زمکه کښې هم، او هم هغه دې، چه اقتدار ئې هم کامل دې، او حکمت ئې هم کامل دې.

## خلاصه تفسير

او چه څه ووئيلې شول چه الله تعالى به تاسو لره جمع کړی نو دادې مشکل نه شی ګنړلې ځکه چه ﴿وَلِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ﴾ [د الله تعالى حکومت دې په اسمانونو کښې او په مزکه کښې] هغه چه څه غواړی تصرف کوی پس ستاسو دمرګ نه پس ژوندی کول او جمع کول هغه ته څه مشکل نه دی ﴿وَيَوْمَ

﴿تَقُوْمُ السَّاعَةُ يَوْمَئِذٍ يَّخْسَرُ الْمُبْطِلُوْنَ﴾ [او په کومه ورځ چه قیامت قایم شي په هغه ورځ به اهل باطل په خساره کښې پریوځی ﴿وَتَرٰى كُلَّ اُمَّةٍ جَاثِيَةً﴾ او ته به] په دغه ورځ [هره فرقه ووینې چه] دویرې نه [په زنګونانو به پریوځی ﴿كُلُّ اُمَّةٍ تُدْعٰى اِلٰى كِتٰبِهَا﴾ هره فرقه به خپلې عملنامې] کښې د لیکلو شوو عملونو د حساب [طرف ته رابللې شی] دا مطلب دې دعملنامو طرف ته د رابللو ورنه عملنامې خو به په خپله د دوی سره وی او دوی ته به ووئیلې شی چه ﴿اَلْيَوْمَ تُجْزَوْنَ مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ﴾ [نن به تاسوته ستاسو د عملونو بدلـه ملاوشی] او ورتـه بـه ووئیلې شی چه ﴿هٰذَا كِتٰبُنَا يَنْطِقُ عَلَيْكُمْ بِالْحَقِّ﴾ [دا] عملنامه [زمونږ] لیکلې شوې [کتاب دې کوم چه ستاسو په مقابله کښې ټیک ټیک خبرې کوی] یعنی ستاسو عملونه ظاهروی او ﴿اِنَّا كُنَّا نَسْتَنْسِخُ مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ﴾ [مونږ] په دنیا کښې [ستاسو] ټولو [عملونو لره] په فرښتو سره [لیکو] او دا دهغې مجموعه ده [پس] د حساب نه پس به فیصله دا وشی چه ﴿فَاَمَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ﴾ [کومو خلقو ایمان راوړې وو او هغوی نیک کارونه کړی وو ﴿فَيُدْخِلُهُمْ رَبُّهُمْ فِيْ رَحْمَتِهٖ﴾ نو دوی لره به ددوی رب په خپل رحمت کښې داخل کړی ﴿ذٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْمُبِيْنُ﴾ او دا ښکاره کامیابی ده ﴿وَاَمَّا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا﴾ اوکوم خلق چه کافر وو] هغوی ته به ووئیلې شی چه ﴿اَفَلَمْ تَكُنْ اٰيٰتِيْ تُتْلٰى عَلَيْكُمْ﴾ [ایا زماایتونـه تاسوته نـه لوستلې کیدل ﴿فَاسْتَكْبَرْتُمْ﴾ پس تاسو] د هغو قبلولو نه [تکبرکړې ووا‌و] په دې وجه ﴿وَكُنْتُمْ قَوْمًا مُّجْرِمِيْنَ﴾ [تاسو لوئ مجرمان وئ او] ستاسو داحال وو چه ﴿وَاِذَا قِيْلَ﴾ [هرکله] تاسوته [به وئیلې شول ﴿اِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ﴾ چه دالله تعالی وعده] ددوباره ژوندی کولو جزا سزا ورکولو [حقه ده ﴿وَّالسَّاعَةُ لَا رَيْبَ فِيْهَا﴾ او په قیامت کښې هیڅ شک نشته ﴿قُلْتُمْ مَّا نَدْرِيْ مَا السَّاعَةُ﴾ نو تاسوبه] په ډیره بې پرواهئ [وئیل چه مونږ نه پیژنو چه قیامت څه شې دې] صرف په اوریدو سره ﴿اِنْ نَّظُنُّ اِلَّا ظَنًّا وَّمَا نَحْنُ بِمُسْتَيْقِنِيْنَ﴾ [محض یو خیال شان خو مونږ ته هم راځی او مونږ ته] په هغې [یقین نشنه او] هغه وخت ﴿وَبَدَا لَهُمْ سَيِّاٰتُ مَا عَمِلُوْا﴾ [به دوی ته خپل ټول بدعملونو ظاهرشی ﴿وَحَاقَ بِهِمْ مَّا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ﴾ او دکوم] عذاب [سره چه دوی مسخرې کولې هغه به دوی لره راګیرکړی ﴿وَقِيْلَ﴾ او] دوی ته [به ووئیلې شی ﴿اَلْيَوْمَ نَنْسٰىكُمْ كَمَا نَسِيْتُمْ لِقَآءَ يَوْمِكُمْ هٰذَا﴾ چه نن مونږ تاسو لره هیر وو] یعنی درحمت نه تاسو محرومه کوو کومې ته چه د مجازا هیرول ووئیل [لکه څنګه چه تاسو خپلې ددې ورځې راتلو لره هیره کړې وه او] دنن نه ﴿وَمَاْوٰىكُمُ النَّارُ وَمَا لَكُمْ مِّنْ نّٰصِرِيْنَ﴾ [ستاسو ځائ جهنم دې او څوک ستاسو مدد ګار نشته ﴿ذٰلِكُمْ بِاَنَّكُمُ اتَّخَذْتُمْ اٰيٰتِ اللّٰهِ هُزُوًا﴾ دا] سزا [په دې وجه سره ده چه تاسو دالله تعالی په ایتونو پورې خنداګانې کولې ﴿وَّغَرَّتْكُمُ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا﴾ او تاسو لره ددنیا ژوند په دوکه کښې غورزولی وئ چه په کښې مشغول شوئ داخرت نه بالکل غافل بلکه منکر شوئ ﴿فَالْيَوْمَ لَا يُخْرَجُوْنَ مِنْهَا وَلَا هُمْ يُسْتَعْتَبُوْنَ﴾ [پس نن به داخلق نه د دوزخ نه راویستلې شی اونه به د دوی نه د الله تعالی د خفګان څه تدارک اوغوښتلې شی] یعنی ددې موقع به ورلـه ورنـه کړې شی چه توبه وکړی الله تعالی راضی کړی هرکله چه داټول مضامین تاسو واوریدل [نو] په دې سره داهم معلومه شوه چه ﴿فَلِلّٰهِ الْحَمْدُ﴾ [ټول ثناء صفت الله تعالی لره] ثابت [دی ﴿رَبِّ السَّمٰوٰتِ وَرَبِّ الْاَرْضِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ﴾ کوم چه پروردګار دې داسمانونو اوپروردګار دې دمزکې] او داسمان اومزکې څه تخصیص دې هم هغه خو [پروردګار دې دټول عالم ﴿وَلَهُ الْكِبْرِيَآءُ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ﴾ او هغه لره لوئی ده] دکومې ظهور او اثار چه په علاماتو سره [په اسمانونو او په مزکې] کیږی ﴿وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ﴾ [او هغه زبردست دې حکمت والا دې]

## معارف او مسائل

﴿وَتَرٰى كُلَّ اُمَّةٍ جَاثِيَةً﴾ دا د جثو څخه مشتق دي او ددې معنى د پښو په سر کيناستل دي. او سفيان رحمه الله فرمائي چې جثو داسې ناستې ته وائي چې په هغې کښې په زمکه باندې صرف څنګونونه او د پښو پنجې راشي. داسې ناسته به د ويرې او فکر مندئي وي. او د کل امة لفظ څخه ظاهر دادى چې دا صورت به په محشر کښې هر کافر او مؤمن ته وي. او ځينو نورو آيتونو کښې او رواياتو کښې چې د محشر کوم ويرې څخه نبيان عليهم السلام او صلحاء کرامو لره مستثنى ګرځولې شوى دى دا دهغې خلاف ندې ځکه چې ممکن دى چې دا ويره په انبياء عليهم السلام باندې او نيکانو بندګانو باندې څه وخت پورې وى، د لږ او قليل کيدو په وجه دا په نيشت کښې حساب کړې ده. اودا هم کيدې شي چې د ﴿كُلَّ اُمَّةٍ﴾ نه مراد عام اهل محشر نه وى بلکه اکثر ترې مراد وى لکه څنګه چې لفظ د کل ځينې وختونو کښې د اکثر دپاره استعماليږى. او ځينې مفسرينو د جاثيه معنى داسې نشست دپاره کړې ده لکه څنګه چې مونځ کښې وى نو بيا هغه اشکال پخپله ختميږى ځکه چې دا نشست دويرې نه دې د ادب نشست دې.

﴿كُلُّ اُمَّةٍ تُدْعٰى اِلٰى كِتٰبِهَا﴾ کتاب څخه مراد دې ځائې کښې د مفسرينو په نزد اعمال نامه ده کومه چې فرښتو په دنيا کښې ليکلې وه. او اوس به په محشر کښې دا صحيفې د اعمالو والوزولې شى. د هر چا عمل نامه به دهغه په لاس کښې ورشى. او هغه ته به اووئيلې شى چې ﴿اِقْرَاْ كِتٰبَكَ كَفٰى بِنَفْسِكَ الْيَوْمَ عَلَيْكَ حَسِيْبًا﴾ يعنى خپله عمل نامه اووايه او پخپله حساب اولګوه چې تاته ددې عملونو څه بدله ملاويدل پکار دى. او دې اعمالو ته درابللو مطلب دادې چې ددې حساب طرفته رابلل دى. لکه څنګه چې خلاصه تفسير کښې راغلى دى، والله اعلم.

**تمت سورة الجاثية لحادي عشر من رجب ۱۳۹۲ هجري يوم الثلثاء ولله الحمد والمنة**

[الحمد لله پاره نمبر ۲۵ ختمه شوه]

| اياتونه | سورة الاحقاف مكية وهي خمس وثلاثون اية واربع ركوعات | ركوع ګاني |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ۳۵ | شروع كوم په نوم د الله چه ډير مهربان　زيات رحم كونكي دي | ۴ |

حٰمٓ ۝ تَنْزِيْلُ الْكِتٰبِ مِنَ اللّٰهِ الْعَزِيْزِ الْحَكِيْمِ ۝

ح م | نازليدل ددې كتاب | دطرفه دالله | غالب | او حكمت والا نه دى |

حم | ددې كتاب راليږل د الله د طرفه دى | چې غالب او صاحب د حكمت دې

مَا خَلَقْنَا السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَآ اِلَّا بِالْحَقِّ

نه دى پيدا كړې مونږه | آسمانونه او زمكه | او هغه چې په منځ ددې دواړو كښې دى | مګر دحق سره

او مونږ آسمانونه او زمكه او ددې دواړو په مينځ كښې چې څه دى په ډير حكمت سره او په يوه

وَّاَجَلٍ مُّسَمًّى ؕ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا عَمَّآ اُنْذِرُوْا

او دنيتې مقررې سره | او هغه كسان | چې كفر ئې اوكړو | دهغې حقيقت نه | چې يرولې كيږى ترې دوئ

مقرره نيته پيدا كړې دى | او كافران چې دكومو څيزونو نه ويرولې شي | هم د هغه څيزونو نه ړړه

مُعْرِضُوْنَ ۝ قُلْ اَرَءَيْتُمْ مَّا تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ

مخ اړونكى دى | اووايه | آيا وينئ تاسو | هغه هستيانې | چې رابلئ ئې تاسو | ماسوا دالله نه

كونكى دى | [اې نبى ﷺ] ورته اووايه چې تاسو دالله ﷻ نه سوا دنورو كومو څيزونو عبادت كوئ

اَرُوْنِيْ مَاذَا خَلَقُوْا مِنَ الْاَرْضِ اَمْ لَهُمْ شِرْكٌ

اوښايئ ماته | چې څه پيدا كړى دى دوئ | دزمكې نه | يا دوئ لره | څه حصه ده

نو دا راته اوښائې چې هغوئ په زمكه كښې كوم څيز پيدا كړې دې | يا هغوئ د

فِي السَّمٰوٰتِ ؕ اِيْتُوْنِيْ بِكِتٰبٍ مِّنْ قَبْلِ

په [پيدا كولو د] آسمانونو كښې | راوړئ ماته | يو كتاب | چې نازل شوې وى مخكښې ددې نه

آسمانونو [په جوړولو] كښې شريك دى [كه چرې [دشرك په حق كښې] تاسو سره څه سابقه آسمانى كتاب

هٰذَآ اَوْ اَثٰرَةٍ مِّنْ عِلْمٍ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ۝ وَمَنْ اَضَلُّ مِمَّنْ

يا پاتې څه حصه | دعلم نه | كه يئ تاسو | رښتينى | او څوك دې | زيات بې لارې | دهغه چانه

يا علمى آثار موجود وى [نو ماته ئې راوړئ كه تاسو رښتونى يئ | او د هغه چانه به لوئې ګمراه څوك وى

يَّدْعُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَنْ لَّا يَسْتَجِيْبُ لَهٗٓ اِلٰى يَوْمِ

چې رابلى هغوئ | بې دالله نه | هغه څوك | چې جواب نه شى وركولې | هغه لره | دورځې

چې دالله ﷻ نه بغير دهغه څيزونو عبادت كوى | چې تر قيامته پورې ورته جواب نشى وركولې

| الْقِيٰمَةِ | وَهُمْ | عَنْ دُعَآئِهِمْ | غٰفِلُوْنَ۝ | وَاِذَا حُشِرَ | النَّاسُ |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| دقیامته پورې | او هغوئ | دبلنې دهغوئ نه | ناخبره دي | او کله چې | راجمع کړې شي خلق |
| بلکه هغوی د دوی د بلنې نه هم خبر نه دي | | | | .........او کله چې ټول خلق | [دقیامت په ورځ] |
| كَانُوْا | لَهُمْ | اَعْدَآءً | وَّكَانُوْا | بِعِبَادَتِهِمْ | كٰفِرِيْنَ۝ |
| نووی به[معبودان] | دپاره دهغه بلونکو | دشمنان | اووی به هغوئ | دعبادت دهغوئ نه | انکار کونکي |
| راغوندکړې شي | نو دغه معبودان به ئې دښمنان شي | | او ددوئ دعبادت نه به [بیخي] انکارکونکي شي | | |

## آسان ترجمه قرآن

حٰمٓ . دا کتاب د الله تعالی د طرف نه نازولې شی، چه لوئې صاحب اقتدار او لوئې صاحب د حکمت دې. مونږ آسمانونه او زمکه او ددوی په مینځ کښې چه کوم څیزونه دی، څه برحق مقصد نه بغیر او څه مقرر کړې شوې نیتې نه بغیر نه دی پیدا کړې او کومو خلقو چه کفر اختیار کړې دې، هغوی د هغې څیز نه مخ اړولې دې، د کوم څیز نه چه هغوی خبرداره کړې شوې دی ته دوی ته اووایه چه: آیا تاسو په هغې څیزونو باندې چرې غور کړې دې، کوم چه تاسو د الله تعالی نه سوا رابلئ؟ ماته اوښایئ، چه هغوی د زمکې کوم یو څیز پیدا کړې دې؟ یا د آسمانونو (په تخلیق) کښې دهغوی څه حصه شته؟ ماته څه داسې کتاب راوړئ، چه ددې قرآن مجید نه مخکښې وی، یا څه روایت چه دهغې بنیاد په علم باندې وی، که تاسو واقعی رښتونی یئ. او د هغه سړی نه به لوئې گمراه بل څوک وی، چه د الله تعالی نه ماسوا هغه (د ځان نه جوړ کړې بتانو) لره رابلی چه د قیامت د ورځې پورې د هغه د بلنې جواب نشی ورکولې، او چه کومو ته د هغوی د بلنې خبر هم نه وی او هرکله چه خلق د محشر په ورځ راجمع کړې شی، نوهغوی به ددوی دښمنان شی، او ددوی د عبادت نه به منکر شی.

## خلاصه تفسير

﴿حٰمٓ﴾[حم] ددې معنی الله تعالی ته معلومه ده ﴿تَنْزِيْلُ الْكِتٰبِ مِنَ اللّٰهِ الْعَزِيْزِ الْحَكِيْمِ۝﴾[داکتاب دالله تعالی زبردست حکمت والا دطرف نه رالیږلې شوې دې] په دې وجه ددې مضامین قابل غور دی وړاند د توحید او معاد بیان دې چه ﴿مَا خَلَقْنَا السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَآ اِلَّا بِالْحَقِّ﴾[مونږ اسمانونو اومزکې لره اوکوم څیزونه چه ددې په مینځ کښې دی په حکمت سره ﴿وَاَجَلٍ مُّسَمًّى﴾ او دیو معین میعاد پورې پیداکړی دی ﴿وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا عَمَّآ اُنْذِرُوْا﴾ اوکوم خلق چه کافران دی دوی لره چه دکوم څیزونونه ویرولې شی] مثلا داچه دتوحید نه په انکار به تاسو لره په قیامت کښې عذاب وی ﴿مُعْرِضُوْنَ۝﴾[هغه په ددې نه څخه اعراض کوی] او خیال ورته نه کوی او توحید نه قبلوی [نه] دوی ته دتوحید په باره کښې ﴿قُلْ اَرَءَيْتُمْ مَّا تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ﴾[ووایه چه داخو وښایئ کومو څیزونو لره چه تاسو دالله تعالی] دتوحید [نه سوا عبادت کوئ] د هغوی د عبادت دمستحق کیدو څه دلیل دې؟ که عقلی دلیل وی نو ﴿اَرُوْنِيْ مَاذَا خَلَقُوْا مِنَ الْاَرْضِ اَمْ لَهُمْ شِرْكٌ فِي السَّمٰوٰتِ﴾[ماته داوښایئ چه هغوی کومه مزکه پیداکړې ده یا دهغوی په اسمانونو پیداکولو [کښې څه حصه ده] او ظاهره ده چه تاسو هم هغوی لره خالقان نه منئ کوم چه دلیل کیدې شی دعبادت د مستحق کیدو بلکه مخلوق ورته وایئ کوم چه د عبادت دمستحق کیدو

منافي دي پس عقلي دليل خو نشت شو اوكه تاسو سره دليل نقلي وي نوچه ﴿ائْتُونِي بِكِتَابٍ مِّن قَبْلِ هَٰذَا﴾ [ماته څه] صحيح [كتاب] راوړئ په كوم كښې چه دشرك حكم وي او [كوم چه ددې] قرآن [نه وړاند وي] ځكه چه تاسو هم پوه يئ چه په قرآن كښې دشرك نفي ده پس ضرورت دبل كتاب دې [يا] كه كتاب نه وي نو ﴿أَوْ أَثَارَةٍ مِّنْ عِلْمٍ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ﴾ [څه بل] معتبر [مضمون] چه زباني [منقول] راروان وي او په كتاب كښې ليك نه وي [راوړئ كه تاسو] په دعوى دشرك كښې [رښتوني يئ] مطلب داچه دليل نقلي قابل تصديق او مستند ضروري دې د چانبې كتاب وي يا د هغه قول وي زباني [او] ظاهره ده چه داسې دليل هيڅوك نه شي پيش كولې مګر څوك چه دخپلې باطلې عقيدې نه بيا هم واپس نه شي دداسې سړي په باره كښې فرماني ﴿وَمَنْ أَضَلُّ مِمَّن يَدْعُو مِن دُونِ اللَّهِ﴾ د هغه سړي نه زيات ګمراه به څوك وي چه [په خپله ددليل نه عاجز وي او په دهٔ ددليل قائميدو نه پس بيا هم] الله تعالى پريږدي داسې معبودانو لره بلې ﴿مَن لَّا يَسْتَجِيبُ لَهُ إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ﴾ كوم چه ترقيامته پورې هم ددهٔ دبلنې جواب نه شي وركولې ﴿وَهُمْ عَن دُعَائِهِمْ غَافِلُونَ﴾ او هغوى ددهٔ دبلنې نه هم خبرنه وي ﴿وَإِذَا﴾ او] بيا [هركله چه] په قيامت كښې ﴿حُشِرَ النَّاسُ﴾ [ټول بنيادم] د حساب دپاره [جمع شي ﴿كَانُوا لَهُمْ أَعْدَاءً﴾ نو هغوى] معبودان به د دوى [عبادت كوونكو] دښمنان شي ﴿وَكَانُوا بِعِبَادَتِهِمْ كَافِرِينَ﴾ او دسره به د هغوى د عبادت نه انكار وكړي [پس دداسې معبودانو د عبادت كولو نه زياته غلطي بله څه ده چه دعبادت كولوئ څه معقول وجه نشته او دعبادت نه كولو اسباب او وجهې يې ډيرې دي.

## معارف او مسائل

﴿قُلْ أَرَأَيْتُم مَّا تَدْعُونَ مِن دُونِ اللَّهِ﴾ دې آيتونو مباركو كښې دمشركانو دشرك د دعوې باطلولو دپاره ترې په دغې باطلې دعوې باندې دليل غوښتلې شوې دې ځكه چې هيڅ دعوى بغير د ګواهئ اودليل نه د عقل يا شرع تر مخه دعمل كولو جوګه نه وي بيا په دې كښې د دليلونو څومره قسمونه چې كيديشي هغه يئ په دې كښې ټول جمع كړي دي. او دا يئ ثابت كړي دي چې ستاسو په دعوى هيڅ قسمه دليل نشته دې. كه تاسو په بې دليله دعوى قائم اوسئ نو دا به ګمراهي وي. دې آيت مبارك كښې درې قسمه دلائل دي. يو عقلي دليل دې، او ددې د نشتوالي دپاره يئ اوفرمائيل چې ﴿أَرُونِي مَاذَا خَلَقُوا مِنَ الْأَرْضِ أَمْ لَهُمْ شِرْكٌ فِي السَّمَاوَاتِ﴾ دويم دليل نقلي دې اوداښكاره ده چې د الله ﷻ په معامله كښې هغه نقلي دليل لره هيڅ اعتبار نشي كيدې چې پخپله دالله ﷻ د طرفنه راغلې وي. لكه آسماني كتابونه، تورات انجيل او قرآن عظيم الشان وغيره. يا دهغې حضراتو اقوال چې الله ﷻ رسول او پيغمبر ګرځولي وي، ددې دواړو قسمونو څينې د رومبى قسم نيشتوالې خو يئ داسې اوفرمائيل چې ﴿ائْتُونِي بِكِتَابٍ مِّن قَبْلِ هَٰذَا﴾ يعنى كه تاسو سره د بت پرستئ څه دليل موجود وي نو بيا خو آسماني كتاب پيش كړئ چې په هغې كښې د بت پرستئ او شرك كولو اجازت وركړې شوې وي. او دويم قسم د پيغمبرانو ﷺ د څه قول د نيشتوالي دپاره يئ اوفرمائيل چې ﴿أَوْ أَثَارَةٍ مِّنْ عِلْمٍ﴾ يعنى كه تاسو دالله ﷻ ديو كتاب نه د شرك او بت پرستئ څه دليل نه شئ پيش كولې نو بيا دپيغمبرانو د يو پيغمبر قول اوښائې چې دهغه نه دا ثابت شوې وي. او كله چې تاسو نشئ پيش كولې نو ستاسو قول او

عمل بغیر د ګواهئ نه بل څه کیدې شی په ﴿أَوْ أَثَٰرَةٍ مِّنْ عِلْمٍ﴾ کښې ﴿أَثَٰرَةٍ﴾ مصدر دې په وزن د شجاعة او سماحة وغیره چې معنی یې نقل کول او روایت دې. په دې وجه عکرمه رحمه الله او مقاتل رحمه الله د ﴿أَوْ أَثَٰرَةٍ مِّنْ عِلْمٍ﴾ په تفسیر کښې روایت عن الانبیاء اوفرمائیلو. او قرطبی ددې تفسیر په اسناد حسن سره کړې دې. خلاصه دا شوه چې د دلیل نقلی دوه قسمه معتبر دی. یو آسمانی کتاب چې الله تعالیٰ په یو پیغمبر باندې نازل کړې وی. دویم د پیغمبر څه داسې قول چې معتبر سند سره ترې ثابت شوې وی. نو د ﴿أَوْ أَثَٰرَةٍ مِّنْ عِلْمٍ﴾ هم دغه مطلب دې، دا ټول مضمونونه دتفسیر قرطبی نه اخستې شوی دی[1]. او دا تفسیر غوره او بهتر دې. د څینې حضراتو نه د ﴿أَوْ أَثَٰرَةٍ مِّنْ عِلْمٍ﴾ په تفسیر کښې نور اقوال هم منقول دی خو هغه ثابت نه دی او د قرآن عظیم الشان د نظم سره مناسب هم نه دی. ځکه د جمهورو په نزد غوره نه دی، والله اعلم.

| وَإِذَا | تُتْلَىٰ | عَلَيْهِمْ | ءَايَٰتُنَا | بَيِّنَٰتٍ | قَالَ الَّذِينَ |
|---|---|---|---|---|---|
| او کله چې | لوستلې کیږی | په هغوئ باندې | آیتونه زمونږه | واضحه | نو وائی هغه کسان |
| او کله چې د دوئ وړاندې زمونږ ښکاره آیاتونه اولوستې شی نو کوم کسان چې کافران دی هغوی | | | | | |

| كَفَرُوا | لِلْحَقِّ | لَمَّا | جَاءَهُمْ | هَٰذَا سِحْرٌ مُّبِينٌ ⑦ | أَمْ يَقُولُونَ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې کافران دی | حق ته | هر کله چې | راغلی دوئ ته | دا جادو دې ښکاره | آیا وائی دوئ |
| ددې رښتینې خبرې په باره کښې وائی \| کومه چې ورته رارسیدلې ده \| چې دا خو ښکاره جادو دې | | | | | |

| افْتَرَاهُ | قُلْ | إِنِ افْتَرَيْتُهُ | فَلَا تَمْلِكُونَ |
|---|---|---|---|
| چې دخانه جوړ کړې دې دهٔ دا قرآن | ورته اووایه | که دخانه جوړ کړې وی ما دا | پس نهٔ شئ بچ کولې تاسو |
| آیا دوئ وائی چې دهٔ [پیغمبر] دا کتاب دخان نه جوړ کړې دې \| ورته اووایه که دا مادخان نه جوړ کړې وی نو تاسو | | | |

| لِي | مِنَ اللَّهِ | شَيْئًا | هُوَ | أَعْلَمُ | بِمَا | تُفِيضُونَ | فِيهِ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ما لره | دنیولو دالله نه | هیڅ قدرله | هغه | ښه عالم دې | په هغه څه | چې تاسو لګیایئ | په هغې کښې |
| دالله د عذاب نه ما نشئ بچ کولې اوتاسو چې دقران په حق کښې څه کښې مشغوله یې الله په هغې ښه پوهه دې | | | | | | | |

| كَفَىٰ بِهِ | شَهِيدًا | بَيْنِي | وَبَيْنَكُمْ | وَهُوَ الْغَفُورُ |
|---|---|---|---|---|
| کافی دې هغه | په حیثیت دګواه سره | په منځ زما | او په منځ ستاسو کښې | او هغه بخښونکې |
| زما اوستاسو په مینځ کښې یو ازې هغه ګواه کافی دې \| او هغه [الله] ډیر بښونکې او رحم کونکې دې | | | | |

| الرَّحِيمُ ⑧ | قُلْ | مَا كُنتُ | بِدْعًا | مِّنَ الرُّسُلِ | وَمَا أَدْرِي | مَا يُفْعَلُ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مهربانه دې | ورته اووایه | نهٔ یم زهٔ | نوې | درسولانونه | او ماته پته نشته | چې څه به کیږی |
| [ائی محبوبه] ته ورته اووایه چې زه په رسولانو کښې څۀ نا آشنا رسول خو نه یم \| زه خو په دې هم نه پوهیږم | | | | | | |

| بِي | وَلَا بِكُمْ | إِنْ أَتَّبِعُ | إِلَّا مَا | يُوحَىٰ |
|---|---|---|---|---|
| زما سره | اونهٔ دا چې څه به کیږی ستاسو سره | نهٔ کوم پیروی زهٔ | مګر دهغې | چې وحی کیدې شی |
| چې ماسره بهٔ څهٔ [سلوک] کیږی \| اوتاسوسره څه \| زه خو بس په هغه حکم پسې روان یم \| دکومې چې راته وحی کیږی | | | | |

[1]) تفسیر القرطبی: ج ۱۶، ص ۱۷۹ نه ۱۸۲ پورې.

إِلَيَّ وَمَآ أَنَا۠ إِلَّا نَذِيرٌ مُّبِينٌ ۝ قُلْ أَرَءَيْتُمْ إِن كَانَ

ماته | او نه یم زه | مگر | خبرداروونکې ښکاره | ورته اووایه | آیا وینئ تاسو | که وی دا قرآن

اوزه بس یو ښکاره ویرونکې یم|ائې نبی ﷺ! ته ورته اووایه | چې دا خو راته اوښائې

مِنْ عِندِ ٱللَّهِ وَكَفَرْتُم بِهِۦ وَشَهِدَ شَاهِدٌ

دطرفه دالله نه | او انکار اوکړئ تاسو | په دې سره | او گواهی کړې ده | یو گواه |

که دا قران پاک دالله ﷻ دطرفه راغلې وی |اوبیا هم تاسوترې انکار اوکړئ| اودبنی اسرائیلو یوگواه

مِّنۢ بَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ عَلَىٰ مِثْلِهِۦ فَـَٔامَنَ وَٱسْتَكْبَرْتُمْ

دبنی اسراءیلو نه | په مثل ددې کلام باندې | پس هغه ایمان راوړو | او تکبر اوکړو تاسو |

ددې په شان په یو کتاب گواهی ورکړه|او ایمان ئې راوړو|اوتاسود ایمان راوړو نه تکبر اوکړو

إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَهْدِى ٱلْقَوْمَ ٱلظَّٰلِمِينَ ۝

بیشکه الله |نه ښائی لار نیغه | قوم ظالم ته |

بیشکه الله ﷻ بې انصافه خلقو ته هدایت نه کوی |

## آسان ترجمه قرآن

او کله چه دوی باندې زمونږ آیتونه پوره وضاحت سره لوستلې کیږی، نو دا کافران خلق د حقې خبرې ویخ ته رسیدلو نه پس هم دهغې باره کښې وائی: چه دا خو ښکاره جادو دې. آیا ددوی وینا داده، چه دې لره پیغمبر د ځان نه جوړ کړې دې؟ اووایه چه: که ما دا د ځان نه جوړ کړې دې، نو تاسو ما لره دالله تعالی د رانیولو نه لږ شان هم بچ کولې نشئ کومې خبرې چه تاسو جوړوئ، الله تعالی په هغې باندې ښه پوهیږی، زما او ستاسو په مینځ کښې گواه جوړیدلو دپاره هغه کافی دې، او هم هغه دې، چه ډیر بخونکې او لوئې مهربان دې. اووایه چه: زه په پیغمبرانو کښې څه نااَشنا پیغمبر نه یم، او ماته معلوم نه دی، چه ما سره به څه کیږی، او نه دا معلوم دی، چه تاسو سره به څه کیږی؟ زه د څه بل څیز نه، صرف د هغې وحی تابعداری کوم، کومه چه ماته رالیږلې کیږی او زه خو صرف یو واضحه طریقې سره خبرداروونکې یم. اووایه چه: خبر را کړئ ماته، که دا (قرآن) د الله تعالی د طرف نه وی او تاسو ددې نه انکار کوئ، او د بنی اسرائیلو نه یو گواه دداسې خبرې په حق کښې گواهی هم ورکړې وی، او په هغې باندې ئې ایمان هم راوړې وی او تاسو په خپل غرور کښې مبتلا اوسئ (نو دا څومره د ظلم خبره ده) یقین اوکړئ، چه الله تعالی هغې خلقو ته هدایت نه کوی، چه ظالمان وی.

### خلاصه تفسیر

﴿وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ ءَايَٰتُنَا بَيِّنَٰتٍ﴾[او هر کله چه زمونږ ښکاره ښکاره ایتونه] کوم چه دمعجزه کیدو په وجه درسالت دلیلونه دی [ددې] منکرانو درسالت [خلقو په وړاند لوستلې شی ﴿قَالَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ لِلْحَقِّ لَمَّا جَآءَهُمْ﴾ نو دا منکران خلق ددې رښتونې خبرې په نسبت هرکله چه هغه دوی ته رسیږی داسې وائی ﴿هَٰذَا سِحْرٌ مُّبِينٌ ۝﴾ چه دا ښکاره جادو دې] حال دادې چه دجادو دمثل ممکن کیدل او ددې دمثل نه ممکن کیدل ددې قول د بطلان واضح دلیل دې او ددې نه زیاته

بله واوزي ﴿اَمۡ يَقُوۡلُوۡنَ افۡتَرٰىهُ﴾ ایا داخلق دا وائي چه دې سړی] یعني تا نعوذ بالله [دې] قرآن [له دخپل طرف نه جوړ کړې راوړې دې] او دالله تعالی طرف ته دا منسوب کړې دې وړاند ددې قول جواب دې چه ﴿قُلۡ اِنِ افۡتَرَيۡتُهٗ﴾ [ته ووایه که ما دې له دخپل طرف نه جوړ کړې وی] او دالله تعالی طرف ته مې ددې نسبت کړې وی [نو] الله تعالی به دخپل عادت مطابق خلقو له ددوکې نه دبچ کولو دپاره ماله د نبوت د دروغو په دعوی باند ډیر زر هلاك کړی [بیا] هرکله چه هغه ماله هلاکوی نو ﴿فَلَا تَمۡلِكُوۡنَ لِيۡ مِنَ اللّٰهِ شَيۡـًٔا﴾ [تاسو] یا نور [خلق ماله د الله تعالی] دعذاب [نه یوه ذره هم نه شی بچ کولې] مطلب دا چه د دروغو دنبوت په دعوی باند عذاب راتلل داسې لازمی دی چه زما هیڅوك حامی مددګار هم هغې له نه شی منع کولې مګر په ما عذاب رانغې دادلیل دې ددې چه زه په خپله دعوی دنبوت کښې دروغژن نه یم او هرکله چه زه دروغژن نه یم نو پوه شئ چه ﴿هُوَ اَعۡلَمُ بِمَا تُفِيۡضُوۡنَ فِيۡهِ﴾ [هغه ښه پوه دې چه تاسو کومې کومې خبرې په قرآن کښې جوړوئ] په دې وجه به تاسو له سزا وی غرض دا چه ﴿كَفٰى بِهٖ شَهِيۡدًۢا بَيۡنِيۡ وَبَيۡنَكُمۡ﴾ [زما او ستاسو په مینځ کښې] د صدق او دکذب دفیصلې کولو دپاره [هغه کافی ګواه] یعنی خبردار [دې] په دې وجه که زه د دروغژن یم نو ماته به فورا عذاب راکړی او که تاسو دروغژن یئ نو تاسو ته به زر یا پس ته او وروستو عذاب درکړی [او] که چاته دا شبهه وی چه هرکله هغه زمونږ د خبرونه خبردار دې او بیا هم په مونږ عذاب رانغې نو لکه څنګه چه په مدعی د نبوت عذاب نه راتلل ددهٔ رښتونوالی دلیل کیدې شی همداشان په مونږ منکرینو باندې عذاب نه راتلل زمونږ د رښتنوالی دلیل جوړیدې شی نو ددې جواب دادې چه ﴿وَهُوَ الۡغَفُوۡرُ﴾ [هغه لوئ مغفرت والا دې] په دې وجه د مغفرت ځنې اقسام مثلا په دنیا کښې په کافرانو عذاب نه راتلل هم واقع کوی ﴿الرَّحِيۡمُ﴾ [او لوئ رحمت والا دې] په دې وجه د رحمت ځنې اقسام هم کوموته چه رحمت عامه وائی دکفارو دپاره هم واقع کوی په دې وجه دمنکرانو په انکار په دنیا کښې عذاب نه کیدل د دوی دصدق دلیل نه دې په خلاف دمدعی دنبوت نه چه هلته د دروغو دعوی او عذاب نزول دواړه لازم او ملزوم دی ځکه چه دنبوت په دروغه دعوی کونکی ته په دنیا کښې عذاب نه ورکول د خلقو دګمراهئ سبب جوړیدې شی په خلاف دنورو مجرمانو نه وړاند د نبوت د اثبات تاکید دې چه ﴿قُلۡ مَا كُنۡتُ بِدۡعًا مِّنَ الرُّسُلِ﴾ [ته ووایه چه زه څه نااشنا رسول خو نه یم] چه تاسو دپاره دتعجب باعث شی ځکه چه زمانه وړاند ډیر پیغمبران راغلی دی دکومو خبر چې په تواتر سره تاسو هم اوریدلې دې [او] دغه شان د څه عجیبه خبرې هم زه دعوی نه کوم لکه چه مثلا علم غیب دې چنانچه زه په خپله وایم چه ماته د غیب د خبرونه صرف هغه معلومې دی کومې چه په وحی سره ماته ښودلې شوی دی د غیبو د څه بلې خبرې ماته خبر نشته حتی چه ﴿وَمَاۤ اَدۡرِيۡ مَا يُفۡعَلُ بِيۡ﴾ [زه نه پوهیږم چه ماسره به څه کولې شی ﴿وَلَا بِكُمۡ﴾ اونه] دامعلومه ده چه [تاسوسره به څه کولې شی] په دې وجه هرکله چه دخپل او ستاسو دائنده حالاتو دعلم زه مدعی نه یم نو دلرې غیبی خبرو په باره کښې به زه څه دعوی کوم البته دکومو کارونو علم چه په وحی سره شوې دې خواه هغه دخان متعلق وی یا دغیر او خواه ددنیا حالات وی یا داخرت د هغې علم بیشکه چه کامل دې چنانچه وړاند ارشاد دې چه ﴿اِنۡ اَتَّبِعُ اِلَّا مَا يُوۡحٰۤى اِلَىَّ﴾ [زه خو] په علم عمل کښې [صرف د هغې تابعداری کوم کوم چه ماته د وحی په ذریعه سره راځی او] د هغې تبلیغ هم کوم اوکه تاسو دې له نه منئ نو زما هیڅ

نقصان نشته څکه چه ﴿وَمَآ اَنَا اِلَّا نَذِيۡرٌ مُّبِيۡنٌ﴾ [زۀ خو صرف صفا صفا ويرونکي يم] کوم لره چه ماپه دليلو نو سره ثابته کړې دى او بره چه کوم الزام د افتراء دترديد په [هو اعلم بما تفيضون فيه] سره اجمالا شوې وو ورانند دهغې دتفصيل په طور سره ارشاد دې چه ﴿قُلۡ اَرَءَيۡتُمۡ اِنۡ كَانَ مِنۡ عِنۡدِ اللّٰهِ﴾ [ته ووايه چه تاسو ماته دا وښايئ چه که دا قرآن دالله تعالى دطرف نه وى او بيا ﴿وَكَفَرۡتُمۡ بِهٖ﴾ [تاسو ددې نه انکار کوئ او] په څه دليل سره ددې دالله تعالى دطرف نه دکيدلو زيات تائيد هم وشى مثلا په دې دليل سره چه ﴿وَشَهِدَ شَاهِدٌ مِّنۡۢ بَنِىۡۤ اِسۡرَآءِيۡلَ عَلٰى مِثۡلِهٖ﴾ [دبنى اسرائيلو] د عالمانو [نه يو] معتبر [ګواه] کوم چه دعلم او ديانت په اعتبار سره منلې شوې او معتبروى او يووى يازيات په ماضى کښې وى ياپه حال کښې يا په مستقبل کښې [ددې رنګې په کتاب] يعنى ددې کتاب دالله تعالى دطرف نه په کيدو [باند ګواهى ورکړى ﴿فَاٰمَنَ وَاسۡتَكۡبَرۡتُمۡ﴾ پس هغه ايمان راوړى او تاسو] سره دبې علمه کيدو په دې کتاب دايمان راوړو نه [تکبر وکړئ] نوپه دې صورت کښې به تاسونه زيات بې انصافه څوك وى؟ اودبې انصافه خلقو داحالت دې چه ﴿اِنَّ اللّٰهَ لَا يَهۡدِى الۡقَوۡمَ الظّٰلِمِيۡنَ﴾ [بيشکه الله تعالى بې انصافه خلقو ته] د دوى دعناد په وجه [هدايت نه کوئ] بلکه هميشه په ګمراهئ کښې وى او دګمراهئ انجام اور دې.

## معارف او مسائل

﴿وَمَآ اَدۡرِىۡ مَا يُفۡعَلُ بِىۡ وَلَا بِكُمۡ ؕ اِنۡ اَتَّبِعُ اِلَّا مَا يُوۡحٰٓى اِلَىَّ﴾ دې آيت مبارك کښې د ﴿اِنۡ اَتَّبِعُ﴾ جمله د استثنى په معنى ده. يعنې زه نه پيژنم سوا ددې نه چې ماته وحى کولې شى. هم په دې بنا د امام التفسير ضحاك رحمه الله نه ددې آيت مبارك تفسير هغه منقول دې کوم چې ددې آيت مبارك په خلاصه کښې اختيار کړې شوې دې. ددې حاصل دادې چې د غيبى خبرو علم ماته صرف د وحى په ذريعه راکولې شى. دکومې معاملې باره کښې چې ماته دوحى په ذريعه علم نه وى که هغه زما د ذات باره کښې وى او که د امت دکافرانو يا مؤمنانو خلقو سره، که د هغې تعلق دنيا سره وى اوکه آخرت سره، ماته بالکل معلوم نه وى. د غيبى خبرو باره کښې چې زه څه وايم هغه ټول د وحى الهى نه وايم. نو په قرآن عظيم الشان کښې پخپله راغلى دى چې الله ﷻ بې شميره عملونه دغيبى خبرو باره کښې ورکړې دى، د آيت: ﴿تِلۡكَ مِنۡ اَنۡۢبَآءِ الۡغَيۡبِ نُوۡحِيۡهَآ اِلَيۡكَ﴾ هم دا مطلب دې. د آخرت د خبرو، د دوزخ، جنت، حساب، کتاب، سزا او جزا باره کښې خو تفصيلات پخپله په قرآن عظيم الشان کښې بې شميره موجود دى. او په دنيا کښې د راپيښيدونکو راتلونکو واقعاتو ډير تفصيلات په صحيح احاديثو متواترو کښې د رسول کريم ﷺ نه منقول دى. ددې آيت مبارك حاصل صرف او صرف دا دې چې زه په غيبى خبرو په راچاپيره علم کښې د الله ﷻ په شان نه يم. او دهغې په علم کښې مې خپل اختيار نه چليږى بلکه ماته چې دالله ﷻ د طرفنه کومه وحى کيږى هغه بيانوم. تفسير روح المعانى کښې ددې قول په نقل کولو سره ليکلى دى چې زما عقيده داده چې رسول کريم ﷺ ددې دنيا نه تر هغه وخته پورې نه دې رخصت شوې تر څو چې دالله ﷻ د ذات او صفاتو د آخرت او دنيا د راپيښيدونکو واقعاتو اهم معاملو نه رسول کريم ﷺ په ذريعه د وحى نه وى خبر کړې شوى. د هر کس خان خانله حالاتو او معاملاتو علم چې زيد به صبا څه کار کوى او دهغه انجام به څه وى، عمرو، بکر پخپلو خپلو کورونو کښې څه کارونه کوى، يا آئنده به کوى، ددې غيبى خبرو

علم نه څه کمال دي او نه دهغې په نيشتوالى كښې دپيغمبرئى په كمال كښې څه فرق راشي[۱]

**درسول کريم ﷺ د علم غيب باره کښې د آدب غوښتنه:** د رسول کريم ﷺ د علم غيب باره كښې د آدب تقاضا داده چې درسول کريم ﷺ باره كښې داسې اونه وئيلې شي چې رسول کريم ﷺ په علم غيب نه پوهيدو. بلكه داسې دې اووئيلې شي چې په پيغمبرانو ﷺ كښې يې بل چاته دومره علم نه وو وركړې. او ځينې مفسرينو چې وئيلى دى چې دې آيت مبارك كښې ددنياوى خبرو د علم غيب د نيشتوالى بيان دې ، د آخرت د علم غيب د نيشتوالى بيان دې باره كښې شامل نه دى [كما ذكره القرطبى][۲]

هغوئ ﴿إِنْ أَتَّبِعُ إِلَّا مَا يُوحَىٰ إِلَيَّ﴾ غالبا د استثناء په معنى نه دې اخستې ځكه دعلم غيب نيشوالي يې دنيوى خبرو سره خاص كړو ، ولې چې دآخرت په باره كښې خو په ښكاره هغوئ اوخودل چې كافر به دوزخ ته او مؤمن به جنت ته داخليږى.

﴿وَشَهِدَ شَاهِدٌ مِّن بَنِي إِسْرَائِيلَ عَلَىٰ مِثْلِهِ فَآمَنَ وَاسْتَكْبَرْتُمْ﴾ ددې آيت مبارك او دسورة شعراء دآخرى ركوع د آيت مضمون تقريبا يو شان دې ، دسورة شعراء هغه آيت مبارك داسې دې چې ﴿أَوَلَمْ يَكُن لَّهُمْ آيَةً أَن يَعْلَمَهُ عُلَمَاءُ بَنِي إِسْرَائِيلَ﴾ حاصل يې دادې چې دا جاهل يهود او نصارى درسول كريم ﷺ دپيغمبرئى اودقرآن عظيم الشان نه انكار كوى. دوئ پخپله د دخپلو كتابونو نه خبر نه دى او جاهلان دى ولې چې دبنى اسرائيلو ګڼرو عالمانو په خپلو كتابونو كښې د رسول كريم ﷺ د پيغمبرئى او د نبى كريم ﷺ د نخو او علاماتو په ليدو سره په نبى كريم ﷺ باندې ايمان راوړې وو. نو ددې عالمانو ګواهى هم ددې جاهلانو دپاره كافى نه ده؟ . دې آيت مبارك كښې دا فرمائى چې تاسوچې اووايئ چې زما دپيغمبرئى دعوى كول ، اودا دعوى كول غلط او هسې تور پورې كول دى چې قرآن عظيم الشان د الله ﷻ نازل كړې كتاب دې. اول خو ددې د غلطوالى دپاره هغه خبره كافى ده چې اوس اوس مخكښې داسې بيان شوه چې ځوك په الله ﷻ داسې ښكاره تور پورې كړى چې زه هغه الله ﷻ پيغمبر جوړ كړې يم . او په واقع كښې هغه پيغمبر نه وى نو په هغه باندې هم دې دنيا كښې عذاب راتلل او دهغه تباه كول ضرورى وى چې دې سره عام خلق غلط نه شى .او بالفرض تاسودا هم نه منئ نو بيا خو ددې احتمال نه سترګې مه پټوئ. كه زما دعوى صحيح شوه او دا كتاب الله هم د الله ﷻ د طرفنه نازل شوې وى او تاسو دهغې نه په كفر او انكار باندې كلك ولاړ يئ نو ستاسو انجام به څه وى ؟ خصوصا په هغه صورت كښې چې پخپله ستاسو په قوم بنى اسرائيلو كښې ځوك لوئې بنده ددې ګواهى وركړى چې دا دالله ﷻ د طرفنه دې اومسلمان شى او تاسو ددې علم نه پس هم پخپل ضداو تكبر باندې كلك يئ نوتاسو به څومره د عذاب حقدار يئ ؟

ددې آيت په الفاظو كښې دبنى اسرائيلو د يو خاص عالم نوم نه دې اخستې شوې او نه دا تاكلې شوى دى چې دا ګواهى ددې آيت مبارك د نازليدو نه وړاندې دخلقو مخې ته راغلې ده يا په آئنده كښې راتلونكې ده بلكه د يوې جملې شرطې په ډول فرمائيلې شوى دى چې كه په تيره شوې زمانه كښې يا اوس يا په آئنده زما نه كښې داسې اوشى نو تاسو له خپل فكر كول

[۱] ) روح المعانى تحت هذه الآية: ج ۱۹، ص ۵۱

[۲] ) تفسير القرطبي: ج ۱٦، ص ۱۸۷

پکار دی چې عذاب نه به څنګه محفوظ کیږئ. څکه دآیت مبارك په مضمون باندې پوهیدل
په دې اړه نه لري چې دبنی اسرائیلو په عالمانو کښې یو تن ګواه دی د دې مصداق
اوګرځولې شی بلکه څومره د یهود او نصاری حضراتو نه چې اسلام کښې داخل شو او هغه
ټول دې کښې داخل دی چې اسلام یې راوړې دې ، حضرت عبد الله بن سلام رضي الله عنه پدوی کښې
زیات مشهور دې ، اګر چې د حضرت عبد الله بن سلام رضي الله عنه ایمان راوړل د دې آیت مبارك د
نازلیدو نه پس په مدینه منوره کښې دی او دا ټول سورت مکي دې [ابن کثیر](۱)

او ځینې روایتونو کښې چې د سعد نه منقول دی چې دا آیت د عبد الله بن سلام رضي الله عنه په باره
کښې نازل شوې دې [لکه چې بخاری ، مسلم او نسائی روایت کړی د حدیث مالك نه](۲)
دغسې ابن عباس رضي الله عنه ، مجاهد رحمه الله ضحاك رحمه الله ، قتاده رحمه الله وغیره د تفسیر امامانو ټولو په
اتفاق سره فرمائیلی دی چې دا آیت مبارك دعبد الله بن سلام رضي الله عنه په باره کښې نازل شوې دې
نو دا د دې آیت دمکی کیدلو منافی څکه نه دې چې دې صورت کښې به دا پیشنګوئی آئنده
زمانې دپاره وی [ابن کثیر](۳)

وَقَالَ الَّذِيْنَ    كَفَرُوْا
اووائی هغه کسان | چې کفر ئې کړې دې
...... او کافران دمسلمانانو په حق کښې وائی

لِلَّذِيْنَ    اٰمَنُوْا    لَوْ كَانَ    خَيْرًا
هغه کسانو ته | چې ایمان ئې راوړې دې | که چرې وې | څه ښه کار [دا کتاب منل]
که دا [قران پاک] څه ښهٔ څیز وې | نو دوئ به پرې [په ایمان راوړو کښې] زمونږ نه وړاندې شوی نه وو

مَّا سَبَقُوْنَآ    اِلَيْهِ ط    وَاِذْ لَمْ    يَهْتَدُوْا
نو نهٔ به وړومبنی شوی دوئ زمونږ نه | هغې ته | او چې اونهٔ مونده دوئ لار | په دې سره
...... او کله چې دقران پاک نه دوئ ته هدایت نصیب نه شو | نو اوس دا وائی

بِهٖ فَسَيَقُوْلُوْنَ    هٰذَآ اِفْكٌ    قَدِيْمٌ ﴿١١﴾    وَمِنْ قَبْلِهٖ    كِتٰبُ مُوْسٰٓى
نو اوس به وائی دوئ | دا دروغ دی | پخوانی | حالانکه راغلی دې مخکښې د دې نه | کتاب دموسی
چې دا پخوانی دروغ دی | ...... او د دې [قران پاک] نه وړاندې دموسی کتاب هم لار خودونکې

اِمَامًا    وَّرَحْمَةً ط    وَهٰذَا كِتٰبٌ    مُّصَدِّقٌ    لِّسَانًا عَرَبِيًّا
په حیثیت درهنما | او درحمت | او دا کتاب | تصدیق کونکې دې دهغې | په ژبه عربئ کښې دې
اورحمت وو ...... | او دا کتاب دهغه تصدیق کوی | په عربئ ژبه کښې راغلې دې

لِّيُنْذِرَ    الَّذِيْنَ    ظَلَمُوْا ق    وَبُشْرٰى    لِلْمُحْسِنِيْنَ ﴿١٢﴾
دپاره د دې چې خبر دار کړی | هغه کسان | چې ظلم ئې کړې دې | او زیرې دې | دپاره دنیك عمله خلقو
[او د راتلو مقصد ئې دا دې] چې ظالمان خلق اوویروی | او نیکانو ته زیرې ورکړی

(۱) تفسیر ابن کثیر: ج ۷، ص ۲۷۸
(۲) صحیح البخاری، کتاب المناقب، باب مناقب عبدالله بن سلام رضی الله عنه: ج ۱، ص ۵۳۸
(۳) تفسیر ابن کثیر: ج ۷، ص ۲۷۸

## آسان ترجمه قرآن

او کومو خلقو چه کفر اختیار کړي دي، هغوی د ایمان راوړونکو په باره کښې داسې وائي چه: که دا (ایمان راوړل) څه ښه خبره وې، نو دې خلقو به زمونږ نه سبقت نه وو اوړلې. او هرکله چه دې کافرانو ددې نه خپله هدایت حاصل نه کړو، نو دوی به خامخا هم دا وائي، چه دا هغه پخوانې دروغ دی او ددې نه مخکښې د موسٰی علیه السلام کتاب لاره ښودونکې او رحمت راغلې دې، او دا (قرآن) هغه کتاب دې، چه سره ددې نه چه په عربۍ ژبه کښې دې، بیا هم دهغې تصدیق کوی دې دپاره چه ظالمان خبردار کړی، او دنیکانو دپاره زیرې جوړ شي.

## خلاصه تفسیر

﴿وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لِلَّذِينَ آمَنُوا﴾ [او داکافران دایماندارو] دایمان راوړو [په نسبت داسې وائی ﴿لَوْ كَانَ خَيْرًا مَّا سَبَقُونَا إِلَيْهِ﴾ چه که داقرآن] په کوم چه دې خلقو ایمان راوړې دې [څه ښه] یعنی رښتونې [شې وې نو دا] دکمې درجې [خلق به زمونږ نه دې ته نه وو وړاند شوی] یعنی مونږ ډیر عاقلان یو او دغه خلق کم عقل دی او حقه خبره عاقل وړاندې قبلوی نو که داحقه وې نو مونږ به اول منلې وه هرکله چه مونږ ونه منله نو دا حقه نه ده داخلق دبې عقلۍ نه اخوا دې خواته منډې وهی دکافرانو داقول ددوی دانتهائی تکبر دلیل دې چه ذکر ئې بره [پورته] په [استکبرتم کښې راغلې دې ﴿وَإِذْ لَمْ يَهْتَدُوا بِهِ﴾ [او هرکله چه] د عناد او تکبر په وجه [دې خلقو ته قرآن نه هدایت نصیب نه شو نو] دخپل عناد او ضدپه بنا [به ﴿فَسَيَقُولُونَ هَٰذَا إِفْكٌ قَدِيمٌ﴾ داووائي چه دا] هم په مثل د [پخوانو] درغو دمضامینونه یو [دروغ] مضمون [دې ﴿وَمِن قَبْلِهِ كِتَابُ مُوسَىٰ إِمَامًا وَرَحْمَةً﴾ او ددې] قرآن [نه وړاند دموسی علیه السلام] [کتاب] نازل شوې [دې کوم چه دموسی علیه السلام دامت دپاره بالعموم [لار ښودونکې] وو [او] د [اهل ایمانو دپاره بالخصوص رحمت وو] لکه څنګه چه په تورات کښې ددې پیشنیګوئی ده ﴿وَهَٰذَا كِتَابٌ مُّصَدِّقٌ﴾ او [دا] دغه شان [یوکتاب دې کوم چه هغې] پیشینګوئۍ [لره رښتونې کوی] او ﴿لِّسَانًا عَرَبِيًّا﴾ [په عرئی ژبه کښې] دې ﴿لِّيُنذِرَ الَّذِينَ ظَلَمُوا﴾ چه [ظالمانو لره دویرولو دپاره ﴿وَبُشْرَىٰ لِلْمُحْسِنِينَ﴾ اونیکو خلقو لره د خوشخبرۍ ورکولو دپاره] نازل شوې دې

## معارف مسائل

﴿لَوْ كَانَ خَيْرًا مَّا سَبَقُونَا إِلَيْهِ﴾ لوئې او غرور دانسان عقل لره هم بې کاره کوی ، نو متکبره بنده دهر څیز دښه والی او خرابوالی جاج په خپل عقل اوعمل سره اخلی . کوم څیز چې دهغه خوښ نه وی . اګر چې نور ټول خلق یئ خوښوی نودې دغه خلق بیوقوفه ګڼړی . سره ددې چې دا پخپله بې قوف دې ، دکافرانو ددغې درجې د تکبر او غرور بیان دې آیت مبارك کښې راغلې دې ، چې هر کله اسلام ددوئ نه وو خوښ نو کوم خلق چې د اسلام عاشقان وو دهغوئ باره کښې دغې خلقو یعنی کافرانو وئیل چې که دا ایمان څه ښه څیز دې نو ټولو نه ړومبې به زمونږ خوښ شوې وو ، که دا فقیران غریبانان یئ خوښوی نو د هغې څه اعتبار دې .

ابن منذر رحمه الله یو روایت نقل کړې دې چې کله عمر فاروق رضي الله عنه لا ایمان نه وو راوړې ، دهغوئ یو وینځې ایمان راوړې وو ، د وینځې نوم یئ زنین وو . هغوئ به په ایمان راوړلو هغه وهله . او په دې غرض به یئ ویروله چې اسلام پرېږدی ، د قریشو کافرانو به وئیل چې که اسلام څه

ښهٔ ځيز وي تو رنين (۱) غوندې سپکې ښځې به مونږ نه وړاندې اسلام نه وو راوړې . ددې باره کښې دغه آيت مبارك نازل شو . [مظهرى] (۲)

﴿وَمِن قَبْلِهِ كِتَابُ مُوسَىٰ إِمَامًا وَرَحْمَةً﴾ ددې كلام نه خو يو د ﴿مَا كُنتُ بِدْعًا مِّنَ الرُّسُلِ﴾ ثبوت ملاؤ شو چې دوئ څه نوې پيغمبر او قرآن څه نوې كتاب نه دې چې پرې ايمان راوړل خلقو ته ګران ښكارى. لكه ددوئ نه وړاندې موسى ﷺ هم دپيغمبر په حيث راغلې او تورات پرې نازل شوې وو چې دا ديهودو اونصاراؤ كافرانو يئ تهول منى ، دغسې پورته د ﴿شَهِدَ شَاهِدٌ﴾ تقويت او مضبوطيا هم په دې سره راغله څكه چې موسى ﷺ اوتورات پخپله د قرآن اودرسول الله ﷺ دحقانيت ګواه دى

| إِنَّ الَّذِينَ | قَالُوا | رَبُّنَا اللَّهُ | ثُمَّ اسْتَقَامُوا |
|---|---|---|---|
| بيشكه هغه كسان | چې وئې وئيل | چې رب زمونږ الله دې | بيا ټينګ وډريدل په هغې |
| بيشكه كومو كسانو چې اووئيل زمونږ رب الله ﷻ دې \| بيا پرې ټينګ پاتې شو | | | |

| فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ | وَلَا هُمْ | يَحْزَنُونَ | أُولَٰئِكَ | أَصْحَابُ الْجَنَّةِ |
|---|---|---|---|---|
| پس نشته يره په هغوئ باندې | او نهٔ به هغوئ | غمژن كيږى | دا كسان | خاوندان دجنت دى |
| نو په هغوئ به [د راتلونكو حالاتو] نه ويره وى \| اونه به غمژن شى \| هم دغه جنتيان دى | | | | |

| خَالِدِينَ | فِيهَا | جَزَاءً | بِمَا كَانُوا | يَعْمَلُونَ |
|---|---|---|---|---|
| هميشه به وسى | په هغې كښې | په بدله دهغه عملونو كښى | چې وؤ هغوئ | چې كول به ئې |
| چې هميشه به په هغې كښې وى \| دا جنت د هغوى د [نيكو] عملونو بدله ده | | | | |

| وَوَصَّيْنَا | الْإِنسَانَ | بِوَالِدَيْهِ | إِحْسَانًا | حَمَلَتْهُ |
|---|---|---|---|---|
| او هدايت اوكړو مونږه | انسان ته | دمور اوپلار خپل سره | داحسان كولو | بار كړو دهٔ لره |
| اومونږ انسان ته حكم كړې دې \| چې مورپلار سره ښه سلوك كوه \| ددهٔ مورې په ډير تكليف | | | | |

| أُمُّهُ | كُرْهًا | وَوَضَعَتْهُ | كُرْهًا | وَحَمْلُهُ |
|---|---|---|---|---|
| مور ددهٔ | په سختئ سره | اووزيږوو ئې دهٔ لره | په سختئ سره | او دمور په ګيډه كښې عمر ددهٔ |
| سره خيټه كښې اوساتلو \|اوپه ډير تكليف سره ئې اوزيږولو \| اوددهٔ دحمل زمانه | | | | |

| وَفِصَالُهُ | ثَلَاثُونَ شَهْرًا | حَتَّىٰ | إِذَا | بَلَغَ |
|---|---|---|---|---|
| او د تى نه پريكول ددهٔ | ديرش مياشتې وخت دې | تر دې پورې | كله چې | اورسيدو هغه |
| اودتى نه خلاصيدل په ديرشو مياشتو كښې پوره شو \| هركله چې دې خپلې پوره ځوانئ ته اورسيدو | | | | |

| أَشُدَّهُ | وَبَلَغَ | أَرْبَعِينَ سَنَةً | قَالَ | رَبِّ | أَوْزِعْنِي |
|---|---|---|---|---|---|
| طاقت خپل ته | اواورسيدو | څلويښتو كالو ته | نو اووئيل هغه | اے ربه زما | توفيق راكړې ماته |
| اودڅلويښتو كالو عمر ته اورسيدو \|نو دهٔ اووئيل چې اے زما ربه ماپه دې قائم پاتې كړې | | | | | |

(۱) ددوى صحيح نوم زنيره دى- حاشية روح المعانى تحت هذه الآية.

(۲) تفسير المظهرى تحت هذه الآية: ج ۸، ص ۴۰۱، ومعرفة الصحابة لأبى نعيم، رقم الحديث: ۷۰۲۴

اَنْ اَشْكُرَ نِعْمَتَكَ الَّتِيْٓ اَنْعَمْتَ عَلَيَّ وَعَلٰى وَالِدَيَّ

چې زهٔ شکر ادا کړم | دنعمت ستا | هغه نعمت | چې راکړې دې تا | ماته | او مور اوپلار زما ته

چې ستا د هغې نعمتونو شکریه اداکړم | چې په ما او زما په مور پلار باندې دې کړې دی

وَاَنْ اَعْمَلَ صَالِحًا تَرْضٰىهُ وَاَصْلِحْ لِيْ

او چې اوکړم عمل | نیک | داسې چې ته راضی ئې دهغې نه | او صلاحیت کیږده | ماله |

او دا چې زه نیک عمل کوم | .........چې ته ئې خوښوې | او زما اولاد زما دپاره

فِيْ ذُرِّيَّتِيْ ۚ اِنِّيْ تُبْتُ اِلَيْكَ وَاِنِّيْ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ ۝

په اولاد زما کښې | بیشکه زهٔ | توبه اوباسم تاته | او بیشکه زهٔ | دمسلمانانونه یم |

نیکان [الوئې] کړې | زهٔ تاته توبه اوباسم | اوستا په فرمان منونکو [بندګانو] کښې شامل یم

اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ نَتَقَبَّلُ عَنْهُمْ اَحْسَنَ مَا عَمِلُوْا

دا هغه خلق دي | چې قبلوؤ مونږ | ددوئ نه | ډیر ښه | هغه عمل | چې کړې وی دوئ

دا هغه کسان دی چې مونږ به ددوئ ښه ښه عملونه قبول کړو ..................

وَنَتَجَاوَزُ عَنْ سَيِّاٰتِهِمْ فِيْٓ اَصْحٰبِ الْجَنَّةِ ۭ وَعْدَ الصِّدْقِ

او تیرېږو مونږ | دګناهونو ددوئ نه | اووی به دوئ په ملګرو دجنت کښې | مطابق دوعدې رښتینې

اوګناهونه به ورته معاف کړو | په جنتیانو کښې به شامل شی | دا [دالله ﷻ] رښتینې وعده ده

الَّذِيْ كَانُوْا يُوْعَدُوْنَ ۝ وَالَّذِيْ قَالَ لِوَالِدَيْهِ

هغه وعده | چې ووډوئ | چې وعده به ئې ورسره کیدله | اوهغه انسان | چې وې وئیل مور اوپلار خپل ته

چې دوئ سره [په دنیا] کښې کولې شی | ..............اوهغه کس چې مور پلار ته ئې اووئیل چې

اُفٍّ لَّكُمَآ اَتَعِدٰنِنِيْٓ اَنْ اُخْرَجَ وَقَدْ

اف دې تاسو دواړو لره | آیا تاسو یروې مالره | چې زهٔ به رااوویستلې شم دقبر نه | اوحال دا چې تیر شوی دی

افسوس دې په تاسو آیا تاسو ماویروئ چې زه به [قبر نه دوباره] راپاڅولې شم

خَلَتِ الْقُرُوْنُ مِنْ قَبْلِيْ ۚ وَهُمَا يَسْتَغِيْثٰنِ اللّٰهَ وَيْلَكَ

ډیر قومونه | مخکښې زما نه | او مور اوپلار دواړه | [فریاد] زاری کوی الله ته | اے بدنصیبه

اوزما نه وراندې ډیرقومونه تیرشو ی دی | اودهغه مورپلار الله ته فریاد کوی | [اوخپل خوئې ته وائې] چې

اٰمِنْ ڰ اِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ ښ فَيَقُوْلُ مَا هٰذَآ اِلَّآ اَسَاطِيْرُ

ایمان راوړه | بیشکه وعده دالله | حقه ده | خووائی هغه | نهٔ دی دا | مګر | قیصې دی

اے بدبخته ایمان راوړه | بیشکه دالله ﷻ وعده حق ده | نو هغه [په جواب کښې] وائی چې دا دپخوانو خلقو

الْاَوَّلِيْنَ ۝ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ حَقَّ عَلَيْهِمُ الْقَوْلُ

دړومبنو خلقو | دا هغه کسان دی | چې ثابته شوی ده | په هغوئ باندې | خبره دعذاب |

قصې دی | دا هغه خلق دی چې په دوی باندې د الله ﷻ فیصله ثابته شوه |

| مِّنَ الْجِنِّ وَالْإِنْسِ | مِنْ قَبْلِهِمْ | قَدْ خَلَتْ | فِيْٓ أُمَمٍ |
|---|---|---|---|
| دپيريانو او انسانانو نه | مخکښي ددوئ نه | چي تير شوي دي | وي به دوئ په هغه ډلو کښي |

د هغه کسانو سره چي ددوئ نه پخوا تير شوي دي | که پيريان دي او که انسانان دي

| مِّمَّا | دَرَجٰتٌ | وَلِكُلٍّ | خٰسِرِيْنَ | اِنَّهُمْ كَانُوْا |
|---|---|---|---|---|
| په لحاظ د هغه عمل سره | درجي دي | او دپاره د هري ډلي | نقصان موندونکي | بيشکه دوئ دي |

چي دوى تول تاوانيان دي | ............اوهر چاته به د خپل عمل مطابق [جدا جدا] مرتبي

| اَعْمَالَهُمْ | وَلِيُوَفِّيَهُمْ | عَمِلُوْا |
|---|---|---|
| بدله د عملونو د هغوئ | او دپاره د دي چي پوره پوره ورکړي هغوئ له | چي کړي وي هغوئ |

ورکولي شي | دا د دي دپاره چي دخپلو خپلو عملونو جزا ورته پوره پوره ملاؤ شي

| كَفَرُوْا | الَّذِيْنَ | يُعْرَضُ | وَيَوْمَ | وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ |
|---|---|---|---|---|
| چي کفر ئي کړي دي | هغه کسان | چي وړاندي کړي شي | اوپه کومه ورځ | او په هغوئ به ظلم نه کيږي |

او په هغوئ به هيڅ ظلم نه کيږي | او په کومه ورځ چي کافران [د دوزخ] اور ته ورمخامخ کړي شي

| وَاسْتَمْتَعْتُمْ | فِيْ حَيَاتِكُمُ الدُّنْيَا | طَيِّبٰتِكُمْ | اَذْهَبْتُمْ | عَلَى النَّارِ |
|---|---|---|---|---|
| او فائدي واغستلي تاسو | په ژوند ستاسو د دنيا کښي | نعمتونه ستاسو | يووړل تاسو | وور ته |

.......... | [اودا به ورته اووئيلي شي] چي تاسو خوخپل خوندونه په دنيا کښي حاصل کړل | او بنه

| بِمَا | عَذَابَ الْهُوْنِ | تُجْزَوْنَ | فَالْيَوْمَ | بِهَا |
|---|---|---|---|---|
| په سبب د هغي | د عذاب سپکونکي | بدله درکړي کيږي تاسو له | پس نن ورځ به | په هغي سره |

مزي مو پري اوکړي | نو نن به درته د ذلت سزا درکولي شي |

| وَبِمَا | بِغَيْرِ الْحَقِّ | فِي الْاَرْضِ | تَسْتَكْبِرُوْنَ | كُنْتُمْ |
|---|---|---|---|---|
| او په سبب د هغي | په نا حقه | په زمکه کښي | چي تکبر به مو کولو | چي وئ تاسو |

دا سزا درته ځکه درکولي شي چي تاسو په دنيا کښي په ناحقه تکبر کولو | او د دي وجي چي تاسو

| تَفْسُقُوْنَ | كُنْتُمْ |
|---|---|
| چي نافرماني به مو کوله | چي وئ تاسو |

نافرماني کولي |

## آسان ترجمه قرآن

يقيناً کومو خلقو چه دا وئيلي دي، چه زمونږ پروردګار الله تعالىٰ دي، بيا هغوى په دې باندې ثابت قدم پاتې شو نو په هغوى باندې به نه څه ويره وى، اونه به هغوى غمژن وى، دغه کسان جنت والا خلق دى، چه هميشه دپاره به په هغې کښې اوسيږى، دا به دهغې عملونو بدله وى، کوم عملونه چه هغوى کول او مونږ انسان ته د خپل مورپلار سره د ښه سلوک کولو حکم کړې دې دهغه مور هغه لره ډير په مشقت

سره (په خپله ګیډه) کښې اوچت کړو. او ډیر په مشقت سره ئې اوزیګوؤ. او دهغه د حمل او د تی نه د پریکولو موده دیرش میاشتې وی تر دې پورې چه کله هغه پوره طاقت ته اورسیدو. او څلویښتو کالو پورې اورسیدو، نو هغه وائی چه: اے ربه! ماته توفیق را کړې، چه زه ستا د هغې نعمت شکر ادا کړم، کوم چه تا ماته او زما مور او پلار ته ورکړې دې، او داسې نیک عملونه اوکړم، چه په هغې باندې ته راضی شې. او زما دپاره زما اولاد ته هم صلاحیت ورکړې، زه ستا په حضور کښې توبه اوباسم. او زه په فرمانبردارو کښې شامل یم دا هغه خلق دی، چه ددوی نه به مونږ ددوی بهترین اعمال قبول کړو. او ددوی دخطاګانو نه به درګذر اوکړو. (چه دهغې د وجې نه به) هغوی جنت والؤ کښې شامل شی، دهغې رشتولې وعدې د وجې نه، کومه چه هغوی سره کولې شوه. او یو هغه سړې دې چه هغه خپل مورپلار ته اووئیل: افسوس دې په تاسو باندې، آیا تاسو زما سره دا وعده کوئ، چه زه به دوباره ژوندې د قبر نه راؤیستلې شم. حالانکه زما نه مخکښې ډیر نسلونه تیر شوې دی، او مورپلار الله تعالی ته فریاد کوی (اوخپل ځوی ته وائی چه) افسوس دې په تا باندې، ایمان راؤړه، یقین اوکړه، چه د الله تعالی وعده رشتولې ده. نو هغه ورته وائی چه: ددې خبرو هیڅ حقیقت ددې نه سوا نشته، چه دا صرف قصې دی، چه د پخوانو خلقو نه نقل کولې شی داهغه خلق دی چه ددوی پاره کښې دا انسانانو او د پیریانو د هغې ډلو سره، کوم چه ددوی نه مخکښې تیرې شوې دی (دا دَ عذاب) خبره مقرر شوې ده. حقیقت دادې، چه داټول لوئې نقصان اوچتونکې دی. او د هرې (ډلې) د خپلو عملونو په وجه جدا جدا درجې دی. او ددې وجې نه دی، چه الله تعالی دوی ته ددوی د عملونو پوره پوره بدله ورکړی. او په دوی باندې به هیڅ ظلم نه کیږی اوهغه ورځ یاده کړئ، چه کله دغه کافران اور ته مخامخ کړې شی (او ورته اووئیلې شی) چه تاسو د خپلې حصې به به شیزونه په دنیوی ژوند کښې ختم کړل او دهغې نه مو ښه خوند واخستلو. لهٰذا نن به تاسو ته په بدله کښې د ذلت سزا ملاویږی، ځکه چه تاسو به په زمکه کښې ناحق تکبر کولو. او ځکه چه تاسو به نافرمانی کوله.

## خلاصه تفسیر

﴿اِنَّ الَّذِیْنَ قَالُوْا رَبُّنَا اللّٰهُ﴾ [کومو خلقو چه] په صدق دل سره [ووئیل چه زمونږ رب الله تعالی دې] یعنی توحیدئ درسول دتعلیم مطابق قبول کړو ﴿ثُمَّ اسْتَقَامُوْا﴾ [بیا] په دې [مستقیم پاتې شو] یعنی دائ پرې نښودو [پس] ددې نتیجه داده چه ﴿فَلَا خَوْفٌ عَلَیْهِمْ﴾ [په دغو خلقو به] په آخرت کښې [هیڅ ویره] واقع کیدونکې [نه وی ﴿وَلَا هُمْ یَحْزَنُوْنَ﴾ اونه به هغوی] هلته [غمګین وی] داخو ددوی دمضرت نه دبچ کیدو بیان وو وړاندې ددوی د نفعې ذکر دې کومه چه دوی ته ملاویدونکې ده چه ﴿اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ خٰلِدِیْنَ فِیْهَا﴾ [داخلق جنتیان دی کوم چه به په کښې همیشه وسیږی ﴿جَزَآءًۢ بِمَا كَانُوْا یَعْمَلُوْنَ﴾ په بدله د هغه] نیکو [کارونو کښې کوم چه هغوی کول] په کومو کښې چه دایمان راوړل او په دې دقائم پاتې کیدو بره [پورته] ذکر دې [او] څنګه چه مونږ حقوق الله لره واجب کړی دی دکومو چه ذکر وشو دغه شان مو حقوق العباد لره هم واجب کړی دی چنانچه په هغې کښې یو ډیر لوئ حق دمور اوپلار دې په دې وجه ﴿وَوَصَّیْنَا الْاِنْسَانَ بِوَالِدَیْهِ اِحْسٰنًا﴾ [مونږ انسان ته دخپل مور پلار سره دنیک سلوک کولو حکم کړې دی]

اوخاص دمور سره زيات خكه چه ﴿حَمَلَتْهُ أُمُّهُ كُرْهًا وَوَضَعَتْهُ كُرْهًا﴾ [د هغه مور هغه په ډير مشقت سره په ګيډه كښې وساتلو او] بيا [په ډير مشقت سره ئې هغه لره وزيږولو ﴿وَحَمْلُهُ وَفِصَالُهُ ثَلٰثُوْنَ شَهْرًا﴾ او هغه لره په ګيډه كښې ساتل او هغه دتى نه پريكول] اكثر [ديرش مياشتې] كښې پوره كيدل [دى] په دومره ورخوكښې قسم قسم مصيبت تيروى اوكم وبيش په دې مصيبتونو كښې دپلار شركت هم وى بلكه د اكثرو كارونو انتظام عادتا پلارله كول وى او په خپل ارام كښې خلل راتلل دا دوارو ته په مساوى طور ورپيښيږى په دې وجه دمور او پلار حق په انسان باندې زيات واجب كړې شوې دى غرض ددې نه پس نشوونما مومى ﴿حَتّٰى إِذَا بَلَغَ أَشُدَّهُ﴾ [تردې چه هركله] نشونما ومومى [خپلې خوانئ ته] يعنى بلوغ ته [ورسيږى او] بيا د بلوغ نه پس په يوه زمانه كښې ﴿وَبَلَغَ أَرْبَعِيْنَ سَنَةً﴾ [څلويښتو كالو] عمر [ته ورسيږى نو] كوم چه نيك بخت وى هغه ﴿قَالَ رَبِّ أَوْزِعْنِيْٓ﴾ [وائي چه اے زما پروردګاره ماته په دې هميشوالې راكړې ﴿أَنْ أَشْكُرَ نِعْمَتَكَ الَّتِيْٓ أَنْعَمْتَ عَلَيَّ وَعَلٰى وَالِدَيَّ﴾ چه زه ستا دهغو نعمتونو شكر اداكړم كوم چه تاماته او زما مور او پلار ته راكړى دى] كه مور او پلار مسلمانان وى نو ددين نعمت هم اوكه مسلمانان نه وى نو د دنيانعمت خو ظاهردې او دمور او پلاردنعمت اثر اولاد ته هم رسيږى چنانچه دمور او پلار وجود او بقاء كوم چه دنيوى نعمت دې دهغې په دولت خو د اولاد وجود هم وى او ددينى نعمت اثر داوى چه دمور او پلار تعليم او تربيت د دوى دپاره د علم او عمل ذريعه جوړيږى ﴿[او] هغه داهم وائى چه ماته د دې پابندى هم نصيب كړې چه ﴿وَأَنْ أَعْمَلَ صَالِحًا﴾ [زه نيك كارونه وكړم ﴿تَرْضٰىهُ وَأَصْلِحْ لِيْ فِيْ ذُرِّيَّتِيْ﴾ په كومو سره چه ته خوشحاله شې او زما په اولادكښې هم زما د] نفع د[پاره صلاحيت پيداكړې] دنيوى نفع دا چه د دوى په ليدو زه راحت وموموم او دينى نفع داچه اجر او ثواب مې وشى او ﴿إِنِّيْ تُبْتُ إِلَيْكَ وَإِنِّيْ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ﴾ [زه ستاپه جناب كښې! دګناهونه هم [توبه كوم او زه] ستا [فرمانبرداريم] مقصود په دې سره دخپلې غلامئ اقرار دې نه چه دعوى وړاند د دوى داعمالو نتيجه فرمائى چه ﴿أُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ نَتَقَبَّلُ عَنْهُمْ أَحْسَنَ مَا عَمِلُوْا﴾ [داهغه خلق دى چه مونږ به د دوى نيكو كارونو لره قبلوو ﴿وَنَتَجَاوَزُ عَنْ سَيِّاٰتِهِمْ فِيْٓ أَصْحٰبِ الْجَنَّةِ﴾ او د دوى ګناهونه به معاف كوو داسې چه دوى به دجنتيانو نه وى] او داټول ﴿وَعْدَ الصِّدْقِ الَّذِيْ كَانُوْا يُوْعَدُوْنَ﴾ [ه هغې رښتونى وعدې په وجه سره] وشو [د كومې چه د دوى سره] په دنياكښې [وعده كولې شوه] تردې پورې خو دنيكانو او خوش بختو خلقو بيانو وشو وړاندې د ظالمانو او دبدبختو خلقو ذكر دې يعنى ﴿وَالَّذِيْ قَالَ لِوَالِدَيْهِ﴾ [او چاچه] حقوق الله او حقوق العباد دواړو لره پامال كړل لكه چه دهغوى ددې حال نه معلوميږى چه ده [خپلو مور او پلار ته ووئيل] دكومو د حق چه په حقوق العباد كښې دټولو نه زيات تاكيد دې خصوصات هركله هغه مور او پلار مسلمان هم وى او هركله چه هغه ده ته داسلام دعوت هم وركوى ﴿أُفٍّ لَّكُمَآ أَتَعِدَانِنِيْٓ أَنْ أُخْرَجَ﴾ [چه لعنت دې په تاسوايا تاسو ماته داوعده] يعنى خبر [راكوئ چه زه به] په قيامت كښې دوباره ژوندې شم [د قبرنه به پورته كړې شم ﴿وَقَدْ خَلَتِ الْقُرُوْنُ مِنْ قَبْلِيْ﴾ حال دادې چه زمانه وړاندې ډيرخلق تير شوى دى] كومو ته چې به په هره زمانه كښې د هغوئ پيغمبرانو هم داسې خبرونه په مخه وركول مګر ترننه پورې د يوې خبرې هم ظهور اوشو ددې نه معلومه شوه چه داټولې هسې خبرې دى ﴿وَهُمَا يَسْتَغِيْثٰنِ اللّٰهَ﴾ [او هغه دواړه] غريبان مور او

پلار ددهٔ په دې انکار سره کوم چه عظیم کفر دې په ویره سره [الله تعالی ته فریاد کوی] او ډیر په دردمندئ سره ورته وائی ﴿وَیۡلَكَ اٰمِنۡ ۖ﴾ [چه اې هلاك شې ایمان راوړه] او قیامت هم حق وګنړه ﴿اِنَّ وَعۡدَ اللّٰهِ حَقٌّ ۚ﴾ [بیشکه دالله تعالی وعده رښتونې ده ﴿فَیَقُوۡلُ مَا هٰذَاۤ اِلَّاۤ اَسَاطِیۡرُ الۡاَوَّلِیۡنَ ۝﴾ نودې] په دې هم [وائی چه دابې سنده خبرې دو ړومبو خلقو نه راروانې دی] مطلب دا دې چه داسې بدنصیبه دې چه دکفر او دمور اوپلار دواړو سره په بد سلوکئ کښې اخته دې او بدسلوکی هم ددې درجې چه د مور او پلار د مخالفت سره د دوی سره په خبرو کښې هم بدتمیزی کوی وړاند ددهٔ دعملونو نتیجه فرمائی چه ﴿اُولٰٓئِكَ الَّذِیۡنَ حَقَّ عَلَیۡهِمُ الۡقَوۡلُ فِیۡۤ اُمَمٍ﴾ [دا هغه خلق دی چه د دوی په حق کښې هم د هغو خلقو سره دالله تعالی قول] یعنی وعده دعذاب [پوره شوه ﴿قَدۡ خَلَتۡ مِنۡ قَبۡلِهِمۡ مِّنَ الۡجِنِّ وَالۡاِنۡسِ ؕ﴾ کوم چه د دوی نه وړاندپه پیریانواوبنیادمو کښې] کفار [تیرشوی دی ﴿اِنَّهُمۡ كَانُوۡا خٰسِرِیۡنَ ۝﴾ بیشکه دا] ټول [په خساره کښې شول او] وړاندې ذکر شوی تفصیل لره په لنډه او اجمالی طور سره فرمائی چه ﴿وَلِكُلٍّ دَرَجٰتٌ مِّمَّا عَمِلُوۡا ۚ﴾ د ذکر شوو دواړو فرقونه [د هریو] فریق [دپاره د دوی د] مختلفو [عملونو په وجه سره جداجدا درجې] چاته په جنت کښې چاته په دوزخ کښې [ملاؤشی او] مختلفې درجې به ورته خکه ملاؤیږی ﴿وَلِیُوَفِّیَهُمۡ اَعۡمَالَهُمۡ وَهُمۡ لَا یُظۡلَمُوۡنَ ۝﴾ [چه الله تعالی ټولو ته د دوی دعملونو] بدله [پوره ورکړی او په هغوی به دځه قسمه [ظلم نه وی او] بره خو نیکانو په جزا کښې جنت متعین کړې بیان شوې وو مګر د ظالمانو عذاب متعین شوې نه وو بنودلې شوې اجمالاً ئې فرمائیلی وو [حَقَّ عَلَیۡهِمُ الۡقَوۡلُ او كَانُوۡا خٰسِرِیۡنَ ۝] په دې وجه وړاند دعذاب تعین فرمائی چه هغه ورځ د یادولو قابله ده ﴿وَیَوۡمَ یُعۡرَضُ الَّذِیۡنَ كَفَرُوۡا عَلَی النَّارِ ؕ﴾ [په کومه ورځ چه کافران اور ته مخامخ راوستلې شی] او دوی ته به ووئیلې شی ﴿اَذۡهَبۡتُمۡ طَیِّبٰتِكُمۡ فِیۡ حَیَاتِكُمُ الدُّنۡیَا﴾ [چه تاسو د خپل لذت څیزونه ددنیا په ژوند کښې حاصل کړل] دلته به هیڅ لذت تاسو ته حاصل نه شی ﴿وَاسۡتَمۡتَعۡتُمۡ بِهَا ۚ﴾ [او هغه مو ښه استعمال کړل] تردې چه په هغې کښې بوخت شوئ مونږ مو هیر کړو ﴿فَالۡیَوۡمَ تُجۡزَوۡنَ عَذَابَ الۡهُوۡنِ﴾ [پس نن به تاسوته د ذلت سره درکولې شی] چنانچه د سزا دپاره اور دې او دذلت نه داملامت او لعنت دې ﴿بِمَا كُنۡتُمۡ تَسۡتَكۡبِرُوۡنَ فِی الۡاَرۡضِ بِغَیۡرِ الۡحَقِّ﴾ [په دې وجه چه تاسو دنیا کښې ناحق تکبر کولو [د تکبر نه مراد داسې تکبر دې چې دایمان نه لرې اوساتی څکه چه دائمی عذاب ددې سره خاص دې ﴿وَبِمَا كُنۡتُمۡ تَفۡسُقُوۡنَ ۝﴾ [او په دې وجه چه تاسو نافرمانی کوله] په دې کښې کفر فسق ظلم او ددې ټول صورتونه داخل شو.

## معارف او مسائل

ددې آیات مبارکه په اول سر کښې دوه آیتونو هم دمخکښې کلام تکلمه ده کوم .ددې نه وړاندې آیتونو کښې راغلی دی چې ظالمانو دپاره وعید او نیکانو دپاره دکامیابئ او خلاصی زیرې دې . ړومبی آیت مبارك یعنی : ﴿اِنَّ الَّذِیۡنَ قَالُوۡا رَبُّنَا اللّٰهُ ثُمَّ اسۡتَقَامُوۡا﴾ کښې ډیر په بلاغت سره ټول اسلام ، ایمان او ټول نیك عملونه راجمع کړې شوی دی .

د ﴿رَبُّنَا اللّٰهُ﴾ اقرار کول مکمل ایمان دې . او په دې باندې استقامت یعنی کلك پاتې کیدلو کښې د مرګ تر وخته پورې په ایمان کلك پاتې کیدل هم شامل دی اوددې په غوښتلو باندې پوره پوره عمل کول هم . د استقامت دلفظ تشریح او وضاحت په سورة حم السجدة کښې بیان

شوې ده . دې آيت مبارك كښې په ايمان او استقامت باندې دا وعده كړې شوې ده چې په داسې خلقو به مستقبل كښې هيڅ ويره او پريشانى نه وى . دوئ ته به نه څه تكليف رسى او نه به دوى ته څه خفګان او افسوس رسى .
دې پسې آيت مبارك كښې ددې زيرې وركولې شى چې دا بې مثاله راحت او آرام به دائمى او نه ختميدونكې به وى . دې پسې څلورو آيتونو مبارکو كښې مور پلار سره د ښه سلوك كولو هدايت كړې شوې دې او ددې په خلاف كولو ئې ددې بدى بيان كړې ده. او دې سلسله كښې دا بيان هم راغلو چې په انسان باندې د مور پلار ډير احسانات دى او اولاد دپاره ئې ډيرې سختئ او تكليفونه تير كړى دى . او انسان ته داهديت كړې شوې دې چې لوئې عمر ته په رسيدو دې انسان الله ﷻ ته رجوع كوى .
د ابن كثير د قول مطابق ددې آيتونو تړون رومبو آيتونو سره داسې دې چې د قرآن عظم الشان د عام طرز په جوړ كله چې انسان ته دالله ﷻ د فرمانبردارئى اوعبادت بلنه وركولې شى نو دې سره ورته دمور پلار د ښه سلوك اوخدمت او تابعدارئى حكمونه هم وركوى . ددې طرز مطابق دلته هم دالله ﷻ د توحيد بلنې سره سره والدينو سره د ښه سلوك حكم كړې شوې دې[1]. او قرطبى د قشيرى په حواله د ربط او تړون وجه دا بيان كړې ده چې په دې كښې رسول كريم ﷺ دپاره دتسلئ يو اړخ شته دې . هغه دا شان چې تاسو خلقو ته د توحيد او ايمان بلنه وركوئى نو كه دا څوك قبلوى نو ډيره ښه ده او څوك ددې نه انكار كوى نو تاسو په دې بالكل مه فكرمند كيږئ او مه پريشانه كيږئ ځكه چې د انسان حال دادې چې دوئ ټول خپلو والدينو سره يو شان نه پاتې كيږى . بعضې ورسره ښه سلوك كوى او بعضې ورسره بد سلوك كوى[2]. [والله اعلم].
بهر حال دې څلورو آيتونو كښې دا ښودل دى چې انسان دې خپل مور پلار سره ښه سلوك كوى او په دې سلسله كښې نور تعليمات هم راغلى دى . اګرچې احاديثو د ځينو روايتونو نه معلوميږى چې دا آيتونه د صديق اكبر رضي الله عنه باره كښې نازل شوى دى . او په دې بناء تفسير مظهرى په ﴿وَوَصَّيۡنَا ٱلۡإِنسَٰنَ﴾ كښې د ﴿ٱلۡإِنسَٰنَ﴾ الف لام عهدى بولى اوددې نه مراد صديق اكبر رضي الله عنه اخستې دې . خو دا خبره ښكاره ده چې د قرآن عظيم الشان ځينې آيتونه اګر چې د يو خاص كس باره كښې نازل شوى وى خو بيا هم دهغې حكم د ټولو خلقو دپاره عام وى . دې وجې نه كه چرې دا آيت مبارك د صديق اكبر رضي الله عنه باره كښې نازل شوې وى او دې آيت مبارك كښې چې كوم صفات دى هغه د صديق اكبر رضي الله عنه وى خو بيا هم ددې آيت مبارك تعليمات عام دى . اګر چې رومبې مصداق به ئې صديق اكبر رضي الله عنه وى[3]. د ځوانيدو او دځلويښتو كالو عمر ته په رسيدو چې كوم تخصيصونه دې آيتونو كښې ذكر دى هغه به د تمثيل په ډول وى ، اوس ددې آيتونو د خاص خاص الفاظو تشريح ذكر كيږى .
﴿وَوَصَّيۡنَا ٱلۡإِنسَٰنَ بِوَٰلِدَيۡهِ إِحۡسَٰنًاۖ﴾ د وصيت لفظ د تاكيدى حكم په معنى كښې راځى، او احسان دښه سلوك كولو معنى وركوى چې خدمت او تابعدارى كول هم په كښې داخل دى اوتعظيم اوعزت كول هم .

[1] ) تفسير ابن كثير: ج ۷، ص ۲۷۹
[2] ) تفسير القرطبي: ج ۱٦، ص ۱۹۲
[3] ) تفسير المظهري: ج ۸، ص ٤۰٥

﴿حَمَلَتْهُ أُمُّهُ كُرْهًا وَوَضَعَتْهُ كُرْهًا﴾ لفظ ﴿كُرْهًا﴾ بضم الكاف هغې مشقت ته وئيلې شي چې انسان ته ئې په څه وجه برداشت كول وي . او ﴿كَرْهًا﴾ بفتح الكاف هغې مشقت او محنت ته وئيلې شي چې بل څوك يې پرې مجبور كړي . اكراه هم ددې نه مشتق دې . اوله جمله كښې چې والدينو سره دښه سلوك حكم كړې شوي دې نو دا دويمه جمله كښې دهغې د تاكيد دپاره ده چې دوالدينو خدمت او فرمانبرداري كولو ضروري كيدو يوه وجه هم داده چې هغوئ دماشوم پيدا كيدو نه تر د هغه ځوانئ پورې هغه سره ډير تكاليف تير كړي دي او مشقتونه يې برداشت كړي دي . او خاص كر د مور محنت او مشقت خو بالكل واضح دې . ځكه دې ځائې كښې د مور د مشقت بيان كړې شوې دې چې هغې ډيره موده يعنى نهه مياشتې په خپله خيټه كښې اوګرځولو . ددې قسم قسم تكاليف يې برداشت كړل . دپيدا كيدو په وخت كښې ئې نور هم زيات تكاليف برداشت كړل چې دهغې سره ستاسو د وجود ددنيا ته راغلى .

**دمور حق د پلار نه زيات دې** :: د آيت مبارك په شروع كښې دښه سلوك كولو حكم د مور پلار دواړو دپاره دې خو دلته صرف د مور د محنت او مشقت په ذكر كولو كښې حكمت دادې چې د مور مشقت او محنت ضروري اولازمي دې . ماشوم هم هغه پخپله خيټه ګرځوي او ددهٔ په ځائيګولو لا تكليف نور هم تيروي . پلار د خپل اولاد په پالنه كښې دومره ضروري او لازمي خواريُ نه كوي او خاص كر چې كله دطاقت او مال خاوند وي نو دخپل اولاد په خصمانه كښې خو بيا هډو ورته څه تكليف نه وي . نورو نه د اولاد خدمت اخلى يا يې بل ملك ته اوليږي اوخرچه ورته ليږي . هم دا وجه ده چې نبى كريم ﷺ اولاد باندې د نورو نه زيات د مور حق ايخودې دې . يو حديث پاك كښې راغلى دى چې :

﴿صل امك ثم امك ثم امك ثم اباك ثم ادناك فادناك﴾

يعنى خپلوى پاله او خدمت كوئ د خپلې مور او بيا د خپلې مور او بيا د خپلې مور ، وربسې دنزدې خپلوانو وربسې د هغې خپلوانو چې دده نه درته كم نزدې وي [مظهرى][1]

﴿وَحَمْلُهُ وَفِصَالُهُ ثَلَاثُونَ شَهْرًا﴾ دې جمله كښې هم د مور د مشقت او محنت بيان شوې دې چې دماشوم د ځائيګولو نه پس هم مور دمحنت نه نه فارغيږي . ولې چې الله ﷻ د بچى خوراك څكاك د مور په سينه كښې ايخودې دې . دې آيت مبارك دا اوفرمائيلې شوى چې د بچى حمل او سينې نه ئې پريكول ديرش مياشتو كښې دى . على رضي الله عنه ددې نه دليل نيولې دې چې دحمل كمه نه كمه موده شپږ مياشتې ده ولې چې قرآن عظيم الشان دسينې رودل دوه كاله مقرر كړى دى لكه فرمائى چې :

﴿وَالْوَالِدَاتُ يُرْضِعْنَ أَوْلَادَهُنَّ حَوْلَيْنِ كَامِلَيْنِ﴾ او دلته د حمل اورضاع دواړه موده ديرش مياشتې اوګرځولى شوه نو ددغې دوؤ كالو د رضاعت ويستلو نه پس شپږ مياشتې باقى پاتې كيږي . چې د حمل كمه نه كمه موده دحمل اوګرزولې شوه په يو روايت كښې دى چې عثمان غنى رضي الله عنه په زمانه كښې د يوې ښځې د حمل څخه د شپږو مياشتو بچې پيدا شو حالانكه عام عادت خو نهه مياشتې يا اووهٔ مياشتې دې . عثمان غنى رضي الله عنه دا حمل ناجائز اوګرځولو او د سزا حكم يې پرې وركړو على رضي الله عنه چې ددې څخه خبر شو نو عثمان رضي الله عنه يې ددې څخه منع كړو . او وې

[1] تفسير المظهري: ج ۸، ص ۴۰۳، وصحيح مسلم، كتاب البر والصلة، باب بر الوالدين وأنهما أحق به: ج ۲، ص ۳۱۲

فرمائیل چې قرآن کریم کښې دحمل او رضاعت مجموعي موده دیر میاشتې ده بیا د رضاعت دمودې څلیریشت بل ځائې کښې متعین کړې شوی دی .په دې وجه دا باقي موده شپږ میاشتې ده. عثمان غني رضي الله عنه دهغوی استدلال اومنلو او خپل حکم یې واپس واخستو [قرطبي]([1]).

په دې وجه د امت امامان په دې متفق دی چې د حمل کمه نه کمه شپږ میاشتې کیدیشي. په اکثره موده کښې یې د امامانو اختلاف شته دې. ولې چې قرآن عظیم الشان دې باره کښې څه فیصله نه ده کړې.

**فائده** :: دې آیت مبارك کښې د حمل کمه نه کمه موده بیان شوې دې او د رضاعت داکثرې مودې ته په دې کښې اشاره ده چې دحمل کمه نه کمه موده شپږ میاشتې تاکلې شوې ده. ددې نه په کمه موده کښې صحیح سالم ماشوم نشي پیدا کیدې . البته دحمل زیاته نه زیاته موده کښې اختلاف دې . ولې چې عادتونه مختلف وی .دغه شان د رضاع زیاته نه زیاته موده دوه کاله تاکلې شوې ده. او کمه موده یې نه ده تاکلې شوې. د ځینو میاندو په سینو کښې یې بالکل نه وی او د ځینو زناناؤ دسپنې یې په څو میاشتو کښې اوچ شی .ځینې ماشومان د مور یې زیات نه څکی یا ورته نقصان ورکوی . او په دې وجه ورته نور یې ورکولې شی .

**دحمل او رضاع په اکثره موده کښې د امت د فقهاء کرامو اختلاف**:: د امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد دحمل اکثره مود دوه کاله ده . دې باره د امام مالك رحمه الله نه مختلف روایتونه دی . څلور ، پنځه ، او اوؤه کاله . د امام شافعي رحمه الله په نزد څلور کاله د امام احمد رحمه الله هم مشهور څلور کاله دې [مظهري]([2]). او د رضاع اکثره موده چې د رضاع دحرامو الی حکمونه پرې اره لری هغه د جمهورو فقهاء کرامو په نزد دوه کاله دی. امام مالك رحمه الله ، امام شافعي رحمه الله ، امام احمد رحمه الله او په حنفي امامانو کښې امام ابویوسف رحمه الله ، او امام محمد رحمه الله ټول په دې متفق دی او په صحابه کرامو کښې د عمر فاروق رضي الله عنه او ابن عباس رضي الله عنه هم داقول دې . [دار قطني]([3]). علي المرتضی رضي الله عنه او عبدالله بن مسعود نه هم دا ارشاد نقل دې . [اخرجه ابن ابی شیبة]([4]). صرف د امام اعظم ابی حنیفه رحمه الله نه منقول دی چې دوه نیم کالو پورې ماشو ته دسینې یې ورکولې شی . حاصل دادې چې دماشوم دکمزورتې په وجه ورته دوه نیم کالو پورې مور د خپلې سینې یې په دې شرط ورکولې شی چې دوه کاله عمر ته اورسی او بیا څه بل خوراك نه وی. ولې چې په دې باندې دټولو اتفاق دې چې درضاع دمودې د پورې کیدو نه پس دمور یې بچی ته ورکول حرام دی. خودحنفي فقهاء کرامو فتوی هم دجمهورو امامانو په مسلك باندې ده چې د دوؤ کالو دمودې نه پس په پیؤ ورکولو درضاعت دحرامو الی احکام نه ثابتیږی . سیدی حکیم الامت رحمه الله په بیان القرآن کښې فرمائی اگر چې فتوی دجمهورو په قول باندې ده خو عمل کښې احتیاط کول زیات بهتر دی . یعنی چې د دوؤ کالو د مودې نه پس کوم ماشوم ته چې شپږ میاشتې نور زیات هم د سینې یې ورکړې شی هغه سره په نکاح کولو کښې احتیاط پکار دې.

---

[1]) تفسیر القرطبي: ج ۱٦، ص ۱۹۳

[2]) تفسیر المظهري: ج ۸، ص ٤٠٤

[3]) سنن الدارقطني، کتاب الرضاع، رقم الحدیث: ٤٤١٢

[4]) مصنف ابن ابي شیبة، کتاب النکاح،باب من قال لا یحرم من الرضاع الا ما کان فی الحولین، رقم الحدیث: ۱۷۰۵۱و ۱۷۰۵۲

ځيني حضراتو ددي ﴿وَحَمۡلُهُۥ وَفِصَٰلُهُۥ ثَلَٰثُونَ شَهۡرًا﴾ نه د امام اعظم رحمه الله د قول مطابق درضاعت اکثره موده دوه نيم کاله د ثابتولو کوشش کړي دي[1]. تفسير مظهري کښې فرمائي چې د اصحيح نه دي ځکه چې د صحابه کرامو ډلې علی المرضی رضي الله عنه، عثمان غني رضي الله عنه د آيت تفسير دا مقرر کړې دې چې په دې کښې شپږ مياشتې کمه موده دحمل او څليريشت مياشتې يعني دوه کله درضاعت موده مراد ده. او ابن عباس رضي الله عنه اوفرمائيل چې قرآن کريم دحمل و رضاعت شريکه موده ديرش مياشتې خودلې ده، دهر يو بيل بيل حد يې نه دې خودلې. وجه يې داده چې دعام عادت مطابق ماشوم په نهو مياشتو کښې پيدا کيږي نو په دې صورت کښې ورته صرف يويشت مياشتې دسينې دپيو ورکولو ضرورت وي. کله چې په اوو مياشتو کښې پيدا شي نو درويشت مياشتې د پيو ورکولو ضرورت به يې وي او چې کوم ماشوم په شپږو مياشتو کښې پيدا شي نو څليريشت مياشتې يعني پوره دوه کاله به د پئيو ادا کولو ضرورت وي. [مظهري][2].

﴿حَتَّىٰٓ إِذَا بَلَغَ أَشُدَّهُۥ وَبَلَغَ أَرۡبَعِينَ سَنَةٗ﴾ د ﴿أَشُدَّ﴾ لغوي معنى قوت ده. په سورت انعام کښې د ﴿حَتَّىٰ يَبۡلُغَ أَشُدَّهُۥ﴾ تفسير بلوغ ته رسيدل کړې شوي دي يعني ابن عباس رضي الله عنه فرمائي چې د بلوغ اشد نه مراد د اتلسو کالو عمر ته رسيدل دي، ځينې حضراتو په دې آيت کښې هم ﴿بَلَغَ أَشُدَّهُۥ﴾ معنى همدا کړې ده چې د بالغيدو عمر ته اورسيږي اودې نه پس يې د ﴿وَبَلَغَ أَرۡبَعِينَ سَنَةٗ﴾ لره د عمر يو مستقل پړاؤ ګرځولې دې. داقول د شعبي رحمه الله او ابن زيد رحمه الله دې او حسن بصري رحمه الله د بلوغ اشد او ﴿وَبَلَغَ أَرۡبَعِينَ﴾ دواړو يو معنى کړې ده او ﴿وَبَلَغَ أَرۡبَعِينَ﴾ يې د ﴿وَبَلَغَ أَشُدَّهُۥ﴾ تفسير او تاکيد ګرځولې دې [قرطبي][3].

او تقدير د عبارت به داسې وي چې اول د بچي دحمل، بيا ئې د څائيکولو بيا د تې رودلو د زمانې د ذکر کولو نه پس د ﴿حَتَّىٰٓ إِذَا بَلَغَ﴾ فرمائيلو حاصل دادې چې ﴿فعاش واستمرت حياته حتى اذا اكتهل واستحكم قوته وعقله﴾ [روح][4] يعني دسينې د پريښولو نه پس ماشوم ژوندې پاتې شو او عمر يې بيا موندو تر دې چې هغه بالغ شو او قوي شو. اود هغه قوت او عقل مکمل شو نو اوس ورته خپل پيدا کوونکي اوپالونکي ته د ماتې کولو توفيق نصيب شو او هغه داسې دعاګانې کول شروع کړل چې:

﴿رَبِّ أَوۡزِعۡنِيٓ أَنۡ أَشۡكُرَ نِعۡمَتَكَ ٱلَّتِيٓ أَنۡعَمۡتَ عَلَيَّ وَعَلَىٰ وَٰلِدَيَّ وَأَنۡ أَعۡمَلَ صَٰلِحٗا تَرۡضَىٰهُ وَأَصۡلِحۡ لِي فِي ذُرِّيَّتِيٓۖ إِنِّي تُبۡتُ إِلَيۡكَ وَإِنِّي مِنَ ٱلۡمُسۡلِمِينَ﴾

[يعنی ائې زما پالونکيه ماته توفيق راکړې چې زه ستا د هغه نعمت شکر ادا کړم کوم چې په ما اوزما په مور پلار کړي دې اوماته توفيق راکړې چې زه هغه عمل اوکړم چې ته په راضي شې او زما دپاره زما د اولاد هم اصلاح اوکړې. زۀ تاته ماتې کوم او زۀ ستا د فرمان تابع مسلمانانو کښې يم].

---

[1] بيان القرآن: ج ٨، ص ١١
[2] تفسير المظهري: ج ٨، ص ٤٠٤
[3] تفسير القرطبي: ج ١٦، ص ١٩٤
[4] روح المعاني: ج ١٩، ص ٦٤

قرآن عظيم الشان دلته ﴿حَتّٰىٓ اِذَا بَلَغَ اَشُدَّهٗ﴾ نه تر ﴿مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ﴾ تولې صيغې د ماضي استعمال کړې ، دې نه ښکاره داده چې د ابيان د خاص واقعې او د خاص بنده ده کومه چې دآيت د نازليدو په وخت شويده ځکه تفسير مظهري هم دې لره اختيار کړی دی چې دا ټول حالات دابو بکر صديق رضي الله عنه دی هم دهغوئ رضي الله عنه بيان يئ په عام الفاظو کښې ددې حکمت په بنا کړې دی چې نورو مسلمانانو ته هم ددې شوق او ترغيب ورکول دی چې هغوئ دې هم دغسې کوی[۱] ددې دليل هغه روايت دی کوم چې قرطبی رحمه الله د عطاء رحمه الله په روايت د ابن عباس رضي الله عنه نه نقل کړې دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم کله خپل شل کلن عمر د حضرت خديجه رضي الله عنها په مال سره دتجارت قصدا وکړو او د شام ملك سفر يئ ا وکړو نو په دې سفر کښې ابوبکر صديق رضي الله عنه نبی کريم صلى الله عليه وسلم سره وو ، دغه وخت د ابوبکر صديق رضي الله عنه عمر مبارك اتلس کاله وو چې د ﴿بَلَغَ اَشُدَّهٗ﴾ مصداق دې بيا ابوبکر صديق رضي الله عنه په دې سفر کښې درسول کريم صلى الله عليه وسلم داسې حالات اوليدل چې ډير عقيدتمن يئ شو او د سفر په واپسئ بيا هر وخت به نبی کريم صلى الله عليه وسلم سره پاتې کيدلو. تر دې چې کله د نبی کريم صلى الله عليه وسلم عمر څلويښت کاله شو او الله جل جلاله ورته پيغمبری ورکړه نو په دغه کښې د ابوبکر صديق رضي الله عنه عمر اته ديرش کاله وو. ناريناؤ کښې ټولو نه ړومبي ابوبکر صديق رضي الله عنه اسلام قبول کړو. بيا ئې هغه وخت کښې دا دعا اوغوښتله کومه چې دې آيت مبارك کښې ده چې ﴿رَبِّ اَوْزِعْنِيْٓ الخ﴾. او هم دغه مصداق دې د ﴿بَلَغَ اَرْبَعِيْنَ سَنَةً﴾ او کله يئ چې دا دعا اوغوښتله ﴿اَنْ اَعْمَلَ صَالِحًا تَرْضٰىهُ﴾ نو الله جل جلاله يئ دا دعا قبوله کړه ، الله جل جلاله ورته د نهو زرخريدو غلامانو آزادولو توفيق ورکړو چې مسلمانان شوی وو او هغوئ ته به خپلو کافرانو مالکانو په اسلام قبلولو قسماقسم تکليفونه رسول ،دا شان د هغوئ رضي الله عنه دعا ﴿وَاَصْلِحْ لِيْ فِيْ ذُرِّيَّتِيْ﴾ هم قبوله شوه. د هغوئ په اولاد کښې څوك داسې پاتې نشو چې د ايمان نه پاتې شوی وو. په دې شان دا خصوصيت صحابه کرامو کښې الله جل جلاله ابوبکر صديق رضي الله عنه ته ورکړې وو چې هغه پخپله هم مسلمان شو او اولاد يئ هم او ټولو ته د رسول الله صلى الله عليه وسلم دصحبت شرف حاصل شو[۲]. او په تفسير روح المعانی کښې دی چې ددې تائيد ددې خبرې نه هم کيږی چې ټول صحابه کرامو ، مهاجرينو او انصارو کښې دغه وخت دا خصوصيت صرف د ابوبکر صديق رضي الله عنه وو چې پخپله هم مسلمان شو ،والدين ئې هم مسلمانان شو ، دلته دا سوال پيدا کيږی چې دا بوبکر صديق رضي الله عنه والد محترم د فتح مکه نه پس مسلمان شوې وو حالانکه دا سورت ټول مکی دې. دا آيتونه ټول په مکه مکرمه کښې نازل شوی دی. نو دغه وخت والدينو باندې دالله جل جلاله د نعمت کيدلو بيان څنګه مناسب کيدې شی ؟ ددې جواب دادې چې ځينې حضراتو دې آيتونو ته مدني وئيلی دی. په دغه سورت کښې بيا هم څه اشکال نه پاتې کيږی. او که چرې دا مکی هم وی نو ددې نه مراد د اسلام قبلولو دپاره دعا کول دی. [روح][۳].

ددې تفسير په بنا اګر چې دا ټول حالات د صديق اکبر رضي الله عنه بيان شو خو حکم يئ عام دې. ټولو مسلمانانو ته ددې هدايت کيږی چې کله د يو انسان عمر څلويښتو کالو ته اورسی نو د آخرت فکر پرې غالب کيدل پکار دی چې د کړو ګناهونو نه توبه اوباسی. او بيا دپاره دې نه ځان بچ

۱) تفسير المظهری: ج ۸، ص ٤٠٤
۲) تفسير القرطبی: ج ١٦، ص ١٩٤، ١٩٥
۳) تفسير روح المعانی: ج ١٩، ص ٦٥، ٦٦

کړي. د عادت او تجربې په بنا دا یقیني خبره ده چې څلويښت کلن عمر کښې د يو انسان اختيار کړي عادتونه او خويونه بدليدل ګران شي.
عثمان غني رضي الله عنه نه روايت دې چې رسول کريم ﷺ فرمائيلي دي چې کله مؤمن بنده د څلويښتو کالو عمر ته اورسي نو هغه ته خپل طرفته د رجوع کولو توفيق ورکړي. او چې کله يې عمر اويا کاله شي نو ټول آسماني مخلوق ورسره مينه شروع کړي. نو الله جل جلاله ددهٔ نيکئ قائمې کړي او ددهٔ بدئي د مينځ نه لرې کړي. او چې کله ددهٔ عمر لس کم سل کاله شي نو الله جل جلاله ددهٔ ټول مخکښني روستني ګناهونه معاف کړي. او هغه دخپلو اهل بيتو د شفاعت کولو حق ورکړي. او په آسمان کښې د هغه نوم سره اسير الله في الارض اوليکلې شي. يعنې په زمکه کښې دالله جل جلاله د طرفه قيدي دې. [ابن کثير دابي يعلى نه او مسند احمد وغيره][1].
او دا ښکاره ده چې ددې نه مراد هغه مؤمن بنده دې کوم چې خپل ژوند دشرعي حکمونو مطابق په تقوى کښې تير کړې وي. چونکه ابن کثير رحمه الله رومبې تفسير اختيار کړې دې چې مراد ترې عام انسان دې نو په دې کښې راغلي د خصوصيت الفاظ لکه ﴿حَتّٰٓى اِذَا بَلَغَ اَشُدَّهٗ وَبَلَغَ اَرْبَعِيْنَ سَنَةً ۙ الخ﴾ ټول د تمثيل په ډول دي. دې کښې دا هدايت کول مقصود دي چې کله انسان څلويښت کالو ته اورسي نو په هغه دخپلې اصلاح اود خپل اهل وعيال اصلاح او دآخرت فکر غالب شي. والله سبحانه وتعالى اعلم.
﴿اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ نَتَقَبَّلُ عَنْهُمْ اَحْسَنَ مَا عَمِلُوْا وَنَتَجَاوَزُ عَنْ سَيِّاٰتِهِمْ﴾ يعنې کوم مؤمنان مسلمانان چې دغه بيان شوي حالات لري، د هغوئ نيکئ قبلولې شي او ګناهونه يئ معاف کولې شي. دا حکم هم عام دې که ددې د نازليدو سبب صديق اکبر رضي الله عنه وي نو هغوئ رضي الله عنه به يئ رومبې مصداق وي، دحضرت علي دا لاندې بيان کړي ارشاد نه هم معلوميږي چې ددې آيت مطلب عام دې. ابن کثير رحمه الله خپل تفسير کښې سند سره د محمد بن حاطب دا روايت نقل کړې دې چې زهٔ يو ځل د امير المؤمنين علي المرتضى رضي الله عنه په خدمت کښې حاضر اوم. دغه وخت ورسره نور حضرات هم موجود وو چې عثمان رضي الله عنه باندې يئ څه عيبونه اولګول، په دې باندې علي المرتضى رضي الله عنه اوفرمائيل چې:
﴿كَانَ عثمان رضي الله عنه من الذين قال الله تعالى فيهم [اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ نَتَقَبَّلُ عَنْهُمْ اَحْسَنَ مَا عَمِلُوْا وَنَتَجَاوَزُ عَنْ سَيِّاٰتِهِمْ فِيْٓ اَصْحٰبِ الْجَنَّةِ ۭ وَعْدَ الصِّدْقِ الَّذِيْ كَانُوْا يُوْعَدُوْنَ ۝]﴾ عثمان غني رضي الله عنه په هغه خلقو کښې وو د چا باره کښې چې الله جل جلاله فرمائيلي دي چې [اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ نَتَقَبَّلُ عَنْهُمْ اَحْسَنَ مَا عَمِلُوْا وَنَتَجَاوَزُ عَنْ سَيِّاٰتِهِمْ فِيْٓ اَصْحٰبِ الْجَنَّةِ ۭ وَعْدَ الصِّدْقِ الَّذِيْ كَانُوْا يُوْعَدُوْنَ ۝] قسم دې په الله جل جلاله چې ددې آيت مبارک مصداق عثمان غني رضي الله عنه او دهغوئ ملګري دي دا خبره علي المرتضى رضي الله عنه درې ځل اوفرمائيله.
﴿وَالَّذِيْ قَالَ لِوَالِدَيْهِ اُفٍّ لَّكُمَآ﴾ په تيرو شوو آيتونو کښې د والدينو د خدمت او تابعدارئ احکام وو. دې آيت مبارک کښې د هغه چا عذاب او سزا بيان شوې دې چې خپلو والدينو سره خراب سلوک کوي او خرابه خوله ورسره ښوزوي. خاص کر چې والدين ورته د اسلام او نيکو عملونو بلنه ورکوي. دهغوئ خبره نه منل دوچند ګناه ده. ابن کثير رحمه الله فرمائي چې ددې آيت مبارک

---

[1] ) تفسير ابن كثير: ج ۷، ص ۲۸۱، ومجمع الزوائد، رقم الحديث: ۱۷۵۵۶، ومسند أحمد، مسند انس بن مالك رضى الله عنه، رقم الحديث: ۱۳۲۷۹، ومسند أبي يعلى الموصلي، رقم الحديث: ۳۵۷۹

مطلب عام دې چې څوك هم خپلو والدينو سره خراب سلوك كوي نو هغه ددې مصداق كښې دې. ﴿اَذْهَبْتُمْ طَيِّبٰتِكُمْ فِيْ حَيَاتِكُمُ الدُّنْيَا﴾ يعنى كافرانو تـه پـه خطاب كولو بـه دا وئيلې شى چې څه ښه كارونه تاسو په دنيا كښې كړى وو. نـو دهغې بدلـه درتـه هـم پـه دنيا كښې ددنيوى نعمتونو اودنيوى عيش و عشرت په صورت كښې دركړې شويده . او په آخرت كښې ستاسو هيڅ حصه نه ده پاتې . دا خطاب كافرانو ته دې ، دې نه معلوميږى چې دكافرو نيك عملونه چې د ايمان نه راوړو په وجه دالله ﷻ په نزد قبول نه دى پـه آخرت كښې خو ددې هيڅ ارزښت نشته دې خو په دنيا كښې الله ﷻ ددې بدله وركوى . كافرانو او بدكارو تـه چې مـا ل ، دولت ، عزت او مخـووريز تـوب وغيـره پـه دنيـا كـښې وركـوى دا هـم دهغـوئ دنيكـو عملـونـو ، سـخاوت ، همـدرئى، رښـتينئ وغيـره بدلـه وى . مؤمنـانو دپـاره دا حكـم نـه دې چـې كـه دوئ تـه د نيوى نعمتونه وركړې شى نو دآخرت دحقونو نه به محرومه شى .

**ددنياوى لذتونو او نعمتونو نه ځان ساتل** :: دې آيت مبارك كښې كافرانو تـه ملامتـه كړې شوى او زورلې شوى دى وجه يئ داده چې دوئ په دنياوى مزو كښې اختـه دى . هم پـه دې وجـه رسول كريم ﷺ صحابه كرامو او تابعينو ددنياوى مزو پريخودو عادت جوړ كړې وو. او دهغوئ سيرت ددې خبرې ګواه دې . كله چې رسول كريم ﷺ معاذ ﷛ يمن تـه اوليږلـو نـو دا وصيت يئ ورتـه اوكړو چې دنياوى مزو او خوندونو نـه ځان ساتـه(١) . حضرت على المرتـضى ﷛ نـه روايت ډې چې نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چې څوك د الله ﷻ پـه لـږې روزئ حاصليدو بانـدې راضى شى نو الله ﷻ به هم د هغه په لږ عمل باندې راضى شى . [مظهرى د بغوى نه] (٢)

| اَنْذَرَ | اِذْ | اَخَا عَادٍ | وَاذْكُرْ |
|---|---|---|---|
| خبردار كړو هغه | كله چې | رور د عاديانو | او ياد كړه |

| ............ او[اے نبى ﷺ] ته دوئ ته د عاديانو د رور [هود] (٣) ذكر اوكړه | چې هغه |

وَمِنْ خَلْفِهٖ مِنْۢ بَيْنِ يَدَيْهِ وَقَدْ خَلَتِ النُّذُرُ بِالْاَحْقَافِ قَوْمَهٗ

---

١) مسند أحمد، رقم الحديث: ٢٢١٠٥

٢) تفسير المظهرى: ج ٨، ص ٤٠٨، ٤١٠ وشعب الإيمان للبيهقى، رقم الحديث: ٩٦٤٧

٣) **داحقاف معنى** :- د حضرت نبى كريم ﷺ د تسلئ دپاره الله ﷻ فرمائى كه ستاسو قوم تاسو لره په دروغه اوګنړى نو تاسو د مخكښې نبيانو ؈ حالات يادكړئ چه دهغوئ قومونو هم د هغوئ تكذيب اوكړو. دعاديانو درور نه مراد حضرت هود ؈ پيغمبر دې .اوهغوئ الله ﷻ عاد اولى طرفته ليږلى وو او هغوئ په احقاف كښې اوسيدل . احقاف جمع ده د حقف او حقف وائى د شګې غرته . مطلق غرونه او غارونه او د حضر موت وادى چه كوم ځاې د كافرانو روحونه اچولې شى او ددې وادئى نوم برهوت دې . د احقاف دا مطلب هم بيان شوې دې . دحضرت قتاده ؒ قول دې چه يمن كښې دسمندر په غاړه د شګې د غرونو يو ځاې وو او دهغې نوم شحر وو. دې ځاې كښې دا خلق آباد وو. امام ابن ماجه ؒ باب جوړ كړې دې چه كله تاسو دعا كوئى نو خپل نفس نه ئې شروع كوئى . او په دې ضمن كښې ئې يو حديث مبارك راوړې دې چه حضرت نبى كريم ﷺ فرمائى چه الله ﷻ دې په مونږ او د عاديانوپه رور رحم اوكړى .

قوم خپل | په احقاف کښې | او تیر شوی ووه خبرداورنکې | مخکښې دهغه نه[1] | او روستو دهغه نه |

خپل قوم چې په شګلورې علاقه کښې اوسیدلو [دعذاب نه] اوویرولو | او دهغه نه وړاندې

اَلَّا تَعْبُدُوْٓا اِلَّا اللّٰهَ ؕ اِنِّیْٓ اَخَافُ عَلَیْكُمْ عَذَابَ

چې تاسو بندګی مه کوئ | مګر دالله (2) | بیشکه زۀ یریږم | په تاسو باندې | دعذاب

روستو نورهم ډیر ویرونکی تیرشوی وو | [هغه اووئیل] چې تاسو دالله نه سوا دبل چا عبادت مه کوئ ماسره ویره ده چې

یَوْمٍ عَظِیْمٍ ۝ قَالُوْٓا اَجِئْتَنَا لِتَاْفِكَنَا عَنْ اٰلِهَتِنَا ۚ

دورځې لوئې نه | اووئیل هغوئ | آیا راغلې ئې ته مونږ ته | چې ته واړوې مونږه | دمعبودانو خپلو نه

په تاسو به دیوې لوئې [سختې] ورځې عذاب راشي | هغوی اووئیل چې آیا ته د دې دپاره راغلې یې چې مونږ دخپلو معبودانو

فَاْتِنَا بِمَا تَعِدُنَآ اِنْ كُنْتَ مِنَ الصّٰدِقِیْنَ ۝ قَالَ

پس راوله مونږ ته | هغه عذاب | چې ته تریروې مونږه | که ئې ته | دربښتینو خلقو نه | اووئیل هغه

نه واړوې | نو ته چې مونږ دکوم عذاب نه ویروې | هغه راوله | که ته ربښتې یې | [هود] اووئیل

اِنَّمَا الْعِلْمُ عِنْدَ اللّٰهِ ۖؗ وَاُبَلِّغُكُمْ مَّآ اُرْسِلْتُ

بیشکه چې علم ددې | دالله سره دې | اورسوم زۀ تاسو ته | هغه پیغام | چې زۀ رالیږلې شوې یم |

چې ددې علم خو الله ﷻ ته دې (3) | اوزه خو تاسو ته هغه پیغام دررسوم | دکوم دپاره چې زه

بِهٖ وَلٰكِنِّیْٓ اَرٰىكُمْ قَوْمًا تَجْهَلُوْنَ ۝ فَلَمَّا

دهغې سره | ولیکن زۀ | وینم تاسو | یو داسې قوم | چې تاسو جهالت کوئ | پس هر کله چې

رالیږلې شوې یم | خو ماته تاسو ناپوهه خلق ښکارئ | ......................نو هر کله چې

رَاَوْهُ عَارِضًا مُّسْتَقْبِلَ اَوْدِیَتِهِمْ ۙ قَالُوْا

[1] ) بیا فرمائی چه الله ﷻ دهغوئ ګیر چاپیره ښارونو کښې هم رسولان مبعوث کړی وو. لکه یو آیت مبارك کښې دی چه ﴿فَجَعَلْنٰهَا نَكَالًا لِّمَا بَیْنَ یَدَیْهَا وَمَا خَلْفَهَا وَمَوْعِظَةً لِّلْمُتَّقِیْنَ ۝﴾ او لکه څنګه چه الله ﷻ فرمان دې چه ﴿فَاِنْ اَعْرَضُوْا فَقُلْ اَنْذَرْتُكُمْ صٰعِقَةً مِّثْلَ صٰعِقَةِ عَادٍ وَّثَمُوْدَ ۝﴾

[2] ) بیا فرمائی چه حضرت هود علیه السلام خپل قوم ته اووئیل چه تاسو توحید ( الله ﷻ یو) اومنئ ګنی تاسو باندې به په هغه لویه ورځ عذاب وی نو په دې دحضرت هود علیه السلام قوم اووئیل چه تاسو مونږ د خپلو معبودانو نه منع کوئی؟ څه چه دکوم عذاب نه ته مونږ ویروې هغه راوله. دوی خو دا خپل ذهن کښې محال ګڼړل او زر ئې دا طلب کړو. لکه څنګه چه بل آیت مبارك کښې دی چه ﴿یَسْتَعْجِلُ بِهَا الَّذِیْنَ لَا یُؤْمِنُوْنَ بِهَا﴾: یعنی ایمان نه راوړونکی زمونږ دعذاب خواهش کوی.

[3] ) ددې جواب کښې ددوی پیغمبر اووئیل چه الله ﷻ ته بهتر علم دې که هغه تاسو ددې لائق اوګنړی نو تاسو باندې به عذاب راولیږی. خما منصب خو صرف دومره دې چه څه تاسو ته خپل رسالت اورسوم. خو ماته معلوم دی چه تاسو بالکل بې عقل او بې وقوف خلق یئ.

اولیدو هغوئ هغه عذاب | په شکل دوریځ | راراوان (۱) | علاقي دهغوئ ته | نواوونیل هغوئ |

هغوئ اولیدل | چي یوه وریځ د هغوئ دعلاقي طرفته راروانه ده | نو دا ئي اوونیل

هٰذَا عَارِضٌ مُّمْطِرُنَا ۚ بَلْ هُوَ مَا اسْتَعْجَلْتُمْ بِهٖ ۚ

داوریځ ده | باران ورونکی په مونږ باندي | بلکه | دا هغه څیز دي | چي تلوار به کوله تاسو | په هغې

چي دا خو وریځ ده | چي وربړی راباندي | نه بلکه دا خو هغه څیزدي کوم ته چي تاسو تلوار کولو

رِيْحٌ فِيْهَا عَذَابٌ اَلِيْمٌ ۙ تُدَمِّرُ كُلَّ شَيْءٍۢ بِاَمْرِ رَبِّهَا

هوا ده | په دي کښي | عذاب دردناك دي | تباه کوی | هر څیز | په حکم درب خپل |

دا سیلئ وه په کومه کښي چي دردناك عذاب وو | هر څیز به د خپل رب په حکم سره تباه کړي

فَاَصْبَحُوْا لَا يُرٰٓى اِلَّا مَسٰكِنُهُمْ ۚ كَذٰلِكَ

پس شو هغوئ | داسي چي په نظر نهٔ راتلو هیڅ څیز | مګر صرف کورونه دهغوئ | درانګي |

نوهغوئ داسي تباه شول | چي دکورونو نه بغیر نور هیڅ نښه ئي لیدلي نه شوه | مونږ

نَجْزِي الْقَوْمَ الْمُجْرِمِيْنَ ۞ وَلَقَدْ مَكَّنّٰهُمْ فِيْمَآ

بدله ورکوو مونږ | قوم مجرمانوته | او بیشکه قدرت ورکړي وو مونږ هغوئ ته | په هغه څیزونو کښي

نافرمانو ته هم دغه شان سزاګانې ورکوو (۲) | اومونږ هغوئ ته دومره زوراو طاقت ورکړي وو

---

(۱) اوس دالله ﷻ عذاب راغلو. نو دوی اوکتل چه دوی طرفته یو توره وریځ راروانه ده . خوشك سالی او ګرمی ډیره وه نو دوی خوشحاله شو چه ښه شوه چه وریځ راغله . او دي طرفته اوس به باران وربړی . اصل کښي دا وریخې په صورت کښي دالله ﷻ عذاب وو چه دوی ئي د زر راتلو په طمع وو. په دي کښي هغه عذاب وو چه کوم دوی د حضرت هود علیه السلام نه غوښتلو. هغه عذاب ددوی کلی او ددوی تولوڅیزونو لره تباه وبربادکولو سره راغلو او دي ته هم دالله ﷻ حکم وو. او یو بل آیت مبارك کښي دی چه ﴿مَا تَذَرُ مِنْ شَيْءٍ اَتَتْ عَلَيْهِ اِلَّا جَعَلَتْهُ كَالرَّمِيْمِ﴾ (ترجمه)* چه په کوم څیز به هغه تیر شو هغه به ذرې ذرې کړو نودا ټول خلق هلاك شو او یو هم باقی پاتې نشو.

(۲) بیا فرمائی چه مونږ داشان دهغوئ سره معامله کوؤ چه څوك زمونږ رسولان په دروغه ګڼړی . او زمونږ داحکامو خلاف ورزی کوی. یو ډیرغریب حدیث مبارك کښي ددوی قصه راغلي ده هغه هم واورئ. یواوږد حدیث:- حضرت حارث بکری فرمائی چه ما د علاء بن حضرمی شکایت د حضرت نبی کریم ﷺ په خدمت کښي کولو دپاره روان شوم. ما ته په بذه کښي د بنو تمیم یو ښځه ملاؤ شوه اوهغې سره سورلئ وغیره نه وه . هغې ماته اوونیل چه ائې د الله ﷻ بنده څما د الله ﷻ پیغمبر سره یو کار دې مابه ته هلته اورسوې ؟ ما ورسره اقرار کولو نه پس هغه مې په سورلئ خان سره کینوله او مدینې منورې ته راورسیدم. ما اوکتل چه مسجدنبوی ﷺ د خلقو نه ډك دي . او دتور رنګ یو بیرغ ورسره دي . او حضرت بلال رضی الله عنه توري سره حضرت نبی کریم ﷺ مخکښي ولاړ دي . ما تپوس اوکړو چه څه خبره ده ؟ خلقو راته اوونیل چه حضرت نبی کریم ﷺ عمروبن عاص چا طرفته لیږل غواړی . څه یو طرفته کیناستم . هرکله چه حضرت نبی کریم ﷺ خپلې ډیرې مبارکې ته تشریف یوړو نو څه هم وریسې ورغلم او اجازت مې اوغوښتلو او د حضرت نبی کریم ﷺ ... [باقی په راروانه صفحه...

...بقیه د تیرمخ]..په خدمت کښې حاضرشوم او سلام مې اوکړو. نو حضرت نبی کریم ﷺ خمانه تپوس اوکړو چه ستاسو او دبنو تمیم مینځ کښې څه اختلافات وو ؟ ما اووئیل چه آؤ او مونږ په هغوئ غالب وو، او اوس خو ماسره د بنو تمیم یو بوډئی ښځه راغلې ده او هغې ما ته په لار کښې اووئیل چه هغه هم خان سره بوځم اوستاسو خدمت کښې ئې حاضره کړم. نو ما هغه خان سره راوستې ده او هغه دروازه کښې ولاړه ده انتظار کوی . نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه هغه دننه راولئ. نو هغه راغله . ما اووئیل یارسول الله ﷺ که خمونږ او دبنی تمیم مینځ کښې څه فیصله اوکړئی . نو په دې د بوډئی غیرت راوپاریدو او هغې په غرمبی کښې اووئیل چه یارسول الله ﷺ بیا به ستاسو مضطر چرته قرار مومی ؟ ما اووئیل چه سبحان الله چه خما مثال خو هم هغه شو چه خانله مې په خپله کوهی اوکنستو ، ماته څه معلوم وو چه دابه خما مخالفت کوی ؟ گنی ما به دا ولې راوسته ؟ دالله ﷻ پناه هسې نه څه هم د عادیانو د قاصدپشان شم . نو حضرت نبی کریم ﷺ تپوس اوکړو چه دعادیانو د قاصد څه واقعه ده ؟ ددې باوجود چه حضرت نبی کریم ﷺ خما په نسبت ددې واقعې نه ښه خبر وو خو د حضرت نبی کریم ﷺ په وینا ما هغه واقعه بیان کړه .

**د عادیانو واقعه:-** د عاد په کلو چه کله قحط شو نو هغوئ قیل نومې یو قاصد اولیږلو . دې په لار کښې معاویه بن بکر سره پاتې شو او شراب څکل او دهغې د ددؤ وینځو سندرو آوریدوکښې دومره مصروف شو چه یو میاشت تیره شوه او د دې نوم جراده وو. بیا روان شو او جبال مهر کښې هغه دعا اوکړه چه یاالله ﷻ! تاته ښه معلوم دی چه څه خود یو مریض د دوائی دپاره یا د یو قیدی دفدیه ادا کونو دپاره نه یم راغلې ، یا الله ﷻ ! ته عادیانو ته هغه ورکړه چه څه دې ماته راکړل . نو د تور رنګ وریځې راغلې او په هغې کښې دیو نه آواز راغلو چه په دې کښې یو خوښ کړه . نو ده د تور رنګ وریخ خوښه کړه . هم په هغه وخت کښې دهغې نه آواز راغلو چه دې بالکل ایره ایره او ذرې ذرې کړنې او چه بنی اسرائیلو کښې هیڅوك هم باقی پاتې نشی . ما اووئیل چه تر کومې ماته علم دې چه د هوا گانو مخزن نه دومره سوری کښې هوا پریښودې شوه لکه خما د گوتو د حلقې دا سوری . اودې سره ټول هلاك شو. ابو وائل فرمائی چه بالکل صحیح نقل دې . عربو کښې دستور ووچه کله به ئې یو قاصد لیږلو نو ورته به ئې وئیل چه د عادیانو د قاصد پشان رانشې . د اروایت ترمذی ، نسائی او ابن ماجه کښې هم دې (احمد: ۴۸۲/۳، ترمذی: ۳۲۷۳، ابن ماجه: ۲۸۱۶،) . لکه څنګه چه د سورة اعراف په تفسیر کښې تیر شوی دی . مسند احمد کښې حضرت عائشه ؓ نه مروی دی چه ما حضرت نبی کریم ﷺ هڅکله هم داسې په خندا نه وو لیدلې چه خندا سره ددوی اوورئی ښکاره شوی وی . دوی به تبسم فرمائیلو. او هرکله چه به وریخ راغله او طوفان به راغلو نو د حضرت نبی کریم ﷺ څهرې مبارك نه فکر ظاهریدو. نو یو ورځ ما حضرت نبی کریم ﷺ ته اووئیل چه یارسول الله ﷺ ! خلق خو د وریځې او باد کتلو سره خوشحالیږی چه باران به اوشی خو ستاسو حالت ددې نه خلاف وی. نو حضرت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه انې عائشه ؓ ! څه ددې خبرې نه ولې مطئن شم چه هسې نه دې کښې عذاب وی ؟ یو قوم د هوا په وجه هلاك شوې وو ، یو قوم وریځو کتلو سره وئیلی وو چه دا وریخ ده او په مونږ به باران وریږی . صحیح بخاری اومسلم هم داروایت بل سندسره روایت کړې دیګ (احمد: ۶۶/۶ صحیح بخاری: ۴۸۲۸، صحیح مسلم: ۸۹۹). مسند احمد کښې دی چه کله به حضرت نبی کریم ﷺ د آسمان په کنارو وریځې اوکتلې نو خپل ټول کارونه به ئې پریښودل او دا دعا به ئې وئیله اگر چه مونځ کښې به وو ﴿اللهم انی اعوذبك من شرمافیه ﴾یعنی انې ا لله ﷻ ! په تا سره ددې تباهئ نه پناه غواړم چه کومه په دې کښې ده . نو که لرې به شوه نود الله ﷻ حمد به ئې وئیلو او که اوبه به وریدلې نو دا دعا به ئې وئیله چه(احمد: ۱۹۰/۶، ابوداود: ۵۰۹۹ ابن ماجه: ۳۸۹۹) ﴿ اللهم انی اسئلك خیرها وخیرما فیها وخیرما ارسلت به واعوذبك من شرها وشرما فیها وشرما ارسلت به﴾ :(ترجمه ) اې الله ﷻ ! خلاستا نه ددې اودې کښې...[باقی په راروانه صفحه...

إِنْ مَّكَّنّٰكُمْ | فِيْهِ | وَجَعَلْنَا | لَهُمْ | سَمْعًا

چی نهٔ دي درکړي مونږ تاسو ته قدرت | په هغې کښې | او ورکړي وو مونږ | هغوئ ته | غوږونه |

کوم چې مو تاسو ته نه دي درکړي | ..........اوهغوئ ته مو غوږونه

وَّاَبْصَارًا | وَّاَفْـِٕدَةً | فَمَآ اَغْنٰى عَنْهُمْ | سَمْعُهُمْ | وَلَآ اَبْصَارُهُمْ

او سترګې | او زړهٔ | پس پکار رانغلل دهغوئ | غوږونه د هغوئ | او نهٔ سترګې دهغوئ |

او سترګې او زړونه ورکړی وو | خو نه ورله غوږونو څهٔ فائده ورکړه | او نه سترګو

وَلَآ اَفْـِٕدَتُهُمْ | مِّنْ شَيْءٍ | اِذْ كَانُوْا | يَجْحَدُوْنَ | بِاٰيٰتِ اللّٰهِ

او نهٔ زړونه دهغوئ | هیڅ قدرله | ځکه چی وو هغوئ | چی انکار به ئې کولو | د ایتونو دالله نه |

او نه زړونو | ځکه چې د الله ﷻ دایتونو په مخالفت کښې په ضد ولاړ وو | او په کوم

وَحَاقَ | بِهِمْ | مَّا كَانُوْا | بِهٖ | يَسْتَهْزِءُوْنَ ۝

او چاپیره شو | دهغوئ نه | هغه څیز چی وو هغوئ | په هغې پورې | چی توقې به ئې کولې |

[عذاب] پورې چې ئې توقې کولې | هغه ترې نه راتاؤ شو.................. ..........

## آسان ترجمه قرآن

او د قوم عاد د ورور (حضرت هود علیه السلام) تذکره اوکړه، چه کله هغه خپل قوم لره د کږو ډیرو په زمکه کښې خبردارکړې وو او داسې خبردارولکې دهغه نه مخکښې هم تیر شوي وو، او دهغه نه روستو هم، چه: د الله تعالی نه سوا د هیچا عبادت مه کوئ ماته په تاسو باندې د یوې لوئې ورځې د عذاب خطره ده. هغوی اوویل: آیا ته مونږ ته ددې دپاره راغلې ئې، چه دخپلو خدایانو نه مونږ واړوې، که ته

...بقیه د تیرمخ].. چه څه دی دهغې او دې سره چه څه راوستی دی دهغې او ددې خیر غواړم اوستا نه ددې او دې کښې چه څه دی او چه کوم څیز سره دا لیږلې شوې ده اوددې د بدئی نه پناه غواړم.
اوکله چه به وریخ راغله نو د حضرت نبی کریم ﷺ رنګ مبارك به متغیر شو او کله به دننه کیدلو او کله به بهر کیدل، کله چه به باران راوریدو نو د حضرت نبی کریم ﷺ دا فکر به ختم شو. حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها په دې پوهه شوه اویو ځل ئې د حضرت نبی کریم ﷺ نه ددې سوال اوکړو نو حضرت نبی کریم ﷺ جواب کښې اوفرمائیل چه عائشه رضی الله عنها فکر او ویره ددې خبرې ده چه هسې نه هغه شان وی لکه څنګه چه د عاد قوم وریځ خپل طرفته په راتلو اولیده او د خوشحالئ نه ئې ونیلی ود چه دې وریځې سره به مونږ خروب شو(صحیح مسلم: ۸۹۹). سورة اعراف کښې دعادیانو دهلاکت او دحضرت هود علیه السلام پورا واقعه تیره شوې ده په دې وجه ئې مونږ دلته دوباره نه بیانوؤ. ﴿فلله الحمد والمنة﴾
د طبرانی یو مرفوع حدیث مبارك کښې دی چه په عادیانو باندې دومره هوا راوستې شوې وه لکه څومره چه د ګوتې حلقه وی. دا هوا مخکښې کلی والو باندې او قصبو والو باندې او بیا ښارونو والو باندې راغله. او ددې راتلو سره دوی اوونیل چه دا وریځ مونږ طرفته راروانه ده دابه ضرور په مونږ باران وروی. خو په دې کښې ځنګلی خلق وو چه په دې ښاروالو باندې راغورزولې شوی وو. او ټول هلاك شو او د هوا په خزانچیانو د هوا سرکشئ دومره وه چه هغه د دروازې نه بهر راوتله(طبرانی: ۱۲٤۱۶. مجمع الزوائد: ۷/۱۱۳) .

رشتوني ئي، نو راوله مونږ ته هغه عذاب، چه ته مونږ دهغې نه ويروې. هغه ورته اوفرمائيل چه صحيح صحيح علم خو الله تعالى سره دې (چه هغه عذاب به کله راځي) او زه چه په کوم پيغام سره رالېږلې شوې يم، زه تاسو ته هغه پيغام دررسوم، البته زه خامخا وينم، چه تاسو داسې خلق يئ، چه د ناپوهۍ خبرې کوئ پس هرکله چه هغوی هغې (عذاب) لره د يوې وريځې په شکل کښې اوليدو، چه دهغوی کلو طرف ته راروان وو، نوهغوی اووئيل: چه دا وريځ ده، چه په مونږ به باران راؤروی، نه، بلکه دا هغه څيز دې، کوم چه تاسو په تلوار سره غوختلو دا يوه سيلۍ ده چه په هغې کښې دردناک عذاب دې. چه دخپل پروردګار په حکم سره به هر څه تهس نهس کړي، غرض د هغوی حالت داسې شو، چه د کورونو نه سوا هيڅ څيز په نظر نه راتلو، دغه رنګې سزا ورکوو مونږ مجرمانو خلقو ته. او (اے د عربو خلقو) مونږ هغې خلقو ته دهغې خبرو طاقت ورکړې وو، د کومو طاقت چه مو تاسو ته نه دې درکړې، او مونږ هغوی ته غوږونه، سترګې او زړونه ټول هرڅه ورکړي وو. ليکن نه دهغوی غوږونه او سترګې د هغوی څه په کار راغلې، او نه د هغوی زړونه، ځکه چه هغوی د الله تعالى د آيتونو نه انکار کولو. او کوم څيز پورې چه هغوی ټوقې کولې، هم هغې راګير کړل.

## خلاصه تفسير

﴿وَاذْكُرْ أَخَا عَادٍ﴾ [اوته دقوم عاد دورور] يعنی د هود ﷺ دوی ته [ذکر وکړه ﴿إِذْ أَنذَرَ قَوْمَهُ بِالْأَحْقَافِ وَقَدْ خَلَتِ النُّذُرُ مِن بَيْنِ يَدَيْهِ وَمِنْ خَلْفِهِ﴾ هرکله چه هغوی خپل قوم ته کوم چه په داسې مقام اوسيدل چه هلته دشګو اوږدې اوږدې ډيرکئ [غونډۍ] وې] دا دمقام نښه ئې په دې وجه وښوده چه دليدونکو په ذهن کښې دغه ځائ حاضرشی [په دې] خبره [باند] دعذاب الهی نه اوويرول ﴿أَلَّا تَعْبُدُوا إِلَّا اللَّهَ﴾ چه تاسو دالله تعالى نه سوا دبل چا عبادت مه کوئ] ورنه په تاسو به عذاب نازل شی [او] داداسې ضروری او صحيح خبره ده چه [د هغوی] هود ﷺ [نه وړاند او د هغوی نه وروستو] ددې مضمون متعلق [ډير ويرونکی] پيغمبران تراوسه پورې [تير شوی دی] او عجيبه نه ده چه هود ﷺ د ددغو ټولو په توحيد باند متفق کيدل د دوی په وړاند بيان کړی هم وی پس دجملې [وَقَدْ خَلَتِ النُّذُرُ] په مينځ کښې زياتول ددې فائدې دپاره دی چه ددعوت دمضمون تاکيدوشی او هود ﷺ په ويرولو کښې دا وفرمائيل چه ﴿إِنِّي أَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيمٍ﴾ [ماته په تاسو ديوې لوئ] سختې [ورځې د عذاب نه ويروم] که دهغې نه خانونه بچ کول غواړئ نو توحيد قبول کړئ ﴿قَالُوا أَجِئْتَنَا لِتَأْفِكَنَا عَنْ آلِهَتِنَا﴾ [هغوی ووئيل ايا ته مونږ ته په دې اراده سره راغلې چه مونږ لره زمونږ د معبودانو نه واړوې پس] مونږ خوواپس کيدونکی نه يو باقی ﴿فَأْتِنَا بِمَا تَعِدُنَا إِن كُنتَ مِنَ الصَّادِقِينَ﴾ [که ته رښتونې يې نو دکوم] عذاب [چه ته زمونږ سره وعده کوې هغه په مونږ واقع کړه ﴿قَالَ إِنَّمَا الْعِلْمُ عِندَ اللَّهِ﴾ نوی وفرمائيل چه پوره علم خود الله تعالى سره دې] چه عذاب به کله راځی ﴿وَأُبَلِّغُكُم مَّا أُرْسِلْتُ بِهِ﴾ [اوماته چه کوم پيغام راکړې شوې رالېږلې شوې يم زه خو تاسو ته هغه رسوم] چنانچه په هغې کښې ماته داهم وئيلې شوی دی چه په تاسو به عذاب راځی ماتاسو خبر کړئ د دې نه زياتی نه ماته څه علم شته اونه قدرت ﴿وَلَٰكِنِّي أَرَاكُمْ قَوْمًا تَجْهَلُونَ﴾ [ليکن زه تاسو لره وينم چه تاسو خلق خالصې د جهالت خبرې کوئ] چه يوخو توحيد نه قبلوئ بيا په خپلو خلو سره بلاغواړئ بيا ماته ددې

فرمائش کوئ البته د خپل صدق زۀ مدعی یم په کوم چه مې دلیل قائم کړې دې او په کومه واقعه کښې چه ستاسو شبهه ده دهغې وخت او واقع کیدل ماته نه دی ښودلې شوی البته نفس وقوع لره چه هرکله الله تعالی وغواړي وبه وینئ غرض هرکله چه په هیڅ شان سره هغوی حق قبول نه کړو نو اوس د عذاب داسې سامان شروع شو چه اول یوه وریځ راوچته شوه ﴿فَلَمَّا رَأَوْهُ عَارِضًا مُّسْتَقْبِلَ أَوْدِيَتِهِمْ﴾ [پس هغو خلقو چه هرکله وریځ خپلو میرو طرف ته مخامخ راتلو نکې ولیده ﴿قَالُوا هَٰذَا عَارِضٌ مُّمْطِرُنَا﴾ نو وې وئیل چه دا خو وریځ ده په مونږ به باران وکړي] ارشاد وشو چه [نا] باران ورونکې وریځ نه ده ﴿بَلْ هُوَ مَا اسْتَعْجَلْتُم بِهِ﴾ [بلکه دا هغه] عذاب [دې کوم چه تاسو ژر غوښتلو] چه هغه عذاب ژر راوله او په دې وریځه کښې ﴿رِيحٌ فِيهَا عَذَابٌ أَلِيمٌ﴾ [یوه هوا ده په کومه کښې چه دردناك عذاب دې هغه] هوا [به ﴿تُدَمِّرُ كُلَّ شَيْءٍ بِأَمْرِ رَبِّهَا﴾ هرشی لره دکوم چه دهلاکولو حکم وی [د خپل رب په حکم سره هلاك کړي چنانچه] هغه هوا راغله او بنیادم او څاروی به ئې پورته کول او راویشتل چه په دې سره ﴿فَأَصْبَحُوا لَا يُرَىٰ إِلَّا مَسَاكِنُهُمْ﴾ [هغه داسې] تباه [شول چه بغیر د دوی دکورونو نه نور هیڅ] بنیادم او حیوانات [الیدې نه شول ﴿كَذَٰلِكَ نَجْزِي الْقَوْمَ الْمُجْرِمِينَ﴾ مونږ مجرمان ته دغسې سزا ورکوو ﴿وَلَقَدْ مَكَّنَّاهُمْ فِيمَا إِن مَّكَّنَّاكُمْ فِيهِ﴾ او یقینا مونږ دوی ته] یعنی دقوم دعاد [خلقو ته په هغو خبروکښې قدرت ورکړې وو چه تاسو ته مو په هغو خبرو کښې قدرت نه دې درکړې] مراد د هغو خبرو نه هغه تصرفات دی کوم چه په قوت جسمانی او مالی باند موقوف دی ﴿وَجَعَلْنَا لَهُمْ سَمْعًا وَأَبْصَارًا وَأَفْئِدَةً﴾ [اومونږ هغوی ته غوږونه او سترګې او زړۀ] ټول هرڅه [ورکړی وو ﴿فَمَا أَغْنَىٰ عَنْهُمْ سَمْعُهُمْ وَلَا أَبْصَارُهُمْ وَلَا أَفْئِدَتُهُم مِّن شَيْءٍ إِذْ كَانُوا يَجْحَدُونَ بِآيَاتِ اللَّهِ﴾ پس چونکه هغو خلقو دالله تعالی د ایتونو نه انکار کولو په دې وجه] هرکله چه په هغوی عذاب راغلې دې نو [نه د هغوی غوږونه د هغوی یوه ذره په کار راغلی دی اونه د هغوی سترګې اونه دهغوی زړونه ﴿وَحَاقَ بِهِم مَّا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِئُونَ﴾ او په کوم] عذاب [پورې چه هغوی خنداګانې کولې هم هغې هغوی لره ګیر کړل] یعنی نه د هغوی حواسو هغوی لره دعذاب نه بچ کړل اونه د هغوی تدبیر دکوم ادراك چه په زړۀ سره کیږی نه د هغوی قوت پس ستاسو څه حقیقت دې

| وَلَقَدْ أَهْلَكْنَا | مَا حَوْلَكُم | مِّنَ الْقُرَىٰ | وَصَرَّفْنَا |
|---|---|---|---|
| او بیشکه هلاك کړی دی مونږه | هغه چې چاپیره دی ستاسونه | دکلونه | او بار بار اولیږل مونږه |
| اومونږ تاسو نه ګیر چاپیره نور کلی هم هلاک کړی دی \| او خپلې نښې مو ورته بیا بیا | | | |

| الْآيَاتِ | لَعَلَّهُمْ | يَرْجِعُونَ | فَلَوْلَا نَصَرَهُمُ | الَّذِينَ |
|---|---|---|---|---|
| آیتونه | دپاره ددې چې دوئ | واپس راشی | پس ولې امداد اونۀ کړو دهغوئ | هغه هستیانو |
| خودلی وې\| دپاره ددې چې هغوئ [د نافرمانۍ نه] راواپس شی\| نوهغه کسانو ورسره ولې مدداونکړو | | | | |

| اتَّخَذُوا | مِن دُونِ اللَّهِ | قُرْبَانًا | آلِهَةً | بَلْ ضَلُّوا |
|---|---|---|---|---|
| چې نیولی وۀ هغوئ | بې دالله نه | ذریعه دنزدیکت | نور خدایان | بلکه ورك شو هغوئ |
| کوم چې هغوئ الله ﷻ ته دنزدیکت دپاره د الله نه سوا معبودان جوړ کړی وو\| بلکه هغه | | | | |

| عَنْهُمْ | وَذٰلِكَ | اِفْكُهُمْ | وَمَا | كَانُوْا |
|---|---|---|---|---|
| دهغوی نه | او دا انجام وو | د دروغو دهغوی | او دهغه دروغژنو عقیدو | چې وو هغوی |
| ددوی نه ورک شول | اودا عذاب د هغوی د دروغو وو | | او دهغه غلطو عقیدو وو کومې چې هغوی | |

| يَفْتَرُوْنَ ۝ |
|---|
| چې دخانه به ئې جوړولې |
| جوړولې |

## آسان ترجمه قرآن

او مونږ نورکلي هم هلاک کړي دي، چه ستاسو نه ګیر چاپیره آباد وو، او مونږ قسماقسم نښې هغوی ته ښودلې وې، دې دپاره چه هغوی منع شي (د کفر او شرک نه) بیا د الله تعالی نزدیکت حاصلولو دپاره هغوی چه کوم څیزونه د الله تعالی نه سوا معبودان جوړ کړي وو، هغوی ددوی ولې مدد اونه کړو؟ بلکه ددې په ځائې هغوی ټول ددوی نه ورک شو دا خو ددوی سراسر دروغ وو، او بهتان وو، چه هغوی جوړ کړي وو.

## خلاصه تفسیر

بره دقوم عاد قصه په تفصیل سره ذکر وه وړاندې د نورو داسې قومونو ذکر دې په کومو چه دکفر او دانبیاؤ ﷺ د مخالفتِ په وجه عذاب راغې او هلاك شول د هغوی وران کلی هم دمکې دخلقو د سفر کولو په وخت کښې په لاره کښې راتلل د هغې نه د عبرت حاصلولو دپاره د هغوی اجمالی حال په دادې ذکر شوو ایتونو کښې راغلې دې ﴿وَلَقَدْ اَهْلَكْنَا مَا حَوْلَكُمْ مِّنَ الْقُرٰى﴾ [اومونږ ستاسو خواشا ته نور کلی هم] ددې کفر شرك په سبب [هلاك كړی دی] لکه ثمودیان او قوم د لوط ﷺ چه شام ته دتللو په وخت کښې به دمکې خلق په دغه کلو تیریدل او چونکه دمکې نه یو طرف ته یمن دې او بل طرف ته شام دې نو خکه ئې مَا حَوْلَكُمْ اوفرمائیل ﴿وَصَرَّفْنَا الْاٰيٰتِ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ ۝﴾ [اومونږ] دهلاکولو نه وړاندې د هغوی دپوهه کولو دپاره [باربار خپلې نښې] هغوی ته ښودلې وې چه هغوی د کفر او شرك نه [واپس شي] مګر واپس نه شول او هلاك شول ﴿فَلَوْلَا نَصَرَهُمُ الَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ قُرْبَانًا اٰلِهَةً﴾ [پس د الله تعالی نه سوا کومو کومو څیزونو لره چه هغوی د الله تعالی د تقرب حاصلولو دپاره خپل معبودان جوړ کړی وو] چه دابه په مصیبت کښې زمونږ په کار راشی د هلاکت او عذاب په وخت کښې [هغوی د هغو مدد ولې ونه کړو ﴿بَلْ ضَلُّوْا عَنْهُمْ﴾ بلکه هغه ټول د هغوی نه ورك شول ﴿وَذٰلِكَ اِفْكُهُمْ وَمَا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ ۝﴾ او هغه] معبود او شفیع ګنړل [محض د هغوی تراش کړې او جوړ کړې خبرې دی] او چرې هم په واقع کښې هغه شفیع یا معبود نه وو

| وَاِذْ | صَرَفْنَآ اِلَيْكَ | نَفَرًا |
|---|---|---|
| او یاد کړه هغه وخت کله چې | راواګرزوله مونږه تاته | یوه ډله |
| او هغه وخت یادکړه چې مونږ ستا طرفته دپیریانو یو ډله | | |

مِّنَ الْجِنِّ يَسْتَمِعُوْنَ الْقُرْاٰنَ فَلَمَّا حَضَرُوْهُ قَالُوْٓا

دپیریانونه | چې اوریدلو ئې قرآن | پس هر کله چې | هغوئ حاضر شول دغه قرآن ته | نو وې وئیل

راواړوله | چې قران ته ئې غوږونه اونیول | کله چې هغوئ د قرآن اوریدو ته حاضر شو[نو دا ئې] اووئیل

اَنْصِتُوْا فَلَمَّا قُضِيَ وَلَّوْا اِلٰى قَوْمِهِمْ مُّنْذِرِيْنَ

چپ شئ | پس هر کله چې | پوره شو تلاوت | نو واپس لاړل | قوم خپل ته | په حیثیت دیرونکو |

چې چپ شئ | [واورئ] بیا چې [تلاوت] پوره شو | نو هغوئ خپل قوم ته دویرولو په غرض واپس لاړل

قَالُوْا يٰقَوْمَنَآ اِنَّا سَمِعْنَا كِتٰبًا اُنْزِلَ

اووئیل هغوئ | اے قومه زمونږه | بیشکه واوریدو مونږه | یو کتاب | چې نازل کړې شوې دې |

هغوئ اووئیل چې ائې زمونږ قومه مونږ یو کتاب آوریدلې دې | چې دموسی ﷺ

مِنْۢ بَعْدِ مُوْسٰى مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ

روستو دموسی نه | چې تصدیق کونکې دې | د هغه کتابونو | چې مخکښې دهغه نه دی |

[دتورات] نه پس نازل شوې دې | چې د دې نه د وړاندې کتابونو تصدیق کوی

يَهْدِيْٓ اِلَى الْحَقِّ وَاِلٰى طَرِيْقٍ مُّسْتَقِيْمٍ يٰقَوْمَنَآ اَجِيْبُوْا

چې ښودنه کوی | حق ته | او لارې | نیغې ته | اے قومه زمونږه | قبول کړئ دعوت

اودحقو خبرو اود سمې لارې خودنه کوی | ........اې زمونږ قومه دالله ﷻ طرفته

دَاعِيَ اللّٰهِ وَاٰمِنُوْا بِهٖ يَغْفِرْ لَكُمْ مِّنْ ذُنُوْبِكُمْ

رابلونکی دالله | او ایمان راوړئ په هغه | اوبه ښنې تاسو ته | گناهونه ستاسو |

دبلونکی نبی خبره اومنئ | او ایمان پرې راوړئ | الله ﷻ به درته گناهونه اوبښی

وَيُجِرْكُمْ مِّنْ عَذَابٍ اَلِيْمٍ وَمَنْ لَّا يُجِبْ دَاعِيَ اللّٰهِ

او بچ به کړی تاسو | دعذاب دردناک نه | او هغه څوک چې اونه منی | [خبره] دبلونکی دالله |

اوددردناک عذاب نه مو بچ کړی | او چا چې دالله ﷻ طرفته دبلونکی [پیغمبر] خبره اونه منله

فَلَيْسَ بِمُعْجِزٍ فِي الْاَرْضِ وَلَيْسَ لَهٗ مِنْ دُوْنِهٖٓ

پس نه دې هغه عاجزه کونکې الله لره | په زمکه کښې | او نشته هغه لره | بې دهغه نه |

نو هغه د زمکې په مخ الله ﷻ عاجزه کولې نشی | اوهغه دپاره به دالله ﷻ نه سوا څوک بل مددگار

اَوْلِيَآءُ اُولٰٓئِكَ فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ

دوستان [بل څوک] | دا کسان | په گمراهئ | ښکاره کښې دی |

پیدا نشی | هم دغه خلق په ښکاره گمراهئ کښې پراته دی |

## آسان ترجمه قرآن

**او (اے پیغمبره) یاد کره، چه کله مونږ د پیریانو یوه ډله ستا طرف ته متوجه کره، چه هغوی قرآن مجید واوري نوچه کله هغوی هلته اورسیدل، نو هغوی (یو بل ته اووئیل) چه: خاموش شئ، بیا چه کله هغه اولوستلې شو، نو خپل قوم ته د هغوی خبردار کولو دپاره واپس راغلل هغوی اووئیل: اے زمونږ د قوم خلقو! یقین اوکړئ، مونږ داسې کتاب اوریدلې دې، چه د موسٰی علیه السلام نه پس نازل کړې شوې دې د مخکښنو کتابونو تصدیق کوی، حقې خبرې او نیغې لارې طرف ته رهنمائی کوی. او اې زمونږ د قوم خلقو! د الله تعالٰی د داعی خبره اومنئ، او په هغه باندې ایمان راوړئ، الله تعالٰی به ستاسو ګناهونه معاف کړی، او تاسو ته به د یو دردناک عذاب نه پناه درکړی، او څوک چه د الله تعالٰی د داعی خبره اونه منی نو هغه په ټوله زمکه کښې چرته هم الله تعالٰی لره عاجزه کولې نشی، او د الله تعالٰی نه سوا هغه ته به هیڅوک هم بچ کولکې ملاؤ نشی داسې خلق په ښکاره ګمراهئ کښې مبتلا دی.**

## خلاصه تفسیر

[او] هغوی ته د هغه وخت قصه ذکر کره ﴿وَاِذۡ صَرَفۡنَاۤ اِلَیۡکَ نَفَرًا مِّنَ الۡجِنِّ﴾ [هر کله چه مونږ د پیریانو یوې ډلې لره ستا طرف ته راوستله کوم چه] په اخر کښې دغلته راورسیدل ﴿یَسۡتَمِعُوۡنَ الۡقُرۡاٰنَ ۚ﴾ [قرآن ئې اوریدو ﴿فَلَمَّا حَضَرُوۡهُ﴾ غرض هرکله چه هغه خلق د قرآن] لوستلو موقع ته [راورسیدل نو] په خپل مینځ کښې ئې ﴿قَالُوۡۤا اَنۡصِتُوۡا ۚ﴾ [ووئیل چه خاموش شئ] او داکلام واورئ ﴿فَلَمَّا قُضِیَ﴾ [بیا چه هر کله قرآن ولوستلې شو] یعنی څومره چه دغه وخت پیغمبر ﷺ په مونځ کښې لوستل وو ختم شو ﴿وَلَّوۡا اِلٰی قَوۡمِہِمۡ مُّنۡذِرِیۡنَ ﴿﴾ [نو هغه خلقو] په هغې ایمان راوړو او [خپل قوم ته] ددې [خبررسولو دپاره واپس لاړل] او چه لاړل نو هغوی ته ئې ﴿قَالُوۡا یٰقَوۡمَنَاۤ﴾ [ووئیل اے ورنړو ﴿اِنَّا سَمِعۡنَا کِتٰبًا اُنۡزِلَ مِنۡۢ بَعۡدِ مُوۡسٰی﴾ مونږ یو] عجیبه [کتاب واوریدو راغلو کوم چه د موسی] علیه السلام [نه پس نازل شوې دې ﴿مُصَدِّقًا لِّمَا بَیۡنَ یَدَیۡہِ﴾ کوم چه د ځان نه د وړاند کتابونو تصدیق کوی] ﴿یَہۡدِیۡۤ اِلَی الۡحَقِّ وَ اِلٰی طَرِیۡقٍ مُّسۡتَقِیۡمٍ ﴿﴾ او دین [حق اونیغې لارې طرف ته رهنمائی کوی] دا خو ددین اسلام د حقانیت اثبات او اظهار دې وړاند امر دې ددې دقبلولو اول ترغیبا بیا ترهیبا یعنی ﴿یٰقَوۡمَنَاۤ اَجِیۡبُوۡا دَاعِیَ اللّٰہِ﴾ [اے ورونړوا تاسو د الله تعالی طرف ته دبلونکی خبره ومنئ] مراد دبلونکی نه قرآن یا نبی ذیشان دې [او] خبره منل دادی چه ﴿وَ اٰمِنُوۡا بِہٖ﴾ [په هغه ایمان راوړئ] په دې کښې اشاره شوه چه هغه ایمان راوړو طرف ته بلونکې دې نه چه بل څه دنیوی غرض طرف ته پس که تاسو داسې وکړئ نو ﴿یَغۡفِرۡ لَکُمۡ مِّنۡ ذُنُوۡبِکُمۡ﴾ [الله تعالی به ستاسو ګناهونه معاف کړی ﴿وَ یُجِرۡکُمۡ مِّنۡ عَذَابٍ اَلِیۡمٍ ﴿﴾ او تاسو به د دردناك عذاب نه محفوظ کړی ﴿وَ مَنۡ لَّا یُجِبۡ دَاعِیَ اللّٰہِ﴾ اوکوم سړې چه د الله تعالی طرف ته دبلونکی خبره ونه منی ﴿فَلَیۡسَ بِمُعۡجِزٍ فِی الۡاَرۡضِ﴾ نو هغه په مزکه] څه حصه [کښې] په تیښته خدائ له [نه شی عاجزه کولې یعنی داسې چه په لاس ئې ورنه شی [او] لکه څنګه چه هغه په خپله ځان نه شی بچ کولې دغه شان ﴿وَ لَیۡسَ لَہٗ مِنۡ دُوۡنِہٖۤ اَوۡلِیَآءُ ؕ﴾ [د الله تعالی نه سوابل څوك به دهغه مددګارهم نه وی] چه دۀ لره بچ کړی او ﴿اُولٰٓئِکَ فِیۡ ضَلٰلٍ مُّبِیۡنٍ ﴿﴾ [داسې خلق په ښکاره ګمراهئ کښې] اخته [دی] چه سره د دلیلونو قائمیدو دبلونکی په حقوالی بیا هم د هغه خبره قبوله نه کړی

## معارف او مسائل

دمکي کافرانو ته د آؤرولو په غرض په اولنی آیتونو کښې د کفر او د فخر کولو بدی او ددې هلاکوونکی کیدل بیان شوی وو. دې آیتونو مبارکو کښې دمکې خلقو ته یو غیرت ورمنځکښې کوی او ورته د پیریانو ایمان راوړلو واقعه بیانوی. هغه داسې چې پیریان خو په تکبر او غرور کښې تاسو نه زیات دی خو د قرآن کریم آؤریدو د هغوئ زړونه نرم کړل او مسلمانان شو ، تاسو ته خو الله ﷻ د پیریانو نه زیات عقل اوشعور درکړې دې او بیا هم تاسو ایمان نه قبلوئی. دپیریانو دقرآن کریم د آؤریدو او د ایمان راوړلو واقعه صحیح احادیث کښې داسې بیان شوې ده چې کله رسول کریم ﷺ ته نبوت ورکړې شو اوپیریان د آسمانی خبرونو آؤریدو نه منع کړې شو او چې کوم پیریان به آسمان طرفته تلل هغوئ به شهاب ثاقب سره ویشتلې شو او منع کولې به شو. پیریانو ددې سبب معلومول غوښتل چې دا څه خبره ده چې پیریانو د آسمان دنیا نه منع کړې شو.

په دې غرض د پیریانو مختلف ټولګی د معلوماتو حاصلولو دپاره خوارهٔ شو. ددوئ یوه ډله حجاز ته هم اورسیده. په دغه ورځ نبی کریم ﷺ خپلو صحابه کرامو سره په بطن نخله مقام کښې ناست وو . او عکاظ نومې بازار ته د تشریف اوړلو اراده یې کوله. [د عربو د قاعدې مطابق بیل بیل موسم کښې به بیلې بیلې میلې لګیدې لکه څنګه چې زمونږ په دې زمانه کښې همدا شان کیږی.] غالبا نبی کریم ﷺ د عکاظ بازا رته د دعوت ورکولو دپاره تشریف اوړو. دې بطن نخله کښې نبی کریم ﷺ د سحر مونځ کولو ، هرکله چې دپیریانو دغه ډله هلته اورسیده نو دقرآن عظیم الشان په آؤریدو یې اووئیل چې هم دا هغه نوې خبره ده چې زمونږ او د آسمانی دنیا ترمینځه یو رکاوټ جوړ شوې دې. [امام أحمد رحمه الله ، بخاری ، مسلم ، ترمذی ، نسائی او یوې ډلې د ابن عباس رضي الله عنهما نه روایت کړو][1].

یو روایت کښې راغلی دی چې کله پیریان دغه ځائې ته اورسیدل نو یو بل ته ئې اووئیل چې دا قرآن په خاموشئ سره واورئ. کله چې نبی کریم ﷺ او صحابه کرام د مونځ نه فارغ شو نو پیریانو د اسلام په حقانیت باندې ایمان او یقین راوړو او خپل قوم ته واپس راغلل او هغوئ یې دټولو حالاتو نه خبر کړل او د خپل ایمان راوړلو واقعه یې ورته هم بیان کړه. او هغوئ ته ئې هم د ایمان راوړلو دعوت ورکړو. خو ددې هر څه نه نبی کریم ﷺ خبر نشو. تر دې چې سورة جن نازل شو او په دې واقعه خبر کړې شو. [ابن المنذر ، د عبد الملك نه روایت کړو][2].

د یو روایت ترمخه دغه پیریان دنصیبین مقام استوګن وو. او ټول نهه یا د ځینې روایتونو ترمخه اووهٔ وو. کله چې دوئ خپل قوم ته دا خبر واوړولو او د ایمان راوړلو دعوت یې ورکړو نو په هغوئ کښې درې سوه کسان د اسلام راوړو دپاره حاضر خدمت شو. [ابو نعیم او واقدی دکعب نه روایت کړو او ټول روایتونه په روح کښې دی][3]

[1]) صحيح البخاري، كتاب الأذان، باب الجهر بقراءة صلاة الفجر: ج ۱، ص ۱۰٦، وجامع الترمذي، أبواب التفسير، باب تفسير من سورة الجن: ج ۲، ص ۱۷۰، ومسند أحمد، مسند عبدالله بن عباس رضى الله عنهما: رقم الحديث: ۲۲۷۱

[2]) دلائل النبوة للبيهقي، رقم الحديث: ۵۳۹، (باختلاف يسير) وتفسير روح المعاني: ج ۱۹، ص ۸۷

[3]) روح المعاني: ج ۱۹، ص ۸۸، ودلائل النبوة لأبي نعيم، رقم الحديث: ۲۵۳، ج ۱، ص ۳۰۲

او په نورو احاديثو كښې د پيريانو د راتلو روايتونه په بل شان هم راغلي دي خو هر كله چې دا ګنړ واقعات په مختلفو وختونو كښې راغلي دي ځكه په كښې څه بې سموني نشته ، او تائيد يې هغه روايت نه هم كيږي چې طبراني په اوسط كښې ابن مردويه دابن عباس رضي الله عنه نه نقل كړي دي چې پيريان د رسول كريم ﷺ په خدمت كښې څو څو ځل حاضر شوي دي[1].

خفاجي رحمه الله اوفرمائيل چې دحديث د روايتونو راجمع كولو نه معلوميږي چې پيريان د رسول كريم ﷺ په خدمت كښې د شپږ ځله نه زيات فائدې حاصلولو په غرض حاضر شوي دي [داسې روح كښې دي او ما د بيان القرآن نه راخستې دي][2].

ددې واقعې تفصيل دې آيتونو مبارك كښې بيان شوې دې:

﴿كِتٰبًا اُنْزِلَ مِنْۢ بَعْدِ مُوْسٰى﴾ د ﴿مِنْۢ بَعْدِ مُوْسٰى﴾ د قيد نه ځينې حضرات دا ګنړي چې دا پيريان يهوديان وو ، ولې چې د موسى عليه السلام نه پس خو حضرت عيسى عليه السلام باندې انجيل نازل شوې وو. دهغې ذكر ئې اونكړو خو هر كله چې ددې داګيز روايت نشته نو د انجيل نه ذكر كولو وجه دا هم كيديشي چې انجيل په اكثرو احكامو كښې د تورات تابع دې او قرآن عظيم الشان دتورات پشان يو مستقل كتاب دې ، ددې حكمونه اوشرعي څيزونه د تورات نه ډير مختلف دي نو دا كيديشي چې مقصود دا خودل وي چې دتورات غوندې مستقل كتاب قرآن عظيم الشان هم دې.

﴿يَغْفِرْ لَكُمْ مِّنْ ذُنُوْبِكُمْ﴾ د ﴿مِنْ﴾ حرف په اصل كښې تبعيض يعنى د برخې كيدو په معنى راځي كه هم دغه معنى دلته واخستې شي نو د ﴿مِنْ﴾ دحرف زياتولو فائده به داوي چې اسلام قبلولو سره حقوق العباد نه معاف كيږي. ځكه دا فرمائيل مناسب شو چې ځينې ګناهونه يعنى دالله ﷻ حقوق معاف كيږي. او ځينې حضراتو چې دا حرف ﴿مِنْ﴾ زائد ګرځولې دې نو بيا ددې توجيه ضرورت نه پيښيږي.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اَوَلَمْ يَرَوْا | اَنَّ اللّٰهَ | | | |
| آيا نه وينى دوئ | چې بيشكه الله | | | |
| آيا دوئ دې ته نه ګوري چې الله ﷻ | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| الَّذِيْ | خَلَقَ السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضَ | وَلَمْ يَعْيَ | بِخَلْقِهِنَّ |
| هغه ذات دې | چې پيدا ئې كړل آسمانونه | او زمكه | او ستړې نه شو | په پيدا كولو ددې |
| آسمانونه او زمكه پيدا كړې ده | ........ اوددې په پيدا كولو ستړې شوې نه دې | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بِقٰدِرٍ | عَلٰٓى اَنْ يُّحْيِۦَ | الْمَوْتٰى | بَلٰٓى اِنَّهٗ | عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ | قَدِيْرٌ ﴿۳۳﴾ | |
| هغه قادر دې | په دې چې ژوندي كړي | مړي | هو بيشكه هغه | په هر څيز باندې | قادر دې | |
| هغه په دې قادر دې | چې مړي راژوندي كړي | ولې نه هغه خو په هرڅه پوره پوره قدرت لري | | | | |

[1] المعجم الأوسط للطبراني، رقم الحديث: ٦

[2] بيان القرآن: ج ١١، ص ١٠، ١١، روح المعاني: ج ١٩، ص ٨٧، ٨٨

وَيَوْمَ يُعْرَضُ الَّذِينَ كَفَرُوا عَلَى النَّارِ ط

او په کومه ورځ | چې وروړاندي کړې کيږي | هغه کسان | چې کفر ئې کړې دې | وور ته |

اوپه کومه ورځ چې کافران[ددوزخ] اور ته ورمخامخ کړې شي ..............

أَلَيْسَ هَذَا بِالْحَقِّ ط قَالُوا بَلَى وَرَبِّنَا ط قَالَ

آيا نه دې دا | حق | اوبه وائی | هو حق دې | قسم دې په رب زمونږه | اوبه وائی الله |

[دا به ورته اوئيلې شي چې] دا حقيقت دې که نه|وائی به چې ولې نه زمونږ په رب قسم [چې داحق دې]

فَذُوقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنْتُمْ تَكْفُرُونَ ۝ فَاصْبِرْ

پس اوڅکئ | عذاب | په سبب دهغې | چې وئ تاسو | چې انکار به مو کولو | پس لې بنې صبرکوه

نو الله ﷻ به ورته اوفرمائی چې دخپل کفر په وجه دا عذاب اوڅکئ | نو [پيغمبره] ته صبره کوه

كَمَا صَبَرَ أُولُوا الْعَزْمِ مِنَ الرُّسُلِ وَلَا تَسْتَعْجِلْ

لکه څنگه چې | صبر کړې دې | کلکو ارادو والا | درسولانونه | او تلوار مه کوه [په عذاب] |

لکه نورو د اوچت همت خاوندانو چې به صبر کولو | اودد وئ په حق کښې

لَهُمْ ط كَأَنَّهُمْ يَوْمَ يَرَوْنَ مَا

دپاره ددوئ | لکه چې دوئ ته به ښکاره شي | په کومه ورځ چې اووينې دوئ | هغه عذاب |

تلوار مه کوه | دوئ چې به کومه ورځ پخپله نامه تاکلې عذاب

يُوعَدُونَ لا لَمْ يَلْبَثُوا إِلَّا سَاعَةً مِنْ نَهَارٍ ط

چې يرولې کيږي تر دوئ | چې وخت تير نه کړو دوئ په دنيا کښې | مگر يو ساعت | دورځې |

اووينې[نوبالکل داسې به ورته ښکاری لکه چې په دنيا کښې ئې د يو ساعت نه زيات وخت نه دې تير کړې

بَلٰغٌ ۚ فَهَلْ يُهْلَكُ إِلَّا الْقَوْمُ الْفٰسِقُونَ ۝ ع

رسونه اوشوه | پس نه به هلاکيږې اوس | مگر قوم | فاسقان |

ددې پيغام رسول ستا ذمه واری ده | ..........اوس به هم هغه هلاک کولې شي | چې نافرمانه وی

## آسان ترجمه قرآن

آيا دوی نه گوری، چه هغه الله تعالی چه آسمانونه او زمکه ئې پيدا کړې دی، او ددې په پيدا کولو کښې لږ شان هم ستړې شوې نه دې، هغه يقيناً په دې خبره باندې هم قادِر دې چه مړو لره (دوباره) راژوندی کړی؟ او ولې نه؟ هغه بے شکه په هر څيز باندې پوره قدرت لرونکې دې. او په کومه ورځ چه کافران اور ته پيش کړې شی، په هغه ورځ به (ددوی نه تپوس اوکړې شی) چه آيا دا د دوزخ دا عذاب رښتيا نه دی؟ هغوی به اووائی چه: زمونږ په خپل رب قسم! دا يقيناً رښتيا دې. الله تعالی به اوفرمائي: بيا اوڅکئ مزه د عذاب د هغې کفر په بدله کښې، کوم چه تاسو اختيار کړې وو. غرض (اے پيغمبره) ته صبر کوه، څنگه چه اولو العزم پيغمبرانو صبر کړې دې او ددوی په معامله کښې تلوار مه کوه. په کومه ورځ چه دوی هغه عذاب اووينی، د کوم نه چه دوی ويرولې شو، په هغه ورځ به دوی ته داسې محسوسيږی، لکه

چه دوی په دنیا کښې د یوې ورځې له زیات ایسار شوي نه دی دا هغه پیغام دی، چه رسولې شوی دی. پس هغه خلق برباديږی، چه نافرمان دی.

## خلاصه تفسير

﴿اَوَلَمْ يَرَوْا اَنَّ اللّٰهَ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ﴾ [ایا دې خلقو دا ونه لیدل چه کوم الله تعالی اسمانونه او مزکه پیدا کړل ﴿وَلَمْ يَعْيَ بِخَلْقِهِنَّ﴾ او ددې په پیدا کولو باند یوه ذره ستړې نه شو هغه به دی] په درجه اولی ﴿بِقٰدِرٍ عَلٰى اَنْ يُّحْيِۦَ الْمَوْتٰى﴾ [قدرت لری چه مړولره] په قیامت کښې [ژوندی کړی] ﴿بَلٰى اِنَّهٗ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ﴾ او هغه به دې قادر [ولې نه وی بیشکه هغه] خو [په هرڅه قادر دې] دا خوې امکان ثابت شو [او په کومه ورځ چه] دا وقع شی او ﴿وَيَوْمَ يُعْرَضُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا عَلَى النَّارِ﴾ [کافر خلق دوزخ ته مخامخ راوستلې شی] او دهغوی نه تپوس وشی چه ﴿اَلَيْسَ هٰذَا بِالْحَقِّ﴾ [ایا دا دوزخ واقعی شې نه دې] لکه چه په دنیاکښې مو ددې د واقعیت نفی کوله لکه چه الله تعالی د دوی خبره بیانوی [ومانحن بمعذبين] ﴿قَالُوْا بَلٰى وَرَبِّنَا﴾ [هغوی به ووائی چه زمونږ په رب خپل قسم دې ضرور واقعی کار دې ﴿قَالَ﴾ ارشاد به وشی] چه ښه نو ﴿فَذُوْقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنْتُمْ تَكْفُرُوْنَ﴾ [دخپل کفر په بدله کښې] چه په دې کښې د دوزخ نه انکار هم راځی [ددې] دوزخ [عذاب وڅکئ] اوس وړاند نبی کریم ﷺ ته دتسلئ ورکولو دپارفرمائی چه هرکله د دوی نه د کفر بدل اخستل معلوم شو ﴿فَاصْبِرْ كَمَا صَبَرَ اُولُوا الْعَزْمِ مِنَ الرُّسُلِ﴾ [نو ته] داسې [صبر کوه لکه چه نورو همتِ ناکوپیغمبرانو صبرکړې وو ﴿وَلَا تَسْتَعْجِلْ لَّهُمْ﴾ او دهغو خلقو دپار] دالله تعالی د انتقام [تلوار مه کوه] کوم لره چه دوی دمسلمانانو د دلجوئ دپاره غوښتلو او زیاته عجیبه داده چه دغو مستحقینو دعذاب په خپله جلد بازی کوله اوزیات عجیبه والې خوئ ظاهر دې چه مدعی که دمدعا علیه سزا زر غواړی نو بعیده نه ده لیکن چه مدعا علیه زر سزا غواړی نو دانهایت عجیبه کار دې پس اګر چه په حکمت الهی سره عذاب فوری نه راځی لیکن د مشاهدې په وخت کښې به په هغوی ددې اثر هغه شان وی کوم چه د فوری عذاب وی څکه چه ﴿كَاَنَّهُمْ يَوْمَ يَرَوْنَ مَا يُوْعَدُوْنَ﴾ [په کومه ورځ داخلق هغه څیزلره] یعنی عذاب لره [ووینی دکوم چه دهغوی سره وعده کولې شی نو] دغه وخت به د انتهائی سخت والی دعذاب نه داسې معلومیږی چه ﴿لَمْ يَلْبَثُوْا اِلَّا سَاعَةً مِّنْ نَّهَارٍ ۭ بَلٰغٌ﴾ [ګویا دې خلقو] په دنیاکښې [د پوره ورځې صرف یوه ګنټه وخت تیر کړې دې] یعنی ددنیا اوږد عمر به ورته لنډ معلومیږی او داسې به ورته معلومه شی چه عذاب فورا راغې وړاند کفارو ته خبرداری دې چه [دا] دالله تعالی طرف نه داتمام حجت دپاره [رسول دی] کوم چه درسول الله ﷺ په معرفت وشو ﴿فَهَلْ يُهْلَكُ اِلَّا الْقَوْمُ الْفٰسِقُوْنَ﴾ [پس] ددې نه پس [هغه به بربادیږی کوم چه نافرمانی کوی] څکه چه پس د تبلیغ نه هیڅ عذر پاتې نه شو او دنبی کریم ﷺ په دې کښې هیڅ ضرر نشته په دې سره تاکید دتسلئ هم اوشو.

## معارف او مسائل

﴿اُولُوا الْعَزْمِ مِنَ الرُّسُلِ﴾ دلته د ﴿مِنْ﴾ لفظ د محققینو په نزد بیانیه دی ، بعضیت دپاره نه دې. معنی يې داده چې ټول رسولان د عزیمت او همت خاوندان دی البته درسولانو ترمینځه دصفتونو درجو کښې کمې زیاتې پخپله قرآن کریم بیان فرمائیلې دې لکه ﴿تِلْكَ الرُّسُلُ فَضَّلْنَا

﴿بَعْضَهُمْ عَلٰى بَعْضٍ﴾(۱) البته كوم پيغمبران ﷺ چې د عزت او همت په صفت كښې د نورو نه زيات وو نو دا لقب خاص هم دغه پيغمبرانو د پاره مشهور شو ، خو بيا هم ددوئ په ټاكلو كښې اختلاف دې . او دا كثرو قول دادې چې د اولو العزم لقب هغه حضراتو ته وركړې شوې دې چې بيان يې په سورة احزاب كښې داسې : ﴿وَاِذْ اَخَذْنَا مِنَ النَّبِيّٖنَ مِيْثَاقَهُمْ وَمِنْكَ وَمِنْ نُّوْحٍ وَّاِبْرٰهِيْمَ وَمُوْسٰى وَعِيْسَى ابْنِ مَرْيَمَ وَاَخَذْنَا﴾(۲) راغلې دې . دحضرت عائشه صديقه رضي الله عنها د روايت مطابق رسول كريم ﷺ اوفرمائيل چې ددنيا عيش و عشرت ، مزې د محمد ﷺ او آل محمد ﷺ شان سره نه ښائي ولې چې الله ﷻ د اولولعزم نه خالص په دې وجه راضى دې چې اولعزم رسولانو به صبر كولو او ماته ئې هم دا حكم كړې دې چې ﴿فَاصْبِرْ كَمَا صَبَرَ اُولُوا الْعَزْمِ مِنَ الرُّسُلِ﴾(۳)

تمت سورة الاحقاف بعون الله للثاني والعشرين من رجب ۱۳۹۲ يوم السبت ولله الحمد

| اياتونه | سورة محمد ﷺ مدنية وهي خمس وثلاثون اٰية واربع ركوعات | ركوع ګانې |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| (۴۷) | شروع كوم په نوم د الله چه ډېر مهربان زيات رحم كونكې دې | (۴) |

| الَّذِيْنَ | كَفَرُوْا | وَصَدُّوْا | عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ | اَضَلَّ |
|---|---|---|---|---|
| هغه كسان | چې كفر ئې اوكړو | او خلق ئې منع كړل | دلارې د الله نه | نو ضائع كړل الله |

كومو كسانو چې كفر كړې دې | او [خلق ئې] دالله ﷻ دلارې نه منع كړې دى | نو الله ﷻ دهغوئ

| اَعْمَالَهُمْ ۝۱ | وَالَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | وَعَمِلُوا | الصّٰلِحٰتِ |
|---|---|---|---|---|
| عملونه دهغوئ | او هغه كسان | چې ايمان ئې راوړو | او عملونه ئې اوكړل | نيك |

عملونه تباه كړل | اوكومو كسانو چې ايمان راوړې دې | اود نيكئ كارونه ئې كړې دى

| وَاٰمَنُوْا | بِمَا | نُزِّلَ | عَلٰى مُحَمَّدٍ | وَّهُوَ الْحَقُّ |
|---|---|---|---|---|
| او ايمان ئې راوړو | په هغه څيز | چې نازل كړې شوې دې | په محمد ﷺ باندې | او هغه حق دې |

او په هغه كتاب ئې ايمان راوړلو | چې په محمد ﷺ باندې نازل شوې دې | اوددوئ د رب طرفنه

| مِنْ رَّبِّهِمْ | كَفَّرَ | عَنْهُمْ | سَيِّاٰتِهِمْ | وَاَصْلَحَ بَالَهُمْ ۝۲ |
|---|---|---|---|---|
| دطرفه درب دهغوئ نه | لرې كړل الله | دهغوئ نه | ګناهونه دهغوئ | او صحيح ئې كړو |

حق دې | نو الله ﷻ به ورته ګناهونه معاف كړى | اود هغوئ حالت به ښه كړى

| ذٰلِكَ | بِاَنَّ | الَّذِيْنَ | كَفَرُوا | اتَّبَعُوا |
|---|---|---|---|---|
| حال دهغوئ | دا كار | په سبب ددې چې بيشكه هغه كسان | چې كفر يې اوكړو | پيروى اوكړه هغوئ |

دا ددې وجې | چې كافرانو د باطل مذهب تابعدارى اختيار كړې ده |

---

[1] ) ترجمه: دا پيغمبران داسے دى چه مونږ په دوى كښې بعضو له په بعضو باندے اوچتے مرتبے وركړے دى.

[2] ) ترجمه: او هغه وخت چه مونږ د ټولو پيغمبرانو نه وعده واغستله او ستا هم او د نوح نه اود ابراهيم نه او دموسى او دعيسىٰ بن مريم نه .

[3] ) شرح السنة للبغوى، رقم الحديث: ۴۰۴۷، كتاب الرقاق، باب القناعة بالقليل من الدنيا.

| الْبَاطِلَ | وَاَنَّ الَّذِيْنَ | اٰمَنُوا | اتَّبَعُوا | الْحَقَّ |
|---|---|---|---|---|
| دباطل | او بیشکه هغه کسان | چې ایمان ئې راوړو | پیروي اوکړه هغوئ | دحق |
| .......اوکومو کسانو چې ایمان راوړې دي | نو هغوی ته چې د خپل رب د طرفه کوم حق دين | | | |

| مِنْ رَّبِّهِمْ ؕ | كَذٰلِكَ | يَضْرِبُ اللّٰهُ | لِلنَّاسِ | اَمْثَالَهُمْ ۝ |
|---|---|---|---|---|
| دطرفه درب دهغوئ نه | همدارنګې | بيانوي الله | دپاره دخلقو | حيثيت دهغوئ |
| ورکړې شوې دې دهغې تابعداري ئې کړې ده | دغه شان الله ﷻ خلقو ته د هغوئ حالت بيانوي | | | |

## آسان ترجمه قرآن

کومو خلقو چه کفر اختيار کړې دې، او نور خلق ئې د لارې د الله تعالىٰ نه بند کړې دی، الله تعالىٰ د هغوی اعمال تباه کړې دی او کومو خلقو چه ايمان راوړې دې، او نيک عملونه ئې کړې دی، او هر هغه خبره ئې په زړه سره منلې ده کومه چه په محمد (صلى الله عليه وسلم) باندې نازله کړې شوې ده، او هم هغه حق دی، کوم چه د هغه د پروردګار د طرف نه راغلې دی، الله تعالىٰ دهغوی بدئ معاف کړې دې، او دهغوی حالت ئې صحيح کړې دې دا ددې وجې نه چه کومو خلقو کفر اختيار کړې دې، هغوی باطل پسې روان دی، او کومو خلقو چه ايمان راوړې دې هغوی هغې حق پسې روان دی، کوم چه دهغوی د پروردګار د طرف نه راغلې دې، دغه شان الله تعالىٰ خلقو ته بيانوی چه دهغوی حالات څه څه دی.

## تفسير خلاصه

﴿اَلَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَصَدُّوْا عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ﴾ [کوم خلق چه] په خپله هم [کافران شول او] نورو لره ئ هم [دالله تعالى دلارې نه منع کړل] لکه دکافرانو دسردارانو چه عادت وو چه په ځان او مال سره به ئ هرقسم کوشش داسلام دلارې په بندولو کښې کولو پس ﴿اَضَلَّ اَعْمَالَهُمْ ۝﴾ [الله تعالى د هغوی عملونه نيشت کړل] يعنی کوم کارونه چه هغوی نيک ګڼرلی دی په وجه دنشتوالي دايمان هغه مقبول نه دی بلکه په هغې کښې ځنې کارونه خو التـه موجب دعتاب دی لکه دالله تعالى په لاره د چليدو نه په منع کولو کښې خرڅ کول لکه چه الله تعالى فرمائی [فسينفقونها ثم تكون عليهم حسرة الخ] ([1]) [او] د هغوی برخلاف ﴿وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ﴾ [کومو خلقو چه ايمان راوړو او هغوی نيک کارونه وکړل او [ددوئ دايمان تفصيلی کيفيت دادې چې] ﴿وَاٰمَنُوْا بِمَا نُزِّلَ عَلٰى مُحَمَّدٍ﴾ هغوئ په هغه ټولو ايمان راوړو کوم چه په محمد ﷺ [باندې نازل شوی دی ﴿وَهُوَ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّهِمْ ۙ﴾ او هغه] کوم چه نازل شوی دی هغه [د هغوی د رب دطرف نه] راغلې [واقعی کار] هم [دې] چه منل ئ هم ضروری دی پس ﴿كَفَّرَ عَنْهُمْ سَيِّاٰتِهِمْ﴾ [الله تعالى به دهغوی ګناهونه د هغوی نه لرې کړی] يعنی معاف به ئ کړی [او] په دواړه جهانه کښې ﴿وَاَصْلَحَ بَالَهُمْ ۝﴾ [د هغوی حالت به درست کړی] په دنياکښې خوداسې چه د دوی به دنيکو عملونو توفيق زياتيږی او په اخرت کښې داسې چه دوی ته به دعذاب نه دنجات او جنت ته داخله ملاوشی او ﴿ذٰلِكَ﴾ [دا] کومه چه دمؤمنانو خوشحالی او دکافرانو بدحالی بيان شوه ﴿بِاَنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوا اتَّبَعُوا الْبَاطِلَ﴾ [په دې وجه ده چه کافران په غلطه لاره باند لاړل ﴿وَاَنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّبَعُوا الْحَقَّ مِنْ

[1]) ترجمه:- پس دا خلق خپل مالونه خرڅ کوی نودا مال به ددوئ په حق کښې د تاوان سبب جوړيږی.

﴿رَبِّهِمْ﴾ او مؤمنان په صحيح لاره لاړل کومه چه دهغوی درب دطرف نه] راغلې [ده] او دغلطې لارې دناکامئ او دصحيح لارې د کاميابئ سبب کيدل ظاهردی په دې وجه هغوی ناکامه شول او دوی کامياب شول اوکه داسلام دلارې په صحيح کيدوکښې څه شبهه وی نو په من ربهم سره ددې جواب وشو چه دصحيح کيدو دليل ئې دادې چه هغه دالله تعالى دطرف نه ده دالله تعالى طرف نه کيدل ئې معجزات نبوبه نه خاصکر د اعجاز قرآنی نه ثابت دې او ﴿كَذٰلِكَ يَضْرِبُ اللّٰهُ لِلنَّاسِ أَمْثَالَهُمْ﴾ [الله تعالى دغه شان] لکه چه ئې دا حالت بيان کړو [دخلقو د] نفع او هدايت د [پاره د هغوی] ذکر شوو [حالت بيانوی] چه دترغيب اوترهيب په دواړو طريقو سره هدايت اوکړې شی.

## معارف او مسائل

د سورة محمد ﷺ بل نوم سورة قتال هم دې ځکه چې په دې کښې د جهاد او جنګ احکام بيان شوی دی ، دمدينې د هجرت نه فورا بعد هم دا سورت نازل شو تر دې چې ددې يو آيت مبارك ﴿وَكَأَيِّنْ مِنْ قَرْيَةٍ﴾(١) په باره کښې د ابن عباس رضي الله عنه نه دا نقل دی چې دا مکی آيت دې ځکه چې کله نبی کريم ﷺ د هجرت په نيت دمکې مکرمې نه بهر اووتل او دمکې په آبادئ او په بيت الله شريف ئې نظر واچولو او وې فرمائيل چې د ټولې دنيا په ښارونو کښې ته زما خوښ يئ که دمکې خلقو زه ددې ځائې نه اوښکلې نه وې نو په خپل اختيار به مې مکه مکرمه نه وې پريخودې . د مفسرينو د اصطلاح مطابق هغه آيتونه مکې بللې شی کوم چې دمدينې دهجرت په دوران کښې نازل شوی وو. خلاصه داده چې دا سورة د مدينې منورې دهجرت نه سمدستی پس نازل شوې دې چې مدينې منورې ته نبی کريم ﷺ راورسيدل نو کفارو سره دجهاد او جنګ حکمونه نازل شو.

﴿وَصَدُّوا عَنْ سَبِيلِ اللّٰهِ﴾ د ﴿سَبِيلِ اللّٰهِ﴾ نه مراد اسلام دې ، په ﴿أَضَلَّ أَعْمَالَهُمْ﴾ کښې ددې کافرانو هغه عملونه مراد دی چې هسې خو نيک کارونه دی لکه د مسکينانو سره مدد کول ، د ګوانډی مرسته کول، د هغه حفاظت کول ، سخاوت کول ، صدقه ورکول او خيرات وغيره کول. دا عملونه اګر چې فی نفسه نيک او ښه عملونه دی خو په آخرت کښې ددې فائده د ايمان راوړلو سره مشروط ده. د کفارو داسې عملونه به دوئ ته به آخرت کښې هيڅ فائده نه ورکوی . البته په دنيا کښې ورته ددې اجر او بدله ورکولې شی چې هغه دنياوی مزې چرچې دی .

﴿وَآمَنُوا بِمَا نُزِّلَ عَلَىٰ مُحَمَّدٍ﴾ اګر چې په رومبئ جمله کښې د ايمان او نيک عمل بيان راغلې دې چې په کښې د رسول کريم ﷺ پيغمبری او په نبی کريم ﷺ باندې نازله شوې وحی هم شامله ده. خو په دې بله جمله کښې دا ډاګيز بيان دا واضح کوی چې د ايمان اصل بنياد په دې دې چې د خاتم النبيين ټول تعليمات د زړه له کومې قبول کړې شی .

﴿وَأَصْلَحَ بَالَهُمْ﴾ د بال لفظ کله د شان او حال معنی ورکوی او کله د زړه. دلته ترې دواړه معنی مراد اخستې شی . د زړه معنی اخستلو په صورت کښې به يئ مطلب دا شی چې الله ﷻ د هغوئ حال يعنی ددنيا او آخرت حالات درست کړل او د دويمې معنې اخستلو په صورت کښې

(١) د پوره آيت ترجمه داده او ډير داسې کلی وو چې په طاقت کښې ستا د کلی نه زيات وو اودهغې اوسيدونکو ته د کور نه يې کوره کړې اومونږ هغوئ په عذاب سره هلاك کړل او د هغوئ هيڅوك مددګار نه وو.

به ئې دا مطلب شي چې الله ﷻ دهغوئ زړونه درست کړل ، حاصل دادې چې ټول کارونه یئ درست کړل ولې چې د کارونو درست کول ، د زړه سمول یو بل سره لازم ملزوم دی.

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَإِذَا لَقِيتُمُ | الَّذِينَ | كَفَرُوا | فَضَرْبَ |

پس هرکله چې مخامخ شئ تاسو په جنګ کښې | دهغه کسانو سره | چې کفر ئې کړې دې | نو بل څه نه | بس وهل دی

کله چې تاسو کافرانو ته د مقابلې دپاره مخامخ شئ ............... نو په څټونو ئې اووهئ

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| الرِّقَابِ | حَتَّىٰ | إِذَا | أَثْخَنتُمُوهُمْ | فَشُدُّوا | الْوَثَاقَ |

دڅټونو | تر دې پورې | کله چې | ښه اووژنئ تاسو هغوئ | نو سخت محکم کړئ | تړل [قیدیان]

تردې چې ښه ئې قتل کړئ | نو [باقی] ښه مضبوط ئې قید کړئ ..........

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَإِمَّا مَنًّا | بَعْدُ | وَإِمَّا | فِدَاءً | حَتَّىٰ | تَضَعَ الْحَرْبُ | أَوْزَارَهَا |

پس بیا یا احسان اوکړئ | روستو | او یا | فدیه واخلئ | تردې پورې | چې کیږدي جنګ | وسلې خپلې

نو بیا یا خوورسره احسان اوکړئ | یاترې نه عوض واخلئ | تردې چې جنګ [کونکی] خپله وسله کوزه کړي

## آسان ترجمه قرآن

او کله چه د هغې خلقو سره ستاسو مقابله وي، کومو خلقو چه کفر اختیار کړې دې نو څټونه ئې وهئ، تر دې پورې چه کله تاسو دهغوي طاقت بالکل ختم کړئ، نو مضبوط کړئ رانیول د هغوي بیا که احسان کولو سره ئې پریږدئ، او که فدیه اخستلو سره تر دې پورې چه جنګ خپله وسله اوغورزوي، او ختم شي.

## خلاصه تفسیر

په دې ایتونو کښې دایماندارو مصلح کیدل او دکافرانو مفسد کیدل بیان شوی دی په دې مناسبت سره د کفر او کافر انو دفساد رفع کولو دپاره په دې ایت کښې د جهاد داحکاموذکر دې ﴿فَإِذَا لَقِيتُمُ الَّذِينَ كَفَرُوا﴾ [پس هرکله چه ستاسو دکفارو سره مقابله راشي ﴿فَضَرْبَ الرِّقَابِ﴾ نو د هغوی څټونه وهئ ﴿حَتَّىٰ إِذَا أَثْخَنتُمُوهُمْ﴾ تردې چه هرکله تاسو دهغوی ښه خونریزی وکړئ] چه حدئ دادې چه دکفار د شوکت او قوت مات شي او په جنګ بندولو سره مسلمانانو ته دضرر رسیدو یا دکفارو رغلبې ویره پاتې نه شي ﴿فَشُدُّوا الْوَثَاقَ﴾ [نو] دغه وخت کفارو لره قید کړئ [ښه مضبوط ئې وتړئ ﴿فَإِمَّا مَنًّا بَعْدُ وَإِمَّا فِدَاءً﴾ بیا ددې نه پس] تاسو ته د دوو خبرو ختیاردې یاخوئ بې عوضه پریښودل یا معاوضه اخستل او پریښودل] او دادقید او قتل حکم ﴿حَتَّىٰ تَضَعَ الْحَرْبُ أَوْزَارَهَا﴾ تر هغه وخته پورې دی [هرکله چه جنګ کوونکی] دښمنان [خپله وسله کښیږدي] مراد دادې چه یا خو اسلام قبول کړی یا دمسلمانانو د ذمی اوسیدل قبول کړی نو بیانه قتل جائز دې نه قیدول.

## معارف او مسائل

ددې آیت مبارک نه دوه خبرې ثابتې شوې. یوه دا چې کله د جنګ په ذریعه د کافرانو رعب او طاقت ختم شی نو دې نه پس دی هغوئ اونه وژلې شی بلکه قید دې کړې شی. بیا ددې جنګی قیدیانو باره کښې مسلمانانو ته دوه خبرې واضح کړې شوې. یوه دا چې په هغوئ دې احسان اوکړې شی او بې د څه عوض اخستلو نه دې پریخودې شی. بله دا چې دهغوئ نه عوض

واخستې شي او هغوئ دې آزاد کړې شي. د فديې دا صورت هم کيدېشي چې کوم مسلمانان د کافرانو په قيد کښې وی هغوئ دې ددوئ په بدله کښې راخلاص کړې شي. دا حکم په ظاهره د سورة انفال د حکم نه خلاف دې ځکه چې هلته په جنګ بدر کښې په عوض اخستو باندې د قيديانو پريخودلو باندې الله ﷻ زورنه فرمائيلې وه او رسول کريم ﷺ په دغه موقعه فرمائيلى وو چې ددې په وجه د الله ﷻ عذاب نزدې راغلې وو. که چرې دغه عذاب راغلې وې نو د عمر بن خطاب رضي الله عنه او سعد بن معاذ نه سوا به ترې هيڅوك نه وو خلاص شوی. ځکه چې هغوئ د عوض اخستلو په بدل کښې د قيديانو د پريخودو رائې سره اختلاف ښکاره کړې وو. ددې پوره وضاحت په معارف القرآن سورة الانفال کښې ليکلې شوې دې.

خلاصه داده چې د انفال آيت مبارك په عوض اخستلو باندې د قيديانو خلاصولو بنديز اوکړو نو بې عوضه پريخودل بهٔ ئې خامخا منع وی. او د سورة محمد دې آيت مبارك دا دواړه جائز کړې دی. ددې وجې نه اکثر صحابه کرام او فقهاء امامانو دا فرمائيلى دی چې د سورت محمد دې آيت سره د سورة انفال آيت مبارك منسوخ شو. د تفسير مظهرى په حواله عبدالله بن عمر رضي الله عنه او حسن رحمه الله او عطاء رحمه الله او د اکثرو صحابه کرامو اود جمهورو فقهاء کرامو نه هم دا قول نقل دې او د فقهاء امامانو نه ثوری رحمه الله، امام شافعی رحمه الله، امام احمد رحمه الله او اسحاق رحمه الله نه هم دا مذهب نقل دې. او ابن عباس رضي الله عنه فرمائی چې غزوه بدر په موقع مسلمانان کم وو نو په دې وجه د من او فداء دواړو نه منع راغلې وه. او بيا چې کله د مسلمانانو شمير او تعداد زيات شو نو د من او فداء دواړو اجازت ورکړې شو. تفسير مظهرى کښې قاضی ثناء الله پانی پتی رحمه الله ددې په نقل کولو سره فرمائيلى دی چې دا قول صحيح او غوره ځکه دې چې رسول کريم ﷺ پخپله په دې عمل کړې وو. او د نبی کريم ﷺ نه پس پرې خلفاء راشدينو هم عمل کړې دې. دا آيت مبارك د سورة انفال د آيت دپاره ناسخ دې. ددې وجه داده چې د سورة انفال آيت مبارك د بدر د غزا په موقع نازل شوې وو چې دا د هجرت دويم کال وو. او رسول کريم ﷺ په شپږمه هجرئی کښې کوم قيديان چې د حديبيې په غزا کښې بې عوض آزاد کړی وو هغه د سورة محمد ددې آيت مطابق دی[1].

صحيح مسلم کښې د انس رضي الله عنه په روايت کښې دی چې دمکې اتيا کسان ناخاپه د جبل تنعيم نه راکوز شو چې د رسول کريم ﷺ په بې خبرئی کښې ئې دهغوئ د شهيد کولو اراده کړې وه رسول کريم ﷺ دغه کسان ژوند گرفتار کړل او بيا بې د عوض نه آزاد کړې شول. دې باره کښې د سورة فتح دا آيت مبارك نازل شو چې:

﴿وَهُوَ الَّذِي كَفَّ أَيْدِيَهُمْ عَنكُمْ وَأَيْدِيَكُمْ عَنْهُم بِبَطْنِ مَكَّةَ مِن بَعْدِ أَنْ أَظْفَرَكُمْ عَلَيْهِمْ﴾[2]

د امام اعظم رحمه الله مشهور مذهب د يو روايت مطابق ددې چې جنګی قيديان په عوض يا همداسې پريخودل دواړه جائز نه دی. په دې وجه احنافو د سورة محمد دا آيت مبارك د امام ابوحنيفه رحمه الله په نزد منسوخ او د سورة انفال ناسخ گرځولې دې. خو تفسير مظهرى دا واضح کړې دی چې دسورة محمد آيت مبارك روستو او د سورة انفال آيت مبارك مخکښې نازل

[1]) تفسير المظهري تحت هذه الآية [ج:٨ص:٤٢٢]

[2]) صحيح مسلم كتاب الجهاد، باب قول الله تعالى وهو الذى كف ايديهم عنكم ..... الآية [ج:٢ص:١١٦]

شوې دي. بنا په دې دا د سورة محمد آيت د سورة انفال آيت مبارك دپاره ناسخ شو. د امام اعظم رحمه الله غوره مذهب هم د جمهورو صحابه كرامو او د فقهاء كرامو مطابق دا نقل كړې شوې دې چې آزادول يې په دې شرط جائز دي چې په دې كښې د مسلمانانو ښيګړه وي. او دائې فرمائيلي دي چې دا زيات صحيح او غوره دې. په احنافو كښې علامه ابن همام رحمه الله په فتح القدير كښې هم دې طرفته ميلان لري. دوئ ليكلي دي چې د قدوري او د هدائې د روايت مطابق د امام اعظم رحمه الله په نزد په فديه اخستو سره قيديان نشي آزادولې. خو دايو روايت دې د امام ابوحنيفه رحمه الله نه د يو بل روايت مطابق كوم چې په سير كبير كښې منقول دې(١) ددې جواز ښائى اودا دغې دواړو روايتونو كښې ډير زيات ښكاره دې(٢) او امام طحاوى رحمه الله په معانى الاثار كښې هم دې لره د امام ابى حنيفه رحمه الله مذهب ګرځولې دې.

خلاصه داده چې دسورة محمد او سورة انفال دواړه آيتونه دجمهورو صحابه كرامو او امامانو په نزد منسوخ نه دى د مسلمانانو د حالاتو او د ضرورت په تابعدارئى كښې د مسلمانانو امام ته اختيار دې چې په دې كښې كوم يو چې مناسب صورت وى هغه اختيار كړى. امام قرطبى رحمه الله د رسول اكرم صلى الله عليه وسلم اود خلفاء راشدينو د عمل نه دا ثابته كړې ده چې كله خو جنګى قيديان وژلې شوى دى او كله غلامان جوړ كړې شوى دى او كله يې فديه اخستې شوې ده او كله بغير د فديې نه آزاد كړې شوى دى. اود فديې صورت داهم دې چې د هغوئ په بدل كښې مسلمانان قيديان آزاد كړې شى. يا په مال آخستو سره آزاد كړې شى. دا ټول صورتونه د رسول كريم صلى الله عليه وسلم اود خلفاء راشدينو د عمل نه ثابت دى. ددې تفصيل دنقل كولو نه پس هغوئ او فرمائيل چې دې باره كښې يو آيت مبارك هم ناسخ يا منسوخ نه دې، او اوس هم امام المسلمين ته اختيار دې كه هغه مناسب ګڼړى نو كافران قيديان دې اووژنى يا دې د مسلمانانو د ښيګړې په غرض غلامان او وينځې جوړې كړې شى يا دې په مالى فديه اخستلو سره آزاد كړې او يا ددې په بدل كښې مسلمانان قيديان آزاد كړى يا يې بې عوضه آزاد كړى. قرطبى رحمه الله ددې تفصيل نقل كولو نه پس داسې فرمائيلي دي چې:

﴿وهذا القول يروي من اهل المدينة والشافعي وابى عبيد وحكاه الطحاوي مذهبا عن ابى حنيفة والمشهور ما قدمناه﴾

يعنى دمدينې د علماء كرامو هم دا قول دې او دامام شافعى رحمه الله او ابو عبيد رحمه الله هم دا قول دې، د امام طحاوى رحمه الله او امام ابى حنيفه رحمه الله هم دا قول نقل كړې دې اګر چې د هغوئ مشهور مذهب ددې خلاف دې. [قرطبى ص/۲۲۸، ج/۱۶].

**دجنګى قيديانو په باره كښې د امام المسلمين خلور اختيارات::** ددې بيان شوى تقرير نه دا واضح شو چې د امت په دې باندې اجماع ده چې امام المسلمين جنګى قيديان وژلې شى يا ئې غلامان جوړولې شى. خو په فديه يا بې فديې آزاد ولو كښې اګر چې څه اختلاف شته خود جمهورو په نزد دا دواړه صورتونه هم جائز دى.

**اسلام كښې د غلامۍ بحث::** دلته يو سوال دا پيدا كيږى چې هر كله په آزادولو دقيديانو كښې د فقهاء كرامو څه اختلاف شته دې مګر په وژلو او غلامانو جوړلو كښې يې هيڅ اختلاف نشته

(١) المبسوط كتاب السير باب الأسير يقتل او يفادى [ج: ١٢ص:٣٤٣]
(٢) تفسير المظهري تفسير سورة الأنفال[ج:٤ص:١١٤]

بلکه په دې باندې د ټول دامت اجماع ده نو بیا یې په قرآن کریم عظیم الشان کښې ددې دواړو صورتونو ذکر ولې نه دې شوې ، صرف د آزادولو دوه صورتونه یې بیان کړې شو.
ددې سوال جواب امام رازی رحمه الله په تفسیر کبیر کښې داسې لیکلې دې چې دا صورتونه قرآن عظیم الشان ځکه ذکر کړل چې دا هر چرته او په هر وخت کښې جائز دی. دغلامانو جوړولو ذکر ځکه اونه کړې شو چې دعربو جنګی قیدیانو لره دغلامانو جوړولو اجازت نشته دې دغه شان د شلانو ګډانو وغیره معذورانو وژل هم جائز نه دی. ددې نه علاوه د وژلو ذکر پورته هم راغلې هم دې .[تفسیر کبیر ص/۵۰۸، ج/۷](۱).
دویمه خبره داده چې تر کومې د وژلو او غلامانو جوړولو تعلق دې ، ددې روا والې ډیر معروف او مشهور دې. هر چاته دا معلومه وو چې دا دواړه صورتونه جائز دی. ددې په عکس د بدر د غزا په موقعه باندې آزاد پریخودل یې منع کړې شوی وو. اوس په دې موقعه باندې چې دآزاد پریخودل مقصود وو ځکه ددې دوؤ صورتونو د من او فداء ذکر اوکړې شو. او کوم صورتونه چې ړومبې نه روا وو نو په دې موقعه باندې دهغې د بیانولو ضرورت نه وو ځکه دا آیتونه په هغې چړ پاتې شو. اوس په دې باندې ترې دانتیجه راؤښکل په هیڅ شان صحیح نه دی چې په دې سره ګنې دوژلو یا غلام جوړولو اجازت منسوخ شوې دې. ورنه که غلام جوړولو حکم منسوخ شوی څه وې نو چرته خو به په قرآن عظیم الشان او حدیث مبارك کښې ددې منع راغلې وه ،او که چرې هم ددې آیت نه منع معلومیدې نو رسول الله ﷺ نه پس هغه صحابه کرام به بې شمیره غزاګانو کښې جنګی قیدیان ولې غلامان جوړول ، حالانکه هغوئ رضی الله عنهم په قرآن و حدیث باندې هر وخت خپل ځانونه قربانول. د حدیثو په روایتونو او تاریخ کښې د غلامانو جوړولو بیان دومره ډیر راغلې دې چې د معنوی تواتر حد ته رسیږی ځکه به ددې نه انکار کول د مکابرې او ځان غټ ګڼړلو نه سوا هیڅ نه وی.
اوس دا اشکال راوړلایږی چې هر کله اسلام د انسانیت د حقونو د ټولو نه لوئې محافظ دې نو د غلامئ اجازت یې ولې ورکړو؟
نوحقیقت کښې دا اشکال په دې وجه راولاړیږی چې داسلام دا جائز کړې شوی غلامې د نورو مذهبونو او قومونو په غلامئ باندې قیاس کړې شوې ده حالانکه اسلام چې غلامانو ته کوم حقونه ورکړی دی او معاشره کښې یې ورته کوم مقام ورکړې دې نو دهغې نه پس تش په نوم غلامې پاتې شی ورنه په حقیقت کښې دا یو قسم رور ولی جوړه شوې ده. که ددې په حقیقت او روح باندې نظر اوکړې شی نو په ډیرو صورتونو کښې جنګی قیدیانو سره ددې نه زیات ښه سلوك نشی کیدې ، مشهور مستشرق موسیو ګستاؤلیبان پخپل کتاب تمدن عرب کښې لیکلی دی چې :
کله چې د غلام لفظ د یورپ دداسې یو کس په وړاندې وئیلې شی چې د دیرشو کالو په دوران کښې د لیکلې شوؤ امریکی روایتونو لوستلو عادت لری ، ددغسې کس په زړه کښې دهغې مسکینانو تصور راځی چې په زنځیرونو کښې تړلې وی او په غاړه کښې یې ګردنئ پرته وی. د ځناورو په شان کوړو وهلې شی ، دومره خوراك هم نشی ورکولې چې ددهٔ د ساه اخستلو

---

(۱) التفسیر الکبیر تحت هذه الآیة [ج:۱۴ص:۸۰]

دپاره کافي شي . او خالص په تورو کوټو[خونو] کښې ساتلې شي . زه په دې باره کښې بحث کول نه غواړم چې دا تصویر تر کومه حده پورې صحیح دې او انګریزانو چې څو کالونو راسې په امریکه کښې چې کړي دي هغه خبرې په دې باندې چسپان کیږي اوکه نه ؟ خو دا خبره یقیني ده چې د اهل اسلام په نزد د غلامانو تصور د نصاراؤ په نزد د تصور نه بالکل مختلف دي [منقول د دائرة معارف القرآن د فرید وجدي ص/۲۷۹، ج/۴ مادهٔ استرقاق].
حقیقت دادې چې ډیر صورتونه داسې دي چې په کښې دقیدیانو د غلام جوړولو نه زیات ښه بل صورت نه وي. یعني که غلام جوړ نه کړي شي نو په عقل کښې دې نه پس درې صورتونه راځي ، اووژلې شي ، آزاد پریخودلې شي یا د ټول عمر دپاره قیدي جوړ کړې شي . سره ددې چې اکثریه ډول دا درې واړه صورتونه د مصلحت نه خلاف وي ، وژل خو ځینې ځکه مناسب نه دي چې قیدي ښکلې صلاحیتونه لري ، په آزاد پریخودو کښې ېې دا خطره وي چې دار کفر ته په ورتلو باندې هغه دمسلمانانو دپاره بله غټه خطره جوړ نشي . پاتې بیا دوه صورتونه کیدیشي ، یو دا چې د ټول عمر قیدي په حیثیت په یو ځان له خوشي ځائي کښې بندیوان اوساتلې شي . یا د غلام په حیثیت ددهٔ دکسبونو کمالونو او صلاحیتونو نه فائده پورته کړې شي . ددهٔ د انساني حقونو پوره ساتنه اوکړې شي . پدې باندې هر څوك پوهیږي چې کوم یو صورت په کښې ښه کیدې شي ، خصوصا په داسې صورت کښې چې د غلامانو باره کښې د اسلام نظریه داوي چې په یو مشهور حدیث کښې رسول الله ﷺ داسې بیان کړیده چې :
**اخوانکم جعلهم الله تحت ایدیکم فمن کان اخوه تحت یدیه فلیطعمه مما یاکل ویلبسه مما یلبس ولایکلفه مایغلبه فان کلفه مایغلبه فلیعنه.[ابوداود، بخاري، مسلم، وغیره]([1]).**
ترجمه :: ستاسو غلامان ستاسو رونړه دي چالره چې الله ﷻ ستاسو د لاس لاندې کړي دي نو د چا څوك رور چې د هغه دلاس لاندې وي نو پکار دي چې په هغه څه اوخوروي څه چې پخپله خوري او هغه ورته واغوندوي چې څه پخپله اغوندي ، او ورته دداسې کار تکلیف نه ورکوي چې دهغه دوَس نه بهروي اوکه دداسې څه کارتکلیف ورکوي نوپخپله دې هم ورسره مدد کوي.
دمعاشرتي او تمدني حقونو په اعتبار سره اسلام چې غلامانو ته کومه مرتبه ورکړې ده هغه تقریبا د آزادو خلقو مرتبه ده . د نورو قومونو په خلاف اسلام غلامانو ته نه یوازې دنکاح کولو اجازت ورکړې دې بلکه د ﴿وَأَنكِحُوا الْأَيَامَىٰ مِنكُمْ﴾([2]) آیت په ذریعه مالکانو ته ددې تاکید کړې شوې دې ، تر دې چې هغه آزادو یعنې اصیلو ښځو سره هم نکاح کولې شي . په مال غنیمت کښې ددهٔ حصه د آزاد مجاهد برابره ده او دښمن ته د امان ورکولو په باره کښې دده خبره هغه شان معتبره ده ځنګه چې دیو آزاد بنده دښمن ته د امان ورکولو په باره کښې معتبره ده . غلامانو سره په قرآن و حدیث کښې د ښه سلوك کولو دومره حکمونه راغلي دي چې ددې د جمع کولو نه به یو مستقل کتاب جوړ شي . تردې چې د حضرت علي ﷺ ارشاد دې چې درسول الله ﷺ په ژبه مبارکه باندې د ځنګدن په وخت کښې دا الفاظ مبارك جاري وو چې : **الصلوة الصلوة، اتقوا الله فیما ملکت ایمانکم**»

[1] ) صحیح البخاري کتاب الأدب ،باب ما ینهی من السباب واللعن [ج:۲ص:۸۹۳] و صحیح مسلم کتاب الإیمان ، باب صحبة الممالیك [ج:۲ص:۵۲]
[2] ) ترجمه:- او تاسو کښې چې د چا نکاح نه وي تاسو دهغه نکاح اوکړئ.

دمونځ پابندي کوئي ، دمونځ پابندي کوئي ، دخپلو لاسونو لاندې غلامانو باره کښې دالله ﷻ نه اوويرېږئي . [ابو داود باب في حق المملوك] ([1]).

غلامانو دپاره د تعليم او تربيت کوم موقعې چې اسلام برابرې کړي دي . دهغې اندازه دې خبرې نه لګيدې شي چې د عبد الملك بن مروان په زمانه کښې د اسلامي سلطنت تقريبا په ټولو صوبو کښې د علم او فضل ټول اعلی ځايونو غلامانه سره وو ، څنګه چې د تاريخ په ډېرو کتابونو کښې دا واقعه راغلې ده . بيا ددې تش په نوم غلامۍ ختمولو دومره فضيلتونه په قرآن عظيم الشان او احاديثو مبارکو کښې راغلي دي چې بلـه هيڅ نيکي ورسره نشي برابريدې . په مختلفو فقهي حکمونو کښې د غلامانو د آزادولو بهانې لټولې شوي دي . د روژې ، د قتل ، دظهار ، د قسم په ټولو کفارو کښې اول د مريئ د آزادولو کفاره راغلې ده . تر دې پورې چې حديث پاك کښې راغلي دي چې چا خپل غلام يو څپېړه اووهلو نو د هغې کفاره د هغه آزادول دي . [صحيح مسلم باب صحبة المماليك] ([2]) .چنانچه صحابه کرامو په کوم کثرت سره چې غلامان آزادول د هغه اندازه ددې خبرې نه کيږي چې صاحب د النجم الوهاج د ځينو صحابه کرامو د مريونو او وينځو آزادولو شمېر داسې بيان کړې دي چې :

صديقۀ کائنات عائشه صديقه رضي الله عنها ::::::: ۶۹　　حضرت عباس رضي الله عنه ۷۰

حکيم بن حزام رضي الله عنه ::::::: ۱۰۰　　او عبد الله بن عمر رضي الله عنه ۱۰۰۰۰

ذو النورين عثمان غني رضي الله عنه ::::::: ۲۰

حضرت ذوالکلاع حميدی ۸۰۰۰۰ صرف په يو ورځ کښې

عبدالرحمن بن عوف :::::: ۳۰۰۰۰

[فتح العلام شرح بلوغ المرام از نواب صديق حسن خان صاحب ص/۲۳۲ ج/۲ کتاب العتق].

دې نه معلومېږي چې صرف اووۀ صحابه کرامو يو کم څلوېښت زره ، دوه سوه او يو کم شپېته غلامان آزاد کړل . دې نه دا خبره په ډاګه کيږي چې د نورو په زرګونو صحابه کرامو د آزاد کړو غلامانو شمير به ددې نه څومره زيات وي ؟

غرض دا چې اسلام دغلامۍ په نظام کښې کوم ټول اړخيز اصلاحات کړي دي که دا هر څوك د انصاف په نظر سره اوګوري نو هغه به خامخا په دې نتيجه رسيږي چې دې لره د نورو قومونو د غلامۍ په حکمونو باندې قياس کول غلط دي او ددې اصلاحاتو نه پس د جنګي قيديانو د غلامانو جوړولو اجازت په دوئ باندې يو عظيم احسان جوړ شوي دي .

دلته داهم ياد لرل پکار دي چې جنګي قيديان غلامان جوړول دمباح او جائز ترحده پورې دي ، يعني که حکومت يئ مناسب او خير اوګنړي نو غلامان يئ جوړولې شي . داسې کول مستحب يا واجب فعل نه دی ، بلکه د قرآن کريم او حديث د مجموعي ارشاداتو نه آزادول زيات غوره معلومېږي . او دا اجازت هم تر هغه وخت پورې دې چې تر څو چې ددې خلاف دښمن سره څه معاهده اونشي . که چرې داسې څه لوظ تر مينځه وي چې نه به هغوئ زمونږ قيديان غلامان کوي او نه به مونږ د هغوئ قيديان غلامان جوړ وۇ . نو بيا به ددغې معاهدې پابندي کول

---

[1] ) سنن ابوداود، كتاب الأدب ، باب في حق المملوك [ج:۲ص:۷۰۱ ]

[2] ) صحيح مسلم كتاب الإيمان ، باب صحبة المماليك [ج:۲ص:۵۲]

لازمي وی ، نو زمونږ په زمانه کښې ددنيا ډيرو ملکونو دغسې معاهدې کړې دی اود يو بل قيديان غلامان نه جوړوی. لهذا چې کوم اسلامی ممالك په دې معاهده کښې شريك دی هغوئ دپاره غلامان جوړول هغه وخت پورې جائز نه دی تر څو چې دا معاهده قائم وی.

ذٰلِكَ ۛ وَلَوْ يَشَآءُ اللّٰهُ لَانْتَصَرَ مِنْهُمْ وَلٰكِنْ

دادې کار ستاسو | او که غوښتلې الله | خامخا به ئې بدل اغستې وۀ | ددوئ نه | وليکن

دا حکم هم دغسې دې | اوکه د الله ﷻ خوښه وې | نو ددوئ نه بۀ ئې [پخپله] بدله اخستې وه | خو

لِّيَبْلُوَا۟ بَعْضَكُمْ بِبَعْضٍ ۗ وَالَّذِيْنَ قُتِلُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ

دپاره ددې چې وآزمائی | ځينی ستاسو لره | په ځينو سره | او هغه کسان | چې اووژلې شی په لار دالله کښی

دا حکم ئې درکړو | چې د يو بل په ذريعه ستاسو امتحان اوکړی | اوکوم کسان چې د الله تعالى په

فَلَنْ يُّضِلَّ اَعْمَالَهُمْ ۝۴ سَيَهْدِيْهِمْ وَيُصْلِحُ

پس هر گز به ضائع نۀ کړی الله | عملونه دهغوئ | اولار ښائي هغوئ ته | او صحيح کوی به |

لاره کښې شهيدان شی | نو الله د هغوئ عملونه به هيڅکله ضائع نکړی | الله به هغو ته هدايت اوکړی

بَالَهُمْ ۝۵ وَيُدْخِلُهُمُ الْجَنَّةَ عَرَّفَهَا لَهُمْ ۝۶

حال د هغوئ | او داخلوی به هغوئ | جنت ته | چې خبر ورکړې دې الله ددغه جنت نه | هغوئ ته |

او دهغوئ حالت به درست کړی | او هغوئ به جنت ته داخل کړی | او ورته به ښه ئې په ګوته کړی

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا اِنْ تَنْصُرُوا اللّٰهَ يَنْصُرْكُمْ

اے هغه کسانو | چې ايمان مو راوړې دې | که تاسو امداد کوئ دالله | هغه به امداد کوی ستاسو |

اے مومنانو ! که چرې تاسو دالله ﷻ [ددين] مدد اوکړئ | نو هغه به ستاسو مدد اوکړی

وَيُثَبِّتْ اَقْدَامَكُمْ ۝۷ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا فَتَعْسًا لَّهُمْ

او مضبوطوی به | خپې ستاسو | او هغه کسان | چې کفر ئې کړې دې | پس هلاکت دې دهغوئ

او ستاسو قدمونه به مضبوط کړی | او څوک چې کافران دی | نو هغوئ دپاره بربادی ده

وَاَضَلَّ اَعْمَالَهُمْ ۝۸ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ كَرِهُوْا مَاۤ اَنْزَلَ اللّٰهُ

او ضائع کړل الله | عملونه دهغوئ | دا ځکه چې هغوئ | خوښ نۀ کړو | هغه څيز چې نازل کړې دې الله

او الله ﷻ د هغوئ عملونه برباد کړل | دا په دې وجه چې څه الله ﷻ نازل کړی دی دوی هغه بد ګڼړی |

فَاَحْبَطَ اَعْمَالَهُمْ ۝۹ اَفَلَمْ يَسِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ فَيَنْظُرُوْا

نو ضائع کړل الله | عملونه دهغوئ | آيا نۀ وو ګرزيدلی دوئ | په زمکه کښی | چې ليدلې وې دوئ

نو الله ﷻ دهغوئ عملونه ضائع کړل | آيا دا خلق د زمکې په مخ ګرځيدلی نه دی | چې دا ئې کتلی وې

| كَيْفَ كَانَ | عَاقِبَةُ | الَّذِيْنَ | مِنْ قَبْلِهِمْ ۖ | دَمَّرَ اللّٰهُ |
|---|---|---|---|---|
| چې څرنګې وو | انجام | دهغه خلقو | چې مخکښې ددوئ نه وو | هلاکت راوستو الله |
| چې ددوئ نه دپخوانو خلقو انجام څه شو ؟ | | | | الله ﷻ هغوئ هلاک کړل |
| عَلَيْهِمْ | وَلِلْكٰفِرِيْنَ | اَمْثَالُهَا ۞ | ذٰلِكَ بِاَنَّ اللّٰهَ | مَوْلَى |
| په هغوئ باندې | او کافرانو لره دي | انجام په مثال ددې | دا په سبب ددې چې الله | مددګار دې |
| اودې کافرانو سره هم داشان معامله کيدونکې ده | | | دا خکه چې الله ﷻ دمومنانو | |
| الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | وَاَنَّ الْكٰفِرِيْنَ | لَا مَوْلٰى | لَهُمْ ۞ |
| دهغه کسانو | چې ايمان ئې راوړې دې | او بيشکه کافران چې دي | نشته مددګار | دهغوئ |
| ملګرې دې | | اودکافرانو هيڅوک ملګرې نشته | | |

## آسان ترجمه قرآن

تاسو ته دا حکم دې، او که الله تعالیٰ غوښتلې نو په خپله به ئې ددوی نه انتقام اخستلې وې، ليکن (تاسو ته دا حکم ځکه درکړې شو) دې دپاره چه ستاسو ديو بل په ذريعې سره امتحان واخلي او کوم خلق چه د الله تعالیٰ په لاره کښې اووژلې شي الله تعالیٰ به چرې هم د هغوی عملونه ضائع نه کړي هغوی به خامخا منزل ته اورسوی، او د هغوی حالت به ښه کړي. او هغوی لره به جنت ته داخل کړي، چه هغوی سره ئې دهغې ښه پيژندګلو کړې ده اے ايمان والو، که تاسو د الله تعالیٰ (د دين) مدد کوئ، نو هغه به ستاسو مدد اوکړي، او ستاسو قدمونه به مضبوط کړي، او کومو خلقو چه کفر اختيار کړې دې، دهغوی دپاره تباهي ده، او الله تعالیٰ دهغوی عملونه ضائع کړې دی دا ددې وجې نه، چه دوی هغه خبره ناخوښه کړې ده، کومه چه الله تعالیٰ نازل کړې وه، نو الله تعالیٰ دهغوی عملونه ضائع کړل آيا پس دا خلق په زمکه کښې نه ګرځي، چه اوګوري، چه دهغې خلقو انجام څرنګه شو، کوم خلق چه ددوی نه مخکښې تلد شوې دی؟ الله تعالیٰ په هغوی باندې تباهي راوستله، او دکافرانو دپاره هم دغه شان انجام مقدر دې. دا ددې وجې نه چه الله تعالیٰ دهغې خلقو مددګار دې، کومو چه ايمان راوړې دې، او دکافرانو دپاره هيڅوک مددګار نشته.

## خلاصه تفسير

﴿ذٰلِكَ ۛ﴾ [داحکم] دجهاد کوم چه ذکر شو [په ځاې کړئ او] کوم چه په خنوصورتونو کښې دکفارو نه دانتقام اخستودپاره دجهاد طريقه مقررکړه دا دخاص حکمت په وجه سره ده ورنه ﴿وَلَوْ يَشَآءُ اللّٰهُ لَانْتَصَرَ مِنْهُمْ﴾ [که الله تعالیٰ غوښتلې نو دهغوی نه به ئې] په خپله داسماني او زميني عذابونو په ذريعه [انتقام اخستې وو] لکه دتيرو امتونو نه چه ئې دغسې بدل اخستې دې په چاې کانړې وورول په چا د هوا طوفان راغې څوک ئې غرق کړل که داسې کيدې نو ستاسو جهاد کولو ته به ضرورت نه وو ﴿وَلٰكِنْ ﴾ [ليکن] تاسو ته ئې دجهاد کولو حکم ځکه درکړو ﴿لِّيَبْلُوَا بَعْضَكُمْ بِبَعْضٍ ۗ﴾ [چه ستاسو ديوبل په ذريعه امتحان وکړي] دمسلمانانو امتحان داسې چه څوک داالله تعالیٰ په حکم خپل ځان له ترجيح ورکوی دکفارو اومتحان داسې چه دقتال او جهاد په تکليف باند خبردارشي چه څوک به حق لره قبلوی [او] په جهاد کښې لکه څنګه چه دکفارو

په قاتل کیدو کښې کامیابی ده دغه شان مقتول کیدل هم ناکامی نه ده ځکه چه ﴿وَالَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ﴾ [کوم خلق دالله تعالی په لاره] یعنی جهاد [کښې مړه شی ﴿فَلَن يُضِلَّ أَعْمَالَهُمْ﴾ الله تعالی به دهغوی عملونو لره] په کومو کښې چه دادجهاد عمل هم داخل دې [هرګز ضائع نه کړی] لکه چه په ظاهره ګنړلې شی چه هرکله دوی په کافرانو غالب نه شول په خپله قتل شول نو ګویا ددوی عمل بې کاره لاړو مګر واقعه داسې نه ده ځکه چه د دوی په دې عمل باند بلکه نتیجه کومه چه د ظاهری کامیابۍ نه په ډیرو درجو زیاته ده دوی ته حاصله شوه هغه داچه ﴿سَيَهْدِيهِمْ﴾ [الله تعالی به هغوی لره] منزل [مقصودته] دکوم بیان چه وړاندراځی [ورسوی ﴿وَيُصْلِحُ بَالَهُمْ﴾ اود هغوی حالت به] په قبر او حشر او پل صراط او ټولو موقعو داخرت کښې [درست کړی] چرته به څه خرابی او ضرر هغوی ته ونه رسیږی [او] دې منزل مقصود ته درسیدو بیان دادې چه ﴿وَيُدْخِلُهُمُ الْجَنَّةَ عَرَّفَهَا لَهُمْ﴾ [هغوی لره به جنت ته داخل کړی کوم چه به دوی ته معلوم کړی] چه یو جنتی به بغیر دتلاش او لټون نه خپل خپل مقرره مکان بې تکلیفه بیا مومی ددې نه ثابته شوه چه په جهاد کښې ظاهری ناکامی یعنی په خپله قتلیدل هم لویه کامیابی ده وړاند د جهاد ددنیوی فائدو او فضیلتونو ذکر کوی دهغې ترغیب دې چه ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِن تَنصُرُوا اللَّهَ يَنصُرْكُمْ﴾ [اے ایماندارو که تاسو دالله تعالی] ددین [مدد وکړئ نو هغه به ستاسو مدد وکړی] چه نتیجه ئ په دنیاکښې هم په دښمنانو غالب راتلل دی خواه ابتداء یا څه زمانه پس داکارپه انجام کښې او دځنو مؤمنانو مقتول کیدل یا په یو جنګ کښې په وقتی طور مغلوب کیدل ددې منافی نه ده [او] دغه شان ددښمنانو په مقابله کښې ﴿وَيُثَبِّتْ أَقْدَامَكُمْ﴾ [ستاسو قدمونه به مضبوط کړی] دغه شان مطلب دادې چه خواه د ابتداء نه یا دوقتی پسپایۍ نه پس په اخرت کښې به ثابت قدم کړی په کفارو به مو غالب کړی لکه چه باربار ددې مشاهده په دنیاکښې شوې ده داخو د مسلمانانو حال بیان کړې شو ﴿وَالَّذِينَ كَفَرُوا فَتَعْسًا لَّهُمْ﴾ [او کوم خلق چه کافران دی دهغوی دپاره] په دنیاکښې کله چه دمؤمنانوسره مقابله کوی [تباهی] او مغلوبیت [دې او] په اخرت کښې [به ﴿وَأَضَلَّ أَعْمَالَهُمْ﴾ د دوی عملونو لره الله تعالی نشت کړی] لکه چه دسورة په شروع کښې بیان وشو غرض کافران په دواړه جهانه په تاوان کښې شول او ﴿ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ كَرِهُوا مَا أَنزَلَ اللَّهُ﴾ [دا] دکفارو تاوان او دعملونو بربادی [په دې سبب سره وشوه چه هغوی دالله تعالی نازلو کړو احکامولره ناخوښه کړل] عقیدتا هم او عملاهم ﴿فَأَحْبَطَ أَعْمَالَهُمْ﴾ [پس الله تعالی د هغوی عملونو لره] داول نه [ضائع کړل] ځکه چه دکفر کوم چه داعلی درجې بغاوت دې دا اثردې او داخلق کوم چه دعذاب الهی نه نه ویریږی ﴿أَفَلَمْ يَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ﴾ [ایا داخلق په ملك کښې ګرځیدلی نه دی ﴿فَيَنظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ﴾ او هغوی نه دی لیدلی چه کوم خلق د هغوی نه وړاند تیرشوی دی د هغوی انجام څنګه شو ﴿دَمَّرَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ وَلِلْكَافِرِينَ أَمْثَالُهَا﴾ چه الله تعالی په هغوی څنګه تباهی راغورزولې ده] کومه چه ددغو وړانو کنډراتو او کورونو نه ظاهره ده نو هغوی لره هم ددې نه بې فکره کیدل نه دی پکار چه دخپل کفر نه واپس نه شی نو [ددې کافرانو دپاره هم ددې قسمه معاملات کیدونکی دی] اوس وړاند د فریقینو دحال اجمالی ذکر دې چه ﴿ذَٰلِكَ بِأَنَّ اللَّهَ مَوْلَى الَّذِينَ آمَنُوا﴾ [دا] دمسلمانانو کامیابی او دکافرانو تباهی [په دې سبب سره ده چه الله تعالی دمسلمانانو کار ساز دې ﴿وَأَنَّ

الْكٰفِرِيْنَ لَا مَوْلٰى لَهُمْ﴾ او د کافرانو هیڅوك] داسې [کارساز نشته] چه دالله تعالی مقابله کښې د
دوی کار جوړکړي په دې وجه دوی په دواړه جهانه کښې ناکامه وی او مسلمانانو ته که چرته
په دنیاکښې وقتی ناکامی هم راپیښه شي نو انجام کار کامیابی وی او داخرت کامیابی خو
ظاهره ده په دې وجه مسلمانان همیشه کامیاب او کافران ناکامه وی.

## معارف او مسائل

**دجهاد دشرعي کیدو یو حکمت:** ﴿وَلَوْ يَشَآءُ اللّٰهُ لَانْتَصَرَ مِنْهُمْ﴾ په دې آیت کښې الله ﷻ ارشاد فرمائي چې
په دې امت کښې د جهاد اوجنګ شرعي کیدل په حقیقت کښې یو رحمت دې ، ولې چې دا د
آسماني عذابونو په ځائې ولاړ دې ، ولې چې دالله ﷻ نه د باغی توب سزا الله ﷻ پخوانی
امتونو ته د آسماني او زمکې عذابونو په صورت کښې ورکړې وه . په امت محمدی ﷺ کښې
هم داسې کیدیشو مګر د رحمت للعالمین په برکت سره دا امت دداسې عذابونو نه اوساتلې
شو او د هغې په ځائې ئې جهاد شرعي اوګرځولو چې په دې کښې د عام عذاب په نسبت
ډیرې آسانئ او ښیګړې دی ، اول خو دا چې په عام عذاب کښې ټول قومونه نارینه او زنانه او
ماشومان ټول تباه کیږي او په جهاد کښې ښځې او بچې خو یقیناً په امن وی ، سرې هم صرف
هغه کسان ددې ګوذار لاندې راځي چې دالله ﷻ ددین د حفاظت کوؤنکو په مقابله کښې جنګ
کولو ته راوړاندې شی بیا په هغې کښې هم ټول نه وژلې کیږي . ډیرو ته په کښې د اسلام او
ددین قبلولو توفیق نصیب شي . داشان د شرعي جهاد یو فائده دا هم ده چې ددې په وجه
دواړه ډلې د امتحان لاندې راځي چې څوك په دوئ کښې دالله ﷻ په حکم باندې خپل مال او
ځان قربانولو ته تیاریږي اوڅوك په سرکشئ او کفر باندې مضبوط پاتې کیږي یا د اسلام
روښانه دلیلونه چې اوګوري نو اسلام قبول کړي .

﴿وَالَّذِيْنَ قُتِلُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَلَنْ يُّضِلَّ اَعْمَالَهُمْ﴾ دسورت په اول کښې دا بیان وو چې څوك په کفر او
شرك باندې جمع کیږي او نور خلق هم داسلام نه منع کوي ، الله ﷻ دهغوئ نیك عملونه هم
تباه کړل او ضائع ئې کړل . که هغه صدقې او خیراتونه وي او که نور د خیر کارونه وی د کفر
اوشرك په وجه سره د الله ﷻ په نزد په آخرت کښې نیك عمل هیڅ ثواب نه لري ، ددې مقابله
کښې دې ایت مبارك کښې ئې اوفرمائیل چې څوك خلق دالله ﷻ په لار کښې شهید کیږي
دهغوئ عملونه نه بربادیږي یعنی د دوئ ګناهونه په دغې نیك عملونو باندې هیڅ اثر نه لري
بلکه ډیر ځل دغه نیك عملونه ئې د ګناهونو کفارې جوړې شي .

﴿سَيَهْدِيْهِمْ وَيُصْلِحُ بَالَهُمْ﴾ دې کښې دالله ﷻ په لار کښې د شهید دپاره د دوؤ نعمتونو بیان
داسې دې چې الله ﷻ به دوئ ته هدایت کوي ، بل دا چې الله ﷻ به ئې ټول حالتونه درست
کړي د حالاتو نه مراد ددنیا او آخرت دواړو جهانونو حالات دی . په دنیا کښې مجاهد که په
جهاد کښې شهید نه شي بیا به هم دشهیدګئ د ثواب حقدار وی او په آخرت کښې به د قبر د
عذاب ، د محشر دپریشانئ نه خلاصې بیا مومي اوکه د څه خلقو حقونه د دوئ په ذمه پاتې
شوی وی نو الله ﷻ به د حقدار د راضي کولو انتظام ددۀ دپاره اوکړي او دوئ به ترې خلاص
کړي . [حدیث د ابی نعیم بزار او بیهقي په حواله د تفسیر مظهری] [1].

---

[1] ) تفسير المظهري تحت هذه الآية [ج:۸ص:۴۲۴] وشعب الإيمان للبيهقي رقم الحديث:[۵۳۱۶]

او د پیغمبرئ نه پس دهدایت کولو مراد دوئ لره منزل مقصود یعنی جنت ته رسول دی لکه دجنتیانو باره کښې قرآن کریم پخپله فرمائی چې دوئ جنت ته داخل شی نو دوئ به وائی چې ﴿الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي هَدَانَا لِهَٰذَا﴾ (۱).

﴿وَيُدْخِلُهُمُ الْجَنَّةَ عَرَّفَهَا لَهُمْ﴾ دا دریم انعام دې چې دوئ به یوازې جنت ته رسول نه وی بلکه دجنت د خپل خپل مقام نه به خبر کړې شی تر دې چې د حورو اومحلونو نه به داسې شان سره ښه خبر کړې شی لکه چې دوئ ګویا مخکښې دې کښې اوسیدلی دی او پخپله ئې هر څیز لیدلې اوپیژندلې دې ، که داسې نه وې نو جنت یو نوې او ډیر لوئې ځائې دې په هغې کښې خپل ځایونه لټول دهغې په هر څیز باندې ځان پوهول ډیر ګران کار وو په دې صورت کښې به پریشانئ اواجنبیت او عدم اطمینان د زړه به وو.

ابوهریره رضي الله عنه نه روایت دې چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل:قسم مې دې په هغه ذات وی چې دین حق سره ئې زه راؤلیږلم چې څنګه تاسو په دنیا کښې د خپلو بیبیانو او کورونو نه واقف او وسره بلد یئ ددې نه به هم زیات دجنت خپل مقام او دهغه ځائې بیبیانو سره واقف یئ . [ابن جریر روایت کړو او طبرانی اویعلی هم روایت کړو ، په حواله مظهری](۲). او په بعضو روایتونو کښې راغلی دی چې یوه فرښته به هر جنتی دپاره اوټاکلې شی چې په جنت کښې به خپل مقام ورته ښائی او خپلو بیبیانو سره به ئې پیژندګلی کوی(۳) ، والله اعلم .

﴿وَلِلْكَافِرِينَ أَمْثَالُهَا﴾ دلته په ﴿الْكَافِرِينَ﴾ کښې الف لام عهدی دې یعنی دې نه مراد دمکې مکرمې کافران دی مطلب ئې د کافرانو ویرول داسې دی چې د تیرو شوؤ امتونو پشان په تاسو باندې هم عذاب راتلې شی ، دېنه بې فکره کیدل پکار نه دی.

﴿وَأَنَّ الْكَافِرِينَ لَا مَوْلَىٰ لَهُمْ﴾ د ﴿مَوْلَىٰ﴾ لفظ په ډیرو معنو کښې استعمالیږې ، یوه معنی ئې کارساز ده کومه چې دلته مراد ده . او بله معنی ئې مالك ده لکه دقرآن عظیم الشان په یوبل ځائې کښې راغلی چې ﴿ثُمَّ رُدُّوا إِلَى اللَّهِ مَوْلَاهُمُ الْحَقِّ﴾ (۴) یعنی کافران به خپل حق مالك ته بیرته وروستې شی. ولې چې اصل مالك دهر چا یعنی مؤمن اوکافر او د هر څه یوازې الله ﷻ دې.

| إِنَّ اللَّهَ | يُدْخِلُ | الَّذِينَ | آمَنُوا | وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ |
|---|---|---|---|---|
| بیشکه الله | به داخل کړی | هغه کسان | چې ایمان ئې راوړو | او عملونه ئې اوکړل نیك |
| بیشکه چې الله ﷻ به د ایمان اود نیک عمل خاوندان داسې باغونو ته ورداخل کړی چې | | | | |
| جَنَّاتٍ | تَجْرِي | مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ | وَالَّذِينَ | كَفَرُوا |
| هغه جنتونوته | چې بهیږی به | لاندې دهغې نه نهرونه | او هغه کسان | چې کفر ئې اوکړو |
| دهغې لاندې به ولې بهیږی | او کومو کسانو چې کفر اختیار کړې دې | | | |

۱) ترجمه:- دالله تعالی لاکهه لاکهه احسان دې چې هغه مونږ دې مقام ته رارسولو.
۲) تفسیر المظهري [ج:۸ص:۴۲۵] والبعث والنشور للبیهقي رقم الحدیث:[۵۹۳]
۳) تفسیر القرطبي [ ج:۷ص:۳۱۰] و الدرالمنثور [ج:۹ ص:۱۶۷]
۴) ترجمه:-او دا خلق به الله تعالی طرفته واپس کولې شی کوم چې ددوئ مالك حقیقی دې.

يَتَمَتَّعُونَ وَيَأْكُلُونَ كَمَا تَأْكُلُ الْأَنْعَامُ وَالنَّارُ

فائیده حاصلوی هغوئ | او خوراك كوی | لكه څنګه چې | خوراك كوی څناور | او وور |

هغوی دنیاوی فائدې اخلي| اوداسې خوراک [څښاک] کوی [څنګه چې څناور خوری [څښي] او [ددوزخ]

مَثْوًى لَّهُمْ ۝ وَكَأَيِّنْ مِّنْ قَرْيَةٍ هِيَ أَشَدُّ

خانې داوسیدو دې | دپاره دهغوئ | او څومره ډیر | دکلونه دي | چې هغه | زیات سخت وو|

اور د دوی داستوګنې خائې دي| او داسې ډیر کلي وو چې ستاسو ددغې کلي نه په زور کښې

قُوَّةً مِّنْ قَرْيَتِكَ الَّتِي أَخْرَجَتْكَ أَهْلَكْنَاهُمْ

په لحاظ دقوت سره | دکلی ستا نه | هغه کلي | چې ایستلې ئې ته | هلاك کړل مونږه هغوئ

زیات طاقتور وو دکوم نه چې خلقو ته راویستلې یې| .......مونږ هغوئ هلاک کړل

فَلَا نَاصِرَ لَهُمْ ۝ أَفَمَنْ كَانَ عَلَىٰ بَيِّنَةٍ

پس نه وو هیڅ مددګار | دپاره دهغوئ | آیا پس هغه څوك | چې وی | په واضحه دلیل [هدایت] باندې

نو هیڅوک مددګار ئې پیدا نشو | .........نوایا څوک چې دخپل رب د طرفه په ښکاره

مِّنْ رَّبِّهِ كَمَنْ زُيِّنَ لَهُ سُوءُ عَمَلِهِ

دطرفه درب خپل نه | پشان دهغه چا دې | چې ښائیسته ښکاره کړې شوی دې | هغه لره | بدعمل دهغه

دلیل ولاړ وی | هغوئ دداسې خلقو سره برابر کیدې شی چې خپل بد عملونه ورته ښائسته ښکاری

وَاتَّبَعُوا أَهْوَاءَهُمْ ۝ مَثَلُ الْجَنَّةِ الَّتِي وُعِدَ الْمُتَّقُونَ

اوپیروی ئې اوکړه | دخواهشاتو خپلو | مثال دجنت هغه | چې وعده ئې شوی ده دمتقیانو سره دادې

اوپه خپلو نفسانی خواهشاتو پسې روان وی | دکوم جنت چې پرهیزګارو سره وعده شوی ده

فِيهَا أَنْهَارٌ مِّنْ مَّاءٍ غَيْرِ آسِنٍ وَأَنْهَارٌ مِّنْ لَّبَنٍ

چې په هغې کښې په | نهرونه وی | داوبو نه | چې نه به وی بد بویه | او نهرونه به وی | دپیو نه |

هغه داسې جنت دې چې د [تازه] اوبو نهرونه په کښې بهیږي | هیڅرې نه سخا کیږی |او دداسې پیو ولې چې

لَمْ يَتَغَيَّرْ طَعْمُهُ وَأَنْهَارٌ مِّنْ خَمْرٍ لَّذَّةٍ

چې نه به وی بدل شوې | خوند دهغې | او نهرونه به وی | دشرابو نه | چې مزیدار به وی |

خوند ئې یو پوټې نه بدلیږی | ........................اود څکونکو دپاره دخوندناکو شرابو ولې به وی

لِّلشَّارِبِينَ ۚ وَأَنْهَارٌ مِّنْ عَسَلٍ مُّصَفًّى ۖ وَلَهُمْ فِيهَا

دپاره دڅکونکو | اونهرونه به وی | دشاتو نه | صفا سوتره | اووی به هغوئ لره | په هغې کښې

.......................اوددداسې شهدو نهرونه چې بالکل صفا به وی | اوهلته به ورته هر قسم میوې

مِن كُلِّ الثَّمَرَاتِ وَمَغْفِرَةٌ مِّن رَّبِّهِمْ ۖ كَمَنْ هُوَ

دهر قسم میوږ نه | او ښښنه به وی | د طرفه درب دهغوئ نه | پشان دهغه چا دې | چې هغه

ورکولې شی| اود خپل رب طرفنه به ورته ښښنه وی | نو آیا داسې خلق د هغه چا په شان کیدیشي

| خَالِدٌ | فِي النَّارِ | وَسُقُوا | مَآءً حَمِيمًا | فَقَطَّعَ | أَمْعَآءَهُمْ ۝ |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| به همیشه وی | اوور کښې | او څکولې کیږي به په هغوئ | اوبهٔ گرمې | پس پریکوي به | کولمې دهغوئ |

چې تل به په اور کښې پراته وي او ويشيدلې اوبه به پرې څکلې شي اچې کولمې به ورله ټوټې ټکړې [ټکړې] او غورزوي

## آسان ترجمه قرآن

یقین اوکړئ، چه کومو خلقو ایمان راوړې دې، اونیک عملونه ئې کړي دی، الله تعالیٰ به هغوی لره په داسې باغونو کښې داخل کړی، چه دهغې لاندې به نهرونه بهیږی، او کومو خلقو چه کفر اختیار کړې دې، هغوی (دلته خو) مزې کوی، او داسې خوری لکه څرنگه چه څارپایان خوراک کوی، او جهنم د هغوی آخری ځائې د اوسیدو دې. او څومره کلی دی، چه په طاقت کښې ستا دهغې کلی نه زیات مضبوط وو، هغه چه (اے پیغمبره) ته ئې راویستلې ئې هغې ټولو لره مونږ هلاک کړې دی، او دهغوی هیڅوک مددگار نه وو اوښایه: آیا هغه خلق چه د خپل پروردگار د طرف نه په یوې روښانه لار باندې وی، آیا دوی دهغې خلقو پشان کیدې شی چه هغوی ته د هغوی ناکاره عمل خائسته کړې شوې وی، او هغوی خپلو نفسانی خواهشاتو پسې روان وی متقیانو خلقو سره چه د جنت کومه وعده کړې شوې ده، د هغې (جنت) دا حال دې، چه په هغې کښې د اوبو داسې نهرونه دی چه خرابیدونکې نه دی، او داسې د پیو نهرونه دی، چه دهغې خوند به نه بدلیږی، او داسې د شرابو نهرونه دی، چه څکونکو ته به خوند ورکونکې وی، او داسې د شاتو نهرونه دی، چه صفا کړې شوې به وی، او دغې جنتیانو دپاره به هلته کښې هرقسمه میوې وی، او د هغوی د پروردکار د طرف نه مغفرت، آیا دا خلق د هغې چا پشان کیدې شی، چه همیشه دپاره په دوزخ کښې وی، او په هغوئ باندې گرمې اوبه څکولې شی، نو ټکړې ټکړې به کړی کولمې د هغوئ.

## خلاصه تفسیر

﴿إِنَّ اللَّهَ يُدْخِلُ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ﴾ [بیشکه الله تعالی به هغه خلقو لره کومو چه ایمان راوړو اونیك کارونه ئې وکړل] ﴿جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ﴾ د جنت [داسې باغونوته داخل کړی چه لاندبه ترې نه نهرونه بهیږی] ﴿وَالَّذِينَ كَفَرُوا يَتَمَتَّعُونَ﴾ اوکوم خلق چه کافران دی هغوی] په دنیاکښې [عیش کوی ﴿وَيَأْكُلُونَ كَمَا تَأْكُلُ الْأَنْعَامُ﴾ او داسې] داخرت نه بې فکره [خوری] څنبی [لکه څنگه چه څاروی خوری] چه هغوی داسوچ نه کوی چه داخوراك څښاك مونږ له ولې راکولې شی او زمونږ په ذمه ددې څه حق واجب دی؟ ﴿وَالنَّارُ مَثْوًى لَهُمْ ۝﴾ [او جهنم د هغو خلقو د اوسیدو ځایٔ دې] اوبره چه دکومو کفارو په دنیاکښې دعیش کولو ذکر وشو په دې سره دې ستامخالفین نه دوکه کیږی اونه تالره د دوی په دې غفلت څه غم او خفگان پکاردې کوم چه ددوی دمخالفت سبب جوړشوې دې تردې چه دوی تالره تنگ کړو په مکه کښې ئې هم پرې نه ښودې څکه چه ﴿وَكَأَيِّنْ مِنْ قَرْيَةٍ هِيَ أَشَدُّ قُوَّةً مِنْ قَرْيَتِكَ الَّتِي أَخْرَجَتْكَ﴾ [ډیر کلی داسې ووکوم چه په قوت [دجسم او قوت دمال اومرتبې] کښې ستاددې کلی نه زیات وو دکوم اوسیدونکو چه ته دکوره بې کوره کړې چه مونږ هغو لره] ﴿أَهْلَكْنَاهُمْ فَلَا نَاصِرَ لَهُمْ ۝﴾ [هلاك کړل پس د په عذاب سره هغوی هیڅوك مددگارنه شو] نو دابې چاره څه دی دوی لره مغروره کیدل نه دی پکار څکه چه

هر کله الله تعالی وغواړي دوی دوره کولې شي اوته د دوی په دې څو ورځو عیش باند مه غموڼ کیږه څکه چه الله تعالی به په خپل مقرر وخت دوی ته هم سزا ورکړي ﴿أَفَمَن كَانَ عَلَىٰ بَيِّنَةٍ مِّن رَّبِّهِ﴾[نو کوم خلق چه د خپل پروردگار په واضحه [په ليل سره ثابته] لاره باندې وی ﴿كَمَن زُيِّنَ لَهُ سُوءُ عَمَلِهِ﴾ ایا هغه د هغو خلقو په شان کیدې شی دکومو بدعملونه چه دوی ته ښه معلومیږي ﴿وَاتَّبَعُوا أَهْوَاءَهُم﴾اوکوم چه په خپلو نفساني خواهشو نو باند چلیږي] یعنی هر کله چه ددې دوارو فرقو په عملونو کښې فرق دې نو د دوی په مال او انجام کښې هم فرق ضروري دې د حق خاوندان دثواب او دباطل خاوندان دعذاب مستحق دی چه بیان ئې دادې ﴿مَّثَلُ الْجَنَّةِ الَّتِي وُعِدَ الْمُتَّقُونَ﴾[دکوم جنت چه دمتقیانو سره وعده کولې شی ﴿فِيهَا أَنْهَارٌ مِّن مَّاءٍ غَيْرِ آسِنٍ﴾د هغې حال دادې چه په دې کښې ډیرنهرونه خو دداسې اوبو دی په کومو کښې چه به ذره تغیر نه وی] نه په بوئ کښې نه په رنګ کښې نه په خوند کښې ﴿وَأَنْهَارٌ مِّن لَّبَنٍ لَّمْ يَتَغَيَّرْ طَعْمُهُ﴾ [او ډیرنهرونه دپیو دی چه خوند به ئې ذره بدل نه وی ﴿وَأَنْهَارٌ مِّنْ خَمْرٍ لَّذَّةٍ لِّلشَّارِبِينَ﴾ او ډیرنهرونه دی دشرابو چه څښونکوته به ډیر مزیدارمعلومیږي ﴿وَأَنْهَارٌ مِّنْ عَسَلٍ مُّصَفًّى﴾ او ډیرنهرونه دی دشاتو کوم چه بالکل] دخیری میری نه پاك صفا وی ﴿وَلَهُمْ فِيهَا مِن كُلِّ الثَّمَرَاتِ﴾ او دهغوی دپاره به هلته د هرقسم میوی وی او] په دې کښې د دا خلیدو نه وړاند ﴿وَمَغْفِرَةٌ مِّن رَّبِّهِمْ﴾[د هغوی درب دطرف نه] دګناهونو [بخښنه وی ﴿كَمَنْ هُوَ خَالِدٌ فِي النَّارِ﴾ ایا داسې خلق د هغو په شان کیدې شی کوم چه به همیشه په دوزخ کښې وسیږي ﴿وَسُقُوا مَاءً حَمِيمًا﴾ او جوشیدلې اوبه به دوی ته څښلو لره ورکولې شی ﴿فَقَطَّعَ أَمْعَاءَهُمْ﴾ نو هغه به د دوی کولمې ټکړې ټکړې کړي]

## معارف او مسائل

هر کله چې ددنیا اوبه څه وخت کښې رنګ ، خوند او بوئی بدلوی ، دغه شان پئ هم خرابیږي ، شراب ددنیا هم خوند خرابوی ، صرف د بعضو فائدو په وجه څکلې شی څنګه چې تماکو سره د تریخوالی نه خلق استعمالوی . او عادت ئې بیا جوړ شی ، دجنت د اوبو پئیو اوشرابو باره کښې دا اوخودلې شو چې داټول ددې بدلونونو او خراب خوند او نورو آفتونو نه خالی دی. او د سورت صافات په آیت کښې دابیان شوی دی چې جنت د نورو ضررونو او خرابو نه پاك او خالی دې . ﴿لَا فِيهَا غَوْلٌ وَلَا هُمْ عَنْهَا يُنزَفُونَ﴾(۱) داسې ددنیا په شاتو کښې موم او خیرې وغیره ګډوی . دجنت په نهر کښې د شاتو پاك اوصفا کیدل اوخودلې شو ، صحیح خبره داده چې دجنت دولو څلورو واړ قسمونه د اوبو پئیو ،شرابو او شاتو په حقیقی معنو کښې استعمال شوی دی . بې وجې دمجازی معنو اخستو ضرورت ئې نشته دا خبره واضحه ده چې دجنت څیزونه ددنیا په څیزونو باندې نشي قیاس کولې ددغې ځائې د هر څیز خوند اوشان به بل شان وی چې په دنیا کښې ئې مثال او نظیر نشته دې.

| وَمِنْهُم | مَّن | يَسْتَمِعُ | إِلَيْكَ | حَتَّىٰ | إِذَا | خَرَجُوا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| او څینې ددوئ نه | هغه څوك دی | چې غوږ ږدی | تاته | تر دې پورې | کله چې | اوزی دوئ |

اوبعضې داسې خلق دی | چې تاته ئې غوږ نیولې دې | خو چې ستا د مجلس نه

(۱ ترجمه:- نه به په دې کښې سر خوګې وی او نه به عقل کښې فتور راځی.

مِنْ عِنْدِكَ قَالُوْا لِلَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ مَاذَا قَالَ اٰنِفًا

دمجلس ستانه | نو وائي | هغه کسانو ته | چې ورکړې شوې دې علم | څه اووئيل ده | اوس |

بهر شي | ..............نو دپوهانو نه تپوسونه کوي | چې دا اوس ئې څه اووئيل

اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ طَبَعَ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ وَاتَّبَعُوْٓا

دا هغه خلق دي | چې مهر وهلې دې الله | په زړونو ددوئ باندې | او پيروي ئې کړې ده |

دا هغه کسان دي چې الله ﷻ ورته په زړونو باندې مهرونه لګولي دي | او په خپلو

اَهْوَآءَهُمْ ۝ وَالَّذِيْنَ اهْتَدَوْا زَادَهُمْ

دخواهشاتو خپلو | او هغه خلق | چې نيغه لاره ئې موندلې ده | زيات کړل هغوئ لره الله |

خواهشاتو پسې روان دي | اوڅوک چې په نيغه لار روان دي | نو الله ﷻ هغوئ ته

هُدًى وَّاٰتٰىهُمْ تَقْوٰىهُمْ ۝ فَهَلْ يَنْظُرُوْنَ

په لحاظ دهدايت سره | اوور ئې کړه هغوئ ته | تقوی دحصې دهغوئ | نو پس انتظار نه کوي دوئ |

نور زيات هدايت کوي | او د پرهيزګارئ [نور نورا] توفيق ورکوي | .............. نو دا خلق بس د

اِلَّا السَّاعَةَ اَنْ تَاْتِيَهُمْ بَغْتَةً ۚ فَقَدْ جَآءَ اَشْرَاطُهَا ۚ

مګر قيامت ته | چې رابه شي دوئ ته | ناساپه | نو بيشکه راغلې | علامې دهغې |

قيامت په انتظار کښې دي | چې ناګهانه پرې راشي | نو دهغې نښې خو ښکاره شوې دي

فَاَنّٰى لَهُمْ اِذَا جَآءَتْهُمْ ذِكْرٰىهُمْ ۝

پس چرته به وي موقع | دپاره ددوئ | کله چې | راشي قيامت دوئ ته | دنصيحت قبلولو ددوئ |

او کله چې ورته هغه په خپله مخې ته راشي | نوبيا به د نصيحت قبلول څه فائده ورکړي |

## آسان ترجمه قرآن

او (اے پيغمبره) په دوی کښې بعضې خلق داسې دي، چه ستا خبرې په غوږونو سره خو اوری، ليکن کله چه ستا د خوا نه اوځي نو کومو خلقو ته چه علم ورکړې شوې دې، هغوی نه تپوسونه کوی چه: نبی کريم (صلی الله عليه وسلم) اوس څه اووئيل؟ دا هغه خلق دی، چه ددوی په زړونو باندې الله تعالی مهر لګولې دې، او خپلو نفسانی خواهشاتو پسې روان دی. او کومو خلقو چه د هدايت لاره اختيار کړې ده، الله تعالی هغوی ته په هدايت کښې نوره هم ترقی ورکړې ده، او هغوی ته ئې دهغوی د حصې تقوی ورکړې ده. اوس آيا دا کافران د قيامت انتظار کوی، چه هغه ناساپه په دوی باندې راشی؟ (که داسې ده) نو د قيامت علامې خو راغلې دی، بيا چه کله قيامت راشی، نو هغه وخت کښې به ددوی دپاره د نصيحت منلو موقع چرته وی؟

## خلاصه تفسير

[او] اے نبی کريم ﷺ ﴿وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّسْتَمِعُ اِلَيْكَ ۚ﴾ [ځنې خلق داسې دی] مراد منافقان دی [چه هغوی] ستا دتعليم او تبليغ په وخت کښې په ظاهره خو [ستاطرف ته غوږ ږدی] ليکن په زړه

سره بالکل متوجه نه وی ﴿حَتّٰۤى اِذَا خَرَجُوْا مِنْ عِنْدِكَ﴾ [تردې چه هرکله هغه خلق ستا دخوانه] پاڅې دمجلس نه [بهر لاړشي ﴿قَالُوْا لِلَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ﴾ نو نورو اهل علمو] اصحابو [ته وائي چه حضرت اوس] هرکله چه مونږ په مجلس کښې وو ﴿مَاذَا قَالَ اٰنِفًا﴾ [څه خبره فرمائیلې وه] د هغوی داوینا هم یوقسم له مسخره وه چه داسې ښودله چه مونږه ستاخبره د اوریدو قابله نه ګنړو داهم یوه شعبه ده دنفاق ﴿اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ طَبَعَ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ﴾ [داهغه خلق دی چه الله تعالی د هغوی په زړونو مهرلګولې دې] د هدایت نه لرې شوی دی ﴿وَاتَّبَعُوْٓا اَهْوَآءَهُمْ﴾ [او په خپلو نفساني خواهشونو چلیږی او] د هغوی دقوم نه ﴿وَالَّذِيْنَ اهْتَدَوْا﴾ [کوم خلق چه په هدایت باند دی] یعنی مسلمانان شوی دی ﴿زَادَهُمْ هُدًى﴾ [الله تعالی هغوی ته] داحکامو داوریدو په وخت کښې [نور زیات هدایت کوی] چه هغوی په دې نوو احکامو ایمان راوړی یعنی د دوی دایمانیاتو شمیر زیات شو یا داچه ددوی ایمان لره نور زیات قوی کوی او پخوی کوم چه دنیک عمل خاصه ده چه په دې سره په ایمان کښې پختګی پیداکیږی ﴿وَاٰتٰىهُمْ تَقْوٰىهُمْ﴾ [او هغوی ته دتقوی توفیق ورکوی] وړاندې ددې منافقانو دپاره وعید دې چه دوی چه کوم د قرآن الهی احکام اوری او متاثره کیږی نه [پس] معلومیږی چه داخلق ﴿فَهَلْ يَنْظُرُوْنَ اِلَّا السَّاعَةَ اَنْ تَاْتِيَهُمْ بَغْتَةً﴾ [بس د قیامت منتظر دی چه هغه په دوی ناڅاپه راشي] داپه طور د زجراو توبیخ ئې وفرمائیل چه اوس هم نه متاثره کیږی نو ایاپه قیامت کښې به نصیحت او هدایت حاصل کړی؟ [پس] یادساتئ چه قیامت هم نزدې دې چنانچه ﴿فَقَدْ جَآءَ اَشْرَاطُهَا﴾ [د هغې] ډیرې [نښې خو راغلې دی] چنانچه د حدیث په روسره په خپله د خاتم النبین ﷺ بعثت او نبوت هم دقیامت دنښو نه دې[1] او سپوږمۍ څیرول دنبی کریم ﷺ د معجزې کیدو نه علاوه د قیامت دنښونه هم ده دا ټولې نښې دقرآن دنزول په زمانه کښې موجودې شوې وې وړاندې ددې بیان دې چه په ایمان راوړو اوهدایت موندو کښې دقیامت انتظارکول محض جهالت دې ځکه چه هغه وخت به دپوهیدو او عمل کولو نه وی فرمائی ﴿فَاَنّٰى لَهُمْ اِذَا جَآءَتْهُمْ ذِكْرٰىهُمْ﴾ [نو هرکله چه قیامت د هغوی مخې ته راشی ودریږی هغه وخت به هغوی ته پوهیدل کله حاصل شی] یعنی مفید به نه وی

## معارف او مسائل

﴿اَشْرَاطُ﴾ دعلاماتو او نخښو معنی ورکوی. د قیامت نخښې پخپله دخاتم النبیین ﷺ دپیغمبر کیدو نه شروع کیږی. ځکه چې ختم نبوت هم د قیامت د نزدې والی نخښه ده. دغسې په ﴿اِقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ﴾[2] سره هم د قیامت نزدې کیدو ته اشاره ده چې درسول الله ﷺ دسپوږمۍ نیمیدو معجزه هم د قیامت د نزدې کیدو یوه نخښه ده. دا ړومبۍ نخښې دی چې پخپله دقرآن عظیم الشان د نازلیدو په وخت ښکار شوې وې، نورې نزدې نخښې په صحیح احادیثو کښې خودلې شوې دی. په هغې کښې یو حدیث مبارك د انس ﷺ نه نقل شوې دې. هغوئ فرمائی چې ما رسول کریم ﷺ نه واوریدل چې د قیامت نخښې دادی:

---

[1]) صحيح البخاري كتاب الرقاق ،باب قول النبي صلي الله عليه وسلم [ج:۲ص:۹۶۳] بعثت انا والساعة كهاتين (ج:۲ص:۹۶۳)

[2]) ترجمه:- قیامت نزدې راورسیدو.

① علم به پورته شي ② جهل به زيات شي ③ زنا به زياته شي ④ شراب خوري به زياته شي ⑤ نارينه به كم شي ⑥ زنانه به زياتې شي ، تر دې حده پورې چې د پنځوسو زنانو ضرورتونو پوره كولو والا به يو سړې وي[١] . او يو روايت كښې دي چې علم به كم شي ، او جهل به خور شي . [بخاري ، مسلم][٢] . او ابى هريره رضی الله عنه نه روايت دې چې رسول كريم ﷺ اوفرمائيل چې :

① كله چې د غنيمت مال خپل ذاتي مال اوګنړلې شي . ② او امانت د غنيمت مال اوګنړلې شي [چې د حلال ګنړلو سره به خوړلې شي] ③ زكوة به تاوان اوګنړلې شي . يعنى د ښۀ زړۀ نه به ئې نه وركوى ④ دينى علم به د دنيا حاصلولو په غرض حاصلولې شي ⑤ سړې به د ښځې تابعدار او د مور پلار به نافرمان وى . ⑥ دوست به ځان ته نزدې كولې شي او مور پلار به لرې كولې شي ⑦ په مساجدو كښې به شور زيات شي ⑧ د قوم سردار به په ټولو كښې فاسق اوبد كردار سړې شي ⑨ د قوم مشر به په ټولو كښې رذيل بنده جوړ شي . ⑩ د ورانكارى بنده عزت به صرف په دې وجه كولې شي چې د هغه د شر نه به ويريږي ⑪ د سندر غاړو سندرې وئيل به عامې شي ⑫ ټنګ ټكور او باجې سازونه به خوارۀ شي ⑬ شراب څكل به خوارۀ شي ⑭ او د دې امت آخرى خلق به په خپل بزرګانو لعنت كوى . نو د غه وخت تاسو ديو سور طوفان ، زلزلې په زمكه كښې د ډوبيدو ، د صورتونو د مسخ كيدو ، آسمان نه د كاڼړو وريدو او د قيامت د نور نخښنو انتظار كوئى چې يو به بلې پسې داسې رازى لكه چې د ملغلرو لړئى اوشليږى او ملغلرې ترې يو يو راپريوځى[٣] .

| فَاعْلَمْ | اَنَّهٗ | لَآ اِلٰهَ | اِلَّا اللّٰهُ | وَاسْتَغْفِرْ | لِذَنْۢبِكَ |
|---|---|---|---|---|---|
| پس پوهه شه | شان دادې | چې نشته لائق د عبادت | مګر الله دې | او بښنه غواړه | د پاره د ګناه خپلې |
| نو (اې نبى ﷺ) ته يقين ساته | چې د الله ﷻ نه سوا بل معبود نشته | او د خپلو خطاګانو په | | | |

| وَلِلْمُؤْمِنِيْنَ | وَالْمُؤْمِنٰتِ | وَاللّٰهُ يَعْلَمُ | مُتَقَلَّبَكُمْ |
|---|---|---|---|
| او د پاره د مومنانو سړو | او مومنانو ښځو | او الله ته معلوم دي | ځائې د ګرزيدو ستاسو |
| حقله معافى اوغواړه (او د مومنانو سړو او د مومنانو ښځو د پاره هم) | او الله ﷻ ته ستاسو د تګ راتګ او د استوګنې ځايونه | | |
| وَمَثْوٰىكُمْ ﴿١٩﴾ | | | |
| او ځائې د استوګنې ستاسو | | | |
| تول ښه معلوم دي | | | |

**آسان ترجمه قرآن**

لهٰذا (اے پيغمبره) يقين اوكړه، چه د الله تعالى نه سوا هيڅوك د عبادت لائق نشته. او په خپل قصور باندې هم د بخښنې دعا غواړه او د مسلمانانو سړو او زنانو دپاره هم بخښنه غواړه. او الله تعالى پوهيږى ستاسو د ټولو په نقل او حركت باندې، او ستاسو په ځائې د اوسيدلو باندې.

(١) صحيح البخاري كتاب النكاح ،باب يقل الرجل و يكثر النساء [ج:٢ص:٧٨٧]
(٢) صحيح البخاري كتاب الأشربة (فى الإبتداء) [ج:٢ص:٨٣٦]
(٣) جامع الترمذي ، ابواب الفتن باب ما جاء فى علامة حلول المسخ والخسف(بالإختصار) [ج:٢ ص:٤١]

## خلاصه تفسير

هر کله چه تاد الله تعالى دفرمانبردارو بندګانو او د سرکشانو دوا ړو حال او مال واوريدو ﴿فَاعۡلَمۡ أَنَّهُۥ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا ٱللَّهُ﴾ [نو ته ددې] په کامله طريقه [يقين ساته چه بغير دالله تعالى نه بل څوك قابل د عبادت نشته] په دې کښې ددين ټول اصول او فروع راغلل ځکه چه دعلم نه مراد علم کامل اکمل دې او دعلم کامل دپاره لازمه ده چه په ټولو الهى احکامو پوره عمل وى مطلب دادې چه په ټولو الهى احکامو باند هميشوالې ساته [او] که چرته څه خطا وشى کومه چه ستادعصمت نبوت په بنا په حقيقت کښې ګناه نه ده بلکه صرف غوره والې پريښودل دى مګر ستا دلوئ شان په اعتبار سره صورتا خطاده په دې وجه ﴿وَٱسۡتَغۡفِرۡ لِذَنۢبِكَ﴾ [ته دخپلې] هغې ظاهرى [خطا معافى غواړه] ﴿وَلِلۡمُؤۡمِنِينَ وَٱلۡمُؤۡمِنَٰتِۗ﴾ او ټولو مسلمانانو سړو او ټولو مسلمانانو ښځو دپاره هم] د بخښش دعاغواړه [او] داهم يادساته چه ﴿وَٱللَّهُ يَعۡلَمُ مُتَقَلَّبَكُمۡ وَمَثۡوَىٰكُمۡ﴾ [الله تعالى ستا دګرځيدو او د اوسيدو] يعنى دټولو عملونو او حالاتو [خبرلرى]

## معارف او مسائل

دې آيت مبارك کښې رسول کريم ﷺ ته داسې خطاب دې چې تاسو پوهه شئ چې دالله ﷻ نه سوا بل څوك دعبادت لائق نشته دې. اودا ښکاره خبره ده چې دا علم خو هر مؤمن او مسلمان ته حاصل دې نو رسول کريم ﷺ ته به ولې حاصل نه وى. بيا ددغې علم د حاصلولو دحکم مطلب په دې باندې د مضبوط پاتې کيدو دپاره دې يا ترې مراد ددې په غوستلو څيزونو باندې عمل کول دى. لکه د قرطبى ؒ دنقل مطابق سفيان بن عيينه ؒ نه د علم د فضيلت باره کښې تپوس اوشو نو هغوئ اوفرمائيل چې تا د قرآن عظيم الشان دا آيت مبارك نه دې آوريدلې چې ﴿فَاعۡلَمۡ أَنَّهُۥ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا ٱللَّهُ وَٱسۡتَغۡفِرۡ لِذَنۢبِكَ﴾ چې دې کښې د علم نه پس د عمل کولو حکم ورکړې شوې دې. داشان بل ځائې کښې قرآن عظيم الشان فرمائى چې ﴿وَٱعۡلَمُوٓاْ أَنَّمَا ٱلۡحَيَوٰةُ ٱلدُّنۡيَا لَعِبٞ وَلَهۡوٞ﴾(۱) دغه شان بل ځائې کښې فرمائى چې: ﴿وَٱعۡلَمُوٓاْ أَنَّمَآ أَمۡوَٰلُكُمۡ وَأَوۡلَٰدُكُمۡ فِتۡنَةٞ﴾(۲) دې نه پس بيا فرمائى چې ﴿فَٱحۡذَرُوهُمۡۚ﴾(۳) دې ټولو معاملاتو کښې اول علم بيا ددې په مقتضا باندې د عمل خودنه کړې شوې ده. دلته دې آيت مبارك کښې اګر چې دا علم رسول کريم ﷺ ته د ړومبې نه حاصل وو خو مقصود ترې ددې په مقتضا باندې عمل کول دى ځکه چه ددې نه پس د ﴿وَٱسۡتَغۡفِرۡ﴾ حکم ورکړې شو او درسول کريم ﷺ نه د عصمت نبوت په وجه ددې دخلاف کولو اګر چې احتمال نه وو مګر پيغمبران ؑ اګر چې معصوم وى خو بيا کله کله په اجتهاد کښې ترې غلطى کيږى. او اجتهادى غلطى شرعى قانون کښې څخه ګناه نه ده بلکه دې باندې هم اجر ملاويږى. خو په دې باندې پيغمبران ؑ ضرور خبرداروليې شى. او ددوئ د لوړ مقام اعتبار په وجه د دې څخه په لفظ د ذنب سره تعبير کيږى. لکه څنګه چې په سورة عبس کښې چې په رسول کريم ﷺ باندې عتاب نازل شو هغه هم د دوى د اجتهادى غلطئ يو مثال وو، او ددې تفصيل مخکښې سورة عبس کښې راځى چې هغه اجتهادى غلطى اګر چې ګناه نه وه بلکه

---

(۱) ترجمه:- تاسو ښه پوهه شئ چې دنياوى ژوند صرف لوبې توقې دى.
(۲) ترجمه:-اوتاسو داخبره ياد ساتئ چې ستاسو مال اور ستاسو اولاد ديو امتحان څيزدې.
(۳) ترجمه:- پس تاسو ددې نه هوښيار اوسيږئ.

په هغې باندې هم د اجر ملاویدو وعده وه. خو ددوئ عالی شان دپاره دا خوښ نه کړې شو او د نا خوښۍ اظهار او کړې شو، په دې مذکوره آیت مبارک کښې داشان ذنب مراد اخستې شی.

**فائده**:: ابوبکر صدیق رضي الله عنه نه روایت دې چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې ﴿لا اله الا الله﴾ او استغفار ډیر ډیر وایئ ځکه چې ابلیس وائې چې ما خلق په ګناهونو کښې اخته کولو سره هلاك کړل نو زه هغوئ په ﴿لا اله الا الله﴾ وئیلو سره هلاك کړم. کله چې ما دا اولیدل نو بیا مې په داسې باطلو خیالونو کښې لګیا کړل چې دوئ ئې د نیکئ په خیال کوی لکه عام بدعات شو چې دې نه د توبې کولو توفیق نشی موندلې.

﴿مُتَقَلَّبَكُمْ وَمَثْوٰىكُمْ﴾ د ﴿مُتَقَلَّبَ﴾ لفظی معنی اته کیدل یا لاندې باندې کیدل دی، د ﴿مَثْوٰی﴾ معنی د ایساریدو ځائې ده، ددې په مراد کښې مختلف احتمالونه کیدیشی. ځکه مفسرینو ددې مختلفې معنې بیان کړی دی او حقیقت دادې چې هغه ټول ترې مراد دی ځکه چې په انسان باندې دوه قسمه حالات راځی یو هغه چې په عارضی او وختی ډول باندې په کښې انسان مشغول وی بل هغه چې انسان په کښې په مستقل ډول مشغول وی، داشان په بعضو مکاناتو کښې دانسان پاتې کیدل عارضی وی او په ځینو کښې مستقل وی، په دې بنا په آیت مبارك کښې د پاتې کیدو عارضی ځائې ته متقلب او مستقل ځائې ته مثوی اووئیلې شو، په دې شان ددې آیت مبارك مطلب دا شو چې ټول هرقسم حالات دالله ﷻ په علم کښې دی.

وَيَقُوْلُ الَّذِيْنَ   اٰمَنُوْا   لَوْلَا نُزِّلَتْ

اووائی به هغه کسان | چې ایمان ئې راوړې دې | ولې نه نازلولې کیږی

اومومنان وائی | چې د جهاد په باره کښې یو نوې سورت ولې نازل نشو؟

سُوْرَةٌ   فَاِذَآ   اُنْزِلَتْ   سُوْرَةٌ مُّحْكَمَةٌ   وَّذُكِرَ   فِيْهَا

یو سورت | پس هر کله چې | نازل کړې شو | یو سورت محکم | او ذکر کړې شو | په هغې کښې

......خو کله چې داسې سورت نازل شی | چې په هغې کښې د جهاد ذکر وی | نو

الْقِتَالُ   رَاَيْتَ   الَّذِيْنَ   فِيْ قُلُوْبِهِمْ   مَّرَضٌ   يَّنْظُرُوْنَ   اِلَيْكَ

جنګ | نو اولیدل تا | هغه کسان | چې په زړونو دهغوئ کښې | مرض وی | چې ګوری | تا ته

ته به هغه خلقو ته ګورې | چې دکومو په زړونو کښې چې دنفاق مرض دې | هغوئ ستا طرفته دهغه چا

نَظَرَ الْمَغْشِيِّ   عَلَيْهِ   مِنَ الْمَوْتِ   فَاَوْلٰى لَهُمْ

پشان دکتلو دهغه چا چې بې هوشی راغلی وی | په هغه باندې | دوجې دمرګ نه | پس افسوس دې په حال دهغوئ باندې

په شان ګوری | په چا چې د مرګ بې هوشی راغلی وی | ............نو هغوئ دپاره هلاکت دې

طَاعَةٌ   وَّقَوْلٌ مَّعْرُوْفٌ   فَاِذَا   عَزَمَ الْاَمْرُ

په ژبې ئې دطاعت اقرار دې | او خبری ښې ښې | پس هر کله چې | محکمتیا اوکړه کار [دجنګ]

تابعداری کول پکار دی | او ښه خبره کول پکار دی | خو چې د جهاد فیصله اوشوه نو

فَلَوْ صَدَقُوا اللّٰهَ | لَكَانَ | خَيْرًا | لَّهُمْ ۝۲۱

نو که دوئ رښتینی ثابت شوي وي د الله سره | نوو ز به دا کار | بهتره | د پاره د دوئ |

که دغه وخت هم دوئ الله ﷻ ته رشتیا وئیلي وي | نو دا به د دوی د پاره ډیره ښه وه

فَهَلْ عَسَيْتُمْ | اِنْ تَوَلَّيْتُمْ | اَنْ تُفْسِدُوْا

نو آیا څه بله توقع کیدي شي ستاسو نه | [بې ددې نه] چې مخ واړوو تاسو | نو فساد به کوی |

بیا تاسو نه دا هم توقع ده | که چرې تاسو [د جهاد او ایمان نه] مخ واړوئ | نو د زمکې په مخ فساد

فِي الْاَرْضِ | وَتُقَطِّعُوْٓا | اَرْحَامَكُمْ ۝۲۲ | اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ

په زمکه کښی | او پریکوئ به تاسو | خپلولئ ستاسو | دا هغه خلق دی

خور کړئ | .................. او د خپلولئ تعلقات به ختم کړئ | ..................دغه خو هغه کسان دی چې

لَعَنَهُمُ اللّٰهُ | فَاَصَمَّهُمْ | وَاَعْمٰٓى | اَبْصَارَهُمْ ۝۲۳

چې لعنت اوکړو په دوئ باندې الله | پس کانړه ئې کړل دوئ | او ړندې ئې کړې | سترګې د دوئ |

الله ﷻ پرې لعنتونه ورولی دی | نو دوی ئې کانړه کړی دی | او د دوی سترګې ئې ړندې کړی دی

اَفَلَا يَتَدَبَّرُوْنَ | الْقُرْاٰنَ | اَمْ عَلٰى قُلُوْبٍ | اَقْفَالُهَا ۝۲۴

آیا دا خلق غور نه کوی | په قرآن کښی | یا په زړونو باندې ئې | جرندې د هغې دی |

نو آیا دوئ په قران پاک کښې فکر نه کوی | یا د دوئ په زړونو باندې تالې لګیدلې دی

اِنَّ الَّذِيْنَ | ارْتَدُّوْا | عَلٰٓى اَدْبَارِهِمْ | مِّنْۢ بَعْدِ مَا | تَبَيَّنَ

بیشکه هغه کسان | چې واپس شو | په شاګانو خپلو باندې | روستو د هغې نه | چې ښکاره شو |

بیشکه هغه خلق چې د هدایت د ښکاره کیدو نه پس هم مرتد شوی دی |

لَهُمُ | الْهُدَى ۙ | الشَّيْطٰنُ | سَوَّلَ | لَهُمْ ؕ | وَاَمْلٰى | لَهُمْ ۝۲۵

هغوئ ته | هدایت | شیطان | آسان کړو [دا کار] | هغوئ ته | او د دروغو امید ئې ورکړو | هغوئ ته

شیطان د هغوی په نظر کښې د هغوی [عملونه] ښائسته کړی دی | او دوئ ته ئې اوږده امیدونه ورکړی دی

ذٰلِكَ | بِاَنَّهُمْ | قَالُوْا | لِلَّذِيْنَ | كَرِهُوْا | مَا

دا کار | په سبب د دې چې بیشکه هغوئ | اووئیل | هغه کسانو ته | چې خوښ ئې نۀ وو | هغه دین |

دا په دې وجه چې دوئ هغه خلقو ته کوم چې د الله ﷻ د نازل کړی کتاب نه بیزاره دی

نَزَّلَ اللّٰهُ | سَنُطِيْعُكُمْ | فِيْ بَعْضِ الْاَمْرِ ۚ | وَاللّٰهُ | يَعْلَمُ

چې نازل کړې دې الله | چې مونږه به منو ستاسو | په ځینو معاملاتو کښی | او الله | پوهیږی |

دا اووئیل | ..............................چې مونږ به ستاسو بعضې خبرې او منو | او الله ﷻ د دوئ په پټو

اِسْرَارَهُمْ ۝۲۶ | فَكَيْفَ | اِذَا تَوَفَّتْهُمُ | الْمَلٰٓئِكَةُ | يَضْرِبُوْنَ

په پټو خبرو د دوئ | پس څه حال به وی | کله چې روح اخلی د دوئ نه | فرښتې | نو وهی به هغوئ

خبرو ښه پوهه دې | نو هغه وخت به د دوئ څه حال وی | چې فرښتې به ترې روحونه اخلی

وُجُوهَهُمْ وَأَدْبَارَهُمْ ﴿۲۷﴾ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمُ اتَّبَعُوا مَا

مخونه ددوئ | او شاګاني ددوئ | دا کار په سبب ددې چې دوئ | پیروی اوکړه | دهغې |

اومخونه اوشاګانې به ورله وهی | .............داځکه چې دوئ په هغه لار روان شول چې الله ﷻ

أَسْخَطَ اللَّهَ وَكَرِهُوا رِضْوَانَهُ فَأَحْبَطَ أَعْمَالَهُمْ ﴿۲۸﴾

چې ناراضه کوی الله | او خوښه ئې نه کړه | رضا دهغه | نو ضائع ئې کړل | عملونه ددوئ |

ئې ناراضه کړه || اودهغه د رضا [کارونو] نه بیزاره شو | نو الله ﷻ ددوئ عملونه برباد کړل

أَمْ حَسِبَ الَّذِينَ فِي قُلُوبِهِمْ مَرَضٌ أَنْ لَنْ يُخْرِجَ

آیا ګمان کوی | هغه کسان | چې په زړونو دهغوئ کښې | مرض دنفاق دې | چې هرګز به نه رابرسیره کوی

آیا د چا په زړونو کښې چې مرض پروت وی | هغوئ دا ګمان کوی چې الله ﷻ به هیچرې

اللَّهُ أَضْغَانَهُمْ ﴿۲۹﴾ وَلَوْ نَشَاءُ لَأَرَيْنَاكَهُمْ

الله | دزړونو خرابیانې دهغوئ | او که مونږه اوغواړو | خامخا اوبه ښایو مونږ تاته هغوئ

د هغوئ دښمنئ نه ښکاره کوی | او که چرې مونږ غوښتلي نو مونږ به تاته هغه خلق خودلی وو

فَلَعَرَفْتَهُمْ بِسِيمَاهُمْ ۚ وَلَتَعْرِفَنَّهُمْ فِي لَحْنِ الْقَوْلِ ۚ

نوخامخا اوبه پیژنې ته هغوئ | په نښو دهغوئ سره | اوخامخابه ته اوپیژنې هغوئ | په طرزدخبرو کښې

نوتا به هغوئ دمخونو نه پیژندلی وو | اودخبرو په طرز به ئې هسې هم اوپیژنې

وَاللَّهُ يَعْلَمُ أَعْمَالَكُمْ ﴿۳۰﴾ وَلَنَبْلُوَنَّكُمْ حَتَّىٰ نَعْلَمَ

اوالله پوهیږی | په عملونو ستاسو | او ضرور به مونږ آزمایو تاسو | تر هغې پورې | چې معلوم کړو مونږ

اوالله ﷻ ته ستاسوټول عملونه ښه معلوم دی | او مونږ به ضرور ستاسو امتحان کوو |

الْمُجَاهِدِينَ مِنْكُمْ وَالصَّابِرِينَ وَنَبْلُوَ أَخْبَارَكُمْ ﴿۳۱﴾

جهاد کونکی خلق | ستاسو نه | او صبر کونکی خلق | او چې جاچ واخلو دحالاتو ستاسو

چې مجاهدین او [په میدان کښې] ټینګ اودریدونکی اوپیژنو | اوستاسود حالت اندازه واخلو

## آسان ترجمه قرآن

او کومو خلقو چه ایمان راوړې دې، هغوی وائی چه: څه ښه به وی، که یو (لوې) سورت نازل شی؟ نو چه کله یو واضحه کړې شوې سورت نازل شی، او په هغې کښې د جنګ ذکر وی، نو د کومو خلقو په زړونو کښې چه مرض دې، ته به هغوی لره وینې، چه هغوی به تاته داسې ګوری لکه څرنګه چه نظر کوی هغه څوک، چه په هغه باندې د مرګ بې هوشی راغلې وی.نو ډیره لویه خرابی ده دداسې خلقو دپاره دوی فرمانبرداری ښکاره کوی او ښه ښه خبرې کوی، لیکن کله چه د جهاد حکم مضبوط شی، نو که دغه وخت کښې دوی الله تعالی سره خپله وعده رشتولې کړې وې،نو دا به ددوی په حق کښې بهتره وه. بیا که تاسو (د جهاد نه) مخ واړولو، نو ستاسو نه څه امید ساتلې شی؟ هم دا چه تاسو به په زمکه کښې فساد جوړ کړئ، او خپلې خونی رشته دارئ به پریکړئ. دا هغه خلق دی، چه دوی لره الله تعالی د خپل رحمت نه لرې کړې

دي، نو دوی ئې کاڼره جوړ کړي دي، او ددوی سترګې ئې ړندې کړې دي. آیا دا خلق په قرآن مجید کښې غور نه کوی، یا په زړونو باندې ئې هغه تالې لګیدلې دي، کومې چه په زړونو باندې لګی. حقیقت دادې، چه کوم خلق د حقې خبرې نه شاکالې اړوی، سره ددې نه چه هدایت هغوی ته ښه واضحه شوې دې، شیطان هغوی ته د هغوی عملونه خائسته کړې دی او د لرې لرې امیدونه ئې ورکړې دی. دا ددې وجې نه، چه کوم خلق د الله تعالی نازل کړې شوې خبرې بدې ګڼړی دې (منافقانو) هغوی ته دا وئیلې دي چه: په بعضو معاملاتو کښې به مونږ ستاسو خبره منو، او الله تعالی ددوی په پټو خبرو باندې پوهه دې نو هغه وخت کښې به ددوی څه حال وی، چه کله فرښتې ددوی روح په داسې طریقې سره قبض کوی، چه دوی به په مخونو او په شاکانو باندې وهی، دا ددې وجې نه چه دوی په هغې طریقې باندې روان شو، چه هغې الله تعالی لره ناراضه کړو، او د هغه رضامندی خپله دوی بده ګڼړله، ددې وجې نه الله تعالی ددوی عملونه برباد کړل. د کومو خلقو په زړونو کښې چه (د نفاق) رنځ دې، آیا هغوی دا ګڼړی، چه د هغوی پټې کړې شوې کینې به الله تعالی چرې هم نه ښکاره کوی؟ او (اے پیغمبره) که مونږ اوغواړو، نو تا ته به دا خلق داسې اوښایو، چه ته به خامخا دوی لره اوپیژنې ددوی په علامو باندې، او (اوس هم) تاته به دوی لره په طرز د خبرو ددوی باندې ضرور اوپیژنې. او الله تعالی ستاسو د ټولو په عملونو باندې ښه پوهیږی. او مونږ به ضرور په تاسو باندې آزمائش کوو، دې دپاره چه مونږ معلوم کړو چه په تاسو کښې څوک دی، چه مجاهدین او ثابت قدم پاتې کیدونکې دی، او دې دپاره چه ستاسو د حالاتو اندازه واخلو.

## خلاصه تفسیر

﴿وَيَقُولُ الَّذِينَ آمَنُوا لَوْلَا نُزِّلَتْ سُورَةٌ﴾ [او کوم خلق چه مؤمنان دی هغوی خو همیشه ددې خبرې شوق کوی چه کلام الهی نور نازل شوې چه ایمان مو تازه شی او نوی احکام راشی چه د هغې ثواب هم حاصل کړو او که دتیرو احکامو تاکیدوی نو چه نوره زیاته ثابت قدمی حاصله کړو او په دې شوق کښې [وائی چه څه] نوې [سورة ولې نازل نه شو] که نازل شوې نو خواهش به پوره شی ﴿فَإِذَا أُنْزِلَتْ سُورَةٌ مُحْكَمَةٌ﴾ [پس څه وخت چه صفا صفا] مضمون والا [سورة نازل شی او] اتفاقا ﴿وَذُكِرَ فِيهَا الْقِتَالُ﴾ [په هغې کښې د جهاد هم] صفا صفا [ذکر وی ﴿رَأَيْتَ الَّذِينَ فِي قُلُوبِهِمْ مَرَضٌ﴾ نو د کومو خلقو په زړونو کښې چه] دنفاق [مرض دې ته به هغو خلقو لره وینی ﴿يَنْظُرُونَ إِلَيْكَ نَظَرَ الْمَغْشِيِّ عَلَيْهِ مِنَ الْمَوْتِ﴾ چه هغوی به ستا طرف ته داسې حیرانه نظرونو سره [ګوری لکه په چاچه دمرګ بې هوشی راغلې وی] دداسې کتوسبب ویره او بزدلی ده چه اوس خو دایمان دخپلې دعوې دپوره کولو دپاره به جهاد ته تلل وی او مصیبت جوړشو او هغه کوم چه داسې دالله تعالی دحکم نه خان ناخبره کوی ﴿فَأَوْلَى لَهُمْ﴾ [پس] اصل داده چه ډیره زر د هغوی کم بختی [راتلونکې ده] خواه په دنیاکښې هم په څه وبال کښې ګیر شی ورنه پس دمرګ نه خو ضرورده او اګر چه په فرصت کښې خو دوی ډیرې خبرې داطاعت او خو شامد جوړوی لیکن ﴿طَاعَةٌ وَقَوْلٌ مَعْرُوفٌ﴾ [د هغوی د اطاعت او خبرواترو] حقیقت [معلوم دې] چه اوس د نزول د حکم دجهاد په وخت کښې ددوی حالت تولوته ښکاره شو [بیا] پس دنزول د حکم د جهاد نه ﴿فَإِذَا عَزَمَ الْأَمْرُ﴾ [هرکله چه تول کار] او سامان د جنګ [تیارشی نو] هغه وخت هم ﴿فَلَوْ صَدَقُوا اللَّهَ﴾ [که داخلق] په دعوی کښې دایمان په الله تعالی [دالله تعالی سره ربښتونی

وي] یعني دایمان د دعوې په مقتضایٔ عمل کولې چه په هغې کښې ټول شرعي احکام عموما او حکم د جهاد خصوصا شامل دې او د زړهٔ په صدق سره یٔ جهاد کولې ﴿لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ﴾ [نو د هغوی دپاره به ډیره غوره وه] یعني په ابتداء کښې که منافقان وو نو په اخر کښې دنفاق نه تائب کیدلې بیا به یٔ هم ایمان مقبول وو او انتهالره په دې کښې منحصره نه شي ګنړلې ځکه چه دمرګ تروختنه پورې په صدق دل سره توبه مقبوله ده وړاندې اوس د جهاد تاکیداو ددې نه وروستو پاتې کیدونکو ته خطاب کوی په ترکو جهاد باندې بیان فرمائی چه تاسو خلق چه کوم جهاد لره بدګنړیٔ [پس] په دې کښې یو دنیوی مضرت هم دې چنانچه ﴿فَهَلْ عَسَيْتُمْ إِن تَوَلَّيْتُمْ أَن تُفْسِدُوا فِي الْأَرْضِ﴾ [که تاسو] او دغه شان ټول د جهاد نه [کناره کش شیٔ تو ایاتاسوته دا احتمال هم شته [یعني یکار دې] چه تاسو [یعني ټول بنیادم په دنیاکښې] فساد جوړکړیٔ ﴿وَتُقَطِّعُوا أَرْحَامَكُمْ﴾ او په خپل مینځ کښې خپلولیٔ پریکړیٔ] یعني د جهاد لویه فائده قائمول د عدل او اصلاح او امن دې که داپریښودې شي نو دمفسدینو غلبه به شي او هیڅ انتظام په کوم کښې چه دټولو خلقو دمصلحتونو حفاظت وی پاتې به نه شي او چه داسې انتظام نه وی نو عام فساد او دحقوقو ضائع کیدل بیالازم دی پس په جهاد کښې دنیوی نفعې هم دی ددې نه وروستوکیدل نور هم عجیبه دی وړاند اوس ددغو ذکر شوو منافقانو دقباحت ذکر دې چه ﴿أُولَٰئِكَ الَّذِينَ لَعَنَهُمُ اللَّهُ﴾ [داهغه خلق دی کومو لره چه خدایٔ دخپل رحمت نه لرې کړل] په دې وجه یٔ د هغه په احکامو دعمل کولو توفیق پاتې نه شو [بیا] د رحمت نه په لرې کولو یٔ دا کارمرتب شو چه ﴿فَأَصَمَّهُمْ﴾ [هغوی لره یٔ [په غوږونو دالله تعالی د احکامو اوریدونه] کاڼړهٔ کړل او[د حقې لارې دلیدونه یٔ] ﴿وَأَعْمَىٰ أَبْصَارَهُمْ﴾ [دهغوی] باطني [سترګولره ړندې کړې] اوس وړاندې دوی ته زورنه ده چه سره ددې چه په قرآن کښې دجهاد اونورو احکامو وجوب سره ددلیلونو د حقانیت دقرآن او ددې احکامو د اخروی مصلحتونو او منافعولازما او دنیوی هم کله کله او ددې احکامو په مخالفت وعیدونه مذکوردی بیا چه کوم داخلق دغه طرف ته التفات نه کوی ﴿أَفَلَا يَتَدَبَّرُونَ الْقُرْآنَ﴾ [نو یا داخلق د [قرآن] په اعجاز او مضامینو [کښې غور نه کوی] په دې وجه دوی ته انکشاف نه کیږی ﴿أَمْ عَلَىٰ قُلُوبٍ أَقْفَالُهَا﴾ [یا] غور کوی مګر [په زړونویٔ] غیبي ژرندې لګیدلې دی دامنع الخلو ده یعني په دې دواړو کښې دیوې خبرې کیدل ضروری دی اوکه دواړه جمع وی نو داهم کیدې شي او واقع کښې دلته دواړه خبرې جمع دی اول د دوی دطرف نه یو کار وشو یعني دانکار په وجه په قرآن کښې غورنه کول بیا ددې په وبال کښې ژرنده ولګیده کومې ته چه یې طبع او ختم یعني مهرلګول [هم وئیلي دی او دلیل ددې ترتیب دا ایت دې ذلك بأنهم امنوا ثم كفروا فطبع على قلوبهم او په دې مجموعه باندې فهم لا يفقهون[1] مرتب دې وړاند اوس په قرآن کښې دفکر نه کولووجه بیان فرمائی چه ﴿إِنَّ الَّذِينَ ارْتَدُّوا عَلَىٰ أَدْبَارِهِم مِّن بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمُ الْهُدَى﴾ [کوم خلق] حق ته [شاکری واپس د هغې نه چه نیغه لار هغوی ته] په عقلي دلیلونو سره لکه اعجاز د قرآن او نقلي دلیلونو سره لکه پیشینګویې د تیرو کتابونو نه [صفامعلومه شوه ﴿الشَّيْطَانُ سَوَّلَ لَهُمْ﴾ شیطان هغوی ته خبره جوړه کړې ده

[1] ترجمه:- دا په دې وجه دی چې دې خلقو ایمان راوړو او بیا کافران شو.پس ددوئ په زړونو باندې مهر اولګولې شو او دوئ نه پوهیږی.

﴿وَأَمْلَىٰ لَهُمْ﴾ او هغوی ته يې دلرې لرې اميدونه ورکړی دی] چه په ايمان راوړو سره فلانی فلانی مصلحتونه موجوده يا چه آئنده يې توقع ده فوت به شی مطلب داشو چه ددې عدم تدبر وجه عناد دې چه دهدايت د واضح ثبوت نه پس دوی التهه واپس کيږي او ددې عناد نه پس د شيطان لمسه شوه يعنی شيطان د دوی په نظرونو کښې دا غلط او مهلک عمل ښائسته ښکاره کړو او په دې لمسه عدم تدبر وشو او په عدم تدبر سره ختم او طبع يعنی په زړونو مهر ولګيدو بيا ﴿ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَالُوا لِلَّذِينَ كَرِهُوا مَا نَزَّلَ اللَّهُ﴾ [دا] د هدايت مخې ته دراتلو باوجود د دې نه واپس کيدل او لرې کيدل [په دې سبب وشو چه دې خلقو داسې خلقو ته کوم چه دالله تعالی نازل کړو احکامولره] د حسدنه [ناخوښه کوی] مراد ددې نه ديهودو سرداران دی کومو چه دنبی کريم ﷺ سره به يې حسد کولو او سره د حق د پيژندو د هغې تابعدارئ نه به يې شرم کولو مطلب دا چه دې منافقانو سردارانو ديهودوته [دا ووئيل ﴿سَنُطِيعُكُمْ فِي بَعْضِ الْأَمْرِ﴾ چه په خنوخبروکښې به مونږ ستاسووينا ومنو] يعنی تاسو چه کوم مونږ د محمد ﷺ دتابعدارئ نه منع کوی ددغې دوه جزه دی يوپه ظاهره يې تابعداری نه کول دويم په باطن کښې يې تابعداری نه کول پس په اول جزء کښې خو مونږ د مصلحت د وجهې نه ستاسو خبره نه شو منلې ليکن په دويم جزء کښې به ومنو څکه چه په عقيدو کښې مونږ تاسوسره يو لکه چه به يې وئيل [اناًمعکم]([1]) مطلب داشو چه دحق نه دواپس کيدو سبب قومی تعصب او ړوندتقليددې غرض داچه دسلسلې ابتداء ددې نه ده او انتهائی په ختم او طبع ده [او] اګر چه داقسم خبرې دامنافقان پټې کوی مګر ﴿وَاللَّهُ يَعْلَمُ إِسْرَارَهُمْ﴾ [الله تعالی د هغوی پټو خبرو کولو لره] ښې [پيژنی] او دخنو کارونونه په وحی سره تالره خبرولې شی وړاند وعيد دې کوم چه د اولی لهم دتفسير کيدې شی يعنی هغوی چه کوم داسې حرکتونه کوی ﴿فَكَيْفَ إِذَا تَوَفَّتْهُمُ الْمَلَائِكَةُ﴾ [پس د هغوی به څه حال وی هرکله چه فرښتې د هغوی روح قبض کوی ﴿يَضْرِبُونَ وُجُوهَهُمْ وَأَدْبَارَهُمْ﴾ او دهغوی مخونو او شاګانو لره به وهی] او ﴿ذَٰلِكَ﴾ [دا] سزا ﴿بِأَنَّهُمُ اتَّبَعُوا مَا أَسْخَطَ اللَّهَ﴾ [په دې وجه سره] به وی [چه کومه طريقه دالله تعالی د ناراضه کولو موجب وه ﴿وَكَرِهُوا رِضْوَانَهُ﴾ هغوی په هغې تلل او دهغه رضا] يعنی د موجب د رضاد کارونو [نه به يې نفرت کولو په دې وجه ﴿فَأَحْبَطَ أَعْمَالَهُمْ﴾ الله تعالی د هغوی ټولوعملو[نيک لره] دسر نه [کالعدم کړل] پس ددې سزا مستحق شول او دچاسره که څه مقبول عمل وی نو دهغې په برکت سره په سزاکښې څه کمې خوکيدې شی وړاندې د [والله يعلم اسرارهم] د مضمون د تشريح په طور دې چه ﴿أَمْ حَسِبَ الَّذِينَ فِي قُلُوبِهِمْ مَرَضٌ﴾ [د کوموخلقو په زړونو کښې مرض [دنفاق] دې [او هغوی ددې دپټولو کوشش کوی] ايا دخلق داخيال کوی ﴿أَنْ لَنْ يُخْرِجَ اللَّهُ أَضْغَانَهُمْ﴾ چه الله تعالی به چرې د هغوی د زړونو دښمنولره ظاهرې نه کړی] يعنی دا اطمينان هغوی ته څنګه وشو هرکله چه دالله تعالی عالم الغيب کيدل ثابت اومسلم دی ﴿وَلَوْ نَشَاءُ لَأَرَيْنَاكَهُمْ﴾ [اومونږ] خو [که غوښتلې نو تاته به دهغوی پوره پته ښودلې وې ﴿فَلَعَرَفْتَهُمْ بِسِيمَاهُمْ﴾ پس تابه هغوی په حليه سره پيژندل] دپوره پټې مطلب دادې چه دهريو پوره حليه به موښودلې وه [او] اګر چه په مصلحت سره مونږ داسې نه دی ښودلی ليکن ﴿وَلَتَعْرِفَنَّهُمْ فِي لَحْنِ الْقَوْلِ﴾ [ته به هغوی لره په طرز د خبرو سره اوس هم خامخا پيژنې] څکه چه د دغو خبرې به

[1] ) ترجمه:- مونږ بيشکه ستا سره يو.

صدق مبنی نه دی او تاته په نور دفراست سره الله تعالی د صدق او کذب پیژندل درکړی دی چه دصدق اثر په زړه باند یو شان وی او د دروغوبل شان لکه چه په حدیث کښې دی چه ربنتیااطمنان بخش وی او دروغ په زړه کښې شك پیداکوی [او] وړاند مؤمنانو او منافقانو ټولو ته په جمع خطاب کوی په طور دترغیب او ترهیب فرمائی چه ﴿وَاللّٰهُ يَعۡلَمُ اَعۡمَالَكُمۡ﴾ [الله تعالی ستاسو د ټولو عملونه پیژنی] پس مسلمانانو ته به ددوی په اخلاص جزا اومنافقانو ته به ددوی په نفاق او دوکه باند سزا ورکړی [او] وړاند د سختو احکامو لکه دجهاد وغیره یو حکیمانه حکمت ارشاد دې لکه چه بره په [فهل عسیتم] کښې یو حکیمانه حکمت ارشاد فرمائیلې شوې وو یعنی ﴿وَلَنَبۡلُوَنَّكُمۡ﴾ [مونږه] دداسې سختو کارونو حکم ورکوو [خامخا ستاسو دټولو ازمائش کوو ﴿حَتّٰی نَعۡلَمَ الۡمُجٰهِدِیۡنَ مِنۡكُمۡ وَالصّٰبِرِیۡنَ﴾ چه مونږ] په ظاهری طور هم [هغوخلقو لره معلوم کړو] او تمیز ئې وکړو چه کوم په تاسو کښې جهاد کوونکی دی اوکوم] په جهادکښې [ثابت قدم پاتې کیدونکی دی ﴿وَنَبۡلُوَا۟ اَخۡبَارَكُمۡ﴾ او چه ستاسو دحالتونو کره کتنه وکړو] دایې ښکه زیاته کړه چه دجهاد دحکم نه علاوه نور احکام او علاوه د حالت دمجاهدې او صبر نه نور حالات په کښې هم داخل شی

### معارف او مسائل

﴿سُوۡرَةٌ مُّحۡكَمَةٌ﴾ د ﴿مُّحۡكَمَةٌ﴾ لفظی معنی مضبوط اوکلك ده ، ددې د لغوی معنی په اعتبار سره خو دقرآن عظیم الشان هر یو سورت محکمه دې ، خو په اصطلاح دشریعت کښې محکم په مقابله د منسوخ کښې استعمالیږی ځکه دمحکمه قید لګولو سره د عمل شوق رابیدارول دی ولې چې سورت منسوخ وی نو په هغې کښې دعمل کولو شوق خو لا څه کوې چې دعمل کولو ضرورت هم نه محسوسیږی ، او قتاده رحمه الله فرمائی چې په څومره سورتونو کښې د جنګ اوجهاد احکام راغلی دی هغه ټول محکمه دې . دلته هرکله چې اصل مقصود دجهاد حکم او په دې باندې عمل کول دی ځکه سورة سره د ﴿مُّحۡكَمَةٌ﴾ لفظ ذکر کولو سره جهاد طرفته ئې اشاره اوکړه چې وړاندې په ډاګه بیانول ئې راروان دی . [قرطبی][1]

﴿فَاَوۡلٰی لَهُمۡ﴾ ددې معنی د اصمعی د قول مطابق داده چې ﴿قاربه مایهلکه﴾ ددۀ د هلاکت اسباب رانزدې شوی دی . [قرطبی][2].

﴿فَهَلۡ عَسَیۡتُمۡ اِنۡ تَوَلَّیۡتُمۡ اَنۡ تُفۡسِدُوۡا فِی الۡاَرۡضِ وَتُقَطِّعُوۡۤا اَرۡحَامَكُمۡ﴾ دلغت په اعتبار سره د ﴿تَوَلّٰی﴾ دوه معنې کیدیشی ، یو اعراض کول او بل یو قوم باندې اقتدار حکومت کول اوس په دې آیت مبارك کښې ځینې مفسرینو رومبئ معنی اخستې ده چې پورته د تفسیر په خلاصه کښې لیکلې شوې ده. ابوحیان په بحرمحیط کښې دې ته ترجیح ورکړې ده[3] چې ددغې معنی په اعتبار سره د آیت مبارك مطلب دا شو چې که تاسو دشرعی حکمونو نه مخ تاؤ کړئې چې په کښې دجهاد حکم هم داخل دې نو ددې اثر به دا وی چې دجاهلیت په زړو طریقو به تاسو ور اوغورزیږئی چې لازمی نتیجه ئې په زمکه کښې فساد خورول او خپلوی پریخودل دی ،

[1]) تفسیر القرطبي [ ج:١٦ص:٢٤٣]
[2]) تفسیر القرطبي [ ج:١٦ص:٢٤٣]
[3]) تفسیر البحرالمحیط تحت هذه الآیة [ج: ٢ص:٣٣١]

څنګه چې د جاهلیت په هر کار کښې به داالیدلې شو چې یوې قبیلې به په بلې حمله کوله او لوټل کول به ئې . خپل اولاد به ئې پخپله پخپلو لاسونو په زمکه کښې ښخولو. اسلام دا ټول رسمونه ختم کړل او ددې دپاره ئې د جهاد حکم ورکړو. اګر چې دا جهاد په ظاهره وینې تویول دی خو په حقیقت کښې سخا او بیکاره اندام د بدن نه پریکول دی چې ددې نه نور بدن په امن کښې پاتې شي . دجهاد په ذریعه دعدل ، انصاف ، د خپلواو رشته دارو احترام قائم وی. او روح المعانی[1] ، قرطبی[2] وغیره کښې دلته د ﴿تَوَلَّيْ﴾ معنی حکومت او امارت اخستې ده. په دې وجه د آیت مبارك مطلب به داشی چې ستاسو حالات چې ذکر ئې پورته راغلې دې دهغې تقاضا داده چې که ستاسو مراد پوره شی یعنی په دې حالت کښې تاسو ته د ملك او قوم اختیار او حکومت درکړې شی نو نتیجه بۀ ئې سوا ددې نه بله نه وی چې تاسو به زمکه کښې فساد خور کړئی او خپلوئی په پرېږدئی .

**د خپلوئی پالنې سخت تاکید:** ارحام د رحم جمع ده چې د مور په خیټه کښې د انسان د پیداکیدو ځائې دې چونکه دعامو خپلوۀ بنیاد هم ددغه ځائې نه چلیږی ځکه دې دپاره درحم لفظ استعمال کړې شو. تفسیر روح المعانی دلته په دې باندې تفصیلی بحث کړې چې ذوی الارحام او ارحام کومو کومو خپلوۀ ته وئیلې شي ، اسلام د خپلوئی دحقوقو پوره کولو ډیر تاکید کړې دې . صحیح بخاری کښې د ابی هریره ﷺ او نورو صحابه کرامو ﷺ ددې مضمون حدیث نقل کړې دې چې الله ﷻ اوفرمائیل چې څوك خپلوی پالی الله ﷻ به هغه خپل ځان ته رانزدې کړی او څوك چې خپلوی ماتوی نو الله ﷻ به ئې د ځان نه پریکړی. دې نه معلومه شوه چې خپلوانو سره په خبرو کارونو او دمال په خرچ کولو کښې د احسان کولو تاکیدی حکم دې په دغه حدیث کښې ابوهریره ﷺ د قرآن عظیم الشان ددې آیت حواله هم ورکړه چې که غواړئی نو دا آیت مبارك اولولئ[3]. یو حدیث پاك کښې راغلی دی چې څه داسې ګناه چې سزائې الله ﷻ په دنیا کښې هم ورکوی او په آخرت کښې هم ، هغه د ظلم او خپلوئ پریخودو برابره نه ده [ابو داود ترمذی روایت کړو په حواله د ابن کثیر][4].

ثوبان ﷺ نه روایت دې چې رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې څوك چې خپل عمر زیاتیدل او په روزئ کښې برکت کیدل غواړی هغه لره خپلوی پالل پکار دی چې خپلوانو سره احسان کوی[5] او په صحیح احادیثو کښې دا هم دی چې د خپلوئی د حق په معامله کښې د بل طرف نه د برابرئی خیال کول نه دی پکار که بل رور خپلوی پریخودل او ناروا سلوك هم کوی بیا هم ورسره د احسان او ښه سلوك معامله پکار ده . صحیح بخاری کښې راغلی دی چې ﴿لیس الواصل بالمکافی ولکن الواصل الذي اذاقطعت رحمه وصلها﴾ هغه څوك خپلوی پالونکې نه دې

---

[1] ) روح المعاني [ج:١٩ ص:١٤٧]
[2] ) تفسير القرطبي [ ج:١٦ص:٢٤٣]
[3] ) صحيح البخاري كتاب الأدب ،باب من وصل وصله الله [ج:٢ص:٨٨٥]
[4] ) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ٧ ص:٣١٨] و مسند احمد حديث ابى بكرة نفيع بن الحارث بن كلده رقم الحديث:[٢٠٣٧٤]
[5] ) صحيح البخاري كتاب البيوع ،باب من احب البسط في الرزق (برواية انس بن مالك رضي الله عنه) [ج:١ص:٢٧٧]

چې صرف برابره بدله ورکوي بلکه خپلوي پالونکې هغه دې چې بل طرفنه ورسره خپلوي پريخودې شي نو دې ورسره بياهم خپلوي پالي [ابن کثير][1].

﴿أُولَٰئِكَ الَّذِينَ لَعَنَهُمُ اللَّهُ﴾ يعنی داسې خلق چې په زمکه کښې فساد خوروي او خپلوئ پريږدي په هغوئ باندې الله ﷻ لعنت کړې دې. يعنی هغه ئې د خپل رحمت نه لرې کړې دې، عمر فاروق رضي الله عنه ددې آيت مبارك نه د ام الولد خرڅول حرام بللي دی. ام الولد هغه وينځه ده چې د خپل آقا نه ئې اولاد پيدا شوې وی ځکه به داسې کول اولاد سره د خپلوئی پريخودو باعث جوړيږی چې د لعنت موجب جوړيږی [روايت اوکړو حاکم او صحيح ئې اوبللو ا و ابن المنذر روايت کړو د بريده نه][2].

**په يو خاص بنده باندې د لعنت حکم اويه يزيد باندې دلعنت وئيلو بحث**: د امام احمد رحمه الله صاحبزاده عبدالله هغوئ نه په يزيد باندې د لعنت کولو اجازت باره کښې سوال اوکړو نو وې فرمائيل چې په هغه کس دې لعنت ولې اونکړې شی چې په چا الله ﷻ پخپل کتاب کښې لعنت کړې دې. صاحبزاده ورته عرض اوکړو ما خو قرآن عظيم الشان پوره لوستې دې په هغې کښې چرته يزيد باندې لعنت نه دې راغلې، هغوئ دا آيت مبارك اولوستو او وې فرمائيل چې ديزيد نه به زيات بل څوك د خپلوئ پريکونکې وی چا چې درسول الله ﷺ د خپلوئی هم لحاظ اونکړو[3]. خود جمهورو امت په نزد په چا ټاکلی بنده باندې لعنت کول جائز نه دی تر څو چې کفر باندې دهغه مړکيدل په يقين سره ثابت نه وی. البته عام صفت سره پرې لعنت کول جائز دی لکه: ﴿لَعْنَةَ اللَّهِ عَلَى الْكَاذِبِينَ﴾ ﴿لَعْنَةُ اللَّهِ عَلَى الْمُفْسِدِينَ﴾ ﴿لَعْنَةُ اللَّهِ عَلَى قَاطِعِ الرَّحِمِ﴾ وغيره روح المعانی دلته په دې مسئله باندې تفصيلی بحث کړې دې. [روح ص/۷۲ ج/۲۶][4].

﴿أَمْ عَلَىٰ قُلُوبٍ أَقْفَالُهَا﴾ زړونو باندې د تالې لګيدو مطلب هغه دې کوم چې د ختم او طبع د مهر لګولو دې، ددې مطلب دادې چې زړهٔ د يو بنده داسې سخت او بې حسه شی چې ښه ورته بد او بد ورته ښه ښکاری په بې پروايئ سره په مخه باندې ګناهونو پاتې کيدل عموما ددې سبب وی، نعوذ بالله منه.

﴿الشَّيْطَانُ سَوَّلَ لَهُمْ وَأَمْلَىٰ لَهُمْ﴾ دې کښې شيطان ته د دوؤ کارونو نسبت اوکړې شو، يو تسويل دې چې معنی ئې ښائسته کول دی يعنی بد او خراب څيز چا ته نيك او ښه ښکاره شی بل املاء ده چې معنی ئې مهلت ورکول دی، مراد دادې چې شيطان اول خو ددوئ ناکاره عملونه د دوئ په نظرونو کښې ښه او ښکلی ښکاره کړل بيا ئې په داسې اوږد اميدونو او آرزوګانو کښې اخته کړو چې پوره کيدونکی نه دی.

﴿أَمْ حَسِبَ الَّذِينَ فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ أَن لَّن يُخْرِجَ اللَّهُ أَضْغَانَهُمْ﴾ ﴿أَضْغَانَ﴾ د ضغن جمع ده، معنی ئې پټه دشمنی حسد او کينه ده. دا د منافقانو باره کښې نازل شوې دې کومو به چې د اسلام دعوی

---

[1]) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ۷ ص:۳۱۹] و صحيح البخاري كتاب الأدب ،باب ليس الواصل بالمكافي[ج:۲ص:۸۸٦ ]

[2]) المستدرك للحاكم رقم الحديث:[۳۷۰۸]

[3]) تفسير المظهري تحت هذه الآية [ج:۸ص:٤٣٤]

[4]) روح المعاني تحت هذه الآية [ج:۱۹ ص:۱٥۱]

کوله او ښکاره به ئې رسول کريم ﷺ سره مينه څرګندوله او په پټه به ئې ورسره دشمني او کينه لرله ، حالانکه دوئ به الله رب العالمين عالم الغيب ګڼړلو او ددې خيال به ئې نه کولو چې الله ﷻ به ددوئ باطني رازونه او پټې دشمنئ په خلقو باندې ښکاره کړي. ابن کثير اوفرمائيل چې الله ﷻ په سورة براءت کښې د دوئ د داسې عملونو او حرکتونو پته ورکړه چې ترې دمنافقينو د منافقت پته لګيدلې شي او هغه پيژندې شي ، څکه سورة براءت ته فاضحه هم وئيلې شي ، يعنی رسوا کوونکې څکه چې دې سورت د منافقانو خاص خاص نخښې ښکاره کړې دی[1] .

﴿وَلَوْ نَشَآءُ لَأَرَيْنَٰكَهُمْ فَلَعَرَفْتَهُم بِسِيمَٰهُمْ﴾ اوکه مونږ اوغواړو نو تاسو ﷺ ته به منافقان اوښايو او دهغوئ داسې شکل به ئې درته اوښايو چې په هغې سره هر يو منافق لره په شخصي ډول پيژنې ، قرآن عظيم الشان دې مضمون لره په حرف د لو سره بيان کړې دې د کوم استعمال چې داسې شرط دپاره وی کوم چې واقع شوې نه وی . څکه به د آيت معنی دا وی چې که مونږ پيژندلې نو هر يو منافق به مو ورته په ګته کړې وو. خو مونږ د خپل حکم مصلحت او خپل حلم او بردبارئ په وجه په دغې شان د هغوئ شرمول مو خوښ نه کړل . دپاره ددې چې ضابطه دا قائمه پاتې شی چې تول کارونه د هغې په ظاهر باندې حملول پکار دی او باطني حالات او د زړه خبرې صرف عليم او خبير الله ﷻ ته سپارل پکار دی ، البته تاسو ﷺ ته مونږ داسې بصيرت درکړې دې چې تاسو ﷺ منافقان پخپله هم د هغوئ د خبرونه پيژنئ نو د ﴿وَلَتَعْرِفَنَّهُمْ فِى لَحْنِ ٱلْقَوْلِ﴾ هم دا مطلب دې [ابن کثير][2].

عثمان بن عفان ﷺ اوفرمائيل چې څوك څه څيز په خپل زړه کښې پټوی الله ﷻ هغه لره د هغه دمخ او خبرو نه ښکاره کوی يعنی په خبرو کښې د هغه نه داسې داسې الفاظ صادر شی چې دهغې نه ئې د زړه راز ښکاره شی ، داسې شان په يو حديث کښې ارشاد دې چې څوك چې پخپل زړهٔ کښې څه خبره پټوی الله ﷻ دهغه په وجود باندې د هغې څيز څادر خور کړی که دغه څيز ښه وی نو هغسې ښکاره کيږی اوکه خراب وی نو خراب ښکاره کيږی[3] ، اود حديث پاك په څينې روايتونو کښې دا هم راغلی دی چې دمنافقانو د يوې ډلې علم په شخصي ډول باندې هغوئ ته ورکړې شوې وو لکه چې په مسند احمد ﷺ[4] کښې د عقبه بن عمرو ﷺ په حديث پاك کښې دی چې رسول کريم ﷺ په يو خطبه کښې د خاص خاص منافقانو نوم واخستو او د مجلس نه ئې پاسول ، دې کښې د شپږو ديرشو سړو نومونه شمير کړې شوی دی. [ابن کثير].

﴿حَتَّىٰ نَعْلَمَ ٱلْمُجَٰهِدِينَ مِنكُمْ﴾ الله ﷻ ته خو د ازل نه دهر چا د عملونو او کارونو راچاپيره علم ازلي او ابدي دې ، دلته د علم نه مراد ښکاره کيدل او واقع کيدل دی . يعنی کوم څيز چې د الله ﷻ په علم کښې د ړومبې نه وو د هغې په واقع کيدو او ښکاره کيدو سره ئې واقعاتی علم راشی . [ابن کثير] والله اعلم.

---

[1] ) تفسير ابن کثير [ج: ۷ ص:۳۲۱]
[2] ) تفسير ابن کثير [ج: ۷ ص:۳۲۱]
[3] ) المعجم الکبير للطبراني رقم الحديث:[۱۶۸۱]
[4] ) مسند احمد، حديث ابي مسعود عقبة بن عمرو الأنصاري رقم الحديث:[۲۲۳۴۸]

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَصَدُّوا عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ وَشَاقُّوا

بیشکه هغه کسان | چې کفر ئې اوکړو | او خلق ئې منع کړل | دلارې دالله نه | او مخالفت ئې اوکړو

بیشکه څوک چې کافران شول | او خلق ئې دالله ﷻ دلارې نه منع کړل | او دهدایت د پیژندلو نه پس ئې

الرَّسُولَ مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمُ الْهُدَىٰ لَنْ يَضُرُّوا اللَّهَ

درسول | روستو دهغې نه | چې ښکاره شوه | هغوئ ته | نیغه لار | هرګز به ضرر اونه رسوی الله ته

د رسول مخالفت اوکړو | ........ نوهغوئ به الله ته هیڅ ضرر

شَيْئًا وَسَيُحْبِطُ أَعْمَالَهُمْ ۝ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا

یوه ذره | او ضائع به کړی الله | عملونه دهغوئ | اے هغه کسانو | چې ایمان مو راوړې دې |

ورنکړې شی | او الله ﷻ به ددوئ عملونه برباد کړی | ........ائې مومنانو!

أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَلَا تُبْطِلُوا أَعْمَالَكُمْ ۝

حکمونه منئ دالله | او اطاعت کوئ درسول | او مه بربادوئ | عملونه خپل |

دالله ﷻ تابعداری اوکړئ | او د رسول ﷺ تابعداری اوکړئ | او خپل عملونه مه تباه کوئ

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَصَدُّوا عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ ثُمَّ مَاتُوا

بیشکه هغه کسان | چې کفر ئې اوکړو | او خلق ئې منع کړل | دلارې دالله نه | بیا مړه شو هغوئ

بیشکه چا چې کفر اختیار کړې دې | او خلق ئې د الله ﷻ دلارې نه منع کړی دی | بیا هم دغسې

وَهُمْ كُفَّارٌ فَلَنْ يَغْفِرَ اللَّهُ لَهُمْ ۝ فَلَا تَهِنُوا وَتَدْعُوا

او هغوئ کافران وو | پس هرګز به اونه بخښی الله | هغوئ لره | پس مه بې زړه کیږئ | او بلنه مه کوئ

کافران مړه شول | نو الله ﷻ به هغوئ هیڅکله اونه بښی | نو تاسو همت مه بائیلئ | او [دخان نه] د صلحې دعوتونه

إِلَى السَّلْمِ وَأَنْتُمُ الْأَعْلَوْنَ وَاللَّهُ مَعَكُمْ وَلَنْ يَتِرَكُمْ

صلحې ته | او هم تاسو به غالب یئ | او الله | ستاسو سره دې | او هرګز به نه ضائع کوی |

مه ورکوئ | او هم تاسو به غالب یئ | او الله ﷻ ستاسو ملګرې دې | او ستاسو په عملونو کنبې

أَعْمَالَكُمْ ۝ إِنَّمَا الْحَيَاةُ الدُّنْيَا لَعِبٌ وَلَهْوٌ وَإِنْ تُؤْمِنُوا

عملونه ستاسو | بیشکه | ژوند ددنیا | لوبې دی | او مشغولتیا ده | او که تاسو ایمان راوړو

به هیڅ کمې نه کوی | د دنیا دا ژوند خو بس لوبې او تماشې دی | او که تاسو ایمان راوړو

وَتَتَّقُوا يُؤْتِكُمْ أُجُورَكُمْ وَلَا يَسْأَلْكُمْ

او پرهیزګاری مو اوکړه | نو دربه کړی تاسو ته [الله] | اجرونه ستاسو | اونه به غواړی ستاسو نه

اوپرهیزګار پاتې شوئ | نو الله ﷻ به تاسوته اجرونه درکړی | او هغه تاسونه

أَمْوَالَكُمْ ۝ إِنْ يَسْأَلْكُمُوهَا فَيُحْفِكُمْ

مالونه ستاسو | او که اوغواړی ستاسو نه دغه مالونه | اوبه زیات اوغواړی ستاسو نه |

مالونه نه غواړی | که مالونه درنه اوغواړی | او تربسه بسه ئې درنه اوغواړی | نو تاسو

تَبۡخَلُوۡا | وَيُخۡرِجۡ | اَضۡغَانَكُمۡ ﴿۳۷﴾ | هٰۤاَنۡتُمۡ | هٰۤؤُلَآءِ

نو تاسو به بخل اوکړئ | او راوبه باسي | عيبونه ستاسو | اے تاسو | دا کسان يئ |

به شومتيا اوکړئ | اوپه دې به ستاسو خفګانونه راڅرګند کړی | تاسو داسې خلق يئ

تُدۡعَوۡنَ | لِتُنۡفِقُوۡا | فِيۡ سَبِيۡلِ اللّٰهِ ۚ | فَمِنۡكُمۡ

چې رابللې کيږئ تاسو | دپاره ددې چې تاسو خرچ اوکړئ | په لار د الله کښې | پس څينې ستاسو نه

چې څه وخت درته د الله ﷻ په لار کښې دمال لګولو بلنه درکولې شی | نو په تاسو کښې بعضو

مَّنۡ | يَّبۡخَلُ ۚ | وَمَنۡ يَّبۡخَلۡ | فَاِنَّمَا يَبۡخَلُ | عَنۡ نَّفۡسِهٖ ؕ

هغه څوك دی | چې بخل کوی | او څوك چې بخل کوی | پس بيشکه هغه بخل کوی | دخان خپل سره

کنجوسی اوکړه | ........اوچا چې شومتوب اوکړو نود هغه دشومتوب نقصان هم هغه ته دی

وَاللّٰهُ الۡغَنِيُّ | وَاَنۡتُمُ الۡفُقَرَآءُ ۚ | وَاِنۡ تَتَوَلَّوۡا | يَسۡتَبۡدِلۡ | قَوۡمًا

او الله خو غنی دی | او تاسو محتاجه يئ | او که مخ واړوئ تاسو | نو الله به بدل راولی | يوقوم |

اوالله ﷻ غنی [بادشاه] دی | او تاسو ورته محتاج يئ | او که تاسو مخ واړوئ

غَيۡرَكُمۡ ۙ لا | ثُمَّ لَا يَكُوۡنُوۡۤا | اَمۡثَالَكُمۡ ﴿۳۸﴾ ع

غير ستاسو نه | بيا به نهٔ وی هغوئ | پشان ستاسو |

نوستاسو په ځائې به يو بل قوم راولی | چې هغوئ به ستاسو په شان [مخ اړونکی] نه وی

## آسان ترجمه قرآن

يقين اوکړئ. چه کومو خلقو کفر اختيار کړې دې، او نور خلق ئې د الله تعالیٰ د لارې نه منع کړې دی، او دشمنی ئې کړې ده د پيغمبر عليه السلام سره، پس دهغې نه چه دوی ته هدايت واضحه شوې دې، دوی هيڅرې الله تعالیٰ ته نقصان نشی رسولې او زر ده چه الله تعالیٰ به ددوی عملونه برباد کړی اے ايمان والو، د الله تعالیٰ اطاعت اوکړئ، او د رسول اطاعت اوکړئ اوخپل عملونه مه بربادوئ. کومو خلقو چه کفر اختيار کړې دې، او نور خلق د الله تعالیٰ دلارې نه منع کوی، بيا د کفر په حالت کښې مړه شوې دی، الله تعالیٰ به چرې هم هغوی اونه بخي. لهٰذا (اے مسلمانانو) تاسو د کمزورئ د وجې نه (دشمن ته) د صلحې دعوت مه ورکوئ ،او هم تاسو به اوچت يئ. الله تعالیٰ ستاسو ملګرې دې، او هغه به ستاسو عملونه چرې هم برباد نه کړی. دا ژوند د دنيا خو بس لوبې توقې دی اوکه تاسو ايمان راوړئ،او تقوٰی اختيار کړئ،نو الله تعالیٰ به ستاسو اجرونه تاسو ته درکړی، او ستاسو مالونه ستاسونه نهٔ غواړی.اوکه هغه تاسونه ستاسو مالونه اوغواړی،او تاسونه ټول هرڅه راغونډ کړی، نو تاسو به د بخل نه کار واخلئ اوهغه به ستاسو د زړونو خفګان ښکاره کړی. خبر شئ. تاسو داسې خلق يئ. چه کله تاسو د الله تعالیٰ په لاره کښې خرچ کولو دپاره رابللې شئ. نو په تاسو کښې څه خلق داسې دی، چه د بخل نه کار اخلی. او کوم سړې چه بخل کوی، نو هغه د خپل ځان سره بخل کوی. او الله تعالیٰ بے نيازه دې. او تاسو محتاج يئ. اوکه تاسو مخ واړوئ. نو هغه به ستاسو په ځائې بل قوم پيدا کړی. بيا به هغه ستاسو پشان نه وی.

## خلاصه تفسير

﴿إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَصَدُّوا عَن سَبِيلِ اللَّهِ﴾ [بيشکه کوم خلق چه کافر شول او هغوی] نورولره هم [د الله تعالى د لارې نه] يعنى حق دين نه [منع کړل ﴿وَشَاقُّوا الرَّسُولَ مِن بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمُ الْهُدَىٰ﴾ او درسول ﷺ [مخالفت يې وکړو پس د هغې چه دوى ته] ددين [لار] په عقلى دليلونو سره دمشرکانو دپاره او په نقلى سره هم داهل کتابو د پاره [ښکاره شوه ﴿لَن يَضُرُّوا اللَّهَ شَيْئًا﴾ داخلق دالله] ددين [هيڅ نقصان نه شى کولې] بلکه دا دين به په هرحال پوره کيږى چنانچه وشوه ﴿وَسَيُحْبِطُ أَعْمَالَهُمْ﴾ [او الله تعالى به دهغوى کوششونو لره] کوم چه د حق دين د ورانولودپاره کوى [ختم کړى ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا اللَّهَ﴾ اے ايماندارو [دالله تعالى اطاعت کوى او] چونکه نبى کريم ﷺ دالله تعالى حکم بيانوى خواه په خاص طور سره په وحى الهى کښې ددې حکم شوې وى يا په وحى الهى کښې کلى ضابطه بيان شوى وى او دې خاص حکم لره نبى کريم ﷺ په دغه ضابطه کښې د داخليدو په بناحکم ورکړې وى په دې وجه ﴿وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ﴾ [درسول ﷺ هم [اطاعت کوئ او] دکفارو په شان دالله تعالى او رسول ﷺ په مخالفت کولو ﴿وَلَا تُبْطِلُوا أَعْمَالَكُمْ﴾ [خپل عملونه مه بربادوئ] ددې تفصيل به په معلوماتو او مسئلوکښې راشى ﴿إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَصَدُّوا عَن سَبِيلِ اللَّهِ﴾ [بيشکه کوم خلق چه کافرشول او هغوى دالله تعالى دلارې نه منع کړل ﴿ثُمَّ مَاتُوا وَهُمْ كُفَّارٌ﴾ بيا هغه کافران مړه] هم [شول ﴿فَلَن يَغْفِرَ اللَّهُ لَهُمْ﴾ پس الله تعالى به هغوى لره چرې ونه بخښى] د عدم مغفرت دپاره دکفر سره دلارې د الله تعالى نه منع کول شرط نه دى بلکه صرف د کفر ترمرګه پورې دا اثر دې ليکن د تشنيع دزياتوالى دپاره دا قيدواقعى زيات شو چه د دغه وخت دکفاروپه مشرانو کښې داکار هم متحقق وو وراند دکفارو قباحتونه او د مؤمنانو صفتونه په طور دتفريع فرمائى چه هرکله معلومه شوه چه مسلمانان د خداې محبوب او کفار مبغوض دى [نوامے مسلمانانو ﴿فَلَا تَهِنُوا وَتَدْعُوا إِلَى السَّلْمِ﴾ [تاسو] دکفاروپه مقابله کښې [همت مه بيلئ او] په همت بيلولو سره هغوى ته صلح طرف ته مه رابلئ ﴿وَأَنتُمُ الْأَعْلَوْنَ﴾ او تاسو به غالب يئ او هغوى به مغلوب وى ځکه چه تاسو محبوب يئ او هغه مبغوض دى ﴿وَاللَّهُ مَعَكُمْ﴾ [او الله تعالى تاسو سره دې] دا خوستاسو د دنياکاميابى شوه ﴿وَلَن يَتِرَكُمْ أَعْمَالَكُمْ﴾ [او] په اخرت کښې به دا کاميابى وى چه الله تعالى [به ستاسو] د [عملونو] په ثواب [کښې هرګز کمى ونه کړى] دا خوئ همت افزائى شوه دجهاد ترغيب شو وړاند ددنيا دفانى کيدو ذکر کوى دجهاد ترغيب او دانفاق فى سبيل الله تمهيددې چه ﴿إِنَّمَا الْحَيَاةُ الدُّنْيَا لَعِبٌ وَلَهْوٌ﴾ [دادنيا ژوند خومحض لوبې اوتماشې دى] که په دې کښې خان اومال د خپلې فائدې دپاره بچ کول وى نو دغه فائده دخوورځو ده او مطلب يې هيڅ نه دې ﴿وَإِن تُؤْمِنُوا وَتَتَّقُوا﴾ [اوکه تاسو ايمان او تقوى اختيارکړئ] چه دې کښې جهادپه نفس اومال سره هم راغې [نو] تاسوته به دخپل طرف نه نفع ورسوى داسې چه ﴿يُؤْتِكُمْ أُجُورَكُمْ﴾ [تاسوته به ستاسو اجر درکړى او] تاسونه څه نفع نه غواړى چنانچه ﴿وَلَا يَسْأَلْكُمْ أَمْوَالَكُمْ﴾ [تاسو نه به ستاسو مال] هم کوم چه دنفس نه کم دې د خپلې نفعې دپاره [نه طلب کوى] هرکله چه تاسونه داسې شې نه طلب کوى دکوم ورکول چه اسان دى نو نفس چه ورکول يې مشکل دى هغه به ولې طلب کوى چنانچه ظاهره ده چه زمونږ په خان اومال خرڅ کولو سره دالله تعالى هيڅ نفع نشته اونه

دامکنه ده اودا په شان ددې قول دالله تعالی دې چه [وهويطعم ولايطعم](١) چنانچه ﴿إِن يَسْأَلْكُمُوهَا﴾[که چرې] امتحاناً [تاسونه ستاسو مال طلب کړی ﴿فَيُحْفِكُمْ تَبْخَلُوا﴾ بیا ترانتهائی درجې پورې يې تاسونه طلب کوی] يعنی ټول مال درنه طلب کړی [نوتاسو] يعنی په تاسوکښې اکثر [بخل به کوی] يعنی ورکول به يې نه خوښوی ﴿وَيُخْرِجْ أَضْغَانَكُمْ﴾ [او] دغه وخت [به الله تعالی ستاسو ناخوښی ظاهره کړی] يعنی په نه ورکولو سره چه ظاهری فعل دې باطنی ناخوښی به ښکاره شی په دې وجه دافرد ممکن هم واقع نه کړې شو او ﴿هَا أَنتُمْ هَٰؤُلَاءِ تُدْعَوْنَ لِتُنفِقُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ﴾[البته تاسو خلق داسي يئ چه تاسو لره د الله تعالی په لاره کښې] چه نفع يې تاسوته واپس کيدل يقيني دی لږ حصه دمال] خرڅ کولو دپاره بلی[او باقی اکثره حصه ستاسو په قبضه کښې پريښودې شی [پس] په دې هم ﴿فَمِنكُم مَّن يَبْخَلُ﴾[ځنې په تاسو کښې هغه دی چه بخل کوی او] وړاند په دې فرد واقع بالله دبخل مذمت دې چه ﴿وَمَن يَبْخَلْ فَإِنَّمَا يَبْخَلُ عَن نَّفْسِهِ﴾[کوم سړې] دداسې ځائ د خرڅ کولو نه [بخل کوی نو هغه] په حقيقت کښې [په خپله دځان سره بخل کوی] يعنی خپل ځان لره ددغې دائمی نفعې نه محرومه کوی [او] که نه وی نو ﴿وَاللَّهُ الْغَنِيُّ﴾[دالله تعالی هيڅ ته حاجت نشته] چه ګوند احتمال د هغه دضرر وی [او] بلکه ﴿وَأَنتُمُ الْفُقَرَاءُ﴾[تاسو ټول] هغه ته [محتاج يئ] او ستاسو ددې احتياج په رعايت سره تاسو ته دانفاق حکم وشو ځکه چه په اخرت کښې به تاسوته د ثواب حاجت وی او طريقه د هغې دا عملونه دی او ﴿وَإِن تَتَوَلَّوْا يَسْتَبْدِلْ قَوْمًا غَيْرَكُمْ﴾[که تاسو] زمونږ د احکامو نه [روګردانی وکړئ نو الله تعالی به ستاسو په ځائ بل قوم پيداکړی] او﴿ثُمَّ لَا يَكُونُوا أَمْثَالَكُمْ﴾ [بيا به هغه ستاسو په شان] روګردانی کوونکی [نه وی] بلکه نهايت فرمانبردار به وی داکار به دهغوی نه واخستې شی او دغه شان به دغه حکمت پوره شی

## معارف او مسائل

﴿إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَصَدُّوا عَن سَبِيلِ اللَّهِ﴾ دا آيت مبارك هم دمنافقانو او د بنی قريضه او بنی نضير باره کښې نازل شوې دې. او ابن عباس ﷺ فرمائی چې دا دهغې منافقانو باره کښې دې چې چا دغزوهٔ بدر په موقع د قريشو دکفارو مدد په دې شان اوکړو چې د دوئ دولسو کسانو د هغوئ دلښکرو خوراکه پخپل ذمه دارئی اخستې وه هره ورځ به يويو کس ټول لښکر ته په وار وار خوراك ورکولو(٢).

﴿وَسَيُحْبِطُ أَعْمَالَهُمْ﴾ دلته د عملونو د حبطه کولو مراد دا هم کيديشی چې د دوئ د اسلام په خلاف کوششونه کامیابيدو ته پرې نزدې بلکه ختم ئې کړی ځنګه چې د تفسير په خلاصه کښې ليکلې شوی دی ، او دا معنی هم کيديشی چې ددوئ دکفر او منافقت په وجه به د دوئ ټول نيك عملونه ضائع شی د قبليدو جوګه به نه وی.

﴿وَلَا تُبْطِلُوا أَعْمَالَكُمْ﴾ قرآن عظيم الشان دلته د عملونو حبط يعنی ضائع کولو په ځائې د ابطال اعمال يعنی د عملونو باطل کيدو لفظ استعمال کړې دې. ددې مفهوم ډير عام داسې دې چې

١) ترجمه:- او څه چې د خوراك دپاره ورکوی او دوئ ته هيڅ دخوراك دپاره نه ورکوی.
٢) تفسير المظهري[ج:٨ص:٤٣٧] و روح المعاني [ج: ١٩ ص:١٦٤]

د عملونو باطلولو صورت د کفر په وجه را پیښیږي چې په تیر شوي آیت مبارك کښې ئې ترې په حبط اعمال سره تعبیر شوې دې ځکه چې د اصلي کافر خو هیڅ عمل د کفر په وجه د قبلیدو جوګه نشي کیدې او د اسلام راؤړولو نه پس په مرتد کیدو سره د اسلام د زماني عملونه ئې اګر چې د قبلیدو جوګه وو خو د مرتد کیدو په وجه ئې دغه ټول عملونه هم برباد لاړل.

د عملونو باطلولو یو بل صورت دا هم دې چې خینې نیکو عملونو دپاره څه نور نیك عملونه شرط دي ، نو د هغې شرط ضائع کول د اصل عمل ضائع کول شو. لکه د هر نیك عمل د قبلیدو شرط دادې چې هغه دې خالص د الله ﷻ د رضا دپاره وي ، دې کښې دې ریا او نمائش نه وي ځکه چې د قرآن عظیم الشان ارشاد دې چې ﴿وَمَآ أُمِرُوٓا۟ إِلَّا لِيَعْبُدُوا۟ ٱللَّهَ مُخْلِصِينَ لَهُ ٱلدِّينَ﴾(١) او بل خائې کښې ارشاد دې چې ﴿أَلَا لِلَّهِ ٱلدِّينُ ٱلْخَالِصُ﴾(٢) نو د چا نیك عملونه چې د ریا او ښودنې په ډول وي نو د غسې عمل د الله ﷻ په نزد باطل دې ، دا شان د صدقاتو باره کښې په خپله قرآن عظیم الشان صفا صفا فرمائي چې ﴿لَا تُبْطِلُوا۟ صَدَقَٰتِكُم بِٱلْمَنِّ وَٱلْأَذَىٰ﴾ یعني احسان سره ضباطول یا غریب ته په ژبان ورکولو سره خپل خیراتونه مه باطلوئی. معلومه شوه چې چا خیرات ورکړو او غریب ته ئې څه ژبان ورکړو یا ئې پرې احسان اوکړو نو د غه صدقه ئې باطله شوه. او د حسن بصري رحمه الله د قول هم دا مطلب دې چې هغوئ ددې آیت مبارك په تفسیر کښې داسې فرمائي چې خپل نیك عملونه د ګناهونو په ذریعه مه باطلوئی. لکه ابن جریج رحمه الله فرمائي چې ﴿بالریاء والسمعه﴾ او مقاتل رحمه الله فرمائي چې ﴿بِالْمَنِّ﴾ ولې چې په اتفاق د اهل سنت والجماعت د کفر او شرك نه علاوه داسې هیڅ بله ګناه نشته دې چې د مؤمن ټول نیك عملونه به ورسره ضائع کیږي. خواه هغه ګناه لویه هم وي. لکه چا غلا اوکړه او هغه د مونځ ، روژې پابند دې نو په دې وجه د هغه مونځونه او روژې نه ضائع کیږي. چې ته هغه ته وائې چې ستا روژه او مونځ په دې باطل شو ددې قضا راؤړه په دې وجه د ابطال اعمال بالمعاصي نه هغه معاصي مراد دي د کوم په نه کولو چې نیك عملونه قبلیدل اړه لري لکه ریا او ښودنه کول د هر عمل صالح مقبولیت شرط دې. او دا هم کیدیشي چې د حسن بصري رحمه الله په قول کښې د عملونو د باطلولو نه مراد د نیکو عملونو د برکتونو نه محرومه کیدل وي. سراسر عمل ضائع کیدل ترې مراد نه وي. نو دا د ټولو ګناهونو دپاره شرط دې ، د چا په عملونو کښې چې ګناهونه غالب وي نو دده په لړو نیکو عملونو کښې هغه برکت وي چې عذاب نه ئې اوساتلې شي ، بلکه ددې ګناهونو سزا تیرولو نه پس به آخر د خپل ایمان په برکت خلاصې بیا مومې.

**مسئله**: د نیکو عملونو د باطلیدو دریم صورت دا هم دې چې څوك نیك عمل کولو نه پس هغې لره په قصد سره خراب کړي لکه مونځ ، روژه شروع کولو نه پس بې د څه عذر نه په قصد سره هغه فاسد کړي ، دا هم ددې آیت مبارك په ذریعه ناجائز اوګرزیدل. د امام ابوحنیفه رحمه الله هم دا مسلك دې چې کوم نیك عمل د اول نه فرض یا واجب نه وي نو په هغې کښې شروع کولو سره د هغې پوره کول او سرته رسول ددې آیت مبارك تر مخه واجب شو دې دپاره چې د عمل

(١) ترجمه:- حالانکه دې خلقو ته هم دا حکم شوې وو چې د الله تعالی داسې عبادت اوکړئ چې عبادت هغه لره خاص کړئ.
(٢) ترجمه:- یادساتئ چې عبادت صرف الله تعالی دپاره خاص دې.

باطلونکې اونه ګرځي که چا داسې عمل شروع کړو اود څه عذر نه بغير يې پريخودو يائې په قصد سره مات کړو هغه ګناهګار هم شو او د هغې قضا راوړل پرې لازمي او ضروري دی البته دامام شافعي رحمه الله په نزد ئې راوړل لازمي نه دی اونه ئې په پريخودو سره ګناهګار شو، ځکه چې هر کله د اول نه دا عمل فرض يا واجب نه وو نو وروسته به هم فرض يا واجب نه وی چې د هغې په پريخودو سره ګناه لازم شی خود امام ابو حنيفه رحمه الله په نزد د مذکوره آيت مبارك الفاظ عام دی دا هر نيك عمل دپاره دی. خواه اول فرض يا واجب وی يا نفلی طور سره شروع کړې شوې وی نو شروع کولو سره هغه نفلی عمل هم واجب شو، په تفسير مظهری کښې دډيرو احاديثو په رڼا کښې دابحث په تفصيل سره ليکلې شوې دې([1])

﴿إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَصَدُّوا عَن سَبِيلِ اللَّهِ ثُمَّ مَاتُوا وَهُمْ كُفَّارٌ﴾ هم په دې الفاظو سره يو حکم رومبې راغلې دې. ددې دوباره راګرځول يا خو په دې غرض دې چې رومبی آيت مبارك کښې د کافرانو د دنيوی نقصان بيان وو او دلته په دې آيت کښې ئې د آخرت د نقصان بيان دې چې د تفسير په خلاصه کښې نقل کړې شو. او دا هم کيدېشی چې په رومبی آيت کښې دعامو کافرانو ذکر وو چې په دې کښې هغه خلق هم شامل وو چې روستو مسلمانان شوی وو. د هغوئ حکم خو دا راغلو چې کوم نيك عملونه هغوئ دکفر په حالت کښې کړی وو هغه ټول ضائع شو. اسلام کښې داخليدو نه پس به ئې ثواب نه وی. او دې آيت مبارك کښې د داسې کافرانو خاص ذکر دې چې تر مرګه پورې په کفر او شرك باندې کلك پاتې شوی دی، په دې بنا د هغوئ حکم دادې چې په آخرت کښې به ئې هيچرې بخښنه نه وی، والله اعلم.

﴿فَلَا تَهِنُوا وَتَدْعُوا إِلَى السَّلْمِ﴾ دې آيت مبارك کښې کافرانو ته د صلح دبلنې ورکولو نه منع کړې شوې ده او د قرآن عظيم الشان په بل ځائې کښې ارشاد دې چې: ﴿وَإِن جَنَحُوا لِلسَّلْمِ فَاجْنَحْ لَهَا﴾ که کافران صلح کولو دپاره راشی نو تاسو هغه ورسره صلح اوکړئی. دې نه دصلح اجازت معلوميږی، ځکه څينې حضراتو فرمائيلی دی چې د اجازت والا آيت په دې شرط سره دې چې دکافرانو د طرفنه دصلح کولو کوشش رومبې وی او په دې آيت مبارك کښې منع په هغې صورت کښې راغلې ده چې دمسلمانانو دطرفنه د صلح خواست اوکړې شی. ځکه په دواړو آيتونو کښې هيڅ تعارض او تکرار نشته دې خو صحيح دادی چې مسلمانانو دپاره دشروع نه هم صلح کول جائز دی کله چې په دې کښې د مسلمانانو ښيګړه وی، خالص د بزدلئ په وجه يا دعيش و عشرت کولو په خاطر نه وی نو په دې آيت مبارك کښې اول سر کښې ﴿فَلَا تَهِنُوا﴾ وئيلو سره هم دې ته اشاره اوشوه. چې هغه شان صلح کول مسلمانانو لره منع دی چې د بزدلئ دوجې نه يا ئې مطلب صرف آزادی موندل او جهاد نه خلاصيدل وی. ځکه په دې دواړو آيتونو کښې هيڅ تعارض نشته دې. والله اعلم.

﴿وَلَن يَتِرَكُمْ أَعْمَالَكُمْ﴾ الله ﷻ به ستاسو دعملونو په جزاء کښې هيڅ کمې نه کوی. دې کښې اشاره دې خبرې ته ده چې مؤمن ددنيا تکليف به هم د اجر باعث جوړيږی چې په آخرت کښې به ورکولې شی. ځکه مؤمن دتکليف په وخت کښې هم ناکام نه دې.

﴿إِنَّمَا الْحَيَاةُ الدُّنْيَا﴾ هر کله چې جهاد نه بندونکې څيز انسان لره هم ددنيا محبت کيدېشی چې په

[1]) تفسير المظهري[ج:۸ص:۴۳۸]

کښې د خپل ځان محبت ، دبال بچ محبت ، دمال دولت محبت ټول داخل دی، په دې آیت مبارك کښې دا خودلې شوي دی چې دا ټول هر څه آخر ختمیدونکي او فنا کیدونکي دی ، ځکه ددې فاني څیزونو مینه د آخرت د غیرفاني نعمتونو دمینې په مقابله کښې غالب کول نه دی پکار.
﴿وَلَا يَسْـَٔلْكُمْ أَمْوَالَكُمْ﴾ ددې آیت مبارك ظاهري مطلب دادې چې الله ﷻ تاسو نه ستاسو مالونه نه غواړي .مګر په ټول قرآن عظیم الشان کښې د زکوة ، خیرات ، احکام او دالله ﷻ په لار کښې مال خرچ کولو بې شمیره موقعې راغلی دی اوپخپله ددې نه پس په بل آیت مبارك کښې د الله ﷻ په لار کښې د خرچ کولو تاکید راروان دې ، په دې وجه په ظاهره په دواړو کښې تعارض معلومیږي ځکه بعض حضراتو د [لَا يَسْـَٔلْكُمْ] مفهوم دا ګرځولې دې چې الله ﷻ ستاسو مالونه ، تاسو نه څه دخپلې نفع دپراه نه غواړي بلکه هم ستاسو فائدې دپاره غواړي چې دهغې ذکر په دې آیت مبارك کښې هم د ﴿يُؤْتِكُمْ أُجُورَكُمْ﴾ په الفاظ سره کړې شوې دې . چې تاسو نه چې څه الله ﷻ په لاره کښې د خرچ کولو دپاره اوونیلې شو هغه دې دپاره دی چې آخرت کښې به چرته به چې دټولو نه زیات ضرورت دنیك عملونو وی ، دغه وخت به دا خرڅ کول ستاسو پکار راشی او هلته به درته ددې اجر درکړې شی .
په ذکر شوي خلاصه تفسیر کښې دا مطلب اختیار کړې شوې دې ، د هغې نظیر او مثال دا آیت مبارك ﴿مَا أُرِيدُ مِنْهُم مِّن رِّزْقٍ﴾ دې . یعنی الله ﷻ فرمائی چې مونږ تاسو نه خپل ځان دپاره نه څه روزی اخلو اونه مو ورته حاجت شته دې . اوځینې حضراتو ددې آیت دامطلب خودلې دې چې د ﴿يَسْـَٔلْكُمْ﴾ نه مراد پوره مال طلب کول دی . [دا قول د ابن عیینه دې ، قرطبی][1].
ددې قرینه په راتلونکی آیت مبارك ﴿إِن يَسْـَٔلْكُمُوهَا فَيُحْفِكُمْ﴾ کښې داسې ده چې یحف داحفاء نه مشتق دې ، چې معنی ئې مبالغه او په یو کار کښې آخره پورې رسیدل دی ، ددې دوئیم ایت مطلب د ټولو په نزد دادې چې که الله ﷻ تاسو نه ستاسو ټول مالونه غوښتلې نو تاسو به شومتوب [بخل] کولو او په دې حکم باندې عمل کول به ستاسو ناخوښه وو تر دې چې د ادا کولو په وخت دا ناخوښی ستاسو به ښکاره شوې وې. خلاصه دا شوه چې رومبی آیت مبارك کښې د ﴿إِن يَسْـَٔلْكُمُوهَا﴾ مراد هم دادې چې بل آیت مبارك کښې دِ ﴿فَيُحْفِكُمْ﴾ قید سره راغلې دې .
نو ددې دواړو آیتونو مطلب دا شو چې الله ﷻ کوم مالی فرض چې په تاسو باندې مقرر کړی دی اول خو هغه پخپله هم ستاسو فائدې دپاره دی دالله ﷻ هیڅ فائده په کښې نشته دې ، بیا الله ﷻ په دغې فرائضو کښې خپل رحمت سره ستاسو دمال دومره لږه شان حصه فرض کړې ده چې په هیڅ شان په زړه باندې پیتې جوړیدل نه وو پکار . نو په زکوة کښې څلویښتمه حصه او د زمکې په پیداوار کښې لسمه یا شلمه حصه په سلوچیلو کښې یو چیلئ نو معلومه شوه چې الله ﷻ تاسو نه ټول مالونه نه غواړي . ځکه ستاسو فرض دی چې داخلاص د زړه سره ادا کوئی.او په دویم آیت مبارك کښې چې کوم ارشاد دې چې ﴿وَيُخْرِجْ أَضْغَانَكُمْ﴾ په دې کښې اضغان د ضغن جمع ده چې معنی ئې پټه کینه او پټ بد ګڼړل دی ، دلته هم پټ بد ګڼړل او ناخوښی که ښکاره نه کړی نو بیا هم د ادا کولو په وخت د اخوا دیخوا کولو نه دغه ناخوښی خامخا ښکاره کیږی . د ارشاد حاصل داشو چې که الله ﷻ تاسو نه ستاسو ټول مال طلب کړې

[1] تفسیر القرطبي [ ج:۱٦ص:۲۵۷]

وی نو تاسو به بخل کولو او ددغه ناخوښی د زړهٔ به مو خامخا ښکاره شوې وه بیا هم الله ﷻ چې په تاسو دمال لږه حصه خرڅ کول مقرر کړل نو هغې کښې هم تاسو شومتوب کوئی څنګه چې په راتلونکی آیت کښې ددې داسې بیان دې چې:

﴿تُدۡعَوۡنَ لِتُنفِقُواْ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ فَمِنكُم مَّن يَبۡخَلُ﴾ [تاسو ته دا بلنه درکولې شی چې دخپلو مالونو څه حصه دالله ﷻ په لار کښې خرڅ کړئی خو ځینې په دې کښې هم شومتوب کوی] ، دې پسې فرمائی چې : ﴿وَمَن يَبۡخَلۡ فَإِنَّمَا يَبۡخَلُ عَن نَّفۡسِهِۦ﴾ [څوك چې په دې کښې شومتوب کوی هغه د الله ﷻ هیڅ نقصان نه کوی بلکه په دې سره دخپل ځان نقصان کوی]. هغه داسې چې د آخرت دثواب نه بې نصیبه شی اود فرض پریخودلو وبال به ئې علاوه وی بیا ئې دا خبره ښهٔ په وضاحت سره اوفرمائیله چې: ﴿وَٱللَّهُ ٱلۡغَنِيُّ وَأَنتُمُ ٱلۡفُقَرَآءُ﴾ [الله ﷻ غنی دې او تاسو حاجتمند یئ] د الله ﷻ په لار کښې خرڅ کول پخپله خپل حاجت پوره کول دی.

﴿وَإِن تَتَوَلَّوۡاْ يَسۡتَبۡدِلۡ قَوۡمًا غَيۡرَكُمۡ ثُمَّ لَا يَكُونُوٓاْ أَمۡثَٰلَكُم﴾ دې آیت مبارك کښې دا خبره ده چې الله ﷻ د غنیانو غنی ، په دې شان سره واضح کړې شوې ده چې ستاسو دمالونو خو لا څه کوې چې ستاسو د وجود ورته هم څه ضرورت نشته دی. فرمائی چې : که تاسو ټول په حکمونو باندې عمل کول پریږدئی نو تر څو پورې چې مونږ لره دنیا او دې کښې اسلام لره باقی لرل دی نو دحق دین د حفاظت او خپلو حکمونو باندې دعمل کولو دپاره به داسې څه بل قوم پیداکړو چې ستاسو په شان به دشرعی حکمونو نه تیښته او مخ اړول به نه کوی ، بلکه زمونږ مکمله تابعداری به کوی. حسن بصری رحمه الله فرمائی چې دې نه مراد عجمی خلق دی ، او عکرمه رضی الله عنه فرمائی چې دې نه مراد فارس او روم دی ، او ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دې چې کله رسول کریم ﷺ دا آیت مبارك صحابه کرامو ته تلاوت کړو نو صحابه کرامو عرض اوکړو چې یارسول الله ﷺ ! هغه کوم قوم دې ، چې الله ﷻ دې نه کړی که مونږ ددینی حکمونو نه مخ واړو، نو هغه به زمونږ په بدل کښې زمونږ په ځائې راوستې شی اوبیا به هغوئ زمونږ په شان دحکمونو نه مخ اړول نه کوی؟ رسول کریم ﷺ په مجلس کښې موجود د سلمان فارسی رضی الله عنه په پټون لاس کیخودو او وې فرمائیل چې دې او دده قوم ، اوکه حق دین په پیرونو ستورو باندې هم وې [کوم ځائې ته چې د خلقو رسیدل ګران دی] نو د فارس خلق به هلته هم رسیدلې وو او دین بهٔ ئې حاصل کړې وې ، او په هغې به ئې عمل کړې وې. [ترمذی اوحاکم روایت کړو او دواړو ورته صحیح اووئیلو ، ابن حبان هم روایت کړو ، په حواله د مظهری]([1]).

شیخ جلال الدین سیوطی رحمه الله پخپل کتاب کښې لیکلی دی کوم چې هغوئ د امام ابوحنیفه رحمه الله په مناقبو کښې لیکلې دې ، په دې کښې فرمائیلی دی چې دې نه مراد ابوحنیفه رحمه الله او ددهٔ ملګری دی ، ولې چې د فارس په خلقو کښې هیڅ یوه ډله دعلم هغې مرتبې ته نه ده رسیدلې کومې ته چې امام ابوحنیفه رحمه الله او دهغوئ ملګری رسیدلی دی [حاشیه تفسیر مظهری]([2])

تم بحمد الله تعالى وعونه سورة محمد [صلى الله عليه وسلم] للرابع عشر من شعبان ۱۳۹۲ يوم السبت بعد العصر

---

[1]) تفسير المظهري[ج:۸ص:۴۴۷] و جامع الترمذي ، ابواب التفسير باب سورة محمد صلى الله عليه وسلم [ج:۲ ص:۱٦۱] و المستدرك للحاكم رقم الحديث:[۳٦٦۸] وصحيح ابن حبان رقم الحديث :[۷۲۴٦]

[2]) تفسير المظهري[ج:۸ص:۴۴۷]

| اياتونه | سورة الفتح مدنية وهي تسع وعشرون اٰية واربع ركوعات | ركوع ګاني |
| --- | --- | --- |
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ۲۹ | شروع كوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم كونكي دي | ۴ |

اِنَّا فَتَحْنَا | لَكَ | فَتْحًا مُّبِيْنًا ۙ | لِّيَغْفِرَ | لَكَ اللّٰهُ | مَا

بيشكه مونږه فتح دركړه | تالره | فتحه ښكاره | دپاره ددې چې معاف كړي | تاته الله | هغه |

بيشكه مونږ تاته ښكاره كاميابي دركړه | چې الله ﷻ ستا وړا ينئ

تَقَدَّمَ | مِنْ ذَنْۢبِكَ | وَمَا | تَاَخَّرَ | وَيُتِمَّ

چې مخكښې تير شوي دي | د ګناهونو ستانه | او هغه | چې روستو دي | او چې پوره كړي |

او روستنئ تولې خطا ګانې معاف كړي | ...............................او خپل نعمتونه

نِعْمَتَهٗ | عَلَيْكَ | وَيَهْدِيَكَ | صِرَاطًا مُّسْتَقِيْمًا ۙ | وَّيَنْصُرَكَ | اللّٰهُ

نعمت خپل | په تا باندې | او وښائي تاته | لاره نيغه | او امداد اوكړي ستا | الله |

په تا باندې پوره كړي | او په نيغه لارې روان كړي | ...............................او الله ﷻ درته په عزت سره

نَصْرًا | عَزِيْزًا ۝

امداد | زبردست |

كاميابي دركړي |

## آسان ترجمه قرآن

(اے پيغمبره) يقين اوكړه، چه مونږ تاته ښكاره فتح دركړې ده دې دپاره چه الله تعالىٰ ستا وړاندې روستو ټولې كوتاهۍ معاف كړي او دې دپاره چه خپل نعمت په تا باندې مكمل كړي، او تا په نيغه لار باندې روان كړي او دې دپاره چه الله تعالىٰ ستا داسې مدد اوكړي، چه په ټولو باندې غالب راشې.

## خلاصه تفسير

﴿اِنَّا﴾ [بيشكه مونږ] په دې صلح حديبيه سره ﴿فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا مُّبِيْنًا ۙ﴾ [تاته يو ښكاره فتح دركړه] يعني دصلح حديبيه نه دافائده وشوه چه دغه سبب شوديو مطلوبې فتح يعنى د فتح مكه په دې لحاظ سره داصلح فتح جوړه شوه او فتح مكه ته ئې فتح مبين خكه ووئيل چه دفتح نه مقصود په اسلامي شريعت كښې حكمراني نه ده بلكه ددين اسلامي غلبه مقصود ده او دمكې د فتح نه دامقصود ترلوئ حده پورې حاصل شو خكه چه ټول قبائل د عربوددې خبرې منتظر وو چه كه دوي ﷺ په خپل قوم غالب راغلل نو مونږ به ئې هم اطاعت وكړو هركله چه مكه فتح شوه نو دخلورو طرفونو نه د عربوقبائلو راتلل شروع شول او په خپله يا په واسطه د خپلو وفودو يې اسلام راوړل شروع شو [رواه البخاري عن عمروبن سلمة][1] چونكه داسلام د غلبې لوئ نښې دمكې دفتح نه ښكاره شوې په دې وجه يې دې ته فتح مبين وفرمائيله او صلح حديبيه ددې فتح مكې سبب او ذريعه داسې شوه چه دمكې والؤ سره به روزانه جنګونه

[1] صحيح البخاري كتاب المغازي رقم الجديث[ ۳۹۶۳]

وو ددې په وجه مسلمانانو ته دخپل قوت او سامان زياتولو مهلت او فرصت نه ملاويدو د حديبيه په واقعه کښې چه کومه صلحه وشوه نو په اطمينان سره مسلمانانو کوشش وکړو چه د هغې نه ډيرنوی خلق مسلمانان شول او دمسلمانانو جماعت زيات شو او دفتح خيبر وغيره په وجه سامان هم برابرشو او داسې شو چه په نورو خلقو ئې دباؤ پريوتو بيا دقريشو دطرف نه عهد شکنی وشوه نو دوی ﷺ دلسو زرو صحابه کرامو ﷺ سره دمقابلې دپاره لاړل د مکې خلق دومره مرعوب شول چه زيات جنګ هم ونه شو او اطاعت ئې هم قبول کړه اوکوم جنګ چه وشو هم نو دومره کم او معمولی چه داهل علمو په کښې اختلاف راغې چه مکه مکرمه په صلح سره فتح شوه اوکه په جنګ سره غرض دغه شان داصلح سبب دفتح شوه په دې وجه په مجازی طور دې صلح ته هم فتح وفرمائيله په کومه کښې چه دمکې دفتح پيشينګوئی هم ده وړاندې ددې فتح ددينی فائدو اوبرکتونو بيان دې چه دا فتح [حکه] وشوه ﴿لِيَغْفِرَ لَكَ اللَّهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِكَ وَمَا تَأَخَّرَ﴾ [چه] ددين په تبليغ او دحق دين په دعوت کښې ستا دکوششونو نيتجه داسې ظاهره شی چه خلق په کثرت سره په اسلام کښې داخل شی او په دې سره ستا اجر ډير زيات شی او ډير اجر او قرب په برکت سره [الله تعالی به ستاټول وړاند وروستو] صوری [خطاګانې معاف کړی ﴿وَيُتِمَّ نِعْمَتَهُ عَلَيْكَ﴾ او په تا] چه الله تعالی [خپل احسانات] کوی مثلا تاته ئې نبوت درکړو قرآن ئې درکړو ډير علوم ئې درکړل دډيرو اعمالو ثواب ئې درکړو د دغو احساناتو نور زيات [تکميل وکړی] داسې چه ډير خلق ستاپه لاس په اسلام کښې داخل شی چه په دې سره ستااجر اومقام دقرب نور او چت شی دادوه نعمتونه خو داخرت سره متعلق دی [او] دوه نعمتونه دنيوی دی يو داچه ﴿وَيَهْدِيَكَ صِرَاطًا مُسْتَقِيمًا﴾ [تالره] بغير د څه روك ټوك نه د دين [په نيغه لاره وچلوی] او اګر چه ستاپه صراط مستقيم باند تلل د مخکښې نه يقينی دی مګر په دې کښې دکفارو سره مزاحمت کيدو اوس دامزاحمت پاتې نه شو [او] دويم دنيوی نعمت دادې چه ﴿وَيَنْصُرَكَ اللَّهُ نَصْرًا عَزِيزًا﴾ [الله تعالی تاته داسې غلبه درکړی په کومه کښې چه سراسر عزت او عزت وی] يعنی چه ددې نه پس ته چرې په چا کمزورې نه شې چنانچه داسې وشوه چه په ټوله جزيره العرب ددوی تسلط قائم شو.

### معارف او مسائل

دجمهورو صحابه کرامو ، تابعينو ، او دتفسير د امامانو په نزد سورة فتح په کال شپږمه هجرئی کښې هغه وخت نازل شو کله چې رسول کريم ﷺ د عمرې په ارادې سره دصحابه کرامو د ډلې مکې معظمې ته تشريف راؤړو او چې دمکې مکرمې حرم ته نزدې دحديبيه په مقام ئې پړاؤ واچولو . د مکې قريشو رسول کريم ﷺ مکې معظمې ته داخليدو نه منع کړل . خو بيا هم په دې شرط ئې ورسره صلح اوکړه چې اوس واپس لاړ شئ او په راتلونکی کال کښې ددې عمرې قضاء راؤړئی . ډير صحابه کرام خاص کر عمر فاروق ﷺ پدې صحله باندې خوشحاله نه وو . خو بياهم رسول کريم ﷺ دا صلح قبوله کړه ځکه دا ورته دالله ﷻ دطرفنه حکم شوې وو . اودا اشاره رسول کريم ﷺ ته ورکړې شوې وه چې دا به ستاسو دپاره د کاميابئ يوه ذريعه وی . کله چې رسول کريم ﷺ د عمرې احرام پرانيستو او دحديبيه نه واپس روان شو نو په لاره کښې داټول سورة نازل شو چې د رسول کريم ﷺ دا ريښينې خوب به ضرور پوره کيږی . اګر چې د فتح وخت به دې نه پس وی ، په دغې بنا ئې صلح لره صلح

مبین اوبلله ولې چې په حقیقت کښې دا د فتح مکه سبب جوړ شو . عبد الله بن مسعود ﷺ او خینې نور صحابه کرام فرمائی چې تاسو فتح مکه ته فتح وائې او مونږ صلح حدیبیه ته فتح وایو او همداشان جابر ﷺ اوفرمائیل چې مونږ هم صلح حدیبیه فتح گنړو. براء بن عازب ﷺ فرمائی چې تاسو خلق خو فتح مکه ته فتح وائې ، چې بیشکه فتح ده خو مونږ دا واقعه حدیبیه په وخت بیعت رضوان ته اصلی فتح وایو چې کوم کښې رسول کریم ﷺ څوارلسو سوؤ صحابه کرامو نه د یوې ونې لاندې په جهاد کولو باندې بیعت اخستې وو([1]). لکه څنګه چې په دې سورة کښې هم ددې بیعت ذکر راغلې دې . [دابن کثیر لنډیز]([2]).

او هرکله چې معلومه شوه چې دا سورت په واقعه حدیبیه کښې نازل شوې دې او ددې واقعې ډیرې حصې پخپله په دې سورت کښې بیان شوی دی څکه دا مناسب ښکاره شو چې دا واقعه رومبې بیان کړې شی . په تفسیر ابن کثیر کښې ددې لوئې تفصیل راغلې دې خو دهغې نه زیات بیان ئې په تفسیر مظهری کښې راغلې دې چې څوارلس صفحو باندې مشتمل دې . په تفصیل او ترتیب سره د احادیثو د مستندو کتابونوحواله په کښې ورکړې شوې ده . ډیرې معجزې ، نصیحتونه ، علمی ، دینی او سیاسی فائدې اوحکمتونه په کښې په نخښه شوی دی . په دې کښې اوس دلته ددې قیصې صرف هغه برخې به اولیکلې شی چې بیان ئې پخپله په دې سورت کښې کړې شوې دې . یا چې کومو سره ددې ژور تعلق دې ، دپاره ددې چې دهغې آیتونو تفسیر باندې پوهیدل آسان شی کوم چې دې قیصې سره تعلق لری او دا ټول بیان دتفسیر مظهری نه اخستې شوې دې اوچرته چې بل تفسیر نه اخستې شوې دې هلته د هغې حواله هم ورکړې شوې ده .

**دحدیبیه واقعه ::** حدیبیه مقام د مکې مکرمې دحرم دحدودو سره بیخی نزدې دې . نن صبا ورته شمیسه وئیلې شی . چرته چې دا واقعه راپیښه شوې وه.

**اوله برخه د نبی کریم ﷺ خوب ::** ددې واقعې یوه حصه په روایت د عبد بن حمید ابن جریر اوبیهقی وغیره داده چې یو ځل مدینه منوره کښې رسول کریم ﷺ خوب اولیدو چې رسول کریم ﷺ د خپلو صحابه کرامو سره په امن امان سره مکې ته داخل شو . د احرام نه په فراغت سره خینو خلقو د قاعدې مطابق سرونه اوخرئیل . او خینو قینچی کړل . او رسول کریم ﷺ بیت الله شریف ته داخل شو او دهغې چابی مبارکه ئې تر لاسه کړه([3]). دا ددغې واقعې یوه برخه ده چې بیان ئې په دې سورت کښې راروان دې . چونکه د نبیانو ﷺ خوب یقینا وحی او رښتیا وی په دې وجه ددې صورت واقع کیدل یقینی شو خو ددې وخت نه وو خودلې شوې چې کوم کال کومه میاشت به وی او په حقیقت کښې د فتح مکه داخوب پوره کیدونې وو مګر کله چې رسول کریم ﷺ صحابه کرامو ته دا خوب بیان کړو نو د هغوئ په زړه کښې د بیت الله شریف د طواف او دې ته داخلیدو شوق نور هم زیات شو او دې دپاره ئې سمدستی تیارې کول شروع کړل . په دې شان دصحابه کرامو یوه ډله تیاره شوه . رسول کریم ﷺ هم دغه اراده

---

[1]) صحیح البخاري کتاب المغازي باب غزوة الحدیبیة [ج:۲ص:۵۹۸]
[2]) تفسیر ابن کثیر [ج: ۷ ص:۳۲۵]
[3]) دلائل النبوة للبیهقی (باختصار) رقم الحدیث [۱۵۱۲]

اوفرمائیله ځکه چې په خوب کښې ورته خاص وخت، کال یا میاشت نه وه خودلې شوې احتمال کیدې شو چې هغه هم دغه وخت وی او مقصد مو حاصل شی. [بیان القرآن په حواله د روح المعانی] ([1])

**دویمه برخه یوځائې تلو دپاره صحابه کرام اود خواوشا مسلمانان رابلل او د څینو انکار کول:** د ابن سعد رحمه الله د روایت مطابق کله چې رسول کریم ﷺ او صحابهٔ کرامو د عمرې اراده اوکړه خو دا خطره ئې کیدل چې هسې نه دمکې مکرمې قریش مود عمرې کولو نه منع نه کړی او راسره جنګ او نه کړی. ځکه د مدینې منورې خواوشا کلو ته دا بلنه ورکړې شوه چې مونږ سره دې یو ځائې عمرې ته لاړ شی، په دغه موقع ډیر کلی والو ورسره دتلو نه انکار اوکړو او وې وئیل چې محمد ﷺ او د محمد ﷺ ملګری مو د مکې قریشو سره جنګول غواړی کوم سره چې سازو سامان هم ډیر دې اوطاقت هم زیات لری، پدې وجه کیدیشی چې دغې سفرنه ژوندی واپس رانشو. [مظهری] ([2]).

**دریمه برخه مکې مکرمې ته روانیدل:** دامام بخاری رحمه الله، امام احمد رحمه الله، ابو داود رحمه الله او نسائی وغیره دروایت مطابق د روانیدو نه مخکښې رسول کریم ﷺ غسل اوفرمائیلو نوې جامې ئې واغوستې په خپله قصوی نومې اوښه باندې سوارهٔ شو، ام المؤمنین سلمه رضی الله عنها ئې هم ځان سره کړه. ورسره دمهاجرینو، انصارو او د نورو کلی والو یوهٔ لویه ډله شوې وه چې د اکثرو روایتونو تر مخه ئې شمیر څوارلس سوه بیان کړې شوې دې. او د رسول کریم ﷺ دخوب لیدو په وجه دچا هم شك نه وو چې ګنی اوس به مکه فتح نشی. حالانکه سوا د تورو نه دوئ سره بل هیڅ وسله نه وه، دوئ ټول د ذی القعدې د میاشتې په شروع کښې د پیر په ورځ روانشو. ذوالحلیفه ته په رسیدو ئې احرام اوتړلو. [مظهری په لنډیز] ([3]).

**څلورمه برخه مقابلې دپاره د اهل مکه تیارې کول:** کله چې دمکې خلق خبر شو چې رسول کریم ﷺ سره د یوې لوئې ډلې مکې ته راروان شوې دی نو دوئ راټول یو ځائې شوه اومشوره ئې اوکړه چې که په دې وخت کښې مونږ رسول کریم ﷺ مکې ته دننه پریخودل نو ټول به وائی چې رسول کریم ﷺ غالب شو او مکې مکرمې ته راورسیدل، سره ددې چې زمونږ دواړو ترمینځه ډیر جنګونه شوی دی ټولو وعده اوکړه چې رسول کریم ﷺ به مکې ته دننه نه پریږدو. نو د رسول کریم ﷺ د ایسارولو دپاره ئې یوهٔ ډله مکې نه بهر کراع الغمیم مقام ته اولیږله او ددې ډلې مشری خالد بن ولید رضی الله عنه کوله [تر دې وخته پورې لا خالد بن ولید په اسلام کښې نه وو داخل شوې]. خالد بن ولید رضی الله عنه چاپیر چل کلی هم ځان سره کړل او د طائف قبیله بنو ثقیف هم ورسره یو شوه، دوئ په بلدح مقام باندې پړاؤ واچولو. ټولو خپلو کښې دا لوظ اوکړوچې رسول کریم ﷺ به دننه مکې ته نه پریږدو. او که د جنګ ضرورت پیښ شو نو جنګ ته هم تیار یو.

---

[1]) تفسیر بیان القرآن تحت هذه الآیة [ج:۱۱ ص:۲۶] وروح المعانی(بالإختصار) [ج:۱۹ ص:۲۲۹]

[2]) تفسیر المظهری[ج:۹ص:۷]

[3]) تفسیر المظهری[ج:۹ص:۶] وطبقات الکبری لابن سعد [ج۲ ص:۹۵] وکتاب المغازی للواقدی، غزوة الحدیبیة: [ج: ۱ ص:۲۲۹]

**د خبر رسولو یوه عجیبه ساده طریقه:** دغې خلقود نبی کریم ﷺ د حالاتو نه د خبر اوسیدو دپاره دا انتظام اوکړو چې د بلدح مقام نه تر دهغه مقام پورې چې کوم ځائې ته نبی کریم ﷺ رسیدلې وو د غرونو په سرونو باندې ئې څه کسان کینولی وو چې ددوئ ټول حالاتو نه خبرشی او دې سره متصل بل غر والو ته په اوچت آواز سره او هغوی درهم غر والو ته او هغوئ څلورم غر والو ته خبر اورسوی. دغسې به په څو منټو کښې د نبی کریم د حالاتو علم بلدح ته راؤرسیدو.

**د رسول کریم ﷺ خبر رسوونکې:** رسول کریم ﷺ بشر بن سفیان ﷺ اول نه مکې مکرمې ته د خبر راؤړلو دپاره لیږلې وو. بشر بن سفیان دا ټول خبر په تفصیل سره رسول کریم ﷺ ته راؤرسولو. رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې افسوس دې پدې خبره چې قریشو ته په جنګونو کښې څومره زیانونه اوشو او بیا هم هغوئ دخپل عادت نه نه منع کیږی. دا یوه ښه موقعه وه چې څه او د عربو نور خلق ئې آزاد پریخودې وې که دا عرب په ما غالب شوی وې نو په کور کښې به ئې مراد حاصل شوې وو، اوکه چرې څه پرې غالب راغلې وې نو یا خو دوئ مسلمانان شوی وو او یا به به ئې ماسره جنګ کړې وې. او دوئ به ښه دمه پخپل ځائې وو او مونږ سفر زیلی او ستړی ستومانه وو. نه ده معلوم چې دې قریشو کښې کومه نشه ده. قسم مې په الله وی چې هم د هغه په حکم به ورسره جهاد جاری ساتم چې په کوم حکم سره زه الله ﷻ رالیږلې یم تر هغې پورې چې یوائې زما څټ مبارک پاتې شی.

**بنځه برخه د رسول کریم ﷺ داوښې مبارکې په لار کښې چوکیدل:** دې نه پس رسول کریم ﷺ صحابه کرام راجمع کړل او خطبهٔ ئې اوفرمائیله چې مونږ دپاره ددې ځائې نه د عربو خلاف جهاد شروع کول پکار دی یا مونږ به بیت الله شریف ته روان شو بیا که دوئ مونږ ایسار کړو نو ورسره به جنګ کوؤ. ابو بکر صدیق ﷺ او نورو صحابه کرامو مشوره ورکړه چې تاسود بیت الله شریف په اراده راغلی یئ د جنګ دپاره نه یئ راغلی. نو پکار ده چې هم په دې قصد باندې قائم پاتې شو. که څوک مونږ دمکې مکرمې نه ایساروی نو ورسره به جنګ کوؤ. دې نه پس مقداد بن اسود ﷺ راپورته شو او عرض ئې اوکړو چې:

یارسول الله ﷺ! مونږ بنی اسرائیل پشان نه یو چې درته به داسې وایو چې ﴿فَاذْهَبْ اَنْتَ وَرَبُّكَ فَقَاتِلَا﴾ [تاسو او ستاسو رب دې لاړشی او جنګ اوکړی مونږ خو به دلته ناست یو]. بلکه په هر حال کښې به مونږ ستاسو په حکم جنګ کوؤ.

رسول کریم ﷺ ددې په آوریدو اوفرمائیل چې ښه ده نو دا الله ﷻ په نوم اوس مکې مکرمې ته روان شئ، کله چې رسول کریم ﷺ مکې ته نزدې شو او خالدبن ولید ﷺ رسول کریم ﷺ اولیدو چې مکې ته روان دی نو دخپل لښکر صفونه ئې قبلې طرفته مضبوط کړل او وې درول. رسول کریم ﷺ عباد بن بشر ﷺ د فوج د یو حصې امیر جوړ کړو او ورمخکښې ئې کړو، هغوئ د خالد بن ولید ﷺ د لښکر په مقابله کښې صفونه جوړ کړل، دې حالت کښې د ماسپخین دمونځ وخت شو، بلال ﷺ اذان اوکړو او رسول کریم ﷺ دجمعې مونځ ورکړو خالد بن ولید ﷺ او دهغه ملګرو ورته کتل، دې نه پس خالد بن ولید اووئیل چې زمونږ نه دیره ښه موقعه ضائع شوه. که مونږ په دوئ د مونځ په وخت کښې حمله کړې وې نو دیره به ښه وه. اوس خیر دې پسې د بل مونځ وخت نزدې دې په هغې کښې به داسې اوکړو. دغه وخت حضرت جبرائیل ﷺ د صلوٰة خوف حکم راؤړو. او رسول کریم ﷺ ئې دکفارو د ارادې نه خبر

کړو . نو رسول کریم ﷺ دغه مونځ کښې صحابه کرام دوه ډلې کړل څنګه چې طریقه ده نو پدې شان د کافرانو دشر نه محفوظ پاتې شول.

**شیرمه برخه حدیبیه کښې یوه معجزه** :: کله چې رسول کریم ﷺ د حدیبیه مقام ته نزدې شو نو د رسول کریم ﷺ د اوښې مخکښې خپه اوخوځیده او چو شوه. د صحابه کرامو په پاسولو هم نه پاسیدله. خلقو اووئیل چې قصوی ورانې کوی. رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې د قصوی قصور نه دې ، ددې دا عادت نه دې ، بلکه دا خو هغه ذات ایساره کړه کوم ذات چې اصحاب فیل ایسار کړی وو. [غالبا دغه وخت به رسول کریم ﷺ ته دا اندازه شوی وی چې دا هغه موقع نه ده کومه چې رسول کریم ﷺ ته په خوب کښې خودلې شوې وه ، رسول کریم ﷺ ددې په لیدو اوفرمائیل چې :
قسم مې دې په هغه ذات وی چې د چا په لاس کښې د محمد ﷺ ساه ده ، نن ورځ چې قریش داسې کومه خبره ماته کوی په کومه کښې چې د شعائر الله تعظیم وی نو هغه به ضرور منم.
بیا رسول کریم ﷺ په اوښه باندې سواره شو او په اوښه باندې ئې آواز اوکړو نو هغه پورته شوه. رسول کریم ﷺ خالد بن ولید رضی الله عنه ته مخامخ ځائې بل اړخ ته پړاؤ واچولو ، دې ځائې کښې اوبه هم ډیرې کمې وې. د اوبو په ځایونو خالد بن ولید رضی الله عنه او د بلدح خلقو قبضه کړې وه. دلته د رسول کریم ﷺ یوه معجزه دا اوشوه چې یو شاړ کوهې کښې چې اوبه په کښې د نیشت برابر وې ، رسول کریم ﷺ خپله خوله مبارکه کنګاله کړه او په هغې کښې د خپل ورکړې غشی ښخولو حکم اوکړو ، په دې عمل سره د کوهې اوبه دومره ډیرې شوې چې د کوهې غاړې ته پورته راؤختلې. صحابه کرامو ترې په خپلو لوښو کښې اوبه راواخستې او ښه اوبه شو.

**دمکې خلقو سره د وفدونو په ذریعه خبرې اترې شول** :: په دې شان ټول صحابه کرام ښه په تسلئ سره دغلته قیام پذیر شو. اود مکې خلقو سره د وفدونو په ذریعه خبرې اترې شروع شوې. اول بدیل بن ورقاء [چې دې روستو بیا اسلام کښې داخل شوې وو] خپل ملګرو سره حاضر شو او د خیرخواهئ په انداز کښې ئې عرض اوکړو چې دمکې قریش ښه په جوبن یعنی قوت کښې مقابلې د پاره راوتلی دی او د اوبو په ځایونو ئې قبضه کړې ده. دوئ تاسو هیچرې مکې ته نه پریږدی. رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې مونږ چا سره د جنګ کولو د پاره نه یو راغلی البته که څوك مونږ د عمرې کولو نه منع کوی نو مونږ ورسره جنګ کوؤ. بیا ئې هغه خبره دوباره کړه کومه چې ئې بشر رضی الله عنه ته داسې کړې وه چې :
قریش ګڼرو جنګونو کمزوری کړی دی که هغوئ غواړی نو مونږ سره دې تر یوې مقررې مودې پورې صلح اوکړی چې په بې فکرئ سره خپلې تیارئ کښې لګیا شی او مونږ پاتې عربو سره لګیا کیدو ته پریږدی. که هغوئ په مونږ غالب شو نو ددوئ به بې ډزه بې ډوزه مراد تر سره شی. او که مونږ غالب شو او هغوئ په اسلام کښې داخل شو نو دوئ ته به هم اختیار وی که اسلام کښې داخلیږی او که زمونږ خلاف جنګ کوی. په دغه موده کښې به دوئ خپل طاقت زیات کړی. او که قریش ددې خبرې نه روستو شو نو په الله مې دې قسم وی چې مونږ به تر هغې پورې دوئ سره جهاد کوؤ تر څو چې صرف زما ګردن پاتې شی.

بديل چې دا واؤريدل نو قريشي سردارانو اووئيل زه ته ددې خبرې آورولو دپاره واپس ځم. هلته چې اورسيدو نو څينې خلقو دهغه خبرې ته غوږ نيول نه غوښتل او د جنګ جنګ چغې ئې وهلې. بيا ورته څه خلقو اووئيل چې خبره خو واؤرئې. دا ويونکې د خپل قوم سردار عروه بن مسعود رضي الله عنه وو. ددې خبرې آؤريدو نه پس دغې سردار قريشي سردارانو ته اووئيل چې د محمد ﷺ خبره صحيح ده. دا اومنئ او ماته ورسره د خبرو كولو اجازت راكړئې. نو عروه بن مسعود په دويم ځل خبرو دپاره د رسول كريم ﷺ خدمت كښې حاضر شو او وې وئيل چې كه تاسود خپل قوم قريشو بيخ اوباسئ نو دا ګنې څه ښه خبره ده؟ تاسو چرته په دنيا كښې دا آؤريدلې دي چې څوك خپل قوم دخپله لاسه هلاكوى. بيا يې صحابه كرامو سره هم دغه شان نرمې اترې خبرې كولې په دې حالت كښې عروه او صحابه كرامو حالات په نظر كښې ساتله چې كه رسول كريم ﷺ به خپل بلغم يا توكانړې مبارك تو كړو نو هغه به هم صحابه كرامو راپورته كولې او پخپلو مخونو بۀ ئې مخلې. د رسول كريم ﷺ د اودس اوبه به ئې هم په خپلو مخونو مرلو دپاره يو بل نه وړاندې كيدل. د رسول كريم ﷺ د خبرو كولو په وخت به تول غلې او آوازونه بۀ ئې ښكته وو. كله چې هغه قريشو ته واپس شو نو قريشو ته ئې اووئيل چې زۀ لويو لويو بادشاهانو، قيصر، كسرى او نجاشى دربارونو كښې حاضر شوې يم، خو ما هيڅ قوم په خپل بادشاه باندې دومره ځان قربانونكې نه دې ليدلې لكه څومره چې په رسول كريم ﷺ صحابه كرام رضي الله عنهم ځانونه قربانوى. او د رسول كريم ﷺ خبره هم صحيح ده. زما مشوره داده چې تاسو د رسول كريم ﷺ خبره اومنئ. خوخلقو اووئيل چې مونږ ئې دا خبره نه منو البته دا وايو چې دوئ دې سخ كال لاړ شي او بيا دې بل كال ته راشي. كله چې د عروه خبره او نه منلې شوه نو هغه خپله ډله واپس ځان سره بوتله. دې نه پس يو صاحب جليس بن علقمه چې د اعرابو سردار وو، هغه په خدمت اقدس كښې حاضر شو او صحابه كرام رضي الله عنهم ئې اوليدل چې د احرام په حالت كښې دي او ځاروى ورسره دى.

دې چې كله واپس شو نو دۀ هم خپل قوم پوهه كړو چې دا خلق صرف د بيت الله شريف د عمرې كولو دپاره راغلي دي، ددوئ ايسارول صحيح نه دى. خو خلقو ددۀ خبره هم قبوله نه كړه، نو دۀ هم خپله ډله ځان سره واپس كړه. بيا څلورم كس د رسول كريم ﷺ خدمت كښې حاضر شونو رسول كريم ﷺ د هغه په وړاندې هم هغه خبره پيش كړه كومه چې يې دې نه مخكښې د بديل او عروه بن مسعود په وړاندې پيش كړې وه. هغه هم قريشو ته دا جواب اورسولو.

**امه برخه د عثمان رضي الله عنه دمكې خلقو ته د پيغام دپاره ليږل** :: امام بيهقى رحمه الله د عمر فاروق رضي الله عنه نه روايت كړې دې چې كله رسول كريم ﷺ په حديبيه كښې قيام اختيار كړو نو قريش په ويره كښې شو په دې وجه هغوئ ﷺ دا اراده اوكړه چې قريشو ته په دې غرض خپل څوك استاذې اوليږى چې مونږ جنګ دپاره نه بلكه عمرې دپاره راغلي يو، زمونږ لاړ مه بندوئ، دې كار دپاره يې عمر فاروق رضي الله عنه نه اوفرمائيل نو هغوئ رضي الله عنه عرض اوكړو چې دا قريش زما سخت دښمنان دى ځكه چې هغوئ ته زما د دښمنئ اوسختئ حال معلوم دې او په مكه مكرمه كښې زما د قبيلې داسې څوك نشته دې چې مرسته مې اوكړى. ځكه زه ستاسو په وړاندې د يو داسې كس نوم پيش كوم چې كوم په مكه مكرمه كښې د خپلې قبيلې په وجه خاص طاقت او عزت لرى يعنى عثمان بن عفان رضي الله عنه. رسول كريم ﷺ عثمان بن عفان رضي الله عنه

ته ددې کار د کولو حکم اوکړو. او دائې ورته هم اووئیل چې هغه کمزورو مسلمانانو ته دې ورشي کومو چې د هجرت کولو طاقت نه لرلو او په په مشکلاتو کښې راګیر دی نو هغوئ ته دې تسلي ورکړي. او ورته دې اووائې چې هغوئ دې پریشانه کیږي نه ان شاء الله ډیر زر مکه مکرمه فتح کیدونکې ده. ددوئ مشکلات به ډیر زیر ختم شي. عثمان ﷺ اول هغه خلقو ته ورغلو چې کوم د بلدح په مقام د رسول کریم ﷺ د ایسارولو دپاره راجمع شوی وو. هلته ئې هغوئ ته هم هغه خبره اوکړه کومه چې رسول کریم ﷺ بدیل او عروه بن مسعود ته کړې وه. دې خلقو ورته اووئیل چې مونږ ستا خبره واؤریده، ته خپل پیغمبر ﷺ ته اووایه چې دا خبره به هیڅکله نه کیږي.

ددې خبرې آوریدو سره عثمان ﷺ مکې ته داخل شو. ابان بن سعید [چې روستو مسلمان شوې وو] سره ئې ملاقات اوکړو هغه ورته ډیر د زړه د کومې هر کلې اووئیلو. عثمان ﷺ ئې خپله پناه کښې واخستو او ورته ئې اووئیل چې مکه کښې هر چرته د پیغام رسولو دپاره ته تلې شې. ته بالکل هیڅ فکر مه کوه. بیا ئې په خپل آس باندې سور کړو او مکه مکرمه کښې ئې داخل شو. ددهٔ قبیله بنو سعد په مکه معظمه کښې ډیره د عزت والا وه. تر دې چې عثمان ﷺ مکه معظمه کښې د یویو قریشي سردار در ته ورغلو اود رسول کریم ﷺ پیغام ئې ورته اورسولو چې مونږ چا سره جنګ نه کوؤ بلکه عمرې کولو نه پس به واپس شو. البته که څوك زمونږ لار نیسي نو ورسره به جنګ کوؤ. او قریش پخپله هم دجنګونو نه ستړي شوی دی. دوئ دپاره مناسب داده چې مونږ او نور عرب پریږدی، قریش دې زمونږ مقابلې ته نه راځی. بیا دې ګوري که عرب په مونږ باندې غالب راغلل نو ددوئ مراد به پوره شي، او که مونږ غالب شو نو بیا هم ددوئ خوښه ده که مونږ سره جنګ کوی او که اسلام قبلوی. او ددوئ طاقت به په دغه وخت کښې زیات شوې وی. خو هغوئ ټولو د عثمان ﷺ خبره رد کړه. بیا عثمان ﷺ ضعیفانو مسلمانانو سره ملاقات اوکړو. هغوئ ته ئې د رسول کریم ﷺ پیغام اورسولو، هغوئ په دې ډیر خوشحاله شو او رسول کریم ﷺ ته ئې سلام اولیږلو. کله چې عثمان ﷺ د رسول کریم ﷺ دپیغامونو رسولو نه فارغ شو نو د مکې خلقو ورته اووئیل که تاسو غواړئ نو طواف کولې شئ. عثمان ﷺ ورته اوفرمائیل چې زهٔ به تر ې هغې پورې طواف او نه کړم تر څو چې رسول کریم ﷺ طواف نه وی کړې. عثمان غنی ﷺ په مکه معظمه کښې درې شپې پاتې شو چې د قریشو سرداران ئې د رسول کریم ﷺ خبرې منلو ته رابلل(۱).

**نهمه برخه د مکې خلقو اود مسلمانانو لرمینځه تاؤ تریخوالې او داهل مکه و نه د اوبا تنو ګرفتاری**:: دې دوران کښې قریشو خپل پنځوس سړی په دې کار اولګول چې رسول کریم ﷺ ته نزدې شی، او چې کله دوئ موقع اوموندله نو معاذالله رسول کریم ﷺ دې شهید کړی. داخلق په دې کوشش کښې وو چې درسول کریم ﷺ په حفاظت اونګرانی باندې مامور وو محمد بن مسلمه ﷺ ددې خلقو په کړو وړو پوهه شو نو دغه ټول لښکر ئې ګرفتار کړو او د رسول کریم ﷺ خدمت کښې یې پیش کړل. بل طرفته عثمان ﷺ مکه معظمه کښې وو او ورسره لس کسان مسلمانان نور هم مکه معظمه کښې رسیدلی وو. هر کله چې قریش د خپلو کسانو

---

(۱) دلائل النبوة للبيهقي رقم الحديث :[۱۴٦۷]

ګرفتارئ نه خبر شو نو عثمان رضي الله عنه او دوئ سره نور کسان ئې ايسار کړل. او د قريشو يو ډله د مسلمانانو لښکر طرفته راغله او دوئ په مسلمانانو باندې کاڼې او غشي ورول. په دې کښې يو صحابى ابن زنيم رضي الله عنه شهيد شو او مسلمانانو ددې قريشو لس واړه سوارهٔ ګرفتار کړل. او رسول کريم ﷺ ته چا دا خبر اورسولو چې عثمان رضي الله عنه شهيد کړې شو.

**لسمه برخه دبيعت رضوان واقعه**: رسول کريم ﷺ ددې خبرې په آورېدو باندې صحابه کرام رضي الله عنهم د يوې ونې لاندې راجمع کړل چې ټول جمع شي او د رسول کريم ﷺ په لاس مبارک باندې دجهاد کولو بيعت اوکړئ، ټولو صحابه کرامو رضي الله عنهم د رسول کريم ﷺ په لاس بيعت اوکړو چې بيان ئې په دې سورة کښې را روان دې. احاديثو صحيحو کښې ددې خلقولويه بهترئ بيان کړې شوې ده کوم چې په دغې بيعت کښې شريك وو. او عثمان رضي الله عنه چونکه ددوئ ﷺ په حکم سره مکه معظمه رسول کريم ﷺ خپل يو لاس مبارك په لاس مبارك ووهلو او وې فرمائيل چې دا د عثمان بيعت دې(۱)، دا خصوصى فضيلت د عثمان رضي الله عنه وو چې رسول کريم ﷺ هم خپل لاس مبارك د عثمان رضي الله عنه لاس ګرځولو سره دهغه دطرفنه يې بيعت اوکړو.

**يوولسمه برخه دحديبيه واقعه**: بل طرفته د مکې مکرمې خلقو باندې الله ﷻ د مسلمانانو رعب راوستو او پخپله صلح ته تيار شو. دوئ خپل درې کسان سهيل بن عمرو، حويطب بن عبدالعزى او مکرز بن حفص د عذر معذرت دپاره رسول کريم ﷺ ته اوليږل [په هغوئ کښې اولنى دوه وروسته مسلمانان شول] سهيل بن عمر چې راغلو نو وې وئيل يارسول الله ﷺ! تاسو ته چې د عثمان رضي الله عنه د شهادت کوم خبر رارسيدلې دې نو هغه بالکل غلط دې. مونږ تاسو هغوئ رضي الله عنهم راليږو تاسو زمونږ قيديان پرېږدئى. رسول کريم ﷺ دغه قيديان آزاد کړل. مسند احمد او مسلم کښې د انس رضي الله عنه نه روايت دې چې په دې سورة کښې چې کوم آيت مبارك ﴿هُوَ الَّذِي كَفَّ أَيْدِيَهُمْ عَنكُمْ﴾(۲) راروان دې هغه دې واقعې سره تعلق لرى. بيا سهيل او ملګرو ئې په بيعت رضوان کښې د صحابه کرامو رضي الله عنهم د جلتئ او ځان قربانولو ننداره د قريشو په وړاندې بيان کړه، نو قريشو کښې چې کوم د رائې خاوندان وو هغوئ خپل مينځ کښې اووئيل چې ددې نه زياته غوره خبره بله نشته دې چې مونږ محمد ﷺ سره په دې خبره صلح اوکړو چې هغوئ دې دا کال واپس لاړشي ځکه چې دا خبره په ټولو عربو کښې خوره نشي چې مونږ دوئ ايسارول غوښتل خو دوئ به زبردستئ مکه مکرمه کښې داخل شو. او راتلونکى کال کښې دې عمرې دپاره راشي او صرف درې ورځې به په مکه مکرمه کښې پاتې کيږي، او په دې دوران کښې دې د قربانئ خپل ځاروى ذبح کړى او احرام دې پرانيزى. هم دغه سهيل بن عمرو دا پيغام رسول کريم ﷺ ته راؤړو. کله چې رسول کريم ﷺ هغه اوليدو نو رسول کريم ﷺ اوفرمائيل چې اوس معلوميږى چې دې قوم د صلح کولو اراده کړې ده چې سهيل ئې دوباره راؤليږلو. رسول کريم ﷺ پرلت وهلى ناست وو او په صحابه کرامو رضي الله عنهم کښې عباد بن بشر رضي الله عنه او سلمه وسله په لاس د رسول کريم ﷺ خوا کښې دحفاظت دپاره اودريدل.

(۱) دلائل النبوة للبيهقي رقم الحديث :[۱۴۶۸]

(۲) صحيح مسلم كتاب الجهاد، باب قول الله تعالى وهو الذى كف ايديهم عنكم [ج:۲ص:۱۱۶] و مسند احمد رقم الحديث:[۱۲۲۲۷]

سهيل راغلو او د رسول كريم ﷺ مخكښې په ادب سره كيناستو او د قريشو پيغام ئې ورته اورسولو. صحابه كرام ﷺ عموما په دې باندې راضى نه وو چې په دې وخت كښې د عمرې كولو نه بغير د احرام پرانيځى ، هغوئ ﷺ سهيل سره سختې خبرې اوكړې ، آوازونه ئې پورته كيدل ، عباد بن بشر ﷺ سهيل ته اووئيل چې د رسول كريم ﷺ په وړاندې آواز مه پورته كوه. طويل بحث نه پس رسول كريم ﷺ دا شرط قبول كړو او په صلح كولو راضى شو. سهيل اووئيل چې راكړئ چې مونږ ستاسو او خپل مينځ كښې صلحنامه اوليكو. رسول كريم ﷺ على ﷺ رابللو او ورته ئې اووئيل چې ليكه :

﴿بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ﴾ ، سهيل هم ددې ځائې نه بحث شروع كړو او وې وئيل چې زمونږ په محاورو كښې د رحمٰن او رحيم الفاظ نشته دې ، ځكه دلته د تاسو هغه الفاظ اوليكئ كوم به چې مونږ وړاندې ليكل يعنى ﴿بِاسْمِكَ اللّٰهُمَّ﴾ رسول كريم ﷺ دا هم اومنل او على ﷺ ته ئې اوفرمائيل چې هم داسې اوليكه. دې نه پس ئې على ﷺ ته اوفرمائيل چې دا اوليكه : دا لوظ نامه ده چې فيصله ئې محمدرسول الله ﷺ كړې ده. سهيل دې ځائې كښې هم ضد اوكړو او وې وئيل چې كه مونږ تاسو رسول منلې نو تاسو به مو ولې د بيت الله نه منع كولې. صلحنامه كښې داسې يو لفظ ليكل نه دې پكار چې د يو فريق د عقيدې نه خلاف وى. تاسو صرف محمد بن عبدالله اوليكئ. رسول كريم ﷺ دا هم اومنل او على ﷺ ته اوفرمائيل چې دغه ليكلى وران كړه او محمد بن عبدالله اوليكه. سره ددې چې على ﷺ سراسرى حكم منوونكې وو ، عرض يې اوكړو چې زه ستاسو نوم مبارك نشم ورانولې. په موجوده صحابه كرامو ﷺ كښې اسيد بن حضير ﷺ او سعد بن عباده ﷺ د على ﷺ لاس اونيولو چې دا مه ورانوئى او سوا د محمدرسول الله ﷺ نه بل څه مه ليكئ ، كه دا خلق نه منى نو زمونږ او ددوئ ترمينځه به توره فيصله كوى. او څۀ آوازونه دهر طرفنه راپورته شول. نو رسول كريم ﷺ د صلحنامه كاغذ په خپل لاس مبارك كښې واخستو او پخپله ئې اوليكل چې :

هذا ما قاضى محمد بن عبد الله وسهيل بن عمرو اصلحا على وضع الحرب على الناس عشر سنين يأمن فيه الناس ويكف بعضهم عن بعض

[دا هغه فيصله ده چې محمد بن عبدالله او سهيل بن عمرو لسو كالو دپاره دجنګ نه كولو په غرض كړې ده چې په كښې تول خلق به په امن پاتې كيږى ، په يو بل باندې د چپاؤ كولو او جنګ نه كولو نه ځان ساتى][1].

حالانكه رسول كريم ﷺ ددې نه مخكښې هيچرې ليكل نه وو كړى ولې چې چا نه ئې ليك لوست نه وو زده كړې.

بيا رسول كريم ﷺ اوفرمائيل چې زمونږ يو شرط دادې چې دا وخت دې مونږ د طواف كولو نه بند نه كړې شو. سهيل اووئيل چې په الله مې دې قسم وى دا نشى كيدې. رسول كريم ﷺ داهم اومنل. دې نه پس سهيل خپل يو شرط بل اوليكلو كه چرې تاسو ته د مكې يو كس درشى اود خپل مشر نه ئې اجازت نه وى اخستې نو تاسو به هغه مونږ ته واپس كوئى اګر چې هغه ستاسو په دين باندې وى. په دې عامو صحابه كرامو ﷺ آوازونه پورته كړل چې سبحان

---

[1] ) تفسير المظهري تحت هذه الآية [ج:۹ص:۱۵] و طبقات الكبرى لابن سعد ، غزوة رسول الله ﷺ الحديبية [ج: ۲ ص:۹۷]

الله ، دا څنګه کیدیشي چې مونږ دې خپل مسلمان رور مشرکانو ته حواله کړو، خو رسول کریم ﷺ دا هم اومنل او وې فرمائیل که زمونږ څوك سړې دوئ ته ورغلو نو الله ﷻ هغه زمونږ نه لرې کړو ، ولې ئې مونږ فکر اوکړو. او که د دوئ نه څوك سړې مونږ ته راغلو اومونږ واپس نو الله ﷻ به هغه ته لاس آسانه کړي.

براء ؓ ددې صلحنامې درې شرائط بیان کړي دی . یو دا که ددوئ نه څوك سړې مونږ ته راغلو نو مونږ به ئې واپس کوؤ. دویم دا که زمونږ یو سړې دوئ ته ورغلو نو دوئ به ئې نه واپس کوی. دریم دا چې راتلونکی کال به عمرې دپاره راځو او مکه مکرمه کښې به درې ورځې قیام کوؤ. زیاته وسله به څان سره نه راوړو. او په آخر کښې دا اولیکلې شو چې دا لوظ نامه د مکې دخلقو او د رسول کریم ﷺ تر مینځه یو محفوظ لاس لیك دی چې هیڅوك به ئې خلاف نه کوی.او نور ټول عرب آزاد دی، څوك چې غواړی نو د محمد ﷺ په لوظ کښې دې داخل شی او څوك نو د قریشو په لوظ کښې دې داخل شی. ددې په آوریدو د خزاعه قبیلې خلق ډیر خوشحاله شو او وې وئیل چې مونږ د محمد ﷺ په لوظ کښې داخل یو او بنوبکر اووئیل چې مونږ د قریشو په لوظ کښې شامل یو.

**په دې صلحنامه د عامو صحابه کرامو ؓ خفګان کول:** کله چې د صلحنامې دغه شرطونه اومنلې شو نو عمر فاروق ؓ صبر نشو او رسول کریم ﷺ ته ئې اوفرمائیل چې ولې تاسو ﷺ په حقه نبی نه یئ څه؟ رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې ولې نه ! بیا عمر فاروق ؓ اوفرمائیل چې مونږ په حقه او دا خلق په باطل نه دي څه؟ رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې ولې نه! بیا عمر فاروق ؓ عرض اوکړو چې آیا زمونږ وژلې شوی کسان به جنت ته او ددوئ وژلې شوی کسان به جهنم ته نه ځی څۀ؟ رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې ولې نه ! بیا عمر فاروق ؓ عرض اوکړو چې بیا دې مونږ ولې دا ذلت قبول کړو چې د عمرې کولو نه بغیر دې واپس لاړ شو تر څو چې په جنګ کولو سره الله ﷻ څه فیصله اونه کړی. رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې زه دالله ﷻ بنده او د هغه رسول یم ، هیچرې به د الله ﷻ د حکم نه خلاف اونه کړم ، او الله ﷻ به مې نه ضائع کوی ، هغه زما مددګار دی.

عمر فاروق ؓ عرض اوکړو چې یارسول الله ﷺ !آیا تاسو مونږ ته دا نه وو وئیلی چې مونږ به بیت الله شریف ته داخلیږو او طواف به کوؤ؟ غواړی

هغوئ اوفرمائیل چې بیشکه وئیلی مو وو خو آیا دا مې هم وئیلی وو چې دا کار به په دې کال کښې وی؟ عمر فاروق ؓ اوفرمائیل چې تاسو ﷺ خو داسې نه وو وئیلی. نو رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې دا واقعه څنګه چې ما وئیلې وه هغه به خامخا کیږی ، چې تاسو به بیت الله شریف ته ځئ او طواف به کوئی.

عمر فاروق ؓ خاموش شو خو غصه یئ لا په زړه کښې پاتې شوه . د رسول کریم ﷺ د خوا نه پورته شواو د سیدنا ابوبکر صدیق ؓ خدمت کښې حاضر شو او خپلې دغه خبرې یئ بیا هغوئ ؓ سره اوکړې. سیدنا ابوبکر صدیق ؓ ورته اوفرمائیل چې دالله بنده ! محمد ﷺ د الله ﷻ پیغمبر دې ، رسول کریم ﷺ به دالله ﷻ د حکم هیڅکله هم خلاف نه کوی. الله ﷻ د دوئ مددګار دې. نو په دې وجه تر مرګه پورې د محمد ﷺ رسۍ کلکه نیسئ. په الله ﷻ مې دې قسم دې چې رسول کریم ﷺ په حقه دې. غرض دا چې فاروق اعظم ؓ د صلحنامې په

دې شرطونو باندې ډير خفه وو ، دوئ ﷺ اوفرمائيل چې کله نه زه مسلمان شوې يم سوا ددې واقعې نه زما په بل څه شك نه دې راغلې(١) .
ابوعبيده ﷺ پوهه کړو او ورته ئې اوفرمائيل چې دشيطان د شرنه پناه غواړه. عمرفاروق ﷺ هم اوفرمائيل چې زه هم د شيطان د شر نه دالله ﷻ پناه غواړم. عمر فاروق ﷺ فرمائي چې کله ما خپله غلطي محسوسه کړه نو ما مسلسل خير خيرات کولو ، روژې به مې نيولې ، غلامان به مې آزادول چې دا خطا مې معاف شي.

**بوه بله پيښه او دلوظنامې په پابندئ کښې د رسول کريم ﷺ بې مثله عمل ::** کله چې د صلحنامې دا شرطونه اوليکلې شو نو هم په دغې وخت کښې د سهيل بن عمرو ځوئې ابوجندل ځان په څه طريقه رسول کريم ﷺ ته راؤرسولو او پناه ئې ترې اوغوښتله. ځکه چې هغه دمسلمانيدو په سزا کښې هم دغې پلار يعنې سهيل قيد کړې وو. او سخت تکليفونه به ئې ورته رسول. په دغه وخت کښې څه مسلمانان ور وړاندې شو اوهغه ئې په پخپله پناه کښې واخستو. دغه وخت سهيل په چغه اووئيل چې دا د لوظنامې اوله خلاف ورزی ده که دې واپس نه کړې شو نو زۀ به دصلح هيڅ شرط نه منم. رسول کريم ﷺ د لوظنامې پابند شوې وو ځکه ئې ابو جندل ته اوفرمائيل چې ائې ابو جندل ! ته يو څو ورځې نور هم صبراوکړه ، الله ﷻ تا دپاره او دهغې مسلمانانو ضعيفانو دپاره چې په مکه مکرمه کښې بند دی د زر خلاصئ اوفراخئ انتظام کوؤنکې دې. مسلمانان اول نه هم په دې صلحنامه باندې خفه وو او په دې سره نور هم خفه شو. هغوئ ﷺ خو په دې يقين راغلی وو چې هم دا ځل به مکه معظمه فتح کيږی. کله چې ئې داسې حالات اوکتل نو نور هم ډير خفه شو. او د خفګان د لاسه هلاکيدو ته نزدې شوی وو خود صلح لوظنامه مکمله شوې وه. په دې صلحنامه باندې د مسلمانانو دطرفنه ابوبکر صديق ﷺ ، عمر فاروق ﷺ ، عبدالرحمان بن عوف ﷺ ، عبدالله بن سهيل بن عمر ﷺ ، سعد بن ابی وقاص ﷺ ، محمد بن مسلمه ﷺ او علی بن ابی طالب ﷺ وغيره د ستخطونه کړی وو او داشان دمشرکانو د طرفنه سهيل سره د نوروخلقو هم دستخطونه اوشو.

**احرام پرانيستل او د قربانئ څاروی ذبح کول ::** کله چې دصلحنامې ليکل مکمل شو نو رسول کريم ﷺ اوفرمائيل چې د صلحې د قرارداد مطابق اوس مونږ له واپس تلل پکار دی. ټول خلق دې د قربانئ راوستی څاروی ذبح کړی او په سر خرئيلو سره دې خپل احرامونه پرانيزی. صحابه کرام ﷺ د ډير غم په وجه دخپلو ځايونو نه پورته نشو. رسول کريم ﷺ په دې ډير زيات خفه شو ، دام المؤمنين ام سلمه ﷺ خواته ورغلل او خپل خفګان ئې ورته ښکاره کړو. هغې ﷺ ورته ډيره ښکلې او مناسبه خبره اوکړه . وې فرمائيل چې تاسو ﷺ دې وخت صحابه کرامو ﷺ ته هيڅ ما وائې ځکه چې صحابه کرام ﷺ ډير خفه دی . ښه به داوی چې تاسو ټولو ته مخ کړئی او په نائی باندې خپل سر مبارك اوخرئی ، احرام پرانيزئ او خپله قربانئ اوکړئ. نو داسې کولو سره ټول صحابه کرام ﷺ پورته شو او هم داسې ئې اوکړل.

د ځينو روايتونو مطابق رسول کريم ﷺ په حديبيه کښې نورلس [١٩] او د ځينو

---

١) تفسير الطبري تحت هذه الآية [ج:٢٢ ص:٢٤٦]عبدالرزاق [ج: ٥ص:٣٣٩] و المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث:[١٦٤٤٥]

روايتونو مطابق شل [ ۲۰ ] ورځې قيام کړې وو. اوس د دغې ځائې نه واپس شروع اوشوه ، اول ددغې ځائې نه مرالظهران ، بيا عسفان ته اورسيدل. دې ځائې ته چې راؤرسيدل نو د ټولو مسلمانانو سره د سفر خرچه ختمه شوې وه او د خوراك سامان ورسره ډير لږ پاتې شوې وو. رسول كريم ﷺ يو دسترخوان خور کړو او وې فرمائيل چې چا سره څه وى نو هغه دې په دې کښې جمع کړى . په دې شان سره هر يو خپل ځان سره پاتې سامان په دسترخوان باندې کيخودو . رسول كريم ﷺ دعا اوفرمائيله اوټولو ته ئې د خوراك کولو حكم اوکړو. د صحابه كرام ﷺ بيان دې چې څوارلس سوؤ کسانو خوراك اوکړو، بيا ئې خپلو لوښو کښې هم واچولو او بيا هم پاتې شو. په دې مقام دا بله معجزه ښكاره شوه. رسول كريم ﷺ ددې په ليدو ډير خوشحاله شو .

**د صحابه کرامو دايمان او د رسول کريم ﷺ د تابعدارئى يو بل امتحان او ددوئ بې مثله ايمانى جذبه ::** څنګه چې مخکښې تير شو چې صحابه كرام ﷺ د صلح په شرطونو او په جنګ نه کولو او بې عمرې واپس کيدو باندې سخت خفه وو. دا هم د صحابه کرامو ﷺ ايمان وو چې په دغې حالتونو کښې په ايمان او د رسول كريم ﷺ په تابعدارئى باندې کلك ولاړ وو. واپسئ کښې کله چې رسول كريم ﷺ كراع عميم مقام ته اورسيدل نو دا سورة فتح پرې نازل شو. کله چې رسول كريم ﷺ صحابه کرامو ﷺ ته واؤرولو نو دهغوئ يقين راغلو چې فتح مبين حاصله شوېده . په دې مقام عمر فاروق ﷺ بيا سوال پورته کړو چې آيا دا فتح ده ؟ رسول كريم ﷺ صحابه کرامو ته ﷺ اوفرمائيل چې په الله ﷻ مې دې قسم وى چې د هغه په قبضه کښې زما ساه ده چې دا فتح مبين ده . صحابه کرامو ﷺ دې ته هم غاړه کيخوده او دا يقين ئې راغلو چې دا فتح مبين ده .

**د صلح حديبيه د نتيجو او برکتونو څرګندېدل ::** د ټولو نه اول خبره خو په دې واقعه کښې دااوشوه چې د مکې قريشو او ددوئ ډيرو ملګرو ته ددوئ د بې ځايه ضد څرګند شو او پخپله په کښې اختلاف راپيدا شو. بديل سره د خپلو ملګرو د ابن ورقاء نه بيل شو . بيا عروه بن مسعود دخپلو ملګرو سره ددوئ نه بيل شو . د صحابه كرام ﷺ جانثارئ او بې مثله وفادارئى ، بې مثاله تابعدارئى ، دمينې او عظمت په ليدو سره د مکې قريش په رعب کښې راغلل او صلح ته تيار شو. اګرچه هغوئ سره دا يوه ښه موقع وه چې مسلمانانو سره ئې جنګ کړې وې او فتح ئې حاصله کړې وې . قريش پخپلو کورونو کښې ښۀ په آرام سره وو او صحابه كرام ﷺ په سفر کښې بې آرامه وو. قريشو په اوبو قبضه کړې وه او صحابه كرام ﷺ بې اوبو ځايونو کښې په پړاؤ وو. د قريشو پوره قوت موجود وو او مسلمانانو سره د نيشت برابر وسله وه. الله ﷻ د قريشو په زړونو کښې رعب واچولو او دهغوئ ډيرو ډلو رسول كريم ﷺ سره ګډون اوکړو . او دې سره ايمان نور هم په زړونو کښې مضبوط شو او بيا روستو مسلمانان هم شو. دريمه دا چې د صلح او ايمان په وجه لارې په امن کښې شوې . د اسلام دبلنې دپاره رسول كريم ﷺ او صحابه کرامو ﷺ ته لارې ملاؤ شوې دعربو وفدونو ته د رسول كريم ﷺ د خدمت موقع ملاؤ شوه. رسول كريم ﷺ او صحابه كرام ﷺ د اسلام دعوت د دنيا ګوټ ګوټ ته اورسولو . د دنيا بادشاهانو ته اسلام ته د رابللو دعوت نامې جارى کړې شوې . څه لويو لويو بادشاهانو اثر قبول کړو. دهغې حاصل دا شو چې دعمرې تللو

دپاره د ډېر تاکیدو باوجود د یونیمو زرو مسلمانانو نه زیات مسلمانان ورسره نه وو او دصلح حدیبیه نه پس ډلې ډلې خلق په اسلام کښې داخلیدل شروع شو. په دې زمانه کښې مسلمانانو خیبر فتح کړو او ډیر سامان ورته په لاس راغلو او دهغوئ قوت مضبوط شو. ددې صلح چې دوه کاله تیر شو نو د مسلمانانو شمیر دومره زیات شو چې ددې نه مخکښې چرې هم دومره نه ووشوې. ددې نتیجه دا شوه چې کله د مکې قریشو دغه لوظنامه ماته کړو او رسول کریم ﷺ پټ په ته دفتح مکه تیاری شروع کړه. ددې صلح نه صرف شل میاشتې پس رسول کریم ﷺ سره لس زره کسان فدایان تیار شو. هرکله چې د مکې قریش په دې خبر شو نو ډیر پښیمانه شو او ابو سفیان ئې د عذر دپاره اولیږلو چې دا لوظ نامه یو ځل بیا تازه کړی. خو رسول کریم ﷺ دا خواست رد کړو او آخر دا چې لس زره د الله تعالی لښکر ئې ځان سره کړل او مکې مکرمې ته روان شو. کافرانو باندې دومره رعب وو چې مکه مکرمه کښې ئې څه جنګ اونه کړې شو. بله وجه ئې دا وجه چې رسول کریم ﷺ د حکیمانه سیاست تر مخه دا اعلان جاری کړو چې څوك د خپل كور دروازه بنده کړی نو هغه به په امن کښې وی. څوك چې مسجد ته داخل شو نو هغه به هم په امن کښې وی. څوك چې د ابوسفیان کور ته داخل شو نو هغه به هم په امن کښې وی. څکه هر سړی سره د خپل ځان فکر شو او د جنګ جګړې څه ضرورت پیښ نشو. په دې وجه د فقهاء کرامو او امامانو دا اختلاف دې چې مکه په جنګ سره فتح شوه اوکه په صلح سره؟ بهر حال مکه مکرمه ډیره په آسانئ سره فتح شوه او د رسول کریم ﷺ د خوب مبارك تعبیر ښکاره شو. صحابه کرامو رضي الله عنهم بې د څه ویرې دبیت الله شریف طواف اوکړو، سرونه یې اوخرئیل یائې ویښته لنډ کړل. رسول کریم ﷺ او صحابه کرام رضي الله عنهم بیت الله شریف ته داخل شو او دبیت الله شریف چابی ئې تر لاسه کړه. دغه وخت رسول کریم ﷺ تولو صحابه کرامو رضي الله عنهم ته عموما او عمرفاروق رضي الله عنه ته خصوصا خطاب اوفرمائیل چې:

دا هغه واقعه ده چې ما درته فرمائیلې وه، عمر فاروق رضي الله عنه اوفرمائیل چې بیشکه هیڅ یوه فتح د صلح حدیبیه نه زیاته لویه او غوره بله نه ده. صدیق اکبر رضي الله عنه خو د مخکښې نه دا فرمائیل چې په اسلام کښې هیڅ یوه فتح د صلح حدیبیه برابر نه ده. خو د خلقو رائې او بصیرت هغه ځائې ته نه رسیدو کوم چې د الله ﷻ او دهغه حبیب ﷺ ترمینځه تاکلې حقیقت وو، دې خلقو به تیزی کوله خو الله ﷻ د خپلو بندګانو دتیزئ نه اثر نه قبلوی چې تیزی اوکړی. بلکه په حکمت او مصلحت هم هر کار پخپل صحیح وخت سر ته رسوی. هم دغه وجه ده چې الله ﷻ په سورة فتح کښې دې حدیبې واقعې ته فتح مبین اووئیله. دا د حدیبې د واقعې ډیر اهمې برخې وې چې راتلونکی آیتونو باندې پوهیدل ورسره آسان شی اوس دآیتونو تفسیر اوګورئ.

(لِيَغْفِرَ لَكَ اللَّهُ مَا تَقَدَّمَ مِن ذَنبِكَ وَمَا تَأَخَّرَ) دلته که په (لِيَغْفِرَ) کښې لام د تعلیل یعنی دعلت بیانولو دپاره واخستې شو. نو حاصل ئې دادې چې دا فتح درته څکه درکړې شوه چې درې کمالونه درته حاصل شی دکوم چې په دې آیت مبارك کښې بیان دی. دې کښې تولو نه اول د مخکښنو ګناهونو او خطاګانو معافی ده. سورة محمد کښې دا معلوم شوی دی چې پیغمبران ؑ د ګناه نه پاك وی. چرته چې په قرآن عظیم الشان کښې د ذنب یا عصیان وغیره الفاظ دوئ ته منسوب کړې شی هغه خلاف اولی کارونو دپاره استعمالیږی. نو هرکله چې دپیغمبرئ مقام

ډير لوړ دي نو پيغمبر ﷺ دپاره په غير افضل باندې عمل کول هم داسې لغزش دې چې قرآن عظيم الشان دزورني په ډول ترې په ذنب او ګناه سره تعبير کړې دې. او د (مَاتَقَدَّمَ) نه مراد هغه لغزش دې چې د نبوت نه وړاندې شوې وي. او د (وَمَاتَأَخَّرَ) نه مراد هغه لغزش دې چې د رسالت او نبوت نه پس صادر شوې وي. [مظهري](۱) او فتح مبين ددې مغفرت سبب ځکه وو چې په دې سره ډير خلق دلې په دلې اسلام کښې داخليږي او د اسلام دعوت او بلنه عام کيدل د رسول کريم ﷺ د ژوند لوئې مقصد وو او د هغوئ اجر و ثواب ته وده ورکوونکې دې. په دې بنا د اجرو ثواب زياتوالې د ګناهونو د رژولو سبب جوړيږي [بيان القرآن](۲).

﴿وَيَهْدِيَكَ صِرَاطًا مُّسْتَقِيمًا﴾ دا دويم نعمت دې چې په دې فتح مبين باندې مرتب شو ، دلته دا سوال پيدا کيږي چې هغوئ خو اول نه په صراط مستقيم قائم دی او صرف يواځې نه ، بلکه د ټولې دنيا خلق دې ته رابلې. نو د هجرت په شپږم کال وروسته د فتح مبين په ذريعه دصراط مستقيم د هدايت کولو څه مطلب شو ؟ ددې جواب د سورة فاتحه د لفظ هدايت د تفسير په تحقيق کښې تير شوې دې.

هغه داسې چې د هدايت مفهوم او مطلب عام داسې دې چې درجې ئې نه ختميدونکې دی ، ولې چې د هدايت مطلب منزل مقصود ته لار خودل يا منزل مقصود ته رسول دی. او اصل منزل مقصود هر انسان لره د الله ﷻ رضا او نزديکت حاصلول دی. او ددې رضا او نزديکت درجې بې شميره دی او په دې کښې فرق دې. د يوې درجې حاصليدو نه پس د دويمې او دريمې درجې ضرورت پاتې کيږي. او ددې نه لوئې نه لوئې ولی بلکه نبی او رسول هم نشي بې نيازه کيدلې. په دې بنا ځکه چې امت ته د مونځ په هر رکعت کښې د ﴿اِهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيْمَ﴾ لوستلو تعليم دې ، پخپله رسول کريم ﷺ ته هم دغه تعليم دې ، حاصل ئې د صراط مستقيم هدايت ، يعنی د الله ﷻ د نزديکت او رضا په درجو کښې وده حاصلول دی ، نو په دغې فتح مبين باندې الله ﷻ رسول کريم ﷺ ته د نزديکت اورضا څه ډير لوړ مقام ورکړو چې د ﴿وَيَهْدِيَكَ﴾ په لفظ سره ئې تعبير اوکړو.

﴿وَيَنْصُرَكَ اللّٰهُ نَصْرًا عَزِيْزًا﴾ دا دريم نعمت دې چې په دې فتح مبين باندې مرتب شو ، يعنی د الله ﷻ امداد تاسو ﷺ ته هميشه نه جاری وو خو دا وخت د مدديوه لويه درجه تاسو ته درکړې شوه.

| هُوَالَّذِيْٓ | اَنْزَلَ | السَّكِيْنَةَ | فِيْ قُلُوْبِ الْمُؤْمِنِيْنَ |
|---|---|---|---|
| هغه هغه ذات دې | چې نازل ئې کړه | سکينه[اطمينان] | په زړونو دمومنانو کښې |
| ............ الله ﷻ هغه ذات دې چې د مومنانو په زړونو کښې ئې اطمينان پيدا کړو | | | |

| لِيَزْدَادُوْٓا | اِيْمَانًا | مَّعَ اِيْمَانِهِمْ | وَلِلّٰهِ | جُنُوْدُ السَّمٰوٰتِ |
|---|---|---|---|---|
| دپاره ددې چې زيات کړی دوئ | ايمان | سره دايمان خپل | او الله لره دی | لښکرې دآسمانونو |
| چې دهغوئ د خپل اولنی ايمان سره ايمان نور هم زيات شی او دآسمانونو او زمکې ټولې لښکرې | | | | |

(۱) تفسير المظهري[ج:۹ص:۳]
(۲) تفسير بيان القرآن [ج:۱۱ ص:۲۸]

وَالْاَرْضِ ط وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيْمًا حَكِيْمًا ۝ لِّيُدْخِلَ الْمُؤْمِنِيْنَ

او دزمکې | او دې الله | خبردار | او حکمت والا | دپاره ددې چې داخل کړي الله مومنان سړي

دالله ﷻ دی | او الله ﷻ په هر څه عالم دې | صاحب د حکمت دې | چې الله ﷻ مومنان سړي

وَالْمُؤْمِنٰتِ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ

او مومناني ښځې | داسې جنتونو ته | چې بهيږي به | لاتد دهغې نه | نهرونه | هميشه به وي |

اومومناني ښځې داسې باغونو ته داخل کړي | چې دهغې لاندې به نهرونه بهيږي | هميشه به

فِيْهَا وَيُكَفِّرَ عَنْهُمْ سَيِّاٰتِهِمْ ط وَكَانَ ذٰلِكَ عِنْدَ اللّٰهِ

په هغې کښې | او چې لرې کړي | دهغوئ نه | ګناهونه دهغوئ | او دې دا کار | په نز دالله |

په هغې کښې اوسيږي | اوچې هغوی ته ګناهونه معاف کړي | او دغه دالله ﷻ په نزد

فَوْزًا عَظِيْمًا ۝ وَّيُعَذِّبَ الْمُنٰفِقِيْنَ وَالْمُنٰفِقٰتِ وَالْمُشْرِكِيْنَ

کاميابي لويه | او چې عذاب ورکړي | منافقانو سړو له | او منافقانو ښځو له | او مشرکانو سړو له

لويه کاميابي ده | اوالله ﷻ به منافقانو سړو او منافقانو ښځو ته او مشرکانو سړو او مشرکانو ښځو

وَالْمُشْرِكٰتِ الظَّآنِّيْنَ بِاللّٰهِ ظَنَّ السَّوْءِ ط عَلَيْهِمْ

او مشرکانو ښځو له | چې ګمان کونکي دی | په الله باندې | ګمان بد | په هغوئ باندې |

ته سزا ورکړي|...... چې په الله ﷻ باندې غلط ګمانونه کوی| .................. په هغوی باندې

دَآئِرَةُ السَّوْءِ ج وَغَضِبَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ وَلَعَنَهُمْ

چکر دبدئ | او غضب اوکړو الله | په هغوئ باندې | او لعنت ئې اوکړو په هغوئ باندې |

بد ورځ راتلونکې ده|اوالله ﷻ به ورته په قهر شي | او دخپل رحمت نه به يې لرې ساتي

وَاَعَدَّ لَهُمْ جَهَنَّمَ ط وَسَآءَتْ مَصِيْرًا ۝ وَلِلّٰهِ

او تيار ئې کړو | دپاره دهغوئ | دوزخ | او دير خراب دې | ځائې داوسيدو | او الله لره دی |

اودوی دپاره ئې دوزخ تيار کړې دې| ..........اودغه دير خراب د اسيدو ځائې دې| او د آسمانونو

جُنُوْدُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ط وَكَانَ اللّٰهُ عَزِيْزًا حَكِيْمًا ۝

لښکرې دآسمانونو | او دزمکې | او دې الله | غالب | دحکمت خاوند |

او زمکې تولې لښکرې دالله ﷻ دی | او الله ﷻ زبردست دې | صاحب د حکمت دې

## آسان ترجمه قرآن

هم هغه دې، چه د ايمان والو په زړونو کښې ئې سکينت نازل کړو دې دپاره چه د هغوی په ايمان کښې نور هم زيات والې اوشي، او د آسمانونو او زمکې ټولې لښکرې الله تعالی دپاره دې. او الله تعالی د علم هم مالک دې، او د حکمت هم مالک دې دې دپاره چه هغه مومنان سړي او مومنانې ښځې داسې باغونو ته داخل کړي، چه د هغې لاندې به نهرونه بهيږي، چه دوی به هغې کښې هميشه دپاره اوسيږي، او د دوی

بدې ددوی نه لرې کړی، او د الله تعالیٰ په نزد دا لویه کامیابي ده او دې دپاره چه هغې منافقانو سړو او منافقانو ښځو ته او مشرکانو سړو او مشرکو ښځو ته عذاب ورکړی، چه په الله تعالیٰ بانديې بد بد ګمانونه ساتی، د بدې وبال هم په دوی باندې پریوتې دې او الله تعالیٰ ددوی نه ناراضه دې، او دوی ئې د خپل رحمت نه لرې کړې دی، او ددوی دپاره ئې جهنم تیار کړې دې، او هغه ډیر بد ځائې د اوسیدو دې. او د آسمانونو او زمکې ټولې لښکرې دالله تعالیٰ دپاره دی، او الله تعالیٰ د اقتدار مالک هم دې او دحکمت مالک هم دې،

## خلاصه تفسیر

﴿هُوَالَّذِيٓ اَنْزَلَ السَّكِيْنَةَ فِيْ قُلُوْبِ الْمُؤْمِنِيْنَ﴾ [هغه خدائې داسې دې چاچه دمسلمانانو په زړونو کښې تحمل پیدا کړو] چه ددې دوه اثره دی یو دجهاد بیعت په وخت کښې د هغې طرف ته مسابقت او عزم اوهمت لکه چه دبیعت رضوان په واقعه کښې بره ذکر شوې دې او دویم اثر دکفارو دبې ځایه ضد په وخت کښې خپل جوش او غضب لره په قابو کښې ساتل چه ذکر ئې ددې واقعې په لسم جز کښې په تفصیل سره راغلې دې او وړاند هم په [فَاَنْزَلَ اللّٰهُ سَكِيْنَتَهٗ عَلٰى رَسُوْلِهٖ] (۱) کښې به ارشی ﴿لِيَزْدَادُوْٓا اِيْمَانًا مَّعَ اِيْمَانِهِمْ﴾ [چه د هغوی د اولنی ایمان سره دهغوی ایمان نور زیات شی] ځکه چه په اصل کښې اطاعت رسول ذریعه ده په نور دایمان کښې دزیاتی او په دې واقعه کښې په هراړخ سره د اطاعت رسول مکمل امتحان وشو چه هرکله رسول دجهاد دعوت دپاره وبلل او بیعت ئې تړې نه واخستونو په ډیره خوشحالئ او مسابقت سره ټولو بیعت وکړو او جهاد دپاره تیارشول او هرکله چه د حکمت او مصلحت پیش نظر نبی کریم ﷺ دقتال نه منع کړل اوټول صحابه کرام ﷺ دجهاد په جوش کښې دجنګ دپاره بې قرار وو مګر اطاعت رسول الله ﷺ ته ئې سربښکته کړو او دجنګ نه منع شول ﴿وَلِلّٰهِ جُنُوْدُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ﴾ [او داسمانونو او دمزکې ټولې لښکرې] لکه ملائک اوټول مخلوقات [دالله تعالیٰ] لښکرې [دی] په دې وجه دکفارو شکست او ددین اسلام دسربلندئ دپاره الله تعالیٰ ستاسو قتال او جهادمحتاج نه دې هغه که وغواړی نو دخپلو فرښتو لښکریه راوغواړی لکه چه دبدر حنین او احزاب په غزاګانو کښې ددې مشاهده وشوه او دالښکر لیږل هم دمسلمانانو د همت دزیاتولو دپاره دې ورنه یوه فرښته هم دټولو دپاره کافی ده په دې وجه تاسوخلقو لره دکفارو په ډیروالی لیدلو باند په جهاد او قتال کښې څه تردد کول نه دی پکار اونه په کوم وخت کښې چه د الله او رسول حکم د جنګ نه کولو وی هغه وخت په جنګ نه کولو کښې څه تردد کول پکار ندی چه افسوس صلح وشوه اوکفار بچ شول سزا ئې ونه خوړه او دجنګ یا دجنګ نه کولو په نتیجو او انجام باند الله تعالیٰ زیات پوه دې ځکه چه ﴿وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيْمًا حَكِيْمًا﴾ [الله تعالیٰ] په مصلحتونو [لوئې پوه او حکمت والا دې] هرکله چه په جنګ کښې حکمت وی د هغې حکم کوی اوکله چه په جنګ نه کولو کښې مصلحت وی د هغې حکم فرمائی په دې وجه مسلمانانو لره پکاردی چه په دواړو حالتونو کښې خپلو جذباتو لره درسول دحکم تابع ساتی کوم چه سبب دې دزیادت دایمان وړاند دایمان دزیادتی دثمرې بیان دې یعنی ﴿لِّيُدْخِلَ الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنٰتِ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا﴾ [چه الله تعالیٰ] ددې اطاعت په دولت [مسلمانانو سړو او

(۱) ترجمه:- پس الله تعالیٰ خپلو رسولانو او مؤمنانوته خپل طرفنه تحمل ورکړه.

مسلمانانو ښځو لره داسې جنتونه ته داخل کړي دکومو لاندې چه به نهرونه جاري وي په کومو کښې چه به همیشه همیشه اوسیږي او چه] ددې اطاعت په دولت ﴿وَيُكَفِّرَ عَنْهُمْ سَيِّاٰتِهِمْ﴾ [د هغوی ګناهونه لرې کړي] ځکه چه د رسول په اطاعت کښې د ګناهونو نه توبه او نیك عملونو ټول داخل دي کوم چه دټولو ګناهونو او بدیو کفاره وي ﴿وَكَانَ ذٰلِكَ﴾ [اودا] څه چه ذکر شول ﴿عِنْدَ اللّٰهِ فَوْزًا عَظِيْمًا﴾ [دالله تعالی په نزد لویه کامیابی ده] په دې ایت کښې ئې اول دمؤمنانو په زړونو دسکینت او تحمل نازلولو دانعام ذکر وفرمائیلو بیا دا انعام دایمان دزیاتي په ذریعه داطاعت رسول سبب جوړشو او اطاعت رسول د جنت دداخلیدو سبب جوړ شو وړاندې ئې په دې سکینت مرتب کړي او دمنافقانو ددې نه دمحرومۍ او ددې محرومۍ په سبب سره ئې په عذاب کښې ګرفتار والې بیانوی فرمائی یعنی دا سکینت ئې د مسلمانانو په زړو نو نازل وفرمائیلو او دکفارو په زړونو ئې نازل ونه فرمائیلو ﴿وَيُعَذِّبَ الْمُنٰفِقِيْنَ وَالْمُنٰفِقٰتِ وَالْمُشْرِكِيْنَ وَالْمُشْرِكٰتِ﴾ [چه الله تعالی منافقانو سړو اومنافقانو ښځو ته اومشرکانو سړواو مشرکانو ښځونه] په وجه ددوی دکفر [عذاب ورکړي ﴿الظَّآنِّيْنَ بِاللّٰهِ ظَنَّ السَّوْءِ﴾ کوم چه په الله تعالی بدبدګمانونه لري] ددې بدګمان نه مراد په اعتبار دسیاق کلام د هغو خلقو ګمان دې کومو ته چه دعمرې دپاره د حدیبې دسفر دعوت ورکړې شو او هغوی انکار وکړو او په خپل مینځ کښې ئې دا ووئیل چه داخلق دمکې والوسره مونږ جنګول غواړي دوی پریږدئ دوی د هغوی دلاسه بچ واپس نه شی راتلې داسې خبرې کوونکی منافقان کیدې شی او دخپل عام مطلب په اعتبار سره ټولې دکفر اوشرك عقیدې په دې بدګمان کښې داخلې دی ددې ټولو دپاره وعیددې چه په دنیاکښې ﴿عَلَيْهِمْ دَآئِرَةُ السَّوْءِ﴾ [په دوی بد وخت راپریوتونکې دې] چنانچه یو څوورځې پس قتل او قیدشول او دمنافقانوټول عمر په حسرت او پریشانۍ کښې تیرشو چه اسلام زیاتیدو او دوی کمیدل داخو په دنیاکښې وشوه [او] په اخرت کښې [به ﴿وَغَضِبَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ وَلَعَنَهُمْ وَاَعَدَّ لَهُمْ جَهَنَّمَ﴾ الله تعالی په دوی غضبناك وی او دوی به درحمت نه لرې کړي او د دوی دپاره هغه دوزخ تیارکړې دې ﴿وَسَآءَتْ مَصِيْرًا﴾ او هغه ډیر ناکاره ځای د ورتلو دې او] وړاندې ددې وعید تاکید دې چه ﴿وَلِلّٰهِ جُنُوْدُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ﴾ [د اسمانونو اومزکې ټولې لښکرې دالله تعالی دی ﴿وَكَانَ اللّٰهُ عَزِيْزًا حَكِيْمًا﴾ او الله تعالی زبردست] یعنی پوره قدرت والا دې که غوښتلې ئې نو په خپل څه لښکر به ئې هم د دوی صفا یا کړې وه چه دوی ددې مستحق دی لیکن چونکه هغه حکمت والا دې] په دې وجه په مصلحت سره په سزاکښې مهلت ورکوی.

## معارف او مسائل

دسورة د اول سر په دریو آیتونو کښې د هغې خاصو انعامونو بیان دې چې په دې فتح مبین کښې په رسول الله ﷺ باندې کړې شوی وو. خینې صحابه کرامو چې دحدیبیه په سفر کښې رسول کریم ﷺ سره وو، هغوئ ﷺ عرض اوکړو چې یارسول الله ﷺ داانعامات خو تاسو دپاره دی، الله ﷻ دې تاسو ته مبارك کړي. مونږ دپاره څه دی ؟ په دې دا آیتونه نازل شو. د اخو په اصل د هغه صحابه کرامو باره کښې نازل شوی دی چې کوم په حدیبیه کښې حاضر وو او بیعت رضوان کښې شامل وو. او دهغوئ د انعاماتو ذکر دې او چونکه دا انعامات د ایمان او درسول کریم ﷺ د فرمانبردارئ په وجه وو نو ځکه په دې کښې ټول مؤمنان داخل دی. ځوك چې په ایمان او فرمانبردارئ کښې کامل وی نو هغه به ددغې انعاماتو مستحق وی.

إِنَّآ أَرْسَلْنٰكَ | شَاهِدًا | وَّمُبَشِّرًا | وَّنَذِيْرًا ﴿۸﴾

بیشکه لیږلي ئې مونږ ته | ګواهي ورکونکې | او زیری ورکونکې | او خبردارونکې |

بیشکه چې مونږ ته ګواهي کونکې او زیری ورکونکې [پیغمبر] لیږلي یې

لِّتُؤْمِنُوْا | بِاللّٰهِ | وَرَسُوْلِهٖ | وَتُعَزِّرُوْهُ

دپاره ددې چې تاسو ایمان راوړی | په الله باندې | او په رسول دهغه باندې | اوتاسو ملګرتیااوکړئ دهغه

چې تاسو په الله ﷻ اودهٔ په رسول ﷺ باندې ایمان راوړئ | اوددهٔ ددین مدد اوکړئ

وَتُوَقِّرُوْهُ ۭ | وَتُسَبِّحُوْهُ | بُكْرَةً | وَّاَصِيْلًا ﴿۹﴾ | اِنَّ الَّذِيْنَ

او عزت اوکړئ دهغه | او تاسو تسبیح اووایئ دهغه | سحر | او ماښام | بیشکه هغه کسان |

اودهغه عزت اوکړئ | اوسحر ماښام د هغه الله پاکی بیان کړئ | ........ څوک چې تا سره

يُبَايِعُوْنَكَ | اِنَّمَا يُبَايِعُوْنَ اللّٰهَ ۭ | يَدُ اللّٰهِ

چې بیعت [لوظ] کوی ستاسره | په اصل کښی هغوئ بیعت کوی دالله سره | لاس دالله |

بیعت کوی | هغوئ [په حقیقت کښې] د الله ﷻ سره بیعت کوی | دالله ﷻ لاس

فَوْقَ اَيْدِيْهِمْ ۚ | فَمَنْ نَّكَثَ | فَاِنَّمَا | يَنْكُثُ

دپاسه دلاس دهغوئ دې | پس هغه چاچې مات کړو دا لوظ | پس بیشکه | ماتوی به هغه |

ددوئ دلاس دپاسه پروت دې | نوبیا څوک چې خپل لوظ مات کړی | نوددهٔ دبې لوظئ

عَلٰى نَفْسِهٖ ۚ | وَمَنْ اَوْفٰى | بِمَا | عٰهَدَ | عَلَيْهُ

دا لوظ په خان خپل | او چاچې پوره کړو | هغه لوظ | چې وعده کړی ده هغه | په هغې باندې |

سزا به هم دهٔ ته ملاویږی | اوچا چې الله سره کړې لوظ پوره کړو | نو الله ﷻ به

اللّٰهَ | فَسَيُؤْتِيْهِ | اَجْرًا عَظِيْمًا ﴿۱۰﴾

دالله سره | نو الله به زر ورکړی هغه له | اجر | لوئ |

هغه ته ډیر زر لوئې اجر ورکړی |

## آسان ترجمه قرآن

(اے پیغمبره علیه السلام) مونږ ته ګواهي ورکونکې، خوشخبری ورکونکې او خبردارونکې جوړ کړې لیږلې ئې. دې دپاره چه (اے خلقو) تاسو په الله تعالی او د هغه په رسول باندې ایمان راوړئ او د هغه مدد اوکړئ، او د هغه تعظیم اوکړئ، او سحر ماښام د الله تعالی تسبیح کوئ. (اے پیغمبره) کوم خلق چه ستا سره بیعت کوی، هغوی په حقیقت کښې د الله تعالی سره بیعت کوی د الله تعالی لاس د هغوی د لاس دپاسه دې ددې نه پس چه څوک وعده ماته کړی، نو د وعدې ماتولو وبال به په هغه باندې وی، او څوک چه هغه وعده پوره کړی، کومه چه هغه الله تعالی سره کړې ده، نو الله تعالی به هغه ته لوئې اجر ورکړی.

## خلاصه تفسير

اے محمد ﷺ ﴿إِنَّا أَرْسَلْنَاكَ شَاهِدًا﴾[مونږ تا لره] دامت په عملونو دقيامت په ورځ [ګواهي ورکوونکې] عموما [او] په دنيا کښې خصوصا ﴿وَمُبَشِّرًا وَنَذِيرًا﴾ دمسلمانانو دپاره [خوشخبري ورکوونکې او] د کافرانو دپاره [ويرونکې جوړ کړې ليږلي يې] او اے مسلمانانو مونږ دۀ لره په دې وجه رسول جوړ کړې ليږلي دې ﴿لِتُؤْمِنُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ﴾ [چه تاسو خلق په الله تعالى او دهغه په رسول ايمان راوړئ ﴿وَتُعَزِّرُوهُ وَتُوَقِّرُوهُ﴾اود هغه] ددين [مدد وکړئ او دهغه تعظيم وکړئ] عقيده هم چه الله تعالى لره په ټولو کمالاتو سره موصوف او ټولو نقصونو او عيبونو نه پاك وګڼړئ او عملا هم چه دهغه اطاعت وکړئ ﴿وَتُسَبِّحُوهُ بُكْرَةً وَأَصِيلًا﴾[او سحر ماښام د هغه تسبيح اوپاکی [بيانوئ] که ددې تسبيح تفسير په مونځ سره وشی نو دسحر ماښام فرض مونځو نه به مراد شی ورنه مطلق ذکر به اګر که مستحب وی مرادشی وړاند د ځنو خاصو حقونو متعلق ارشاد دې چه ﴿إِنَّ الَّذِينَ يُبَايِعُونَكَ﴾[کوم خلق تاسره] د حديبيه په ورځ په دې خبره [بيعت کوی] يعنی بيعت ئې کړې دې چه دجهاد نه به تښتی نه ﴿إِنَّمَا يُبَايِعُونَ اللَّهَ﴾[نو هغوی] په واقع کښې [دالله تعالى سره بيعت کوی] ځکه چه مقصود تاسره په دې باندې بيعت کول دی چه د الله تعالى احکام به په ځائ کوی اوهرکله چه داخبره ده نوګويا ﴿يَدُ اللَّهِ فَوْقَ أَيْدِيهِمْ﴾[د الله تعالى لاس دهغوی په لاسو نو باندې بيا] دبيعت نه پس ﴿فَمَنْ نَكَثَ﴾[چه کوم سړې عهد مات کړی] يعنی په ځائ د اطاعت مخالفت وکړی ﴿فَإِنَّمَا يَنْكُثُ عَلَى نَفْسِهِ﴾[نو ددۀ دعهد ماتولو وبال به په دۀ پريوځی ﴿وَمَنْ أَوْفَى بِمَا عَاهَدَ عَلَيْهُ اللَّهَ﴾ اوکوم سړې چه دې خبرې لره پوره کړی په کومه ئ چه] بيعت کښې [دالله تعالى سره عهد کړې دې﴿فَسَيُؤْتِيهِ أَجْرًا عَظِيمًا﴾ نو ډير زر به الله تعالى ده لره لوئ اجر ورکړی].

## معارف او مسائل

تيرۆ شوۆ آيتونو کښې دالله ﷻ دهغې انعاماتو بيان وو چې په رسول کريم ﷺ او د رسول کريم ﷺ په امت باندې خصوصا په هغې صحابه کرامو ﷢ چې په بيعت رضوان کښې شامل شوی وو. او هرکله چې ددې انعامونو ورکوونکی الله ﷻ او په دې ورکولو کښې واسطه صحابه کرام ﷢ دی ، په دې لحاظ سره په دې آيتونو کښې د رسول کريم ﷺ د حقونو او تعظيم ، عزت ورکولو بيان دې ، اول رسول کريم ﷺ ته په خطاب کولو سره ئې د رسول کريم ﷺ درې صفتونه بيان کړل . ① شاهد ② بشير ③ نذير. د شاهد معنی ګواه ده مراد ترې هغه ګواهی ده چې د سورة نساء په آيت مبارك دی : [كَيْفَ إِذَا جِئْنَا مِنْ كُلِّ أُمَّةٍ بِشَهِيدٍ وَجِئْنَا بِكَ عَلَى هَؤُلَاءِ شَهِيدًا] او دا په تفسير معارف القرآن کښې تير شوی دی. هغه داسې چې هر پيغمبر به د خپل امت په باره کښې ددې خبرې ګواهی کوی چې هغه ؑ د الله ﷻ دا پيغام خپل امت ته اورسولو. بيا چا فرمانبرداری اوکړه او چا نافرمانی ، داشان به رسول کريم ﷺ د خپل امت په باره کښې ګواهی ورکوی. د سورة نساء د آيت په تفسير کښې قرطبی ليکلی دی چې د پيغمبرانو ؑ دا ګواهی به دهغې امت په باره کښې وی کوم چې د هغوئ ؑ په زمانه کښې موجود وو. داسې ګواهی به ورکوی چې د حق دعوت چا قبول اوکړو او چا ددې نه انکار اوکړو. داشان دهغوئ ؑ ګواهی به د خپلې زمانې د خلقو باره کښې وی. او ځينې حضراتو

فرمائيلي دي چې دا ګواهي به د ټولو خلقو د د فرمانبردارئي او نافرمانۍ باره کښې وي. څکه چې د څينو روايتونو ترمخه د امت عملونه سحر مابنام فرښتې د رسول کريم ﷺ په خدمت کښې پيش کوي. په دې وجه به رسول کريم ﷺ د امت د ټول عملونو نه خبر وي. [قرطبی د سعيد بن المسيب نه](١).

د «بشير» معنى زيرې ورکونکې او د «نذير» معنى ويرونکې ده، مراد ترې دادې چې رسول کريم ﷺ دخپل امت تابعدارو مؤمنانو ته د جنت زيرې ورکوي او کافران، فاجران دعذاب نه ويروي. ورپسې د رسول ﷺ ليږلو مقصد ئې بيان کړو چې تاسو خلق په الله ﷻ او د الله ﷻ په رسول باندې ايمان راوړئی، او ايمان سره يې نور د دريو صفتونو بيان کړې چې مؤمنانو کښې هم دهغې کيدل پکار دی. [وَتُعَزِّرُوهُ][وَتُوَقِّرُوهُ][وَتُسَبِّحُوهُ] او [وَتُعَزِّرُوهُ] د تعزير نه مشتق دې چې معنى ئې مدد کول دی، او سزا ته تعزير په دې بنا وئيلې شي چې د مجرم حقيقي مدد هم په دې سره کيږي، چې سزا پرې جاري کړې شي. [مفردات القرآن د امام راغب ﷫](٢).

او (وَتُوَقِّرُوهُ) دتوقير نه مشتق دې چې معنى ئې تعظيم ده او (وَتُسَبِّحُوهُ) د تسبيح نه مشتق دې چې معنى ئې پاکي بيانول دی. په دې کښې آخرى (وَتُسَبِّحُوهُ) خو يقينا خالص دالله ﷻ دپاره کيديشي، په دې بنا اکثرو حضراتو د رومبو دوؤ جملو ضمرونه هم الله ﷻ ته راجع کړي دی اودا معنى يې کړې ده چې ايمان راوړئی او د الله ﷻ ددين او درسول ﷺ مدد کوئی اود هغه تعظيم او تسبيح کوئی. او څينې حضراتو د رومبو دوؤ جملو ضمرونه رسول کريم ﷺ ته راجع کولو سره دا مطلب بيان کړې دې چې د رسول کريم ﷺ مدد او تعظيم کوئی او دالله ﷻ تسبيح کوئ. خو څينې مفسرينو فرمائيلي دی چې په دې سره انتشار د ضميرونو لازم راځي چې د بلاغت نه خلاف دې، والله اعلم.

دې نه پس دهغې بيعت بيان دې چې کوم دحديبيه واقعه په لسمه برخه کښې بيان شوې دې. نو الله ﷻ دهغې بيعت په باره کښې فرمائي چې: کومو خلقودرسول کريم ﷺ په لاس باندې بيعت کړې دې، چونکه د هغې نه مقصود دالله ﷻ په حکم باندې عمل کول اود الله ﷻ رضا لټول دی، څکه داسې شوه چې دالله ﷻ په لاس ئې بيعت اوکړو، دالله ﷻ لاس په متشابهاتو کښې حسابيږي. چې دهغې شان او حقيقت نه خو چاته معلوم دې اونه ئې دمعلومولو په فکر کښې کيدل درست دی. ددې بيعت غوروالې دې پسې بياهم راوروان دې.

د بيعت لفظ په اصل کښې په يو خاص کار باندې د لوظ اخستو نوم دی، ددې زړه او مسنونه طريقه داده چې خپل مينځ کښې يو دبل په لاس باندې لاس کيږدی اګر چې په لاس باندې ايخودل څه ضروری نه دی، په هر حال چا چې په څه کار باندې لوظ اوکړو نو د شريعت تر مخه دهغې پابندی کول واجب او ضروری دی او خلاف ئې کول حرام دی، څکه ورپسې فرمائي چې: څوک چې دا بيعت مات کړی نو دا دهغه خپل نقصان دې الله ﷻ او رسول ﷺ ته ددې هيڅ نقصان نه رسي. اوڅوک چې ئې سر ته اورسوی نو الله ﷻ به ورته اجر ورکړی.

١) تفسير القرطبي تفسير سورة النساء [ ج:٤١ص:٥] والزهد الرقائق لابن المبارك باب في عرض عمل الأحياء على الأموات، رقم الحديث: [١٧٧٨]

٢) مفردات القرآن للراغب: [ج:١ ص:٣٣٣]

سَيَقُولُ لَكَ

| تاته | وانی به |

روستو [په دې سفر کښې] کوم بانډیچیان چې ..........

الْمُخَلَّفُونَ مِنَ الْأَعْرَابِ شَغَلَتْنَا أَمْوَالُنَا وَأَهْلُونَا

روستو پاتې شوی خلق | دبانډیچیاونه | چې مشغوله کړو مونږ لره | مالونه زمونږه | او بال بچ زمونږه

پاتې شوی وو| هغوئ به درته اووائی چې مونږ زمونږ مال او بال بچ مشغول کړې وو [څکه جهاد کښې شریک نشو

فَاسْتَغْفِرْ لَنَا يَقُولُونَ بِأَلْسِنَتِهِمْ مَا لَيْسَ فِي قُلُوبِهِمْ

پس ته بښنه اوغواړه دپاره زمونږه | وانی دوئ | په ژبو خپلو سره | هغه | چې نشته په زړونو ددوئ کښې

نوزمونږ دپاره الله ﷻ نه معافی اوغواړه| دوئ په خپلو ژبو باندې هغه خبرې کوی چې ددوئ په زړونو کښې نشته

قُلْ فَمَنْ يَمْلِكُ لَكُمْ مِنَ اللَّهِ شَيْئًا إِنْ أَرَادَ بِكُمْ

ورته اووایه | پس څوک اختیار لری | تاسو لره | دفیصلې دالله | څه لږ شان | که اراده اوکړی الله په تاسو

ته اووایه څوک دی چې دالله ﷻ په مقابله کښې څه وس اولری | که هغه تاسو ته څه نقصان

ضَرًّا أَوْ أَرَادَ بِكُمْ نَفْعًا بَلْ كَانَ اللَّهُ بِمَا

دضرر رسولو | یا اراده اوکړی په تاسو | دنفعې رسولو | بلکه دې الله | په هغه څه |

رسول غواړی | یا تاسو ته فائده دررسول غواړی | [څوک څه کولې نشی] نه بلکه الله ﷻ

تَعْمَلُونَ خَبِيرًا ۝ بَلْ ظَنَنْتُمْ أَنْ لَنْ يَنْقَلِبَ الرَّسُولُ

چې کوئ نې تاسو | خبردار | بلکه خیال اوکړو تاسو | چې هرگز به واپس رانشی | رسول |

ستاسو په عملونو خبر دې | تاسو خو یقین کړې وو چې رسول ﷺ او [په جهاد کښې شریک]

وَالْمُؤْمِنُونَ إِلَى أَهْلِيهِمْ أَبَدًا وَزُيِّنَ ذَلِكَ فِي قُلُوبِكُمْ

اومومنان | کوروالو خپلو ته | هیڅکله | او ښائیسته اولګیدلو | دا خیال | په زړونو ستاسو کښې

مومنان به چرې هم خپلو کورونو ته واپس رانشی | او دا خبره ستاسو په زړونو کښې

وَظَنَنْتُمْ ظَنَّ السَّوْءِ وَكُنْتُمْ قَوْمًا بُورًا ۝ وَمَنْ لَمْ يُؤْمِنْ

اوگمان اوکړو تاسو | گمان دبدئ | اوېئ تاسو | یو قوم | خراب انجام والا | اوهغه چا چې ایمان رانوړو

ښائسته ښکاره شوې وه | اوتاسو ډیره بدگمانی کړې وه | اوتاسو هلاکیدونکې قوم یې | اوڅوک چې په

بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ فَإِنَّا أَعْتَدْنَا لِلْكَافِرِينَ

په الله باندې | او په رسول دهغه باندې | پس بیشکه چې تیار کړې دې مونږه | دپاره دکافرانو

الله ﷻ اودهغه په رسول ﷺ باندې ایمان نه راوړی | نو مونږ دکافرانو دپاره ددوزخ اور

سَعِيرًا ۝ وَلِلَّهِ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ يَغْفِرُ لِمَنْ

دلمبو وور | او الله لره ده | بادشاهی دآسمانونو | او دزمکې | ببښنه کوی | هغه چاته

تیار کړې دې | اود آسمانونو او زمکې بادشاهی یوازې دالله ﷻ ده | د چا په حق کښې چې

| يَّشَآءُ | وَيُعَذِّبُ | مَنْ | يَّشَآءُ ط | وَكَانَ اللّٰهُ | غَفُوْرًا |
|---|---|---|---|---|---|
| چې خوښه يې شي | او عذابوي | هغه څوك | چې خوښه ئې شي | او دې الله | بښونكې |
| اوغواړي | نو ببښنه وركړي | او چاته چې اوغواړي نو عذاب وركړي | | او الله ﷻ | بښونكي |

| رَّحِيْمًا |
|---|
| مهربانه |
| مهربان دي |

## آسان ترجمه قرآن

هغه بانډچيان چه (د حديبئې په سفر كښې) روستو پاتې شوي وو اوس به تاته ضرور دا وائي چه: زمونږ مال او دولت او زمونږ اهل عيال مونږ مشغوله كړي وو، ددې وجې نه زمونږ دپاره د مغفرت دعا اوكړه. هغوى په خپلو ژبو باندې هغه خبرې وائي، چه د هغوى په زړونو كښې نه وي (دوى ته اووايه) چه: كه الله تعالى تاسو ته څه نقصان دررسول غواړي يا فائده دررسول غواړي، نو څوك دى، چه د الله تعالى په مخكښې ستاسو په معامله كښې د څه كولو طاقت اولري؟ بلكه تاسو چه څه كوئ. الله تعالى په هغې باندې ښه خبردار دې. حقيقت خو دادې، چه تاسو دا گنړلي وو، چه رسول الله (صلى الله عليه وسلم) او نور مومنان به چرې هم خپلو كورونو ته واپس رانشي او هم دا خبره ستاسو زړونو ته ښه معلوميده، او تاسو بد بد گمانونه كړي وو، او تاسو داسې قوم جوړ شوي وئ، چه هغه دپاره بربادي وه او كوم سړي چه په الله تعالى او د هغه په رسول باندې ايمان نه راوړي نو (هغه دې ياد اوساتي) چه مونږ د كافرانو دپاره لمبو والا اور تيار كړي دې. او د آسمانونو او زمكې سلطنت ټول په ټوله د الله تعالى دې. هغه چه چاته اوغواړي، بخنه كوي او چاته چه اوغواړي، عذاب وركوي. او الله تعالى ډير زيات بخونكې او ډير زيات مهربان دې.

## خلاصه تفسير

﴿سَيَقُوْلُ لَكَ الْمُخَلَّفُوْنَ مِنَ الْاَعْرَابِ﴾ [كوم دباندو خلق چه] د جديبي ددې سفر نه [وروستو پاتې شوى دى] په سفر كښې شريك نه شول [هغوى به ډير زر] هركله چه ته مدينې ته ورسيږې [تاته] د خبرې جوړولو په طور [ووائى چه] مونږ چه تاسو سره شريك نه شو د هغې وجه داده چه ﴿شَغَلَتْنَآ اَمْوَالُنَا وَاَهْلُوْنَا﴾ [مونږ لره زمونږ مالونو او اهل وعيال فرصت رانه كړو] يعنى دهغو په ضرورتونو كښې مشغول وو ﴿فَاسْتَغْفِرْ لَنَا﴾ [نو زمونږ دپاره] ددې كوتاهۍ [دمعافۍ دعاوكړه] وراند الله تعالى ددوى تكذيب فرمائى چه ﴿يَقُوْلُوْنَ بِاَلْسِنَتِهِمْ مَّا لَيْسَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ﴾ [داخلق په خپلو ژبو سره هغه خبرې كوى كومې چه دهغوى په زړونو كښې نه وى] وراند دوى ﷺ ته تلقين دې چه داخلق كله چه تاته دا عذر پيش كړى نو ﴿قُلْ فَمَنْ يَّمْلِكُ لَكُمْ مِّنَ اللّٰهِ شَيْـًٔا﴾ [ته ووايه چه] اول خو دا عذر كه رښتوني هم وى نو په مقابله دالله تعالى او رسول الله ﷺ د قطعى حكم به محض عذر لنګ او باطل وو خكه چه مونږ تپوس كوو چه [هغه څوك دې كوم چه دالله تعالى په وړاند تاسو دپاره] په نفع نقصان كښې [د څه شى اختيارلرى ﴿اِنْ اَرَادَ بِكُمْ ضَرًّا اَوْ اَرَادَ بِكُمْ نَفْعًا﴾ كه الله تعالى تاسوته څه نقصان يا څه نفع رسول غواړى] يعنى ستاسو په ذات يا ستاسو په مال

او عیال کښې چه کومه نفع یا نقصان په تقدیر الهی کښې مقدر شوې دې ددې په خلاف کولو سره چاته اختیار نشته البته شریعت اسلام په ډیرو موقعو باند د داسې خطرو عذر قبلوی رخصت ئې ورکړې دې په دې شرط چه دغه عذر واقعی وی او کوم ځائې چه شریعت دغه عذر نه دې قبول کړې او رخصت ئې نه دې ورکړې بلکه حکم ئې قطعی کړې دې لکه چه په زیر بحث مسئله کښې دې چه دحدیبې دسفر دپاره الله تعالی او رسول الله ﷺ دکور او کارونو مشغلو لره قابل قبول عذر نه دې مقرر کړې اګر چه هغه واقعی وی دویم دا عذر کوم چه تاسو کوئ واقعی او رښتونې هم نه دې لکه چه وړاند راغی او تاسو چه ګڼړئ چه ماته ددې دروغوخبرنشته مګر حقیقت دادې چه ﴿بَلْ كَانَ اللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرًا﴾[الله تعالی] کوم چه [ستاسو په ټولو عملونو خبرداردې] ماته په ذریعه دوحی اطلاع راکړې ده چه ستاسو د غیر حاضرئ وجه هغه نه ده کومه چه تاسو بیانوئ ﴿بَلْ ظَنَنْتُمْ اَنْ لَّنْ يَّنْقَلِبَ الرَّسُوْلُ وَالْمُؤْمِنُوْنَ اِلٰٓى اَهْلِيْهِمْ اَبَدًا﴾[بلکه] اصل وجه داده چه [تاسو داګڼړله چه رسول اومؤمنان به خپلو کورونو ته چرې واپس رانه شی] بلکه مشرکان به دټولو صفایا وکړی] ﴿وَزُيِّنَ ذٰلِكَ فِيْ قُلُوْبِكُمْ﴾[او داخبره ستاسو په زړونو کښې ښه هم معلومیده] په وجه دالله تعالی اورسول ددښمنئ چه ستاسو دزړهٔ تمنا هم وه ﴿وَظَنَنْتُمْ ظَنَّ السَّوْءِ﴾[او تاسو بدبد ګمانونه وکړل ﴿وَكُنْتُمْ قَوْمًا بُوْرًا﴾ او تاسو] دد، بدوګمانونو په وجه سره کوم چه کفر یه خیالات دی [بربادیدونکی خلق شوئ] که ددې وعیدونو په اوریدو تاسو اوس هم په زړهٔ سره ایمان راوړو نو خیر ورنه ﴿وَمَنْ لَّمْ يُؤْمِنْۢ بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ﴾[کوم سړې چه په الله تعالی او د هغه په رسول ایمان رانه وړی ﴿فَاِنَّآ اَعْتَدْنَا لِلْكٰفِرِيْنَ سَعِيْرًا﴾ نو مونږ دکافرانو دپاره دوزخ تیارکړې دې] او دمؤمن او غیر مؤمن دپاره دمذکور قانون په مقرر کولو سره دا تعجب نه شی کولې ځکه چه ﴿وَلِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ﴾ [دټولو اسمانونو اومزکو حکومت دالله تعالی دې ﴿يَغْفِرُ لِمَنْ يَّشَآءُ وَيُعَذِّبُ مَنْ يَّشَآءُ﴾ هغه چه چالره غواړی بخښې او چالره چه غواړی سزا ورکوی او] کافران اګر چه مستحق د عذاب وی لیکن ﴿وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا﴾ [الله تعالی لوئ غفور او رحیم دې] چه که دوی هم په رښتونی زړهٔ سره ایمان راوړی نو دوی لره به هم وبخښی.

## معارف او مسائل

دا بیان شوې مضمون دهغې کلی والو باره کښې دې چې ورته دا حکم شوې وو چې رسول کریم ﷺ سره دې حدیبیه ته لاړ شی خو هغوئ بهانې کولې چې بیان ئې د حدیبیه د قیصې په اول برخه کښې شوې دې. ځینې روایتونو نه معلومیږی چې په هغوئ کښې ځینې حضراتو توبه اوویستله او اخلاصیان شو.

سَيَقُوْلُ | الْمُخَلَّفُوْنَ | اِذَا | انْطَلَقْتُمْ | اِلٰى مَغَانِمَ

| اووائی به | روستو پاتې کیدونکی خلق | کله چې | روان شئ تاسو | غنیمتونوته

ازرده چې (دجهاد نه) روستو پاتې کیدونکی خلق به اووائی | په هغه وخت کښې کله چې

لِتَاْخُذُوْهَا | ذَرُوْنَا | نَتَّبِعْكُمْ | يُرِيْدُوْنَ

دپاره ددې چې تاسو واخلئ هغه | چې پریږدئ مونږه | چې مونږ پیروی اوکړو ستاسو | غواړی دوئ |

تاسو په غنیمتونو اخستو پسې روان شئ | چې مونږ هم پریږدئ چې درپسې شو | دوئ غواړی

اَنْ يُّبَدِّلُوْا | كَلٰمَ اللّٰهِ ؕ | قُلْ | لَّنْ تَتَّبِعُوْنَا

چي بدل کړي دوئ | فرمان دالله | ورته اووايه | هر گز به تاسو پيروي اونۀ کړئ زمونږ |

چي دالله ﷻ حکم بدل کړي | ته اووايه چي تاسو هيچرې مونږ سره تلي نه شئ |

كَذٰلِكُمْ قَالَ اللّٰهُ | مِنْ قَبْلُ ۚ | فَسَيَقُوْلُوْنَ | بَلْ | تَحْسُدُوْنَنَا ؕ

هم داسې فرمائيلي وۀ الله | مخکښې ددې نه | پس اوبه وائي دوئ | بلکه | تاسو حسد کوئ زمونږ سره

الله تعالى د وړاندې نه دغه شان دا حکم کړې دې | دوئ به اووائي چي تاسو مونږ سره حسد کوئ

بَلْ كَانُوْا | لَا يَفْقَهُوْنَ | اِلَّا قَلِيْلًا ۝ | قُلْ لِّلْمُخَلَّفِيْنَ

بلکه دي دوئ | چي نۀ پوهيږي | مگر ډير کم | اووايه دې روستو پاتې کيدونکونه |

نه خبره داده چي دوئ ډير کم پوهيږي | ته روستو پاتې کيدونکو

مِنَ الْاَعْرَابِ | سَتُدْعَوْنَ | اِلٰى قَوْمٍ | اُولِيْ | بَاْسٍ

دباندېيسيانو نه | چي زر دې رااوبه بللي شئ تاسو | يوقوم ته | چي خاوندان | دجنگک سخت دی

باندېچيانو ته اووايه | چي ډير زر به تاسو يو جنگيالي خلقو سره مقابلې کولو ته راؤبللي شئ |

شَدِيْدٍ تُقَاتِلُوْنَهُمْ | اَوْ يُسْلِمُوْنَ ۚ | فَاِنْ تُطِيْعُوْا

چي جنگ به کوئ تاسو دهغوئ سره | يا به اسلام قبلوي هغوئ | پس که تاسو حکم اومنو دجهاد

نو يا به ورسره جنگونه کوئ | او يا به هغوئ مسلمانان شي | ..........بياکه تاسو حکم اومنئ

يُؤْتِكُمُ اللّٰهُ | اَجْرًا حَسَنًا ۚ | وَاِنْ تَتَوَلَّوْا | كَمَا | تَوَلَّيْتُمْ

نو دربه کړي تاسو ته الله | اجر ښه | او که مخ واړوۀ تاسو | لکه څنگه چي | مخ اړولي وۀ تاسو

نوالله ﷻ به تاسو ته ښه اجر درکړي | اوکه تاسو مخ واړولو | ..........لکه څنگه چي مو

مِّنْ قَبْلُ | يُعَذِّبْكُمْ | عَذَابًا اَلِيْمًا ۝ | لَيْسَ | عَلَى الْاَعْمٰى

مخکښې ددې نه | نو عذاب به درکړي تاسو له | عذاب دردناک | نشته | په ړوند باندې

وړاندې مخ اړولي وو | نو الله ﷻ به تاسو ته دردناک عذاب درکړي | نه په ړوند باندې څۀ گناه شته

حَرَجٌ | وَّلَا عَلَى الْاَعْرَجِ | حَرَجٌ | وَّلَا عَلَى الْمَرِيْضِ | حَرَجٌ ؕ

څۀ گناه | اونۀ په گوډ باندې | څۀ گناه | اونۀ په مريض باندې | څۀ گناه

..........اونه به گډشل باندې څۀ گناه شته | ..........اونه په بيمار څۀ گناه شته |

وَمَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ | وَرَسُوْلَهٗ | يُدْخِلْهُ | جَنّٰتٍ

او هغه څوک چي حکمونه مني دالله | او درسول دهغه | نو داخلوی به هغه | داسې جنتونو ته

اوڅوک چي دالله ﷻ اودهغۀ د رسول ﷺ تابعداري اوکړي | نو هغه به ئي داسې باغونو ته داخل کړي

تَجْرِيْ | مِنْ تَحْتِهَا | الْاَنْهٰرُ ۚ | وَمَنْ | يَّتَوَلَّ يُعَذِّبْهُ

چي بهيږي به | لاند دهغې نه | نهرونه | او څوک | چي مخ واړوي نو عذابوی به هغه

چي دهغې لاندې به نهرونه بهيږي | اوڅوک چي تړي مخ واړوي | نو هغه ته به دردناک

| عَذَابًا اَلِيْمًا ﴿۱۶﴾ |
|---|
| په عذاب دردناك سره |
| عذاب ورکړی |

## آسان ترجمه قرآن

(اے مسلمانانو) چه کله تاسو د مال غنیمت اخستلو دپاره روان شئ نو دا (د حدیبئي د سفر نه) روستو پاتې کيدونکې خلق به تاسو ته وائي چه مونږ هم ځان سره پريږدئ هغوی دا غواړي چه د الله تعالی خبره بدله کړي ته ورته اووايه، چه تاسو به چرې هم مونږ سره نه ځئ. هم دغه رنګې الله تعالی فرمائيلي دي په دې باندې به هغوی اووائي، چه: په اصل کښې تاسو مونږ سره حسد سالئ نه! بلکه حقيقت دادې، چه دا خلق خپله داسې دی، چه ډير کم په خبره باندې پوهيږي دغې روستو پاتې کيدونکو باندې چياتو ته اووايه چه: زر ده چه تاسو هغې خلقو سره (د جنګ کولو دپاره) راوبللې شئ، چه ډير سخت جنګيالی به وی، چه يا خو به هغوی سره جنګ جاري سالئ، يا به هغوی اطاعت قبول کړي په هغه وخت کښې که تاسو (د جهاد د دې حکم) اطاعت اوکړو، نو تاسو ته به الله تعالی اجر درکړي، او که تاسو مخ واړولو لکه چه تاسو مخکښې هم اړولې وو، نو الله تعالی به تاسو ته دردناک عذاب درکړي. په ړوند سړي باندې (د جهاد نه کولو) هيڅ ګناه نشته، او نه په ګوډ سړي باندې څه ګناه شته، او نه په بيمار سړي باندې ګناه شته، او څوک چه د الله تعالی او د هغه د رسول وينا اومنی، الله تعالی به هغه لره په داسې جنتونو کښې داخل کړي، چه د هغې لاندې به نهرونه بهيږي او څوک چه مخ واړوي، هغه ته به دردناک عذاب ورکړي.

## خلاصه تفسير

﴿سَيَقُوْلُ الْمُخَلَّفُوْنَ﴾ [اوکوم خلق چه] دحديبي د سفر نه [ورو ستوپاتي شو ﴿اِذَا انْطَلَقْتُمْ اِلٰى مَغَانِمَ لِتَاْخُذُوْهَا﴾ هغه به ډير زر هرکله چه] دخيبر [غنيمتونو اخستولره ځئ] مطلب دادې چه هرکله تاسو دخيبرفتح کولو له ځئ کوم خائ چه غنيمت ملاويدونکې دې نو دغه خلق به تاسو ته ﴿ذَرُوْنَا نَتَّبِعْكُمْ﴾ [اووائی چه مونږ تـه هم اجازت وکړئ چه مونږ تاسو سره لاړل شو] وجه ددې درخواست دمال غنيمت طمع وه چه حاصليدل ئې په قرائنوسره دوی تـه معلوم او متوقع وو په خلاف د سفر د حديبي نه چه په دې کښې زحمت بلکه هلاکت زيات متوقع وو ددې په حقله الله تعالی فرمائی چه ﴿يُرِيْدُوْنَ اَنْ يُّبَدِّلُوْا كَلٰمَ اللّٰهِ﴾ [هغه خلق دا غواړي چه دالله تعالی حکم لره بدل کړي] يعنی حکم دالله تعالی دا وو چه دې غزاله به صرف هغه خلق ځی کوم چه په حديبيه او بيعت رضوان کښې شريك شول د هغوی نه سوا نور هيڅوك به نه ځی خصوصا هغه خلق کومو چه د حديبي دسفر نـه وروستو پـاتې کيدل اختيـار کړل او بهانـه بـازی ئې وکړه ﴿قُلْ لَّنْ تَتَّبِعُوْنَا﴾ [پس ته ووايه چه تاسو هرګز مونږ سره نه شئ تلې] يعنی ستاسو دا درخواست مونږ نه شو منظور ولې خکه چه په دې کښې دالله تعالی دحکم بدلولو[ګناه ده خکه چه] ﴿كَذٰلِكُمْ قَالَ اللّٰهُ مِنْ قَبْلُ﴾ الله تعالی دوړاندې نه داسې فرمائيلی دی] يعنی د حديبي نه په واپسئ کښې الله تعالی داحکم فرمائيلي وو چه د خيبرغزاته به دحديبي د خلقو نه سوا بل څوك نـه ځی او دا دالله تعالی حکم په ظاهر قرآن کښې مذکور نه دې ددې نه معلومه شوه چه داحکم د وحی غير متلو په ذريعه دوی ته ملاوشوې وو کوم چه دحديث په ذريعه بيانولې شی او داهم ممکنه ده

چه دحدیبي نه واپسئ کښې چه سوره فتح نازل شو او په دې کښې دایت راغي [اثابهم فتحا قریبا]
ددې نزدې فتح نه مراد فتح د خیبر ده نو داسې دې ایت اشاره وکړه چه دافتح خیبر به ددغو
حدیبیه والو نصیب وی او هرکله چه ته دوی ته دا جواب ورکړې ﴿فَسَيَقُولُونَ بَلْ تَحْسُدُونَنَا﴾ [نو
دغه خلق به ووائی] ظاهره ده چه ددوی ﷺ په وړاند ونیل مراد نه دی بلکه نورو ته به وائی چه
زمونږ د ځان سره نه بوتللو ته چه دالله تعالی حکم وائی خبره دانه ده [بلکه تاسو خلق مونږ سره
حسد کوئ] په دې وجه زمونږ شریکیدل نه خوښوئ حال دادې چه په مسلمانانو کښې د حسد
هیڅ شائبه نشته ﴿بَلْ كَانُوا لَا يَفْقَهُونَ إِلَّا قَلِيلًا﴾ [بلکه په خپله داخلق ډیر کم په خبره پوهیږی] که
پوره پوهیدې نو ددې حکم حکمت به یې ډیر په اسانئ سره معلوم کړې وو چه په حدیبه کښې
دې حضراتو ډیر دلوئ خطرې او لوئ امتحان کار وکړو منافقانو خپل دنیوی غرضونه مقدم
کړل دا وجه د هغوی د تخصیص او دهغوی دمحرمئ ده تردې پورې مضمون د خیبر په حقله وو
وړاند دیوې بلې واقعې متعلق خبرې دپاره ارشاد کیږی چه ﴿قُلْ لِلْمُخَلَّفِينَ مِنَ الْأَعْرَابِ﴾ [ته دې
روستو پاتې شوو بانډچیانو ته] داهم [ووایه چه] که یو خیبر له لاتـه ړئ نو څه خبره ده دثواب
حاصلولو دپاره نورې موقعې هم راتلونکی دی چنانچه ﴿سَتُدْعَوْنَ إِلَى قَوْمٍ أُولِي بَأْسٍ شَدِيدٍ﴾ [ډیر زر
به تاسو دداسې خلقو] سره جنګ [طرف ته راوبللې شئ کوم چه به سخت جنګ کوونکی وی]
مراد ددې نه دفارس او روم [غزاګانې دی] لکه په درکښې دابن عباس رضی الله عنه نه دی [ځکه چه
دهغوی فوجونه] تربیت یافته او سامان والا وو ﴿تُقَاتِلُونَهُمْ أَوْ يُسْلِمُونَ﴾ چه [یا خو به د هغوی
سره جنګ کوئ یا به هغوی تابعدار] داسلام [شی] خواه اسلام قبول کړی یا داسلامی حکومت
اطاعت او جزیه ورکول قبول کړی مطلب دادې چه تاسو به دغې کا دپاره راوبللې شئ [پس]
دغه وخت ﴿فَإِنْ تُطِيعُوا﴾ [که تاسو اطاعت وکړو] او دهغو سره مو جهاد وکړو ﴿يُؤْتِكُمُ اللَّهُ أَجْرًا
حَسَنًا﴾ [نو تاسو ته به الله تعالی نیکه بدله درکړی ﴿وَإِنْ تَتَوَلَّوْا كَمَا تَوَلَّيْتُمْ مِنْ قَبْلُ﴾ او که تاسو]
هغه وخت هم [روګردانی وکړه لکه چه ددې نه وړاند] په حدیبیه وغیره کښې [تاسو روګردانی
کړې ده ﴿يُعَذِّبْكُمْ عَذَابًا أَلِيمًا﴾ نو هغه به دردناك عذاب سزا درکړی] البته د جهاد د دعوت نه
معذور خلق مستثنی دی چنانچه ﴿لَيْسَ عَلَى الْأَعْمَى حَرَجٌ﴾ [نه په ړوند څه ګناه شته ﴿وَلَا عَلَى الْأَعْرَجِ
حَرَجٌ﴾ اونه په ګډ څه ګناه شته ﴿وَلَا عَلَى الْمَرِيضِ حَرَجٌ﴾ اونه په بیمار څه ګناه شته او] بره چه
کومې دمجاهدینو دپاره د جنت اونعمت وعدې او دجهاد نه د ځان پناه کوونکو دپاره وعیدونه
ذکر دی په هغوی کښې څه ددې خلقو تخصیص نشته بلکه قاعده کلیه ده چه ﴿وَمَنْ يُطِعِ اللَّهَ
وَرَسُولَهُ﴾ [کوم سړې دالله تعالی او رسول] ﷺ [خبره منی ﴿يُدْخِلْهُ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ﴾ هغه
لره به داسې باغونه ته داخل کړی دکومو دلاند چه به نهرونه بهیږی ﴿وَمَنْ يَتَوَلَّ﴾ اوکوم سړې
چه روګردانی] دحکم نه [کوی ﴿يُعَذِّبْهُ عَذَابًا أَلِيمًا﴾ هغه ته به دردناك عذاب سزا ورکړی]

## معارف او مسائل

اوس په دې آیتونو مبارکو کښې هغه واقعه بیان شوې ده چې د صلح حدیبیه نه په واپسئ
باندې په کال اوومه هجرئ کښې راپیښه شوه . هغه داسې چې کله رسول کریم ﷺ دخیبر د
غزا اراده اوفرمائیله نو صرف هغه خلق ئې ځان سره واخستل کوم چې دحدیبیه په سفر او
بیعت رضوان کښې شامل وو او الله ﷻ خپل رسول ﷺ تـه د خیبر فتح او هلتـه نـه د مال

غنیمت په لاس راتللو ورسره وعده فرمائیلې وه ، دغه وخت هغه خلق هم ورسره تلو دپار تیار شو کوم چې سره د بلنې نه د حدیبیه په سفر اوبیعت رضوان کښې نه وو شامل شوی دنخښنو نه هغوئ پخپله اندازه لګولې وه چې خیبر به فتح کیږی . اود غنیمت مال به مسلمانانو ته ډیر په لاس راځی . یا ئې دالله ﷻ د نورو معاملو نه ئې اندازه لګولې وه چې مسلمانانو سره کړې وې . دغسې د صلح حدیبیه دبرکتونو نه ئې هم اندازه لګولې وه . نو دوئ هغې نه پاتې کیدو باندې روستو پښیمانه شوی وو . او اوس ئې په جهاد کښې د شریکیدو اراده اوکړه . د دوئ په جواب کښې قرآن عظیم الشان اوفرمائیل چې دا خلق دالله ﷻ کلام یعنی حکم بدلول غواړی : ﴿یُرِیْدُوْنَ اَنْ یُّبَدِّلُوْا كَلٰمَ اللّٰهِ﴾ او مراد ددې حکم نه دادې چې د خیبر په غزا کښې شاملیدل اود هغې غنیمتونه حاصلول اهل حدیبیه سره خاص دی او د هغې نه پس : ﴿كَذٰلِكُمْ قَالَ اللّٰهُ مِنْ قَبْلُ﴾ کښې هم ددغه اهل حدیبیه دخاص کولو قول دې ، خو دلته داسوال پیدا کیږی چې په قرآن عظیم الشان کښې چرته هم ددې تخصیص بیان نشته دې ، بیا ددې تخصیص وعدې ته ﴿كَلٰمَ اللّٰهِ﴾ او ﴿قَالَ اللّٰهُ﴾ وئیل څنګه صحیح شو؟

دالله ﷻ وحی یواځې قرآن عظیم الشان نه بلکه ځینې نور الهی حکمونه هم په ذریعه د وحی راغلی دی او هم په دغې بنا درسول الله ﷺ احادیث هم دکلام په حکم کښې داخل دی :: علماء کرامو فرمائیلی دی چې د اهل حدیبیه د تخصیص وعده اګر چې په قرآن عظیم الشان کښې چرته هم ښکاره نه ده بیان شوې خو هرکله چې دا د وحی غیر متلو په ذریعه سره د حدیبیه په سفر کښې رسول کریم ﷺ سره کړې وه څکه ورته دلته ﴿كَلٰمَ اللّٰهِ﴾ او ﴿قَالَ اللّٰهُ﴾ اوفرمائیلې شو. نو په دې بنا باندې چرته هم چې د قرآن عظیم الشان نه علاوه حکمونه په احادیثو صحیحو کښې راغلی دی هغه هم ددې آیت ترمخه په کلام الله او قال الله کښې داخل دی ، کوم ملحدان یعنی بې دینه خلق چې د رسول کریم ﷺ احادیث ددنې نه منی دا آیتونه دهغه د الحاد ثابتولو دپاره کافی دی ، هرکله چې د قرآن کریم په الفاظو کښې ﴿وَاَثَابَهُمْ فَتْحًا قَرِیْبًا﴾ هم موجود دی او دلته په اتفاق د مفسرینو سره فتح قریب نه مراد فتح د خیبر د ه چې په کښې اهل حدیبیه ته د غنیمتونو په لاس راتلو وعده هم راغله چې د کلام الله او قال الله مراد کیدیشی نو حقیقت دادې چې په دې آیت مبارك کښې خو د غنیمت وعده شته لیکن ددې چرته ذکر نشته چې دغه غنیمت به خاصل اهل حدیبیه ته په لار راځی . او هیڅوك به ورسره په کښې نه شریکیږی ، اصل خبره داده چې د ا تخصیص د رسول کریم ﷺ په حدیث سره ثابت شو ، څکه پرې قال الله او کلام الله صادقیږی . او ځینو حضراتو چې د سورة توبه آیت ﴿فَاسْتَاْذَنُوْكَ لِلْخُرُوْجِ فَقُلْ لَّنْ تَخْرُجُوْا مَعِیَ اَبَدًا وَّلَنْ تُقَاتِلُوْا مَعِیَ عَدُوًّا ؕ اِنَّكُمْ رَضِیْتُمْ بِالْقُعُوْدِ اَوَّلَ مَرَّةٍ﴾ ددې مصداق ګرځولې دې . نو دا صحیح څکه نه دې چې دا آیتونه د غزوه تبوك باره کښې راغلی دی کومه چې د خیبر د غزا نه پس په کال نهمه هجرئی کښې شوې ده [قرطبی وغیره].

﴿قُلْ لَّنْ تَتَّبِعُوْنَا﴾ دا تاکیدی حکم چې تاسو مونږ سره نشئ شاملیدئ کوم چې د حدیبیه د سفر نه په قصد پاتې شوی وئ داد خبر غزا سره مخصوص دې ، ددې مطلب دا نه دې چې د خیبر د غزا نه پس به په بله غزا کښې هم نشئ شاملیدئ ، نو هم دغې کسانو نه دمزنیه او جهینه قبیلو خلق د غزوه خیبر نه پس رسول کریم ﷺ سره په نورو غزاګانو کښې شریك شوی وو . [روح د بحر نه په حواله دبیان القرآن].

**دحدیبیه نه پاتې کیدونکې خلق یا توبه ګار شوی ربښتینی مسلمانان شوی وو:** د خیبر د غزا په وخت کوم خلق چې دحدیبیه نه پاتې شوی وو هغه ټول په دغې غزا کښې د شاملیدو نه ایسار کړې شو. سره ددې چې ټول منافقان نه بلکه ځینې په کښې مسلمانان هم وو ، او ځینې اګر چې دغه وخت منافقان وو خو دهغې نه پس ئې دربښتینی ایمان توفیق نصیب شوې وو. ځکه دداسې مسلمانانو د تسلئ دپاره وریسې آیتونه نازل شو چې په کښې دا تسلی ورکړې شوې ده . اګر که د خیبر غزا د الله ﷻ د وعدې مطابق اهل حدیبیه دپاره مخصوص کړې شوې وه خو چې څوك اخلاصیان مسلمانان دی او د زړۀ په جهاد کښې شریکیدل غواړی هغوئ دپاره نورې موقعې راتلونکی دی ، دغه موقعې د یوې خاصې پیشنګوئی په صورت کښې قرآن عظیم الشان بیانوی چې رسول کریم ﷺ نه پ هغه ظاهرې شوې وې ، فرمائ چې :

﴿سَتُدْعَوْنَ إِلَىٰ قَوْمٍ أُولِي بَأْسٍ شَدِيدٍ﴾ یو داسې وخت راتلونکې ې چې یو سخت جنګیالی قوم سره به درته دجهاد بلنه درکولې شی اود اسلام تاریخ ګواه دې چې دا واقعه د رسول کریم ﷺ په زمانه کښې نه وه راپیښه شوې ځکه چې اول خودا ثابت نه دی چې رسول کریم ﷺ چا باندېچیانو ته په غزا کښې دشریکیدو بلنه ورکړه ، دویمه دا چې دې نه پس چا داسې قوم سره مقابله هم نه ده شوې چې قرآن عظیم الشان هغې ته بهادر او سخت جنګیالې قوم فرمائیلې وی ، نو د تبوك په غزا کښې باندېچیانو ته د شاملیدو بلنه نه ده اګر چې په مقابله کښې دغسې سخت جنګیالې قوم وو خو په دغې غزا کښې نه خو اعرابو ته بلنه ورکول ثابت دی او نه په کښې جنګ اوکړې شو ولې چې په مقابل خلقو باندې الله ﷻ رعب راوستو هغوئ مقابلې ته رانغلل اوبې دځه جنګ کولو نه رسول کریم ﷺ دهغې نه راواپس شو ، دغسې په غزوه حنین کښې هم نه خو باندېچیانو ته بلنه وه او نه ئې په مقابله کښې څوك سخت جنګیالې اوپه سامان باندې پوره قوم وو. نو دتفسیر په امامانو کښې ځینو فرمائیلی دی چې مراد ددې نه د قیصر او کسری قومونه روم او فارس دی چاسره چې د حضرت فاروق اعظم رضی الله عنه په زمانه کښې جنګ شوې دې .[دا قول د ابن عباس ، عطاء و مجاهد ، ابن ابی لیلی او د حسن دې ، قرطبی]

او رافع بن خدیج رضی الله عنه فرمائیلی دی چې مونږ به د قرآن عظیم الشان دا آیت مبارك لوستو اومونږ ته معلوم وو چې ددې نه کوم قوم مراد دې ، تر دې پورې چې رسول کریم ﷺ نه پس سیدنا صدیق اکبر رضی الله عنه د خپل خلافت په زمانه کښې مونږ ته بنوحنیفه د د اهل یمامه یعنی د مسیلمه کذاب قوم سره دجهاد کولو بلنه راکړه. دغه وخت مونږ پوهه شو چې هم دا قوم ددې نه مراد دې خو په دې دواړو اقوالو کښې هیڅ بې سمونی او ټکر نشته ، ځکه چې دا ټول قومونه ترې مراد کیدیشی.

امام قرطبی ددې په نقل کولو سره اوفرمائیل چې دا آیت ددې دلل دې چې د صدیق اکبر رضی الله عنه اود فاروق اعظم رضی الله عنه خلافتونه دحق په مطابق وو ولې چې د دوئ د بلنې ذکر پخپله قرآن عظیم الشان په دغې آیت مبارك کښې کړې دې چې :

﴿تُقَاتِلُونَهُمْ أَوْ يُسْلِمُونَ﴾ د ابی رضی الله عنه په قرآت کښې ﴿حَتَّىٰ يُسْلِمُوا﴾ بغیرنون نه راغلې دې. ځکه امام قرطبی رحمه الله ددې مطابق د او حرف د ﴿حَتَّىٰ﴾ په معنی کښې اخستې دې یعنی دغې قوم سره به جنګ تر هغې وخته پورې کولې شی تر څو چې هغوئ تابعدار اوفرمانبردار نشی چې اسلام قبول کړی یا د اسلامی حکومت په تابعدارئی کښې پاتې کیدل قبول نه کړی.

﴿لَيْسَ عَلَى الْأَعْمٰى حَرَجٌ﴾ ابن عباس رضي الله عنهما اوفرمائيل چې کله په تيرو شوؤ آيتونو کښې په جهاد کښې نه شريکيدونکو دپاره د عذاب دا وعيد راغلو چې :

﴿وَإِنْ تَتَوَلَّوْا كَمَا تَوَلَّيْتُمْ مِنْ قَبْلُ يُعَذِّبْكُمْ عَذَابًا أَلِيمًا﴾ نو په صحابهٔ کرامو کښې ځينې معذور خلق په دې فکرمند شو چې مونږ خو په جهاد کښې د شريکيدو جوګه نه يو هسې نه چې دا وعيد مونږ دپاره وی ، په دې باندې دا آيت مبارک نازل شو چې په کښې ړوند ، شل ، ګډ او رنځور د جهاد د حکم نه مستثنى اوګرځولي شو [قرطبي] والله سبحانه وتعالى اعلم.

| |
|---|
| لَقَدْ رَضِيَ اللّٰهُ عَنِ الْمُؤْمِنِيْنَ إِذْ يُبَايِعُوْنَكَ |
| بيشکه راضي شو الله \| دمومنانونه \| کله چې هغوئ لوظ کولو ستا سره |
| ............بيشکه الله ﷻ دمومنانو نه رضا شو \| کله چې هغوئ ستا په لاس |
| تَحْتَ الشَّجَرَةِ فَعَلِمَ مَا فِيْ قُلُوْبِهِمْ فَأَنْزَلَ |
| لاندې دونې نه \| پس خبروؤ الله \| دهغې نه \| چې په زړونو دهغوئ کښې وؤ \| پس نازل ئې کړو |
| دونې لاندې بيعت کولو \| او الله ﷻ ته دهغوئ د زړونو خبرې ښه معلومې دی \| نو الله ﷻ |
| السَّكِيْنَةَ عَلَيْهِمْ وَأَثَابَهُمْ فَتْحًا قَرِيْبًا وَّمَغَانِمَ كَثِيْرَةً |
| اطمينان \| په هغوئ باندې \| او ورنې کړه هغوئ ته \| فتحه نزدې \| او غنيمتونه ډير |
| ورته اطمينان نصيب کړو \| اوهغوئ ته ئې يوه نزدې ګټه ورکړه \| .......او [ورسره] ډير غنيمتونه |
| يَّأْخُذُوْنَهَا وَكَانَ اللّٰهُ عَزِيْزًا حَكِيْمًا وَعَدَكُمُ اللّٰهُ |
| چې وابه خلې دوئ هغه \| او دې الله \| غالب \| حکمت والا \| وعده اوکړه ستاسو سره الله |
| چې داخلق ئې اخلې \| او الله ﷻ غالب دې \| صاحب د حکمت دې \| الله ﷻ تاسو سره د [نورو] |
| مَغَانِمَ كَثِيْرَةً تَأْخُذُوْنَهَا فَعَجَّلَ لَكُمْ هٰذِهٖ وَكَفَّ |
| دغنيمتونو ډيرو \| چې رابه خلئ تاسو هغه \| پس زر ئې درکړه \| تاسو لره \| دا فتحه \| او منع ئې کړل |
| ډيرو غنيمتونو وعده کړې ده \| چې تاسو به ئې اخلئ [نو دهغې] نه دا يو [ګټه] ئې لاس په لاس درکړه \| او تاسو نه |
| أَيْدِيَ النَّاسِ عَنْكُمْ وَلِتَكُوْنَ اٰيَةً لِّلْمُؤْمِنِيْنَ وَيَهْدِيَكُمْ |
| لاسونه دخلقو \| ستاسو نه \| او چې شي \| يوه نښه \| دپاره دمومنانو \| او چې اوښائی تاسو ته |
| ئې دخلقو [کافرانو] لاسونه منع کړل \| او دا د دې دپاره چې دمومنانو دپاره يوه نمونه شي \| اوچې تاسو |
| صِرَاطًا مُّسْتَقِيْمًا وَّأُخْرٰى لَمْ تَقْدِرُوْا عَلَيْهَا |
| لاره نيغه \| او نور غنيمتونه \| چې قادر شوی نه يئ تاسو \| په هغې باندې \| |
| په نيغه لاره روان کړی \| .........او يوه بله [ګټه] هم [نزدې] ده \| چې لاتاسو پرې قابو نه دې موندلې |
| قَدْ أَحَاطَ اللّٰهُ بِهَا وَكَانَ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرًا |
| احاطه کړې ده الله \| په هغې \| او دې الله \| په هر څيز باندې \| قادر \| |
| خوالله تعالى په خپله احاطه کښې اخستې ده \| او الله ﷻ په هر څيز قادر دې \| |

## آسان ترجمه قرآن

یقیناً الله تعالی د هغې مومنانو نه ډیر زیات خوشحاله شو چه کله هغوی د اونې لاندې تاسره بیعت کولو، اودهغوی په زړونو کښې چه څه وو، هغه هم الله تعالی ته معلوم وو ددې وجې نه الله تعالی په هغوی باندې سکینه [د زړه آرام] نازل کړه، او هغوی ته ئې په انعام کښې یوه بله نژدې فتح ورکړه او په غنیمت کښې ملاویدونکې ډیر مال هم، چه هغوی ته به په لاس راځي، او الله تعالی د اقتدار مالک هم دې، او د حکمت مالک هم دې. الله تعالی تاسو سره د ډیر مالِ غنیمت وعده کړې ده، چه تاسو به ئې حاصلوئ اوس سمدستی ئې تاسو ته دا فتح درکړه، او د خلقو لاسونه ئې تاسو نه بند کړل دې دپاره چه دا د مومنانو دپاره یوه نښه جوړه شي، او الله تعالی تاسو په نیغه لار باندې روان کړي. او یوه فتح بله هم ده، چه ستاسو په قابو کښې لا راغلې نه ده لیکن الله تعالی هغه په خپله ګیره کښې اخستلې ده او الله تعالی په هر څیز باندې قادر دې.

## خلاصه تفسیر

﴿لَقَدْ رَضِيَ اللّٰهُ عَنِ الْمُؤْمِنِيْنَ﴾ [بیشکه الله تعالی دهغو مسلمانانو نه] کوم چه تاسره په سفر کښې وو [خوشحاله شو ﴿اِذْ يُبَايِعُوْنَكَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ﴾ هرکله چه دې خلقو تاسره د اونې لاندې] په جهاد کښې په ثابت قدم پاتې کیدو [بیعت کولو ﴿فَعَلِمَ مَا فِيْ قُلُوْبِهِمْ﴾ او دهغوی په زړونو کښې چه څه] داخلاص او عهدپوره کولو قصد [وو الله تعالی ته هغه هم معلوم وو او] دغه وخت ﴿فَاَنْزَلَ السَّكِيْنَةَ عَلَيْهِمْ﴾ [الله تعالی د هغوی] په زړونو [کښې اطمینان پیدا کړو] په کوم سره چه دوی ته دالله تعالی په حکم منلو کښې ذره تردد یا پس وپیش رانغلو دا خو معنوی نعمتونه شول [او] ددې سره ځنې محسوس نعمتونه هم ورکړې شول په کومو کښې چه معنوی نعمتونه هم شامل وو چنانچه ﴿وَاَثَابَهُمْ فَتْحًا قَرِيْبًا﴾ [هغوی ته موپوره لاس په لاس فتح ورکړه] مراد ددې فتح نه فتح د خیبر ده ﴿وَمَغَانِمَ كَثِيْرَةً يَّاْخُذُوْنَهَا﴾ او په دغه فتح کښې ډیر غنیمتونه هم ورکړه کوم لره چې داخلق اخلی ﴿وَكَانَ اللّٰهُ عَزِيْزًا حَكِيْمًا﴾ او الله تعالی لوئ زبردست او لوئ حکمت والا دې] چه په خپل قدرت اوحکمت سره څه وخت چه دچا دپاره مناسب ګڼړی فتح ورکوی او څه په دې فتح د خیبر باند بس نه دې بلکه ﴿وَعَدَكُمُ اللّٰهُ مَغَانِمَ كَثِيْرَةً﴾ [الله تعالی تاسو سره] نور هم [د ډیرو غنیمتونو وعده کړې ده ﴿تَاْخُذُوْنَهَا﴾ کومو لره چه به تاسو اخلئ ﴿فَعَجَّلَ لَكُمْ هٰذِهٖ﴾ پس] د هغې نه [فی الحال ئې تاسو ته دا درکړل او] ددې د درکولو دپاره ئې د خیبر او حلفاؤ د خیبر ﴿وَكَفَّ اَيْدِيَ النَّاسِ عَنْكُمْ﴾ [دخلقو لاسونه تاسونه بند کړل] یعنی دټولو په زړونو کښې ئې رعب واچولو چه په تاسو زیات دلاس برکیدو همت ونه شو او په دې سره ستاسو دنیوی نفع هم مقصود وه چه تاسو ته ارام او فراغت ملاوشی [او] دینی نفع هم وه ﴿وَلِتَكُوْنَ اٰيَةً لِّلْمُؤْمِنِيْنَ﴾ [چه دا] واقعه [دایماندارو دپاره] دنورو وعدو دربښتونې کیدو [یوه نمونه شی] یعنی دالله تعالی دوعدو په رښتونو کیدو نور ایمان پوخ شی ﴿وَيَهْدِيَكُمْ صِرَاطًا مُّسْتَقِيْمًا﴾ [او چه] [ددې نمونه په ذریعه] تاسو لره [آئنده دپاره په هر کار کښې] په یو سیدها لاره باندې واچوی روان کړی [مراد ددې لارې نه توکل او په الله تعالی باند اعتماد دې یعنی چه دهمیشه دپاره دې واقعې ته ګورئ په الله تعالی باند د اعتماد نه کار اخلئ دغه دینی نفعې دوه شوې یوه علمی او

اعتقادي کومه چه يې په ولتکون سره بيان کړې ده دويمه عملي او اخلاقي کومه چه يې په يهديکم الفاظو سره بيان کړې ده ﴿وَأُخْرَىٰ لَمْ تَقْدِرُوا عَلَيْهَا﴾[او يوفتح بله هم] موعود [ده] چه] تراوسه لا [ستاسو په قابو کښې نه ده راغلې] مراد ددې نه دمکې فتح ده، کومه چه تراوسه واقع شوې نه وه مگر ﴿قَدْ أَحَاطَ اللَّهُ بِهَا﴾[الله تعالى هغې لره په احاطه] دقدرت [کښې کړې ده] کله چه وغواړي تاسو ته به يې درکړي [او] ددې څه تخصيص دې ﴿وَكَانَ اللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرًا﴾[الله تعالى په هرڅه قادر دې].

## معارف او مسائل

﴿لَقَدْ رَضِيَ اللَّهُ عَنِ الْمُؤْمِنِينَ إِذْ يُبَايِعُونَكَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ﴾ دې بيعت نه مراد د حديبيه بيعت دې چې بيان يې دې نه مخکښې هم په ﴿إِنَّ الَّذِينَ يُبَايِعُونَكَ﴾ کښې راغلې دې، دا آيت مبارك هم دې سره متعلق او ددې تاکيد دې په دې آيت مبارك کښې الله ﷻ ددغې بيعت دشريکانو نه دخپلې رضا اعلان کړې دې، څکه ورته بيعت رضوان هم وئيلې شى، دې نه مقصد ددغې خلقو تعريف کول او ورته ددغې لوظ د پوره کولو تاکيد دې، په صحيحينو کښې د جابر ؓ روايت دې، هغه فرمائي چې د حديبيه په ورځ زمونږ شمير څوارلس سوه وؤ، مونږ ته رسول کريم ﷺ اوفرمائيل چې ﴿انتم خير اهل الارض﴾ تاسو د ټولو زمکې خلقو نه زيات غوره يئ[1]، او په صحيح مسلم کښې د ام بشر ؓ نه روايت دې چې ﴿لا تدخل النار احد ممن بايع تحت الشجرة﴾ ددغې ونې لاندې يو بيعت کوونکې به هم جهنم ته نه داخليږي [مظهري][2].

ددې وجې په دې بيعت کښې چې کوم خلق شريك شوي وو دهغوئ مثال لکه د بدر د شريکانو پشان دې. قرآن او حديث کښې چې څنګه زيرى د الله ﷻ د رضا اود جنت مونده و د اهل بدر په باره کښې دى دغسې زيرى د بيعت رضوان د شريکانو دپاره هم دى.

دا زيرى ددې خبرې گواه دى چې ددې حضراتو خاتمه به په ايمان او په هغې عملونو کيږي چې هغه صالح او دالله ﷻ د رضا منديئ موجب وى، ولې چې دالله ﷻ د رضا دى اعلان ددې ذمه وارى اخستې ده.

صحابه کرامو ؓ ته رد بد وئيل او دهغوئ په لغزشونو پسې کيدل او بحثونه په کښې کول ددې آيت نه خلاف دى: تفسير مظهري کښې فرمائيلي دى چې د امت کومو غوره کسانو باره کښې چې الله ﷻ د بخښنې دا اعلان کړې دې که د هغوئ نه څه لغزش يا گناه شوې هم ده نو دا آيت مبارك د هغې د معافئ اعلان دې، بيا د صحابه کرام ؓ په داسې معاملو باندې چې ښه ورته نشى وئيلې، غور، فکر او بحث مباحثه کول بدبختى او په ښکاره ددې آيت مخالفت دې، دا آيت مبارك د رافضيانو دقول واضح ترديد دې چې ابوبکر صديق ؓ، عمر فاروق ؓ او په نورو صحابه کرام ؓ باندې د کفر او منافقت الزام لگوى.

---

[1] صحيح البخاري كتاب المغازي باب غزوة الحديبية [ج:۲ص: ۵۹۸] و صحيح مسلم كتاب الإمارة، باب إستحباب الإمام الجيش... إلخ [ج:۲ص:۱۲۹]

[2] تفسير المظهري[ج:۹ص:۲۳]و صحيح مسلم كتاب فضائل الصحابة، باب من فضائل اصحاب الشجرة اهل بيعة الرضوان [ج:۲ص:۳۰۲]

**شجرهٔ رضوان** :: داشجره دکیکر یوه ونه او مشهوره خبره ده چې درسول الله ﷺ د وفات نه پس څه خلق به هلته تلل او دغې ونې لاندې به ئې مونځونه کول ، عمر فاروق رضي الله عنه دا خطره محسوس کړه چې هسې نه په راتلونکی وخت جاهلان خلق ددې عبادت شروع نه کړي ، څنګه چې پخوانو امتونو کښې داسې واقعات شوی دی ، ځکه ئې دهغې ونې د پريکولو حکم ورکړو . خو په صحيحنو کښې دی چې طارق بن عبدالرحمان فرمائی چې زه يو ځل حج له لاړم نو پداسې خلقو تير شوم چې پو مقام باندې جمع وو او مونځونه ئې کول ، ما تيرې تپوس اوکړو چې دا کوم مسجد دې ؟ هغوئ اووئيل چې دا هغه ونه ده چې ددې لاندې رسول کريم ﷺ بيعت رضوان اخستې وو ، زه دغه وخت سعيد بن المسيب رضي الله عنه ته ورغلم او دا حال مې ورته بيان کړو . هغوئ راته اوفرمائيل چې زما والد محترم رضي الله عنه په دغې بيعت رضوان کښې شريك وو ، هغوئ رضي الله عنه راته اوفرمائيل چې کله مونږ راتلونکی کال مکې مکرمې ته داخل شو نو هغه ونه مو اولټوله خو زمونږ نه هيره وه . هيڅ معلومات يئ راته اونشو . بيا سعيد بن المسيب رضي الله عنه راته اوفرمائيل چې د رسول کريم ﷺ کوم صحابه کرام رضي الله عنهم په بيعت رضوان کښې شريك وو ، هغوئ ته معلوم نه شو ، او تاسو ته معلومه شوه ، عجيبه خبره ده آيا تاسو د هغوئ رضي الله عنهم نه زيات خبر يئ [روح المعانی][1] . دې نه معلومه شوه چې دې نه پس خلقو خالص په اندازه دغه ونه ټاکلې وه چې ورته حاضريدل او ددې لاندې به ئې مونځونه کول . دغسې عمر فاروق رضي الله عنه ته هم معلومه وه چې دا هغه ونه نه ده خو هر کال چې دشرك خطر ئې پيدا شو نو په دې وجه ئې د پريکولو حکم اوفرمائيلو . آيا دا څه لرې خبره ده ؟

**دخيبر فتح** :: خيبر په حقيقت کښې ديوې صوبې نوم دې چې ډيره آبادی ، قلاګانې اوباغونه دې کښې شته دې . [مظهری][2] .

﴿وَأَثَابَهُمْ فَتْحًا قَرِيبًا﴾ دې فتح قريب نه مراد په اتفاق سره د خيبر فتح ده چې دحديبيه نه په واپس کيدو واقع شويدې ده ، د ځينې روايتونو تر مخه د حديبيه نه په واپسئ رسول کريم ﷺ په مدينه منوره کښې لس ورځې او د ځينې نورو روايتونو مطابق شل ورځې قيام پذير وو . دهغې نه پس خيبر ته روان شو . او د ابن اسحاق رحمه الله د روايت مطابق رسول کريم ﷺ په ذالحجه کښې مدينې منورې ته وغپس راغلل او په محرم کال اوومه هجرئی کښې ئې غزوه خيبر ته تشريف يوړو او صفر کال اوومه هجرئ کښې خيبر فتح شو . د واقدی په مغازی هم دا قول درج دې او حافظ بن حجر رحمه الله اوفرمائيل چې دا هم غوره دی [تفسير مظهری][3] .

بهر حال دا ثابته شوه چې د اواقعه د فتح خيبر دصلح حديبيه نه ډيرې ورځې روستو راپيښه شوې وه ، او په دې د ټولو اتفاق دې چې سورة فتح د حديبيه د سفر په دوران کښې نازل شوې دې ، البته په دې کښې اختلاف دې چې پوره سورة په دغه سفر کښې نازل شوې دې او که څه آيتونه په کښې نازل شوې دی ؟ که روبې صورت غوره اوګرځولې شی نو په دې آيتونو

[1] روح المعاني تحت هذه الآية [ج:١٩ ص:٢٠٨] و صحيح مسلم كتاب الإمارة، باب إستحباب مبايعة الإمام الجيش... إلخ [ج:٢ص: ١٢٩]

[2] تفسير المظهري [ج:٩ص:٢٣]

[3] تفسير المظهري [ج:٩ص:٢٣]

مبارکو کښې دخيبر واقعه د پيشنګوئي په ډول اوشوه او د ماضي په صيغه ئې ځکه تر تعبير اوکړو چې دغسې کيدل قطعي او يقيني وو ، اوکه دويم قول غوره اوګرځولې شي نو دا کيديشي چې دا آيتونه مبارك د فتح خيبر نه پس نازل شوي وي . والله اعلم .

﴿وَمَغَانِمَ كَثِيرَةً يَأْخُذُونَهَا﴾ مراد ددې نه د خيبر مال غنيمت دې چې ورسره مسلمانانو ته سهولت او تسلي حاصله شوه .

﴿وَعَدَكُمُ اللَّهُ مَغَانِمَ كَثِيرَةً تَأْخُذُونَهَا فَعَجَّلَ لَكُمْ هَٰذِهِ﴾ دې نه مراد ټول اسلامي فتوحات دي او هغې غنيمتونه دي چې ترقيامته پورې حاصليدونکې دي ، ړومبی غنيمتونه اهل حديبيه دپاره دالله ﷻ په حکم سره مخصوص کړې شوې وو ، او دا ټولو دپاره عام دي ، دې نه معلوميږي چې د خاص کولو دا حکم په دې آيتونو کښې نه دې راغلې ، بلکه دا دجدا وحي په ذريعه رسول کريم ﷺ ته خودلې شوې دې . رسول کريم ﷺ په دې باندې عمل اوکړو اوصحابه کرامو ﷺ ته ئې اوخودل .

﴿وَكَفَّ أَيْدِيَ النَّاسِ عَنكُمْ﴾ دې نه مراد د اهل خيبر کافران دي چې الله ﷻ هغوئ لره په دغې جهاد کښې دخپل پوره زور خودلو موقعه ورنکړه امام بغوي رحمه الله فرمائيلي دي چې غطفان نومې قبيله د خيبر يهودو سره ملګرتيا لرله کله چې دغې قبيلې خبر واؤريدو چې رسول کريم ﷺ په خيبر حمله کړې ده نو دا خلق د سامانونو ډك د يهودومدد دپاره راغلل خو الله ﷻ د هغوئ په زړونو کښې رعب واچولو او دافکر ورسره مل شو چې هسې نه مونږ خيبر ته ورشو او مسلمانان زمونږ په کورونو باندې حمله اونه کړي ځکه ټول په خپلو کورونو کښې يخ کيناستل . [مظهري] .

﴿وَيَهْدِيَكُمْ صِرَاطًا مُّسْتَقِيمًا﴾ اصل هدايت خود صراط مستقيم رسول کريم ﷺ ته د ړومبې نه حاصل وو ، خو لك څنګه چې وړاندې ليکلې شوې دي چې د هدايت درجې بې شميره دي ، دلته تر هغه درجه مراد ده چې ړومبې هغوئ ﷺ ته حاصله نه وه . يعني په الله ﷻ باندې تکيه کول او د ايماني قوت زياتوالې .

﴿وَأُخْرَىٰ لَمْ تَقْدِرُوا عَلَيْهَا قَدْ أَحَاطَ اللَّهُ بِهَا﴾ يعني الله ﷻ مسلمانانو سره د نورو ډيرو فتحو وعده کړې ده چې اوس پرې د هغوئ ﷺ لا قدرت نشته دې ، پدې فتحو کښې هر کله چې د ټولو نه ړومبې دمکې مکرمې فتح ده ، ځکه څينې حضراتو ددې نه دمکې فتح مراداخستې ده ، خو الفاظ عام دي ، ترقيامته پورې کيدونکې فتحې په دې کښې شاملې دي . [مظهري] .

| وَلَوْ قَاتَلَكُمُ |
|---|
| اوکه جنګ کړې وې ستاسو سره |
| اوکه دوی [کافرانو] تاسو |

| الَّذِينَ | كَفَرُوا | لَوَلَّوُا | الْأَدْبَارَ | ثُمَّ لَا يَجِدُونَ |
|---|---|---|---|---|
| هغه کسانو | چې کفر ئې کړې دې | نو خامخا به ئې ګرځولې وې | شاګانې | بيا به ئې نه موندلې |
| سره جنګ کړې وې | نو په شا به تښتيدلې ووا | ........ | | بيا به ئې نه څوک |

وَلِيًّا وَّلَا نَصِيرًا ﴿٢٢﴾ سُنَّةَ اللّٰهِ الَّتِي قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلُ

ځوک دوست | او نه مددګار | دا طريقه دالله ده | هغه | چې تيره شوې ده | مخکښې ددې نه

دوست مونډلې وو | اونه ځوک مددګار | هم دا د الله ﷻ قانون دې | چه د وړاندې جارې راروان دې

وَلَنْ تَجِدَ لِسُنَّةِ اللّٰهِ تَبْدِيلًا ﴿٢٣﴾ وَهُوَ الَّذِي كَفَّ

او هر ګز به ته اونه وينې | طريقې دالله لره | څه تبديلي | او هغه هغه ذات دې | چې منع ئې کړل

اوته به دالله ﷻ په قانون کښې هيڅ بدلون بيانه مومې | ..........او الله ﷻ هغه ذات دې چې

أَيْدِيَهُمْ عَنْكُمْ وَأَيْدِيَكُمْ عَنْهُمْ بِبَطْنِ مَكَّةَ مِنْ بَعْدِ

لاسونه دهغوئ | ستاسو نه | او لاسونه ستاسو | دهغوئ نه | په ګيډه دمکې کښې | روستو ددې نه

دهغوئ لاسونه ئې ستاسونه اوستاسو لاسونه ئې دهغوئ نه دمکې په سرحد باندې

أَنْ أَظْفَرَكُمْ عَلَيْهِمْ وَكَانَ اللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُونَ

چې غالب ئې کړئ تاسو | په هغوئ باندې | او دې الله | په هغه کارونو باندې | چې تاسو ئې کوئ

بند کړل | دهغې نه پس چې تاسوته ئې په هغوئ باندې قابو درکړې وو | او الله ﷻ ستاسو کارونه

بَصِيرًا ﴿٢٤﴾ هُمُ الَّذِينَ كَفَرُوا وَصَدُّوكُمْ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ

ليدونکې | دوئ هغه کسان دي | چې کفر ئې اوکړو | او منع ئې کړئ تاسو | دمسجد حرام نه

ليدل کتل | داهغه خلق دي چې کفر ئې کړې دې | اوتاسو ئې د مسجد حرام نه منع کړئ يې

وَالْهَدْيَ مَعْكُوفًا أَنْ يَبْلُغَ مَحِلَّهُ وَلَوْلَا رِجَالٌ

او دقربانئ اوبنان | منع کړې شوې | ددې نه چې اورسي | ځائي دقربانئ ته | او که چرې نه وې سړي

اودقربانئ ځاروی ئې خپل ځائي ته درسيدو نه منع کړي دي | اوکه چرې دا ويره نه وې | چې ډير

مُؤْمِنُونَ وَنِسَاءٌ مُؤْمِنَاتٌ لَمْ تَعْلَمُوهُمْ أَنْ تَطَئُوهُمْ

مومنان | او ښځې | مومناني | چې نه پيژندل تاسو هغوئ | چې تاسو به اوچقوئ هغوئ |

مومنان سړي اوډيرې مومنانې ښځې به تاسو دپښو لاندې چخړې کړئ | دکوم په وجه چې به تاسو ته

فَتُصِيبَكُمْ مِنْهُمْ مَعَرَّةٌ بِغَيْرِ عِلْمٍ لِيُدْخِلَ اللّٰهُ

بيا به رسي تاسو ته | دوجې دهغوئ نه | ضرر او غم | په ناپوهئ سره | دپاره ددې چې داخل کړي الله

نه خفګان رسيدو | انوتاسو ته به ئې اوس فتح درکړې وې | ..........الله ﷻ چې دچا

فِي رَحْمَتِهِ مَنْ يَشَاءُ لَوْ تَزَيَّلُوا لَعَذَّبْنَا

په رحمت خپل کښې | هغه ځوک چې غواړي هغه | که جداشوې وې مومنان | نوخامخا به سزاورکړي وې مونږه

په حق کښې اوغواړي نوخپل رحمت کښې ئې داخلوي | ..........که دغه کمزوري مسلمانان بيوارخ ته

الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا ﴿٢٥﴾ إِذْ جَعَلَ الَّذِينَ

هغه کسانوله | چې کفر ئې کړې وو | دهغوئ نه | سزا دردناکه | کله چې | اوګرځوؤ هغه کسانو

شوې وې | ..........نو مونږ به کافرانو ته دردناک عذاب ورکړې وې | ..........څه وخت چې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| كَفَرُوْا | فِیْ قُلُوْبِهِمُ | الْحَمِيَّةَ | حَمِيَّةَ الْجَاهِلِيَّةِ | فَاَنْزَلَ اللّٰهُ | |
| چې کفر ئې کړې وؤ | په زړونو خپلو کښې | ننګ | [يعنې] ننګ دجاهليت | پس نازل کړو الله | |
| کافرانو په خپلو زړونو کښې دجاهليت د زمانې په شان د ضد پخه اراده اوکړه \| نو الله ﷻ خپل رسول | | | | | |
| سَكِيْنَتَهٗ | عَلٰى رَسُوْلِهٖ | وَعَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ | وَاَلْزَمَهُمْ | | |
| اطمينان خپل | په رسول خپل باندې | او په مومنانو باندې | او پابندئې اوساتل هغوئ | | |
| او مومنانو ته دتحمل اوبرداشت توفيق ورکړو \| اودوئ ئې دپرهيزګارئ | | | | | |
| كَلِمَةَ التَّقْوٰى | وَكَانُوْٓا | اَحَقَّ | بِهَا | وَاَهْلَهَا | وَكَانَ اللّٰهُ |
| دخبرې دتقوى | او وؤ هغوئ | زيات حقدار | ددې سره | او وؤ اهل ددې | او دې الله |
| په خبره ټينګ کړل \| او هم دوئ دټولو نه زيات د دې څيز حقدار او اهل وو \| او الله ﷻ | | | | | |
| بِكُلِّ شَیْءٍ | عَلِيْمًا ﴿۲۶﴾ | | | | |
| په هر څيز باندې | خبردار | | | | |
| په هر څيز پوره پوره عالم دې \| | | | | | |

### آسان ترجمه قرآن

اوکه دې کافرانو تاسو سره جنګ کړې وې، نو يقيناً په شا به تښتيدلې وې، بيا به دوی ته څوک يار او مددګار هم نه ملاويدو لکه چه د الله تعالیٰ دا دستور دې، چه د مخکښې نه راروان دې، او ته به د الله تعالیٰ په دستور کښې چرې هم تبديلي اونه مومې اوهم هغه الله تعالیٰ دې، چه د مکې په وادئ کښې ئې د هغوی لاسونه تاسو ته د دررسيدو نه، او ستاسو لاسونه ئې هغوی ته د رسيدلو نه بند کړل، پس د هغې نه چه تاسو لره ئې په هغوی باندې قابو درکړې وو اوڅه چه تاسو کوئ الله تعالیٰ هغې لره وينې. هم دا هغه خلق دی، چه کفر ئې اختيار کړې دې، او تاسو ئې د مسجد حرام نه منع کړې يئ او د قربانئ څاروی چه ولاړ پاتې شوې وو، خپل ځائې ته د رسيدلو نه ئې منع کړل او که څه مسلمانان سړی او مسلمانانې زنانه په مکه کښې نه وې، چه دهغوی باره کښې تاسو ته به خبرهم نه وې، او تاسو به د پښو لاندې کړې وو او دهغې په وجه به بے خبرئ کښې تاسو ته نقصان رسيدلې وو (نو مونږ به دغې کافرانو سره د صلحې په ځائې ستاسو جنګ کړې وې ليکن مونږ جنګ ددې وجې نه بند کړو) دې دپاره چه الله تعالیٰ چالره اوغواړی، په خپل رحمت کښې داخل کړی (البته) که هغه مسلمانان د هغه ځائې نه لرې شوې وو، نو مونږ به دغې (اهل مکه) کښې چه کوم کافران وو، هغوی ته به مو دردناکه سزا ورکړې وې پس چه کله کافرانو په خپلو زړونو کښې هغه غيرت ته ځائې ورکړو، کوم چه د جاهليت غيرت وو، نو الله تعالیٰ د خپل طرف نه په خپل پيغمبر اوپه مسلمانانو باندې سکينت نازل کړه او هغوی ئې د تقوی په خبره باندې مضبوط کړل او هغوی هم ددې زيات حقدار او اهل وو، او الله تعالیٰ په هر څيز باندې ښه پوهيدونکې دې.

### خلاصه تفسير

[او] چونکه د هغو کفارو دمغلوبيت مقتضيات موجود وو کوم چه وړاند راغلی په دې وجه [که چرې] په تاسو کښې داصلح نه وې شوې بلکه ﴿وَلَوْ قٰتَلَكُمُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا﴾ [که چرې تاسو سره دې

کافرانو جنګ کړې وې نو] د دغې مقتضیاتو په وجه سره به هغوی ﴿لَوَلَّوُا الْاَدْبَارَ﴾ [خامخا به په شاتښتیدلی وو ﴿ثُمَّ لَا یَجِدُوْنَ وَلِیًّا وَّلَا نَصِیْرًا﴾ بیا به دوی ته نه څوك یارملاویدو نه مددګار] او ﴿سُنَّةَ اللّٰهِ الَّتِیْ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلُ﴾ [الله تعالی] دکفارودپاره [دادستور جوړکړې دې کوم چه دمخکښې نه راروان دې] چه په مقابله کښې حق پرست غالب او باطل برست مغلوب وی او چرته په څه وخت کښې په دې کښې تاخیر کیدل په مصلحت سره هغه ددې منافی نه دې ﴿وَلَنْ تَجِدَ لِسُنَّةِ اللّٰهِ تَبْدِیْلًا﴾ [اوته به دالله تـعالی په دستور کښې] دچاسرې د طرف نه [ردو بدل ونه مومې] چه الله تعالی څه کارکول وغواړې او څوك ئې كولو ته پرېږ نه دی ﴿وَهُوَ الَّذِیْ كَفَّ اَیْدِیَهُمْ عَنْكُمْ وَاَیْدِیَكُمْ عَنْهُمْ بِبَطْنِ مَكَّةَ﴾ [او هغه داسې دی چه هغه د هغوی لاسونه تاسونه] یعنی ستاسو دقتل نه [او ستاسو لاسونه د هغوی] دقتل [نه عین مکې] ته نزدې [کښې] یعنی په حدیبیه کښې [منع کړل ﴿مِنْ بَعْدِ اَنْ اَظْفَرَكُمْ عَلَیْهِمْ﴾ پس ددې چه تاسو ته ئې په هغوی ۃ ابو درکړې وو] دا اشاره ددې واقعې طرف ته ده کومه چه دحدیبې د قصې په شپږم جزء کښې په شروع کښې بیان شوې ده چه دقریشو پنځوس سړی اصحابو ﷺ ګرفتـار کړی وو او بیا څنې نور خلق هم ګرفتار شول او دمسلمانانو په قبضه کښې راغلل دغه وخت که مسلمانانو هغولره قتل کړی وې نو بل طرف ته به مکه کښې حضرت عثمان ﷺ او دده څوملګری چه بند کړې شوی وو هغوی به دوی شهیدان کړی وو اوددې لازمی نتیجه په مکمل طور سره جنګ نښتل وو اواګر چه دذکر شوو ایتونو په اولنی ایت کښې الله تعالی داهم واضحه کړې ده چه که جنګ شوې هم وې نو فتح به دمسلمانانو وه لیکن دالله تعالی په علم کښې دمسلمانانو لوئ مصلحت به دې کښې وو چه داوخت جنګ ونه شی په دې وجه ئې دې خوا دمسلمانانو په زړونو کښې داخبره واچوله چه دهغوی قیدیان دې قتل نه کړې شی دغه شاز دمسلمانانو لاسو نه د هغوی دقتل نه منع شول بل طرف ته د قریشو په زړونوکښې الله تعالی دمسلمانانو رعب واچولو چه هغوی صلح ته مائیل شول سهیل ئې د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې ولیږلو دغه شان دالله تعالی حکمت دواړه طرفه دجنګ انتظام کولو ته جوړنه کړل ﴿وَكَانَ اللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِیْرًا﴾ [او الله تعالی ستاسو کارونو لره] هغه وخت [لیدل] اود هغو کارونو په نتیجو باند پوه وو په دې وجه ئې داسې کارکیدوته پرې نښودو په کوم سره چه جنګ جوړیدو وړاند ددې بیان دې چه که جنګ شوې وې نو کفار به څنګه اوولې مغلوب وو ﴿هُمُ الَّذِیْنَ كَفَرُوْا﴾ [دا هغه خلق دی کومو چه کفر وکړو ﴿وَصَدُّوْكُمْ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ﴾ او تاسو لره ئې] د عمرې کولو دپاره [دمسجدحرام نه منع کړل] مراد مسجد حرام او دصفا مروه دمینځ میدان کوم ځائ چه سعی کیږی دواړه دی مګر چونکه طواف اصل او اول دې او هغه په مسجد حرام کښې کیږی په دې وجه ئې دهغې نه دمنع کولو په ذکر بس والې وکړو ﴿وَالْهَدْیَ مَعْكُوْفًا اَنْ یَّبْلُغَ مَحِلَّهٗ﴾ [او دقربانئ څاروی کوم چه] په حدیبیه کښې [منع کړې شوی وو هغې لره د هغو موقعې ته درسیدو نه بند کړل] د څار وو د قربانئ موقع منی ده هغو خلق څاروو لره منی ته نه پرېښودل ددوی ددې جرمونو او په حرم محترم کښې دکښیناستلو دداسې ظلم کولو تقاضا دا وه چه مسلمانانوته دجنګ حکم شوې وې چه دغه خلق مغلوب کړی شوی وې لیکن څنې حکمتونه ددې تقاضې پوره کولو نه مانع شول په هغې حکمتونو کښې یو دادې چه دغه وخت په مکه کښې ډیر مسلمانان دکفارو دلاسه محبوس او مظلوم وو لکه چه دحدیبې دقبضې په لسم جزء کښې ددې ذکر راغلې او دهغوی نه

دابوجندل د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې رسیدل فریاد کول بیان شوی دی که دغه وخت جنګ شوې وې نو په غیر شعوری طور به دغو مسلمانانو ته هم نقصان رسیدلې وو اوممکنه وه چه ددوی دلاسه هغوی قتل شوی وې او عامو مسلمانانو به بیا په دغې افسوس او پیښمانی کوله په دې وجه الله تعالی داسې حالات پیدا کړل چه جنګ ونه شی دامضمون وراندې فرمائی چه ﴿وَلَوْلَا﴾ [که چرې] په مکه کښې دغه وخت ﴿رِجَالٌ مُّؤْمِنُونَ وَنِسَاءٌ مُّؤْمِنَاتٌ﴾ [ډیر مسلمانان سړی او ډیرې مسلمانانې ښځې نه وې ﴿لَّمْ تَعْلَمُوهُمْ أَن تَطَئُوهُمْ فَتُصِيبَكُم مِّنْهُم مَّعَرَّةٌ بِغَيْرِ عِلْمٍ﴾ دکومو چه تاسو ته خبر هم نه وو یعنی که د دغو د پامال کیدو احتمال نه وې په کوم چه دهغې په وجه به تاسو ته هم په بې خبرئ کښې] د غم او افسوس [ضرر رسیدو] که داخبره نه وې [نوټوله قیصه به ختمه کړې شوې وه لیکن داسې په] دې وجه ونه کړې شول ﴿لِّيُدْخِلَ اللَّهُ فِي رَحْمَتِهِ مَن يَشَاءُ﴾ چه الله تعالی په خپل رحمت کښې چالره چه غواړی داخل کړی] چنانچه په جنګ نه کیدو سره دغه مسلمانان بچ شول او تاسو دهغوی دقتل دګناه او بیاپه دې دغم او افسوس نه بچ شوئ البته ﴿لَوْ تَزَيَّلُوا﴾ [که چرې دا] مذکوره مسلمانان دمکې نه چرې [بل خوا تلی وې ﴿لَعَذَّبْنَا الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا﴾ نو په دې] اهل مکه [کښې چه کوم کافر وو مونږ به هغوی ته] دمسلمانانو په لاس [دردناکه سزا ورکړې وه] او ددې کافرانو د مغلوب او مقتول کیدو یوه مقتضی بله هم وه ﴿إِذْ جَعَلَ الَّذِينَ كَفَرُوا فِي قُلُوبِهِمُ الْحَمِيَّةَ﴾ [کله چه دې کافرانو په خپلو زړونو کښې شرم لره ځائ ورکړو ﴿حَمِيَّةَ الْجَاهِلِيَّةِ﴾ او شرم هم دجاهلیت] ددې شرم نه هغه ضد مراد دې کوم چه د بسم الله او رسول الله ﷺ دلفظونو په لیکلو باندې دوی مزاحمت وکړو لکه چه بره د حدیبې د صلحنامې په بیان کښې یې ذکر شوې دې [پس] ددې مقتضا دا وه چه مسلمانان دجوش نه په جنګ شوی وې مګر ﴿فَأَنزَلَ اللَّهُ سَكِينَتَهُ عَلَىٰ رَسُولِهِ وَعَلَى الْمُؤْمِنِينَ﴾ [الله تعالی خپل رسول لره اومؤمنانو لره د خپل طرف نه تحمل ورکړو] چه ددې په وجه سره دوی ددې کلمې په لیکلو باندې اصرار پرینبودو او صلح وشوه [او] دغه وخت ﴿وَأَلْزَمَهُمْ كَلِمَةَ التَّقْوَىٰ﴾ [الله تعالی مسلمانانو لره په خبره د تقوی ثابت قدم وساتل] دتقوی دخبرې نه مراد کلمه طیبه یعنی دتوحید او د رسالت اقرار دې اوثابت قدم پاتې کیدوپرې مطلب دادې چه دتوحیداو رسالت دعقیدې تقاضا اطاعت دې دالله تعالی او درسول او دمسلمانانو دا صبر او ضبط د خپلو جذباتو خلاف صرف په دې وجه وو چه نبی کریم ﷺ د ضبط او صبر حکم فرمائیلې وو په داسې سخته مرحله کښې دخپلو جذباتو خلاف درسول داطاعت نوم په کلمه دتقوی باندثابت اوسیدل دی ﴿وَكَانُوا أَحَقَّ بِهَا وَأَهْلَهَا﴾ [او هغه] مسلمانان [د هغې] کلمې دتقوی په دنیاکښې هم [زیات مستحق دی] ځکه چه د دوی په زړونو کښې دحق طلب دې او دا طلب یې ایمان ته رسوی [او] په اخرت کښې هم [ددې] د ثواب [اهل دی ﴿وَكَانَ اللَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمًا﴾ او الله تعالی هرشی لره ډیربنه پیژنی]

## معارف او مسائل

﴿بِبَطْنِ مَكَّةَ﴾ ددې لفظ اصلی معنی خالص مکه ده خو دلته ترې مراد حدیبیه ده. خو هرکله چې دامکې مکرمې سره نزدې لګیدلې ده ځکه ترې په ﴿بِبَطْنِ مَكَّةَ﴾ سره تعبیر کړې شوې دې او دې نه دهغې خبرې تائید کیږی کومه چې احنافو اختیار کړې ده چې د حدیبیه څه حصه په حرم کښې داخله ده. ﴿حَتَّىٰ يَبْلُغَ الْهَدْيُ مَحِلَّهُ﴾ دې نه دامعلومیږی چې څوك د حج یا عمرې نه

بند کړې شي نو په دې باندې اتفاق دې چې په قربانئ کولو سره دې څان د احرام نه حلال کړي ،
البته په دې کښې اختلاف دې چې دغه د قربانئ څاروی دې کوم ځائې کښې ذبح کولې شی
چرته چې دې حصار کړې شوې دې یا دنورو قربانیو پشان دې دپاره هم دحرم په حدودو کښې
دننه کیدل شرط دی . داحنافو په نزد دې دپاره هم د حرم حدونه شرط دی . ددوئ استدلال هم
دا آیت مبارك دې چې په دې کښې دغې قربانئ کولو دپاره قرآن کریم محل مقرر کړې دې
دکوم نه چې کفارو مسلمانان ایسار کړی وو. دې نه معلومه شوه چې دوئ قربانئ دپاره
حدودو دحرم کښې دننه کیدل شرط دی. پاتې شوه دا معامله چې د احنافو دا اقوال هم دی چې
دحدیبیه څینې حصې دحرم په حدونو کښې داخل دی نو بیا د حرم نه ایسارول دمسلمانانو
څنګه ثابت شو ، ددې جواب دادې اګر چې د شریعت تر مخه دحرم په حدونو کښې چې په
منحر سره موسوم دی قربانی کول هر چرته جائز دی خو زیات غوره دادی چې په منٰی کښې په
مقرر شوی ځائې کښې اوکړې شی ، په دې بنا کافرانو دغه څاروی غوره ځائې ته دبوتلو نه
ایسار کړی وو.

﴿فَتُصِيبَكُمْ مِنْهُمْ مَعَرَّةٌۢ بِغَيْرِ عِلْمٍ﴾ څینې حضراتو د ﴿مَعَرَّةٌ﴾ معنی ګناه کړې ده . او څینو ئې مطلق
زیان اوضرر بیان کړې دې . اوڅینو ئې معنی عیب بیان کړې ده . په دې مقام باندې ظاهر هم
دغه آخری معنی ده. چې که جنګ شروع شوې وې او د بې خبرئی په حالت کښې د مسلمانانو
د لاسه په مکه کښې بند مسلمانان وژلې شوې وې نو دا یوه د عیب او د شرم خبره وه ، چې
کفارو به ورته تنګ او غیرت وروارولو چې هم خپل دینی رونړه دوئ مړهٔ کړل او ضرر به ئې هم
مسلمانانو ته ضرر څکه وو چې هرکله تربې خبر شوې وې نو ډیر زیات به پښیمانه وو او
افسوسونه به ئې کول اودا ضرر به عامو مسلمانانو ته وو.

**صحابه کرامو لره دعیب او غلطئ نه دساتلو قدرتی انتظام** :: امام قرطبی رحمه الله فرمائیلی دی چې څوك
مسلمان د خپل مسلمان د لاسه په ناخبرئی کښې مړ شی نو اګر چې ګناه ئې نشته خو د عیب ،
شرم ، پښیمانئ او افسوس سبب ضرور دې . او د خطا په قتل باندې د دیت وغیره احکام هم
شته دې. الله ﷻ د خپل نبی ﷺ د صحابه کرامو ددې نه هم د ساتلو انتظام اوکړو[1] . ددې نه
معلومیږی چې الله ﷻ صحابه کرامو سره څومره د مهربانئ معامله اوکړه. اګر چې هغوئ د
پیغمبرانو ﷺ په شان د ګناه نه پاك نه وو خو بیا هم الله ﷻ هغوئ دپاره د ګناه اوعیب نه د
بچ کیدو بندوبست کوی .

﴿لِيُدْخِلَ اللَّهُ فِي رَحْمَتِهِ مَنْ يَشَاءُ﴾ یعنی الله ﷻ په دغه موقعه د مسلمانانو په زړونو کښې زغم پیدا
کړو اود جنګ نه کیدو انتظام ئې دې دپاره اوفرمائیلو چې الله ﷻ په دې پوهه وو چې ددوئ
نه څینې ایمان راوړنکی دی او په هغوئ باندې به الله ﷻ رحمت اوکړی ، دغسې په مکه
مکرمه کښې په بندیانو مسلمانانو د الله ﷻ رحمت کول وو.

﴿لَوْ تَزَيَّلُوا﴾ اصل کښې د تزیل معنی تفرق یعنی بیلیدل دی ، مطلب ئې دادې چې که
مسلمانان بندیان دمکې مکرمې په ځائې داسې بل یو ځائې کښې وی چې مسلمانانو پخپله
پیژندلې او تکلیف رسولو نه ئې ساتلې شوې نو دغې کافرانو سره داسې کول پکار وو چې د

[1] ) تفسیر القرطبي [ ج:١٦ص:٢٨٦]

مسلمانانو په لاس ورته سزا ورکړې شوې وې ، خو د کافرانو ترمینځه ګیر مسلمانانو باندې دالله ﷻ رحم کول وو چې د جنګ په حالت کښې به مسلمانان هم نه پیژندل اود کافرانو په ګمان بهٔ ئې دوئ ته هم ضرر رسولو ځکه الله ﷻ د جنګ نه کولو انتظام اوفرمائیلو.

﴿وَاَلْزَمَهُمْ كَلِمَةَ التَّقْوٰى وَكَانُوْٓا اَحَقَّ بِهَا وَاَهْلَهَا﴾ د تقوی د کلمې نه مراد دتقوی دخاوندانو کلمه ده چې کلمه د توحید اود رسالت ده ، او دې ته ئې د تقوی کلمه ځکه اووئیل چې هم دغه کلمه دتقوی بنیاد ده او الله ﷻ صحابه کرام ددې کلمې زیات حقدار او اهل ځکه اوبلل چې دهغې خلقو شرمول ئې په ډاګه کول وو کوم چې په دوئ باندې د کفر او منافقت تور پورې کوي اودغه بدبخت خلق [شیعه ګان] پرې تبرا کوي.

| لَقَدْ صَدَقَ اللّٰهُ | رَسُوْلَهُ | الرُّءْيَا | بِالْحَقِّ |
|---|---|---|---|
| بیشکه رښتیا ښودلې وۀ الله | رسول خپل ته | خوب | دحق مطابق |
| بیشکه الله خپل رسول ته ریښتونې خوب خودلې دې [که الله ﷻ ته منظوره وي | | | |

| لَتَدْخُلُنَّ | الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ | اِنْ شَآءَ اللّٰهُ | اٰمِنِيْنَ | مُحَلِّقِيْنَ |
|---|---|---|---|---|
| چې خامخا به داخلیږئ تاسو | مسجد حرام ته | که اوغوښتله الله | په امن سره | خرونکی به یې |
| نوضرور تاسو به مسجد حرام ته په اطمینان سره ورداخل شئ [په داسې حال کښې چې سرونه مو خرئیلی وي | | | | |

| رُءُوْسَكُمْ | وَمُقَصِّرِيْنَ | لَا تَخَافُوْنَ | فَعَلِمَ |
|---|---|---|---|
| سرونو خپلو لره | او لنډونکی به یئ دویختو | نهٔ به یریږئ تاسو | پس معلومه ده الله ته |
| اوویخته به موکټ کړی وي [او هیڅ ویره به درباندې نه وي] نو الله ﷻ ته هغه هرڅه معلوم وو چې تاسو ترې خبر | | | |

| مَا | لَمْ تَعْلَمُوْا | فَجَعَلَ | مِنْ دُوْنِ ذٰلِكَ | فَتْحًا قَرِيْبًا ﴿۲۷﴾ |
|---|---|---|---|---|
| هغه خبره | چې نهٔ وه معلومه تاسو ته | نو در ئې کړه | مخکښې دپوره کیدو دخوب نه | دا فتحه نزدې |
| نه وې [.......... نو الله ﷻ دهغې نه وړاندې یونزدې ګټه درکړه] | | | | |

| هُوَ الَّذِيْٓ | اَرْسَلَ | رَسُوْلَهُ | بِالْهُدٰى | وَدِيْنِ الْحَقِّ |
|---|---|---|---|---|
| هغه هم دغه الله دې | چې رالیږلې ئې دې | رسول خپل | دهدایت سره | او دحق دین سره |
| [الله ﷻ] هغه ذات دې چې خپل رسول [محمد ﷺ] ئې د [کتاب د] هدایت اودحق دین سره رالیږلې دې | | | | |

| لِيُظْهِرَهُ | عَلَى الدِّيْنِ كُلِّهٖ | وَكَفٰى بِاللّٰهِ | شَهِيْدًا ﴿۲۸﴾ |
|---|---|---|---|
| دپاره ددې چې غالب کړي هغه | په دینونو ټولو باندې | او کافي دې الله | په حیثیت دګواه |
| د دې دپاره چې دادین په نورو ټولو دینونو باندې غالب کړي [اودحق دګواهۍ دپاره الله ﷻ کافي دې | | | |

| مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ | وَالَّذِيْنَ | مَعَهٗٓ | اَشِدَّآءُ | عَلَى الْكُفَّارِ |
|---|---|---|---|---|
| محمد ﷺ رسول دالله دې | او هغه خلق | چې دهغه سره ملګرې دي | سخت دي | په کافرانو باندې |
| محمد ﷺ دالله ﷻ رسول دې [اوکوم خلق چې ورسره ملګری دي] هغوئ د کافرانو دپاره سخت | | | | |

رُحَمَآءُ بَيۡنَهُمۡ تَرٰىهُمۡ رُكَّعًا سُجَّدًا

رحم کونکی دی | په منځ خپل کښې | ته به وینې هغوئ لره | رکوع کونکی | سجده کونکی |

او پخپل مینځ کښې مهربان دی اته ئې وینې ګورې چې کله په رکوع تیټ وی او کله په سجده کښې وی

يَبۡتَغُوۡنَ فَضۡلًا مِّنَ اللّٰهِ وَرِضۡوَانًا سِيۡمَاهُمۡ فِىۡ وُجُوۡهِهِمۡ

چې غواړی به | فضل | دالله نه | او رضا [دهغه] | نښې دهغوئ | په مخونو دهغوئ کښې |

دالله ﷻ فضل اورضامندئ لټوی | ............ دهغوئ په مخونو کښې دسجدود اثر نښې

مِّنۡ اَثَرِ السُّجُوۡدِ ؕ ذٰلِكَ مَثَلُهُمۡ فِى التَّوۡرٰٮةِ ۛۖۚ وَمَثَلُهُمۡ

داثر دسجدونه دی | دا مثال [صفت] دهغوئ | په تورات کښې دې | او مثال دهغوئ |

ښکاری | ............ دا په تورات کښې دهغوئ صفتونه راغلی وو | او دهغوئ هم دا صفتونه

فِى الۡاِنۡجِيۡلِ ۛۚ كَزَرۡعٍ اَخۡرَجَ شَطۡـَٔهٗ فَاٰزَرَهٗ

په انجیل کښې | پشان دفصل دې | چې اول ئې راوباسی | تیغ خپل | بیا ئې مضبوط کړو هغه |

په انجیل کښې دی | لکه پټې چې تیغ راززغون کړی | ............ بیا ئې مضبوط کړی

فَاسۡتَغۡلَظَ فَاسۡتَوٰى عَلٰى سُوۡقِهٖ يُعۡجِبُ الزُّرَّاعَ لِيَـغِيۡظَ

بیا کلک شو | بیا ودریدو | په پنډئ خپله باندې | چې خوشحالوی کروندګر | دپاره ددې چې غصه ورولی

بیا هغه غټ شی | نو په خپله تنه باندې نیغ اودریږی اچې زمیندار ته ښکلې ښکاری [دا ترقی ئې مسلمانانو ته

بِهِمُ الۡكُفَّارَ ؕ وَعَدَ اللّٰهُ الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا

په ترقئ دهغوئ سره | کافرانو لره | وعده کړی ده الله | دهغه کسانو سره | چې ایمان ئې راوړې دې

خکه ورکړه] چې کافران پرې غصه کړی | الله ﷻ هغه خلقو سره چې ایمان ئې راوړې دې | او نیک

وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ مِنۡهُمۡ مَّغۡفِرَةً وَّاَجۡرًا عَظِيۡمًا ۝

او عملونه ئې کړی دی نیک | دهغوئ سره | دبخښنانې | او د اجر لوئ |

کارونه ئې اوکړل | دبخښنې اودلوئې اجر وعده کړې ده

**آسان ترجمه قرآن**

حقیقت دادې، چه الله تعالی خپل رسول ته رشتونې خوب ښودلې دې، چه د واقعې سره بالکل مطابق دې، چه تاسو به ان شاء الله ضرور مسجد حرام ته داسې امن او امان سره داخلیږئ، چه تاسو (کښې به څه خلقو) بغیر د څه ویرې او خطرې نه خپل سرونه خرولې وی، او (څه خلقو به) ویښته کټ کړې وی الله تعالی هغه خبرو باندې پوهیږی چه تاسو پرې نه پوهیږئ، پس الله تعالی دهغه خوب پوره کیدو نه مخکښې د یوې نزدې فتحې فیصله کړې ده هم هغه دې، چه خپل رسول ئې په هدایت او رشتونې دین سره رالیږلې دې، دې دپاره چه هغه په هر دین باندې غالب کړی او (ددې دګواهۍ) ورکولو دپاره الله تعالی کافی دې. محمد (صلی الله علیه وسلم) د الله تعالی رسول دې او کوم خلق چه دده سره دی، هغه د کافرانو په مقابله کښې سخت دی، او په خپلو کښې یو بل دپاره رَحم دِله دی، ته به وینې، چه کله په

رکوع کښې دی، او کله په سجده کښې، (غرض) د الله تعالی د فضل او رضامندئ په تلاش کښې لګیا دی دهغوی نښې د سجدو د آثر د وجې نه د هغوی په مخونو باندې ښکاره دی، دا دی، دهغوی هغه صفتونه، چه په تورات کښې ذکر دی او په انجیل کښې د هغوی مثال دادې، لکه فصل دې، چه راوباسی تیغ خپل، بیا ئې هغه مضبوط کړو، بیا غټ شی، بیا په خپله تنه باندې داسې لیغ اودریږی، چه زمیندارو لره خوشحالوی دې دپاره چه الله تعالی ددوی په ترقئ باندې د کافرانو زړونه اوسیزی، دې خلقو چه ایمان راوړې دې، او نیک عملونه ئې کړې دی، الله تعالی ددوئ سره د مغفرت او د لوئې ثواب وعده کړې ده.

## خلاصه تفسیر

﴿لَقَدْ صَدَقَ اللّٰهُ رَسُوْلَهُ الرُّءْيَا بِالْحَقِّ ۚ﴾ [بیشکه الله تعالی خپل رسول] ﷺ [ته رښتونې خوب ښودلې دې کوم چه د واقعې مطابق دې ﴿لَتَدْخُلُنَّ الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ اٰمِنِيْنَ ۙ﴾ چه تاسو خلق به مسجد حرام ته ان شاء الله خامخا ځئ په امن وامان سره ﴿مُحَلِّقِيْنَ رُءُوْسَكُمْ وَمُقَصِّرِيْنَ ۙ﴾ چه په تاسو کښې به څوك سرونه خرائی څوك به ویښته لنډ وی ﴿لَا تَخَافُوْنَ ۭ﴾ تاسو ته به دهیڅ قسمه خطره نه وی چنانچه راتلونکی کال داسې وشوه او ددې کال نه د تاخیر وجه دا ده چه ﴿فَعَلِمَ مَا لَمْ تَعْلَمُوْا﴾ [پس الله تعالی ته هغه خبرې] او حکمتونه [معلومې دی کومې چه تاسوته معلومې نه دی] د هغوحکمتونو نه یو داهم دې ﴿فَجَعَلَ مِنْ دُوْنِ ذٰلِكَ فَتْحًا قَرِيْبًا ۝﴾ [چه دهغې] خوب د واقع کیدو [نه وړاند تاسوته یوه نزدې فتح] د خیبر [درکړی] چه په دې سره مسلمانانوته قوت او سامان حاصل شی او دوی په پوره اطمینان سره عمره اداکړی لکه چه داسې واقع شوه ﴿هُوَ الَّذِيْٓ اَرْسَلَ رَسُوْلَهُ بِالْهُدٰى وَدِيْنِ الْحَقِّ﴾ [هغه الله تعالی داسې دې چه هغه خپل رسول لره] د [هدایت] سامان یعنی قرآن [او رښتونې دین] اسلام [ورکړې لیږلې دې ﴿لِيُظْهِرَهٗ عَلَى الدِّيْنِ كُلِّهٖ ۭ﴾ چه هغې] دین [لره په ټولو دینونو باند غالب کړی] دا غلبه د حجت او دلیل په اعتبار سره خودائمی او همیشه به وی او دشوکت او سلطنت په اعتبار سره به هم غلبه وی مګر دیوشرط سره هغه دا چه اهل دین یعنی مسلمانان باصلاحیت وی هرکله چه داشرط نه وی نو دظاهری غلبې وعده نشته او چونکه په صحابه کرامو رضی الله عنهم کښې داشرط موجود وو لکه چه په راتلونکو ایتونو کښې د صحابؤ متعلق راروان دې په هغې کښې ددې صلاحیت ذکر دې په دې ایت کښې لکه چه دنبی کریم ﷺ درسالت خوشخبری ده دغسې دصحابه کرامو رضی الله عنهم دپاره دفتوحاتو خوشخبری ده لکه چه ولیدې شوه چه د نبی کریم ﷺ په وفات پنځویشت کاله نه وو تیر شوی چه اسلام او قرآن په فاتحانه طور سره ددنیا ګټ ګټ ته ورسیدو [او] د جاهلیت ضد کوونکی که ستا دنوم سره درسول دلفظ دلیکلو نه ګریز کوی نو ته مه غمژن کیږه ځکه چه ستا په رسالت ﴿وَكَفٰى بِاللّٰهِ شَهِيْدًا ۝﴾ [الله تعالی کافی ګواه دې] چه هغه ستا رسالت لره په واضحو دلیلونو او ښکاره معجزو سره ثابت کړو او وئ ښودلو ددې نه ثابته شوه چه ﴿مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ ۭ﴾ [محمد] ﷺ [دالله تعالی رسول دې] دلته د محمد رسول الله ﷺ په پوره جملې راوړو سره دې طرف ته اشاره ده چه دجاهلیت ضد کوونکو ددوی ﷺ دنوم سره رسول الله لیکل نه خوښول نو هیڅ پرواه نشته الله تعالی داکلمه ستادنوم سره ولیکله کومه چه به ترقیامته پورې لوستلې شی وړاند ددوی دتابعدارانو اصحابو فضیلتونه او خوشخبرئ مذکور دی چه ﴿وَالَّذِيْنَ مَعَهٗٓ﴾ [کومو خلقو ستاسو صحبت موندلې دې] دالفظ ټولو صحابه کرامو لره شامل

دي خواه دنبي كريم ﷺ صحبت ورته اورد ملاو شوي وي او كه لږ. اوكوم صحابه ﷺ چه په حديبيه كښي ددوى سره وو هغه اصاله او خصوصا ددې مصداق دى مطلب دادې چه ټول صحابه كرام ﷺ په دې صفتونو دكمال سره موصوف دي چه ﴿أَشِدَّآءُ عَلَى ٱلْكُفَّارِ﴾ [هغه دكافرانو په مقابله كښې تيزدى] او ﴿رُحَمَآءُ بَيْنَهُمْ﴾ [په خپل مينځ كښې مهربان دى] او ﴿تَرَىٰهُمْ رُكَّعًا سُجَّدًا﴾ [اے مخاطبه ته به هغوى لره وينې چه كله به ركوع كوى كله سجده كوى] او ﴿يَبْتَغُونَ فَضْلًا مِّنَ ٱللَّهِ وَرِضْوَٰنًا﴾ [دالله تعالى دفضل او رضامندئ] يعنى ثواب اوقرب [په لټون كښې لګيدلى وى ﴿سِيمَاهُمْ فِى وُجُوهِهِم مِّنْ أَثَرِ ٱلسُّجُودِ﴾ دهغوى] دبندګئ [نښې] د هغوى [دسجدو په تاثير سره دهغوى په مخونوښكاره دى] مراد ددې نښو نه د خشوع او خضوع انوار دى كوم چه دمؤمن متقى په مخ باند عموما ليدلې شى ﴿ذَٰلِكَ مَثَلُهُمْ فِى ٱلتَّوْرَىٰةِ﴾ [دادهغوى صفتونه] مذكوره [په تورات كښې دى ﴿وَمَثَلُهُمْ فِى ٱلْإِنجِيلِ﴾ او په انجيل كښې دهغوى دا وصف] مذكور [دې ﴿كَزَرْعٍ أَخْرَجَ شَطْـَٔهُۥ فَـَٔازَرَهُۥ﴾ لكه فصل چه هغه] اول دمزكې نه [خپل تيغ راوباسى بيا هغه] د خاوړې اوبو او هوا نه خپل خوراك خپل [هغې] تيغ [لره قوى كړى] يعنى هغه فصل قوى شى ﴿فَٱسْتَغْلَظَ فَٱسْتَوَىٰ عَلَىٰ سُوقِهِۦ﴾ [بيا هغه فصل نور غټ شى بياپه خپله تنه نيغ ودريږى چه] په خپلو تازه سر سبزكيدو سره ﴿يُعْجِبُ ٱلزُّرَّاعَ﴾ [زميندارو ته ښه معلوميږى] دغه شان په صحابه كرامو كښې اول ضعف وو بياې روزانه قوت زياتيدو او الله تعالى دصحابه كرامو دانشونما خكه وكړه ﴿لِيَغِيظَ بِهِمُ ٱلْكُفَّارَ﴾ [چه ددوى] په دې حالت [سره كافرانو لره] په حسد كښې [اوسوزى] او په اخرت كښې ﴿وَعَدَ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ﴾ [الله ﷻ د هغو صاحبانو كومو سره چه ايمان راوړې دې اونيك كارونه كوى] دګناهونو ﴿مِنْهُم مَّغْفِرَةً وَأَجْرًا عَظِيمًا﴾ [دمغفرت او] په طاعاتو [داجر عظيم وعده كړې ده]

## معارف او مسائل

كله چې صلح حديبيه مكمله شوه اودا خبره پخه شوه چې دا وخت مكې معظمې ته ورننوتل نشته او دعمرې ادا كولونه بغير واپس مدينې منورې ته تلل دى ، هر كله چې د صحابه كرامو د عمرې قصد درسول الله ﷺ دخوب نازليدو په بنا راپورته شوى وو چې يو قسم وحى وه ، او په ظاهره ئې دا صورت دهغې خلاف اوليدو نو دځينو صحابه كرامو ﷺ په زړونو كښې پخپله دا شكونه پيدا شو چې [معاذ الله] د رسول كريم ﷺ خوب مبارك رښتيا نشو . بل طرفته كافرانو او منافقانو مسلمانانو ته پيغور وركړو چې ستاسو د رسول ﷺ خوب صحيح نشو .

﴿لَّقَدْ صَدَقَ ٱللَّهُ رَسُولَهُ ٱلرُّءْيَا بِٱلْحَقِّ﴾ [بيهقى وغيره د مجاهد نه روايت كړو] .

﴿لَّقَدْ صَدَقَ ٱللَّهُ رَسُولَهُ ٱلرُّءْيَا بِٱلْحَقِّ﴾ د صدق لفظ د كذب په مقابله كښې استعماليږى ، كومه خبره چې د واقعې مطابق وى هغې ته صدق وئيلې شى . او كومه چې د واقعې مطابق نه وى نو هغې ته كذب وئيلې شى ، كله كله دا په افعالو يعنى كارونو كښې هم استعماليږى ، نو هغه وخت ددې معنى يو فعل يعنى كار ثابتول وى لكه قرآن عظيم الشان كښې دى چې ﴿رِجَالٌ صَدَقُوا۟ مَا عَٰهَدُوا۟ ٱللَّهَ عَلَيْهِ﴾ يعنى هغوئ داسې خلق دى چې هغوئ خپل لوظ پوره كړې اوخودلو .

دغه وخت د لفظ صدق دوه مفعوله وى لكه په دې آيت مبارك كښې چې د ﴿صَدَقَ﴾ رومبې مفعول رسول او بل مفعول الرؤيا دې اومعنى دا آيت داده چې الله ﷻ خپل رسول ﷺ لره

پخپل خوب کښې رښتينې اوخودلو [بيضاوي]. اګر چې د رښتيا خودلو واقعه راتلونکې وه خو په ماضی سره ئې ترې تعبير کولو سره دې ته اشاره اوکړه چې دايقينا کيدونکې دی، وروپسې په لفظ د مستقبل سره فرمائی چې :

﴿لَتَدْخُلُنَّ الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ﴾ ددې مطلب دا راؤتو چې مسجد حرام ته ستاسو داخليدل ضروری دی خو دا کال نه بلکه ددې نه يو کال پس به وی ، په خوب کښې ددې وخت وو تاکلې شوی ځکه صحابه کرامو ﷡ د ډير شوق اومشتاقه کيدو نه هم په دغه کال د سفر د قصد کولو اورسول الله ﷺ ورسره په دې اتفاق اوکړو چې په دې کښې دا الله ﷻ لوئې حکمتونه ورکوم چې د صلح حديبيه په وخت ښکاره شو. څنګه چې صديق اکبر ﷛ هم اول د عمر فاروق ﷛ په جواب کښې اوفرمائيل چې تاسو ﷡ په شك کښې مه پريوځئ ځکه چې د رسول کريم ﷺ په خوب کښې ددې کال او وخت نه دې تاکلې شوې ، که دا ځل اونه شو نو بيا به وی [قرطبی].

**راتلونکي وخت کښې کيدونکي کارونو دپاره د انشاء الله وئيلو تاکيد:** دې آيت مبارك کښې الله ﷻ آئنده دپاره مسجد حرام ته د داخليدو سره د انشاء الله لفظ استعمال کړو حالانکه الله ﷻ پخپلې اراده او خوښه باندې پخپله عالم دې، الله ﷻ ته ددې د وئيلو ضرورت نه وو ليکن خپل رسول او خپلو ټولو بندګانو ته دتعليم ورکولو دپاره دې ځائې کښې الله ﷻ هم لفظ د انشاء الله استعمال کړو. [قرطبی] ([1]).

﴿مُحَلِّقِينَ رُءُوسَكُمْ وَمُقَصِّرِينَ﴾ صحيح بخاری کښې راغلی دی چې په راتلونکی کال عمرې دقضاء کښې معاويه ﷛ د رسول کريم ﷺ ويښته مبارك په قينچی پريکړی وو او د حجة الوداع په موقعه باندې رسول کريم ﷺ خپل سر مبارك خرئيلې وو. [قرطبی] ([2]).

﴿فَعَلِمَ مَا لَمْ تَعْلَمُوا﴾ يعنی الله ﷻ خو دا هم کولې شوه چې په دغه کال ئې ستاسو عمره کول او مسجد حرام ته داخليدل نصيب کړې وې ، خو بل کال ته په روستو کولو کښې لوئې مصلحتونه وو چې الله ﷻ ته معلوم وو ، تاسو په هغې نه پوهيدئ . منجمله ددې مصلحتونو نه يو دا هم وو چې الله ﷻ غوښتل چې ددې نه مخکښې خيبر فتح شی او د مسلمانانو په قوت او سامان کښې وده اوشی او ښه په تسلئ او آرام سره عمره ادا کړی ، ځکه ئې اوفرمائيل چې ﴿فَجَعَلَ مِن دُونِ ذَٰلِكَ فَتْحًا قَرِيبًا﴾.

﴿دُونِ ذَٰلِكَ﴾ نه مراد ﴿دُونَ الرُّؤْيَا﴾ دی ، يعنی ددې خوب د واقع کيدو نه مخکښې د خيبر نزدې فتح مسلمانانو ته حاصله شی او ځينې حضراتو اوفرمائيل چې ددې فتح نه مراد پخپله صلح حديبيه ده چې د مکې د فتح او دنورو فتحو پيش خيمه شوه. او روستوخو ټولو صحابه کرامو ﷡ دې لره أعظم الفتوحات بللې ده ، نو اوس به د آيت مبارك مطلب داوی چې دا کال ستاسو د سفر قصد او بيا ددې ناکامه کيدو او صلح کيدو کښې چې کوم حکمتونه او مصلحتونه وو ، هغه ستاسو په علم کښې نه وو ليکن الله ﷻ دټولو نه واقف وو ، هغه غوښتل چې ددې واقعې د خوب نه مخکښې الله ﷻ د صلح حديبيه په ذريعه يوفتح قريب نصيب کړی ، ددغې فتح قريبی دا نتيجه ټولو اوليدله چې د حديبيه د سفر په دوران کښې

---

[1] ) تفسير القرطبي [ ج:١٦ص: ٢٩٠]
[2] ) تفسير القرطبي [ ج:١٦ص: ٢٩١]

صحابه کرام رضي الله عنهم د لسو زرونه ئې زيات وو او بيا ددې نه پس لسو زرو ته اورسيدل [قرطبي] (۱).

﴿هُوَ الَّذِيٓ أَرۡسَلَ رَسُولَهُۥ بِٱلۡهُدَىٰ وَدِينِ ٱلۡحَقِّ﴾ په تير شوؤ آيتونو کښې د فتحو او غنيمتونو وعدې او اهل حديبيه خصوصا اود ټولو صحابه کرامو عموما فضيلتونه او زيرې بيان شوي دي.

اوس د سورة په ختميدو کښې ددغې مضمونو لنډيز اوتاکيد دې او هرکله چې دا ټول نعمتونه اوزيرې د رسول کريم ﷺ د تابعدارئې او تصديق په بنا باندې اوشو ځکه چې ددغې تصديق او فرمانبردارئ د زيات تاکيد دپاره اود رسول کريم ﷺ دپيغمبرئ نه د منکرانو نه د رد کولو په غرض او دصلح حديبيه په موقعه دځينې مسلمانانو په زړونو کښې د راوړلړو شوؤ شکونولرې کولو دپاره په دې آيتونو کښې د رسول کريم ﷺ د ثابتولو ، بلکه د ټولې دنيا په دينونو باندې د رسول کريم ﷺ ددين د غالب کولو زيرې ورکړې شوېدې.

﴿مُّحَمَّدٞ رَّسُولُ ٱللَّهِۚ﴾ ټول قرآن پاك کښې د رسول کريم ﷺ د نوم مبارك اخستو په ځائې د رسول کريم ﷺ ذکر د رسول کريم ﷺ په لقبونو او صفتونوسره کړې شوې دې. خصوصا د ندا يعنې آواز کولو په موقعه په ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ﴾ ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلرَّسُولُ﴾ ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلۡمُزَّمِّلُ﴾ وغيره سره ئې ذکر شوې دې ، حالانکه نورو پيغمبرانو ﷺ ته خاص دهغوئ په نوم آواز کړې شو ېدې ، لکه ﴿يَٰٓإِبۡرَٰهِيمُ﴾ ﴿يَٰمُوسَىٰٓ﴾ ﴿يَٰعِيسَىٰٓ﴾ ، ټول قرآن عظيم الشان کښې ص۲رف ځلور ځايونو کښې د رسول کريم ﷺ نوم مبارك محمد ﷺ ذکر شوې دې. چرته چې په خاص نوم مبارك ذکر کولو مصلحت دا وو چې هر کله د قريشو کافرانو د رسول کريم ﷺ د نوم مبارك نه د رسول الله دلفظ په لرې کولو باندې کلك ولاړ وو نو رسول کريم ﷺ هغه د الله جل جلاله په حکم قبول کړو او ددې په ځائې ئې دلته په قرآن عظيم الشان کښې د رسول کريم ﷺ نوم مبارك سره درسول الله اولګولو چې ترقيامته پورې داسې لوستلې اوليکلې شي.

﴿وَٱلَّذِينَ مَعَهُۥٓ﴾ ددې ځائې نه د رسول کريم ﷺ د صحابه کرام رضي الله عنهم د فضيلتونو بيان دې اګر چې ددې رومبی مخاطبين هغه صحابه کرام رضي الله عنهم دی کوم چې په صلح حديبيه او په بيعت رضوان کښې شريك شوی وو ليکن دالفاظو په عمونو کښې ټول صحابه کرام شامل دی ولې چې صحبت اومعيت ټول ته حاصل دې.

**د صحابه کرامو رضي الله عنهم صفتونه ، فضيلتونه او خاص نخښې** :: دې ځائې کښې الله جل جلاله درسو الله ﷺ اود رسول کريم ﷺ د دين په ټولو دينونو باندې د غالب کولو بيان فرمائيلو سره سره دصحابه کرامو صفتونه او فضيلتونه او خاص خاص نخښې په تفصيل سره بيان کړې شوې دی. دې کښې د رسول کريم ﷺ ددې سخت امتحان انعام هم دې چې د صلح حديبيه په موقعه په صحابه کرام رضي الله عنهم داسې کړې شوی وو چې د صحابه کرام رضي الله عنهم د زړه ديقين او د جذباتو په خلاف صلح اوشوه اومکې مکرمې ته د د اخليدو نه بغير بې مراده راواپس شوی وو او سره دهغې نه ئې حوله اونه بائيلله. اود رسول کريم ﷺ د تابعدارئې او ايمانی قوت يو لوئې ثبوت ئې وړاندې کړو. داشان که دصحابه کرامود فضيلتونو او علامتونو دتفصيل په بيانولو کښې داحکمت هم وی نو څه لرې خبره نه ده چې د رسول کريم ﷺ نه پس څوك بل څو

(۱) تفسير القرطبي [ ج:۱٦ص: ۲۹۱]

پیغمبر یا رسول کیدونکي نه وو ، رسول کریم ﷺ د خپل ځان مبارك نه پس امت د پاره کتاب الله سره خپل اصحاب ﷺ دنمونې په ډول پریخودی دی او د صحابه کرام ﷺ د اقتداء او تابعدارئ کولو احکام ورکړی دی ، ځکه قرآن عظیم الشان هم د هغوئ ﷺ د فضیلتونو او ښنو بیان فرمائیلو سره مسلمانانو ته د رسول کریم ﷺ د تابعدارئ کولو شوق راپیدا کړو او تاکید ئې اوکړو. په دې مقام باندې د صحابه کرام د ټولو نه ړومبې صفت داخودلې شوې دې چې د صحابه کرام ﷺ د کفارو په مقابله کښې سخت اوخپل مینځ کښې سره مهربانه دی ، د کافرانو په مقابله کښې د صحابه کرام ﷺ سختوالي داسې ثابت شوې دې چې د صحابه کرام ﷺ نسبي تړون اوخپلوی په اسلام باندې قربان کړل اود حدیبیه په موقع ددې ښکاره کول په خصوصیت سره اوکړې شو او خپل مینځ کښې د مهربانئ کولو او قربانئ ورکولو ښکاره کیدل په خاص ډول سره هغه وخت د رسول کریم ﷺ ترمینځه اوشوه کله چې د مهاجرینو او انصارو ترمینځه مواخاة قائم کړې شو. نو انصارو په ټولو خپلو څیزونو مهاجرینو ځان سره شریك کړل ، قرآن کریم دټولو نه ړومبې د صحابه کرام ﷺ داصفت ځکه بیان کړې چې داښکاره کړې شی چې د صحابه کرام ﷺ مینه او بغض وغیره هیڅ څیز دخپلو ځانونو دپاره نه دی بلکه ټول دالله ﷻ او د الله ﷻ درسول ﷺ دپاره وی او هم دا دکامل ایمان اعلی مقام دې. بخاری شریف کښې یو حدیث پاك کښې راغلی دی چې ﴿من احب لله وابغض لله فقد استکمل ایمانه﴾ [څوك چې خپله مینه او بغض دواړه دالله ﷻ په مرضئ جوړ کړی نو هغه خپل ایمان مکمل کړو]. د کافرانو په مقابله کښې د دوئ دسختوالی مطلب دا نه دې چې هر وخت هغوئ ته په غضب وی او په هیڅ حالت کښې پرې رحم نه کوی بلکه ددې دا مطلب دې چې د الله ﷻ دحکم په مقابله کښې رسول کریم ﷺ کافرانو سره دخپلوئ دوستئ هیڅ پرواه نه لری ، چرته چې دالله ﷻ حکم په هغوئ باندې د سختئ کولو ورته اوشی نو په دې باندې بالکل تندې نه تریو کوی. البته د رحم کرم باره کښې قرآن عظیم الشان ددوئ ﷺ باره کښې داسې فیصله کړې ده چې : ﴿لَا يَنْهٰىكُمُ اللّٰهُ عَنِ الَّذِيْنَ لَمْ يُقَاتِلُوْكُمْ فِي الدِّيْنِ وَلَمْ يُخْرِجُوْكُمْ مِّنْ دِيَارِكُمْ اَنْ تَبَرُّوْهُمْ وَتُقْسِطُوْٓا اِلَيْهِمْ﴾ [کوم کافران چې مسلمانانو آزار رسولو پسې نه وی اونه ورسره جنګ کوی ، هغوئ سره داحسان کولو نه مسلمانان نه منع کوی] نو د رسول کریم ﷺ او د صحابه کرام ﷺ بې شمیره داسې واقعات شته چې کفارو سره ئې قسماقسم ښیګړې کړی دی کوم کفار به چې ضرورت مند ضعیف یا مجبور وی. داسې د کفارو باره کښې خود عدل او انصاف قائم لرلو اسلام عام حکم ورکوی ، خالص په میدان جنګ ئې هم د عدل او انصاف پخلاف دهیڅ کاروائ کول جائز نه دی ګرځولی.

د صحابه کرام ﷺ دویم صفت دا بیان کړې شو چې ددوئ عام حال دادې چې په رکوع ، سجده او مونځ کښې مشغول اوسیږی ، دوئ ﷺ ته کتونکی خلق ئې اکثر په دې کار کښې مشغول بیان مومی ، ړومبې صفت ئې دایمان د کاملوالی نخښه ده ، دویم صفت د عمل د کاملوالی بیان دې ، ولې چې په عملونو کښې دټولو نه زیات غوره عمل مونځ دې.

﴿سِيْمَاهُمْ فِيْ وُجُوْهِهِمْ مِّنْ اَثَرِ السُّجُوْدِ﴾ یعنی مونځ ددوئ دژوند داسې یوه وظیفه جوړه شوې ده چې د مونځ او سجدې مخصوص نخښې ددوئ د څهرو نه ښکاره کیږی ، ددې نخښو نه مراد هغه انوار دی چې د بندګئ او خضوع خشوع نه د هر متقی عبادت ګزار په څهره باندې څرګندیږی

هغه ستغ یازخه ترې ترې مراد نه ده چې د سجدو کولو په وجه د څینې مونځ ګذارو په تندو کښې وی ، خصوصاً د تهجدو دمونځ دا اثر ډیر واضح کیږی . نو په ابن ماجه کښې د جابر رضي الله عنه نه روایت دې چې رسول کریم ﷺ فرمائیلی دی چې ﴿من کثر صلوته بالیل حسن وجهه بالنهار﴾ [څوك چې دشپې مونځونه ډیر کوی نو دهغه مخ د ورځې ښکلې او بانوره ښکاری]. او حضرت حسن بصری رحمه الله فرمائیلی چې دې نه مراد د مونځ ګزارو د مخونو هغه نور دې چې په قیامت کښې به څرګندیږی .

﴿ذٰلِكَ مَثَلُهُمْ فِي التَّوْرٰىةِ ۚ وَمَثَلُهُمْ فِي الْاِنْجِيْلِ ۚ كَزَرْعٍ اَخْرَجَ شَطْئَهٗ﴾ د صحابه کرامو رضي الله عنهم کومه نخه چې پورته بیان شوه چې د سجدو او مونځونو نور ددوئ د تندو نښخه ده ، دا آیت ښائی چې ددوئ دا مثال په تورات کښې بیان شوې دې ، بیا فرمائی چې په انجیل کښې ددوئ یو بل مثال دا ورکړې شوې دې چې دوئ داسې څنګه چې یو کروندګر په زمکه کښې څه تخم رازرغن کړی نو اول هغه دیو کمزوری تیغ په شکل کښې څرګندشی ، بیا دهغې نوې څانګې راوځی ، بیا هغه نور قوی شی ، بیا دهغې مضبوطه تنه جوړه شی .

دا شان د رسول کریم ﷺ نه سوا صرف درې مسلمانان وو چې په سرو کښې صدیق اکبر رضي الله عنه په ښځو کښې خدیجه رضي الله عنها او په ماشومانو کښې علی رضي الله عنه ، بیا رو رو ددوئ قوت زیاتیدو تر دې چې دحجة الوداع په موقع باندې رسول کریم ﷺ سره په حج کښې شریك صحابه کرام رضي الله عنهم یونیم لاك ته نزدې خودلې شوی دی . پدې کښې درې احتماله دی . یو دا چې په ﴿فِي التَّوْرٰىةِ﴾ باندې وقف اوکړې شی او تیر شوې مثال ددوئ دڅهرو نور دا نخښه د تورات په حواله بیان کړې شوه ، د ې پسې ﴿مَثَلُهُمْ فِي الْاِنْجِيْلِ﴾ باندې وقف اونه ړکې شی نو په دې صورت کښې به ئې معنی دا وی چې د صحابه کرامو رضي الله عنهم مثال په انجیل کښې د هغې فصل یا ونې دې چې په اول کښې ډیر زیات کمزورې وی بیا رو رو قوی تنه دا جوړ شی .

بل احتمال دادې چې په ﴿فِي التَّوْرٰىةِ﴾ باندې د وقف کولو په ځائې په ﴿مَثَلُهُمْ فِي الْاِنْجِيْلِ﴾ باندې وقف اوکړې شی نو معنی به ئې داوی چې په تورات کښې بیان کړې شوې نخښه د مخونو د نور په انجیل کښې هم ده او ورپسې ﴿كَزَرْعٍ﴾ مثال خان لـه اوګرځولې شی . دریم احتمال دادې چې ﴿فِي التَّوْرٰىةِ﴾ باندې دې هم کلام ختم شی او نه ﴿فِي الْاِنْجِيْلِ﴾ باندې لفظ د ﴿ذٰلِكَ﴾ راتلونکی مثال مثال ته اشاره وی نو معنی به ئې دا وی چې په تورات او انجیل دواړو کښې د صحابه کرامو رضي الله عنهم د زرع یعنی فصل ورکړې شوې دې ، که په دې زمانه کښې تورات او انجیل پخپل اصلی حالت کښې وې نو دهغې په لیدو سره به د قرآن پاك مراد په ګوته کړې شوې وې خو په دې دواړو کښې د بدلون راوستو سلسله بې حده او بې شمیره ده ځکه څه یقینی فیصله به نه شی کیدې خواکثرو حضراتو مفسرینو رومبې احتمال غوره کړې دې ، چې په کښې رومبې مثلا په تورات کښې او دویم په انجیل کښې کیدل معلومیږی ، امام بغوی رحمه الله فرمائې چې صحابه کرامو رضي الله عنهم دا مثال په انجیل کښې دې چې په ال کښې به لږ وی ، بیا به وده اوکړی او هغوئ به د نیکو کارونو حکم او د بدو کارونو نه منع کوی [مظهری].

دهغې د پیشنګویئ الفاظ موجود دی چې د تورات په باب استنثاء ۱۲۳-۱ تر ۳ پورې داسې راخستې شوی دی :

خداوند د سینا نه راغلو او د شعیر نه په هغوئ څرګند شو ، هغه د کوه فاران نه جلوه ګر شو ، لسو مقدسو سره راغلو او د هغه په ښي لاس کښې یو د اور شریعت هغوئ دپاره وو هغه خپلو خلقو سره ډیره مینه لری ، دهغه ټول مقدس ستا لاسونه دی او هغه د قدمونو خواته ناست دي ستا خبره به منی .

دا اول معلوم شوی دی چې دمکې مکرمې فتح په وخت د صحابه کرامو ﷺ شمیر لس زره وو چې د فاران ن راختونکی دغې نورانی شکل سره په خلیل ښار کښې داخل شوی وو او د هغه په لاس کښې به د اور شریعت وی ، ددې لفظ نه ﴿أَشِدَّآءُ عَلَى الْكُفَّارِ﴾ ته اشاره بیا مونډې شی . هغه به خپلوخلقوسره مینه کوی په دې لفظ سره د ﴿رُحَمَآءُ بَيْنَهُمْ﴾ مضمون په پوهه کښې راځی. ددې پوره تفصیل سره د نورو حوالو په اظهار الحق جلد دویم باب شپږم صفحه ۲۵۶ کښې شته دې ، دا هغه کتاب دې چې د عیسائیت د حقیقت واضح کولو دپاره مولانا رحمت الله کیرانوی ﷺ دپادری فنډ په مقابله کښې لیکلې وو ، په دې کتاب کښې دانجیل دتمثیل داشان بیان دې چې په انجیل متی باب ۱۳ آیت ۳۱ کښې دا الفاظ دی : هغه یوبل تمثیل د هغوئ په وړاندې پیش کولو سره اووئیل چې د آسمان بادشاهی د اوری د دانې برابر ده کومه چې یو سړی په خپل پټی کښې کرلې وی ، هغه د ټولې تخمونو نه خو وړوکې دې خو چې کله وده کوی نو د ټولو ترکاریانو نه لوئې او داسې ونه شی چې دهوا مارغان دهغې په غوږګو باندې ځان له جوړوی ، او دانجیل مرقس ۴: ۲۶ کښې دا الفاظ دی چې د قرآن کریم الفاظو سره ډیر نزدې دی : هغه اووئیل چې د خدائې بادشاهی داسې ده لکه چې څوك بنده په زمکه کښې تخم واچوی ، د شپې اوده کیږی او د ورځې ویخیږی ، او دغه تخم په دې شان راؤټوکیمی او وده کوی چې هغه نه پوهیږی ، زمکه پخپله دځان ن میوه کوی . رومبې پاڼړې بیا توکرئی بیا په توکرو کښې تیارې دانې ، بیا کله چې غله پخه شوه نو هغه زر تر زره په لور استعمالولو شروع ړکی ځکه چې د ریبلو وخت ئې راؤرسیدو [اظهار الحق جلد/۳] باب شپږ صفحه/ ۲۱۰ ، د آسمانی د بادشاهئ نه مراد دنبی آخرالزمان کیدل د انجیل دګنړو ځایونو نه ښکاره کیږی ، والله اعلم .

﴿لِيَغِيظَ بِهِمُ الْكُفَّارَ﴾ یعنی الله ﷻ صحابه کرامو ﷺ لره په هغې کاملو صفتونو سره ښائسته کړل او ورته ئې دکمزورئ نه پس قوت ، دلړوالی نه پس ډیروالې اوبخښلو ، دا ټول کار دې دپاره اوشو چې ددې په لیدو سره کافران په غصه شې او هغوئ دحسد په اور کښې سوځی .
ابوعروه زبیری فرمائیلی دی چې مونږ د امام مالك ﷺ په مجلس کښې حاضر وو یو سړی د خینې صحابه کرامو ﷺ په شان کښې دسپکاوی څه خبرې اوکړې نو امام مالك ﷺ دا پوره آیت مبارك تلاوت کړو کله چې :

﴿لِيَغِيظَ بِهِمُ الْكُفَّارَ﴾ ته راؤرسیدو نو وې فرمائیل چې دکوم بنده په زړه کښې د صحابه کرامو ﷺ خینې چاته هم غصه وی نو ددې آیت وعید لاندې هغه راځی . [قرطبی]
امام مالك ﷺ خودا او نه فرمائیل چې هغه به کافر شی بلکه دائې اوفرمائیل چې دې وعید لاندې به راځی ، مطلب ئې دا شو چې ددغسې کس کر دار لکه د کافران دې .

﴿وَعَدَ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ مِنْهُمْ مَغْفِرَةً وَأَجْرًا عَظِيمًا﴾ د ﴿مِنْهُمْ﴾ لفظ د ﴿مِنْ﴾ بیانیه دې څنګه چې په دې باندې د مفسرینو اتفاق دې معنی ئې داده چې دا خلق د ایمان او عمل صالح دواړو خاوندان دی ، الله ﷻ دوئ لره د بخښنې او لوئې اجر وعده کړې ده . ددې نه یوخو دا معلومه

شوه چي ټول صحابه کرام ﷺ دايمان او نيک عمل خاوندان دي ، دويمه دا چي دوئ ټولو لره دبخښني اولوئي اجر وعده ده اوداسي من بيانيه دقرآن کريم په ډيرو ځايونو کښي استعمال شوي دي ، لکه ارشاد دي چي ﴿فَاجْتَنِبُوا الرِّجْسَ مِنَ الْأَوْثَانِ﴾ نو ﴿مِنَ الْأَوْثَانِ﴾ کښي ﴿مِنْ﴾ بيانيه دي ، يعني ﴿الْأَوْثَانِ﴾ د ﴿الرِّجْسَ﴾ بيان دي . دا شان هم په ﴿مِنْهُمْ﴾ د ﴿الَّذِينَ آمَنُوا﴾ بيان دي ، رافضيان چي دي من ته تبغيضيه وائي او مطلب ئي دا راوباسي چي دا وعده په هغوئ کښي هغه کسانو سره ده چي دايمان او عمل صالح خاوندان دي ، نو داسراسري دچلن دکلام نه اود تيرو شوؤ آيتونو نه خلاف پريوځي ولي چي ددي آيت په مفهوم کښي خوهغه صحابه کرام ﷺ بيشکه شامل دي کوم چي دحديبيه په سفر او بيعت رضوان کښي شامل وو او د آيت مبارک مصداق دي ، نوددي ټولو په باره کښي الله ﷻ د بيان شوؤ آيتونو په ذريعه دخپلي رضا مندئي اعلان کړي دي ، فرمائي چي ﴿لَقَدْ رَضِيَ اللَّهُ عَنِ الْمُؤْمِنِينَ إِذْ يُبَايِعُونَكَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ﴾ او دالله ﷻ درضا مندئي دا اعلان ددي خبري ضمانت دي چي دا ټول به د مرګ تر وخته پوري په ايمان اونيک عمل باندي کلک ولاړ وي . ولي چي الله ﷻ خو عليم اوخبير ذات دي ، که دچا باره کښي ورته دا علم وو چي هغه به په ايمان او نيک عمل باندي کلک پاتي نشي نو دهغوئ دپاره به ئي دخپلي رضامندئ اعلان نه وو کړي ، ابن عبدالبر رحمه الله د استيعاب په مقدمه کښي دا آيت مبارک نقل کړي دي او ليکي چي ﴿ومن رضى الله عنه لم يسخط عليه ابدا﴾ چا نه چي الله ﷻ راضي شو هغه نه به هيڅري خفه نشي . او رسول کريم ﷺ ددي آيت مبارک په بنا ارشاد اوفرمائيلو چي : څوک په بيعت رضوان کښي وو په هغي کښي به هيڅوک هم په اور يعني جهنم کښي نه داخليږي . نو دا وعده هرکله چي په اصل کښي د صحابه کرامو ﷺ دپاره شوي وه خکه تري ځني خارخول باطل دي ، هم په دغه وجه ټول امت په دي اتفاق لري چي صحابه کرام ﷺ ټول په ټوله عادل او ثقه دي .

**صحابه کرام ﷺ ټول په ټوله جنتيان دي ددوئ ﷺ خطاګاني بخښلي شوي دي په هغوئ کښي څه نقص راوبکل لويه ګناه ده** :: د قرآن عظيم الشان ډيرو آيتونو کښي په ښکاره دا بيان شوي دي ، څو آيتونو مبارک خو په دي سورة کښي دي لکه فرمائي چي ﴿لَقَدْ رَضِيَ اللَّهُ عَنِ الْمُؤْمِنِينَ﴾ ، ﴿وَأَلْزَمَهُمْ كَلِمَةَ التَّقْوَىٰ وَكَانُوا أَحَقَّ بِهَا وَأَهْلَهَا﴾ دي نه علاوه نور هم په ډيرو آيتونو کښي دا مضمون راغلي دي ، لکه فرمائي چي ﴿يَوْمَ لَا يُخْزِي اللَّهُ النَّبِيَّ وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ﴾ ﴿وَالسَّابِقُونَ الْأَوَّلُونَ مِنَ الْمُهَاجِرِينَ وَالْأَنْصَارِ وَالَّذِينَ اتَّبَعُوهُمْ بِإِحْسَانٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ وَرَضُوا عَنْهُ وَأَعَدَّ لَهُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي تَحْتَهَا الْأَنْهَارُ﴾ اوپه سورة حديد کښي د صحابه کرامو ﷺ په باره کښي فرمائي چي ﴿وَكُلًّا وَعَدَ اللَّهُ الْحُسْنَىٰ﴾ يعني دوئ ټولو سره الله ﷻ د حسنى وعده کړي ده . بيا سورة انبياء کښي د حسنى په باره کښي فرمائي چي ﴿إِنَّ الَّذِينَ سَبَقَتْ لَهُمْ مِنَّا الْحُسْنَىٰ أُولَٰئِكَ عَنْهَا مُبْعَدُونَ﴾ يعني چا سره چي زمونږ دا رخه دحسنى فيصله رومبي شوي د ه هغه به جهنم ته نه داخليږي او رسول کريم ﷺ اوفرمائيل چي :

خير القرون قرنى ثم الذين يلونهم ثم الذين يلونهم [بخاري]

ټولو زمانو کښي زما زمانه زياته غوره ده ، دي نه پس د هغي زماني خلق زيات غوره دي چي زما د زماني سره نزدي دی بيا هغه چي دي سره نزدي دی .[بخاري].

او يو حديث پاك كښې ارشاد دې چې زما صحابه كرام ﷺ ته بد مه وايئ ځكه چې دهغوئ د ايماني قوت په وجه د هغوئ حال داسې دې چې كه په تاسو كښې څوك دالله ﷻ په لار كښې د احد د غر برابر سره زر خيرات كړي نو هغه به دهغوئ د خيرات كړو د يو مد هم برابر نشي . او نه د نيم مد برابر . مد د عربو پيمانه ده چې تقريبا زمونږ د نيم سير برابر جوړيږي . [بخاري]

او د حضرت جابر ﷺ نه روايت دې چې رسول كريم ﷺ اوفرمائيل چې الله ﷻ زما صحابه كرام ﷺ په ټول جهان كښې خوښ كړې دى ، بيا زما په صحابه كرام ﷺ كښې څلور غوره كړې شوى دى ، ابوبكر صديق ﷺ ، عمر ﷺ ، عثمان ﷺ او علي المرضى ﷺ .[روايت كړو بزار په صحيح سند سره] اوپه يو حديث پاك كښې راغلى دى چې :

الله الله في اصحابي لاتتخذوهم غرضا من بعدي فمن احبهم فبحبي احبهم ومن ابغضهم فببغضي ابغضهم

كښې جمع كړې دى دا كتاب خور شوې دې په دې باندې د ټول امت اجماع ده او د صحابه كرام ﷺ ترمينځه چې كوم اختلافات د جنګ حد ته اورسيدل د هغې متعلق د بحث تمحيص تنقيد او تحقيق يا د سكوت مسئله هم په تفصيل سره ليكلې شوې ده او هم د هغې ځينې دضرورت په اندازه دسورة محمد په تفسير كښې بيان شوې ده ، هلته ئې اوګورئ.

والله المستعان وعليه التكلان

تمت بحمد الله وعونه سورة الفتح للتاسع والعشرين من شعبان ۱۳۹۲ ولله الحمد اوله واخره

| اياتونه | سورة الحجرات مدنية وهي ثماني عشرة اية وفيها ركوعان | ركوع ګاني |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ | |
| ۱۸ | شروع كوم په نوم د الله چه ډيرمهربان زيات رحم كونكې دې | ۲ |

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ | آمَنُوا | لَا تُقَدِّمُوا | بَيْنَ يَدَيِ اللَّهِ

اے هغه كسانو | چې ايمان مو راوړې دې | مه وړاند كوئ خان | مخكښې دالله نه |

اې مومنانو ! تاسو دالله ﷻ اود رسول ﷺ نه [په هيڅ كار كښې] مه وړاندې كيږئ

وَرَسُولِهِ | وَاتَّقُوا اللَّهَ | إِنَّ اللَّهَ | سَمِيعٌ عَلِيمٌ ① | يَا أَيُّهَا الَّذِينَ

او درسول دهغه نه | اواويريږئ دالله نه | بيشكه الله | ښهٔ اوريدونكې ښه پوهه دې | اې هغه كسانو

........ | اودالله ﷻ نه ويريږئ | الله ﷻ ډير آوريدنكې ښه پوهه دې | ........اې مومنانو

آمَنُوا | لَا تَرْفَعُوا | أَصْوَاتَكُمْ | فَوْقَ | صَوْتِ النَّبِيِّ

چې ايمان مو راوړې دې | مه پورته كوئ | آوازونه خپل | دپاسه | د آواز دنبي |

........خپل آوازونه د نبي ﷺ په آواز باندې مه اوچتوئ|

وَلَا تَجْهَرُوا | لَهُ | بِالْقَوْلِ | كَجَهْرِ | بَعْضِكُمْ | لِبَعْضٍ

او مهٔ كوئ په اوچت آواز | دهٔ ته | خبره | پشان داوچت آواز كولو | دبعضو ستاسو | بغضو ته

اومه هغه سره په زوره خبره كوئ| ........ لكه څنګه چې تاسو ديوبل سره په زوره خبرې كوئ

أَنْ تَحْبَطَ | أَعْمَالُكُمْ | وَأَنْتُمْ لَا تَشْعُرُونَ ۝ | إِنَّ الَّذِينَ
هسې نه چې عبث شي | عملونه ستاسو | او تاسو به خبر نه یئ | بیشکه هغه کسان
هسې نه چې ستاسو عملونه ضائع شي | او تاسو پرې خبر هم نه یئ | ............بیشکه

يَغُضُّونَ | أَصْوَاتَهُمْ | عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ | أُولَٰئِكَ الَّذِينَ | امْتَحَنَ اللَّهُ
چې ښکته ساتي | اوازونه خپل | په نزد د رسول | دالله | دا هغه کسان دي | چې ازمائيلي دي الله
کوم خلق چې دالله ﷻ د رسول په حضور کښې خپل اوازونه ښکته ساتي | هم دا هغه خلق دي

قُلُوبَهُمْ | لِلتَّقْوَىٰ ۚ | لَهُمْ | مَغْفِرَةٌ | وَأَجْرٌ عَظِيمٌ ۝ | إِنَّ الَّذِينَ
زړونه دهغوئ | دپاره دتقوى | دپاره دهغوئ | ښښنه ده | او اجر لوئ دې | بيشکه هغه کسان
چې دکومو زړونه الله ﷻ د پرهيزګارئ دپاره ازمائيلي دي | هغوئ دپاره ښښنه او لوئې اجر دې

يُنَادُونَكَ | مِنْ وَرَاءِ الْحُجُرَاتِ | أَكْثَرُهُمْ | لَا يَعْقِلُونَ ۝ | وَلَوْ أَنَّهُمْ
چې اوازونه کوي تاته | دبهر دکور نه | زيات دهغوئ نه | نه پوهيږي | او که چرې هغوئ
څوک چې تاته دکورونو د بهر نه چغې وهي | په هغوئ کښې زيات خلق نه پوهيږي | او که دوئ

صَبَرُوا | حَتَّىٰ | تَخْرُجَ | إِلَيْهِمْ | لَكَانَ | خَيْرًا | لَهُمْ ۚ
صبر کړي وې | تر دې پورې | چې ته راوتلي وې | هغوئ ته | نو وه | بهتره | دپاره دهغوئ |
لږ صبر کړي وې | تر دې چې تا پخپله تشريف راوړې وو | نو دا به ددوئ دپاره ډيره بهتره وه

وَاللَّهُ | غَفُورٌ | رَحِيمٌ ۝
او الله بخښونکي | مهربانه دي |
او الله ﷻ بخښونکې ډير رحم کونکې دې |

## آسان ترجمه قرآن

اے ایمان والو! د الله تعالی او د هغه د رسول نه مه وړاندې کیږئ او د الله تعالی نه ویریږئ. الله تعالی یقیناً هر څه اوری، او په هر څه پوهیږی. اے ایمان والو! خپل آوازونه د نبی علیه السلام د آواز نه مه پورته کوئ، او مهٔ هغهٔ سره خبره کولو په وخت کښې داسې په زوره وینا کوئ، څرنګه چه تاسو یو بل سره په زوره وینا کوئ. هسې نه چه ستاسو عملونه برباد شی، او تاسو ته پته هم اونه لګی. یقین اوکړه، چه کوم خلق د الله تعالی د رسول (صلی الله علیه وسلم) په وړاندې خپل آوازونه ښکته ساتی، داهغه خلق دی، چه ددوی زړونه الله تعالی د ډیر امتحان نه پس دتقوٰی دپاره منتخب کړې دی. دوی ته مغفرت هم حاصل دې او لوئې اجر هم. (اے پیغمبره) کوم خلق چه تاته د حجرو نه شاته آوازونه درکوی، په هغوی کښې اکثرو کښې عقل نشته که دې خلقو تر هغه وخته پورې صبر کړې وې، تر دې پورې چه ته خپله بهر راوتې وې او دوی ته راغلې وې نو ددوی دپاره به بهتره وه. او الله تعالی ډیر بخونکې دې، ډیر زیات مهربان دې.

## خلاصه تفسیر

**د سورت ربط او شان نزول:** ددې نه وړاندې په دو سورتونو کښې دجهاد احکام وو په کومو سره چه اصلاح دعالم او افاق مقصود وه په دې سورت کښې د اصلاح نفس احکام او اداب ذکر دی

خصوصا هغه احکام کوم چه د اداب معاشرت سره تعلق لري او قصه ددې ایتونو دنزول داده چه یو خل دقبیله بنوتمیم خلق دنبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضر شول دا خبره زیر غور وه چه په دې قبیله به حاکم څوك جوړولې شی حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه دقعقاع ابن معبد په نسبت رائ ورکړه او حضرت عمر رضی الله عنه داقرع بن حابس متعلق رائ ورکړه په دې معامله کښې دحضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه او عمر رضی الله عنه په مینځ کښې دنبی کریم ﷺ په مجلس کښې خبرې وشوې اوخبرې زیاتې شوې د دواړو اوازونه وچت شول په دې باند دا ایتونه نازل شول[بخاری]([1])

﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُقَدِّمُوا بَيْنَ يَدَيِ اللَّهِ وَرَسُولِهِ﴾[اے ایماندارو دالله تعالی او درسول] ﷺ داجازت [نه وړاندتاسو] په څه قول یا فعل کښې [وړاند والې مه کوئ] یعنی ترڅو پورې چه په قوی قرائنو سره یا په وضاحت سره د خبرو اجازت نه وی خبرې مه کوئ لکه چه په ذکر شوې واقعه کښې کومه چه سبب دنزول ددې ایتونو شوه په دې کښې انتظار کول پکار وو چه یا خو دوی ﷺ په خپله څه فرمائیلې وی یا دوی ﷺ د حاضرینو دمجلس نه تپوس کړې وې بغیر دانتظار نه دځانه خبرې شروع کول ټیك نه وو ځکه چه د خبرو جواز په اذن شرعی موقوف وو خواه دا اذن قطعی وی یعنی په وضاحت سره یاظنی په قوی قرائنو سره غلطی دا وشوه چه انتظار ونه شو په دې دا ایت نازل شو ﴿وَاتَّقُوا اللَّهَ ۚ إِنَّ اللَّهَ﴾[او دالله تعالی نه ویره کوئ بیشکه الله تعالی] ستاسو ټولو خبرولره ﴿سَمِيعٌ عَلِيمٌ﴾[اوریدنکې] او ستاسو په کارونو [پوهیدونکې دې] او ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَرْفَعُوا أَصْوَاتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ النَّبِيِّ﴾[اے ایماندراو تاسو خپل اوازونه د پیغمبر] ﷺ [داوازنه مه وچتوئ ﴿وَلَا تَجْهَرُوا لَهُ بِالْقَوْلِ﴾ اومه دوی ﷺ ته داسې په چغه خبرې کوئ ﴿كَجَهْرِ بَعْضِكُمْ لِبَعْضٍ﴾ لکه چه په خپل مینځ کښې په چغو خبرې کوئ] یعنی هرکله چه د دوی ﷺ په وړاندې څه خبره کول وی نو په اوچت اواز سره ئې مه کوئ چه دغه خبره تاسو په خپل مینځ کښې کوئ او هرکله چه دوی ﷺ ته خبره کوئ نو هغه هم په برابر اواز سره مه کوئ ﴿أَنْ تَحْبَطَ أَعْمَالُكُمْ وَأَنْتُمْ لَا تَشْعُرُونَ﴾[هسې نه چه ستاسو عملونه بربادشی اوتاسو ترې نه خبر هم نه یئ] ددې مطلب دادې چه د اواز وچتول کوم چه صورة بې باکی او بې پرواهی ده او په اوچت اواز سره داسې خبرې کول لکه په خپل مینځ کښې چه دیوبل سره بې تکلف خبرې کوئ دایوقسم له ګستاخی ده دخپل تابع او خادم له اړخه داسې خبرې ناخوښه او تکلیف رسونکې کیدې شی اود الله تعالی رسول ته ازار رسول ټول نیك عملونه برباد وی البته ځینې اوقات کله چې طبیعت کښې زیاته کشادګی وی دا کارونه بیا تکلیف ده نه وی نودغه وخت رسول کریم ﷺ ته د نه ایذاء په وجه دا ګفتګو بیا د عملونو بربادولو موجب نه کیږی لیکن متکلم له دامعلومول چه داوخت زماداسې خبرې په خاطر بار او موجب ازار نه وی اسان کارنه شی کیدې چه متکلم داوکنړی او خبرې وکړی چه په دې سره به رسول الله ﷺ ته ازار نه وی مګر په واقع کښې ددغونه ازار ورسیږی نو خبرې به ددهٔ عملونه حبط او برباد کړی اګر چه ددهٔ به ګمان هم نه وی چه زما په دې خبرو زما څومره تاوان وشو په دې وجه اواز وچتول او خبرې په زور کول مطلقا منع کړې شوې ځکه چه داسې خبرې دځنو خلقو اګر چه موجب د ازار او حبط اعمال نه

([1]) صحیح البخاري کتاب التفسیر ، تفسیر سورة الحجرات باب لا ترفعوا اصواتکم فوق صوت النبی الآیة [ج:۲ص:۷۱۸]

وي مگر ددې تعين به څنگه وشي په دې وجه په زوره خبرې کول ټولو خلقو لره پريښودل پکار دي تردې پورې څو د اواز په پورته کولو باند وويرولې شول اوس د اواز ښکته کولو ترغيب دې چه ﴿إِنَّ الَّذِينَ يَغُضُّونَ أَصْوَاتَهُمْ عِندَ رَسُولِ اللَّهِ﴾ [بيشکه کوم خلق چه خپل اوازونه درسول الله ﷺ په وړاند ښکته ساتي ﴿أُولَٰئِكَ الَّذِينَ امْتَحَنَ اللَّهُ قُلُوبَهُمْ لِلتَّقْوَىٰ﴾ دا هغه خلق دي دکومو زړونو لره چه الله تعالى دتقوى دپاره خالص کړي دي] يعنى د هغوى په زړونو کښې دتقوى خلاف څه شې نه راځي مطلب دا معلوميږي چه په دې خاص معامله کښې دا حضرات په کمال تقوى سره متصف دي څکه چه دترمذي په مرفوع حديث کښې دکمال تقوى بيان په دې الفاظو کښې راغلې دې [لايبلغ العبد ان يكون من المتقين حتى يدع مالا بأس به حذرا لما به بأس](¹) يعنى بنده کمال تقوى ته ترهغه وخته پورې نه شي رسيدې چه هغه څه داسې څيزونه هم په کومو کښې چه څه گناه نه وي ددې احتياط په بنا پريږدي چه دا جائز کار چرې ما په ناجائز کار کښې اخته نه کړي مراد ترې نه هغه مشتبه کارونه دي په کومو کښې چه دگناه خطره او شبهه وي لکه د اواز او چتولو يو فرد داسې دې په کوم کښې چه گناه نشته يعنى هغه چه مخاطب ته په کښې ازار نه وي او يو فرد هغه دې چه گناه ده په کښې يعنى دکوم نه چه ازار رسيږي نو کمال تقوى په دې کښې ده چه بنده مطلقا په زوره خبرې کول پريږدي وړاندې ددوى دعمل د اخروى فائدې بيان دې ﴿لَهُم مَّغْفِرَةٌ وَأَجْرٌ عَظِيمٌ﴾ [دداسې خلقو دپاره مغفرت او لوئ اجر دې] او دراتلونکو ايتونو قصه داده چه هم دغه بنو تميم دنبى کريم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو نو دوى ﷺ بهر تشريف فرمانه وو بلکه د ازواجو مطهراتو په حجروکښې چرته په يوه حجره کښې تشريف فرماوو دغه دباندې وغيره مهذب خلق وو دبهرنه ئې ددوى نوم اخستو اوازونه ئې کول چه [يا محمد اخرج الينا] يعنى اے محمد ﷺ مونږ ته بهر راوځه په دې باندې دا ايتونه نازل شول لکه په درمنثور(²) کښې په روايت دابن اسحق ﷺ د ابن عباس ﷺ نه دي ﴿إِنَّ الَّذِينَ يُنَادُونَكَ مِن وَرَاءِ الْحُجُرَاتِ﴾ [کوم خلق چه دحجرونه بهر تاته اوازونه کوي ﴿أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُونَ﴾ په هغوى کښې داکثرو عقل نشته] چه که عقل ئې وې نو ستا ادب به ئې کولو داسې د نوم اخستلو او دبهرنه د اوازونو کولو جرءات به ئې نه کولو او داکثر هم فرمائيلو وجه يا خوداده چه څنو اواز کوونکو په خپله دا جراءت نه وو خو نورو ئې وليدل نو داسې ئې وکړل او يااگر چه ټول يو شانې دي خو داکثر هم لفظ ئې څکه وفرمائيلو چه څوك پرې مشتعل نه شى څکه چه هرسړې به داخيال کوي چه شايد ماته ئې نه دي وئيلي دو عظ او نصيحت دا طريقه ده چه دداسې کلماتو نه احتياط وکړې شي په کومو سره چه مخاطب ته اشتعال پيداشي ﴿وَلَوْ أَنَّهُمْ صَبَرُوا﴾ [اوکه دې خلقو] لږ [صبر] او انتظار [کولې ﴿حَتَّىٰ تَخْرُجَ إِلَيْهِمْ﴾ ترهغې چه ته دوى ته راوځې ﴿لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ﴾ نو دا به ددوى دپارغوره وه] څکه چه دا د ادب خبره وه [او] که اوس هم توبه وباسى نو معاف به شي څکه چه ﴿وَاللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾ [الله تعالى غفور او رحيم دې]

## معارف او مسائل

ددې آيتونو مباركو د نازليدو باره كښې دحديث د روايتونو مطابق بقول قرطبى(³)

---

(¹) جامع الترمذي، ابواب صفة القيامة باب ماجاء في صفة اواني الحوض [ج:۲ ص:۷۱]
(²) الدرالمنثور تحت هذه الآية [ج:۹ ص: ۲۴۵]
(³) تفسير القرطبي تحت هذه الآية [ج:۱۶ص:۳۰۰، ۳۰۱]

شپږ واقعات منقول دي ، او قاضي ابوبکر بن عربي رحمه الله فرمائي چې دا ټول واقعات صحيح دي ځکه چې هغه ټول واقعات د آياتونو په مفهوم کښې داخل دي، په دې کښې يوه واقعه هغه ده چې دتفسير په خلاصه کښې د بخاري په روايت کښې بيان شوې ده.

﴿لَا تُقَدِّمُوا بَيْنَ يَدَيِ اللّٰهِ وَرَسُولِهِ﴾ د ﴿بَيْنَ الْيَدَيْن﴾ اصلي معنی د دواړو لاسونو تر مينځه ده، مراد ترې مخامخ په مخاخ دي، مطلب دادې چې د رسول کريم ﷺ نه مخه وړاندې کيږئ ، دا وړاندې والي په څه کښې منع دې ، آيت کښې داسې څه وضاحت نشته دې ، ځکه اشاره په کښې عمومو ته شوه چې په هيڅ خبره يا کار کښې د رسول کريم ﷺ نه مخه وړاندې کيږئ ، بلکه د رسول کريم ﷺ دجواب انتظار کوئی ، البته که څوك په جواب کول مامور کړی نو هغه جواب ورکولې شی ، داشان که رسول کريم ﷺ روان وی نو څوك د ې ترې وړاندې کيږی نه ، که غونډه د خوراك وی نوڅوك دې خوراك وړاندې نه شروع کوی ، خو کله چې ښکاره چاته حکم اوکړی يا ئې په قوی نخښنو سره حکم کول معلوم شی نو بيا ترې وړاندې هغه کار کولې شی څنګه چې په سفر او په جنګ کښې څه کسان به ئې وړاندې تلو باندې مامور کول.

**داسې آدب ددينی علماء کرامو او مشرانو هم کول پکار دی :** ځينې علماء کرام فرمائ چې د دينی عالمانو او بزرګانو د ادب کولو هم دغه حکم دې ځکه چې دوئ د پيغمبرانو ﷺ وارثان دی، ددې دليل دادې چې يو ځل رسول کريم ﷺ اوليدل چې ابوالدرداء رضي الله عنه د ابوبکر صديق رضي الله عنه نه مخکښې روان وو ، نو رسول کريم ﷺ په دې خبرداري ورکړو او وې فرمائيل چې آيا ته دداسې کس نه مخکښې روان يې چې دنيا او آخرت کښې ستانه غوره دې ، او وې فرمائيل چې په دنيا ی.د نمر راختل او ډوبيدل په داسې يو کس نه دی شوی چې د پيغمبر ﷺ نه پس ابی بکر صديق رضي الله عنه نه زيات غوره وی [روح البيان د کشف الاسرار نه](¹) په دې بنا علماء کرام فرمائ چې د خپل استاد او مرشد هم داسې ادب کول پکار دی.

﴿لَا تَرْفَعُوا أَصْوَاتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ النَّبِيِّ﴾ د رسول کريم ﷺ د مجلس دويم ادب دا بيان شوې دې چې د رسول کريم ﷺ په مخکښې د رسول کريم ﷺ نه خپل آواز نه پورته کوئ او مه په زوره آواز سره خبرې کوئ څنګه چې په بيباکئ سره خپل مينځ کښې کوئ ، ولې چې دا يو قسم بې ادبی ده ، نو د دې آيت مبارك په نازليدو سره د صحابه کرامو رضي الله عنهم دا حال شو چې ابوبکر صديق رضي الله عنه عرض اوکړو چې : يارسول الله ﷺ ! قسم مې په دې وی چې زه به تر مرګه پورې تاسو ﷺ سره داسې خبرې کوم لکه چې څوك چاسره د پردې خبرې په پټه خله کوی. [در منثور د بيهقی نه](²).

او عمر فاروق رضي الله عنه دومره په رو رو آواز سره خبرې کول شروع کړل په ځينې وختونو کښې چې د دوباره تپوس کولو ضرورت پيښيدو(³) د ثابت بن قيس رضي الله عنه هسې قدرتی آواز اوچت وو،

---

(¹) روح البيان المعروف بتفسير حقي تحت هذه الآية [ج:١٤ ص:٤٨] و كنز العمال رقم الحديث[٣٢٦٢٢]

(²) الدرالمنثور تحت هذه الآية [ج:٩ ص:٢٤٠] و مسند البزار مسند ابي بكر الصديق رضي الله عنه رقم الحديث:[٥٦]

(³) جامع الترمذي ، ابواب التفسير باب سورة الحجرات[ج:٢ ص:١٦٢] و صحيح البخاري كتاب التفسير سورة الحجرات باب لا ترفعوا اصواتكم فوق صوت النبي الآية [ج:٢ص:٧١٨]

ددې آيت مبارك په آؤريدو سره ډير اوويريدو او ژړل ئې او خپل آواز ئې رو كړو [بيان القرآن د درمنثور نه] (١).

**د روضهٔ اقدس په وړاندې هم په ډير اوچت آواز سره سلام كول منع دي ::** قاضي ابو بكر بن عربي رحمه الله چې د رسول كريم ﷺ تعظيم ادب كول د رسول كريم ﷺ د وفات نه پس هم داسې واجب دى څنګه چې ې په ژوند مبارك كښې واجب وو ، څكه علماء كرام فرمائ چې د رسول كريم ﷺ قبر شريف په وړاندې هم په ډير اوچت آواز سره سلام ، كول د ادب نه خلاف دى ، دغسې په كوم مجلس كښې چې د رسول كريم ﷺ احاديث لوستلې يا بيانولې شي په هغې كښې هم شور ، كول بې ادبي ده ولې چې د رسول كريم ﷺ كلام كله چې د رسول كريم ﷺ د ژبې مباركې نه ادا كيدلو هغه وخت ټولو دپاره په خاموشئ سره ئې آؤريدل واجب اوضروري وو هغسې ئې د وفات نه پس هم ادب او تعظيم كول پكار دى اود حديث پاك د درس اوبيان په وخت شور كول بې ادبي ده (٢).

**مسئله::** دغه حكم د رسول كريم ﷺ د وارثانو دمجلس هم دې چې د لويو علماء كرامو په مجلس كښې دومره اوچت آواز سره دې څوك خبرې نه كوى چې د هغوئ آواز په كښې پوره نشى آؤريدې . [قرطبى] (٣).

﴿أَنْ تَحْبَطَ أَعْمَالُكُمْ وَأَنْتُمْ لَا تَشْعُرُونَ﴾ د ﴿أَنْ تَحْبَطَ﴾ لفظ د ﴿لَا تَرْفَعُوا﴾ مفعول له دې چې په كښې د حكم علت خودلې شوې دې پخلاف د مصدر سره يعنى ﴿خَشْيَةَ أَنْ تَحْبَطَ﴾ په دې بيا د آيت معنى داشوه چې خپل آواز دنبى ﷺ په آواز باندې مه اوچتوئ ددې خطرې او ويرې په وجه چې هسې نه ستاسو عملونه برباد شى او تاسو پرې خبر هم نه يئ . دلته د كلياتو او د منلو شوؤ قاعدو په اعتبار سره څو سوالونه پيدا كيږى . يو دا چې دنيكو عملونو بربادونكې څيز په اتفاق سره د اهل سنت والجماعت سره صرف كفر دې ، په بلې ګناه سره نور نيك عملونه نه ضائع كيږى . او دلته خطاب مؤمنانو او صحابه كرامو رضي الله عنهم ته دې اوخطاب ئې هم په ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا﴾ سره دې چې دغه فعل ئې كفر ته حسابيږى نو نيك عملونه ئې ولې بربادېږى ؟
بله دا چې څنګه ايمان يو اختيارى كار دې ترڅو چې څوك په خپل قصد سره كفر اختيار نه كړى هغه نه كافر كيږى ، او د لته د آيت مبارك په آخر كښې د ﴿وَأَنْتُمْ لَا تَشْعُرُونَ﴾ چې تاسو به پرې خبر هم نه يئ ، الفاظ راغلي دى ، نو خالص د كفر سزا پرې څنګه جارى شوه؟
سيدى حكيم الامة رحمه الله بيان القرآن كښې ددې توجيه داسې بيان كړې ده چې دا ټول اشكالونه او سوالونه پرې ختميږى ، هغه دادې چې معنى د آيت داسې وى ، ائې مسلمانانو ! تاسو د رسول الله ﷺ د آواز نه پخپل آواز اوچتولو او بيباكه جهر كولو نه ځان ساتئ ولې چې په داسې كولو كښې خطره ده چې ستاسو عملونه پرې برباد او ضائع شى اودا خطره څكه ده چې د رسول كريم ﷺ نه وړاندې كيدل يا د رسول كريم ﷺ په آواز باندې آواز اوچتول او پورته

---

(١) الدرالمنثور تحت هذه الآية [ج:۹ ص:۲۴۲] و صحيح مسلم كتاب الإيمان ، باب مخافة المؤمن ان يحبط..... الخ(بألفاظ مختلفة ومفصلة) [ج:١ص:٧٥]
(٢) أحكام القرآن لابن العربي تحت هذه الآية [ج:٤ ص:١٤٦١]
(٣) تفسير القرطبي [ ج:١٦ص:٣٠٧]

کول داسې يو کار دې چې په هغې سره د رسول کريم ﷺ په شان کښې د ګستاخۍ اوبې ادبۍ کيدو هم احتمال شته چې د رسول کريم ﷺ د ضرر سبب سره داسې اوګړي چې رسول کريم ﷺ ته به د ضرر ورکولو باعث جوړ شي ، خو ځينې کارونه دا احتمال لري چې رسول کريم ﷺ دپاره به ترې ضرر اورسيږي لکه ترې وړاندې آواز پورته کول اګر چې په قصد د ضرر نه وي خو بيا نې هم دا احتمال شته ،ځك دا مطلقا منع او ګناه اوګرځولې شو ، او د ګناهونو خاصيت دا وي چې د هغې په کولو سره توبه اود نيکوعملونو د توفيق اخستل کيږي ، او هغه په ګناهونو کښې اخته کيدوسره آخر کفرته رسيږي چې دنيکو عملونو دضائع کيدوسبب دې دچا خپل ديني مقتداء ، استاد يا مرشد ته زيان رسول داسې يوه ګناه ده چې د توفيق اخستو خطره په کښې وي ، دغسې داکارونه د پيغمبر نه وړاندې کيدل ، او خپل آواز ترې پورته لرل ، داسې ګناهونه اوګرځولې شو چې د توفيق سلب کيدو خطره په کښې ده اوآخر ئې دا شرمندګۍ کفرته اورسوي چې ورسره ټول نيك عملونه ضائع کيږي او هرکله چې د کوڼکي قصد د زيان ورکولو نه وو ځکه به هغه خبر هم نشي چې په کفر کښې ئې د اخته کيدو او دنيکو عملون د بربادېدو اصل سبب ئې څه وو . ځينې علماء کرام فرمائي چې که چا يو نيك عمله بزرګ خپل مرشد جوړ کړې وي دهغه د ګستاخۍ اوبې ادبۍ هم دا حال دې چې په ځينې وختونو کښې هغه هم دتوفيق اخستلو او شرميدوسبب جوړيږي چې آخرکاريا ايمان هم برباد کړي[1]،نعوذ بالله منه

﴿إِنَّ الَّذِينَ يُنَادُونَكَ مِن وَرَآءِ الْحُجُرَٰتِ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُونَ۝﴾ په دې آيت مبارك کښې د رسول کريم ﷺ دريم ادب دا خودلې شوې دې چې کله رسول کريم ﷺ پخپل مکان او آرامګاه کښې تشريف لري نو دابهرنه ورته آوازونه کول خصوصا په نوم مبارك سره ئې بلل بې ادبي ده چې دعقل کارنه دې.

﴿الْحُجُرَٰتِ﴾ د حجرة جمع ده ،اصلي معنی ئې هغه چار ديواری ده چې څه حصه ئې انګړ اوڅه حصه ئې کوټکه وي،دغسې حجرې د ازواجو مطهراتو دپاره په مدينه منوره کښې نهه وې، د هرې يوې بی بی رضي الله عنها دپاره ئې جداجدا حجره وه چرته به چې رسول کريم ﷺ په وار وار ورتلل.

**د امهات المؤمنين حجرې** :: ابن سعد په روايت د عطاء خراساني ليکلي دی چې دغه حجرې دکهجورو د څانګو نه جوړې شوې وې چې په دروازو باندې ئې د تورې وړئ غتې پردې زوړند وې[2] . امام بخاری رحمه الله پ ادب المفرد کښې او بيهقی د د اود بن قيس نه روايت کړې دې ، هغه وائي چې ما ددغې حجرو زيارت کړې دې . زما ګمان دادې چې د حجرې د دروازې نه تر چتيزې کوټکۍ پورې شپږ اوه لاسه اندازه وی او کوټکۍ به لس لاسه وی او د چت لوړ والې به اوۀ اته لاسه وی[3] ، د امهات المؤمنين دا حجرې د وليد بن عبد الملك په حکومت کښې دهغه په حکم سره په مسجد نبوی ﷺ کښې شامل کړې شوې دې ، پدغه ورځ مدينه منوره کښې ډيره ژړا وه[4].

[1] بيان القرآن [ج: ۱۱ ص:٤١]
[2] الطبقات الكبري لابن سعد ذكر بيوت النبي ﷺ وحجر ازواجه [ج: ۱ ص:٤٩٩]
[3] شعب الإيمان للبيهقي رقم الحديث[۱۰۳۲۹] والأدب المفرد للبخاری رقم الحديث :[٤٦٥] [ج: ۲ ص:۱۷۹]
[4] الطبقات الكبري لابن سعد [ج: ۱ ص:٤٩٩]

**د نازلیدو سبب**: امام بغوی رحمه الله په روایت د قتاده ذکر کړی دی چې د بنی تمیم قبیلې خلق چې د رسول کریم ﷺ په خدمت کښې حاضر شوی وو او بیان ئې تیر شوې دې ، دوئ د غرمې په وخت مدینې منورې ته اورسیدل ، کله چې رسول کریم ﷺ پخپله یوه معجزه کښې آرام کولو ، دا خلق کلیوال وو چې د زیست روزګار د آدابو نه خبر نه وو دوئ د بهر نه رسول کریم ﷺ ته آوازونه کول شروع کړل چې :

﴿اخرج الینا یا محمد﴾ (۱) په دې باندې دا آیت مبارك نازل شو چې په داسې شان د آواز کولو نه منع او د انتظار کولو حکم راغلو. په مسند احمد ترمذی وغیره کښې هم دا روایت په مختلفو الفاظو سره راغلې دې. [مظهری] (۲).

**فـائده**: صحابه کرامو رضی الله عنهم او تابعینو داسې ادب دخپلو عالمانو اوپیرانو کړې دې ، په صحیح بخاری وغیره کښې د ابن عباس رضی الله عنه نه منقول دی چ زهٔ کله د یو عال صحابی رضی الله عنه نه څه حدیث معلومول به مې غوښتل نو د هغه مکان ه په ورتلو باندې مې هغه ته دروازې ټکولو نه ځان ساتلو ، آواز به مې هم ورته نه کولو ، دروازې نه بهر به مې ورته انتظار کولو چې پخپله به ئې بهر تشریف راوړلو هغه وخت به مې ترې حدیث معلوم کړو. هغه به چې زهٔ په داسې حالت کښې اولیدم نو راته به ئې اوفرمائیل چې ائې د رسول الله ﷺ د تره ځویه ، دروازه دې راته ولې نه ټکوله؟ نو ابن عباس رضی الله عنه اوفرمائیل چې عالم پخپل قوم کښې د نبی پشان وی اوالله تعالی دنبی په شان کښې د هدایت فرمائیلې دې چې دهغوئ دبهر راتلو انتظار دې کولې شی،ابوعبیده رحمه الله اوفرمائیل چې ماچرته یو عالم ته دروازه نه ده ټکولې،بلکه انتظار مې کړې دې چې پخپله به بهر ته تشریف راوړی هله به ورسره ملاقات کوم. [روح المعانی] (۳).

**مسئله**: دې آیت مبارك کښې ﴿حَتّٰى تَخۡرُجَ اِلَيۡهِمۡ﴾ کښې د ﴿اِلَيۡهِمۡ﴾ قید زیاتولو سره دا ثابت شو چې صبر او انتظار هغې پورې کول پکار دی چې پخپله خلقو سره دملاقات کولو دپاره بهر راوځی. دې نه معلومه شوه چې که دبل څه ضرورت دپاره بهر ته راوځی نو دغه وخت کښې هم ورته دخپل مطلب خبره بیانول پکار نه دی البته که پخپله ئې ورته مخه شی نو هله ورسره دخپل مطلب خبره کولې شی.

| اِنۡ جَآءَكُمۡ | اٰمَنُوۡٓا | يٰٓاَيُّهَا الَّذِيۡنَ | | |
|---|---|---|---|---|
| که راشی تاسو ته | چې ایمان مو راوړې دې | اے هغه کسانو | | |
| ائې مومنانو ! که یو فاسق سړې درته څه | | | | |
| قَوۡمًاۢ | اَنۡ تُصِيۡبُوۡا | فَتَبَيَّنُوۡٓا | بِنَبَاٍ | فَاسِقٌۢ |
| یو قوم ته | هسې نهٔ چې تاسو اورسوئ ضرر | نو ښه تحقیق کوئ | په خبر سره | یو فاسق |
| اوبیا | هسې نه چې په ناپوهۍ کښې یو قوم ته نقصان اورسوئ | نوښه تحقیق کوئ | خبر راوړی | |

(۱) ترجمه:- زمونږ طرفته رااوځه یا محمد!
(۲) تفسیر المظهري [ج:۹ ص:۴۳] و الدرالمنثور [ج:۹ ص:۲۴۱] و مسند احمد رقم الحدیث :۲۷۲۰۳] و جامع الترمذي ، ابواب التفسیر من باب سورة الحجرات [ج:۲ ص:۱۶۲]
(۳) روح المعاني تحت هذه الآیة [ج:۱۹ ص:۲۶۳]

| بِجَهَالَةٍ | فَتُصْبِحُوا | عَلٰى مَا | فَعَلْتُمْ | نٰدِمِيْنَ ۞ |
|---|---|---|---|---|
| په ناپوهۍ سره | بيا تاسو شئ | په هغه کار باندې | چې کړې وې تاسو | پښېمانه |

پخپلو کړو به ستومانه شئ

## آسان ترجمه قرآن

اے ایمان والو، که يو فاسق تاسو ته څه خبر راوړي، نو ښه تحقيق اوکړئ چرته داسې نه وي، چه تاسو په نادانۍ کښې چاته تکليف اورسوئ، او بيا په خپلو کړو باندې پښيمانه يئ.

## خلاصه تفسير

﴿يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا اِنْ جَآءَكُمْ فَاسِقٌۢ بِنَبَاٍ﴾ [اے ايماندارو که څوك سړې شرير تاسو ته څه خبرې راوړي] چه په هغې کښې د چا څه شکايت وی [نو] بغير د تحقيق نه په هغې عمل مه کوئ بلکه که عمل کول مقصود وی نو ﴿فَتَبَيَّنُوْۤا اَنْ تُصِيْبُوْا قَوْمًۢا بِجَهَالَةٍ﴾ [ښه تحقيق کوئ هسې نه چه يو قوم ته په ناپوهۍ سره ضرر ورسوی ﴿فَتُصْبِحُوْا عَلٰى مَا فَعَلْتُمْ نٰدِمِيْنَ ۞﴾ او بيا په خپلو کړو باند ستومانه شئ]

## معارف او مسائل

**شان نزول** :: ددې آيت مبارك د نازليدو واقعه ، ابن کثير رحمه الله په حواله د مسند احمد رحمه الله سره دانقل کړې ده چې دبنی المصطلق قبيلې درئيس حارث بن ضرار ابن ابی ضرار چې د هغوئ لور بی بی جويريه رضی الله عنها بنت حارث په امهات المؤمنين کښې شامله ده ، حارث رضی الله عنه فرمائی چې زۀ د نبی کريم صلی الله عليه وسلم خدمت کښې حاضر شوم نو نبی کريم صلی الله عليه وسلم ماته د اسلام دعوت راکړو او دزکوة ادا کولو حکم ئې راته اوفرمائيلو. ما اسلام قبول کړو او عرض مې اوکړو چې اوس خپل قوم ته په ورتلو به هغوئ ته هم د اسلام قبلولو او زکوة ادا کولو بلنه ورکوم ، څوك چې زما په وينا زکوة ورکوی هغه به زۀ جمع کړم او تاسو صلی الله عليه وسلم د فلانئ مياشتې تر فلانئ نيټې پورې راته يو استاذې راؤليږئ دپاره ددې چې د زکوة هغه جمع شوې رقم زه هغه ته اوسپارم ، په دې شان کله چې مطابق د وعدې حاث رضی الله عنه دايمان راوړونکو زکوة جمع کړو. او په هغې ټاکلې نيټه ورته دهغې د وصولولو دپاره څوك استاذې ورنغلو حارث رضی الله عنه ته خطره پيښه شوه چې ګنې نبی کريم صلی الله عليه وسلم مونږ نه په څه خبره خفه شوې دې څکه ئې د وعدې مطابق خپل سړې راؤنه ليږلو. ورنه دا ممکن نه ده چې هغوئ دې دوعدې مطابق خپل يو کس نه راوليږی حارث رضی الله عنه ددې ذکر نورو هغې سرداراًنو سره اوکړو چې اسلام ئې قبول کړې وو او اراده ئې اوکړه چې ټول په جمع د نبی کريم صلی الله عليه وسلم خدمت کښې حاضر شی.

بل طرفته دلته واقعه داسې اوشوه چې رسول کريم صلی الله عليه وسلم په مقرره نيټه وليد بن عقبه خپل استاذې جوړ کړو او زکوة وصولولو دپاره ئې اوليږلو. خو په لار کښې د وليد بن عقبه دا خيال راغلو چې ددغې قبيلې سره زما پخوانۍ دښمنی ده ، هسې نه چې هغوئ مې اووژنی ، ددې ويرې نه هغه هم دلارې نه راواپس شو او نبی کريم صلی الله عليه وسلم ته ئې عرض اوکړو چې ددغې خلقو زکوة ورکولو نه انکار اوکړو. او زما د وژلو اراده ئې اوکړه. څکه نبی کريم صلی الله عليه وسلم غصه شو او

د خالد بن ولید رضي الله عنه په مشرئ کښې یې د مجاهدینو یو لښکر اولیږلو. یو خوا دغه لښکر روان شو بل طرفته حارث رضي الله عنه خپلو ملګرو سره نبی کریم ﷺ په خدمت کښې د حاضریدو د پاره رارُوان شو. مدینې منورې سره د دغې دواړو ډلو ملاقات اوشو. حارث رضي الله عنه ترې تپوس اوکړو چې تاسو کومو خلقو ته رالیږلې شوی یئ، دغې خلقو اووئیل چې مونږ تاسو ت رالیږلې شوی یو. حارث رضي الله عنه ترې نه د دې وجه اوپوښتله. نو هغوئ ورته د ولید بن عقبه رضي الله عنه قیصه بیانکړه. او دا ئې هم ورته اووئیل چې هغه نبی کریم ﷺ ته دا هم فرمائیلی دی چې بنی المصطلق د زکوٰة ادا کولو نه انکار کړې دې. او زما د وژلو اراده یې کړې ده او منصوبه یې جوړه کړې ده د دې په آوریدو سره عقبه بن عامر اووئیل په هغه الله ﷻ باندې مې قسم وی کوم چې محمد ﷺ په حقه پیغمبر رالیږلې دې، ما خو ولید بن عقبه لیدلې هم نه دې او نه ما ته راغلې دې.

د دې نه پس حارث رضي الله عنه چې کله د نبی کریم ﷺ خدمت کښې حاضر شو نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې تاسو د زکوٰة اداکولو نه انکار کړې دې او زما د استاذی د وژلو اراده مو کړې ده؟ حارث رضي الله عنه اوفرمائیل چې هیچرې نه، په هغه ذات مې دې قسم وی چا چې تاسو د حق پیغام درکړو او تاسو یې مبعوث کړئی. نه خو هغه ما لیدلې دې او نه زما خواته راغلې دې. خو هرکله چې ستاسو استاذې په مقرره نیټه باندې رانغلو نو ما سره ویره شوه چې ګنی زما نه به څه قصور شوې وی او د هغې په وجه به رانه نبی کریم ﷺ خفه شوې وی. د دې وجې نه زه پخپله ستاسو ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم. حارث رضي الله عنه فرمائی چې په دې باندې دا آیتونه مبارك نازل شو. [ابن کثیر رحمه الله][1].

او په ځینې روایتونو کښې راغلی دی چې ولید بن عقبه د حکم مطابق بنی المصطلق ته اورسیدو نو د دغې قبیلې خلق د هغه د هرکلی د پاره راووتل ولې چې د راتلو نیټه ئې تاکلې شوې وه. ولید بن عقبه په شك کښې شو چې شاید د زړې دښمنئ په وجه زما په وژلو پسې راغلی دی، هم د دغه ځائې نه واپس شو او د خپل ګمان مطابق ئې نبی کریم ﷺ ته دغسې عرض اوکړو چې دا خلق زکوٰة ورکولو ته تیار نه دی. بلکه زما د وژلو د پاره راوتی وو، څکه خالد بن ولید رضي الله عنه له نبی کریم ﷺ اولیږلو او د ښه تحقیق کولو هدایت ئې ورته اوکړو او ورته اوفرمائیل چې پخپله نور هیڅ اونه کړې. خالد بن ولید چې هلته اورسیدو نو د آبادئ نه بهر ئې دیره اولګوله. او څو جاسوسان یې پټ په پټه دننه اولیږل. هغوئ خبر راوړو چې د دې آبادئ خلق په اسلام او ایمان باندې قائم دی، د مونځ او زکوٰة پابند دی، او هیڅ خبره په کښې د اسلام نه خلاف او نه موندې شوه. خالد بن ولید رضي الله عنه په واپسئ کښې د ټوله قصه نبی کریم ﷺ ته بیان کړه، په دې باندې دا آیت مبارك نازل شو. [دا د ابن کثیر د ګڼړو روایتونو خلاصه ده].

د دې آیت مبارك نه دا ثابت شو چې څوك شریر، فاسق بنده که د چا بنده یا قوم ته شکایت اوکړی او الزام پرې اولګوی نو د هغه په خبرو یا ګواهئ باندې د مکمل تحقیق نه بغیر عمل کول جائز نه دی.

[1] تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة [ج: ۷ ص:۳۷۱] و مسند احمد، حدیث الحارث بن ضرار رقم الحدیث:[۱۸۴۵۹]

**آیت سره تړلي احکام او مسائل** :: امام جصاص رحمه الله په احکام القرآن[۱] کښې اوفرمائيل چې دې آيت نه ثابت شو چې د يو فاسق خبر قبلول او په هغې عمل کول تر هغې جائز نه دی تر څو چې په نورو ذريعو سره تحقيق کولو نه پس صحيح ثابت نشی . ځکه چې په دې آيت مبارک يو قرآن ﴿فَتَبَيَّنُوٓا﴾ دې د هغې معنی داده چې په هغې باندې عمل کولو اوپرې څه کار وايئ کولو کښې تيزی مه کوئی بلکه مضبوط قدم اوسيږئ تر څو چې په نورو ذريعو سره ددې رښتيا والې ثابت نه شی . او کله چې د فاسق خبر قبلول جائزنشو نو ګواهی قبلول ئې دهغې نه پر سر کښې جائز نشو. ولې چې هره ګواهی داسې يو خبر وی چې قسم سره ئې مضبوطيا کړې شوی وی ځکه دجمهورو عالمانو په نزد خبر يا ګواهی د فاسق دشريعت ترمخه قبول نه د ه البته په ځينې معاملو او حالاتو کښې د فاسق خبر او ګواهی هم قبلولې شی ، هغه ددې حکم نه بهر دی ، ولې چې قرآن عظيم الشان ددې حکم يو خاص علت ښکاره بيان کړې دې چې :
﴿اَنْ تُصِيْبُوْا قَوْمًا بِجَهَالَةٍ﴾ نو په کومو معاملاتو کښې چې دا علت موجود نه وی هغه د آيت مبارک په حکم کښې داخل نه دی ، يا ترې اوښکلې شوی دی لکه دا چې څوک فاسق بلکه کافر هم څه څيز راوړی اودا وائی چې فلانی بنده تاته دا ډالئ راليږلې ده نو د هغه په خبر باندې عمل کول روا دی ، ددې زيات تفصيل د فقهې په کتابونو معين الاحکام وغيره کښې شته دې ، او ما عاجز بنده په احکام القرآن عربی شپږم حزب کښې ددې تفصيل ليکلې دې ، دعلم خاوندان ئې په دې کښې ليدلې شی .

**دې باره کښې يومهم سوال جواب چې صحابه کرام رضی الله عنهم عدل او انصاف کوونکی دی** :: صحيح روايتونو نه ثابت شوی دی چې دا آيت مبارک د وليد بن عقبه باره کښې نازل شوې دې ، او په آيت مبارک کښې ورته فاسق وئيلې شوی دی ، دې نه په ظاهره دا معلوميږی چې په صحابه کرامو رضی الله عنهم کښې څوک فاسق کيديشی اودا د هغې منلې شوې او اتفاقی ضابطې خلاف دی چې : ﴿الصحابة كلهم عدول﴾ صحابه کرامو رضی الله عنهم ټول په ټوله ثقه دی ، د هغوئ رضی الله عنهم به څه خبر يا ګواهئ باندې څه ګرفت نشی کيدې . علامه آلوسی رحمه الله روح المعانی[۲] کښې اوفرمائيل چې په دې معامله کښې حق خبره هغه ده چې جمهور عالمان ورته تلی دی چې صحابه کرام رضی الله عنهم معصوم نه دی ، هغوئ رضی الله عنهم نه لويه ګناه هم کيديشی چې فسق دې او ددغې ګناه په وخت به هغوئ رضی الله عنهم سره هغه معامله کولې شی دکومې چې دوئ رضی الله عنهم حقدار دی ، يعنی شرعی سزا به پرې جاری کولې شی او که دروغ ئې ثابت شو نو خبر اوګواهئ به ئې رد کولې شی ليکن د قرآن عظيم الشان اوحديث د نصونو په بنياد داهل سنت والجماعت عقيده داده چې صحابی نه خو ګناه کبيره ، خو هيڅ صحابی رضی الله عنهم داسې نه دې چې د ګناه نه په توبه کولو سره پاک کړې شوی نه وی ، قرآن عظيم الشان په اطلاق سره د هغوئ رضی الله عنهم په باره کښې د الله جل جلاله د رضا دا فيصله کړې ده چې ﴿رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ وَرَضُوْا عَنْهُ﴾[۳] او د الله جل جلاله رضا د ګناهونو د معافئ نه بغير نشی کيدې لکه چې قاضی ابويعلی فرمائی چې رضا د الله جل جلاله صفت

---

[۱] أحكام القرآن للجصاص تحت هذه الآية [ج:۸ ص:۴۳۴]
[۲] روح المعاني تحت هذه الآية [ج:۱۹ ص:۲٦۷]
[۳] ترجمه:- الله تعالى ددې ټولو نه راضی شو او هغوئ ټول د هغه ذات نه راضی شول.

قدیمه دي ، الله ﷻ د خپلي رضا اعلان صرف هغوئ دپاره کوی چې د هغه متعلق د هغه علم وی چې دوئ به په هغې حالت کښې وفات کيږی چې کوم دالله ﷻ درضا موجب وی.[الصارم المسلول د ابن تیمیه][۱]

خلاصه داده چې د صحابه کرامو رضی الله عنهم په عظیم الشانه ډله کښې د شمیر یو څو کسانو نه کله که ګناه هم شوې ده خو سمدستی ورته توبه نصیب شویده ، الله ﷻ د نبی کریم ﷺ د ملګرتیا په برکت ددوئ رضی الله عنهم طبیعت داسې جوړ کړې وو چې د شریعت نه خلاف څه کار یا ګناه به ترې ډیره کمه شوې وی . د هغوئ رضی الله عنهم نیك عملونه دا وو چې په نبی کریم ﷺ به ئې خپل ځانونه قربانول . هر کار کښې به ئې دالله ﷻ او د هغه درسول ﷺ تابعداری کول هغوئ رضی الله عنهم د خپل ژوند معمول جوړ کړې وو او دې دپاره به ئې داسې کوششونه کول چې مثال ئې په تیرو امتونو کښې نشی موندې . ددې بې شمیره نیکو عملونو ، فضیلتونو او کمالونو په مقابله کښې په ټول عمر کښې څۀ ګناه تر کیدل د نیشت برابر ګرځی . بلـه دا چې د هغوئ به زړونو کښې دالله ﷻ او د نبی کریم ﷺ مینه د او لوئی ځائې شوې وه چې دمعمولې ګناه په وخت به په هغوئ ویره دالله ﷻ پخپله پیش شوه او سمدستی به ئې ترې اوبه اوویسته بلکه خپل ځانونه به ئې د سزا دپاره پخپله پیش کول ، نو کله به ئې خپل ځان د مسجد ستنې سره تړلو وغیره ، داسې نور مثالونه د احادیثو په روایتونو کښې مشهور دی . اود حدیث پاك د حکم تر مخه توبه کوونکې داسې شی لکه چې د سره ئې ګناه کړې نه وی ،دریم دا چې د قرآن عظیم الشان د ارشاد مطابق نیك عملونه او نیکیانې پخپله هم د ګناهونو کفاره جوړیږی لکه فرمائی چې: ﴿إِنَّ الْحَسَنٰتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّاٰتِ﴾ خصوصا کله چې د هغوئ نیکئ د عامو خلقو پشان نه دی،بلکه دهغوئ حال هغه دې چې ابوداؤد او ترمذی دسعید بن زید رضی الله عنه نه نقل کړې دې چې:

﴿والله لمشهد رجل منهم مع النبی ﷺ یغبر فیه وجهه خیر من عمل احدکم ولو عمر عمر نوح﴾[۲]

په الله ﷻ مې دې قسم وی چې د هغوئ یو جهاد کښې شریکیدل نبی کریم ﷺ سره چې په هغې کښې ئې په مخ باندې ګرد پریوتې وی ، ستاسو د ټول عمر د عبادت نه زیات غوره دې ، اګرچې درته د نوح علیه السلام عمر در کړې شی .

څکه د هغوئ رضی الله عنهم نه د ګناه صادریدو په موقعه اګر چې معامله ورسره هم هغه اوکړې شوه چې دې جرم دپاره مقرر وه مګر سره ددې چا دپاره جائز نه دی چې په هغوئ کښې څوك فاسق اوبولی ، څکه د نبی کریم ﷺ په زمانه کښې یو صحابی رضی الله عنه نه څه ګناه دفسق موجب صادره شی او دغه وخت فاسق ورته هم اوویلې شی نو په دې سره دا نه جائز کیږی چې دغه فسق دې هم داسې جاری ګڼړی او معاذ الله فاسق ورته اوویلې شی.[روح المعانی][۳]

دې آیت مبارك کښې خوبالکل دا ضروری نه دی چې ولید بن عقبه رضی الله عنه ته فاسق وئیلې شوی وی اګر چې داهم د هغوئ رضی الله عنهم د واقعې باره کښې نازل شوې وې خو لفظ د فاسق هغوئ دپاره استعمالول څکه ضروری نه دی چې ددې واقعې نه مخکښې د ولید نه داسې څه کار نه

---

[۱] الصارم المسلول: [ج: ۱ ص:۳۱۲]
[۲] سنن ابی داود، کتاب السنة ، باب فی الخلفاء [ج:۴ص: ۶۳۹]
[۳] روح المعانی [ج:۱۹ ص:۲۶۷]

ووشوې چې د هغې په بنا ورته فاسق اووئيلې شي او په دې واقعه کښې چې هغوئ بنی المصطلق ته يوه غلطه خبره منسوب کړې وه هغه هم د هغوئ ؓ په خيال کښې صحيح وه اګر چې په واقع کيدو کښې غلطه وه ځکه ددې آيت مبارک بې تکلفه مطلب هغه کيديشی چې د تفسير په خلاصه کښې مخکښې شوې دې چې دې آيت مبارک کښې دا قاعده کليه بيان کړې ده چې د فاسق خبر نامقبول دې او کله چې په دغې واقعه کښې دا آيت مبارک نازل شو نو دې سره ئې زيات تاکيد داسې اوشو چې اګر چې وليد بن عقبه فاسق نه وو خو د هغوئ ؓ خبر په قوی قرينو سره دقبلولو جوګه ښکاره نشو نو نبی کريم ﷺ خالص د هغوئ ؓ په خبر باندې د څه قدم پورته کولو نه ځان اوساتلو ، او خالد بن وليد ؓ ئې تحقيقاتو کولو دپاره اوټاکلو نو کله چې ديو ثقه او نيک بنده په خبر باندې د قرينو په بنا شبه اوشوه او د تحقيق نه مخکښې پرې عمل اونه کړې شو نو د فاسق خبر نه قبلول او په هغې باندې عمل نه کول نور هم زيات واضح شو د صحابه کرامو ؓ په عدالت باندې مکمل بحث ما عاجز بند په خپل کتاب مقام صحابه کښې بيان کړې دې چې هغه خور شوې هم دې او دهغې څه حصه به وروستو آيت ﴿وَاِنۡ طَآىِٕفَتٰنِ مِنَ الۡمُؤۡمِنِيۡنَ﴾[1] الاية. کښې هم راشی

| وَاعْلَمُوْۤا اَنَّ فِيْكُمْ رَسُوْلَ اللّٰهِ ؕ لَوْ يُطِيْعُكُمْ |
| --- |
| پوهه شئ \| چی بيشکه په منځ ستاسو کښی \| رسول دالله موجود دې \| که هغه خبره منل شروع کړی ستاسو |
| اوپوهه شئ \| چې په تاسو کښې دالله جل جلاله رسول موجود دې \| ډيرې خبرې داسې وی که هغه په کښې ستاسو |
| فِيْ كَثِيْرٍ مِّنَ الْاَمْرِ لَعَنِتُّمْ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ حَبَّبَ |
| په ډيرو معاملاتو کښی \| نو په مشکلاتو کښی په پريوزئ تاسو \| وليکن الله \| غوره کړو \| |
| خبرې اومنی \| نوپه مشکلاتو کښې به اخته شئ \| خو الله جل جلاله تاسو ته دايمان محبت |
| اِلَيْكُمُ الْاِيْمَانَ وَزَيَّنَهٗ فِيْ قُلُوْبِكُمْ وَكَرَّهَ |
| تاسو ته \| ايمان \| او ښائيسته ئې کړو هغه \| په زړونو ستاسو کښی \| او ناخوښه ئې کړو \| |
| نصيب کړې دې \| اوهغه ئې ستاسو په زړونو کښې ښائسته کړې دې \| ..........تاسو ته ئې کفر |
| اِلَيْكُمُ الْكُفْرَ وَالْفُسُوْقَ وَالْعِصْيَانَ ؕ اُولٰٓىِٕكَ |
| تاسو ته \| کفر \| او فسق \| او نافرمانئ \| دا کسان چی دی \| |
| اوبدعملی اونافرمانی ناخوښه کړې ده \| ..........هم دغه خلق په |
| هُمُ الرّٰشِدُوْنَ ۙ فَضْلًا مِّنَ اللّٰهِ وَنِعْمَةً ؕ وَاللّٰهُ |
| هم دوئ په نيغه لار روان دی \| په فضل سره \| دطرفه دالله نه \| او په احسان سره \| او الله \| |
| نيغه لارروان دی \| دالله جل جلاله په فضل او په انعام سره \| ..........او الله جل جلاله ښه |

[1] ترجمه:-اوکه په مسلمانانو کښې دوه ډلې خپلو کښې په جنګ شی نو ددوئ په مينځ کښې صلح کوئ.

| عَلِيمٌ | حَكِيمٌ ﴿٨﴾ |
| --- | --- |
| ښه پوهه دي | حکمت والا دي |
| پوهه صاحب دحکمت دي | |

## آسان ترجمه قرآن

او په دې خبره باندې ښه پوهه شئ، چه ستاسو په مينځ کښې د الله تعالى رسول موجود دې، ډيرې خبرې دي، که په هغې کښې نبي کريم (صلى الله عليه وسلم) ستاسو خبره اومنې نو تاسو به په خپله په مشکل کښې پريوځئ، ليکن الله تعالى ستاسو په زړونو کښې د ايمان محبت اچولې دې، اوهغه ئې ستاسو په زړونو کښې خائسته کړې دې، او ستاسو په زړونو کښې ئې د کفر، ګناهونو او نافرمانو نفرت کښينولې دې هم دغه خلق دی، چه په صحيح صحيح لارې باندې روان دی. چه د الله تعالى د طرف نه د فضل او نعمت نتيجه ده، او الله تعالى د علم هم مالک دې، د حکمت هم مالک دې.

## خلاصه تفسير

﴿وَاعْلَمُوٓا أَنَّ فِيكُمْ رَسُولَ اللَّهِ﴾ [او پوه شئ چه په تاسو کښې رسول الله] ﷺ تشريف فرما [دې] کوم چه د الله تعالى لوئ نعمت دې لکه چه الله تعالى فرمائى [لقدمن الله الخ](١) د دې نعمت شکر دادې چه په څه خبره کښې تاسو د دوی ﷺ خلاف مه کوئ اګر چه دنيوی ولې نه وی او په دې فکر کښې مه پريوځئ چه په دنيوی کارونو کښې دې حضور په خپله زمونږ دارائ موافقت کوی ځکه چه ﴿لَوْ يُطِيعُكُمْ فِي كَثِيرٍ مِّنَ الْأَمْرِ﴾ [ډير خبرې داسې دی چه که په هغې کښې دوی ﷺ ستاسو خبره منل شروع کړی ﴿لَعَنِتُّمْ﴾ نو تاسو ته به ډير ضرر رسيږی] ځکه چه که دغه دمصلحت نه خلاف وی نو خامخا به ددغې موافق په عمل کولو کښې مضرت وی په خلاف ددې چې ددوئ ﷺ په رائې باندې عمل اوکړې شی ځکه د امر دنيوی کيدلو باوجود په دې کښې دخلاف مصلحت کيدو احتمال اګر چه فى نفسه مستبعد اوخلاف دشان دنبوت نه دې ليکن اول خو داسې کارونه په کومو کښې چه داسې احتمال وی کم به وی بياکه وی هم او په هغې کښې مصلحت فوت هم شی نو داخومره لويه خبره ده چه ددې مصلحت نعم البدل يعنى اجر او ثواب داطاعت رسول به خامخا حاصل شی په خلاف د هغې چه ستاسو په رائ عمل وی اګر چه کله کله به داسې کارونه هم راوځی په کومو کښې چه مصلحت ستاسو درائ موافق وی ليکن متعين خونه دی اوبيا ډير کم به وی زيات احتمال د مضرت دې بيا ددې مضرت هيڅ تدارك نشته او ددې تقرير نه فائده دډيروا ی د قيدهم معلومه شوه په هرحال که دوی ﷺ ستاسو موافقت کولې نو تاسو به په لوئ مصيبت کښې پريوتئ ﴿وَلَٰكِنَّ اللَّهَ حَبَّبَ إِلَيْكُمُ الْإِيمَانَ﴾ [ليکن الله تعالى] تاسو لره د مصيبت نه بچ کړل داسې چه [تاسوته ئ د] کامل [ايمان محبت درکړو ﴿وَزَيَّنَهُ فِي قُلُوبِكُمْ﴾ او] د [دې] حصول [لره ئ ستاسو په زړونو کښې مرغوب کړلو ﴿وَكَرَّهَ إِلَيْكُمُ الْكُفْرَ وَالْفُسُوقَ وَالْعِصْيَانَ﴾ اوکفر او فسق] يعنى ګناه کبيره [او] مطلق

(١) دبوره آيت ترجمه داده:- حقيقت کښې الله تعالى په مسلمانانو باندې احسان اوکړو چې په دوئ کښې هم ددوئ دجنس نه يو داسې پيغمبر اوليږلو چې هغه دوئ ته دالله تعالى آيتونه لولی او ددې خلقو صفائى کوئى، کتاب او عقل خبرې ورته ښائى، او يقينى خبره ده چې دا خلق په ښکاره غلطئ کښې وو.

[نافرماني] يعنى صغيره گناه [نه يې تاسوته نفرت دركړو] په كوم سره چه تاسو هروخت دالله تعالى درسول درضا په لټون كښې يئ او په كوم سره چه تاسودغه حكمونه منئ كوم چه درسول د رضا دموجباتو نه دى چنانچه هركله تاسوته دامعلومه شوه چه په دنيوى كارونو كښې هم اطاعت رسول واجب دې او بغير د اطاعت مطلقه نه ايمان نه كامل كيږى او دكامل ايمان د حاصلولو رغبت د وړاند نه موجود دې پس تاسو فورا دغه حكم هم قبول كړو او په قبلولو مو دايمان نور تكميل وكړو ﴿أُولَٰئِكَ هُمُ الرَّاشِدُونَ﴾ [داسې خلق] كوم چه دايمان دتكميل محبان دى ﴿فَضْلًا مِّنَ اللَّهِ وَنِعْمَةً﴾ [دالله تعالى په فضل اوانعام سره په نيغه لاره باند دى ﴿وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ﴾ او الله تعالى] چه كوم دا احكام فرمائيلى دى نو هغه ددې په مصلحتونو [پوه] دې او چونكه [حكمت والا دې] په دې وجه يې دا احكام واجب كړى دى

## معارف او مسائل

ددې نه په مخكښې آيت مبارك كښې دوليد بن عقبه اود نبى المصطلق قبيلې واقعه بيان شوې ده چې په كښې وليد بن عقبه ﷺ د بنى المصطلق په باره كښې دهغوئ د مرتد كيدو او زكوة نه د منكريدو خبر وركړې وو ، چې ورسره صحابه كرام ﷺ هم جذبه كښې راغلل دهغوئ ﷺ راې دا وه چې دوئ سره دې جهاد كولو دپاره مجاهدين اوليږلې شى. خو نبى كريم ﷺ اوليدل چې دغې خبر قوى قرينو سره سمون نه لرلو نو ځكه ئې قبول نه كړو. او تحقيقاتو دپاره ئې خالد بن وليد اوليږلو.

تير شوى آيت مبارك كښې قرآن عظيم الشان دې لره قانون جوړ كړو چې د چا په خبر كښې په قوى قرينو سره څه شبه اوشى نو د تحقيق نه اول په هغې عمل كول جائز نه دى ، دې آيت مبارك كښې صحابه كرامو ﷺ ته يو بل هدايت دا وركړې شو چې د بنى المصطلق د مرتد كيدو په خبر ستاسو ﷺ دينى غيرت په جوش كښې راغلو ، خو رائې مو صحيح نه وه. د الله رسول ﷺ چې كوم صورت اختيار كړو هغه زيات غوره وو. [مظهرى][1]

مقصد دا دې چې دمشورې په كارونو كښې څه رائې وركول خو صحيح دى ليكن داكوشش كول چې نبى كريم ﷺ دې هم ستاسو د رائې مطابق عمل اوكړى ، دا صحيح نه دى. ځكه چې په دنيوى كارونو كښې داسې كيدل ډير شاذ ونادر دى چې د نبى كريم ﷺ رائې دې د مصلحت نه خلاف وى او دا د پيغمبرئ شان سره بې سمونه نه دى خو نبى كريم ﷺ ته د الله ﷺ وركړې پوهې او زيركئ ته ستاسو پوهه او زيركئ نشى رسيدې ځكه كه نبى كريم ﷺ ستاسو په رائې باندې اوچليږى نو په ډيرو معاملو كښې به درته نقصان او زيان شى. اوكه شاذ و نادر ستاسو په رائې كښې مصحلت وى او تاسو دپيغمبرئ د تابعدارئ په غرض خپله رائې پريږدى چې څه دنيوى نقصان به هم درته په كښې اورسيږى خو بيا هم د هغې دومره نقصان نشته څومره چې ستاسو د رائې په تابع كيدو كښې دې ولې چې دې صورت كښې به درته نبى كريم ﷺ د تابعدارئ ثواب اواجر خو حاصل شى چې بهترين بدل دې ، او لفظ د ﴿عَنِتُّمْ﴾ د عنت نه مشتق دې چې معنى ئې گناه هم كيدېشى اوپه مصيبت كښې اخته كيدل هم ، دلته دواړه معنى ترې مراد كيدې شى. [قرطبى][2]

[1] تفسير المظهري[ج:۹ص:۴۷]

[2] تفسير القرطبي تحت هذه الآية[ ج:۱٦ص:۳۱۴]

وَاِنْ طَآئِفَتٰنِ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ اقْتَتَلُوْا

| او که چرې دوه ډلې | دمومنانونه | اوجنګیږي |

| اوکه چرې دمومنانو دوه ډلې په خپل مینځ کښې جنګیږي

فَاَصْلِحُوْا بَيْنَهُمَا ۚ فَاِنْۢ بَغَتْ اِحْدٰىهُمَا

پس صلح اوکړئ | په منځ دهغوئ دواړو کښی | پس که چرې زیاتې اوکړو | یود دواړو نه |

نو دهغوئ په مینځ کښې صلحه کوئ | نوبیا که چرې یوه ډله په بله باندې زیاتې کوی

عَلَى الْاُخْرٰى فَقَاتِلُوا الَّتِيْ تَبْغِيْ حَتّٰى

په بله ډله باندې | پس جنګ کوئ تاسو | دهغې ډلې سره | چې هغه زیاتې کوی | تر دې پورې

نوتاسو هغه چا سره جنګ اوکړئ | کومه یوه چې زیاتې کوی | تر دې چې

تَفِيْٓءَ اِلٰٓى اَمْرِ اللّٰهِ ۚ فَاِنْ فَآءَتْ فَاَصْلِحُوْا

چې هغه واپس راشی | حکم دالله ته | پس که چرې | واپس راغله هغه | نو صلح اوکړئ

هغه دالله ﷻ حکم ته غاړه کیږدی | ..........نوکه بیرته اوګرځی | نودهغوئ په مینځ کښې

بَيْنَهُمَا بِالْعَدْلِ وَاَقْسِطُوْا ؕ اِنَّ اللّٰهَ

په منځ دهغوئ دواړو کښی | په انصاف سره | او انصاف کوئ | بیشکه الله |

په انصاف سره روغه کوئ | او پوره انصاف کوئ | ..............یقینا الله تعالی

يُحِبُّ الْمُقْسِطِيْنَ ۝ اِنَّمَا الْمُؤْمِنُوْنَ اِخْوَةٌ فَاَصْلِحُوْا

خوښوی انصاف کوونکی خلق | بیشکه مومنان | خپلو کښې رونړه دی | پس صلح [روغه] اوکړئ |

انصاف کونکی خوښوی | بیشکه مومنان خو رونړه رونړه دی | نودخپلو دوؤ رونړو په مینځ کښې

بَيْنَ اَخَوَيْكُمْ وَاتَّقُوا اللّٰهَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ ۝

په منځ درونړو ستاسو کښی | او اویریږئ دالله نه | دپاره ددې چې په تاسو رحم اوکړې شی |

روغه راولئ | ..او دالله ﷻ نه ویره کوئ | ............دې دپاره چې رحم درباندې اوکړې شی

**آسان ترجمه قرآن**

اوکه د مسلمانانو دوه ډلې په خپلو کښې په جګړه شی، نو د هغوی په مینځ کښې صلح اوکړئ. بیا که په هغوی کښې یوه ډله په بله باندې زیاتې اوکړی، نو هغې ډلې سره جنګ اوکړئ، کومه چه زیاتې کوی، تردې پورې چه هغه د الله تعالی حکم ته راواپس شی، نو که هغوی واپس شو، نو د هغوی په مینځ کښې انصاف سره صلح اوکړئ، او په (هره معامله کښې) د انصاف نه کار اخلئ. بے شکه الله تعالی د انصاف کونکو سره مینه ساتی. حقیقت دادې، چه ټول مسلمانان په خپلو کښې ورونړه دی، ددې وجې نه د خپلو دوؤ ورونړو په مینځ کښې تعلقات جوړ کړئ، او د الله تعالی نه ویریږئ، دې دپاره چه تاسو سره د رحمت معامله اوکړې شی.

## خلاصه تفسير

﴿وَإِنْ طَآئِفَتَانِ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ اقْتَتَلُوا﴾ [که په مسلمانانو کښې دوه ډلې په خپل مينځ کښې په جنګ شي ﴿فَأَصْلِحُوا بَيْنَهُمَا﴾ نو دهغوی په مينځ کښې اصلاح کوئ] يعنی د جګړې بنياد رفع کوئ جنګ ختموئ ﴿فَإِنْ بَغَتْ إِحْدَاهُمَا عَلَى الْأُخْرَىٰ﴾ [بيا که چرې] داصلاح دکوشش نه پس هم [په هغوی کښې يوه ډله په بلې زياتې کوی] او جنګ نه بندوی ﴿فَقَاتِلُوا الَّتِي تَبْغِي حَتَّىٰ تَفِيءَ إِلَىٰ أَمْرِ اللَّهِ﴾ [نو د هغې ډلې سره جنګ کوئ کومه چه زياتې کوی تردې چه هغه دالله تعالی حکم ته رجوع وکړی] د الله تعالی دحکم نه مراد جنګ بندول دی ﴿فَإِنْ فَاءَتْ﴾ [بيا که هغه] زياتی کوونکې ډله د الله تعالی حکم ته [رجوع وکړی] يعنی جنګ بند کړی ﴿فَأَصْلِحُوا بَيْنَهُمَا بِالْعَدْلِ﴾ [نو د هغه دواړو په مينځ کښې په عدل سره اصلاح وکړئ] يعنی دشرعی حدونو موافق د دوی معاملې فيصله کړئ محض په جنګ بندولو باند بس مه کوئ که صلح مصالحت ونه شی نو بيا به هم دجنګ احتمال وی ﴿وَأَقْسِطُوا﴾ [او دانصاف خيال ساتئ] يعنی څه نفسانی غرض مه غالب کوئ ﴿إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُقْسِطِينَ﴾ [بيشکه الله تعالی انصاف کوونکو لره خوښوی] او په خپل مينځ کښې داصلاح کولو حکم څکه درکړې شوې دې چه] ﴿إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ إِخْوَةٌ﴾ [مسلمانان خوېول] ددينی اشتراک کومه چه روحانی او معنوی رشته ده په دې رشته سره ديو بل [ورنړه دی ﴿فَأَصْلِحُوا بَيْنَ أَخَوَيْكُمْ﴾ په دې وجه دخپلو دوو ورونړو په مينځ کښې اصلاح کوئ] چه دا اسلامی برادری قائمه شی [او] د اصلاح په وخت کښې ﴿وَاتَّقُوا اللَّهَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ﴾ [دالله تعالی نه ويره کوئ] يعنی دشرعی حدودو رعايت ساتئ [چه په تاسو رحمت وشی]

## معارف او مسائل

**تړون** :: تيرو شوؤ آيتونو مبارکو کښې د نبی کريم ﷺ د حقونو او ادبونو او دداسې عملونو نه د ځان ساتلو بيان وو چې ورسره نبی کريم ﷺ ته ضرر رسيدو ، وربسې د عام زيست روزګار ادبونو او حکمونه دی چې په کښې د اجتماعی او ځانی دواړو قسمه ادبونو او خپل مينځ کښې دحقونوبيان دې اوپه دې ټولو کښې قدر مشترك د ضرر رسولو نه ځان ساتل دی.

**د نازليدو سبب** :: ددې آيتونو مبارکو په سبب د نازليدو کښې مفسرينو ګڼړ واقعات بيان کړی دی .چې په کښې د مسلمانانو د دوؤ ډلو ترمينځه سره تصادم شوې وو . څه لرې خبره نه ده چې دغه ټول واقعات په جمع سبب د نزول وی يا په هغې کښې يوه واقعه د نازليدو سبب وی ، چې دغه ټولې نورې واقعې دې سره يو شان دې ، څکه هغه هم سبب د نازليدو اوګرځولې شوې ، ددې اصل مخاطب هغه حاکمان او بادشاهان دی چې د جنګ او جهاد وسيلې ورسره وی .[ابو حيان په بحر کښې اووئيل او په روح المعانی کښې دې لره غوره کړې شو][1].

اوپه واسطې سره ټول مسلمانان ددې مخاطب دی چې هغوئ دې په دې معامله کښې د اولو الامر امداد کوی . او چرته چې څوك بادشاه ، امام ،امير يا سردار نه وی هلته حکم دا دې چې تر څو کيديشی دواړه ډلې دې پوهه کړی او د جنګ پريخودلو ته دې تيار کړې شی.که دواړو نه منل نو دواړو نه دې کناره کش شی نه دې د چا خلاف کوی او نه دې د چا ملګرتيا

---

[1] تفسير البحرالمحيط تحت هذه الآية [ج: ۱۰ص:۱۱۰]

كوي ، [بيان القرآن] [1].

**دې سره تړلې مسئلې** :: د مسلمانانو د دوؤ ډلو ترمينځه د جنګ څو صورتونه دي ، يو دا چې دواړه ډلې د امام المسلمين په ولقه كښې وي يا دواړه ئې په ولقه كښې نه وي ، يا يو ئې په ولقه كښې ده او بله نه ده.

ړومبې صورت كښې په عامو مسلمانانو باندې دا لازم دي چې په پوهولو سره ئې خپل مينځ كښې دجنګ كولو نه منع كړي. كه منع نشي نو په امام المسلمين باندې روغه راوستل واجب دي. كه د اسلامي حكومت منځګړتيا سره دواړو ډلې دجنګ نه منع شوې نو د قصاص او ديت حكمونه به جاري شي او كه دواړه فريقه منع نشو نو دواړه سره به د باغيانو معامله كولې شي او كه يوه ډله منع شوه نوهغه به عادلان بللې شي او د باغيانو د حكمونو تفصيل د فقهې په كتابونو كښې كتلې شي ، لنډ جامع حكم دادې چې د جنګ نه وړاندې به ترې وسلې واخستې شي ، ګرفتار به كړې شي اود توبې كولو تر وخته به قيد ساتلې شي ، او خالص دجنګ په وخت كښې اود جنګ نه پس به د دوئ آل وعيال غلامان او وينځې نشي جوړولې . د دوئ مال به د غنيمت مال نه وي البته توبې كولو پورې به ئې مالونه بند لرلې شي ، توبې نه پس به واپس وركولې شي ، په آيتونو مباركو كښې چې دا اوفرمائيلې شو:

﴿فَإِن فَاءَتْ فَأَصْلِحُوا بَيْنَهُمَا بِالْعَدْلِ وَأَقْسِطُوا﴾ كه دبغاوت كوؤنكې د باغي توب او جنګ نه منع شي نو صرف په جنګ بندولو باندې بس والې مه كوئ بلكه د جنګ د اسبابو او خپل مينځ كښې د شكايتونو د لرې كولو فكر كوئ چې د دواړو د زړونو نه بغض او دشمني اوځي او هميشه دپاره د رور ولئ چاپير چل جوړ شي او دې خلقو د امام المسلمين خلاف هم جنګ كړې دې ، ځكه كيدېشي چې ددوئ باره كښې پوره انصاف نه وي شوې ، ځكه قرآن عظيم الشان تاكيد اوكړو چې د دواړو ډلو په حقونو كښې دې د عدل او انصاف پابندي اوكړې شي. [دا ټول تفصيل دبيان القرآن نه اخستې شوې دې او هلته د هدائې حواله وركړې شوې ده] [2].

**مسئله** :: كه د مسلمانانو يو لوئې طاقت مند ډله د امام المسلمين دتابعدارئې نه اووځي نو په امام المسلمين باندې لازم دي چې اول دې د هغوئ شكايتونه واؤري كه ورته څه شبه ياغلط فهمي شوې وي نو هغه دې لرې كړي او كه هغوئ دمخالفت داسې وجهې پيش كړي چې د هغې په بنا باندې د يو امام او امير مخالفت په شريعت كښې جائز وي چې په هغې سره پخپله د امام المسلمين زور ظلم ثابتيږي. نو په عامو مسلمانانوباندې لازم دي چې هغوئ دې ددغې ډلې امداد اوكړي چې امام د ظلم نه واؤړي خو شرط دادې چې دا ظلم ئې يقيني اوبې شبهې ثابت شي. [كذا في ابن الهمام مظهري] [3].

كه دغې ډلې داسې واضح وجوهات پيش نكړې شو او د امام المسلمين خلاف جنګ كولو ته تيار شو نو ورسره مسلمانانو لره جنګ كول حلال دي ، او امام شافعي رحمه الله اوفرمائيل چې تر

---

[1] بيان القرآن [ج:۱۱ ص:۴۵]

[2] بيان القرآن [ج:۱۱ ص:۴۵] , والهداية كتاب السير باب البغاة [ج:۲ ص: ۱۱۰ تا ۱۱۲]

[3] فتح القدير كتاب السير باب البغاة [ج:۱۳ ص:۳۰۸] و تفسير المظهري تحت هذه الآية [ج:۹ ص:۴۹]

څو هغوئ جنګ شروع نه کړی تر هغې پورې ورسره مسلمانانو لره جنګ شروع کول جائز ندی [مظهری] [1].

داحکم هغه وخت دې چې ددغې ډلې باغیان او ظالمان کیدل بالکل یقینی او واضح وی اوکه داسې صورت جوړ شی چې دواړه طرفه ډلې څۀ شرعی حجت لری او دا په ګوته کول مشکل شی چې دې کښې کومه ډله باغی او کومه عادله ده ، هلته چې د چا غالب ګمان د یوې ډلې په عادل کیدو باندې راشی نو دهغې مدد کولې او که چاته یوه یو طرفته هم رجحان نه وی نو هغه دې دواړو نه بیل اوسی لکه چې د صحابه کرامو رضی الله عنهم تر مینځه جګړو کښې چې کوم حال په جنګ جمل او جنګ صفین کښې وو.

**د صحابه کرامو رضی الله عنهم تر مینځه جګړې:** امام ابوبکر بن العربی فرمائیلی دی چې دا آیت مبارك د مسلمانانو تر مینځه ټول قسم جګړو لره شامل دې [2]. پدې کښې هغه صورت هم داخل دې چې دواړه فریقه خپل موقف په څه شرعی حجت باندې اډانړه لری ، د صحابه کرامو رضی الله عنهم ترمینځه جګړې په دې قسم کښې داخلې دی ، قرطبی د ابن عربی په دې قول نقل کولو سر دلته د صحابه کرامو ترمینځه دجنګونو لکه جنګ جمل او جنګ صفین وغیره اصل حقیقت بیان کړې دې . او د صحابه کرامو رضی الله عنهم ترمینځه ددغې جګړو باره کښې د ورپسې راتلونکو مسلمانانو دعمل باره کښې هدایتونه ورکړی دی چې ما عاجز بنده په احکام القرآن او خپلې رساله مقام صحابه رضی الله عنهم کښې داټول مضمونونه په تفصیل سره لیکلی دی دلته دې هغه دخلاصه په نقل کولو باندې بس والې کولې شی کومه چې د تفسیر قرطبی جلد/۱۶، صفحه/۳۲۲ په حواله په دغې رساله کښې ما راخستې ده.

داجائز نه دی چې چا صحابی رضی الله عنه ته په یقینی ډول یوه غلطی منسوبه شی ولې چې دغې ټولو صحابه کرامو رضی الله عنهم پخپل خپل طرز عمل کښې د اجتهاد نه کار اخستې وو او د ټولو صحابه کرامو رضی الله عنهم د الله جل جلاله خوشحالی حاصلول مقصد وو ، دغه ټول حضرات زمونږ پیشوایان دی او مونږ ته حکم دې چې د صحابه کرامو رضی الله عنهم ترمینځه اختلافاتو نه خپلې ژبې بندې اولړو او تل دپاره د صحابه کرامو رضی الله عنهم یادګیرنه په غوره طریقې سره کوؤ. ځکه چې صحابیت د ډیرعزت خیز دې او قرآن عظیم الشان صحابه کرامو رضی الله عنهم لره ته د بدو وئیلو نه منع فرمائیلې ده او دا خبر ئې ورکړې دې چې الله جل جلاله صحابه کرامو رضی الله عنهم معاف کړی دی او ددوئ نه راضی دې . دې نه علاوه په ګڼړو سندونو سره دا حدیث پاك ثابت دې چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم د طلحه رضی الله عنه باره کښې اوفرمائیل چې : ﴿ان طلحة شهيد يمشي على وجه الارض﴾

یعنی طلحه رضی الله عنه په زمکه ګرځیدونکې په ژوند شهید دې [3].

که د علی رضی الله عنه د خلاف طلحه رضی الله عنه جنګ ته وتل ښکاره ګناه او نافرمانی وې نو په دغې جنګ کښې وژلی کیدو سره بۀ ئې د شهادت مرتبه نه وه حاصله کړې ، داشان که طلحه رضی الله عنه دا عمل د تاویل غلطی او د واجب په ادا کښې کوتاهی بللې شوې نو بیا بـه هم ورتـه د شهادت درجه

[1] تفسير المظهري تحت هذه الآية [ج:۹ص:۴۹]

[2] أحكام القرآن لابن العربي تحت هذه الآية [ج:۷ ص:۱۶۹]

[3] جامع الترمذي (بألفاظ مختلفة) ، ابواب المناقب باب مناقب طلحة بن عبيدالله رضى الله عنه [ج:۲ ص:۲۱۵] و المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث:[۲۱۵]

حاصله شوي وې ولې چې د شهادت دا درجه خو هغه وخت حاصليدې شي چې څوك د الله ﷻ په فرمانبرداريۍ كښې وژلې شوې نه وى ، ځكه ددغې حضراتو معامله په دې عقيده باندې حملول ضروري دى چې د كومې بيان پورته اوشو.

داشان علي ﷛ فرمائيلى دى چې د ما د نبي كريم ﷺ نه آوريدلى دى چې :

دصفيه ﷛ د خوئې قاتل ته د جهنم خبر وركړه[1] ، كله چې دا خبره ده نو ثابته شوه چې طلحه ﷛ او زبير ﷛ ددې جنگ په وجه نافرمانه اوگناهگار نه شو. كه داسې نه وې نو هغوئ ﷛ به طلحه ته شهيد نه وو فرمائيلې او د زبير ﷛ د وژونكي باره كښې به ئې دجهنمي كيدو پيشنگوئي نه وه كړې ، دغسې د صحابه كرامو ﷛ شمير په عشره مبشره كښې دې د كومو د جنتي كيدو گواهي چې تقريبا متواتر ده .

داشان هغه صحابه كرام ﷛ چې دغې جنگونو نه په ډډه پاتې شوى وو ، هغه صحابه كرامو ﷛ هم ته تاويل كښې خطاكار نشي وئيلې ، بلكه د هغوئ د عمل انداز هم په دې لحاظ سره درست وو چې الله ﷻ هغه صحابه كرامو ﷛لره په اجتهاد كښې په دې رائې قائم اولرل كله چې دا خبره ده نو ددې وجې نه دغسې صحابه كرامو ﷛ ته بد رد وئيل ، صحابه كرامو ﷛ نه د ويزارئى ښكاره كول ، د صحابه كرامو ﷛ فضيلتونه اومجاهدې او هغه لوئې دينى مقامونه دنيشت برابر گرځول په هيڅ شان سره درست نه دى ځينې عالمانو نه تپوس اوكړې شو چې دهغې وينو باره كښې ستاسو څه رائې ده كومې چې د صحابه كرامو ﷛ ترمينځه جگړو كښې اوبيولې شوې نو هغوئ په جواب كښې دا آيت مبارك اولوستلو چې :

﴿تِلْكَ أُمَّةٌ قَدْ خَلَتْ ۖ لَهَا مَا كَسَبَتْ وَلَكُم مَّا كَسَبْتُمْ ۖ وَلَا تُسْأَلُونَ عَمَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ﴾

دايو امت وو چې تير شو دهغوئ عملونه د هغوئ دپاره دى او ستاسو عملونه ستاسو دپاره دى اوستاسو نه د هغوئ د عملونوباره كښې تپوس نه كيږى .

يو بزرگ نه چې داسې سوال اوكړې شو نو هغه اووئيل چې دا داسې وينه ده چې الله ﷻ زما لاسونه په هغې باندې د رنگ كيدو نه اوساتل ، اوس زه خپله ژبه هم نه گنده كوم. مطلب ئې دا وو چې زه ددې حق نه لرم چې يوه ډله په كښې په غلطه او ناجائزه اوبلم او خان گناهگار كړم.

علامه ابن فورك فرمائيلى دى چې : زمونږ ځينې ملگرو وئيلى دى چې د صحابه كرامو ﷛ ترمينځه چې كوم جنگونه شوى دى دهغې مثال داسې دې لكه چې د يوسف ﷤ او د ددوئ ﷤ د رونړ ترمينځه شوى وو ، يعنى سره ددغې اختلافاتو نه هغوئ نه پيغمبرى او ولى توب لانړو . دغسې هغه صحابه كرام ﷛ چې ترمينځه ئې جگړې تيرې شوى دى په خپل ځائې د صحابيت په درجه باندې پاتې دى .

او محاسبي ﷫ فرمائيلى دى چې : ددغې وينو تويولو باره كښې زمونږ څه وئيل مشكل دى ، ولې چې دهغې باره كښې پخپله د صحابه كرامو ﷛ ترمينځه اختلاف وو ، او كله چې د صحابه كرامو ﷛ تيرمينځه دجنگړو باره كښې حسن بصرى ﷫ نه تپوس اوشو نو هغوئ اوفرمائيل چې : دا داسې جنگونه وو چې په كښې صحابه كرامو ﷛ موجود وو او مونږ غائب وو ، صحابه كرام ﷛ د پوره حالاتو نه خبر وو او مونږ ترې نه يو خبر ، په كومه معامله

[1] تفسير القرطبي تحت هذه الآية[ ج:۱٦ص:۳۲۱]و المستدرك للحاكم رقم الحديث:[۵۵۸۰] و مسند احمد رقم الحديث:[٦۸۱] (باختلاف)

باندې چې د ټولو صحابه کرامو رضی الله عنهم اتفاق دې ، مونږ په هغې کارونو کښې چې په هغه باندې ټول متفق وی د صحابه کرامو رضی الله عنهم تابعداری کوؤ او د صحابه کرامو رضی الله عنهم ترمینځه اختلافی مسئلو کښې خاموشی غوره کړو.

محاسبی رحمه الله فرمائی چې دحسن بصری رحمه الله خبره زمونږ هم ده ، صحابه کرامو رضی الله عنهم چې په کومو خبرو کښې دخل ورکړې دې په هغې باندې صحابه کرامو رضی الله عنهم زمونږنه زیات غوره طریقې سره خبر وو. نو زمونږ کار هم دادې چې د صحابه کرام رضی الله عنهم ترمینځه داتفاقی کارونو تابعداری اوکړو اود صحابه کرامو رضی الله عنهم ترمینځه اختلافی کارونو کښې خاموشی غوره کړو. او دخپله ځانه پرې خپله څه رائې قائم نه کړو. ولې چې صحابه کرامو رضی الله عنهم ټولو داجتهاد نه کار اخستې وو ځکه چې ددین په معامله کښې صحابه کرام رضی الله عنهم ټول حضرات د شك او شبهې نه زیات پورته دی.

يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا يَسْخَرْ قَوْمٌ مِّنْ قَوْمٍ عَسٰٓى

اے هغه کسانو | چې ایمان مو راوړی دې | ټوقې دنهٔ کوی | یوقوم | په بل قوم پورې | کیدې شی |

ائې مومنانو ! یوه ډله دې دبلې ډلې پورې ټوقې نه کوی | کیدې شی چې هغه ډله

اَنْ يَّكُوْنُوْا خَيْرًا مِّنْهُمْ وَلَا نِسَآءٌ مِّنْ نِّسَآءٍ عَسٰٓى

چې وی هغوئ | بهتره | دهغوئ نه | اونهٔ دې ښځې ټوقې کوی | په نورو ښځو پورې | کیدې شی

د دوی نه غوره وی | او ښځې دې په ښځو پورې ټوقې نه کوی| کیدې شی چې هغوئ

اَنْ يَّكُنَّ خَيْرًا مِّنْهُنَّ ۚ وَلَا تَلْمِزُوْٓا اَنْفُسَكُمْ وَلَا تَنَابَزُوْا

چې وی هغوئ | بهترې | دهغوئ نه | او طعنې مهٔ لګوئ | په خانونو خپلو باندې | او مهٔ رابلئ یو بل

د دوی نه غوره وی | او په یوبل باندې عیب مه لګوئ | اومه یو بل ته خراب نومونه اخلئ

بِالْاَلْقَابِ ۭ بِئْسَ الِاسْمُ الْفُسُوْقُ بَعْدَ الْاِيْمَانِ ۚ وَمَنْ

په خرابونومونو سره | ډیر بد دې خراب نوم پیدا کول | روستو دایمان نه | او هغه څوك |

..............|دایمان نه پس دګناه نوم اخستل خرابه خبره ده | اوڅوک چې اوس

لَّمْ يَتُبْ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ ⑪

چې توبه نې اونهٔ ایستله | نو هم هغوئ | ظالمان دی |

هم توبه نه اوباسی | نو هم دغه کسان ظالمان دی |

**آسان ترجمه قرآن**

اے ایمان والو! نه خو دې یو سړې بل سړی پورې ټوقې کوی. کیدې شی چه هغه (چاپورې چه ټوقې کوی) خپله ددوی نه بهتر وی. او نه دې ښځې نورو ښځو پورې ټوقې کوی. کیدې شی چه هغه (چا پورې چه ټوقې کوی) خپله ددوی نه بهترې وی. او تاسو یو بل ته پیغور مه ورکوئ. او مهٔ یو بل په ناکاره القابونو سره یادوئ. ایمان راوړلو نه پس دګناه نوم اخستل ډیره ناکاره خبره ده . او کوم خلق چه ددې نه منع کیږی نه. نو هغه ظالمان خلق دی.

## خلاصه تفسیر

﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا يَسْخَرْ قَوْمٌ مِّن قَوْمٍ﴾ اے ایماندارو تاسو سړو لره په نور سړو پورې مسخرې کول نه دي پکار ﴿عَسَىٰ أَن يَكُونُوا خَيْرًا مِّنْهُمْ﴾ څه عجیبه ده چه] په کومو پورې مسخرې کوئ [هغه ددوی] مسخرې کوونکو [نه] د الله تعالی په نزد [غوره وی] نو بیا هغوی ته سپك ولې ګورئ ﴿وَلَا نِسَاءٌ مِّن نِّسَاءٍ﴾ [اونه ښځولره په ښځو پورې مسخرې کول پکاردی ﴿عَسَىٰ أَن يَكُنَّ خَيْرًا مِّنْهُنَّ﴾ څه عجیبه ده چه] په کومو پورې مسخرې کوی [هغه دهغو] مسخرې کوونکو[نه] دالله تعالی په نزد [غوره وی] نوبیاهغوی ته سپك ولې ګوری ﴿وَلَا تَلْمِزُوا أَنفُسَكُمْ وَلَا تَنَابَزُوا بِالْأَلْقَابِ﴾[او مه یوبل لره په بدو لقبونو سره بلئ] ځکه چه داټولې خبرې دګناه دی او ﴿بِئْسَ الِاسْمُ الْفُسُوقُ بَعْدَ الْإِيمَانِ﴾[دایمان راوړو نه پس] په مسلمان باندې [د ګناه نوم ایښودل بده خبره ده] یعنی داګناه کول ستاسو په شان کښې دا وئیل چه فلانې مسلمان دکوم نه چه تاسو مراد یئ ګناه یعنی د الله تعالی نافرمانی کوی دنفرت خبره ده نو ددې نه ځان وساتئ ﴿وَمَن لَّمْ يَتُبْ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ﴾[اوکوم چه] ددې حرکتونونه [منع نه شي نو دغه ظلم کوونکې] او حقوق العباد لره تلف کوونکې [دې کومه سزا چه ظالمانوته ملاویږی هغه به دۀ ته هم ملاویږی.

## معارف او مسائل

دسورة حجرات په شروع کښې د نبی کریم ﷺ دحقونو او آدابو بیان راغلو بیا دعامو مسلمانانو ترمینځه دحقونو اود زیست روزګار کولو بیان شروع شو. په اولنی دوؤ آیتونو مبارکو کښې د شخصیتونو او یو بل کس تر مینځه د زیست روزګار حقونه او آداب بیان شوی دی. په دې کښې درې خیزونه منع کړې شو یدی. اول یو مسلمان پورې خندا او توقې، دویم چاته پیغور ورکول ، دریم چالره په داسې لقب سره ذکر کول چې ورسره ئې سپکاوې کیږی یا هغه ئې بد ګڼړی.

رومبې څیز سخریه یا تمسخر دې. قرطبی رحمه الله فرمائی چې د چا سپکاوی دپاره دهغه عیب په داسې شان بیانول چې خلق ورسره خاندی ، دې ته سخر یا تمسخر او استهزاء وئیلې شی(۱).

دا څینې د خلې په وینا سره هم کیدې شی او په لاسونو پښو وغیره سره هم چې نقل او پیښې ئې کوې یااشاره ورته کولې شی یا سترګې ورته وهلې شی ، او داسې هم کیدې شی چې د چا دخبرو آوریدو سره د سپکاوی په ډول ورپورې توقې او خندا اوکړې شی. او څینې حضراتو سخریه او تمسخر دېته ته وئیلی دی چې دخلقو په وړاندې دچا ذکر په دې شان سره اوکړې شی چې خلق دې سره اوخاندی. نودا ټول څیزونه د قرآن عظیم الشان په نص سره حرام دی.

د سخرئې ممانعت لره قرآن عظیم الشان دومره مهم اوګرځولې چې نارینه ئې بیل او زنانه ئې بیل مخاطب کړل. نارینؤ دپاره ئې د قوم لفظ استعمال کړو ، اګر چې دقوم لفظ په اصل کښې نارینؤ او زنانؤ دواړودپاره استعمالولې شی څنګه چې قرآن عظیم الشان هم استعمال کړې دې. خو دلته ئې خاص د نارینؤ دپاره د قوم لفظ استعمال کړو. او بل طرفته ئې د زنانؤ دپاره دنساء لفظ استعمال کړو. او په دواړو کښې ئې دا هدایت اوکړو چې څوك نارینه چا بل نارینه پورې توقې کوی هغه څه خبر دې چې دالله جل جلاله په نزد دهغه بل د توقو کوؤنکو نه

(۱) تفسیر القرطبي [ ج:۱٦ص:۳۲۴]

زیات غوره وی ، داشان چې کومه ښځه بلې پورې توقې کوی هغه څه خبر ده چې دغه بله ښځه دالله ﷻ په نزد دهغې نه زیاته غوره وی . په دې شان قرآن عظیم الشان د نارینه پر نارینه او د زنانه په زنانه باندې د توقو کولو او ددې د حراموالی بیان اوکړو. سره ددې چې ځوك نر په ښځې پورې یا ځوك ښځه په نر پورې توقې کوی نو دا هم په دغې حراموالی کښې داخل دی. خو ددې په ذکر نه کولو کښې دې طرفته اشاره موندې شی چې د پردو نارینهٔ او زنانهٔ ترمینځه ګډون کول خو شرعا مذموم او منع دی. په دې بنا چې کله ګډون نه وی نو یو بل پورې به دخندا کولو څه صورت نه جوړیږی ، د آیت مبارك حاصل دادې که د چا په بدن کښې یا شکل او قدوقامت وغیره کښې څه عیب ښکاره شی نو هیچاله پکار نه دی چې په هغه پورې خندا اوکړی. ولې چې هغه ته معلوم نه دی شاید چې په صدق او اخلاص د زړهٔ وغیره کښې د الله ﷻ په نزد ددهٔ نه زیات غوره وی. ددې آیت مبارك په آوریدو د پخوانو بزرګانو دا حال شو چې عمروبن شرحبیل رحمه الله اوفرمائیل چې که ځوك د چیلئ په پیئو رودلو او وینم او هغه پورې خندا راشی بیا هم ویریږم چې هسې نه داسې شم ، عبدالله بن مسعود رضی الله عنه اوفرمائیل چې که زه په یو سپې پورې هم توقې اوکړم نو ویره مې شی چې هسې نه زهٔ پخپله سپې جوړ شم .[قرطبی](۱)

صحیح مسلم کښې د ابی هریره رضی الله عنه نه روایت دې چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې : الله ﷻ د مسلمانانو په صورتونو او دهغوئ په مال او دولت باندې نظر نه لری بلکه د هغوئ زړونه او عملونه وینې ګوری(۲) .

امام قرطبی رحمه الله فرمائی چې ددې حدیث پاك نه یوه ضابطه او بنیادی قاعده دا معلومه شوه چې د ظاهری حالت په لیدو سره په هغه څه یقینی حکم لګول صحیح نه دی ، ولې چې کیدیشی چې د چا ظاهری عملونه او کارونه مونږ ډیر ښه ګنړو خو د الله ﷻ چې هغه دده باطنی حالات او دزړه کیفیات لره پیژنی د هغه په نزد ډیر زیات خراب وی او دچا چې ظاهری حال اوعملونه خراب دی ، کیدیشی چې دهغه باطنی حالات او د زړهٔ کیفیتونه دهغه دخرابو عملونو کفاره جوړه شی ، ځکه که ځوك په بد حالت یا خرابو عملونو کښې اخته اوګورئی نو دغه حالت ئې بد ګنړئی خو دغه بنده لره دسپك ګنړلو اجازت نشته(۳) ، په دې آیت مبارك کښې بل منع کړې شوې څیز لمز دې چې معنی ئې د چا عیب راؤښکل ، عیب ښکاره کول یا د عیب پیغور ورکول دی ، نو په آیت مبارك کښې ارشاد دې چې :

﴿وَلَا تَلْمِزُوٓا۟ أَنفُسَكُمْ﴾[تاسو خپل عیبونه مه راؤباسئ]. ددې دواړو مطلب دادې چې تاسو خپل مینځ کښې یو بل مه وژنئ او د یو بل عیبوه مه راؤباسئ او دداسې فرمائیلو مطلب دا حکمت ښکاره کول دی چې خپل مینځ کښې یوبل وژل د خپل ځان وژل پشان دی هغه داسې دی چې کله داسې اوشی چې د وژلی شوی مرستیال وژونکی لره اووژنی او داسې هم کیږی چې مسلمان مسلمان لره وژنی نو ځان کمزورې کوی یعنی خپل لاس پښې پریکول دی ، دښمن به وژونکې هم اووژنی نو ددې نتیجه خپل ځان وژل شو ، دغسې مطلب د ﴿وَلَا تَلْمِزُوٓا۟ أَنفُسَكُمْ﴾ هم

(۱) تفسیر القرطبي [ ج:۱٦ص:۳۲۵] و مصنف ابن ابی شیبة رقم الحدیث:[۲۵۵٤٦]
(۲) صحیح مسلم کتاب البر والصلة ،باب تحریم ظلم المسلم وخذله......إلخ [ج:۲ص:۳۱۷]
(۳) تفسیر القرطبي [ ج:۱٦ص:۳۲۷]

دې چې د بل عیب مه راؤباسئ ، هر چا کښې څه نه څه عیب وي خلق به ستا عیبونه راؤباسي لکه علماء کرام فرمائي چې : ﴿وفيك عيوب وللناس اعين﴾ [په تا کښې هم څه عیبونه شته چې د خلقو سترګې ئې ویني]. یعنی که تاسو د چا عیبونه لټوئ نو بل څوك به هم ستاسو عیبونه لټوي ، او که بالفرض هغه پرې صبر اوکړي نو خبره هم هغه ده چې د خپل مسلمان رور خور ، بې عزتي کول خپله عزتي کول دي .

علماء کرام فرمائي چې د انسان خوش قسمتي په دې کښې ده چې پخپلو عیبونو باندې نظر لري دهغوئ داصلاح په فکر کښې لګیا وي او څوك چې داسې کوي هغه ته به د نورو دعیبونو راؤښکلو او بیانولو فرصت نه وي دهندوستان آخري مسلمان بادشاه ظفر څه ښۀ وائي چې :

نہ تھی حال کی جب ہمیں اپنی خبر رہے دیکھتے لوگوں کے عیب و ہنر
پڑی اپنی برائیوں پر جو نظر تو جہان میں کوئی برا نہ رہا

کله چې دخپل حال نه خبر نه ووم ، نود بل په عیب اوهنر باندې مو نظر وو . کله چې مو پخپلو خرابیانو باندې نظر شو نو جهان کښې څوك خراب پاتې نشو .

دریم څیز چې په آیت مبارك کښې ترې منع راغلې ده ، هغه بل لره په خراب لقب سره یادول دي په کوم سره چې هغه خفه کیږي ، لك شل ، ګډ ، ړوند ، کانړۀ چا ته وئل یا په دغسې لفظ سره څوك یادول ، دغسې کوم چې د چا د سپکاوي دپاره یادولې شي په هغې نوم سره چالره بلل .

ابوجبیره انصاري ﷺ اوفرمائیل چې دا آیت مبارك زمونږ باره کښې نازل شوې دې ولې کله چې نبي کریم ﷺ مدینې منورې ته تشریف راؤړو نو په مونږ کښې اکثر خلق داسې وو چې دوه یا درې نومونو باندې مشهور وو ، او په دې کښې څینې نومونه داسې وو چې خلقو به هغه د سپکاوي یا پیغور دپاره استعمالول ، نو کله به چې په دغې خراب نوم سره نبي کریم ﷺ چا ته خطاب کولو نو صحابه کرامو ﷺ به عرض کولو چې یارسول الله ﷺ ! هغه په دې نوم سره خفه کیږي ځکه دا آیت مبارك نازل شو[1].

اوابن عباس ﷺ اوفرمائیل چې په دې آیت مبارك کښې د تنابز بالالقاب نه مراد دادې چې چا څه ګناه یا خراب عمل کړې وي او بیا ئې ترې توبه کړې وي په هغې سره ئې یادول . لکه غل ، زناکار ، شرابي وغیره ورته وئیل او هغه مخکښې عمل وریادول او پیغور ورکول چې توبه ئې ترې کړې وي او دهغه تحقیر کول حرام دي[2].

نبي کریم ﷺ فرمائیلي دي چې څوك یو مسلمان ته د ګناه داسې شرم وراړوي چې هغه ترې توبه کړې وي نو الله ﷺ پخپله ذمه اخستې دې چې هغه لره په هغې ګناه کښې اخته کولو سره دنیا او آخرت کښې شرمنده کړي . [قرطبي][3].

**د څینو لقبونو استثناء:** څینې خلقو دپاره څۀ داسې خراب نومونه مشهور شوي وي چې في نفسه بدلو نومونو وي مګر بغیر د هغې نه ئې څوك نه پیژني . نو دداسې نومونو اخستو اجازت علماء کرامو په اتفاق سره وکړې دې خو شرط دادې چې سپکاوې او بې عزتي ئې ترې مقصود

[1] جامع الترمذي ، ابواب التفسير باب سورة الحجرات (بالأختصار) [ج:۲ ص:۱٦۲]
[2] جامع الترمذي ، ابواب صفة القيامة...... ألخ باب ماجاء في صفة اواني الحوض [ج:۲ ص:۷۱]
[3] تفسير القرطبي [ ج:۱٦ ص:۳۲۸ ، ۳۲۹]

نه وي لکه د ځيني محدثينو نومونو سره چې اعرج يعني ګډ يا احدب يعني کبې وغيره مشهور دي او پخپله نبي کريم ﷺ يو داسې صحابي ﷺ ته ذواليدين فرمائيلي دي چې د نورو په نسبت ئې لاسونه اوږده وو[1]. کله چې عبدالله بن مبارك ﷺ نه تپوس اوشو چې د حديث پاك په ځيني سندونو کښې ځينې نومونو سره څه داسې لقبونه راځي لکه حميد الطويل ، سليمان الاعمش ، مروان الاصفر وغيره نو آيا په دغې لقبونو ئې يادول جائز دي ؟ هغوئ ﷺ اوفرمائيل چې کله ستا مطلب د هغوئ عيب بيانول نه وي بلکه د هغوئ پوره پيژندګلو کول وي نو جائز دي .[قرطبي][2].

**سنت دادې چې خلق په ښکلي لقبونو سره ياد کړې شي** :: حديث پاك کښې راغلي دي چې رسول کريم ﷺ اوفرمائيل چې د مؤمن حق په بل مؤمن باندې دادې چې هغه په داسې نوم او لقب سره ياد کړې کوم چې د هغه زيات خوښ وي[3] ، همدغه وجه ده چې په عربو کښې د کنيت رواج عام وو. او نبي کريم ﷺ هم دا خوښ کړې وو پخپله نبي کريم ﷺ هم خاص خاص صحابه کرامو ﷺ ته څه لقبونه ورکړي دي . سيدنا صديق اکبر ﷺ ته ئې عتيق ، عمر ﷺ ته ئې فاروق ، حمزه ﷺ ته اسد الله[4] او خالد بن وليد ﷺ ته ئې سيف الله فرمائيلي دي[5].

| يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا |
|---|---|
| اے هغه کسانو | چې ايمان موراوړې دي |
| اې مومنانو ! | |

| اِجْتَنِبُوْا | كَثِيْرًا مِّنَ الظَّنِّ ز | اِنَّ بَعْضَ الظَّنِّ | اِثْمٌ | وَّلَا تَجَسَّسُوْا |
|---|---|---|---|---|
| ځان اوساتئ | د ډير ګمان کولو نه | بيشکه ځيني د ګمانونو نه | ګناه وي | او رازونه مه لټوئ |

دګمان نه ځان بچ ساتئ | يقينا بعضې بدګماني ګناه وي | او د چا راز مه معلوموئ

| وَلَا يَغْتَبْ | بَّعْضُكُمْ بَعْضًا ط | اَيُحِبُّ | اَحَدُكُمْ | اَنْ يَّاْكُلَ |
|---|---|---|---|---|
| او غيبت دې نه کوي | ځيني ستاسو دځينو | آيا خوښوي | يو په تاسو کښې | چې اوخوري |

او په تاسو کښې دې بعضې د بعضو غيبت نه کوي | آيا په تاسو کښې به دا څوك خوښ کړي | چې د خپل

| لَحْمَ | اَخِيْهِ | مَيْتًا | فَكَرِهْتُمُوْهُ ط | وَاتَّقُوا اللّٰهَ ط | اِنَّ اللّٰهَ |
|---|---|---|---|---|---|
| غوښه | د رور خپل | چې مړ وي | پس نه خوښوئ تاسو دا کار | او اوويريږئ د الله نه | بيشکه الله |

مړ رور غوښه اوخوري | نو دا کار خو ستاسو خوښ نه وي | او د الله ﷻ نه ويره کوئ | بيشکه الله

---

[1] صحيح البخاري كتاب الأدب ،باب مايجوز من ذكر الناس نحو قولهم الطويل والقصر [ج:۲ص: ۸۹٤]

[2] تفسير القرطبي [ ج:۱٦ص:۳۲۹]

[3] المستدرك للحاكم رقم الحديث:[۵۸۱۵]و مجمع الزوائد رقم الحديث :[۱۳۰٦۵]

[4] اوګورئ:- مجمع الزوائد[ج: ۲ ص:۳۹٦] محمود اشرف عثماني.

[5] تفسير القرطبي [ ج:۱٦ص:۳۳۰]

| | |
|---|---|
| تَوَّابٌ | رَّحِيمٌ﴿۱۲﴾ |
| ډير توبه قبلونكي دي | رحم كونكي |
| توبه قبلونكي ډير رحم كونكي دي | |

## آسان ترجمه قرآن

اے ايمان والو! د ډيرو گمانونو نه ځان اوساتئ، بعضې گمانونه گناه وي او د چا په تفتيش كښې مه لگئ او ديو بل غيبت مه كوئ. آيا په تاسو كښې څوك دا خوښوي، چه هغه دخپل مړ شوي ورور غوښه اوخوري. ددې نه خو خپله تاسو نفرت كوئ، او د الله تعالى نه اويرېږئ. بې شكه الله تعالى ډير زيات توبه قبلونكې او ډير مهربان دې.

## خلاصه تفسير

﴿يَٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُوا اجْتَنِبُوا كَثِيرًا مِّنَ الظَّنِّ إِنَّ بَعْضَ الظَّنِّ إِثْمٌ﴾ [اے ايماندارو د ډيروگمانونوه ځان ساتئ ځكه چه ځنې گمان گناه وي] په دې وجه دظن اوگمان چه څومره قسمونه دي دهغوتولو داحكامو تحقيق كوئ چه كوم گمان جائز دې كوم ناجائز بيادجائز په حد كښې دننه وسيږئ ﴿وَلَا تَجَسَّسُوا وَلَا يَغْتَب بَّعْضُكُم بَعْضًا﴾ [او] د چاپه عيب پسې [التيون مه كوئ اوڅوك دې دچا غيبت هم نه كوي] وړاند دغيبت مذمت دې چه ﴿أَيُحِبُّ أَحَدُكُمْ أَن يَأْكُلَ لَحْمَ أَخِيهِ مَيْتًا﴾ [اياپه تاسو كښې څوك داخبره خوښوي چه دخپل مړ ورور غوښې وخوري ﴿فَكَرِهْتُمُوهُ﴾ دې لره خوتاسو] خامخا [بدې گنړئ] نوپوه شئ چه ديو ورور غيبت هم ددې مشابه دې﴿وَاتَّقُوا اللَّهَ﴾ [او دالله تعالى نه ويره كوئ] غيبت پرېږدئ توبه وباسئ ﴿إِنَّ اللَّهَ تَوَّابٌ رَّحِيمٌ﴾ [بيشكه الله تعالى لوئ توبه قبلوونكې مهربان دې]

## معارف او مسائل

دا آيت مبارك خپل مينځ كښې د حقونو او زيست ورزگار باره كښې احكام بيانوي. دې كښې هم درې څيزونه حرام گرځولې شوي دي. اول ظن چې تفصيل ئې راروان دې، بل تجسس يعنى د پټ عيب نغم وهل. دريم غيبت چې د يو غير موجود بنده په باره كښې داسې خبره كول چې دهغې په آوريدو سره به دغه بنده پرې بد گنړي. د ړومبى څيز يعنى ظن معنى غالب گمان ده، ددې باره كښې قرآن عظيم الشان خو اول دا بيان كړې دې چې د ډير گمانونو ځان ساتى، بيا يې ددې وجه بيان كړه چې ځينې گمانونه گناه وي، دې نه معلومه شوه چې هر گمان گناه نه ده نوددې ارشاد په آوريدونكو باندې ددې تحقيق واجب شو چې كوم يو گمان گناه ده چې ځان ترې اوساتى او تر څو چې د گمان جائز كيدل معلوم نشى. هغې ته دې نه ورځى. عالمانو او فقهاء كرامو ددې تفصيلونه بيان كړى دى، قرطبى اوفرمائيل چې د ظن نه مراد دلته تهمت دې، يعنى په يو بنده باندې د څه قوى دليل نه بغير څه الزام د عيب يا گناه لگول[1]، امام ابوبكر جصاص رحمه الله په احكام القرآن كښې يو تهول اړخيز تفصيل داسې ليكلې دې چې دظن څلور قسمونه دى، يو حرام دې، دويم مامور به او واجب دې، دريم مستحب او مندوب دې، څلورم مباح او جائز دې.

[1] تفسير القرطبي [ ج:۱۶ص:۳۳۱]

حرام گمان دادې چې الله ﷻ باندې دا بدگماني لرې چې هغه بس راته هم عذاب راکوي. هم په مصيبت کښې مې اخته کوي، په داسې شان چې دالله ﷻ د مغفرت او رحمت نه گويا کښې نااميده دې، د جابر ﷺ نه روايت دې چې نبي کريم ﷺ اوفرمائيل چې:
﴿لايموتن احدکم الاوهويحسن الظن بالله﴾(۱) په تاسو کښې دې په چا باندې ددې نه بغير مرگ نه راځي چې الله ﷻ باندې ئې ښه گمان نه وي.
يو بل حديث پاك کښې د نبي کريم ﷺ دا ارشاد مبارك دې چې الله ﷻ فرمائي ﴿اناعند ظن عبدي بي﴾(۲) [زه خپل بنده سره دهغه د گمان په جوړ معامله کوم] اوس دهغه اختيار دې چې ما باندې څنگه گمان لرې؟ دې نه معلومه شوه چې په الله ﷻ باندې حسن ظن ساتل فرض دې او بدگماني حرامه ده داشان داسې مسلمانان چې په ظاهر حالت سره نيکان ښکاريږي دهغوئ متعلق بغير د قوي دليل نه بدگماني حرامه ده، حضرت ابوهريره ﷺ نه روايت دې چې نبي کريم ﷺ اوفرمائيل [اياکم والظن فان الظن اکذب الحديث](۳) يعني د بدگماني نه ځان اوساتئ ځکه چې گمان دروغ خبره وي.
دلته د ظن نه مراد په اتفاق سره په يو مسلمان باندې بغير دد څۀ قوي دليل نه بدگماني کول دي، او په داسې کارونو کښې چې په يو طرف باندې ئې عمل کول ضروري وي. او په قرآن عظيم الشان او حديث کښې د هغې باره کښې څۀ واضح دليل موجود نه وي، هلته په غالب گمان باندې عمل کول واجب دي، لکه خپل مينځ کښې د مقدمو د فيصلو باره کښې د ثقه گواهانو مطابق فيصله ورکول. ځکه چې حاکم او قاضي دچا په عدالت کښې چې مقدمه ده په هغه باندې ددې فيصله کول واجب او ضروري دي او دغې خاص معاملې دپاره څه نص په قرآن عظيم الشان او حديث کښې موجود نه دې نو د ثقه کسانو په گواهي باندې ددۀ دپاره عمل کول واجب دي. اگر چې دا امکان او احتمال هلته هم دې چې شايد يو ثقه کس په دوئ کښې دروغ وئيلي وي، نو په دې وجه ربښتيني کيدل ئې صرف غالب گمان دې چې هم په دې عمل کول پرې واجب دي. دا شان چرته چې د قبلې رخ معلوم نه وي، او داسې څوك بنده هم نه وي چې معلومات ترې اوکړې شي، هلته پخپل غالب گمان باندې عمل کول ضروري دي، داشان په يو بنده د څه څيز ضمان ورکول واجب وي نو ددغې ضائع شوي څيز په قيمت کښې په غالب گمان باندې عمل کول واجب دي. او مباح گمان داسې دې لکه چې د مونځ په رکعتونو کښې د چا شك شي چې درې مې اوکړل او که څلور مې اوکړل نو په خپل غالب گمان باندې عمل کول جائز دي او که د غالب گمان په پريښودو سره په يقيني خبره باندې عمل اوکړي چې هغه درې رکعته اوگرځوي اوڅلورم رکعت ورسره يو ځائې کړي نو دا هم جائز دي، او مستحب گمان دادې چې هر مسلمان باندې دې نيك گمان کوي په دې باندې ثواب حاصليږي. [دجصاص لنډيز](۴).

۱) صحيح مسلم كتاب الجنة، باب الأمر الظن بالله تعالى عند الموت [ج:۲ص:۳۸۷] و سنن ابوداود، كتاب الجنائز، باب ما يستحب من حسن الظن عند الموت [ج:۲ص:۴۴۴]
۲) صحيح البخاري كتاب التوحيد، باب قول الله تعالى ويحذركم الله نفسه [ج:۲ص:۱۱۰۱]
۳) صحيح البخاري كتاب الأدب، باب ما نهي عن التحاسد والتدابر [ج:۲ص:۸۹۶]
۴) أحكام القرآن للجصاص[ج:۸ ص:۴۵۶ تا ۴۵۸]

قرطبی رحمه الله فرمائی چې د قرآن عظيم الشان ارشاد دي چې ﴿لَوْلَآ إِذْ سَمِعْتُمُوهُ ظَنَّ الْمُؤْمِنُونَ وَالْمُؤْمِنَاتُ بِأَنفُسِهِمْ خَيْرًا﴾(۱) په دې كښې په مؤمنانو دنيك گمان كولو تاكيد راغلې دې او دا چې مشهور دی چې ﴿ان من الحزم سوء الظن﴾ [يعنى د احتياط خبره داده چې په هر چا باندې دې بدگمانی لرى] ددې مطلب دادې چې داسې معامله دې كوى لكه د بدگمانۍ په صورت كښې چې كولې شى چې د قوى داعتماد نه سوا دې خپل څيز دې د چا په حواله نه كوى. ددې مطلب دا نه دې چې په هر چا دې د غل گمان كوى او د هغه دې سپكاوى كوى، خلاصه دا چې چا لره د غل يا غدار گڼرلو نه بغير په خپله معامله كښې دې احتياط كوى لكه شيخ سعدى رحمه الله هم فرمائيلى دى چې:

نگه دارد آن شوخ در كيسه در    كه داند همه خلق را كيسه بر

[هغه هوښيار بنده ملغلره په بټوه كښې محفوظ ساتى، كوم چې په چا باندې دگڼركپ گمان كوى.

آيت مبارك كښې د دويم څيز نه چې منع كړې شوې ده هغه تجسس دې، يعنى د چا عيب لټول او سراغ لگول دى، ددې دوه قرآتونه دى يو ﴿لَا تَجَسَّسُوا﴾ بل ﴿لَا تَحَسَّسُوا﴾ او ابى هريره رضى الله عنه نه چې كوم روايت صحيحينو كښې دې هغه كښې دا دواړه لفظونه راغلى دى. ددې دواړو لفظونو معنې نزدې دى. اخفش په دواړو كښې دا فرق بيان كړې دې چې د تجسس معنى داسې څيز لټول وى چا چې ستانه پټ كړې وى، او د تحسس معنى مطلق لټول دى نو په سورة يوسف كښې د ﴿فَتَحَسَّسُوا مِن يُوسُفَ وَأَخِيهِ﴾(۲) هم دا معنى اخستې شوې ده په دې بنا د ټول آيت مبارك معنى داشوه چې:

كوم څيز چې ستاسو مخې ته راشى هغه نيولې شئ د يو مسلمان چې كوم عيب ښكاره نه وى نو دهغې لټول جائز نه دى، يو حديث پاك كښې نبى كريم صلى الله عليه وسلم نه ارشاد دې چې:

﴿لا تغتابوا المسلمين ولا تتبعوا عوراتهم فان من اتبع عوراتهم يتبع الله عورته ومن يتبع الله عورته يفضحه فى بيته [قرطبى]﴾(۳) د مسلمانانو غيبت مه كوئى، او دهغوئ عيبونه مه تلاش كوئ، ځكه كوم كس چې د مسلمانانو عيبونه تلاش كوى، نو الله جل جلاله دهغه عيبونه تلاش كوى، او چا دعيبونو تلاش چې الله جل جلاله كوى نو هغه دهغه په كور كښې دننه هم رسوا كوى.

بيان القرآن كښې راغلى دى چې په پټه د چا خبرې آورېدل يا خپل ځان اودهٔ ښكار كول او خبرې د چا آورېدل هم په تحسس كښې داخل دى البته كه د چا د ضرر رسيدو احتمال وى او د خپل ځان يا د بل مسلمان د حفاظت په غرض د زيان رسوونكى د پټو تدبيرونو او ارادو لټون كوى نو جائز دى(۴). دې آيت مبارك كښې دريم څيز چې منع كړې شوې دې هغه د چا غيبت كول دى يعنى دهغه په غير موجودگۍ كښې دهغه متعلق يو داسې خبره كول چې دهغې په آورېدو هغه بنده خفه كيږى اگر چې رښتيا وى ولې چې بې بنياده په چا باندې عيب لگول تهمت دې چې دهغه حرمت ځان له په قرآن پاك كښې ثابت دى. او د غيبت په تعريف كښې د دغه كس په

---

۱) ترجمه:- كله چې تاسو خلقو دا خبره آورېدلې وه نو مسلمانانو سړو او مسلمانانو ښځو خپلو كښې دانيك گمان ولې اونه كړو.

۲) ترجمه:- او يوسف (عليه السلام) او دهغه رور اولټوئ.

۳) تفسير القرطبي [ج:۱۶ص:۳۳۳] و سنن ابوداود، كتاب الأدب، باب في الغيبة [ج:۴ص:۶۶۹]

۴) بيان القرآن [ج:۱۱ ص:۴۷]

غیر موجودګئ د لفظ نه دا مطلب اخستل نه دی پکار چې ګنی د چا په موجودګئ کښې د هغه د خفګان خبره کول به جائز وی ځکه هغه اګر چې غیبت نه دې مګر لمز خودې کنه، چې حراموالې ئې ددې نه په مخکښې آیت مبارك کښې راغلې دې.

﴿اَيُحِبُّ اَحَدُكُمْ اَنْ يَّاْكُلَ لَحْمَ اَخِيْهِ مَيْتًا﴾ دې آیت مبارك کښې د یو مسلمان بې عزتی کول د هغه سپکاوې کول ئې د هغه دغوښې خوړلو پشان ګرځولې ده، او که د مخامخ موجوده بنده سپکاوې او بې عزتی کولې شی نو د ژوندی بنده دغوښې خوراك پشان دی، قرآن عظیم الشان دا د لز په نوم په ﴿وَلَا تَلْمِزُوْٓا اَنْفُسَكُمْ﴾ سره حرام ګرځولې دې او دغسې په ﴿وَيْلٌ لِّكُلِّ هُمَزَةٍ لُّمَزَةِ﴾[1] کښې هم بیان ئې راروان دې، هر کله چې د مړ د غوښې په خوراك سره هغه مړ ته څه تکلیف نه رسی نو دغسې یو ناموجود بنده ته دهغه پشې شا سپکاوی سره تکلیف نه رسی، البته دغیبت کوؤنکی خسیسوالې تر معلومیږی چې په مړی باندې ګوذارونه کوی، دا څه بهادری خو نه ده په دې وجه غیبت کول حرام شو او د خسیسوالی کار هم شو.

دې آیت مبارك کښې د ظن، تجسس او غیبت د دریو ځیزونو دحراموالی بیان دې، خود غیبت حراموالې ئې زیات سخت اوبللو بلکه د مړ رور غوښې خوراك سره ئې تشبیه ورکړه. او ددې خسیسوالې ئې ښه ښکاره کړو، د چا په مخامخ ئې بد وئیل هم اګر چې حرام دی خو دهغې هر څوك جرات نشی کولې بل دا چې دهغې د سمدستی عکس العمل خطره وی چې دغه بنده به پخپله د ځان د حفاظت په غرض مقابله کوی، غیبت خو هر کس کولې شی دهغې سلسله اوږده هم ځکه وی چې سمدستی عکس العمل ئې نه ځرګندیږی ځکه د غیبت حراموالې ډیر سخت اوګرځولې شو، دغسې په هر مسلمان باندې لازم دی چې د یو مسلمان غیبت واؤری نود خپل وس په جوړ دې هغه بند کړی اوکه بندیز ئې نشی کولې نو کم از کم دهغې د آوریدو نه دې ځان ساتی، ولې چې په خوښه باندې غیبت آوریدل داسې دی لکه پخپله غیبت کول.

**د غیبت باره کښې مسئله:** میمون ﷺ اوفرمائیل چې یوه ورځ مې خوب کښې د زنګی [حبشی] مړ کالبوت اولیدو چې چا راته د هغه د خوړلو دپاره اووئیل، ما ورته اووئیل چې د الله بنده زه دا ولې اوخورم؟ نو هغه کس راته اووئیل چې تا د فلانی زنګی غلام غیبت کړې دې، ما اووئیل چې قسم مې دې په الله وی ما خو دهغه باره کښې څه ښه یا خرابه خبره کړې نه ده، نو هغه کس راته اووئیل چې آو، لیکن دهغه باره کښې دې غیبت خو آوریدلې دې، او راضی پرې پاتې شوې یې میمون رحمه الله باندې ددې خواب اثر دې نه پس ښکاره وو، چې نه ئې چرته پخپله د چا غیبت اوکړو او نه ئې څوك پخپل مجلس کښې غیبت کولو ته پریخودل[2].

انس بن مالك ﷺ نه روایت دې چې د شب معراج حدیث پاك کښې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې زه معراج ته بوتلې شوم نو زما تیریدل په داسې یو قوم باندې اوشو چې نوکونه ئې د تانبې وو او هغوئ خپل مخونه او دبدن غوښې راشو کوی. ما ددغې خلقو باره کښې جبرائیل ﷺ نه تپوس اوکړو چې دا څوك دی؟ جبرائیل ﷺ اوفرمائیل چې دا هغه خلق دی چې د خپل رور

[1] ترجمه:- پس خرابی ده هرهغه چا دپاره چې عیب لټوی پیغور ورکوی او غیبت کوی
[2] تفسیر المظهري [ج:۹ص:۵۵]

غیبت او بې عزتي به ئې کوله . [بغوی روایت کړو ، مظهری] [1].
او د ابی سعید رضي الله عنه او جابر رضي الله عنه په روایت نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې ﴿الغیبة اشد من الزنا﴾ [د غیبت ګناه د زنا نه هم سخته ده]. صحابه کرامو رضي الله عنهم عرض اوکړو چې دا څنګه ؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې د زنا کولو نه پس د یو بنده توبه قبلیږی خود غیبت کوونکی ګناه صرف په توبې سره نه معاف کیږی څو پورې چې هغه چا معاف کړې نه وی د چا غیبت ئې چې کړې وی [ترمذی ، ابوداؤد ، د مظهری نه] [2].
دې حدیث پاک نه ثابته شوه چې دغیبت ګناه داسې ده چې د الله ﷻ د حق مخالفت هم په کښې شوې دې اود بنده حق هم په کښې ضائع کیږی ، څکه دچا غیبت چې شوې دې دهغه نه هم معاف کول پکار دی ، اوځینې علماء کرام فرمائی چې ترڅو د غیبت خاوند ته ددې خبر نه وی رسیدلې تر هغې هغه دبنده حق نه جوړیږی څکه به ئې د غیبت د کوونکی ته ددې غیبت کړې شوی نه د معافئ غوښتلو ضرورت نه وی [روح کښې نقل کړې شوی دی ، د حسن خیاطی او ابن الصباغ ، نووی ابن الصلاح ، زرکشی ، د ابن عبدالبر نه هغه د ابن مبارک رحمه الله نه]. خو بیان القرآن کښې ددې د نقل کولو نه پس فرمائی چې په دغې صورت کښې اګر چې ددغې کس نه معافی غوښتل ضروری نه دی ، خو د چا په وړاندې ئې چې دغه غیبت کړې وی نو د هغه په وړاندې د خپلې دروغژنئ یا د خپلو ګناهونو اقرار کول ضروری دی ، اوکه دغه بنده مړ شوې وی یا ئې څه پته نه وی نو دهغې کفاره د انس رضي الله عنه په حدیث کښې داده چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې :
﴿ان من كفارة الغيبة ان يستغفر لمن اغتابه تقول اللهم اغفرلنا وله﴾ [بیهقی روایت کړو ، مظهری].
دغیبت کفاره داده چې د هغه دپاره بخښنه غواړی دچا غیبت چې ئې کړې وی یعنی داسې اووایه دې وائی چې ائې الله ﷻ زمونږ اودهغه ګناه معاف کړه .
**مسئله**: د ماشوم ، مجنون او ذمی کافر غیبت هم حرام دې ، ولې چې دوئ ته زیان ورکول هم حرام دی. خو دخپل وخت بربادولو په وجه بیا هم غیبت مکروه دې .
**مسئله**: غیبت په وینا او کلام سره هم کیدیشی او په فعل یا اشارې وغیره سره هم کیدیشی ، لکه د ګډ داسې نقل کول چې د هغه سپکاوې پرې کیدیشی.
**مسئله**: ځینې روایتونو نه ثابت دی چې په آیت مبارك کښې چې دغیبت د عام حراموالی حکم دې دا مخصوص البعض دې یعنی په ځینې صورتونو کښې ددې اجازت شته دې ، لکه د یو کس بد د څه ضرورت یا مصلحت په غرض وی نو په غیبت کښې داخل نه دې ، خو شرط دادې چې هغه ضرورت اومصلحت په شریعت کښې معتبر وی لکه د یو ظالم شکایت دداسې بنده په وړاندې کول چې هغه ئې د ظلم نه بندولې شی ، یا د چا د اولاد یا ښځې شکایت بیانول د هغوئ د پلار یا دخاوند په وړاندې چې اصلاح ئې کولې شی ، یا د څه واقعې په باره کښې فتوې حاصلولو دپاره وی ، یا په دې غرض ئې بیانول چې نور مسلمانان دهغه دشر نه ساتل ئې

[1] تفسير البغوي [ج: ۷ ص:۳۴۶] و سنن ابوداود، كتاب الأدب ، باب الغيبة [ج:۲ص: ۶۶۹]
[2] تفسير المظهري[ج:۹ص:۵۵، ۵۶]و المعجم الأوسط للطبراني رقم الحديث:[۶۷۷۸] و شعب الإيمان رقم الحديث[۶۳۱۵]

غرض وی ، بیا په څه معامله کښې دمشورې اخستو په غرض د چا حال بیانول وی ، یا د هغه چا بد بیانول چې ښه په ښکاره او فخر سره گناه کوی ، نو دا ټول غیبت کښې نه راځی ، خو بې ضرورته ئې بیانول څکه مکروه دی چې هسې خپل وخت ضائع کول دی [دا ټولې مسئلې په بیان القرآن کښې د روح المعانی په حواله بیان کړې شوی دی]. او په دې ټولو کښې قدر مشترك دادې چې د چا د بدئ او عیب بیانولو نه غرض د هغه سپکاوې نه وی بلکه په څه ضرورت او مجبورئ سره ئې ذکر کړې شوې وی .

| | | | |
|---|---|---|---|
| مِّنْ ذَكَرٍ | إِنَّا خَلَقْنَٰكُم | يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ | |
| دیو نارینه | بیشکه پیدا کړی مونږه تاسو | خلقو | اے |
| | | اے خلقو ؛ مونږ تاسو دیوسړی او یوې ښځې نه | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لِتَعَارَفُوٓا۟ | وَقَبَآئِلَ | شُعُوبًا | وَجَعَلْنَٰكُمْ | وَأُنثَىٰ |
| دپاره ددې چې یو بل اوپیژنئ | اوقبیلې قبیلې | څانگې [قومونه] | او جوړ کړئ مونږه تاسو | او زنانه نه |
| | دې دپاره چې یو بل اوپیژنئ | او مختلف قومونه او قبیلې مو جوړې کړی یې | | پیدا کړی یئ |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| عَلِيمٌ | إِنَّ ٱللَّهَ | أَتْقَىٰكُمْ | عِندَ ٱللَّهِ | إِنَّ أَكْرَمَكُمْ |
| ښه پوهه دی | بیشکه الله | زیات پرهیزگار ستاسو دې | په نز دالله | بیشکه عزتمند په تاسو کښی |
| بیشکه الله عالم | چې زیات پرهیزگاروی | په نیز زیات عزت مند هغه څوک دې | په تاسوکښې دالله ﷻ | |

| |
|---|
| خَبِيرٌ ۝ |
| ښه خبر دی |
| خبردار دی |

## آسان ترجمه قرآن

اے خلقو! حقیقت دادې، چه مونږ تاسو ټولو لره د یو سړی او د یوې ښځې نه پیدا کړی یئ. او تاسو مو په مختلفو قومونو او خاندانونو کښې ددې وجې نه تقسیم کړی یئ، دې دپاره چه تاسو د یو بل پیژندګلو اوکړئ په حقیقت کښې د الله تعالیٰ په نزد په تاسو ټولو کښې عزت والا هغه څوک دې چه په تاسو کښې د ټولو نه زیات پرهیزګار وی. یقین اوکړئ چه الله تعالیٰ په هر څه پوهیدونکې، او د هر څیزنه باخبره دې.

## خلاصه تفسیر

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ إِنَّا خَلَقْنَٰكُم مِّن ذَكَرٍ وَأُنثَىٰ﴾ [اے خلقو مونږ تاسو] ټول [د یوسړی اویوې ښځې] یعنی ادم ؈ او بی بی حوا [نه پیدا کړی دی] په دې وجه په دې کښې خوټول انسانان برابردی [او] بیا په کومه خبره کښې چه فرق اینبودې دې چه ﴿وَجَعَلْنَٰكُمْ شُعُوبًا وَقَبَآئِلَ﴾ [تاسولره ئې مختلف قومونه او] بیا په دې قومونو کښې [مختلف خاندانونه جوړکړل] دامحض ددې دپاره ﴿لِتَعَارَفُوٓا۟﴾ [چه دیوبل شناخت وکړې شئ] چه په دې کښې ډیر مصلحتونه دی نه په دې وجه چه په یو بل فخروکړئ څکه چه ﴿إِنَّ أَكْرَمَكُمْ عِندَ ٱللَّهِ أَتْقَىٰكُمْ﴾ [د الله تعالی په نزد په تاسوټولو کښې لوئ شریف هغه دې کوم چه د ټولو نه زیاتت پرهیزگاروی] او پرهیزکاری داسې شې دې

چه پوره حال يې چا ته معلوم نه دي بلکه ددې حال لره محض ﴿إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ خَبِيرٌ﴾ [الله تعالی ښه پيژندونکې اوپوره خبرداردې] په دې وجه په نسب اوقوميت فخر مه کوئ

## معارف او مسائل

پورته آيتونو مبارکو کښې انساني او اسلامي حقونه او دزيست روزګار د آدابو د تعليم په سلسله کښې شپږ څيزونه حرام اومنع ګرځولې شوي دي چې خپل مينځ کښې د نفرت او دښمنۍ سبب وي ، په دې آيت مبارك کښې د انساني برابرئ تول اړخيز تعليم ورکړې شوې دې . چې هيڅوك دې بل لره ډير کم يا رذيل نه ګڼړي ، اودخپل نسب ، خاندان يا مال ، دولت وغيره په آډانړه دې فخر نه کوي ، ولې چې خپل مينځ کښې کرکه او دښمنۍ راولاړيږي . ځکه ئې اوفرمائيل چې ټول انسانان د يو مور پلار د اولاد کيدو په حيث رونړه رونړه دي ، اوخانداني قبائلي يا مال ، دولت په اعتبار سره چې کوم فرق الله ﷻ اېښودې هغه د فخر دپاره نه بلکه د پيژندګلو دپاره دې .

**شان نزول** :: دا آيت مبارك د فتح مکه په موقعه هغه وخت نازل شو چې نبی کريم ﷺ بلال حبشي رضي الله عنه ته د اذان کولو حکم اوفرمائيلو . د مکې قريش لا مسلمانان شوي نه وو ځکه په کښې يو اووئيل چې د الله ﷻ شکر دې چې پلار مې وراندې مړ دې اودا خرابه ورځ ئې او نه ليدله . اوحارث بن هشام اووئيل چې محمد ﷺ ته ددې تور قارغه نه سوا بل څوك خوښ نشو چې په مسجد حرام کښې آذان ورکړي . ابو سفيان رضي الله عنه اووئيل چې زۀ ځکه څه نه وايم چې خطره مې ده چې نبی کريم ﷺ لره به د آسمانونو مالك په هغې خبر کړي ، جبرائيل عليه السلام نبی کريم ﷺ ته ددې ټولو خبرو اطلاع ورکړه ، رسول کريم ﷺ دغه خلق راؤبللو ورته ئې اوفرمائيل چې تاسو څه وئيلي وو ؟ هغوئ ټولو اقرار اوکړو ، په دې باندې دا آيت مبارك نازل شو ، دې آيت مبارك دا اوخودل چې د فخر او عزت څيز په حقيقت کښې ايمان اوتقوی ده چې تاسو خلقو کښې دانشته او بلال رضي الله عنه په دې سره ښائسته دې ، ځکه هغوئ رضي الله عنه تاسو ټولو نه زيات غوره او زيات شريف دې [مظهری د بغوی نه](1).

د عبدالله بن عمر رضي الله عنه روايت دې چې د فتح مکه په ورځ نبی کريم ﷺ پخپله اوښه باندې سوارة وو او طواف ئې اوکړو د طواف نه چې فارغ شو نو نبی کريم ﷺ دا خطبه اوفرمائيله چې : ﴿الحمد لله الذي اذهب عنكم عبية الجاهلية وتكبرها الناس رجلان، بر، تقي كريم على الله و فاجر شقي هين على الله، ثم تلا يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّا خَلَقْنَاكُمْ﴾ [ترمذی و بغوی](2).

د الله ﷻ شکر دې چا چې تاسو نه د جاهليت فخر او د هغې تکبر لرې کړو اوس د ټولو انسانانو صرف دوه قسمه دي ، يو نيك او متقي ، هغه چې د الله ﷻ په نزد شريف اوعزت مند دې ، بل فاجر بدبخته دې ، چې د الله ﷻ په نزد ذليل اوسپك دې ، دې نه پس ئې دا آيت مبارك تلاوت کړو چې ﴿يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّا خَلَقْنَاكُمْ﴾ ابن عباس رضي الله عنه فرمائي چې ددنيا دخلقو په نزد عزت د مال او دولت نوم دې او د الله ﷻ په نزد د تقوی نوم دې .

(1) تفسير البغوي هذه الآية [ج:۷ ص: ۳۴۷]
(2) تفسير البغوي تحت [ج:۷ ص:۳۴۸ ، ۳۴۹] و جامع الترمذي ، ابواب التفسير باب تفسير سورة الحجرات[ج:۲ ص:۱۶۲]و مصنف ابن ابی شيبة رقم الحديث:[۳۶۹۱۹]

﴿شُعُوۡبًا وَّقَبَآئِلَ﴾ شعوب د شعب جمع ده چې ډيرې لوئې ډلې دخلقو ته وئيلې شي كوم چې په يو بنياد باندې راجمع وی بيا په هغې كښې مختلفې قبيلې اوخاندانونه وی ، بيا په خاندانونو كښې هم د لوئې خاندان اود هغې د مختلفو حصو څان څانله نومونه دی ، د ټولو نه لويه حصه ئې شعب نوميږی اود ټولو نه وړه حصه ئې عشيره نوميږی او د ابی رواق په قول باندې شعب اوشعوب دعجمی قومونو دپاره وئيلې شي د چا نسبونه چې محفوظ نه دی او قبائل د عرب خلقو دپاره وئيلې شي چې نسبونه ئې محفوظ راروان وی او اسباط بنی اسرائيلو دپاره وئيلې شی(۱).

**نسبي وطني يا دڼېي پيلتون د پيژندګلو په حكمت او مصلحت باندې اوانړه لري ::** د قرآن عظيم الشان دې آيت مبارك څرګنده كړه چې الله ﷻ اګر چې ټول انسانان ديو پلار ، مور نه پيدا كړی او رونړه جوړ كړی دی ، مګر بيا د دوئ تقسيم په مختلفو قومونو قبيلو كښې الله ﷻ كړې دې هغې كښې حكمت دادې چې دخلقو پيژندګلو آسانه شي ، لكه د يو نوم د دوؤ كسانو د خاندان په فرق سره بيلتون راتلې شی اوپه دې سره د لرې اونږدې خپلوئ عمل راتلې شي او د نسبی نږدې والی او لرې والی په مقدار باندې د دوئ شرعی حقونه ادا كولې شی . د عصبؤ نږدې والې او لرې والې معلوميږی ، چې ضرورت ئې د ميراث په تقسيم كښې راپيښيږی ، خلاصه ئې دا شوه چې نسبی بيلتون دپيژندګلو دپاره استعمال كړئی فخر دپاره نه .

| قَالَتِ الۡاَعۡرَابُ | اٰمَنَّا ؕ | قُلۡ | لَّمۡ تُؤۡمِنُوۡا |
|---|---|---|---|
| اووئيل بانډيسيانو | چې ايمان راوړو مونږه | اووايه | چې تاسو ايمان نه دې راوړې |
| [دا بعضې] بانډيچيان وائی | چې مونږ ايمان راوړې دې | ورته اووايه | چې تاسو ايمان نه دې راوړې |

| وَلٰكِنۡ قُوۡلُوۡۤا | اَسۡلَمۡنَا | وَلَمَّا يَدۡخُلِ الۡاِيۡمَانُ | فِىۡ قُلُوۡبِكُمۡ ؕ |
|---|---|---|---|
| وليكن اووايئ | چې تابع شو مونږه | اولا نه دې داخل شوې ايمان | په زړونو ستاسو كښې |
| خوداسې وائې | چې مونږ په ظاهره تابعداريو | ايمان خو لاتراوسه | ستاسو په زړونو كښې داخل شوې نه دې |

| وَاِنۡ تُطِيۡعُوا اللّٰهَ | وَرَسُوۡلَهٗ | لَا يَلِتۡكُمۡ | مِّنۡ اَعۡمَالِكُمۡ |
|---|---|---|---|
| او كه تاسو حكمونه اومنل دالله | او درسول دهغه | نو كم به نه كړی تاسو لره | دعملونو ستاسو نه |
| او كه تاسو دالله ﷻ | اودهغه درسول ﷺ تابعداری اوكړئ | نو الله ﷻ به | ستاسو په عملونو كښې هيڅ |

| شَيۡئًا ؕ | اِنَّ اللّٰهَ | غَفُوۡرٌ رَّحِيۡمٌ ﴿۱۴﴾ | اِنَّمَا الۡمُؤۡمِنُوۡنَ | الَّذِيۡنَ |
|---|---|---|---|---|
| هيڅ څيز | بيشكه الله | ښښونكې مهربانه دې | بيشكه مومنان | هغه خلق دی |
| كمې نه راولی | بيشكه الله ﷻ | ښښونكې دير رحم كونكې دې | بيشكه مومنان خو | هغه خلق دی |

| اٰمَنُوۡا | بِاللّٰهِ | وَرَسُوۡلِهٖ | ثُمَّ لَمۡ يَرۡتَابُوۡا |
|---|---|---|---|
| چې ايمان ئې راوړو | په الله باندې | او په رسول دهغه باندې | بيا ئې هيڅ شك اونه كړو |
| چې الله ﷻ | او د هغهٔ په رسول ﷺ باندې ايمان راوړی | | بيا[د ايمان راوړو نه پس] شك نه كوی |

(۱) تفسير البغوي [ج: ۷ ص:۳۴۸]

وَجٰهَدُوْا بِاَمْوَالِهِمْ وَاَنْفُسِهِمْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۭ اُولٰۗىِٕكَ

او جهاد ئې اوکړو | په مالونو خپلو سره | او په نفسونو خپلو سره | په لار د الله کښې | دا کسان چې دي

او د الله ﷻ په لار کښې په خپلو مالونو او په خپلو ځانونو سره جهاد کوي | هم دغه خلق

هُمُ الصّٰدِقُوْنَ ۝۱۵ قُلْ اَتُعَلِّمُوْنَ اللّٰهَ بِدِيْنِكُمْ ۭ وَاللّٰهُ

هم دوئ رښتيني خلق دي | ورته او وايه | آيا تاسو خبر ورکوئ الله ته | د دين خپل | حالانکه الله

رښتوني دي | ته او وايه چې آيا تاسو الله ﷻ ته د خپلې دينداري خبر ورکول غواړئ؟ | حالانکه

يَعْلَمُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ۭ وَاللّٰهُ

خبر دې | دهغه څه نه | چې په آسمانونو کښې دي | او هغه څه نه | چې په زمکه کښې دي | او الله

الله ﷻ د آسمانونو او د زمکې د هر څيز نه خبر دې | ..............او الله ﷻ

بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ۝۱۶ يَمُنُّوْنَ عَلَيْكَ اَنْ اَسْلَمُوْا ۭ

په هر څيز باندې | خبردار دې | دوئ احسان کوي | په تا باندې | چې دوئ اسلام قبول کړو |

ته هرڅه معلوم دي | دا خلق په تا احسان کوي | چې مونږ اسلام راوړې دې

قُلْ لَّا تَمُنُّوْا عَلَيَّ اِسْلَامَكُمْ ۚ بَلِ اللّٰهُ يَمُنُّ

ورته او وايه چې مه احسانوئ | په ما باندې | اسلام خپل | بلکه الله | احسان کوي

ورته او وايه چې د خپل اسلام راوړل احسان په ما مه اچوئ | بلکه دا خو په خپلو ځانونو د الله ﷻ احسان

عَلَيْكُمْ اَنْ هَدٰىكُمْ لِلْاِيْمَانِ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ۝۱۷

په تاسو باندې | چې هدايت ئې اوکړو ستاسو | ايمان ته | که يئ تاسو | رښتيني |

اوګڼئ | چې هغه درته د ايمان طرفته خودنه اوکړه | .............که چرې تاسو رښتوني يئ

اِنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ غَيْبَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۭ وَاللّٰهُ بَصِيْرٌ

بيشکه الله | پوهيږي | په غيبو د آسمانونو | او د زمکې | او الله | ليدونکې دې |

بيشکه الله ﷻ د آسمانونو او د زمکې په ټولو پټو خبرو باندې پوهيږي | او الله ﷻ

بِمَا تَعْمَلُوْنَ ۝۱۸

دهغه څه | چې تاسو ئې کوئ |

ستاسو عملونه ويني ګوري

## آسان ترجمه قرآن

دا بانډچيان وائي چه: مونږ ايمان راوړې دې، ته دوی ته اووايه چه: تاسو ايمان خو نه دې راوړې، البته داسې اووايئ چه مونږ وسله غورزولې ده او ايمان لا ستاسو په زړونو کښې داخل شوې نه دې، او که تاسو واقعي د الله تعالى او د هغه د رسول اطاعت اوکړئ، نو الله تعالى به ستاسو د عملونو (په ثواب کښې) لږ کمې هم اونه کړي، يقيناً الله تعالى ډير بخونکې، او ډير مهربان دې. ايمان والا هغه کسان دي، چه هغوی الله تعالى او د هغه رسول زړه سره منلې دې، بيا په څه شک کښې نه دي مبتلا شوې، او کومو خلقو چه په

خپل مال او دولت، او په خپلو ځانونو سره د الله تعالی په لاره کښې جهاد کړي دي، هم هغه دي، چه رښتوني دي. (اے پیغمبره علیه السلام! دې بانډچیانو ته) اووایه چه: آیا تاسو الله تعالی ته د خپل دین اطلاع ورکوئ؟ حالانکه الله تعالی هغې ټولو ځیزونو باندې ښه پوهیږي، کوم چه په آسمانونو کښې دي، او کوم چه په زمکه کښې دي، او الله تعالی د هر ځیز پوره پوره علم لري. دا خلق په تا باندې احسان کوي، چه دوي ایمان راوړې دې، دوی ته اووایه چه: ما باندې د خپل اسلام راوړلو احسان مه ښاطئ بلکه که تاسو واقعي (په خپله دعوی کښې) رښتوني یئ، نو دا د الله تعالی په تاسو باندې احسان دې، چه هغه تاسو ته د ایمان هدایت درکړو. واقعي خبره داده، چه الله تعالی د آسمانونو او زمکې په پټو خبرو باندې ښه پوهه دې، او څه چه تاسو کوئ، الله تعالی هغې لره ښه وینې.

## خلاصه تفسیر

﴿قَالَتِ الْاَعْرَابُ اٰمَنَّا ۭ﴾[دا] بعضي [دباندو خلق] بني اسد وغیره چه تاته راشی کوم چه دایمان راوړو دعوی کوی دوی په دې کښې په څوګناهونو کښې اخته کیږی یو خو دروغ چه بغیر دزړهٔ دتصدیق نه محض په ژبه سره [وائی چه مونږ ایمان راوړو﴿قُلْ لَّمْ تُؤْمِنُوْا﴾ ته ووایه چه تاسوایمان خونه دې راوړې] ځکه چه هغه موقوف دې په تصدیق دزړهٔ او هغه موجود نه دې لکه چه نزدې راروان دې [ولمایدخل الایمان] ﴿وَلٰكِنْ قُوْلُوْٓا اَسْلَمْنَا﴾[لیکن] هاه [داسې وایئ چه] مونږ مخالفت پریښودو [تابعدارشو] او اطاعت په معنی دترك مخالفت محض په ظاهري موافقت سره هم متحقق کیدې شی [او] باقی ﴿وَلَمَّا يَدْخُلِ الْاِيْمَانُ فِيْ قُلُوْبِكُمْ ۭ﴾[تراوسه ایمان ستاسو په زړونو کښې نه دې داخل شوې] په دې وجه دایمان دعوی مه کوئ ﴿وَاِنْ تُطِيْعُوا اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ﴾ [اوګویا] تراوسه تاسو ایمان نه دې راوړې لیکن اوس هم [که چرې تاسو دالله تعالی اورسول] په ټولو خبروکښې [خبره ومنئ] په کومو کښې چه داهم داخله ده چه په زړهٔ سره ایمان راوړئ ﴿لَا يَلِتْكُمْ مِّنْ اَعْمَالِكُمْ شَيْـــًٔا ۭ﴾ [نو الله تعالی ستاسو دعملونو نه] کوم چه پس دایمان نه وی محض د هغه وخت دکفر اوکذب په وجه سره کوم چه به ددې وخت په اعتبار سره تیرشوې وی [ذره هم کم نه کړی] بلکه دټولویه پوره پوره ثواب درکړی ځکه چه ﴿اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ﴾[بیشکه الله تعالی غفور او رحیم دې] اوس زمونږ نه واوړئ چه کامل مؤمن څوك دې چه که تاسو مؤمن جوړیدل غواړئ نو داسې جوړشئ پس ﴿اِنَّمَا الْمُؤْمِنُوْنَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ﴾[پوره مؤمنان هغه دې کوم چه په الله تعالی او دهغه په رسول ایمان راوړی﴿ثُمَّ﴾ بیا] په ایمان قایم پاتې شی یعنی په ټول عمر کښې چرته ﴿لَمْ يَرْتَابُوْا﴾[شك ونه کړی ﴿وَجٰهَدُوْا بِاَمْوَالِهِمْ وَاَنْفُسِهِمْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۭ﴾ او په خپل مال او ځان سره دالله تعالی په لاره کښې] یعنی ددین دپاره [محنت وکړی] چه په دې کښې جهاد وغیره ټول راغلل پس ﴿اُولٰۗىِٕكَ هُمُ الصّٰدِقُوْنَ﴾[هم داخلق دی ربښتونی] یعنی پوره ربښتونی او دغسې که صرف تصدیق یې وی بیا هم نفس صدق به وی په خلاف ستاسو چه ادنی درجه دایمان تصدیق دې هغه هم نه دې حاصل او دعوی کوئ دایمان کامل پس یو امر قبیح خو دهغوی نه دا صادر شو یعنی کذب لکه چه الله تعالی فرمائی ﴿وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّقُوْلُ اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَبِالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَمَا هُمْ بِمُؤْمِنِيْنَ﴾ پورې او دویم امر قبیح دادې چه دوی دوکه ورکوی لکه چه الله تعالی

فرمائی یمنون الله الخ() پس ﴿قُلْ أَتُعَلِّمُونَ اللَّهَ بِدِينِكُمْ﴾[ته] دوی [ته وفرمایه چه ایا الله تعالی ته دخپل دین] قبلولو [خبر ورکوئ] یعنی الله تعالی خو پوه دې چه تاسوایمان نه دې قبول کړې سره ددې چه تاسو کومه دعوی دقبلولو کوئ نو په دې سره لازمیږی چه خلاف د علم خداندی نه الله تعالی ته یوه خبره ښاییئ [حال دادې چه] دامحاله ده ځکه چه ﴿وَاللَّهُ يَعْلَمُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ﴾[الله تعالی ته خو دټولو اسمانونو اومزکې دټولو څیزونو] پوره [خبردې او] علاوه داسمانونو اومزکې نه ﴿وَاللَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ﴾[الله تعالی] نور هم [ټول څیزونه پیژني] نو ده ته به څوک څه وښائی په دې سره معلومه شوه چه الله تعالی ته چه کوم ستاسو په حقله علم دې چه تاسو ایمان نه دې راوړې هغه صحیح دې او درم کارقبیح کوم چه دوی وکړو دادې چه ﴿يَمُنُّونَ عَلَيْكَ أَنْ أَسْلَمُوا﴾[داخلق دخپل اسلام راوړو په تااحسان ږدی] کوم چه نهایت درجه گستاخی ده چه گورئ مونږ بغیرد جنگ جگړې نه مسلمانان شو او نورو خلقوخو ډیر پریشانه کړئ نومسلمانان شول پس ﴿قُل لَّا تَمُنُّوا عَلَيَّ إِسْلَامَكُم﴾ [ته ووایه چه په مادخپل اسلام راوړو احسان مه ږدئ] ځکه چه قطع نظر دگستاخئ نه ستاسو اسلام مالره څه نفع راکړه [او] په اسلام نه راوړو زما څه نقصان وشو که تاسو رښتوني وې نو ستاسو داخرت نفع وه او په دروغژن کیدو کښې هم ستاسو ددنیانفع ده چه دقتل اوقید نه بچ شوئ پس په مااحسان ایښودل محض جهل دې ﴿بَلِ اللَّهُ يَمُنُّ عَلَيْكُمْ أَنْ هَدَاكُمْ لِلْإِيمَانِ﴾[بلکه الله تعالی پر تاسو احسان ږدی چه هغه تاسو ته دایمان هدایت وکړو ﴿إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ﴾ په دې شرط چه که تاسو] په دې دعوی دایمان کښې [رښتونی یئ] ځکه چه ایمان لوئ نعمت دې او بغیر دتعلیم اوتوفیق د الله تعالی نه نه نصیب کیږی نودا دالله تعالی عنایت دې چه داسې لوئ نعمت ئې درکړو پس دوکې او احسان ضباطولونه واپس شئ او دا یا د سادتئ چه ﴿إِنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ غَيْبَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ﴾[الله تعالی داسمانونو اومزکې ټولو پټو خبرو لره پیژني او] ددې علم محیط په وجه ﴿وَاللَّهُ بَصِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ﴾[ستاسو ټولو عملونو لره هم پیژني] او دهغې موافق به تاسو لره جزا درکوی بیاد هغه په وړاند د خبرو جوړولو نه څه فائده ده

## معارف او مسائل

تیروشوؤ آیتونو مبارکو کښې خودلې شوی دی چې د الله ﷻ په نزد د عزت او شرافت اډانړه په تقوی ده چې باطنی څیز دې ، دې لره خاص الله ﷻ پیژني ، دخپل ځان د پاکیزګۍ دعوی چالره نه ده روا . اوس په دې آیتونو مبارکو کښې د یوې خاص واقعې په بنا دا خودلې شوی دی چې د ایمان اصل مدار د زړۀ په تصدیق باندې دې ، دې نه بغیر خالص په ژبه باندې ځان ته مؤمن وئیل صحیح نه دی ، په دې ټول سورة کښې اول د رسول کریم ﷺ د حقوقو د رسول کریم ﷺ دتعظیم او تکریم ، بیا خپل مینځ کښې د یوبل د حقونو او د زیست روزګار د طریقو بیان راغلې دې ، د سورة په ختمیدو باندې دا اوخودلې شو چې په آخرت کښې د ټولو عملونو اډانړه په ایمان د زړۀ په تصدیق او د الله ﷻ او د رسول کریم ﷺ په تابعدارئ باندې ده .

[1] د پوره آیت ترجمه داده:- او په خلقو کښې څینې داسې هم شته چې وائی مونږ ایمان راوړو په الله تعالی باندې او په ورځ د آخرت باندې حالانکه هغوئ بالکل ایمان والا نه دی

**شان نزول** :: د امام بغوی رحمه‌الله[1] د روایت مطابق ددې آیت مبارك د نازلیدو واقعه دا وه چې د نبی اسد قبیلې یو څو سرې مدینه منوره د رسول کریم ﷺ په خدمت کښې په هغه موقعه حاضر شو چې د سخت قحط زمانه وه ، دغه خلق د زړهٔ نه خو مؤمنان نه وو او صرف د صدقو حاصلولو په غرض ئې اسلام ښکاره کړو چې مؤمنان نه وو ، ځکه د اسلامی حکمو او طریقو نه خبر نه وو ، هغوئ دمدینې منورې په لارو کښې گندگی او پلیتی خوره کړه او د مدینې منورې په بازارونو کښې د ضرورت دڅیزونو قیمتونه زیات کړل او د رسول کریم ﷺ په وړاندې ئې د ایمان راوړو په دروغه دعوی اوکړه دویم ئې رسول کریم ﷺ ته تیر ورکول اوغوښتل . دریم ئې په رسول کریم ﷺ باندې دا احسان خیژولو چې نور خلق خو تاسو ﷺ سره د څه جنگونو کولو نه پس مسلمانان شوی دی اومونږ بې دزه بې دوزه مسلمانان شوی یو ځکه زمونږ قدر کول پکار دی چې په یو شان خود رسول کریم ﷺ بې ادبی کول وو او بل ئې مقصود دا وو چې د مسلمانانو په صدقو اوخیراتونو خپلې نیستئ غوځې کړی ، که واقعی په ربښتیا مسلمانان وې نو په رسول کریم ﷺ به ئې ولې احسان کولو ، پخپله به ئې خپله فائده وه ، په دې باندې دا آیتونه نازل شو چې په کښې په دروغه دعوی د دوئ ښکاره کړه او د دوئ دایمان خیژولو بدی ئې هم ورسره بیان کړه .

﴿وَلَكِن قُولُوٓا۟ أَسْلَمْنَا﴾ هرکله چې ددغې خلقو په زړونو کښې ایمان نه وو صرف دظاهری کړو وړو په بنا ې د دروغو دعوی کوله ځکه قرآن عظیم الشان د دوئ د ایمان نیشتوالې اود ایمان د غلطې دعوې بیان ئې اوکړو ، دائې اوفرمائیل چې ستاسو ﴿آمَنَّا﴾ وئیل خو دروغ دی تاسو زیات نه زیات د ﴿أَسْلَمْنَا﴾ وئیلې شی ، ولې چې د اسلام لفظی معنی په ظاهری کارونو کښې تابعداری کول دی اودغې خلقو خپل ایمان راوړل په هغې سره دربښتیا ثابتول غوښتل ، په دې شان په لفظی اعتبار سره یو قسم تابعداری کول شو ، په دې بنا دلغوی معنی په اعتبار سره اسلمنا وئیل صحیح کیدې شی .

**اسلام او ایمان یو څیز دې اوکه څه فرق په کښې شته دې** :: ددې تیر شوی تقریر نه معلوم شو چې په دې آیت مبارك کښې د اسلام لغوی معنی مراد ده اصطلاحی معنی د سره مراد نه ده ، ځکه په دې آیت مبارك سره د ایمان اواسلام ترمینځه په اصطلاحی فرق باندې هیڅ استدلال نشی کیدې ، او د اصطلاح ایمان ا اصطلاحی اسلام ترمینځه اکر چې د مفهوم او معنی په اعتبار سره فرق داسې شته چې ایمان دشریعت په اصطلاح کښې د زړهٔ د تصدیق نوم دی ، په زړهٔ کښې سره دالله ﷻ توحید او رسول کریم ﷺ پیغمبری ربښتیا اومنلې شی ، او اسلام دې ته وائی چې په ظاهری عملونو سره دالله ﷻ اود رسول کریم ﷺ تابعداری اوکړې شی ، خو په شریعت کښې د زړهٔ تصدیق تر هغې وخته پورې د اختیار جوگه نه دې تر څو چې د هغې اثر داندامونو ظاهری عملونو او فعلونو ته ورپورې اوځی . ادنی درجه ئې داده چې په ژبه سره داسلام دکلمې اقرار اوکړې ، دغه شان اسلام اکر چې د ظاهری عملونو نوم دې خو په شریعت کښې تر هغې وخته پورې معتبر نه دې تر څو چې په زړهٔ کښې تصدیق رانشی ، گنی نودا منافقت شو ، په دې شان اسلام او ایمان د بنیاد اوانجام په اعتبار سره جدا جدا داسې دی چې

[1] تفسیر البغوي [ج: ۷ ص: ۳۵۰]

ایمان دباطن او زړهٔ نه شروع شي او عملونو ته رسیږي او اسلام د ظاهري افعالو نه شروع شي اود باطن تصدیق پورې رسیږي خود مصداق اعتبار سره دا دواړه یوبل سره لازم او ملزوم دي هغه داسې چې اسلام بغیر د ایمان نه او ایمان بغیر د اسلام نه په شریعت کښې معتبر نه دي. شریعت کښې دا خوکیدې نشي چې یوبنده دې مسلمان وي او مؤمن دې نه وي یا دې مؤمن وي مسلمان دې نه وي.

خو دا کلام په اصطلاحي ایمان او اسلام کښې البته د لغوي معنی اعتبار سره داسې کیدې شي چې یو بنده مسلمان وي مؤمن نه وي څنګه چې د ټولو منافقانو حال وو ،والله سبحانه وتعالی اعلم ، دسورة حجرات ترجمه ختمه شوه.

تمت بحمد الله تعالی وعونه سورة الحجرات للتامن من شعبان ۱۳۹۲ یوم الاحد ولله الحمد والمنة

| ایاتونه | سورة ق مکیة وهي خمس واربعون ایة وثلاث رکوعات | رکوع ګانې |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ۴۵ | شروع کوم په نوم د الله چه ډیرمهربان زیات رحم کونکې دې | ۳ |

قٓ ۚ وَالْقُرْاٰنِ الْمَجِيْدِ ۚ بَلْ عَجِبُوْٓا اَنْ جَآءَهُمْ

ق | قسم دې په قرآن | چې لوئ شان والا دې | بلکه دوئ حیران شو | په دې خبره چې راغې دوئ ته

قاف ، په قرآن پاک باندې قسم دې | (چې مونږ ته پیغمبر کړې یئ) خو دا خلق په دې خبره تعجب کوي

مُّنْذِرٌ مِّنْهُمْ فَقَالَ الْكٰفِرُوْنَ هٰذَا شَيْءٌ عَجِيْبٌ ۚ ءَاِذَا

یرونکي | ددوئ نه | نو اووئیل کافرانو | دا یو څیز دې | عجیبه | آیا کله چې

چې دوئ ته دخپل قوم نه ویرونکي راغلو | نو کافران وائی دا ډیره عجیبه خبره ده | آیا کله چې مونږ

مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا ۚ ذٰلِكَ رَجْعٌۢ بَعِيْدٌ ۝ قَدْ عَلِمْنَا مَا

مړه شو مونږه | او شو مونږه | خاورې | دا واپسی | لرې خبره ده | معلوم دی مونږ ته | هغه [ټول]

یوځل مړه شو او خاورې شو | انو بیابه راژوندی کولې شو | دا واپسی خو (دعقل نه) ډیره لرې ده. مونږ ته خو ددوئ

تَنْقُصُ الْاَرْضُ مِنْهُمْ ۚ وَعِنْدَنَا كِتٰبٌ حَفِيْظٌ ۝ بَلْ

چې کموی ئې زمکه | ددوئ نه | او زمونږ سره | کتاب دې | هر څیز محفوظ کونکې | بلکه

هغه (ټول اجزا) معلوم دی | چې زمکه (په خوړو خوړو سره) کموی | او مونږ سره پوره محفوظ کتاب پروت دې

كَذَّبُوْا بِالْحَقِّ لَمَّا جَآءَهُمْ فَهُمْ فِيْٓ اَمْرٍ مَّرِيْجٍ ۝

دروغ اوګنړودوئ | حق لره | هرکله چې | راغې دوئ ته | پس دوئ (اوس) | پریوتی دی په کارشکمن کښې

بلکه کله چې دوئ ته حقه خبره راغله نو هغه یې دروغ اوګنړله | نو دوئ په شک کښې واقع شول

اَفَلَمْ يَنْظُرُوْٓا اِلَى السَّمَآءِ فَوْقَهُمْ كَيْفَ بَنَيْنٰهَا

آیا دوئ نه دی کتلی | آسمان ته | دپاسه دخان خپل نه | چې څه رنګې جوړ کړو مونږه هغه

نو آیا دوئ آسمان ته نه ګوری چې د دوی د سرونو دپاسه دې | مونږ څنګه جوړ کړې

وَزَيَّنّٰهَا وَمَا لَهَا مِنْ فُرُوْجٍ ۝٦ وَالْاَرْضَ مَدَدْنٰهَا

او ښائسته كړو مونږه هغه | او نشته هغه لره | څه چاودې | او ځمكه | او غوړوله مونږه هغه

او ښائسته كړې مو دې | او په هغې كښې هيڅ چاؤدې نشته | او ځمكه خو هم مونږ خوره كړې ده

وَاَلْقَيْنَا فِيْهَا رَوَاسِيَ وَاَنْۢبَتْنَا فِيْهَا

او اوغورزول مونږه | په هغې كښې | غرونه | او زرغون كړل مونږه | په هغې كښې |

او په هغې كښې مو غرونه پيدا كړي دي | او هرقسم ښائسته جوړې څيزونه مو په

مِنْ كُلِّ زَوْجٍۢ بَهِيْجٍ ۝٧ تَبْصِرَةً وَّذِكْرٰى

دهر قسم | تازه بوټو نه | دا ټول څيزونه سترګې رڼا كونكي دي | او نصيحت دي |

كښې راټوكولي دي | ..........چې مونږ ته د رجوع كونكي هربنده دپاره دسترګو

لِكُلِّ عَبْدٍ مُّنِيْبٍ ۝٨ وَنَزَّلْنَا مِنَ السَّمَآءِ مَآءً مُّبٰرَكًا

دپاره دهر بنده | رجوع كونكي | او نازلې كړې مونږه | دآسمان نه | اوبه | بركتناكې |

غړيدلو او نصيحت ذريعه ده | ..........اوپورته نه مو بركتي اوبه راوورولې دي

فَاَنْۢبَتْنَا بِهٖ جَنّٰتٍ وَّحَبَّ الْحَصِيْدِ ۝٩

پس زرغون كړل مونږه | په هغې سره | باغونه | او دانې [غلې] | دريبلې شوي فصلونو |

بيا مو په دې سره باغونه او د ريبلې شوې فصلونو دانې را پيدا كړي دي

وَالنَّخْلَ بٰسِقٰتٍ لَّهَا طَلْعٌ نَّضِيْدٌ ۝١٠ رِّزْقًا

او ونې دكجورو | دنګې لوړې | هغې لره دي | وږی [غونچكونه] | قط په قط | رزق |

او دكهجورو دنګې ونې | چې دهغې غنچې يو په بل كښې انخښتې دي | ..........دا

لِّلْعِبَادِ وَاَحْيَيْنَا بِهٖ بَلْدَةً مَّيْتًا كَذٰلِكَ الْخُرُوْجُ ۝١١

دپاره دبندګانو | او ژوندۍ كړه مونږه | په دې اوبو سره | زمكه مړه | دارنګې راوتل دي [دانسانانو دزمكې نه]

بندګانو دپاره خوراک دي | اوپه دې [اوبو] سره مونږ مړه زمكه ژوندۍ كړه [دغه شان به [دقبرونونه] وتل وي

كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوْحٍ وَّاَصْحٰبُ الرَّسِّ وَثَمُوْدُ ۝١٢

دروغ اوګڼل | مخكښې ددوئ نه | قوم دنوح | او ملګرو دكوهی | او ثموديانو |

د دوی نه وړاندې ..........د نوح عليه السلام قوم ..........او د كوهی ملګرو او ثموديانو

وَعَادٌ وَّفِرْعَوْنُ وَاِخْوَانُ لُوْطٍ ۝١٣ وَّاَصْحٰبُ الْاَيْكَةِ وَقَوْمُ تُبَّعٍ

عاديانو | او فرعون | او رونړو دلوط | او خلقو دځنګل | او قوم دتبع |

او عاديانو او فرعونيانو او دلوط عليه السلام رونړو او دبنړو اوسيدونكو او دتبع قوم

كُلٌّ كَذَّبَ الرُّسُلَ فَحَقَّ وَعِيْدِ ۝١٤ اَفَعَيِيْنَا بِالْخَلْقِ

دې ټولو | دروغ اوګڼل رسولان | پس ثابت شو | عذاب زما | آيا نو عاجزه وو مونږه | په پيداوښت

دې ټولو خپل خپل پيغمبران دروغژن ګڼرلي وو | نوزما دعذاب فيصله پرې ثابته شوه | نوآيا مونږ [ددوئ

| الْأَوَّلِ ؕ | بَلْ | هُمْ فِيْ لَبْسٍ | مِّنْ خَلْقٍ جَدِيْدٍ ۟ |
|---|---|---|---|
| رومبنی سره | بلکه دوئ | په شك كښې پراته دی | دپیداوښت نوی نه |

په اول خل پیدا کولو باندې ستړی شو | نه بلکه دوئ دنوی سره دپیدا کیدو په باره کښې په شک کښې پراته دی

## آسان ترجمه قرآن

قٓ، قسم دې په قرآن مجيد باندې! (دغې کافرانو پيغمبر عليه السلام ته د څه دليل په وجه دروغژن نه دی وئیلي بلکه هغوی په دې خبره باندې د حیرانتیا اظهار اوکړو، چه څوک دآخرت نه ویرونکې خپله هم په دوی کښې (څرنګه) راغلو نو دغې کافرانو دا اووئیل چه: دا خو ډیره عجیبه خبره ده. آیا هر کله چه مونږه مړه شو، او خاوړې شو، (هغه وخت به مونږ دوباره ژوندې کولې شو) دا واپسی خو زمونږ د پوهې نه لرې ده. واقعه خو داده، چه زمکه ددوی کومې حصو لره (خوړلوسره) کموی مونږ ته دهغې پوره علم دې او مونږ سره یو کتاب دې، چه ټول هر څه محفوظ ساتي په اصل کښې دوی رشتیاؤ ته په هغه وخت کښې دروغ وئیلي وو، چه کله هغه دوی ته راغلې وو. پس دوی په اُلټه پُلټه خبرو کښې اخته دي آیا دوی د ځان دپاسه آسمان نه دې لیدلې، چه مونږ هغې لره څرنګه جوړ کړې دې؟ او مونږ هغې ته خائست ورکړې دې او په هغې کښې هيڅ قسمه چودل نشته. او زمکه مونږ خوره کړې ده، او په هغې کښې مو د غرونو لنګر اچولې دڅې، او په هغې کښې مو هر قسمه خائسته ګیزونه زرغون کړې دی. دې دپاره چه هغه د هر رجوع کونکې بنده دپاره د بصیرت او نصیحت سبب جوړ شي. او مونږ د آسمان نه برکتونو والا اوبه نازلې کړې، بیا مو دهغې په ذریعې سره باغونه او د غلې هغه دانې زرغونې کړې، چه دهغې لَوَ کولې شي او د کهجورو دنګې دنګې اونې، چه په هغې کښې لاندې باندې غونچکې وی. دې دپاره چه مونږ بندګانو ته رزق ورکړو او دغه شان مونږ په دې اوبوسره يو مړ شوې ښهر ته ژوند ورکړو. بس دغه شان به (د انسانانو د قبرونو نه) وتل هم وی ددوی نه مخکښې د نوح عليه السلام قوم او اصحاب الرس او ثمودیانو هم (دغې خبرې ته) دروغ وئیلي وو، او قوم عاد او فرعون او د لوط عليه السلام ورونړو هم. او اصحاب الایکه او د تبع قوم هم، دغې ټولو پيغمبرانو ته دروغژن اووئیل، نو مونږ چه د کوم عذاب نه ویرولې وو، هغه رشتیا شو. آیا مونږ په اول ځل پیدائش باندې ستړې شوی یو؟ نه! لیکن دا خلق سر دوباره پیدا کولو باره کښې په دهوکه کښې پراته دی.

## خلاصه تفسير

﴿قٓ ۚ﴾[قٓ] ددې معنی خو الله تعالی ته معلومه ده ﴿وَالْقُرْاٰنِ الْمَجِيْدِ ۟ۚ﴾[قسم دې په قران مجيد] يعنی کوم لره چه په نورو کتابونو شرف او فضيلت دی چه مونږ تاته دقيامت دعذاب نه دويرولو دپاره درليږلې دې مګر دې خلقو ونه منلو ﴿بَلْ عَجِبُوْٓا اَنْ جَآءَهُمْ مُّنْذِرٌ مِّنْهُمْ﴾[بلکه په دې خبره ئې تعجب وکړو چه دوی ته د دوی] د جنس [نه] يعنی دانسانانو نه [يو يرونکي] پيغمبر[راغې] کوم چه دوی لره دقيامت د ورځې نه وويرول [پس] په دې ﴿فَقَالَ الْكٰفِرُوْنَ هٰذَا شَيْءٌ عَجِيْبٌ ۟ۚ﴾[کافرانو ووئيل چه] اول خو په خپله [دا] يوه [عجيب خبره ده] چه بشر پيغمبر وی دويم بيا دعوی هم دعجيبه خبرې کوی چه دوباره به ژوندی کيږی ﴿ءَاِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا ۚ﴾[ايا هرکله چه مونږ مړه شو او خاوړې شو نو ايا دوباره به ژوندی شو ﴿ذٰلِكَ رَجْعٌۢ بَعِيْدٌ ۟﴾ دا دوباره

ژوندی کیدل] دامکان نه [ډیرلرې دی] لنډه داچه اول خو هغه زمونږ په شان انسان دې دهٔ ته دپیغمبرئ د دعوې کولو حق نشته بیا هغه په خپله دعوی کښې دیو محال شی دعوی کوی چه دمرګ او خاوړې کیدونه پس به دوباره ژوندی شئ ددې په جواب کښې الله تعالی دمرګ نه پس دبیاژوندی کیدو امکان ثابتوی ددوی ورته د محال وئیلو رد فرمائی چه مطلب ئې دادې چه دوباره ژوندی کیدو لره تاسو غیر ممکن ګڼرئ ددې دوه وجهې کیدې شی یا خودا چه کومو څیزونو ته ژوندی وئیلې شوی دی په هغو کښې دژوند صلاحیت نه وی دا خو په مشاهدې سره غلط ده ځکه چه هغه دا وخت ستاسو په وړاندې ژوندی موجود دی که د ژوند صلاحیت په کښې نه وی نو داوخت به څنګه ژوندی وو دویمه وجه داکیدې شی چه فاعل یعنی الله تعالی ته د دوباره ژوندی کولو قدرت ځکه نه وی چه کوم اجزاء دمړی خاوړې شوی خوارهٔ شوی دی هغه دهٔ ته معلوم نه وی چه کوم ځائ خوارهٔ شوی دی نو ددې په جواب کښې فرمائی چه زمونږ دعلم خو داشان دې چه ﴿قَدْ عَلِمْنَا مَا تَنْقُصُ الْأَرْضُ مِنْهُمْ﴾[مونږ د دوی اجزاؤ لره پیژنو کومولره چه خاوړې] خوری او [کموی او] داسې نه ده چه د نن نه ئې پیژنی بلکه زمونږ علم خوقدیم دې تردې چه مونږ وړاند د وقوع نه دټولو څیزونو ټول حالات په خپل قدیم علم سره په یوکتاب یعنی لوح محفوظ کښې لیکلی دی او تراوسه پورې ﴿وَعِنْدَنَا كِتَابٌ حَفِيظٌ﴾[مونږ سره دغه [کتاب] یعنی لوح [محفوظ] کښې موجود [دې] چه په دې کښې د دغو خورو اجزاؤ مکان وضع اومقدار او وصف هرڅه دی پس که په علم قدیم باند څوك نه پوهیږی نو داسې دې اوګڼړی چه دغه دفتر په کوم کښې چه هر څه دی دالله تعالی په وړاندحاضر دې مګر داخلق بیا هم بې وجهې په تعجب کښې دی او صرف تعجب نه ﴿بَلْ كَذَّبُوا بِالْحَقِّ﴾[بلکه] رښتونې خبرې ته] په کومه کښې چه مسئله دنبوت اوپه اخرت کښې دوباره ژوندون هم شامل دې ﴿لَمَّا جَاءَهُمْ فَهُمْ فِي أَمْرٍ مَرِيجٍ﴾ [هر کله چه هغه دوی ته ورسیږی دروغژنه کوی غرض دا چه هغوی په یو متز لزل حالت کښې دی] چه کله تعجب دې کله تکذیب دې داپه مینځ کښې په طور دجملې معترضې وه وړاند بیان دې د قدرت یعنی ﴿أَفَلَمْ يَنْظُرُوا إِلَى السَّمَاءِ فَوْقَهُمْ كَيْفَ بَنَيْنَاهَا﴾[ایا دې خلقو ته زمونږ د قدرت علم نشته او ایادوی [د خپل ځان دپاره اسمان ته نه دی کتلی چه مونږ دهٔ لره څنګه] اوچت اولوئ [جوړکړې دې او] په ستورو سره مو ﴿وَزَيَّنَّاهَا﴾ [دې لره ښائسته کړې دې ﴿وَمَا لَهَا مِنْ فُرُوجٍ﴾ او په دې کښې] په وجه دمکمل استحکام [څه سورې قدرې هم نشته] لکه چه په اکثرو آبادیو کښې دزمانې په تیریدو سره اکثر سورې کیږی دا خوپه اسمان کښې زمونږ قدرت ښکاره دې﴿وَالْأَرْضَ مَدَدْنَاهَا﴾ [اومزکه] کښې دا قدرت ظاهردې چه دې [لره مونږه خوره کړې ده ﴿وَأَلْقَيْنَا فِيهَا رَوَاسِيَ﴾او په دې کښې مو غرونو لره ټینګ کړی دی ﴿وَأَنْبَتْنَا فِيهَا مِنْ كُلِّ زَوْجٍ بَهِيجٍ﴾ او په دې کښې مو د هرقسمه ښائسته څیزونه زرغون کړی دی﴿تَبْصِرَةً وَذِكْرَى لِكُلِّ عَبْدٍ مُنِيبٍ﴾ کوم چه ذریعه ده دپوهې او عبرت] یعنی زمونږ د قدرت د معرفت [دهر رجوع کونکی بنده دپاره] یعنی دداسې سړی دپاره کوم چه مصنوعاتو ته په داسې نظر سره ګوری چه دوی لره چاجوړ کړی دی [او] زمونږ قدرت په دې سره ظاهردې چه ﴿وَنَزَّلْنَا مِنَ السَّمَاءِ مَاءً مُبَارَكًا﴾[مونږ د اسمان نه برکت والا اوبه ورولې دې ﴿فَأَنْبَتْنَا بِهِ جَنَّاتٍ وَحَبَّ الْحَصِيدِ﴾ بیا مو په دې سره باغونه زر غون کړل او دفصل غله ﴿وَالنَّخْلَ بَاسِقَاتٍ لَهَا طَلْعٌ نَضِيدٌ﴾ او د اوږدو اوږدو کجور اونې دکومو ګنګوچې چه ګڼړې دی ﴿رِزْقًا لِلْعِبَادِ﴾ بندګانو لره د رزق ورکولو دپاره او] نور بوټی لکه ګیاه

وغيره راخيژولو دپاره هم ﴿وَأَحْيَيْنَا بِهِ بَلْدَةً مَّيْتًا﴾ [او مونږ ددې] باران [په ذريعه سره مړې مزکې لره ژوندی کړه] پس ﴿كَذَٰلِكَ الْخُرُوجُ﴾ [دغه شان] پوه شئ چه مړولره [په دمزکې نه راوتل وی] ځکه چه د قدرت ذاتيه په اعتبار سره ټول مقدورات برابر دی بلکه کوم ذات چه په لويو څيزونو قادر دې د هغه په وړو څيزونو قادريدل نور زيات ظاهر دی په دې وجه دلته داسمان اومزکې ذکر وشو چه ددې پيدا کول د يومړی د پيدا کولو نه ډيره لويه خبره ده لکه چه الله تعالى فرمائى لخلق السموات والارض اكبرمن خلق الناس() نو هرکله چه په دې لويولويو څيزونو دالله تعالى قدرت ثابت شو نو مړو لره په ژوندی کولو به ولې نه وه نومعلومه شوه چه مړولره ژوندی کول محال نه دی ممکن دی او ژوندی کوونکې فاعل مختار لوئ قدرت والا دې بيا په دې کښې د تعجب يا تکذيب څه خبره ده اوس وړاندې تکذيب کوونکو لره د ويرولو دپاره دتيرو امتونو واقعات وښودل او دعذاب خبرئ ورکړو چه په څه شان سره دې خلقو دقيامت نه انکار او درسول تکذيب کړې دې داسې ﴿كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوحٍ وَأَصْحَابُ الرَّسِّ وَثَمُودُ ۝ وَعَادٌ وَفِرْعَوْنُ وَإِخْوَانُ لُوطٍ ۝ وَأَصْحَابُ الْأَيْكَةِ وَقَوْمُ تُبَّعٍ﴾ [ددوی نه وړاند قوم د نوح علیه السلام او خاوندانو د کوهی او ثموديانو اوعاديانو او فرعونيانو او قوم دلوط علیه السلام او خاوندانو د بڼ اوقوم دتبع تکذيب کړې دې] يعنی ﴿كُلٌّ كَذَّبَ الرُّسُلَ﴾ [ټولو پيغمبرانو لره] يعنی خپل خپل پيغمبرلره ئ دتوحيد او رسالت او قيامت په معامله کښې [دروغژن کړل ﴿فَحَقَّ وَعِيدِ﴾ پس زما وعيد] په هغوی [ثابت شو] چه په دغو ټولو عذاب نازل شو دغه شان په درغژن کوونکو به عذاب راځی خواه په دنيا کښې هم وی يا صرف په اخرت کښې وی د وعيدنه پس بيا اولنی مضمون طرف ته په بل طور سره واپسی ده چه ﴿أَفَعَيِينَا بِالْخَلْقِ الْأَوَّلِ﴾ [ايامونږ په اول ځل پيداکولو باند ستړی شو] چه دوباره په ژوندی کول نه شوکولې يعنی يومانع داهم کيدې شی چه کار هم ممکن وی او د کوونکی قدرت هم پوره وی مګر څه عارضی مانع راپيښ شی لکه کوونکې ستړې شوې وی په دې وجه داکارنه شی کولې په دې ايت کښې ئ ددې هم نفی وفرمائيله چه الله تعالى دداسې عيبونو نه پاك دې هغه دڅه شی نه نه متاثره کيږی نه دة ته د ستړې والی څه امکان شته په دې وجه په قيامت کښې دوباره ژوندی کيدل په دلائلوسره ثابت شول او دا خلق چه کوم انکار کوی ددوی سره هيڅ دليل نشته ﴿بَلْ هُمْ فِي لَبْسٍ مِّنْ خَلْقٍ جَدِيدٍ﴾ [بلکه داخلق دنوو پيداکيدونه] محض بې دليله[په شبهه کښې پريوتلی دی]کوم چه ددليلونوپه وړاندپه هيڅ شان قابل التفات نه دی

## معارف او مسائل

**دسورة قاف خصوصيتونه** :: د سورة قاف زيات مضمونونه د آخرت ، قيامت ، د مړو د ژوندی کيدو او حساب کتاب باره کښې دی ، نو ددې نه وړاندې سورة حجرات سره يې همدا مناسبت دې ولې چې دهغې په آخر کښې هم ددې مضمونو بيان وو ، سورة ق يو خاص اهميت ددې حديث نه معلوميږی چې د حارثه بن النعمان لور ام هشام وائی چې نبی کريم ﷺ سره ډير نزدې زما کور وو ، تقريبا دوؤ کالو پورې زمونږ او دهغوئ د روټئ پخولو تنور يو وو ، نو زما سورة قاف په دې شان ياد شو چې نبی کريم ﷺ به هره جمعه په منبر باندې په خطبه کښې

[1] ترجمه:-يقينًا دآسمان او زمکې پيداکول د سړو د پيدا کولو په نسبت ډير لوې کار دې.

لوستلو. [مسلم د قرطبی نه] [۱].

عمر فاروق رضی الله عنه د ابی واقدلیثی رضی الله عنه نه تپوس اوکړوچې نبی کریم ﷺ به د دواړو اخترونو مونځونو کښې کوم سورة لوستلو؟ هغوئ رضی الله عنه اوفرمائیل چې ﴿قٓ ۚ وَالْقُرْاٰنِ الْمَجِيْدِ﴾ او ﴿اِقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ﴾ ، او جابر رضی الله عنه نه منقول دی چې نبی کریم ﷺ به د صبا په مونځ کښې سورة ق ډیر تلاوت کولو.] [دا سورة ډیر لوئې دې]. خو سره د هغې مونځ به سپک وو [قرطبی] [۲]. دا د نبی کریم ﷺ او د نبی کریم ﷺ د تلاوت خاص اثر وو چې لوئې نه لوئې سورة لوستل او اوږد نه اوږد مونځ به ئې په چا پیټې نه جوړیدو.

**آیا آسمان په نظر راځی**:: ﴿اَفَلَمْ يَنْظُرُوْٓا اِلَى السَّمَآءِ﴾ نه په ظاهره دا معلومیږی چې آسمان په نظر راځی ، او مشهوره داده چې دا اودی رنګ د شین رنګ دی ، خو ددې دنفی هم څه دلیل نشته ، کیدیشی چې دا رنګ دآسمان هم وی دې نه علاوه نظر نه مراد عقلی نظر هم کیدیشی چې غور او فکر ترې مراد کیدیشی. [بیان القرآن] [۳].

**د مرګ نه پس په ژوندی کولو باندې د مشهورې شبهې جواب**:: ﴿قَدْ عَلِمْنَا مَا تَنْقُصُ الْاَرْضُ مِنْهُمْ ۚ﴾ کافران او مشرکان چې په قیامت کښې د بعث بعد الموت [د مړو ژوندی کیدو] نه انکاری کوی ، دهغې ټولو نه لوئې دلیل ، دا تعجب دې چې دمرګ نه پس د انسان اکثرې حصې ښاورې شی ، بیا هغه ښاوره خوره وره شی په دنیا کښې ، اوبه او هوائې ذرې ترې لرې پورې اورسوی. په قیامت کښې د راژوندی کولو دپاره دټولې دنیا نه دا ذرې رایوځائې کول د چا په وس کښې کیدیشی ؟ او بیا دا هم معلومول چې دغه ذرې به د چا چات وی ، بیاهره یوه حصه ځان ځان له راجمع کول د چا د وس خبره ده؟ قرآن عظیم الشان ددې جواب داسې ورکړې دې چې انسان پخپل نیمګړی علم او بصیرت باندې د الله جل جلاله پوره غیر محدود او راچاپیره علم قیاس کوی ځکه ګمراه شی.

﴿قَدْ عَلِمْنَا مَا تَنْقُصُ الْاَرْضُ﴾ دالله جل جلاله علم خو دومره وسیع او محیط دې چې دمرګ نه پس دانسان هره یوه حصه یې په نظر کښې ده ، هغه ته معلوم دی چې د مړی د بدن کومه کومه حصه زمکې خوړلې ده ، ولې چې د هغه ځینې هډوکی الله جل جلاله داسې جوړ کړی دی چې هغه زمکه نه خوری ، بیا چې د بدن کومه حصه ئې ښاوره اوخوری او ورسره ښاوره شی دغه ښاوره بیا دجهان کوم ګوټ ته رسیږی هغه ټول هر څه د الله جل جلاله په نظر کښې دی ، کله چې ئې اوغواړی یو ځائې ئې کړی ، اوکه لږ شان غور اوکړئ نو داوخت هم دانسان هر هر جز ددنیا دمختلفو حصو راټول کړې شوی دی ، څه د غذا ، خوارك څکاك په صورت کښې څه د دوایئ په صورت کښې ، دا هم د ټولې دنیا د مختلفو ښارونو او ځنګلونو جزونه خودی کومو نه چې د انسان دا موجوده شکل جوړ شوې دې. بیا هغه دپاره څه مشکل دی چې دوباره دغه حصې په دنیا کښې د خوړولو نه پس بیا په یوځائې کښې جمع کړی. اوصرف دا نه چې اوس دمرګ او

---

[۱] تفسیر القرطبي[ج:۱۷ص:۱] وصحیح مسلم کتاب الجمعة، باب فی الخطبة والصلاة قصدا [ج:۱ص:۲۸۶]

[۲] تفسیر القرطبي [ج:۱۷ص:۱]و صحیح مسلم کتاب صلاة العیدین ، باب فی قراءة ق والقران المجید الخ [ج:۱ص:۲۹۱]

[۳] بیان القرآن [ج:۱۱ ص:۵۴]

ښاؤري کيدو نه پس د انسان دغه اجزاء د الله ﷻ په علم کښې راغلي وي بلکه د انسان د پيدا کيدو نه روميې ددۀ دژوند هره لمحه او په دې کښې پيدا کيدونکې بدلولونه او بيا د مرګ نه پس په دۀ باندې به څه څه حالات راپيښيږي ، هغه ټول الله ﷻ سره ليکلي په لوح محفوظ کښې موجود دي .

بيا کوم ذات چې داسې عليم او بصير دې او د چا قدرت چې دومره کامل او ټولو څيزونو نه راچاپيره دې ، ددې باره کښې دا تعجب کول پخپله د تعجب خبره ده ، د ﴿تَنقُصُ الْأَرْضُ﴾ دا تفسير د ابن عباس رضي الله عنه ، مجاهد رحمه الله وو، او جمهورو مفسرينو نه منقول دې ، [بحر محيط](١).

﴿فَهُمْ فِي أَمْرٍ مَّرِيجٍ﴾ لغت کښې د مريج لفظ ګډوډ دې چې ګنړ څيزونه په کښې رايو ځائې شوي وي ، او داسې څيز عموما فاسد وي څکه ابوهرير رضي الله عنه د مريج ترجمه په فاسد سره کړيده او ضحاك رحمه الله ، قتاده رحمه الله اوحسن بصري رحمه الله وغيره مختلط او ملتبس کړې ده(٢) ، مراد دادې چې دا کافران د پيغمبرئ نه انکاريان په خپل انکار کښې هم څۀ يوه خبره باندې کلك نه دي ولاړ. کله ئې ساحر او جادوګر بولي او کله ورته شاعر وائي ، کله ورته کاهن او نجومي وائي. د دوئ خبره پخپله ناواضحه ګډوډ اوفاسده ده ، ددوئ د کومې خبرې په جواب ورکړې شي؟

دې پسې د الله ﷻ د قدرت مطلقه کامله بيان دې چې په آسمانونو ،زمکه اوپه دې کښې د پيدا کيدونکولويولويو څيزونو د پيدا کولو په حواله سره کړې شوې دې ، په دې کښې دآسمان باره کښې فرمائي چې :﴿وَمَا لَهَا مِن فُرُوجٍ﴾ فروج د فرج جمع ده معنی ئې چوند ده ، مراد دادې چې د آسمان دومره عظيم الشان کره الله ﷻ جوړه کړې ده که دا انسان جوړ کړې وې نو په زرګونو جوړونه پيوندونه به په کښې وو،مګر تاسو ګورئ چې په آسمان کښې داسې هيڅ څه څيز نشته،دادې سره بې سموني نه ده چې آسمان کښې الله ﷻ دروازې جوړې کړی دی ولې چې دروازې ته چوند[چاوده] او درز نشي وئيلې.

﴿كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوحٍ﴾ تيرۀ شوۀ آيتونو کښې د کافرانو باره کښې دا بيان وو چې هغوئ پيغمبرئ اوآخرت په دروغه بولي ، دې سره نبی کريم ﷺ ته زيان رسيدل ښکاره خبره ده ،دې آيت مبارك کښې الله ﷻ د نبي کريم ﷺ د تسلئ دپاره تيرۀ شوۀ پيغمبرانو عليهم السلام اوددوئ دامتونو حالات بيان کړی دی چې داسې زيانونه هر پيغمبر ته رسولې شوی دی ، دا د پيغمبرانو عليهم السلام سنت دی ، تاسو پرې زړه مه خفه کوئ. دنوح عليه السلام د قوم قيصه قرآن عظيم الشان کښې بيا بيا راغلې ده چې نهه نيم سوه کاله ئې نوح عليه السلام د اصلاح کوشش کولو. خو قوم ئې يواځې انکارنه کولو بلکه هغوئ عليهم السلام ته به ئې زيانونه هم رسول.

**اصحاب الرس څوك خلق دي ؟**: عربئ کښې د رس ډيرې معنې دی . مشهوره معنی ئې کچه کوهې دې چې پوخ کړې شوې نه وی . د اصحاب الرس نه مراد د ثمود قوم نه پاتې شوی خلق دی چې عذاب نه پس پاتې شوی وو. ضحاك وغيره مفسرينو ددې قيصه داسې ليکلې ده چې کله د صالح عليه السلام په قوم باندې عذاب راغلو نو هغې نه هغه څلور زره کسان محفوظ پاتې شو کومو

(١) تفسير البحرالمحيط تحت هذه الآية [ج: ١٠ ص:١٢٠]
(٢) تفسير البحرالمحيط [ج: ١٠ ص:١٢١]

چې صالح باندې ایمان راؤړې وو. دغه خلق دخپل ځائې نه حضر موت ته لاړل، او هلته ئې پړاؤ واچولو. صالح ﷺ هم ورسره وو، چرته چې یو کوهې وو هلته ئې پړاؤ واچولو. دغه ځائې کښې صالح ﷺ وفات شو ځکه ئې حضر موت [یعنی مرگ حاضرشو] نوم شو، بیا په دغې خلقو کښې بت پرستی شروع شوه. د دوئ د اصلاح دپاره الله ﷻ یو نبی اولیږلو چې دوئ شهید کړو، په هغوئ دالله ﷻ عذاب راغلو د ژوند کارئې چې په کوم کوهی روان وو هغه بیکاره شو، آبادئ ئې ورانې شوې ځنګه چې الله ﷻ فرمائی چې ﴿وَبِئْرٍ مُّعَطَّلَةٍ وَقَصْرٍ مَّشِيدٍ﴾ یعنی د عبرت سترګو لرونکو دپاره دهغوئ هغه بیکاره پروت کوهې او وران شوی پاخه مکانونه عبرت دپاره کافی دی[1].

**ثمود**:: د صالح ﷺ امت وو، د دوئ واقعه څو څو ځله قرآن عظیم الشان کښې رومبې تیره شوې ده.

**عاد**:: عاد قوم د خپل مهلت او د قوت اوبهادرئ ترمخه خلقو دپاره متل جوړی شوی وو، دوئ ته هود ﷺ پیغمبر لیږلې شوې وو، هود ﷺ ئې ډیر تنګ کړو د هود ﷺ نافرمانی ئې اوکړه، آخر د هوا په طوفان باندې ټول تباه کړې شو.

**فرعون**:: د مصر د یو ډیر مشهور اومعروف بادشاه نوم دې.

﴿إِخْوَانُ لُوطٍ﴾ داد لوط ﷺ امت دې چې قیصه ئې بیا بیا تیره شوې ده.

﴿أَصْحَابُ الْأَيْكَةِ﴾ ایکه یعنی ګڼړ ځنګل او بنړ ته وئیلې شی، دا خلق په دغسې ځائې کښې اوسیدل. شعیب ﷺ دوئ ته دپیغمبر په حیثیت سره لیږلې شوې وو. هغوئ نافرمانی اوکړه آخر د الله ﷻ عذاب سره تباه او برباد شو.

﴿وَقَوْمُ تُبَّعٍ﴾ تبع د یمن د یو بادشاه لقب دې، ددې ضروری تحقیق هم په دې تفسیر معارف القرآن سورۀ دخان کښې تیر شوې دې.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَلَقَدْ خَلَقْنَا | | | | | |
| او پیدا کړې دې مونږه | | | | | |
| اویقینا مونږ انسان پیدا کړو | | | | | |
| الْإِنسَانَ | وَنَعْلَمُ | مَا | تُوَسْوِسُ | بِهِ | نَفْسُهُ ۖ وَنَحْنُ |
| انسان | او پوهیږو مونږه | چې وسوسه کوی | په هغه | په هغې سره | زړه دهغه \| او مونږه |
| اوده په زړه کښې چې کومې وسوسې راځی[هغه هم]مونږ پیژنو ا وْمونږ | | | | | |
| أَقْرَبُ | إِلَيْهِ | مِنْ حَبْلِ الْوَرِيدِ ⑯ | | إِذْ يَتَلَقَّى | الْمُتَلَقِّيَانِ |
| زیات نزدې یو | ده ته | درګ دمرئ | نه | کله چې اخلی | دوه اغستونکی فرښتې |
| خودده د سا د رګ نه هم زیات نزدې یو \|..........ځه وخت چې دوه لیکونکې فرښتې دده | | | | | |

[1]) تفسیر المظهري[ج:۹ص:٦٤]

عَنِ الْيَمِيْنِ وَعَنِ الشِّمَالِ قَعِيْدٌ ۝ مَا يَلْفِظُ مِنْ قَوْلٍ

دښي طرفنه | او ګس طرفنه | ناستي وي | نه وائي انسان | يوه خبره |

د ښي او ګس طرف ته موجودي وي | او دانسان د خلې نه چې څنګه څه لفظ اوځي

اِلَّا لَدَيْهِ رَقِيْبٌ عَتِيْدٌ ۝ وَجَآءَتْ سَكْرَةُ الْمَوْتِ

مګر دهغې سره وي | ساتونکي | حاضره فرښته | او راغله | بې هوشي دمرګ

نو ددهٔ سره يو ساتونکي [فرښته ددې دليکلو دپاره] تياره موجود وي | او دمرګ بې هوشي

بِالْحَقِّ ؕ ذٰلِكَ مَا كُنْتَ مِنْهُ تَحِيْدُ ۝ وَنُفِخَ

دحق سره | دا هغه څيز دې | چې وې ته | دهغې نه | چې به ترتښتيدلې | او پوکې اووهلې شو |

په ربښتيا راورسيده | دا هغه څيز دې چې ددې نه به ته تښتيدلې | ..................او شپيلۍ به

فِي الصُّوْرِ ؕ ذٰلِكَ يَوْمُ الْوَعِيْدِ ۝ وَجَآءَتْ كُلُّ نَفْسٍ مَّعَهَا

په صور کښې | دا هغه ورځ ده | چې ته به تر يرولې کيدې | او راغې | هر انسان | چې وي دهغه سره

پوک وهلې شي [هم دا دعذاب ورځ ده]... او هر کس به په داسې حالت کښې پيش کيږي چې يوه [فرښته]

سَآئِقٌ وَّشَهِيْدٌ ۝ لَقَدْ كُنْتَ فِيْ غَفْلَةٍ مِّنْ هٰذَا

يو راوستونکي | او يو ګواهي کونکې | بيشکه وې ته | په غفلت کښې | ددې ورځې نه |

به ئې راولې | اوبله به ورسره ګواه وي | [دا به ورته وئيلې شي] ته خو ددې ورځې نه په غفلت کښې وې

فَكَشَفْنَا عَنْكَ غِطَآءَكَ فَبَصَرُكَ الْيَوْمَ حَدِيْدٌ ۝ وَقَالَ

نو لرې کړه مونږه | ستا نه | پرده ستا | پس نظر ستا | نن ورځې | تيز دې | او اووئيل |

خو مونږ درله [دسترګو نه] پرده پرانسته | نو نن خو دې نظر ډير تيز دې | ..............او دهغه ملګري

قَرِيْنُهٗ هٰذَا مَا لَدَيَّ عَتِيْدٌ ؕ اَلْقِيَا فِيْ جَهَنَّمَ

ملګري دهغه | دا هغه دې | چې حواله وو ماته | حاضر دې | اے دوو فرښتو او غورزوئ | په دوزخ کښې

فرښته به اووائي | چې دا هغه [عمل نامه] ده | چې ماسره تياره پرته ده | [حکم به اوشي] چې ائي دوارو فرښتو!

كُلَّ كَفَّارٍ عَنِيْدٍ ۙ مَّنَّاعٍ لِّلْخَيْرِ مُعْتَدٍ

هر سخت کافر | عناد کونکې [ضدی سړې] | منع کونکې | خير لره | دحدنه اوړيدونکې

هر ناشکره سرکشه دوزخ ته او غورزوئ | چې اخلق به ئې دادنيکۍ نه منع کول | حد نه تيريدونکې او

مُّرِيْبٍ ۙ الَّذِيْ جَعَلَ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ فَاَلْقِيٰهُ

شک کونکې | هغه کس | چې جوړ کړې ئې وو | دالله سره | معبود [خدائې] | بل | پس او غورزوئ هغه

شک کونکې وو | چا چې الله ﷻ سره نور معبودان مقرر کړي دي | تاسو دواړه دا کس په سخت عذاب

فِي الْعَذَابِ الشَّدِيْدِ ۝ قَالَ قَرِيْنُهٗ رَبَّنَا مَآ اَطْغَيْتُهٗ

په عذاب سخت کښې | اووئيل ملګري دهغه | اے ربه زمونږه | نه دې جوړ کړې ماسرکشه دهٔ لره

کښې واچوئ | دهغه [شيطان] ملګري به اووائي | چې ائي زمونږ ربه ما دې نه دې سرکشه کړې |

وَلٰكِنْ كَانَ فِيْ ضَلٰلٍۢ بَعِيْدٍ ﴿۲۷﴾ قَالَ لَا تَخْتَصِمُوْا لَدَيَّ

ولیکن | وو دي | په ګمراهۍ لرې کښې | اوونیل الله | جګړه مه کوئ | زما په وړاندي

بلکه دي پخپله په غټه ګمراهۍ کښې پروت وو | ......... الله جل جلاله به اوفرمائی چې زما وړاندې

وَقَدْ قَدَّمْتُ اِلَيْكُمْ بِالْوَعِيْدِ ﴿۲۸﴾ مَا يُبَدَّلُ الْقَوْلُ

او مخکښې لیږلي وو ما | تاسو ته | یرول [خبرداري دبد انجام نه] | نه بدلیږي خبره

جګړې مه کوئ [او ما تاسو [په دنیا کښې] وړاندې ددې عذاب نه ویرولی وئ] نو زما په دربار کښې به [نن]

لَدَيَّ وَمَآ اَنَا بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِيْدِ ﴿۲۹﴾

په دربارزما کښې | او نه یم زه | ظلم کونکې | په بندګانو خپلو باندې |

فیصله نه بدلیږي [کومه چې ما کړې وی] | اوزه پخپلو بندګانو ظلم کونکې نه یم

## آسان ترجمه قرآن

او حقیقت دادې، چه مونږ انسان لره پیدا کړې دې، او د هغه په زړه کښې چه کوم خیالات راځي، دهغې نه هم مونږ ښه خبر یُو. او مونږ د مرئ د رګ نه هم زیات هغه ته نزدې یو. هغه وخت هم چه کله (اعمالو لره) لیکونکې دوه فرشتې لیکی یو ښې طرف ته او بله ګس طرف ته ناسته وی. انسان هیڅ یو لفظ د ژبې نه نهٔ اوباسی، مګر په هغې باندې یو نګران مقرر وی، هر وخت (لیکلو دپاره) تیار. او د مرګ سختۍ په رښتیا باندې راتلونکې ده، (اے انسانه) دا هغه څیز دې، چه تا ددې نه تیښته کوله. او شپیلۍ به اووهلې شی، دا به هغه ورځ وی، چه ددې نه ویرولې شول. او هر سړې به داسې راشی، چه هغه سره به یو شړونکې او یو ګواهی ورکونکې وی حقیقت دادې، چه ته ددې واقعې نه په غفلت کښې پروت وې، اوس مونږ ستانه هغه پرده لرې کړه، کومه چه په تا باندې پرته وه، نو نن ستا نظر ډیر تیز شوې دې. او ملګرې دهغه به اووائی چه: دا ده هغه (اعمال نامه) چه ماسره تیاره ده (حکم به ورکړې شی چه) تاسو دواړه هر هغه سړی لره په جهنم کښې واچوئ، چه لوئې کافر، او د حق پوخ دشمن وو. چه نورو خلقو لره د نیکۍ نه ډیر منع کونکې، او زیاتې کونکې او (په حقه خبره کښې) شک کښې اچونکې وو. چه الله تعالی سره ئې نور معبودان جوړ کړې وو، لهٰذا اوس تاسو دواړه هغه لره په سخت عذاب کښې واچوئ. د هغه ملګرې به اووائی چه: اے زمونږ پروردګاره! ما ده لره ګمراه کړې نه وو، بلکه دې په خپله په ګمراهۍ لرې کښې اخته وو الله تعالی به اووائی چه: تاسو ماسره جګړې مه کوئ، او ما خو مخکښې تاسو ته دمخکښې نه د عذاب زورنه درلیږلې وه زما په نزد هغه وینا نشی بدلیدې او زه په بندګانو باندې هیڅ ظلم کونکې نه یم.

## خلاصه تفسیر

بره په قیامت کښې دمړو د ژوندی کیدو امکان ثابت شوې دې وړاند ددې دوقوع بیان دې او وقوع موقوف ده په علم کامل او قدرت کامل باند په دې وجه اول دې لره ښائی چه ﴿وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْاِنْسَانَ﴾ [او مونږ انسان لره پیداکړې دې] کوم چه داعلی درجې دلیل دې په قدرت ﴿وَنَعْلَمُ مَا تُوَسْوِسُ بِهٖ نَفْسُهٗ﴾ او دده په زړهٔ کښې چه کوم خیالات راخی مونږ هغو لره] هم [پیژنو] نو کوم

کارونه چه د دوی په لاسو پښو او ژبوسره صادر وی د هغوی پیژندل خو په درجه اولی دی [او] بلکه مونږ ته خو د دوی دحالاتو داسې علم دې چه دوی ته په خپله هم دخپلو حالاتو داسې عالم نشته پس په اعتبار دعلم ﴿وَنَحْنُ أَقْرَبُ إِلَيْهِ مِنْ حَبْلِ الْوَرِيدِ﴾ [مونږ انسان ته دومره قدرې نزدې یو چه د دوی دمرئ درګ نه هم زیات] دکوم په قطع کیدو چه انسان مری او چونکه د خلقو په عالم عادت کښې د ځناور دروح ویستلو دپاره دمرئ پریکولو طریقه رائج ده په دې وجه داتعبیر اختیار کړې شو او داد مرئ رګونو ورید او شریان دواړو لره مشتمل دی مګر شریان ترې نه مراد اخستل زیات مناسب دی ځکه چه په دې کښې روح غالب او وینه مغلوبه وی او په ورید کښې په عکس وی او دلته چه په کوم کښې د روح زیات دخل وی د هغه مراد اخستل مناسب دی او په سوره حاقه کښې لفظ د وتین په معنی د ړزه د رګ سره تعبیر کول ددې تائید کونکی دې ځکه چې کوم رګونه د ړزه نه راوځی هغه شریان نه دی اواګر چه په قرآن کښې لفظ د ورید دې مګر لغوی معنی ددې عامه ده چه د زړه نه راوتونکی رګونه شریانونه په کښې هم داخل دی او دجګر [ځګر] نه راوتونکی رګونه ورید په کښې هم داخل دی پس مطلب داشو چه مونږ په اعتبار دعلم ده ته ددهٔ دروح اونفس نه هم زیات نزدې یو یعنی څنګه علم چه انسان ته دخپلو حالاتودې مونږ ته ددهٔ علم په خپله ددهٔ نه هم زیات دې چنانچه انسان ته دخپلو ډیرو حالتونو علم نه وی او دکومو علم چه وی په هغې کښې هم ځنې وخت دنسیان یا هیریدو حال راځی اوپه الله تعالی کښې ددې احتمالاتو ګنجائش د سره نشته او ظاهره ده چه کوم علم په هرحالت کښې وی ددې تعلق په نسبت د هغې چه په یو حالت کښې وی زیات وی غرض دعلم الهی دانسان دټولو حالاتو سره متعلق کیدل هم ثابت شول وړاند ددې دزیات تاکید دپاره دابیان فرمائی چه دانسان عملونه او حالتونه صرف دانه چه دالله تعالی په علم کښې محفوظ دی بلکه دظاهری حجت تمامولودپاره دغه عملونه د فرښتو په ذریعه لیکی هم محفوظ کوی ئې ارشاد دې ﴿إِذْ يَتَلَقَّى الْمُتَلَقِّيَانِ عَنِ الْيَمِينِ وَعَنِ الشِّمَالِ قَعِيدٌ﴾ [هر کله چه دوه اخذ کوونکې فرښتې] دانسان عملونو لره هر کله چه ددهٔ نه صادرېږی اخذ کوی کومې چه ښي اوکینړ طرف ته ناستې دی او په مخه عملونه لیکی لکه دا قول دالله تعالی دې ﴿إِنَّ رُسُلَنَا يَكْتُبُونَ مَا تَمْكُرُونَ﴾[1] او داقول دالله تعالی ﴿إِنَّا كُنَّا نَسْتَنْسِخُ مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ﴾[2] تر دې چه په ټولو عملونو کښې خفیف د انسان خبرې اترې اوکلام دې مګر ددې داکیفیت دې چه ﴿مَا يَلْفِظُ مِنْ قَوْلٍ إِلَّا لَدَيْهِ رَقِيبٌ عَتِيدٌ﴾ [هغه څه لفظ لره د خلې نه نه وباسی مګر ددهٔ سره یوانتظار کوونکې تیار په انتظار کښې] موجود [دې] که هغه نیکه خبره وی نو دښی طرف والا ئې لیکی که بده خبره وی نو دکینړ طرف والا او هر کله چه د ژبې نه وتونکې یوه یوه کلمه محفوظه اولیکلې ده نو نور عملونه به ولې نه وی [او] چونکه داخرت د ژوند اودعملونو د جزا اوسز دټولو مقدمه مرګ دې په دې وجه انسان لره د خبردارولو دپاره وړاند ددې ذکر دې ځکه چه دقیامت نه انکار په حقیقت کښې د مرګ نه دغفلت نتیجه ده ارشاد دې چه ته هوښیار شه ﴿وَجَاءَتْ سَكْرَةُ الْمَوْتِ بِالْحَقِّ﴾ [دمرګ سختی په حقیقت کښې] نزدې [رارسیدلې ده] یعنی هرسړی ته مرګ نزدې دې چنانچه ظاهره ده ﴿ذَلِكَ مَا كُنْتَ مِنْهُ تَحِيدُ﴾ [دا] مرګ [هغه شې دې دکوم نه چه به نه

---

[1] ترجمه:-یقینًا زمونږ فرښتې ستاسو ټول شرارتونه لیکی.
[2] ترجمه:-مونږ به ستاسو عملونه لیکل.

وروستو کیدې] اوتښیدې دمرګ نه تیښته په طبعی طور خو په هرنیك اوبد کښې یوشان ده اودکافر فاجر دمرګ نه تیښته په وجه دمحبت ددنیا نوره هم زیاته واضحه ده په چا خاص بنده دالله تعالی سره دملاویدو دشوق غلبه راتلل دمرګ خوند ناکه کیدل اومطلوبه کیدل ددې نه منافی نه دی ځکه چه هغه دعام انسانی عادت نه مافوق حالت دې [او] ددې مقدمې یعنی دمرګ د ذکر نه پس اوس د وقوع دقیامت بیان دې کوم چه مقصود وو یعنی دقیامت په ورځ به دوباره ﴿وَنُفِخَ فِي الصُّورِ﴾ [شپیلۍ پوك وهلې شی] چه ټول به پرې ژوندی شی ﴿ذَٰلِكَ يَوْمُ الْوَعِيدِ﴾ [دا ورځ به وی دوعید] دکوم نه چه خلقو لره ویرولې شول [او] وړاند دقیامت دهولناکو واقعاتو او حالاتو بیان دې ﴿وَجَاءَتْ كُلُّ نَفْسٍ مَّعَهَا سَائِقٌ وَشَهِيدٌ﴾ [او هرسړې به داسې] دقیامت میدان ته [راځی چه ددهٔ سره] دوه فرښتې به وی په کومو کښې چه [یوه] خو دقیامت میدان ته [دهٔ لره دځان سره راولی اویوه] ددهٔ دعملونو [ګواهی کوونکې به وی] په حدیث مرفوع کښې دی چه دسائق او شهید هغه دوه فرښتې به وی کومې چه په ژوند کښې دانسان ښی اوګینړ طرف ته وې او ددهٔ عملونه به یې لیکل رواه فی الدر](١) اوکه داحدیث موافق د شرطونو دمحدثینو قوی نه وی نو احتمال دې چه دوه فرښتې نورې وی لکه چه ځنې یې قائل شوی دی اګر چه په دې صورت کښې هم په وجه د موافقت د حدیث راجح احتمال به اول وی اوهرکله چه هغوی په میدان دقیامت کښې حاضر شی نو په هغوی کښې چه کوم کافران وی خطاب به ورته وشی چه ﴿لَقَدْ كُنتَ فِي غَفْلَةٍ مِّنْ هَٰذَا﴾ [ته ددې ورځې نه بې خبره وې] یعنی ددې قائل نه وې ﴿فَكَشَفْنَا عَنكَ غِطَاءَكَ﴾ [پس اوس مونږ تانه ستاپرده] د غفلت اوانکار [پورته کړه] او قیامت درته ښایو ﴿فَبَصَرُكَ الْيَوْمَ حَدِيدٌ﴾ [پس نن] خو [ستانظر ډیر تیز دې] چه هیڅ امر مانع دا دراك نشته کاش تاپه دنیاکښې هم دا مانع دغفلت لرې کړې وې نو ستا ورځې به ښې وې [او] ددې نه پس ﴿وَقَالَ قَرِينُهُ هَٰذَا مَا لَدَيَّ عَتِيدٌ﴾ [فرښته] لیکونکې دعملونو [کومه چه به ددهٔ سره وه] او اوس هم په یو قول سائق یا شاهد جوړه شوه راغله عملنامه به حاضره کړی [عرض به وکړی چه داهغه] عملنامه [ده کومه چه ماسره تیاره ده] کذا فسر هذا القرین بالملك ابن جریج والقرین الذی یلیه بالشیطان رواه فی الدر(٢) چنانچه ددې روزنامچې موافق دکافرانو په باره کښې دوه فرښتو ته خواهغه مذکور شاهد اوسائق وی یا نورې دوه فرښتې وی حکم به وشی چه ﴿أَلْقِيَا فِي جَهَنَّمَ كُلَّ كَفَّارٍ عَنِيدٍ﴾ [هر داسې سړې جهنم ته وغورزوئ کوم چه کفر کوونکې وی او] دحق سره [ضد کوی ﴿مَّنَّاعٍ لِّلْخَيْرِ مُعْتَدٍ مُّرِيبٍ﴾ او دنیك کار نه منع کول کوی او دحد] دبندګئ [نه بهروتونکې وی او] په دین کښې [شبهه پیداکوونکې وی ﴿الَّذِي جَعَلَ مَعَ اللَّهِ إِلَٰهًا آخَرَ﴾ کوم چه دالله تعالی سره بل معبود جوړ کړې وی ﴿فَأَلْقِيَاهُ فِي الْعَذَابِ الشَّدِيدِ﴾ پس داسې سړی لره په سخت عذاب کښې واچوئ] هرکله چه کفارو ته معلومه شی چه اوس په همیشه خساره کښې پریوتونکی دی هغه وخت به دخپل بچاؤ دپاره دګمراه کوونکو په ذمه الزام لګوی چه زمونږ قصور نه دې مونږ لره خو نوروګمراه کړی یو او چونکه په هغه ګمراه کوونکو کښې شیطان هم داخل دی په دې وجه فرمائی چه ﴿قَالَ قَرِينُهُ رَبَّنَا مَا أَطْغَيْتُهُ﴾ [هغه] شیطان کوم چه [به ددهٔ سره اوسیدو ویه وائی

---

(١) الدرالمنثور [ج:۹ ص:۲۸٤]

(٢) الدرالمنثور تحت هذه الآية [ج:۹ ص:۲۸٤]

چه اے زما پروردګاره ما خودهٔ لره] جبرا [نه وو ګمراه کړې] لکه چه ددې الزام لګوونکی نه معلومیږی چه ددهٔ دخپل اختیار دخل په کښې بالکل نه وی ﴿وَلٰكِنْ كَانَ فِيْ ضَلٰلٍۭ بَعِيْدٍ﴾ [لیکن] خبره داده چه [دې په خپله لرې ګمراهئ کښې] په خپل اختیار [وو] اګر چه لمسه زما هم وه خو څه جبر په کښې نه وو په دې وجه ددهٔ د ګمراهئ اثر په مانه دی کیدل پکار ﴿قَالَ لَا تَخْتَصِمُوْا لَدَيَّ﴾ [ارشاد به وشی زما په وړاند دجګړې خبرې مه کوئ] خکه چه بې سوده دی ﴿وَقَدْ قَدَّمْتُ اِلَيْكُمْ بِالْوَعِيْدِ﴾ [او ماخو د وړاند نه تاسوته د عذاب ویره درلیږلې وه] چه څوك كفر وكړی په خپله یا د چا په لمسه سره اوڅوك چه دكفر حكم كوی خواه په خپله مرضئ سره یا دچا په جبر سره ټولو لره به دجهنم سزا دمرتبو په تفاوت سره ورکوم پس ﴿مَا يُبَدَّلُ الْقَوْلُ لَدَيَّ﴾ [زما په نزد] هغه [خبره] دذکر شوی وعید [نه بدلیږی] بلکه تاسو به ټول دزوخ ته ورواچولې شئ ﴿وَمَآ اَنَا بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِيْدِ﴾ [او زهٔ] په دې تجویز کښې [په بندګانو ظلم کوونکې نه یم] بلکه بندګانو په خپله داسې ناشائسته کارونه وکړل چه سزا ئې نن تیروی

## معارف او مسائل

تیرو شوؤ آیتونو کښې د هغې کسانو شبهې لرې کړې شوې وې چې چا د حشر ، نشر نه انکار کولو ، او د مړو ژوندی کیدل ئې د قیاس او عقل نه لرې ګڼړل . د شبهو لرې کول په دې شان سره وو چې تاسو د الله ﷻ علم لره په خپل علم او بصیرت باندې قیاس کړې دې څکه دا اشکال ئې کیدو چې هر کله د مړی حصې بشاوړې او په دنیا کښې خورې ورې شی هغه به څنګه راجمع کولې شی ؟ خو الله ﷻ اوښودل چې د کائناتو ذره ذره زمونږ په علم کښې ده زمونږ دپاره کله چې اوغواړو د هغې راجمع کول څه ګران نه دی ، اوس په دې آیتونو کښې هم د الله ﷻ د علم دفراخئ او د چاپیروالی بیان دې چې د انسان دخورو ورو حصو د علم کیدو نه . او ددې وجه د یې په دویم آیت مبارك کښې بیان اوفرمائیله چې مونږ انسان ته دومره نزدې یو چې ددهٔ د ساه رګ چې په دې باندې ددهٔ د ژوند دارومدار دې دهغې نه هم ورته مونږ نه زیات نه نزدې نه دې په دې و جه مونږ دهر انسان حالات دهغه نه زیات ښه پیژنو .

**الله ﷻ انسان ته دهغه دشارګ نه هم زیات نزدې دې ددې تحقیق** : ﴿وَنَحْنُ اَقْرَبُ اِلَيْهِ مِنْ حَبْلِ الْوَرِيْدِ﴾ ددې مطلب جمهورو مفسرینو دا خودلې دې چې د نزدیکت نه مراد علمی نزدیکت اوعلمی چاپیروالی دې ، دمسافت او پیمائش نزدې والی ترې مراد نه دې ، دورید لفظ معنی د هر ساه والا هغه رګونه دی چې دهغې په ذریعه په ټول بدن کښې وینه بهیږی . په طبعی اصطلاح کښې دا دوه قسمه رګونه دی ، یو هغه چې ځیګر نه اوځی او خاصه وینه ټول بدن ته رسوی ، په طبعی اصطلاح کښې صرف دې رګونو ته ورید وئیلې شی چې جمع ئې اورده راځی .

دویم قسم هغه رګونه دی چې د ساه دار د زړهٔ نه اوځی او د وینې هغه نازك بړاس [هوا] چې په طبعی اصطلاح کښې ورته روح وئیلې شی ، هغه ئې داشان په ټول انسانی بدن کښې خوروی ، اورسوی ئې ، هغې ته شریان او شرائین وئیلې شی . ړومبی قسم رګونه غټ او دویم قسم باریك وی .

دا ضروری نه دی چې آیت مبارك کښې د ورید لفظ نه دطبعی اصطلاح په جوړ هغه رګ مراد واخستې شی چې ځیګر نه راوځی بلکه دلغت په اعتبار سره د زړهٔ نه وتلی رګ ته هم ورید وئیلې شی ،ولې چې په دې کښې یو قسم وینه ګردش کوی او چونکه دلته آیت مبارك کښې د

انسان د زړهٔ خيالونو او حالاتو نه خبرداره كيدل مقصود دي ، ځكه دا ډير زيات مناسب دي او په هر حال وريد په طبعي اصطلاح كښې د ځيګر نه وتونكى رګ په معنى كښې واخستې شي يا د زړهٔ نه وتونكى شريان په معنى واخستې شي هر دواړه صورتونو كښې د ساه والا ژوند په دې باندې اړه لرى . نو ددې رګونو په پريكولو سره ساه والا نه ساه اوځي . نو خلاصه دا شوه چې په كوم څيز باندې د انسان ژوند موقوف دې مونږ دهغه څيز نه هم ده ته نزدې يو ، يعنى د انسان د هر څيز علم مونږ ته شته دې .

او د صوفياء كرامو په نزد دنزديكت نه مراد دله صرف علمى نزديكت او علمى چاپير كيدل نه دى بلكه يو خاص قسم پيوستګى ده چې حقيقت او حال ئې خو هيچا ته نه وى معلوم خو دا نزديكت بې كيفه موجود ضرور دى ، د قرآن عظيم الشان ګڼر آيتونه اوصحيح احاديث مباركه په دې باندې ګواه دى ، د الله ﷻ ارشاد دې چې ﴿وَاسْجُدْ وَاقْتَرِبْ﴾ [سجده كوئ او زمونږ نزديكت حاصل كړئ] اودهجرت په واقعه كښې نبى كريم ﷺ ابوبكر صديق ﵁ ته اوفرمائيل چې ﴿إِنَّ اللّٰهَ مَعَنَا﴾[الله ﷻ زمونږ سره دې]. او حضرت موسى ﵇ بنى اسرائيلو ته فرمائيلى وو چې [إِنَّ مَعِيَ رَبِّيْ] يعنى زما رب ماسره دې او په حديث پاك كښې راغلى دى چې الله ﷻ ته انسان د ټولو نه زيات په هغه وخت كښې نزدې وى څه وخت چې سجده كښې وى([1]) ، داشان په حديث پاك كښې دى چې الله ﷻ فرمائيلى دى چې : زما بنده ماسره په نفلى عبادت سره نزديكت په مخه حاصلوى([2]) .

دا نزديكت چې دعبادتونو په ذريعه سره حاصلولې شى او د انسان دخپل كسب او عمل نتيجه وى ، صرف مؤمن دپاره مخصوص دى ، او دغسې مؤمنانو ته اولياء الله وئيلې شى ، چاله چې الله ﷻ سره دانزديكت حاصل وى ، دا نزديكت اوپيوستګى دهغې نزديكت نه علاوه ده كومه چې دالله ﷻ د هر كافر او مؤمن د ځان دپاره په يو شان حاصله ده . غرض دا چې بيان شوى آيتونه او روايتونه په دې ګواه دى چې انسان ته د خپل خالق او مالك سره يو خاص قسم نزديكت حاصل دې اګر چې ددې د حقيقت او كيفيت ادراك نشى كيدې ، څنګه چې مولانائې روم فرمائى چې :

اتصالے بے مثال و بے قياس هست رب الناس رابا جان ناس([3])

[دا نزديكت او څائيكت په سترګو نشى ليدلې بلكه په ايمانى زيركتيا سره معلوميدې شى] تفسير مظهرى كښې هم دا نزديكت او څائيكت ددې آيت مبارك مطلب ګرځولې شوې دې([4]) اود جمهورو مفسرينو قول رومبې معلوم شوېدې چې يوځائيكت نه مراد علمى يوځائيكت او علمى چاپيروالې دې، اوابن كثير ﵀ ددې دواړو معنو نه بيل يو دريم تفسير دا اختيار كړې دې چې په آيت مبارك كښې د لفظ د نَحْنُ نه پخپله د الله ﷻ ذات مراد نه دې بلكه د الله ﷻ

[1] صحيح مسلم كتاب الصلاة، باب ما يقول في الركوع والسجود[ج:۱ص:۱۹۱]
[2] صحيح البخاري كتاب الرقاق ،باب التواضع [ج:۲ص:۹۶۲]
[3] ترجمه:- دخلقو د رب هغه دوئ سره د اسې نزدې تعلق دې چې دهغې نه خوك يو مثال پيش كولې شى او نه هغه په عقل كښې راتلې شى.
[4] تفسير المظهري[ج:۹ص:۶۸]

فرښتې ترې مراد دي(١) کومې چې انسان سره هروخت وي ، هغوئ د انسان د ځان نه دومره خبر وي څومره چې انسان هم د خپل ځان نه خپله خبر نه وي ، والله اعلم.

**هر انسان سره دوه فرښتې وي** :: ﴿إِذْ يَتَلَقَّى الْمُتَلَقِّيَانِ﴾ د تلقي معنی نیول ، اخستل او حاصلول راځي . لکه قرآن عظيم الشان فرمائي چې ﴿فَتَلَقَّىٰ آدَمُ مِن رَّبِّهِ كَلِمَاتٍ﴾ [حاصل کړې آدم عليه السلام دخپل رب نه څو کلمې]. دې آيت مبارك کښې د ﴿مُتَلَقِّيَانِ﴾ نه هغه دوه فرښتې مراد دي چې دانسان د عملونو د ليکلو دپاره ورسره هر وخت موجودې وي ، او پخپلو صحيفو کښې ددۀ عملونه ليکي :﴿عَنِ الْيَمِينِ وَعَنِ الشِّمَالِ قَعِيدٌ﴾ [يو انسان سره دهغه په ښى طرف وي] [چې نيك عملونه ئې ليکي] او بله ګس طرفته وي [چې بد عملونه ئې ليکي.

﴿قَعِيدٌ﴾ د قاعد په معنى راځي ، د مفرد يعنې واحد او جمع دواړو دپاره استعماليږي . څنګه چې جليس په معنى دجالس استعماليږي ، البته فرق دادې چې قاعد او جليس د ناستې دحالت دپاره استعماليږي . خو قعيد او جليس عام دې چې خپل مينځ کښې سره يوځائې وي خواه هغه ناست وي يا ولاړ وي اوکه ګرځي راګرځي ، څنګه چې دغه فرښتې همدغسې حالت کښې ورسره موجودې وي البته د لويو او وړو بولو يا دجماع کولو په حالت چې ستريې کولاؤ وي ورسره موجود نه وي . دې وخت کښې ترې نه يوطرفته شي . خو الله جل جلاله دغې فرښته ته دا مهارت ورکړې دې چې په دغې حالتونو کښې انسان څه ګناه کوي نو هغوئ ئې معلومولې شي. ابن کثير رحمه الله د احنف بن قيس په روايت سره ليکلي دي چې ددې دواړو فرښتو ځينې د ښى طرف فرښتې نيك عملونه ليکي او د ګس طرف د فرښتو هم نګران او امانتګر دی . که چرې انسان څه ګناه کوي نود ښى طرف والا فرښتې دګس طرف والا فرښتو ته وائي چې لا ئې په خپله صحيفه کښې مه ليکئ . که توبه ئې اوکړه نو ليکل ئې اونه کړئ او که توبه ئې اونه کړه نوبيا ئې اوليکئ. [ابن کثير حاتم روايت کړو]( ٢ ).

**عمل نامې ليکونکې فرښتې** :: حسن بصري رحمه الله دې آيت مبارك کښې د ﴿عَنِ الْيَمِينِ وَعَنِ الشِّمَالِ﴾ تلاوت اوکړو او وې فرمائيل چې ائې انسانه ! تا دپاره عمل نامه خوره کړې شوې ده اوپه تا باندې دوه محترمې فرښتې مقرر کړې شوې دي . يو ستا ښى طرفته او بله ستا ګس طرفته ده د ښى طرف والا ستا نيکئ ليکي او ګس طرف والا ستا ګناهونه ليکي . او دا حقيقت مخې ته کيږده چې څه دې خوښه وي هغه شان عمل کوه . که کم کوې او که زيات کله به چې ته مرې نو دغه عمل نامه به دې راغونډه کړې شي او ستا په غاړه کښې به واچولې شي . قبر ته به درسره ځي او هلته به درسره وي،ا و دقيامت په ورځ به چې د قبر نه پورته شې نو الله جل جلاله به دغه وخت کښې فرمائي چې :

﴿وَكُلَّ إِنسَانٍ أَلْزَمْنَاهُ طَائِرَهُ فِي عُنُقِهِ ۖ وَنُخْرِجُ لَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ كِتَابًا يَلْقَاهُ مَنشُورًا ۞ اقْرَأْ كِتَابَكَ كَفَىٰ بِنَفْسِكَ الْيَوْمَ عَلَيْكَ حَسِيبًا ۞﴾

[يعنې مونږ دهر انسان په غاړه کښې د هغه عمل نامه زوړند کړې ده او د قيامت په ورځ به هغه پرانستې بيا مومي . اوس خپله عمل نامه پخپله اووايه ، ته پخپله دخپل ځان دپاره مناسب دحساب لګولو دپاره کافي ئې].

---

(١) تفسير ابن کثير تحت هذه الآية [ج: ٧ ص:٣٩٨]
(٢) تفسير ابن کثير [ج: ٧ ص:٣٩٩]

بیا حسن بصری رحمه الله اوفرمائیل چې قسم مې دې په الله ﷻ وی چې زیات انصاف الله ﷻ اوکړو چې ته ئې پخپله دخپل عمل حساب کوونکې اوګرځولې . [ابن کثیر][1]. دا ښکاره خبره ده چې عمل نامه څه دنیاوی څیز نه دې چې قبر ته دهغې په اوړلو اوتر قیامته پورې دهغې په پاتې کیدلو څه اشکال واردشی بلکه دایو معنوی څیز دې چې په حقیقت ئې الله ﷻ ښه پوهیږی څکه ئې دانسان د غاړې هار جوړیدل او تر قیامته پورې ئې باقی پاتې کیدل څه دتعجب څیز نه دې .

**د انسان هر قول ریکارډ کیږی**: ﴿مَا يَلْفِظُ مِن قَوْلٍ إِلَّا لَدَيْهِ رَقِيبٌ عَتِيدٌ﴾: [یعنی انسان دخپلې خلې نه داسې هیڅ څه خبره نه راوباسی چې دغه نګرانې فرښتې به ئې نه محفوظ کوی]. حسن بصری رحمه الله او قتاده رحمه الله اوفرمائیل چې دا فرښتې دهغه یو یو لفظ لیکی خواه په دې کښې څه ګناه یا ثواب وی او که نه .

ابن عباس رضی الله عنه اوفرمائیل چې هغه خبرې لیکی چې څه ثواب یا عذاب په هغې ورکولې شی[2].

ابن کثیر رحمه الله ددې دواړو دنقل کولو نه پس اوفرمائیل چې د قرآن عظیم الشان د آیت مبارك د عموم نه د رومبئ خبرې غوروالې معلومیږی چې هر هر لفظ لیکلې شی .

بیائې د علی ابن ابی طلحه رضی الله عنه یو روایت د ابن عباس نه همداسې نقل اوفرمائیل چې په دې دواړه اقوال جمع کیږی ، دې روایت کښې دی چې رومبې خو هره خبره لیکلې شی که هغه دګناه اوثواب وی او که نه وی ، خو په هفته کښې د زیارت په ورځ پرې فرښتې بیا نظر واچوی ، اوصرف هغه خبرې په کښې پریږدی په کوم کښې چې ثواب یا عتاب وی ، یعنی چې خیر او شر وی او نورو پسې مخه نه اوړی ، نو په قرآن عظیم الشان کښې ﴿يَمْحُوا اللَّهُ مَا يَشَاءُ وَيُثْبِتُ ۖ وَعِندَهُ أُمُّ الْكِتَابِ﴾[3] په مفهوم کښې دا محو واثبات هم داخل دی[4].

امام احمد دبلال بن حارث رحمه الله نه روایت کړې دې چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې : انسان په څه وختونو کښې د خیر څه کلمه وائی چې ورسره الله ﷻ راضی کیږی خو دې هغه معمولې ګنړی او وې وائی ، ده ته معلوم هم نه وی چې ددۀ ثواب تر کومې اورسیدو ، چې الله ﷻ همیشه دپاره رضا تر قیامته پورې لیکی ، دغسې انسان د الله ﷻ د ناراضګئ څه کلمه معمولې ګنړی او دخلې نه ئې اووځی ، دهغه دا ګمان نه وی چې د هغه ګناه او وبال به تر کومې رسیږی . خو الله ﷻ تر قیامته پورې هغه دپاره خپله همیشه خفګان لیکی . [ابن کثیر][5].

علقمه رحمه الله دبلال بن حارث ددې حدیث د نقل کولو نه پس فرمائی چې دې حدیث پاك زۀ د ډیرو خبرو کولو نه ایسار کړې یم . ابن کثیر][6].

---

[1] ) تفسیر ابن کثیر [ج: ۷ ص:۳۹۹]
[2] ) المستدرك للحاکم رقم الحدیث:[۳۷۳۰]
[3] ) ترجمه:- الله تعالی چې کوم حکم اوغواړی نو موقوف کوئ یئ او چې کوم حکم اوغواړی نو قائم یئ ساتی او اصل کتاب هغه ذات سره دې .
[4] ) تفسیر ابن کثیر [ج: ۷ ص:۳۹۸ ، ۳۹۹] و تفسیر ابن ابي حاتم رقم الحدیث:[ ۱۸٦۳۲]
[5] ) تفسیر ابن کثیر [ج: ۷ ص:۳۹۸] و جامع الترمذي ، ابواب الزهد باب فی قلة الکلام [ج:۲ ص:۵۸]و مسنداحمد ، حدیث بلال بن الحارث رضی الله عنه رقم الحدیث:[۱۵۸۵۲]
[6] ) تفسیر ابن کثیر [ج: ۷ ص:۳۹۸]

**سکرات الموت:** ﴿وَجَآءَتْ سَكْرَةُ الْمَوْتِ بِالْحَقِّ ۚ ذَٰلِكَ مَا كُنتَ مِنْهُ تَحِيدُ﴾ د سکرة الموت معنی د مرګ سختی او بې خودي ده چې دمرګ په وخت کښې راپیښیږي ، ابوبکر بن الانباري رحمه الله پخپل سند سره د مسروق رحمه الله نه روایت کړې دې چې کله سیدنا صدیق اکبر رضي الله عنه باندې دمرګ نخښې شروع شوې نو صدیقهٔ کائنات عائشه صدیقه رضي الله عنها ئې راؤبلله هغه چې راغله او د ابوبکر صدیق رضي الله عنه حالت ئې اولیدو نو بې اختیاره ئې دا شعرونه دژبې نه اووتل چې :

﴿اذا حشرجت یوما وضاق بها الصدر﴾ [کله چې روح یوه ورځ بې قراره شي او سینه پرې تنګه شي].

سیدنا ابوبکر صدیق رضي الله عنه چې واوریدل نو وې فرمائیل چې تا فضول دا شعر اووئیلو ، داسې دې ولې او نه وئیل چې :

﴿وَجَآءَتْ سَكْرَةُ الْمَوْتِ بِالْحَقِّ ۚ ذَٰلِكَ مَا كُنتَ مِنْهُ تَحِيدُ﴾ کله چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته دا حالت راپیښ شو نو په اوبو ئې لاس مبارک لوند کړو ،پخپل مخ مبارک به ئې مرلو او فرمائیل چې :

﴿لا اله الا الله ان للموت سکرات﴾ یعنی کلمه طیبه به ئې لوستله او فرمائیل به ئې چې د مرګ ډیرې سختئ وی[1] .

﴿ذَٰلِكَ مَا كُنتَ مِنْهُ تَحِيدُ﴾ تحید د حید نه مشتق دې چې معنی ئې مائل کیدل او د ځائې نه لرې کیدل او اقرار کول دی ، معنی د آیت مبارک داده چې مرګ هغه څیز دې چې ته ترې بوګنیدې او تښتیدلې ، ښکاره داده چې خطاب عام انسان ته دې ، په انساني طبیعت کښې دا پرته ده چې مرګ نه بوګنیږي او تیښته کوي ، د هر چا ژوند خوښ وي او مرګ ئې بدې شي . او دهغې نه ځان ساتلو تدبیرونه کوي چې په شریعت کښې څه ګناه هم نه ده خو په آیت مبارک کښې دا خودل منظور دي چې د انسان دا فطري او طبعي خواهش په مکمل ډول هیچرې نشي پورا کیدې . یوه ورځ پرې خامخا مرګ راتلل دی که هر څومره ترې څوک تښتیدل غواړي .

**میدان حشر ته د انسان راوستونکې دوه فرښتې :** ﴿وَجَآءَتْ كُلُّ نَفْسٍ مَّعَهَا سَآئِقٌ وَشَهِيدٌ﴾ ددې آیت مبارک نه پورته د قیامت قائمیدو ذکر دې ، اوس دې آیت مبارک کښې په میدان حشر کښې د ټولو انسانانو دحاضریدو یو خاص کیفیت یې بیان کړې دې چې هر یو انسان سره به سائق وی ، سائق داسې یو کس ته وئیلې شي چې څاروۀ یا یوې ډلې پسې روان وی او هغه یو خاص ځائې ته رسول غواړي ، او د شهید معنی ګواه ده . د روایتونو په اتفاق سره د سائق فرښته کیدل ثابت دی ، دشهید باره کښې د عالمانو خبرې مختلفې دی ، د څینو حضراتو په نزد به دا هم یوه فرښته وی . په دې لحاظ سره سائق اوشهید دواړه فرښتې شوې . د یوې کار دادې چې خلق میدان حشر ته رسوی او دبلې کار په دوئ ګواهی ورکول دی . دا دوه فرښتې هم کیدیشي چې د انسان ښي او کس طرفته دهغه دعمل لیکلو دپاره په دنیا کښې درسره موجود وی چې کرام الکاتبین ورته وئیلې شی . او دا هم کیدیشي چې ددې نه علانه نورې دوه فرښتې وی ، څینې حضراتو فرمائیلي دی چې شهید به هغه د انسان عمل وی اوڅینې پخپله هم دغه انسان ته شهید وائي . ابن کثیر رحمه الله فرمائي چې د ظاهر د آیت مبارک نه هم دا معلومیږي چې دا به هم یوه فرښته وی چې ددۀ په عملونو به ګواهي ورکوی ، او د مجاهد رحمه الله ، قتاده رحمه الله ،

[1] تفسیر ابن کثیر [ج: ۷ ص: ۴۰۰]و کنز العمال رقم الحدیث:[۳۵۷۱۸]

ابن زید رحمه الله مفسرینو کښې هم دا منقول دی ، ابن جریر رحمه الله دا غوره کړې دی[1].

**د مرګ نه پس به سترګې هر هغه څه وینې چې ژوند کښې ئې نه شو لیدې** : ﴿فَكَشَفْنَا عَنْكَ غِطَاءَكَ فَبَصَرُكَ الْيَوْمَ حَدِيدٌ﴾ [یعنی مونږ ستاسو د سترګو نه پرده لرې کړه نن ستاسو نظر ډیر تیز دې]. ددې د مخاطبینو باره کښې هم د مفسرینو اقوال مختلف دی مګر راجح هم دادې چې ددې مخاطب عام انسانان دی چې که هغه کښې مؤمنان ، کافران متقیان ، فاسقان ټول داخل دی ، دې تفسیر لره ابن جریر رحمه الله او ابن کثیر رحمه الله وغیره اختیار کړې دې[2] ، معنی د آیت مبارك دا شوه چې ددنیا مثال دخوب د ژوند پشان دې اود آخرت مثال د بیدارئی دې ، نو په خوب کښې د انسان سترګې پټې وی هیڅ پرې نه وینې ، دغه شان انسان هغه حقیقتونه هم په دنیاوی سترګو سره نه وینی دکومو تعلق چې عالم آخرت سره وی ، خو ددې ظاهری سترګو په بندیدو سره دخوب دغه حالت ختم شی او د بیدارئی جهان شروع شی چې په کښې ټول حقیقتونه مخې ته راشی ځکه ځینې علماء کرامو فرمائیلی دی چې :

﴿الناس نيام فاذا ماتوا انتبهوا﴾

[یعنی ددې دنیا په ژوند کښې ټول انسانان په خوب اوده دی چې مړه شی نو رابیدار به شی].

﴿وَقَالَ قَرِينُهُ هَذَا مَا لَدَيَّ عَتِيدٌ﴾ د لته د قرین نه مراد هغه فرښته ده چې انسان سره په دنیا کښې د عملونو لیکلو دپاره ئې وی . رومبې معلومه شویده چې دعملونو لیکونکې دوه فرښتې وی ، مګر په قیامت کښې د انسان دحاضرئ په وخت یو سایق او بل ته شهید ددې نه وړاندې آیت مبارك کښې فرمائیلی دی ، په دې بنا د چلن د کلام نه دا معلومیږی چې دعملونولیکونکې دوؤ فرښتو ته په میدان حشر کښې ددې دحاضرئ په وخت دوه کارونه سپارلې شوی دی ، د یوې په ذمه دا کار دې چې خلق میدان حشر ته اورسولې شی ، دې ته سائق اووئیلې شو او بلې ته دانسان عملنامې اوسپارلې شوې چې شهید سره ئې تعبیر اوکړې شو ، نو په میدان حشر کښې د رسیدو نه پس د عمل نامې والا فرښته یعنی شهید به عرض اوکړی چې ﴿هَذَا مَا لَدَيَّ عَتِيدٌ﴾ [یعنی ددهٔ عملونه ماسره لیکلی مو جود دی] اوابن جریر پخپل تفسیر کښې اوفرمائیل چې دلته دقرین لفظ سائق او شهید دواړوته شامل دې[3].

﴿أَلْقِيَا فِي جَهَنَّمَ كُلَّ كَفَّارٍ عَنِيدٍ﴾ ﴿أَلْقِيَا﴾ د تثنیی صیغه ده چې دؤو کسانو دپاره استعمالولې شی. دې آیت مبارك کښې دغه دوه مخاطبې فرښتې کومې دی ، ظاهره داده چې دې نه مراد هغه دوه فرښتې سائق اوشهید دی ، ځینو مفسرینو ددې نور توجیهات هم لیکلی دی. [د ابن کثیر نه][4]

﴿قَالَ قَرِينُهُ رَبَّنَا مَا أَطْغَيْتُهُ﴾ د قرین اصلی معنی ورسره اوسیدونکې او یوځائې شوې ده ، ددې معنی په اعتبار سره په تیر شوی آیت مبارك کښې د قرین نه مراد هغه فرښتې اخستې شوی دی چې دانسان عملونه لیکی ، او انسان سره څنګه چې دوه فرښتې قرین جوړې کړې شوې دی ، دغسې یو قرین ورسره شیطان هم لګیدلې وی چې هغه لره ګمراهئ ته رابلی ، په آیت مبارك

---

[1] تفسیر ابن کثیر [ج: ۷ ص: ۴۰۱]
[2] تفسیر ابن کثیر [ج: ۷ ص: ۴۰۱]
[3] تفسیر ابن کثیر [ج: ۷ ص: ۴۰۲]
[4] تفسیر ابن کثیر [ج: ۷ ص: ۴۰۲]

کښې د قرین نه هم دغه شیطان مراددې ، کله چې ددغې کس جهنم کښې د غورزولو حکم اوشي نو دغه شیطان به ترې دخپلې ویزارئ [ویزاری] اعلان اوکړي او وائی به چې دې خو ما نه وو ګمراه کړې بلکه هم پخپله ګمراه وو چې د ګمراهئ خبره به ئې قبلوله او په نیکه خبره به ئې غوږ نه ګرولو. دظاهر کلام نه دا معلومیږی چې په جهنم کښې تلونکې بنده به دغه وخت دا عذر اوکړي چې زه خو دغې شیطان دهوکه کړې اوم ، ګنې نو ما به نیک کار کولو ، ددې په جواب کښې به شیطان خپله ویزاری ښکاره کړي ، ددې دواړو دجګړو په جواب کښې به الله ﷻ ارشاداوفرمائی چې:

﴿لَا تَخْتَصِمُوْا لَدَيَّ وَقَدْ قَدَّمْتُ اِلَيْكُمْ بِالْوَعِيْدِ﴾ [زما په وړاندې جګړه مه کوئی ما خود ړومبې نه دپیغمبر ﷺ په ذریعه ستاسو د فضول عذر جواب درکړې دې اود آسمانی کتابونو په ذریعه مې دلیلونه واضح کړی دی دا عبث عذرونه جوړول او جګړه به نن نه چلیږی].

﴿مَا يُبَدَّلُ الْقَوْلُ لَدَيَّ وَمَآ اَنَا بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِيْدِ﴾ [یعنی زما په نزد خبره نه بدلیږی ،شوې فیصله به جاری کیږی اومونږ څه هم په چا ظلم نه دې کړې ، خالص د انصاف فیصله ده].

يَوْمَ　نَقُوْلُ

| په کومه ورځ | چې اووایو مونږه

| په کومه ورځ

لِجَهَنَّمَ　هَلِ امْتَلَاْتِ　وَتَقُوْلُ　هَلْ مِنْ مَّزِيْدٍ　وَاُزْلِفَتِ

دوزخ ته | آیا ډك شوې ته | او هغه به اووائی | آیا نور　څه شته | او ورنزدې به کړې شی

چې به مونږ دوزخ ته اووایو | چې آیا ته ډک شوې ؟ | نوهغه به اووائی چې څه نور هم شته ؟ | او

الْجَنَّةُ　لِلْمُتَّقِيْنَ　غَيْرَ بَعِيْدٍ　هٰذَا مَا　تُوْعَدُوْنَ

جنت | پرهیزګارانو ته | چې نه به وی لرې | دا هغه څیز دې | چې ستاسو سره به ئې وعده کیدله

پرهیزګارانو ته به جنت رانزدې کړې شی | هغه به څه لرې نه وی | هم دا هغه [جنت] دې د کوم چې

لِكُلِّ اَوَّابٍ　حَفِيْظٍ　مَنْ　خَشِيَ　الرَّحْمٰنَ　بِالْغَيْبِ

دپاره دهر رجوع کونکی | حفاظت کونکی | هغه څوك | چې اویریدو | درحمن نه | بې دلیدو دهغه نه

تاسو سره وعده کولې شوه | هر رجوع کونکی او [دحقوقو] حفاظت کونکی دپاره | چې بې لیدلو دالله

وَجَآءَ　بِقَلْبٍ　مُّنِيْبِ　اِۨدْخُلُوْهَا　بِسَلٰمٍ　ذٰلِكَ يَوْمُ الْخُلُوْدِ

او راغې | په زړه | رجوع کونکی سره | ننوزئ دې ته | په سلامتیا سره | دا ورځ دهمیشوالی ده

نه ویریږی او رجوع کونکی زړه سره راشی | دې [جنت] ته په سلامتئ سره داخل شئ | دادهمیشه اوسیدو ورځ ده

لَهُمْ　مَّا　يَشَآءُوْنَ　فِيْهَا　وَلَدَيْنَا　مَزِيْدٌ

وی به دپاره دهغوئ | هغه | چې غواړئ ئې هغوئ | په هغې کښې | اوزمونږسره | ددې نه هم زیات ډیرڅه دی

دوئ دپاره به هلته هر هغه څه وی | چې دوئ ئې غواړی | .........اومونږ سره نور هم ډیرڅه دی

## آسان ترجمه قرآن

او هغه وخت (یاد کړه) چه کله مونږ جهنم ته اووایو چه: آیا ته ډک شوې، او هغه به اووائي چه: آیا څه نور هم شته؟ او د پرهیزګارانو دپاره به جنت دومره نزدې کړې شي، چه هیڅ به هم لرې نه وي. (او اوبه وئیلې شي چه) دا دې هغه څیز، چه تاسو سره ئې وعده کړې شوې وه. چه دا د هر هغه سړي دپاره دې، چه الله تعالیٰ ته ډیر رجوع کوونکې وي (او) د خپل ځان نګراني کوونکې وي چه د الله تعالیٰ نه په نالیدلو کښې ویریږي. او الله تعالیٰ طرف ته رجوع کوونکې زړه سره راشي. تاسو ټول په دې جنت کښې په سلامتیا سره داخل شئ. هغه ورځ به د همیشنۍ ژوند ورځ وي دې (جنتیانو) دپاره به هر هغه څه وي، کوم چه دوي هلته کښې غواړي. او مونږ سره نور زیات هم.

## خلاصه تفسیر

دلته دمحشرد باقي واقعاتو بیان دې چه هغه ورځ خلقو ته وریاده کړه ﴿يَوْمَ نَقُولُ لِجَهَنَّمَ هَلِ امْتَلَأْتِ﴾ [په کومه ورځ چه مونږ دوزخ ته] دکفارو دې کښې د داخلولو نه پس [ووایو چه ته ډك هم شوې ؟﴿وَتَقُولُ هَلْ مِن مَّزِيدٍ﴾ او هغه به ووائي چه آیا څه نورهم شته؟] داتپوس شاید کفارو لره دنورو زیاتو ویرولو دپاره وي چه اواز واوري او ددوي په زړونو کښې د دوزخ نور زیات هیبت پیداشي چه مونږ څنګه د غضب ځائ ته راورسیدو کوم چه ټولو لره خوړل غواړي اوجهنم د طرف نه د هل من مزید جواب هم غالبا ددې غصې مظاهره ده کومه چه دجهنم د الله تعالیٰ د دښمنانو کفاروسره ده چه ذکر يې په سوره ملك کښې په دې الفاظو سره راغلې دې وهي تفورتكاد تميزمن الغيظ[1] [جهنم په جواب کښې داو نه وئیل چه زما ګیډه نه ده ډکه بلکه دزیاتو فرمائش يې دغصې او غضب نه وکړو په دې وجه دقرآن بل ځائ کښې چه کوم حق تعالیٰ فرمائیلي دي لاملئن جهنم من الجنة والناس اجمعين يعني زۀ به ډك کړم جهنم لره دپیریانو او انسانانو نه داددې منافي نه ده اومعنی دایت داده چه الله تعالیٰ دخپلې تیرې وعدې لاملئن جهنم مطابق به پیریانو او انسانانو لره جهنم ته غورزوي او هغه به دا وائي چه څه نور هم شته [ابن کثیر][2]
[او] د جنت بیان دادې ﴿وَأُزْلِفَتِ الْجَنَّةُ لِلْمُتَّقِينَ غَيْرَ بَعِيدٍ﴾ [جنت به متقیانوته نزدې کړې شي چه څه لرې به نه وي] او متقیانو ته وبه ووئیلې شي چه ﴿هَٰذَا مَا تُوعَدُونَ لِكُلِّ أَوَّابٍ حَفِيظٍ﴾ [دا هغه شې دې دکوم چه تاسو سره] په دې عنوان [وعده کولې شوه چه هغه دهرداسې سړي دپاره دې کوم چه] د الله تعالیٰ طرف ته په زړۀ سره [رجوع کوونکې] او درجوع کولو نه پس دعملونو او طاعتونو [پابندي کوونکې وي] غرض دا چه ﴿مَّنْ خَشِيَ الرَّحْمَٰنَ بِالْغَيْبِ﴾ [کوم دالله تعالیٰ نه پس شاویریږي ﴿وَجَاءَ بِقَلْبٍ مُّنِيبٍ﴾ او] الله تعالیٰ ته [په رجوع کوونکی زړۀ سرا راشي] دوی ته به حکم وشي ﴿ادْخُلُوهَا بِسَلَامٍ﴾ [چه دې جنت ته په سلامتئ سره داخل شئ ﴿ذَٰلِكَ يَوْمُ الْخُلُودِ﴾ داورځ ده دهمیشه اوسیدو] دپاره دحکم کیدو ﴿لَهُم مَّا يَشَاءُونَ فِيهَا﴾ [هغوی ته به په جنت کښې هرڅه ملاویږي چه څه غواړي ﴿وَلَدَيْنَا مَزِيدٌ﴾ اومونږ سره] دهغوی د غوښتلو شوو څیزونونه [نور هم زیات] نعمتونه [دي] چه هغې ته به دجنتی ذهن هم نه رسیږي لکه چه په حدیث کښې نبی

---

[1] ترجمه: او هغه دوزخ به داسې ویشیږي چې د ډیره قهره به شلیدو ته نزدې وي
[2] تفسیر ابن کثیر [ج: ۷ ص: ۴۰۳]

کریم ﷺ د جنت د نعمتونو متعلق فرمائی چه هغه داسې دی کوموله چه نه د چا سترګو لیدلی دی نه د چا غوږونو اوریدلی دی اونه دچا بشر په زړه کښې ددې خیال راغلې دې(۱) ددغو نعمتونو نه یو نعمت د الله تعالی دیدار دې

## معارف اومسائل

**اواب څوک خلق دی؟** : ﴿لِكُلِّ أَوَّابٍ حَفِيظٍ﴾ یعنی دجنت وعده هرداسې کس دپاره ده چې أَوَّابٍ او حَفِيظٍ وی د أَوَّابٍ معنی رجوع کوونکې ده ، مراد تر هر هغه څوک دې چې د ګناهونو نه الله ﷻ طرفته رجوع کوونکې وی.

عبدالله بن مسعود رضي الله عنه اوشعبی اومجاهد اوفرمائیل چې أَوَّابٍ هغه چاته وئیلې شی چې په خلوت کښې خپل ګناهونه رایاد کړی اودهغې نه بخښنه اوغواړی او عبید بن عمیر رضي الله عنه اوفرمائیل چې أَوَّابٍ هر هغه څوک دې چې پخپل هر مجلس اوهر نشته کښې الله ﷻ نه دخپلو ګناهونو بخښنه غواړی ، او وې فرمائیل چې مونږ ته خودلې شوی دی چې اواب او حفیظ هغه څوک دې چې د خپل هر مجلس نه دپاسیدو په وخت کښې دا دعا لولی :

﴿سبحان الله وبحمده اللهم استغفرك مما اصبت فی مجلسی هذا﴾(۲)

او یو حدیث پاک کښې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې څوک دخپل مجلس نه دپاسیدو په وخت دادعا وائی نو الله ﷻ به دهغه ګناهونه معاف کړی کوم چې ترې نه په دغې مجلس کښې شوی وی ، دعا داده:

﴿سبحانك اللهم وبحمدك لا اله الا انت استغفرك واتوب اليك﴾ یعنی ائې الله ! ته پاك ئې اوستا حمد و ثناء ده ،تانه سوا هیڅوك معبود نشته دې ، زۀ تانه بخښنه غوارم اوتوبه کوم(۳).

او ابن عباس رضي الله عنه دحفیظ معنی داخودلې ده چې څوك خپل ګناهونه یادلری دې دپاره چې دهغې نه واوړی او زیان ئې راسر کړی اود هغوئ رضي الله عنه په یو روایت کښې د حفیظ معنی ﴿هو الحافظ لامرالله﴾ هم منقول ده . یعنی څوك چې د الله ﷻ احکام یاد لری ، او د ابی هریره رضي الله عنه په یو حدیث پاك کښې دی چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې څوك د ورځې په اول سر کښې خلور رکعته [داشراق] مونځ اوکړی هغه اواب اوحفیظ دې . [قرطبی](۴).

﴿وَجَآءَ بِقَلْبٍ مُّنِيبٍ﴾ ابوبکر وراق رحمه الله فرمائی چې د منیب نخښه داده چې هغه د الله ﷻ ادب هر وخت خپلې مخې ته لری او د هغه په وړاندې په تواضع او عاجزئی سره پاتې کیږی او دخپل نفس خواهشات پریږدی .

﴿لَهُم مَّا يَشَآءُونَ فِيهَا﴾ یعنی جنتیانو ته به جنت کښې هر هغه څه ملاویږی چې دکوم خواهش لری ، یعنی سمدستی به ئې بیا مومی د تاخیر اوانتظار کولو تکلیف به ورته نه رسی . مسند احمد

---

۱) صحیح البخاري کتاب بدء الخلق ،باب ماجاء فی صفة الجنة [ج:۱ص:۴۳] و صحیح مسلم کتاب صفة الجنت ونعیمها،[ج:۲ص:۳۷۸]

۲) تفسیر القرطبي [ ج:۱۷ص:۲۰]

۳) سنن ابوداود، کتاب الأدب ، باب في کفارة المجلس [ج:۲ص:۶۶۷ ] و جامع الترمذي ،کتاب الدعوات باب مایقول اذا قام المجلس [ج:۲ ص:۱۸۱]

۴) تفسیر القرطبي [ ج:۱۷ص:۲۰] نورتفصیل دپاره اوګورئ:- کنز العمال رقم الحدیث:[۲۱۵۰۷]

کښې د ابی سعید ﷜ نه روایت دې چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې جنت کښې که څوك د اولاد خواهش اولری نو حمل ، څائیګیدل ، بیا د بچی لوئیدل ، داټول به په یو ساعت کښې وی. [ابن کثیر](۱).

﴿وَلَدَيْنَا مَزِيدٌ﴾ یعنی مونږ سره داسې نعمتونه دی چې ورته د انسان وهم او خیال هم نشی تلې ، څکه به دوئ دهغې خواهش هم نشی کولې . انس ﷜ او جابر ﷜ فرمائی چې دا مزید یعنی زیاتی نعمت ، د الله ﷻ بې کیفه زیارت دې . کوم به چې جنتیانو ته حاصل وی . نو ددې مضمون احادیث پخپله نبی کریم ﷺ نه هم د آیت مبارك ﴿لِلَّذِينَ أَحْسَنُوا الْحُسْنَىٰ وَزِيَادَةٌ﴾(۲) په تفسیر کښې روایت کړې شوې دې ، او په څینې روایتونو کښې دی چې جنتیان به د الله ﷻ زیارت یعنی ملاقات د جمعې په ورځ کوی. [قرطبی](۳).

| وَكَمْ أَهْلَكْنَا | قَبْلَهُمْ | مِّنْ قَرْنٍ | هُمْ أَشَدُّ |
|---|---|---|---|
| او څومره ډیر هلاك کړی دی مونږه | مخکښې ددوئ نه | دقومونونه | چې هغوئ زیات سخت وو |
| اومونږددوئ نه وړاندې ډیرداسې قومونه تباه کړی دی چې په [طاقت او] حمله کښې ددوئ نه زیات وو | | | |

| مِنْهُمْ | بَطْشًا | فَنَقَّبُوا | فِي الْبِلَادِ ۗ | هَلْ مِنْ مَّحِيصٍ ۝ |
|---|---|---|---|---|
| ددوئ نه | په لحاظ دطاقت سره | پس اوګرزیدل هغوئ | په ملکونو کښې | ایا بیا ئې موندو څائې دپناه |
| اوهغوئ په ښارونو کښې [دترقئ په غرض] ګرځیدل نو ایا هغوئ دپاره د خلاصی څائې وو ؟ | | | | |

| إِنَّ فِي ذَٰلِكَ | لَذِكْرَىٰ | لِمَنْ | كَانَ | لَهُ | قَلْبٌ |
|---|---|---|---|---|---|
| بیشکه په دې تاریخ کښې | خامخا نصیحت دې | دپاره دهغه چا | چې وی | هغه لره | زړه |
| دهغوئ په تباهئ کښې دهغه چا دپاره لوئې عبرت دې ..................چې د [روغ] زړه | | | | | |

| أَوْ أَلْقَى | السَّمْعَ | وَهُوَ شَهِيدٌ ۝ | وَلَقَدْ خَلَقْنَا | السَّمَاوَاتِ |
|---|---|---|---|---|
| یا کیږدی | غوږ | او هغه حاضروی [یعنی متوجه وی] | او پیدا کړی دی مونږه | اسمانونه |
| خاوند وی یا په توجه سره خبرې ته غوږ نیسی ...................... او مونږ اسمانونه | | | | |

| وَالْأَرْضَ | وَمَا | بَيْنَهُمَا | فِي سِتَّةِ أَيَّامٍ ۖ | وَمَا مَسَّنَا |
|---|---|---|---|---|
| او زمکه | او هغه چې | په منځ ددې دواړو کښې دی | په شپږو ورځو کښې | او اونه رسیدو مونږ ته |
| اوزمکه اوددې دواړو په مینځ کښې چې څه دی په شپږو ورځو کښې پیدا کړی دی او مونږ پرې | | | | |

| مِنْ لُّغُوبٍ ۝ | فَاصْبِرْ | عَلَىٰ مَا | يَقُولُونَ | وَسَبِّحْ |
|---|---|---|---|---|
| څه ستړې والې | پس صبر کوه | په هغه خبرو چې | دا خلق ئې وائی | او تسبیح وایه |
| هیڅ هم ستړې شوې نه یو نو ددوئ په خبرو صبر کوه ..........................اود خپل | | | | |

(۱) تفسیر ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ۷ ص:۴۲] و جامع الترمذي ، ابواب صفة الجنة باب ما لأدنى اهل الجنة من الكرامة [ج:۲ ص:۸۲] و مسند احمد ، مسند ابی سعید الخدري ﷜ رقم الحديث:[۱۱۰۶۳]

(۲) ترجمه:- کومو خلقو چې نیکی کړې ده هغوئ دپاره ښه بدله ده او ددې نه نور هم زیات شته دې.

(۳) تفسیر القرطبي [ج:۱۷ ص:۲۱] ومسند البزار مسند ابی حمزة انس بن مالك ﷜ رقم الحديث:[۷۵۲۸]

| وَقَبْلَ الْغُرُوبِ ۞ | الشَّمْسِ | قَبْلَ طُلُوعِ | بِحَمْدِ رَبِّكَ |
|---|---|---|---|
| او مخکښې دپریوتلو دنمر نه | دنمر نه | مخکښې د راختلو | دحمد [ثنا] درب خپل سره |
| رب حمد او تسبیح وایه\| دنمر راختلو نه وړاندې او دنمر ډوبیدو نه وړاندې | | | |
| وَاَدْبَارَ السُّجُودِ ۞ | فَسَبِّحْهُ | | وَمِنَ الَّيْلِ |
| او روستو دسجدونه | بیا تسبیح وایه دهغه | | او دشپې دوخت نه |
| او په شپه کښې هم دهغه تسبیح وایه\| او مونځونو نه پس هم\| | | | |

## آسان ترجمه قرآن

څه او ددوی (مکې کافرانو) نه مخکښې مونږ ډیر قومونه هلاک کړي دی، چه د هغوی طاقت په دانیولو باندې ددوی نه زیات وو نو هغوی په ټولو ښهرونو کښې گرزیدلې وو آیا د هغوی دپاره د تښتیدلو څه ځائې وو؟ یقیناً په دې کښې د هغه سړی دپاره د لوئې نصیحت سامان دې، چه هغه سره زړه وی، یا غوږ ایږدی، او حاضر دماغ وی. او مونږ ټول آسمانونه او زمکه او ددوی په مینځ کښې څیزونه په شپږو ورځو کښې پیدا کړي دی، او مونږ ته لږ شان ستړې والې هم نه دې رسیدلې. لهٰذا (اے پیغمبره علیه السلام) څه چه دوی وائی، ته په هغې باندې صبر کوه او دخپل پروردگار د حمد سره تسبیح کوه، د نمر راختلو نه مخکښې هم، او د نمر ډوبیدو نه مخکښې هم او د شپې په حصو کښې هم د هغه تسبیح کوه، او د سجدو نه پس هم.

## خلاصه تفسیر

﴿وَكَمْ اَهْلَكْنَا قَبْلَهُمْ مِّنْ قَرْنٍ﴾ [او مونږ ددوی] مکې والو [نه وړاند ډیرو امتونو لره] د دغو دکفر په بدبختئ سره [هلاک کړی دی ﴿هُمْ اَشَدُّ مِنْهُمْ بَطْشًا﴾ کوم چه په قوت کښې ددوی نه] ډیر [زیات وو او] ددنیا دسامان زیاتولو دپاره ﴿فَنَقَّبُوْا فِي الْبِلَادِ﴾ [ټول ښارونه به ئې چاڼ کول گرځیدل] یعنی دقوت سره ئې د معیشت په سامان کښې هم ډیره ترقی کړې وه لیکن هر کله چه زمونږ عذاب نازل شو نو دوی ته ﴿هَلْ مِنْ مَّحِيْصٍ ۞﴾ [چرته دتیښتې ځائې هم ملاؤ نه شو] یعنی په هیڅ شان بچ نه شول ﴿اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَذِكْرٰى لِمَنْ كَانَ لَهٗ قَلْبٌ﴾ [په دې] واقعه دهلاکت [کښې د هغه سړی دپاره لوئ عبرت دې دکوم سره چه] پوه [زړه وی یا] که پوه ئې نه وی نوکم نه کم داسې وی چه ﴿اَوْ اَلْقَى السَّمْعَ وَهُوَ شَهِيْدٌ ۞﴾ [هغه] په زړه سره [متوجه وی] خبرې ته [غوږ هم ږدی] او د اوریدو نه پس اجمالا د حقانیت معتقدشی داخبره قبلوی [او] که دقیامت نه انکار په دې بناوی چه تاسو دالله تعالی قدرت د دې نه قاصره گنړئ نو هغه په دې وجه باطل دې چه زمونږ قدرت داسې دې چه ﴿وَلَقَدْ خَلَقْنَا السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا فِيْ سِتَّةِ اَيَّامٍ ۖ﴾ [مونږ اسمانونو لره اومزکې لره او څه چه ددې په مینځ کښې دی ټولو لره په شپږو ورځو [مقدار زمانه] کښې پیدا کړل ﴿وَمَا مَسَّنَا مِنْ لُّغُوْبٍ ۞﴾ او مونږ ته ستومانی قدرې هم رانغله] بیادبنده دوباره پیداکول څه گران دی اودالکه دا قول دالله تعالی دې په سوره احقاف کښې اَوَلَمْ يَرَوْا اَنَّ اللّٰهَ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَلَمْ يَعْيَ بِخَلْقِهِنَّ بِقٰدِرٍ عَلٰٓى اَنْ يُّحْيِيَ الْمَوْتٰى ۖ (1) اوسره ددې قاطع شبهات جوابونو داخلق بیا هم

(1) ترجمه:-آیا دې خلقو ته معلوم نه ده چې کوم الله تعالی آسمان او زمکه پیدا کړل او ددې په پیدا کولو کښې یې لږ شان ستړې والې هم محسوس نه کړو او هغه ذات په دې قدرت لری چې مړی ژوندی کړی.

انکار باندار دی ﴿فَاصۡبِرۡ عَلٰی مَا یَقُوۡلُوۡنَ﴾ [پس ددوی په خبرو صبر کوه] یعنی غم مه کوه [او] چونکه بغیر ددې چه یوطرف ته زړۀ مشغول کړې شی دغه دغم خبره د زړۀ نه نه وځی او چه باربار یادیږی زړۀ غمژن کوی په دې وجه ارشاد فرمائي چه ﴿وَسَبِّحۡ بِحَمۡدِ رَبِّكَ﴾ [دخپل رب تسبیح او ثنا وایه] په دې کښې مونځ هم داخل دې ﴿قَبۡلَ طُلُوۡعِ الشَّمۡسِ وَقَبۡلَ الۡغُرُوۡبِ﴾ [دنمر ختونه وړاند] مثلا دسحرمونځ [او] ددې [دپریوتو نه وړاند] مثلا دماسپخین اومازیګر ﴿وَمِنَ الَّیۡلِ فَسَبِّحۡهُ وَاَدۡبَارَ السُّجُوۡدِ﴾ [او دشپې هم ددۀ تسبیح] اوثنا [کوه] په دې کښې ماښام او ماسختن راغلل [او] د فرض [مونځونو نه پس هم] په دې کښې نفلونه وردونه راغلل مطلب داشو چه دالله تعالی په ذکر او فکر کښې اوسیږه چه ددوی دکفر خبرو ته دې خیال نه ځی.

## معارف او مسائل

﴿فَنَقَّبُوۡا فِی الۡبِلَادِ ؕ هَلۡ مِنۡ مَّحِیۡصٍ﴾ ﴿نَقَّبُوۡا﴾ دتنقیب نه مشتق دې ،ددې اصلی معنی سورې کول اوشلول دی خو په محاوره کښې دلرې لرې ملکونو او علاقو سفرونه کولو کښې استعمالیږی [قاموس] (۱).

د مَحِیۡصٍ د پناه ځائې ته وئیلې شی ، د آیت مبارك معنی دا شوه چې الله ﷻ تاسو نه ړومبی ځومره ځومره قومونه اوجماعتونه هلاك کړی دی چې په قوت او طاق کښې ستاسو نه زیات وو او چې په مختلفو ملکونو او علاقو کښې به تجارتونو وغیره دپاره ګرځیدل ، خو اوګورئې چې په انجام کښې ورته مرګ راغلو او هلاك شو. د زمکې څه توتې یا مکان دوئ ته مرګ نه پناه ورنکړې شوه.

**دعلم حاصلولو دوه طریقې:** ﴿لِمَنۡ کَانَ لَهٗ قَلۡبٌ﴾ ابن عباس رضي الله عنه دلته د قلب نه مراد عقل اخستې دې ولې چې د عقل کفر زړۀ دې ، ځینې مفسرینو دلته د قلب نه مراد حیات یعنی ژوند اخستې دې ولې چې د ژوند اداره هم په زړه باندې ده. په دې بنا د آیت مبارك معنی دا شوه چې د قرآن عظیم الشان په دې سورة کښې چې څه بیان شوی دی په دې سره د نصیحت او عبرت فائده چاته رسیدې شی چې په کښې عقل یا ژوند وی ، بې عقله مړی ته ترې څه فائده رسیږی ؟

﴿اَوۡ اَلۡقَی السَّمۡعَ وَهُوَ شَهِیۡدٌ﴾ القاء سمع د چا خبرې ته د غوږ ایښودو معنی ورکوی ، شهید د حاضر معنی ورکوی ، معنی دا شوه چې ددې آیتونو فائده دوؤ کسانو ته رسی یو هغه چې پخپله عقل لری ، پخپل عقل سره ددې ټولو مضمونونو تصدیق کوی یا بیا هغه خلق چې د الله ﷻ آیتونه په غوږ ایخودو سره داشان آؤری چې پخپله هم حاضر وی ، داسې نه چې غوږونه ئې آؤری او زړه ئې حاضر نه وی بلکه غافله وی.

تفسیر مظهری کښې فرمائې چې ړومبی قسم د امت کاملان دی او دویم قسم دهغوئ تابعدران اومخلصان مریدان دی چې دهغوئ په اعتقاد سره ددین خبرې منی (۲).

﴿وَسَبِّحۡ بِحَمۡدِ رَبِّكَ قَبۡلَ طُلُوۡعِ الشَّمۡسِ وَقَبۡلَ الۡغُرُوۡبِ﴾ سَبِّحۡ د تسبیح نه مشتق دې ، ددې حقیقی معنی د الله ﷻ تسبیح یعنی پاکی بیانول دی ، زبانی تسبیح او د مونځ عبادت دواړو ته تسبیح وئیلې شی ، ځکه ځینې حضراتو اوفرمائیل چې د نمر ختلو نه ړومبې دتسبیح لوستلو نه مراد دصبا مونځ

(۱) المحیط فی اللغة [ج: ۱ ص:٤٨٥] مادة نقب
(۲) تفسیر المظهري [ج:۹ص:۷۵]

ادا کول دي او د نمر د ډوبيدو نه وړاندې د مازيګر مونځ کول مراد دی. جرير بن عبد الله ﷺ نه روايت دې چې نبی کريم ﷺ د يو اوږد حديث پاك په ترځ کښې اوفرمائيل چې:

﴿ان استطعتم ان لاتغلبوا على صلوة قبل طلوع الشمس وقبل غروبها يعنى العصر والفجر ثم قرء جرير ﷺ و سبح بحمد ربك قبل طلوع الشمس وقبل غروبها﴾ کوشش کوه چې ستا نه د نمر خاته او نمر پريوانه مونځونه قضا نه نشي يعنی د سحر مونځ او د مازيګر مونځ، او په دې باندې يې د استدلال په طور دا مذکوره آيت مبارك تلاوت کړو[بخاری ومسلم، خو لفظ ئې د مسلم دي][1].

او د آيت مبارك په مفهوم کښې هغه عام تسبيحات هم داخل دی د کومو د لوستلو شوق چې د صبا او بيګاه په وخت کښې په صحيح احاديثو کښې پيدا کړې شوې دې. د صحيح بخاری او مسلم په حواله د ابی هريره ﷺ په روايت يو حديث پاك کښې نبی کريم ﷺ اوفرمائيله چې:

څوك چې دصبا اومابنام په وخت سل سل ځله سبحان الله لولي د قيامت په ورځ به دهغه نه بل څوك زيات غوره عمل راؤنه ړی، سوا دهغه چا نه چې هغه هم دغه هومره تسبيح زيات تر لولي[2].

او د صحيح بخاری او مسلم په حواله د ابی هريره ﷺ په روايت يو حديث پاك کښې نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې څوك په ورځ کښې سل ځله سبحان الله وبحمده لولي نو د هغه ګناهونه به معاف کولې شی، اګر چې د سمندر د موجونونه هم زيات وی. [مظهری][3].

﴿وَاَدْبَارَ السُّجُوْدِ﴾ مجاهد ﷫ ددې تفسير کښې اوفرمائيل چې د سجود نه مراد فرض مونځونه دی او: ﴿وَاَدْبَارَ السُّجُوْدِ﴾ نه مراد هغه تسبيحات لوستل دی چې فضيلت ئې د هر مونځ نه پس په مرفوع حديث کښې راغلی دی. د ابی هريره ﷺ نه روايت دې چې نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې: څوك چې د فرض مونځ نه پس درې ديرش [۳۳] ځله سبحان الله، ديرې ديرش [۳۳] ځله الحمد لله او درې ديرش [۳۳] ځله الله اکبر او يو ځل ﴿لااله الا الله وحده لاشريك له له الملك وله الحمد وهو على كل شئ قدير﴾ لولي نو د هغوئ خطاګانې به معاف کړې شی، اګر چې هغه د درياب دځګو برابر وی. [بخاری ومسلم][4].

او د ﴿وَاَدْبَارَ السُّجُوْدِ﴾ نه مراد هغه سنتونه هم کيديشی چې د فرض مونځونو نه پس په صحيح احاديثو کښې راغلی دی. [مظهری][5].

| يَوْمَ | وَاسْتَمِعْ | |
|---|---|---|
| په کومه ورځ | او واوره | |
| او واوره، په کومه ورځ ............ | | |

1) صحيح البخاري كتاب المواقيت الصلاة ،باب فضل صلاة العصر [ج:١ص:٧٨]و صحيح مسلم كتاب المساجد ومواضع الصلاة ، باب فضل صلاة الصبح والعصر [ج:١ص:٢٢٧]

2) صحيح مسلم كتاب الذكر والدعاء ، باب فضل التهليل والتسبيح والدعاء(بالزيادة)[ج:٢ص:٣٤٤]

3) تفسير المظهري[ج:٩ص:٧٧٨] و صحيح مسلم كتاب الذكر والدعاء ، باب فضل التهليل والتسبيح والدعاء [ج:٢ص:٣٤٤]

4) صحيح مسلم كتاب المساجد ومواضع الصلاة ، باب فضل استحباب الذكر بعد الصلاة [ج:١ص:٢١٨]

5) تفسير المظهري[ج:٩ص:٧٦]

يُنَادِ الْمُنَادِ مِنْ مَّكَانٍ قَرِيبٍ ۝۴۱ يَوْمَ يَسْمَعُونَ

چي به آواز كوي آواز كونكي | دخائي نزدي نه | په كومه ورځ | چي به واوري

چي آواز كونكي د نزدي نه آواز اوكړي | .................. په كومه ورځ چي به دوئ ټول دغه

الصَّيْحَةَ بِالْحَقِّ ۚ ذَٰلِكَ يَوْمُ الْخُرُوجِ ۝۴۲ إِنَّا نَحْنُ نُحْيِي

دا خلق چغه دحشر | په حقه سره | هغه به ورځ وي دراتلو دزمكي نه | بيشكه مونږه | ژوندي كول كوو

چغه په يقين سره واروي | هم دغه [دقبرونو نه] د راوتلو ورځ ده | بيشكه هم مونږ ټول ژوندي

وَنُمِيتُ وَإِلَيْنَا الْمَصِيرُ ۝۴۳ يَوْمَ تَشَقَّقُ الْأَرْضُ عَنْهُمْ

او مړه كول كوو | او خاص مونږ ته | واپس راتلل دي | په هغه ورځ | چي اوچوي زمكه | ددوئ نه

كوو او مړه كوو | اوهر څه به مونږ ته واپس راګرځي | په كومه ورځ چي به زمكه په دوئ باندي اوچوي

سِرَاعًا ۚ ذَٰلِكَ حَشْرٌ عَلَيْنَا يَسِيرٌ ۝۴۴ نَحْنُ أَعْلَمُ

او دوئ رازغلي په منډه منډه | دا راغونډول دخلقو | په مونږ باندي | آسان دي | مونږه ښه پوهيږو

اودوئ به په منډه راځي | دغه راغونډول مونږ ته ډير آسان دي | مونږته ددوئ خبري ډيري

بِمَا يَقُولُونَ ۖ وَمَا أَنْتَ عَلَيْهِمْ بِجَبَّارٍ ۖ فَذَكِّرْ

په هغه خبرو | چي دوئ ئي وائي | اونه ئي ته | په دوئ باندي | زور كونكي | پس نصيحت كوه |

ښه معلومي دي | اوته په دوئ باندي څه جابر [حاكم] خو مقرر نه يئ | نو ددي قران په ذريعه

بِالْقُرْآنِ مَنْ يَخَافُ وَعِيدِ ۝۴۵

په قرآن سره | هغه چاته | چي يريږي | دخبردارئ زما نه |

هغه چاته نصيحت كوه | چي زما د عذاب نه ويريږي

## آسان ترجمه قرآن

اولږه په توجه سره واوره! په كومه ورځ به چه يو آواز كونكي د نزدي ځائي نه آواز اوكړي په هغه ورځ به دوي په رښتيا سره هغه آواز واوري هغه به د قبرونو نه د راوتلو ورځ وي. يقين اوكړه، هم مونږ يو، چه ژوندن هم وركوو، او مرګ هم، او آخر كښې د ټولو واپس كيدل مونږ ته دي. په هغه ورځ چه زمكه به اوچوي، او دوي لره به داسې رابهر كړي، چه دوي به په تلوار سره راځي دغه شان ټولو لره جمع كول زمونږ دپاره ډير آسان دي. څه چه دا خلق وائي، مونږ ته ښه معلوم دي، او (اے پيغمبره) ته په دوي باندې زبردستي كونكي نه ئي لهٰذا د قرآن مجيد په ذريعې سره هر هغه سړي ته نصيحت كوه، چه زما د وعيد نه ويريږي،

## خلاصه تفسير

﴿وَاسْتَمِعْ﴾[او] مخاطبه ته دا راتلونكي خبره په توجه سره [واوره] چه ﴿يَوْمَ يُنَادِ الْمُنَادِ مِنْ مَّكَانٍ قَرِيبٍ﴾[په كومه ورځ يو اواز كوونكي] فرښته يعنى اسرافيل ﷺ په ذريعه دشپيلۍ مړولره د قبرونو نه دپورته كولو دپاره [دنزدي نه اواز وكړي] دنزدي مطلب دادي چه دغه اواز به ټولو ته

بې تکلفه رسیږی داسې چه ګویا داخوانه اوازکوی اولکه چه دلرې اواز چاته رسیږی او چاته نه رسیږی داسې به نه وی ﴿يَوْمَ يَسْمَعُونَ الصَّيْحَةَ بِالْحَقِّ﴾ [په کومه ورځ چه هغې چغې لره په یقین سره ټول واوری ﴿ذَٰلِكَ يَوْمُ الْخُرُوجِ﴾ دا ورځ به وی] دقبرونو نه [د راوتلو ﴿إِنَّا نَحْنُ نُحْيِي وَنُمِيتُ﴾ مونږ یو] اوس هم [ژوندی کوونکی اوهم مونږ یو مړه کوونکی ﴿وَإِلَيْنَا الْمَصِيرُ﴾ او زمونږ طرف ته بیاواپسی ده] په دې کښې دمړو په ژوندی کولو باند قدرت طرف ته اشاره ده ﴿يَوْمَ تَشَقَّقُ الْأَرْضُ عَنْهُمْ سِرَاعًا﴾ [په کومه ورځ چه مزکه په دوی] مړو [باندوسپړدې شی هرکله چه به هغوی] راوځی میدان دقیامت طرف ته [منډې وهونکی وی ﴿ذَٰلِكَ حَشْرٌ عَلَيْنَا يَسِيرٌ﴾ دا] جمع کول [زمونږ په نزد ډیر اسان جمع کول دی] غرض بیا او بیا پرله پسې دقیامت امکان او وقوع ټول ثابت شو مګر بیاهم چه کوم خلق نه منی نو ته غم مه کوه ځکه چه ﴿نَحْنُ أَعْلَمُ بِمَا يَقُولُونَ﴾ [څه چه داخلق] دقیامت وغیره په باره کښې [وائی مونږ ئې ښه پیژنو] مونږ به ورسره په خپله پوه شو ﴿وَمَا أَنتَ عَلَيْهِم بِجَبَّارٍ﴾ [اوته په هغوی] دالله تعالی دطرف نه [جبر کوونکی نه یې] لیږلې شوې بلکه صرف مبلغ او ویرونکې یې هرکله چه خبره داده ﴿فَذَكِّرْ بِالْقُرْآنِ مَن يَخَافُ وَعِيدِ﴾ [نوته دقرآن په ذریعه سره] په عام نصیحت سره تېولو لره په خاص نفعمند نصیحت سره صرف [داسې سړی ته نصیحت کوه کوم چه زما دوعید نه ویریږی] ددې مفعول د تقید نه اشاره شوه چه ته اګر چه نصیحت او تبلیغ عام کوې لکه چه لیدې شی لیکن بیا هم من یخاف وعید [یعنی دالله تعالی د عذاب نه ویریدونکی] خنې خنې وی پس دا ثابته شوه چه داستا په اختیار کښې نه ده نو هرکله چه ستا په اختیار کښې نه ده بیا دبې اختیاره خبرې فکر څه دې؟

## معارف او مسائل

﴿يَوْمَ يُنَادِ الْمُنَادِ مِن مَّكَانٍ قَرِيبٍ﴾ [یعنی په کومه ورځ به چې یو آواز کوؤنکې فرښته د نزدې نه آوازکوی] ابن عساکر رحمه الله د زید بن جابر شافعی رحمه الله نه روایت کړې دې چې دا فرښته به اسرافیل علیه السلام وی چې د بیت المقدس په صخره یعنی کاڼړی به اودریږی او ټول مړی به مخاطب کوی چې:

ائې ورستو رژیدلوهډوکو، او پوتې پوتې شوؤ خرمنو، اوخوریدونکو ویښتو، واورئ، تاسو ته الله جل جلاله دا حکم درکوی چې حساب دپاره جمع شئ [مظهری][1].

دا دقیامت د دوئمې شپیلئ پوك وهلو بیان دې چې ورسیره بهٔ دوباره ټول جهان ژوندې کولې شی. اودمکان قریب نه مراد دادې چې دغه وخت به ددغې فرښتې آواز د نزدې اولرې خلقو ته په دې شان رارسیږی چې ګویا کښې دنزدې نه ورته آواز کیږی. عکرمه رحمه الله اوفرمائیل چې دا آوازبه داسې آوریدې شی لکه چې په غوږ کښې ورته آواز کولې شی، او ځینې حضراتو فرمائیلی دی چې د مکان قریب نه مراد صخره بیت المقدس ده ولې چې دا د زمکې مینځ دې، د هر طرفنه ورته مزل برابر دې. [قرطبی][2].

﴿يَوْمَ تَشَقَّقُ الْأَرْضُ عَنْهُمْ سِرَاعًا﴾ [یعنی کله چې به زمکه څیری شی ټول مړی به راوځی اومنډې به وهی] حدیث پاك نه معلومیږی چې دا منډې وهل به شام ملك طرفته وی چرته چې د بیت

[1] تفسیر المظهري [ج:۹ص:۷۷]
[2] تفسیر القرطبي [ ج:۱۷ص:۲۷]

المقدس د صخرې نه اسرافیل ﷺ آواز کوی. جامع ترمذی کښې د معاویه بن حیده ﷺ نه روایت دې چې نبی کریم ﷺ پخپل لاس مبارك سره شام ملك طرف ته اشاره اوفرمائیله او وې فرمائیل چې: ﴿من هٰهُنَا الی هٰهُنَا تحشرون رکباناً ومشاةً وتجرون علی وجوهکم یوم القیامة﴾ ددې ځائې نه هغې طرفته یعنی شام ته به تاسو به پرمخې دقیامت په ورځ دې میدان ته راوستې شی. [الحدیث، قرطبی] (۱)

﴿فَذَكِّرْ بِالْقُرْاٰنِ مَنْ يَّخَافُ وَعِيْدِ﴾ [یعنی تاسو نصیحت فرمایئ په قرآن عظیم الشان سره هغه چاته چې زما د وعید نه ویرېږی].

مطلب دادې چې ستاسو ﷺ تبلیغ به اګر چې عام وی ټول خلق به دهغې مخاطب او مکلف وی خو اثر به ئې هغه څوك قبلوی چې دالله ﷻ دعذاب او وعید نه ویرېږی.

قتاده ﷫ به چې دا آیت مبارك اولوستلو نو داسې دعا به ئې کوله چې:

﴿اللهم اجعلنا ممن یخاف وعیدك ویرجوك موعودك یا بار یا رحیم﴾

ائې الله ﷻ ! مونږ په هغې کسانو کښې شامل کړې چې ستا د عذاب د وعید نه ویرېږی اوستا د وعدې امیدوار دی، ائې وعده پوره کوؤنکیه، ائې د رحمت خاونده(۲).

سورة ق بعون الله سبحانه فی سنة ایام من ثانی عشر ربیع الاول الی سابع عشر ربیع الاول یوم الخمیس ولله الحمد وهو المستعان فی تکمیل الباقی وماذلك

| ایاتونه | | | رکوع ګانې |
|---|---|---|---|
| | | سورة الذاريات مكية وهي ستون اية وثلاث ركوعات | |
| | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ۶۰ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډیرمهربان　زیات رحم کونکې دې | ۳ |

| وَالذّٰرِيٰتِ | ذَرْوًا ۙ | فَالْحٰمِلٰتِ | وِقْرًا ۙ |
|---|---|---|---|
| قسم دې په دوړو اوچتونکو هوا ګانو باندې | په اوچتولوسره | بیا پورته کونکې | دوریځو ډکې داوبو نه |
| په دوړو اوچتونکو سیلیو باندې قسم دې | | بیا په باراوچتوونکو وریځو باندې قسم دې | |

| فَالْجٰرِيٰتِ | يُسْرًا ۙ | فَالْمُقَسِّمٰتِ اَمْرًا ۙ | اِنَّمَا | تُوْعَدُوْنَ |
|---|---|---|---|---|
| بیا چلیدونکې په مزه مزه | | بیا تقسیمونکې دلوئ کار | بیشکه هغه څیز | چې تاسو ترې یرولې کیږئ |
| بیا په آزاد چلیدونکو بیړو | | بیا د څیزونو په تقسیموونکو فرښتو | | چې تاسو سره کوم لوظ کیږی |

| لَصَادِقٌ ۙ | وَّاِنَّ الدِّيْنَ | لَوَاقِعٌ ۙ | وَالسَّمَآءِ |
|---|---|---|---|
| هغه رښتیا دې | او بیشکه بدلې دعملونو | خامخا واقع کیدونکې دی | قسم دې په آسمان |
| هغه بالکل رښتیادې | اوبیشکه دا سزا او جزا راتلونکې ده | او په آسمان باندې قسم دې | چې |

(۱) تفسیر القرطبي [ ج:۱۷ص:۲۷] و جامع الترمذي(بالإختصار)، ابواب التفسیر باب ومن سورة بنی اسرائیل[ج:۲ ص:۱۴۵]

(۲) تفسیر القرطبي [ ج:۱۷ص:۲۹]

ذَاتِ الْحُبُكِ ۝٧ | اِنَّكُمْ | لَفِيْ قَوْلٍ مُّخْتَلِفٍ ۝٨ | يُّؤْفَكُ

مختلفو شکلونو والا باندې | چې بیشکه تاسو | په خبرو مختلفو کښې یئ | اړولې کیدې شي

لارې په کښې جوړې دي | چې تاسو د اختلافي خبرو په چکر کښې پریوتي یئ | ددې حقیقت

عَنْهُ | مَنْ | اُفِكَ ۝٩ | قُتِلَ الْخَرّٰصُوْنَ ۝١٠ | الَّذِيْنَ | هُمْ

دهغې نه | هغه څوک | چې اړولې شوې دې | تباه شو قیاس لګونکي خلق | هغه خلق | چې هغوئ

نه هم هغه مخ اړوي چې [د ازل نه] محروم ساتلې شوې دې | هلاک دې شي بې دلیله خبرې کونکي چې

فِيْ غَمْرَةٍ | سَاهُوْنَ ۝١١ | يَسْـَٔلُوْنَ | اَيَّانَ | يَوْمُ الدِّيْنِ ۝١٢

په غفلت کښې | بې خبره دي | تپوس کوي هغوئ | چې کله به وي | ورځ دبدلې |

[د جهالت] په غفلت کښې پراته دي | هر څه ترې هیر دي | دا تپوس کوي چې د بدلې ورځ به کله وي

يَوْمَ | هُمْ | عَلَى النَّارِ | يُفْتَنُوْنَ ۝١٣ | ذُوْقُوْا | فِتْنَتَكُمْ

په هغه ورځ به وي | چې دوئ به | په وور باندې | سوزولې کیږي | اوڅکئ مزه | دفتنې خپلې

دا به هغه ورځ وي | چې دوئ به په اور باندې سوزولې شي | [چې اوس] د خپلې سزا خوند واخلئ

هٰذَا الَّذِيْ | كُنْتُمْ | بِهٖ | تَسْتَعْجِلُوْنَ ۝١٤ | اِنَّ الْمُتَّقِيْنَ

دا هغه څیز دې | چې وئ تاسو | په هغې سره | چې تلوار به مو کوله | بیشکه پرهیزګاران خلق به

همدا دې هغه [عذاب] دکوم راتلو ته چې ستاسو تلوار ده | .................بیشکه پرهیزګار خلق

فِيْ جَنّٰتٍ | وَّعُيُوْنٍ ۝١٥ | اٰخِذِيْنَ | مَآ اٰتٰهُمْ

په باغونو کښې وي | او په چینو کښې به وي | اغستونکې به وي | هغه چې ورکوي هغوئ له

به په باغونو او چینو کښې وي | ..........څه چې ددوئ رب دوئ ته ورکوي | هغه به اخلي

رَبُّهُمْ | اِنَّهُمْ | كَانُوْا | قَبْلَ ذٰلِكَ | مُحْسِنِيْنَ ۝١٦ | كَانُوْا

رب دهغوئ | بیشکه هغوئ | وو | مخکښې ددې نه | نیکي کونکي | وو به هغوئ |

..........بیشکه دا خلق د دې نه وړاندې نیکي کونکي وو | .......................... دوئ به

قَلِيْلًا مِّنَ الَّيْلِ | مَا يَهْجَعُوْنَ ۝١٧ | وَبِالْاَسْحَارِ

ډیر لږ دشپې نه | هغه حصه چې اوده کیدل به پکښې هغوئ | او دشپې په روستو وختونو کښې

دشپې ډیر کم اوده کیدل | او د سحر په وخت کښې به ئې

هُمْ | يَسْتَغْفِرُوْنَ ۝١٨ | وَفِيْٓ اَمْوَالِهِمْ | حَقٌّ | لِّلسَّآئِلِ

به هغوئ | معافیاني غوښتلې | او په مالونو دهغوئ کښې | حق وو | دپاره دسوالګرو

[دخپل رب نه] بخښنه غوښتله | ..........او د هغوئ په مالونو کښې دسوالګرو او دنه غوښتونکو

وَالْمَحْرُوْمِ ۝١٩ | وَفِي الْاَرْضِ | اٰيٰتٌ | لِّلْمُوْقِنِيْنَ ۝٢٠

او دمحرومانو | او په زمکه کښې | ډیرې نښې دي | دپاره دیقین کونکو |

اغریبانانو] برخه مقرروه | او په دې زمکه کښې دیقین کونکو دپاره ډیر نښې موجود دي

| وَفِيٓ اَنْفُسِكُمْ ۭ | اَفَلَا تُبْصِرُوْنَ ⓶ | وَفِي السَّمَاۗءِ |
|---|---|---|
| او په نفسونو ستاسو کښې هم نښې دی | آیا پس نه وینئ تاسو | او په آسمان کښې دي |
| اوستاسو په خپلو ځانونو کښې هم | نو ایاتاسود عبرت په نظرنه گورئ | او پورته په اسمان |
| رِزْقُكُمْ | وَمَا تُوْعَدُوْنَ ⓶ | فَوَرَبِّ السَّمَاۗءِ |
| رزق ستاسو | او هغه څیز چې وعده ئې کیږی ستاسو سره | نو قسم دې په رب داسمانونو |
| کښې ستاسو روزی ده | او هغه هم چې تاسو سره ئې وعده کولې شی | ..........نو د اسمان او |

| وَالْاَرْضِ | اِنَّهٗ لَحَقٌّ | مِّثْلَ | مَآ اَنَّكُمْ | تَنْطِقُوْنَ ⓶ |
|---|---|---|---|---|
| او دزمکې | چې بیشکه دا خبره حقه ده | په مثال دهغې | لکه څنگه چې تاسو | خبرئ کوئ |
| زمکې په رب مې دې قسم وی | چې څنګه ستاسو وینا برحق ده | دغه شان [دجزاد ورځې راتلل] هم حق دی | | |

## آسان ترجمه قرآن

قسم دې په هغه (هواګانو) باندې چه دوړو لره الوځوی په زوستلو سره. بیا په هغو چه (د وریځو) بار اوچتوی بیا په هغو چه آسانئ سره روانې وی. بیا په هغو چه څیزونه تقسیموی چه تاسو سره کومه وعده کولې شی، هغه یقینی طریقې سره رشتونې ده. او د عملونو بدله به خامخا ملاویږی. قسم دې په لارو والا آسمان باندې چه تاسو په مختلفو خبرو کښې پراته یئ ددې (آخرت د حقیقت) نه هغه څوک مخ اړوی، چه د حق نه بالکل اړولې شوې دې تباه دې کړی الله تعالیٰ هغه چالره چه (د عقیدې په معامله کښې) اټکلې خبرې کونکې دی. په غفلت کښې داسې ډوب دی چه هر څه ئې هیر کړې دی. تپوس کوی چه: د جزا او سزا ورځ به کله وی هغه ورځ به وی. چه کله به دوی په اور باندې سوزولې شی. چه او څکئ مزه د خپل شرارت، هم دا هغه څیز دې، چه دې باره کښې به تاسو مطالبه کوله چه زر دې راشی متقیان خلق به بے شکه په باغونو او چینو کښې داسې اوسیږی. چه د دوی پروردګار دوی ته څه ورکوی، هغې لره به وصولوی، دا خلق ددې نه مخکښې نیک عمل کونکې وو. دوی به د شپې په وخت کښې لږ اوده کیدل، او د پیشمنی په وخت کښې به ئې استغفار کولو او ددوی په مال کښې به د سوالګرو او محرومو خلقو دپاره (باقاعده) حق وو او د هغې خلقو دپاره په زمکه کښې ډیرې نښې دی چه یقین کونکې دی. او خپله ستاسو په وجود کښې هم، آیا بیا هم تاسو نه وینئ. او هم په آسمان کښې ستاسو رزق هم دې، او هغه څیز هم، چه تاسو سره ئې وعده کولې شی لهٰذا د آسمان او زمکې په پروردګار قسم ا دا خبره هم دغه شان رشتونې ده، لکه دا خبره چه تاسو خبرې کوئ.

## خلاصه تفسیر

﴿وَالذّٰرِيٰتِ ذَرْوًا ۙ﴾ [قسم دې په هغو هواګانو چه ګردوغبار وغیره الوزوی ﴿فَالْحٰمِلٰتِ وِقْرًا ۙ﴾ بیا په هغو وریځو چه بوج] یعنی باران لره [پورته کوی ﴿فَالْجٰرِيٰتِ يُسْرًا ۙ﴾ بیا د هغو کشتو چه په نرمئ سره چلیږی ﴿فَالْمُقَسِّمٰتِ اَمْرًا ۙ﴾ بیا د هغو فرښتو کومې چه] د حکم مطابق دمزکې په مخلوق [څیزونه تقسیموی] مثلا کوم ځائ چه دځومره باران حکم وی کومه چه ماده ده درزق هلته د وریځو په ذریعه دومره قدرې رسوی دغه شان د حدیث موافق د مور په رحم کښې دبچی صورت د مذکراو مؤنث تپوس وکړی جوړوی اوسکینه او رعب هم تقسیموی وړاند د دغو

قسمونو جواب دي چه ﴿إِنَّمَا تُوعَدُونَ لَصَادِقٌ﴾ [تاسو سره چه دکوم] قیامت [وعده کولې شی هغه بالکل ربنتونې دي ﴿وَإِنَّ الدِّينَ لَوَاقِعٌ﴾ او] داعمالو [جزا] او سزا [خامخا کیدونکې ده] په دې قسمونو کښې اشاره ده استدلال طرف ته یعنی داټول تصرفات عجیبه د قدرت الهی نه کیدل د لیل دې دقدرت د د عظمت بیاداسې عظیم القدرت ذات ته دقیامت واقع کول څه مشکل دې اوتفسیر ددې کلمو کومې چه په ایتونو کښې ذکر دی قسم پرې خوړلې شوې دې په درمنثور([1]) کښې مرفوعا داسې نقل دی کوم چه وړاندې راغی او تخصیص ددې څیزونو شاید ځکه وی چه په دې کښې اشاره شوه د مخلوق مختلفو اقسامو ته چنانچه ملائك داسمانونو نه دی او هواګانې او کشتئ د مزکې نه او وریځ دکائناتود فضاء نه یعنی د فضائی مخلوقاتو نه اودمزکې نه دوه څیزونه په کومو کښې چه یوپه سترګو په نظر راځی بل په نظر نه راځی شاید ځکه راغلی وی چه دقیامت متعلق په یو مضمون په خپله په اسمان قسم دې لکه چه بره په اسمانی څیزونو وو یعنی ﴿وَالسَّمَاءِ ذَاتِ الْحُبُكِ﴾ [قسم دې په اسمان په کوم کښې چه] دفرښتو دتللو [لارې دی] لکه داقول د الله تعالی ولقد خلقنا فوقکم سبع طرائق([2]) وړاند جواب دقسم دې ﴿إِنَّكُمْ لَفِي قَوْلٍ مُّخْتَلِفٍ﴾ [چه تاسو] یعنی ټول [خلق] دقیامت په باره کښې [په مختلفو خبروکښې یئ] څوك ئې تصدیق کوی څوك ئې تکذیب کوی اولکه چه داقول دالله تعالی دې عن النبأ العظیم الذی هم فیه مختلفون([3]) لکه چه تفسیر ئې کړې دې قتاده رحمه الله او په درکښې دی په دې قول سره مصدق به مکذب او داسمان په قسم سره شایددې طرف ته اشاره وی چه جنت په اسمان کښې دې او په اسمان کښې لارې هم دی مګر کوم چه په حق کښې اختلاف کوی د هغه دپاره لار بندیږی او په دې اختلاف کوونکو کښې ﴿يُؤْفَكُ عَنْهُ مَنْ أُفِكَ﴾ ددې [وقوع دقیامت او دجزا داعتقاد] نه هغه واپس کیږی کومولره چه [بالکلیه د خیر او سعادت نه] واپس کیدل وی [لکه چه په حدیث کښې دی من حرمه فقد حرم الخیر کله رواه ابن ماجه]([4]) یعنی کوم سړې ددې نه چه محروم شو هغه د هرخیرنه محروم شو او داختلاف کوونکو دبل فریق یعنی د تصدیق کونکو حال ددې د مقابلې نه معلوم شو چې هغوئ د خیر او سعادت نه واپس شوی نه دی اوس وړاند ددې واپس کیدونکو مذمت دې چه ﴿قُتِلَ الْخَرَّاصُونَ﴾ [هلاك دشی بې سنده خبرې کوونکی] یعنی کوم چه دقیامت نه انکار کوی بغیر ددې نه چه د دوی سره ددې څه دلیل وی ﴿الَّذِينَ هُمْ فِي غَمْرَةٍ سَاهُونَ﴾ [کوم چه په جهالت کښې بې هوشه شوی دی] دبې هوشه کیدونه مراد اختیاری غفلت دې او دغه خلق په طور دمسخرو او د زرغوبنتو ﴿يَسْأَلُونَ أَيَّانَ يَوْمُ الدِّينِ﴾ [تپوس کوی چه ورځ د جزا به کله وی؟] وړاند جواب دې چه هغه به داسې ورځ وی ﴿يَوْمَ هُمْ عَلَى النَّارِ يُفْتَنُونَ﴾ [په کومه ورځ] چه [هغه خلق به په اور ګرمولې شی] او ورته به وئیلې شی چه ﴿ذُوقُوا فِتْنَتَكُمْ﴾ [د خپلې دې سزا مزه وڅکئ] ﴿هَٰذَا الَّذِي كُنتُم بِهِ تَسْتَعْجِلُونَ﴾ دادې دکوم چه تاسو جلدی کوله] داجواب د یومهم علی النار یفتنون په دې طرز دې لکه د چا مجرم دپاره چه دپانسئ

---

[1] الدرالمنثور تحت هذه الآية [ج:۹ ص:۲۹۶]
[2] ترجمه:- او مونږ ستاسو دپاسه اووۀ آسمانونه جوړ کړل.
[3] ترجمه:- ددې نه د لوې واقعې د حال تپوس کوی چې په هغې کښې دا خلقو اختلاف کوئ.
[4] سنن ابن ماجة، ابواب الصيام، باب ماجاء فی فضل شهر رمضان[ج:۱ ص:۱۱۸ ]

حکم وشي مگر دغه احمق سره ددليلونو دقائميدونه محض په دې وجه چه دا ته تاريخ نه وی ښودلې شوې درغژن کوی يې اووائي چه ښه نو هغه ورځ به کله راځي چونکه داسوال محض دکجروئ په بناء په دې وجه په ځاۍ دتاريخ ښودو په جواب کښې دا ونيل زيات مناسب وی چه هغه ورځ به هغه وخت راشي کله چه ته په پانسۍ زرند کړې شي ورانه دبل فريق يعنی مؤمنانو تصديق کوونکو دثواب ذکر دې چه ﴿إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي جَنَّتٍ وَعُيُونٍ ﴾ [بيشکه متقيان خلق به په جنتونو او چينو کښې وی] او ﴿اٰخِذِيْنَ مَآ اٰتٰهُمْ رَبُّهُمْ﴾ [د هغوی رب چه هغوی ته کوم ثواب [ورکړې وی هغوی به هغې لره] په خوشحالۍ خوشحالۍ [اخلی] او ولې به نه وی؟ ﴿إِنَّهُمْ كَانُوْا قَبْلَ ذٰلِكَ مُحْسِنِيْنَ ﴾ [هغه خلق ددې نه وړاندې] يعنی په دنيا کښې [نيکوکار وو] پس مطابق د وعدې هل جزآء الاحسان الا الاحسان[1] د دوی سره دامعامله وشوه وړاندې ددوی دنيکوکارۍ قدرې تفصيل څه دې چه ﴿كَانُوْا قَلِيْلًا مِّنَ الَّيْلِ مَا يَهْجَعُوْنَ ﴾ [هغه خلق] په فرائضو او واجباتو کښې ترقی وکړې او دنوافلو داسې التزام کوونکي وو چه [دشپې په ډيرکم او دا کيدل] يعنی زياته حصه دشپې به يې په عبادت کښې تيروله [او] باوجود ددې به يې خپل عبادت ته نه کتل بلکه ﴿وَبِالْاَسْحَارِ هُمْ يَسْتَغْفِرُوْنَ ﴾ [دشپې په اخر کښې] به يې خپل ځان په عبادت کښې کوتاهی کوونکې ګڼړلو [استغفار به يې کولو] دا خو په بدنی عبادت کښې د دوی حالت وو [او] دمالی عبادت يې دا حال وو چه ﴿وَفِيْٓ اَمْوَالِهِمْ حَقٌّ لِّلسَّآئِلِ وَالْمَحْرُوْمِ ﴾ [د هغوی په مالونو کښې دسوال کوونکی او غيرسوال کوونکی] د ټولو [حق وو] يعنی په داسې التزام سره به يې ورکولو لکه چه ددوی په ذمه د هغو څه حق وی مراد ددې نه غير زکوات دې داسې په درکښې دابن عباس رضي الله عنهما مجاهد او ابراهيم نه دی[2] او دامطلب نه دې چه دجنتونو او دچينو ملاويدل په نوافلو باندموقوف دی بلکه دلته د اوچتې درجې د خاوندانو ذکر فرمائيلې شوې دې [او] چونکه کفارو دقيامت د صحت نه انکار کولو په دې وجه وړاند ددې ددليل طرف ته اشاره ده چه ﴿وَفِي الْاَرْضِ اٰيٰتٌ لِّلْمُوْقِنِيْنَ ﴾ [ديقين کوونکو] د کوشش او طلب کوونکو [دپاره] د قيامت په ممکن او واقع کيدو] په مزکه [کائناتو] کښې ډيرنښې [او دليلونه] دی ﴿وَفِيْٓ اَنْفُسِكُمْ﴾ او په خپله ستاسو په ذات کښې هم] يعنی ستاسو ظاهری او باطنی مختلف احوال هم دليلونه دی دقيامت دممکن کيدو ځکه چه افاقی وانفسی کارونه په يقين سره دقدرت ماتحت دی او دذاتی قدرت نسبت دټولو ممکناتو سره يو شان دې اوهرکله چه دقيامت د ناممکن کيدو هيڅ دليل نشته نو قيامت هم دممکناتو نه دې پس داهم دالله تعالی په قدرت کښې دې او چونکه ددې دليلونو دلالت ډير واضح وو په دې وجه توبيخا فرمائی چه هرکله داسې دلائل موجود دی ﴿اَفَلَا تُبْصِرُوْنَ ﴾ [نو اياتاسو ته] مطلب بياهم [په نظر نه راځی او] پاتې شوتعين دوخت دوقوع چه په عدم سره يې استدلال په عدم وقوع کولو پس د هغې نسبت دادې چه ﴿وَفِي السَّمَآءِ رِزْقُكُمْ وَمَا تُوْعَدُوْنَ ﴾ [ستاسو رزق اودکوم] قيامت متعلق [چه تاسو سره وعده کولې شی] ددې [دټولو] معين وخت [په اسمان کښې] چه کوم لوح محفوظ دې په هغې کښې ليک [دی] مزکې ته ددې يقينی علم په څه مصلحت سره نه دې نازل کړې شوې چنانچه په وينز

---

[1] ترجمه:- آيا د غايت اطاعت بدله سوا د غايت اطاعت نه څه بل څه کيديشی.

[2] الدرالمنثور تحت هذه الآية [ج:۹ ص:۲۹۷]

ل الغيث([1]) کښې هم نه دې ښودلې شوې او مشاهده هم ده چه يقيني تعين ئې هيڅ چا ته معلوم نه دې ليکن هرکله چه سره ددې چه دوخت دتعين دعلم نه کيدو باوجود درزق وجود يقيني دې بيا په دې عدم تعين دتاريخ سره دقيامت عدم والې څنګ لازميږي او دداسې استدلال طرف ته داشارې کولو دپاره د ما توعدون سره رزقکم زيات کړو وړاندې په دې تفريع فرمائي چه هرکله دنفي هيڅ دليل نشته او اثبات دليل شته ﴿فَوَرَبِّ السَّمَآءِ وَالْأَرْضِ﴾ [نو قسم دې داسمانونو اومزکې په پروردګار ﴿إِنَّهُ لَحَقٌّ﴾ چه هغه] ورځ د جزا [برحق ده] او داسې يقيني ده ﴿مِّثْلَ مَآ أَنَّكُمْ تَنطِقُونَ﴾ [لکه چه تاسو خبرې کوئ] چرې په دغو کښې خو شك نه وي دغه شان دې لره هم يقيني وګڼړئ.

## معارف او مسائل

سورة ذاريات کښې هم ړومبی سورة قاف پشان زيات مضمونونه دآخرت اوقيامت او په دې کښې د مړو ژوندی کيدو، دحساب، کتاب او ثواب او عذاب باره کښې دی. ړومبو څو آيتونو کښې الله ﷻ په څو څيزونو باندې قسم خوړلو سره اوفرمائيل چې د قيامت باره کښې د کومو څيزونو چې وعده کړې شوې ده، هغه رښتينې وعده ده، الله ﷻ د څلورو څيزونو قسمونه خوړلی دی:

① ﴿وَالذَّارِيَاتِ ذَرْوًا﴾ ② ﴿فَالْحَامِلَاتِ وِقْرًا﴾ ③ ﴿فَالْجَارِيَاتِ يُسْرًا﴾ ④ ﴿فَالْمُقَسِّمَاتِ أَمْرًا﴾

يو مرفوع حديث پاك کښې دی چې ابن کثير ورته ضعيف وئيلی دی او فاروق اعظم رضي الله عنه اوعلی رضي الله عنه نه په يو موقوف حديث کښې ددې څلورو څيزونو معنې او مفهوم دا خودلې دې چې ذاريات نه مراد هغه هواګانې دی چې ورسره ګرد وی او د حاملات وقرا لفظی معنې پيټې اوچتونکې دی، دې نه مراد هغه وريځې دی چې دباران پيټې ئې راپورته کړی وی. جاريات يسرا نه مراد کشتئ دی چې په اوبو کښې کښې په آسانه چليږی. او مقسمات امرا نه مراد هغه فرښتې دی چې دالله ﷻ د طرفنه په عام مخلوقات کښې روزی، د باران اوبه او تکليف او راحت مختلف قسمونه د الله ﷻ د تقدير مطابق تقسيموی، تفسير ابن کثير، قرطبی، او درمنثور کښې د اموقوف اومرفوع روايتونه منقول دی([2]).

﴿وَالسَّمَآءِ ذَاتِ الْحُبُكِ ۝ إِنَّكُمْ لَفِي قَوْلٍ مُّخْتَلِفٍ﴾ حبك حبيکه جمع ده د کپړې په جوړښت ئې راغلې کړښې ته حبك وائی. هر کله چې هغه د لارې او سړك پشان وی، څکه لارو ته هم حبك وئيلې شی. ډيرو مفسرينو حضراتو ترې دلته هم دا معنې مراد اخستې دی. يعنی په هغه آسمان مې قسم دې چې لارې په کښې دی، لارو نه مراد هغه لارې دی چې فرښتې پرې ځی راځی. او هغه لارې وغيره ترې هم مراد دی چې ستوری او سيارې په کښې ګرځی اوګردشونه کوی کومې چې په آسمان کښې خلقو ته ښکاری. او هرکله چې په کپړو کښې کرښې د کپړې ښائست هم وی. په دې وجه ځينې حضراتو دلته د حبك معنې زينت او ښکلا اخستې ده. چې داقسم کوم مضمون دپاره راغلې دې هغه په ﴿إِنَّكُمْ لَفِي قَوْلٍ مُّخْتَلِفٍ﴾ کښې بيان شوې دی. په ظاهره ددې مخاطب دمکې مشرکان دی چې درسول کريم ﷺ باره کښې ئې مختلفې او خلاف

[1] ترجمه:- او هم هغه ذات باران ورروی.
[2] الدرالمنثور تحت هذه الآية [ج:۹ ص:۲۹۶] و تفسير القرطبي [ ج:۱۷ص:۲۹، ۳۰]

خبرې کولې ، کله به ئې ورته مجنون کله جادوگر ، کله شاعر وئيلو او داسې نور غلط او عبث خطابونه به ئې ورکول. او بل احتمال ئې دا هم دې چې ددې مخاطب د عام امت خلق ټول ، مسلمانان او کافران وی ، اود قول مختلف نه مراد دا وی چې مسلمانان په رسول کريم ﷺ باندې ايمان راوړی او تصديق ئې کوی ، او کافران وغيره ترې انکار کوی او مخالفت ئې کوی . [مظهری]([1]).

﴿يُؤْفَكُ عَنْهُ مَنْ أُفِكَ﴾ د افك لفظی معنی آوړيدل او د عنه په ضمير کښې دوه احتمالونه دی ، د دواړو معنې جدا جدا دی ، يو احتمال خو دادې چې د اضمير قرآن عظيم الشان او نبی کريم ﷺ ته راجع دې. په دې بنا ئې معنی دا شوه چې قرآن عظيم الشان او نبی کريم ﷺ نه هم هغه بد نصيبه آوړی چې تقديری بد نصيبه وی . او بل احتمال ئې دادې چې دا ضمير قول مختلف تـه راجع دې . معنی ئې داده چې ستاسو دمختلفو او خلاف خبرو په وجه هم هغه څوك د قرآن عظيم الشان او نبی کريم ﷺ منکر کيږ چې بد نصيبه محرومه وی .

﴿قُتِلَ الْخَرَّاصُونَ﴾ د خراص لفظی معنی په اندازې . گمان او تخمين سره خبرې کوونکې ده ، دې نه مراد د مختلف قول والا هغه کافران او منکران دی چې خلاف خبرې کوی ، په دې بنا د لته د خراصون ترجمه کذابون يعنی دروغژن کول هم څه بديت نه لری ، دې جملې کښې دې دپاره خيره ده چې په حقيقت کښې د لعنت په معنی شو. [مظهری]([2]) د کافرانو ذکر نه پس د مؤمنانو متقيانو ذکر په ډيرو آيتونو کښې راغلې دې .

**عبادت کښې شپه تيرول او ددې تفصيل** :: ﴿كَانُوا قَلِيلًا مِّنَ اللَّيْلِ مَا يَهْجَعُونَ﴾ ﴿يَهْجَعُونَ﴾ د هجوع نه مشتق دې ، معنی ئې د شپې اودۀ کيدل دی ، په دې کښې د متقيانو مؤمنانو دا صفت بيان شوېدې چې هغوئ شپې د الله ﷻ په عبادت کښې رونړوی خوب ئې په کښې لږ او وينه ئې ډيره وی . چې په مونځ او عبادت کښې ئې تيروی . دا تفسير دشپې ابن جرير رحمه الله اختيار کړې دې([3]) .

او د حسن بصری رحمه الله نه هم دا منقول دی چې متقيان دشپې د رونړولو اود عبادت کولو مشقت پورته کوی . اوډير کم اودۀ کيږی . او ابن عباس رضی الله عنه ، قتاده رحمه الله ، مجاهد رحمه الله وغيره د تفسير امامانو ددې جملې مطلب دابيان کړې دې چې دې کښې ئې ما حرف د نفی دپاره گرځولې دې چې د شپې لږه حصه په دوئ باندې داسې هم راځی چې په کښې دوئ نه اوده کيږی بلکه په عبادت ،مونځ وغيره کښې مشغول پاتې کيږی . ددې مفهوم تر مخه هغه ټول خلق ددې مصداق جوړيږی چې د شپې په هره حصه کښې څه عبادت کوی . څکه خو ابو العاليه رحمه الله ددې مصداق هغه خلق گرځولی دی چې د ماښام او ماسختن تر مينځه مونځونه کوی ، او امام ابوجعفر باقر رحمه الله اوفرمائيل چې څوك د ماسختن دمونځ نه مخکښې اودۀ کيږی هغوئ هم په دې کښې داخل دی . [ابن کثير].

حسن بصری رحمه الله د احنف بن قيس رحمه الله نه نقل کړی دی چې فرمائيل به ئې چې ما د خپل عمل جاج د جنتيانو عملونو سره واخستو نو ماأوليدل چې هغه داسې قوم دې چې مونږ نه ډير

---

[1] ) تفسير المظهري[ج:۹ص:۸۰]

[2] ) تفسير المظهري[ج:۹ص:۸۰]

[3] ) تفسير الطبري لابن جرير [ج:۲۲ ص:۴۱۱]

پورته او غوره دی، هغوئ داسې يو قوم دی چې زمونږ عملونه دهغوئ درجې ته نشی رسيدلې، ولې چې دوئ دشپې کم اوده کيږی او عبادت زيات کوی. بيا مې د خپل عمل جاج د جهنميانو سره واخستو نو ما اوليدل چې هغوئ د الله ﷻ او د نبی کريم ﷺ دروغژنی او د قيامت نه انکار کوونکی دی. په دې شان زمونږ عملونه نه خو د جنتيانو دعملونو درجې ته رسيدې شی او نه بحمد الله دجهنميانو پشان دی ځکه زمونږ دعملونو درجه هغه ده کومه چې قرآن عظيم الشان په دې شان بيان کړې ده چې: ﴿وَآخَرُونَ اعْتَرَفُوا بِذُنُوبِهِمْ خَلَطُوا عَمَلًا صَالِحًا وَآخَرَ سَيِّئًا﴾ يعنی داخلق ښه او بدعملونه ګډوډ کوی. نو په مونږ کښې زيات غوره بنده هغه دې چې کم از کم ددې درجې په حدونو کښې دننه پاتې کيږی.

اوعبدالرحمان بن زيد بن اسلم رضي الله عنه فرمائيلی دی چې دبنی تميم يو سړی زما والدمحترم ته اووئيل چې ائې ابو اسامه: مونږ خپل ځان کښې هغه صفت نه بيا مومو چې الله ﷻ متقينو دپاره بيان کړې دې يعنی ﴿كَانُوا قَلِيلًا مِّنَ اللَّيْلِ مَا يَهْجَعُونَ﴾ ولې چې زمونږ دا حال دې چې ﴿قَلِيلًا مِّنَ اللَّيْلِ مَا نَقُومُ﴾ يعنی د شپې ډير کم ويښ پاتې کيږو او عبادت کوؤ. زما والدمحترم ورته چې ددې په جواب کښې اوفرمائيل چې:

﴿طوبى لمن رقد اذا نعس واتقى الله اذا استيقظ﴾ [ابن کثير].

[زيرې دې هغې چا دپاره چې خوب ورشی نو اوده شی او چې بيدار شی نو تقوی اختيار کړی يعنی دشريعت خلاف څه کار نه کوی.

مطلب دا چې د الله ﷻ په نزد باندې مقبوليت صرف د شپې په زيات ويښ پاتې کيدو باندې اړه نه لری، څوک چې د خوب نه مجبوره شی او په شپه کښې زيات خو ويښ پاتې نشی مګر په بيدارئی کښې د ګناه او بدئ نه ځان ساتی هغه هم د مبارکئ ورکولو جوګه دې. يو حديث پاك کښې د نبی کريم ﷺ ارشاد مبارك دې چې د عبدالله بن سلام رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چې: ﴿يايها الناس اطعموا الطعام وصلوا الارحام وافشوا السلام وصلوا بالليل والناس نيام تدخلوا الجنة بسلام﴾ [ابن کثير].

**دپشمنی په وخت د بخښنې غوښتو غور والې او برکتونه** :: ﴿وَبِالْأَسْحَارِ هُمْ يَسْتَغْفِرُونَ﴾ [متقيان مؤمنان دپشمنی په وخت د خپلو ګناهونو بخښنه غواړی، اسحار د سحر جمع ده دشپې آخری شپږمې حصې ته وائی، دشپې په دې آخری حصه کښې دبخښنې غوښتو غوروالې په دې آيت مبارك کښې هم دې اوبه بل آيت مبارك ﴿وَالْمُسْتَغْفِرِينَ بِالْأَسْحَارِ﴾ (۱) کښې هم. د حديث پاك په ټولو صحيح کتابونو کښې دا حديث پاك راغلې دې چې الله ﷻ د هرې شپې په آخری حصه کښې په رومبی آسمان چې دهغه دشان سره مناسب دې، حقيقت ئې هيچا ته معلوم نه دې، او اعلان فرمائی چې شته څوك توبه کوونکې چې توبه ئې قبوله کړم، شته څوك بخښنه غوښتونکې چې بخښنه ورته اوکړم. [ابن کثير] (۲).

---

(۱) ترجمه:- او په آخره شپه کښې د ګناهونو معافی غوښتونکی دی.

(۲) تفسير ابن كثير [ج: ۷ ص: ۴۱۸] و صحيح البخاري كتاب التهجد ،باب الدعاء فى الصلاة من آخر الليل [ج:۱ ص:۱۵۳] و صحيح مسلم كتاب صلاة المسافرين وقصرها، باب صلاة الليل ..... إلخ [ج:۱ ص:۲۵۸]

دلته دا خبره د نظر کولو جوګه ده چې پدې سحري يعنی پيشمنی په بخښنه کښې د هغې متقيانو بيان دې چې حالت ې ددې نه په ړومبې آيت مبارك کښې داخودلې شوی دی چې دشپې د الله ﷻ په عبادت کښې مشغول اوسيږی ، ډير کم اوده کيږی په دې حالاتو کښې د بخښنې غوښتو څه جوړ څکه نه معلوميږی چې ګناهونه بخښل خو د ګناه نه کولې شی چې چا ټوله شپه په عبادت کښې تيره کړه هغه دکومې ګناه معافي غواړی ؟
جواب ئې دادې چې د ټولې شپې دغه خپل عبادت د الله ﷻ دبې مثاله شان نه ډير زيات کم ګنړی ، ددغې خپلې کمزورئ اوبې وسوسئ بخښنه تر غواړی چې داهم کوتاهی ده [مظهری] [۱]

**صدقې اوخيرات کوؤنکو ته خاص هدايت** : ﴿وَفِيٓ أَمۡوَٰلِهِمۡ حَقّٞ لِّلسَّآئِلِ وَٱلۡمَحۡرُومِ﴾ سائل نه مراد هغه غريب حاجتمند دې چې خپل حاجت د خلقو په مخکښې وړاندې ښکاره کوی او خلق ئې مدد کوی او محروم نه مراد هغه نيست مند محتاج دې چې دشرافت په وجه خپله نيستي و حاجت هم چاته نه ښکاره کوی څکه دخلقو د مدد نه محروم پاتې کيږی . دې آيت مبارك کښې د مؤمنانو متقيانو دا صفت اوخودلې شو چې هغوئ د الله ﷻ په لار کښې د مال لګولو په وخت صرف سوال کوؤنکو ته مال نه ورکوی . بلکه هغه خلق هم په نظر کښې لری په کومو چې نور خلق نشی خبريدې کوم چې چاته خپل حاجت نه ښکاره کوی
او ښکاره ده چې ددې آيت مبارك مقصد دادې چې متقيان مؤمنان صرف په بدنی عبادت مونځ اوشب بيدارئی باندې بس والې نه کوی بلکه په مالی عبادت کښې هم د هغوئ ډيره حصه وی چې د سوال کرو نه علاوه په داسې خلقو هم نظر ساتی چې د خپل شرافت په وجه خپل حاجت چاته نه ښکاره کوی خو دا مالی عبادت الله ﷻ په دې شان بيان فرمائی چې : ﴿وَفِيٓ أَمۡوَٰلِهِمۡ﴾ يعنی دوئ ددغې مالی مدد کولو احسان په دې حاجتمندو باندې نه کوی . بلکه دا ګنړی چې په دې الله ﷻ راکړی مال کښې د دوئ هم راسره حق دې او حقدار ته دهه حق رسول څه احسان نه دې بلکه ديو حق او ذمه داري نه خپله غاړه خلاصول وی .

**په آفاق اوانفس دواړو کښې د قدرت نښې** : ﴿وَفِي ٱلۡأَرۡضِ ءَايَٰتٞ لِّلۡمُوقِنِينَ﴾ [يعنی په زمکه کښې دقدرت ډيرې نخښې دی يقين کوؤنکو دپاره] په تيرؤ شوؤ آيتونو مبارکو کښې د کافرانو او منکرانو حال او خراب انجام اول اوخودلې شو ، بيا دمتقيانو مؤمنانو حالتونه اوصفتونه او دهغوئ دلوړو درجو بيان اوشو ، اوس بيا د کافرانو اومنکرانو دقيامت حال باندې غور کول اود الله ﷻ د کامل قدرت نخښې د دوئ په وړاندې راوستلو سره دانکار نه د آوړيدو هدايت دې ، نو ددې جملې تعلق د ړومبئ جملې [إِنَّكُمۡ لَفِي قَوۡلٖ مُّخۡتَلِفٖ] سره دې چې په کښې د قرآن کريم او رسول کريم ﷺ نهد انکار ذکر دې .
او په تفسير مظهری کښې ئې دا هم د متقيانو مؤمنانو په صفتونو کښې داخل کړی دی [۲] او د موقنين نه مراد هم دغه متقيان دی او په دې کښې داحال ښودلې شوې دې چې دوئ د الله ﷻ د قدرت په هغې نخښو کښې چې په زمکه او آسمان کښې خورې دی په هغې کښې د غور فکر

---

[۱] تفسير المظهري [ج:۹ص:۸۲]
[۲] تفسير المظهري [ج:۹ص:۸۳]

اوتدبر نه کار اخلی چې په نتیجه کښې ئې ایمان او یقین زیاتیږي لکه چې په یو بل آیت مبارك کښې دې باره کښې فرمائي چې: ﴿وَيَتَفَكَّرُونَ فِي خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ﴾(١) او په زمکه کښې دقدرت دکومو نخښو چې ذکر ئې فرمائیلي دې هغه بې شمیره دي په زمکه کښې نباتات، ونې، باغونه اوګورئي دهغې قسمونه، رنګونه، او بوټيونه، دیوې یوې پاڼې په پیدا کولو کښې ښکلا، کمال بیا په دې کښې د هر یو په خاصتیونو، اثرونو کښې په زرګونو قسمه اختلافات دي داشان په زمکه کښې نهرونه، کوهیانو او د اوبو نور مرکزونه او دهغې نه تیاریدونکي په لکونو قسمه مخلوقات، د زمکې غرونه او غارونه په زمکه کښې پیدا کیدونکي حیوانات، اودهغې بې شمیره قسمونه د هر یو حالات او مختلفې فائدې په زمکه کښې د پیدا کیدونکو انسانانو حالات، مختلفې قبیلې او دمختلف علاقو په انسانانو کښې د رنګ او ژبې فرق، د اخلاقو او عادتونو اختلاف وغیره چې په کښې انسان غور کوي نو په یو یو څیز کښې د الله ﷻ د قدرت اوحکمت دومره نندارې بیا موندې شي چې شمار ئې هم مشکل دی.

﴿وَفِي أَنفُسِكُمْ ۚ أَفَلَا تُبْصِرُونَ﴾ دلته د قدرت د نخښو په بیان کښې د آسمان او فضا دمخلوق په بیان پریخودو سره صرف دزمکې بیان کړې شوې دې چې انسان سره ډیر نزدې ده، انسان پرې آباد دې او ګرځي راګرځي. په دې آیت مبارك کښې ددې نه هم زیات نزدې یعنی پخپله دانسان ذات طرفته ئې توجه ورکړه چې زمکه اود زمکې مخلوق هم پریږده پخپله خپل وجود او جسم او ددې په اندامونو کښې غور اوکړه نو یو یو اندام به د الله ﷻ د حکمت دفتر بیا مومې. او پوهه به شې چې په ټول جهان کښې د الله ﷻ د قدرت څومره نخښې دي، ګویا هغه د انسان په دغې ورکوټي بدن کښې ټولې راجمع دي ځکه دانسان وجود ته عالم اصغر یعنی وړوکې دنیا وئیلې شي چې د ټولې دنیا د جهان مثالونه د انسان په وجود کښې موجود دي. انسان دخپل پیدائش د شروع نه ترمرګه پورې راپیښیدونکو څیزونو کښې غور، فکر شروع کړي نو ورته به ګویا الله ﷻ خپلې مخې ته راښکاره شي چې څرنګه انساني نطفې ددنیا دمختلفو علاقو د غذاګانو او په دنیا کښې د خواره شوؤ نازکو حصو نه خلاصه جوړه شوه او د مور په رحم کښې ئې ځائې کړو، بیا په څه شان ترې علقه یعنی چکه وینه جوړه شوه بیا د هغې نه مضغه یعنی د غوښې ټکره جوړه شوه. بیا په کښې څنګه هډوکي جوړ کړې شو، بیا پرې غوښه اوخیژولې شوه. بیا څنګه په بې ساه څیز کښې ساه واچولې شوه. او ددې دپیدائش مکمل کولو نه پس ئې دنیا ته راوستو، بیا پورې په پورې ترقئ کولو سره د بې علمه اوبې شعوره بچي نه يو عقل مند او کارکن انسان جوړ کړې شوې دې. او څنګه ددهٔ صورتونه او شکلونه مختلف جوړ کړې شو چې په اربونو او پدمونو[کهربونو] انسانانو کښې د هر یو شکل د بل نه جدا ښکاري، په دې څوانچه رقبه کښې داسې بیلتون ایخودل د چا د وس خبره ده، بیا د دوئ په طبیعتونو او مزاجونو کښې اختلاف اود اختلاف باوجود یو وحدت داټول ددغې کامل قدرت کرشمې دي چې بې مثله او بې مثاله دې. ﴿فَتَبَارَكَ اللَّهُ أَحْسَنُ الْخَالِقِينَ﴾(٢).

---

(١) ترجمه:- اود آسمانونو او زمکې په پیدا کولو کښې غور کوي.

(٢) ترجمه:- او دالله تعالی څومره لوې شان دې چې د ټولو جوړونکو نه لوی دې.

دا هغه څیزونه دي چې هر انسان ئې چرته بهر اولري نه بلکه پخپله پخپل وجود کښې د شپې ورځې گوري ، خو سره ددې هم که دې د الله ﷻ او د هغه د کامل قدرت اقرار اونه کړی نو هغه به ړوند وي چې گویا که لیدې به نشي ، ځکه ئې په آخر کښې اوفرمائیل چې : ﴿أَفَلَا تُبْصِرُونَ﴾ [آیا تاسو نه گورئې] اشاره دې طرفته ده چې په دې کښې د څه زیات د عقل اوپوهې هم کار نشته ، د چا چې صرف بینائی صحیح وی هغه ددې نتیجې ته رسیدې شي.

﴿وَفِي السَّمَاءِ رِزْقُكُمْ وَمَا تُوعَدُونَ﴾ [یعنی ستاسو روزی په آسمان کښې ده اودڅه چې تاسو سره وعده کولې شی] ددې بې گرده اوبې تکلیفه تفسیر هغه دې چې د تفسیر په خلاصه کښې اختیار کړې شوی دې ، یعنی په آسمان کښې د کیدو نه مراد په آسمان کښې لوح محفوظ کښې دننه لیکل مراد دی ، اودا ښکاره خبره ده چې د هر انسان روزی اوکومې وعدې چې ورسره اوکړې شوې او څه ئې چې انجام کیدونکې دې هغه ټول هر څه په لوح محفوظ کښې لیکلې شوی دی.

یو حدیث پاک کښې دابی سعید خدری رضی الله عنه نه روایت دې چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې که په تاسو کښې څوك بنده دخپل تاکلې رزق نه د ځان ساتلو او تیښتې هم کوشش کوی نو روزی به ورپسې منډې وهی ، څنگه چې د مرگ نه هم څوك نشي تښتیدې دغسې د روزئ نه هم تښتیدل نشي کیدې . [قرطبی]([1]).

او څینو مفسرینو اوفرمائیل چې د رزق نه مراد باران دې ، په دې صورت کښې په آسمان کښې ددې کیدل به پدې شکل وی چې آسمان نه مراد د آسمان جوثه مراد نه وی . بلکه پورته څیز مراد وی چې آسمانی فضا په کښې هم داخله ده،ځکه هغه باران ته هم فی السماء وئیلې کیږی کوم چې د وریځو نه وریږی ، د ماتوعدون نه مراد جنت او ددې نعمتونه دی ، والله اعلم.

﴿إِنَّهُ لَحَقٌّ مِثْلَ مَا أَنَّكُمْ تَنْطِقُونَ﴾ یعنی څنگه چې ستاسو په خپل کلام کولو کښې څه شك نشی کیدې دغسې د قیامت راتلل هم دغسې واضح اوښکاره دی ، په دې کښې هم د څۀ شك شبهې گنجائش نشته ، د انسان دټولو محسوساتو لیدو ، آؤریدلو ،څکلو ، مسه کولو او بوئی کولو څینې دلته دنطق په خاص ډول سره د غوره کولو وجه شاید دا کیدیشی چې په ټولو محسوساتو کښې کله کله د مرض وغیره په وجه گډون راتلې شی په لیدو آؤریدو کښې فرق راتلل مشهور دی ، بیمارئی کښې ئې څینې وخت د خولې خوند خراب شی چې خواږه پرې ترخه لگی مگر نطق او گویائی داسې څیز دې چې په دې کښې چاته د تیروتلو او گډون څه شبه نشي کیدې . [قرطبی]([2]).

| هَلْ أَتٰىكَ | حَدِيْثُ | ضَيْفِ | إِبْرٰهِيْمَ | الْمُكْرَمِيْنَ﴿٢٤﴾ | إِذْ دَخَلُوْا |
|---|---|---|---|---|---|
| آیا راغلې ده تاته | قیصه | دمیلمنو | دابراهیم | عزتمندو | کله چې دننه ورغلل هغوئ |

[اې رسوله ﷺ]آیا تاته د ابراهیم علیه السلام دعزتمندو میلمنو خبر[نه دې] راغلې | څه وخت چې فرشتې

---

[1] تفسير القرطبي [ ج:۱۷ص:۴۳] و المعجم الأوسط للطبراني رقم الحديث:[۴۵۹۸]
[2] تفسير القرطبي [ ج:۱۷ص:۴۱ ، ۴۲]

عَلَيۡهِ | فَقَالُوۡا | سَلٰمًا ؕ | قَالَ | سَلٰمٌ ۚ

په هغه باندې | نو وې وئیل | سلام دې په تا باندې | اووئیل ابراهیم | په تاسو باندې هم سلام دې |

ده ته راغلې | نو سلام ئې واچولو | او ابراهیم ﷺ ورته د سلام جواب ورکړو [او په زړه کښې ئې خیال اوکړو]

قَوۡمٌ مُّنۡكَرُوۡنَ ۚ | فَرَاغَ | اِلٰۤى اَهۡلِهٖ | فَجَآءَ | بِعِجۡلٍ | سَمِيۡنٍ ۙ

خلق دې څه ناآشنا شان | پس ورغې | کور خپل ته | پس راني ورو | یو سخې | څورب |

چې دا نا آشنا خلق دی | بیا په تادۍ سره خپل کورته لاړو | نو یو څورب څخې ئې راوړو

فَقَرَّبَهٗۤ | اِلَيۡهِمۡ | قَالَ | اَلَا تَاۡكُلُوۡنَ ۚ | فَاَوۡجَسَ

پس نزدې ئې کړو هغه | هغوئ ته | ورته ئې اووئیل | آیا نه خورئ تاسو | نو په زړهٔ کښې ئې بیا موندله

نو نزدې ئې ورته کیخودو | اوورته ئې اووئیل چې تاسو ولې خوراک نه کوئ | بیا ئې

مِنۡهُمۡ | خِيۡفَةً ؕ | قَالُوۡا | لَا تَخَفۡ ؕ | وَبَشَّرُوۡهُ | بِغُلٰمٍ

دهغوئ نه | یره | اووئیل فرښتو | چې ته مهٔ یریږه | او زیرې ئې ورکړو هغه ته | په یو هلك

ترې نه په زړه کښې ویره پیدا شوه | هغوئ ورته اووئیل چې ویریږه مه | او هغوئ ابراهیم ﷺ ته

عَلِيۡمٍ ۞ | فَاَقۡبَلَتِ | امۡرَاَتُهٗ | فِىۡ صَرَّةٍ | فَصَكَّتۡ | وَجۡهَهَا

ښهٔ عالم سره | پس وړاندې شوه | ښځه دهغه | دچغې دحیرانتیا سره | پس وې وهلو | مخ خپل

دهوښیار خوئې زیرې ورکړو | نود هغه بی بی په ویناوینا را مخامخ شوه | نو تندی له ئې تس ورکړو

وَقَالَتۡ | عَجُوۡزٌ عَقِيۡمٌ ۞ | قَالُوۡا | كَذٰلِكِ ۙ | قَالَ رَبُّكِ ؕ

اووې وئیل | چې زهٔ بوډۍ شنډه یم | اووئیل فرښتو | هم په دې شان سره | وئیلي دی رب ستا

چې ښه دبوډۍ اودشنډې [به لا اولاد کیږي] | هغوئ ورته اووئیل چې هم دغسې ستارب فرمائیلي دی

اِنَّهٗ هُوَ | الۡحَكِيۡمُ | الۡعَلِيۡمُ ۞

بیشکه هغه | حکمت والا دې | ښهٔ خبردار دې دهر څه نه

هغه ډیر دحکمت او دلوئې علم خاوند دې

## آسان ترجمه قرآن

(اې پیغمبره) آیا د ابراهیم علیه السلام د عزت منده میلمنو واقعه تاته دررسیدلې ده چه کله هغوی ابراهیم علیه السلام ته راغلل. نو هغوی سلام اوکړو، ابراهیم علیه السلام هم سلام اوکړو (او په زړه کښې ئې سوچ اوکړو چه) دا څه ناآشنا خلق دي بیا هغه پټ خپل کور والو ته لاړو، او یو څړب شان څښېې ئې راوړو. او هغه ئې میلمنو ته مخښې ته کیښودو، او وې وئیل آیا تاسو خلق خوراک نه کوئ؟ په دې ابراهیم علیه السلام دهغوی نه په زړه کښې ویره محسوسه کړه هغوی اووئیل ویریږه مه. او هغه ته ئې د یو هلک زیرې ورکړو، چه لوئې عالم به وي. نو رامخامخ شوه ښځه د ابراهیم علیه السلام په چغه باندې، او هغې خپل مخ اووهلو، او وې وئیل. (آیا) یوه شنډه بوډۍ (به بچې زیږوي؟) میلمنو اووئیل چه ستا پروردګار داسې فرمائیلي دي. یقین اوکړه، هم هغه دي، چه دلوئې حکمت او دلوئې علم مالک دي.

## خلاصه تفسير

﴿هَلۡ أَتَىٰكَ حَدِيثُ ضَيۡفِ إِبۡرَٰهِيمَ ٱلۡمُكۡرَمِينَ﴾ [اے محمد ﷺ [ايا دابراهيم] عليه السلام [دعزتمندو ميلمنو قصه تاته رسيدلې ده] معززې ورته يا خو په دې وجه ووئيل چه ملائكې وې دكومو په شان كښې چه دى بَلۡ عِبَادٞ مُّكۡرَمُونَ (۱) او ياې ځكه ووئيل چه حضرت ابراهيم عليه السلام دخپل عادت مطابق د هغو اكرام كړې وو اوميلمانه وئيل ورته بناپه ظاهرى حالت دى چه په انسانى شكل كښې راغلى وو او داقصه هغه وخت شوې وه ﴿إِذۡ دَخَلُواْ عَلَيۡهِ فَقَالُواْ سَلَٰمٗا﴾ [هركله چه هغه] ميلمانه [دوى ته راغلل بياې دوى ته سلام وكړو ﴿قَالَ سَلَٰمٞ قَوۡمٞ مُّنكَرُونَ﴾ ابراهيم] عليه السلام [هم] په جواب كښې [ووئيل سلام] او وې وئيل [چه نااشنا خلق] معلوميږى چه ظاهرى خو داده چه په زړه كښې ئې سوچ وكړو قرينه ددې داده چه وړاند جواب د فرښتو مذكورنه دې او احتمال بعيد داهم دې چه په طور دتپوس ئې دوى ته وئيلى وى چه تاسوخومونږ نه پيژنو او دوى جواب نه وى وركړې او حضرت ابراهيم عليه السلام د جواب انتظار نه وى كړې غرض نه اسلام كلام وشو ﴿فَرَاغَ إِلَىٰٓ أَهۡلِهِۦ فَجَآءَ بِعِجۡلٖ سَمِينٖ﴾ [بيا خپل كورته لاړو اويوڅورب څخې] تليدلې لكه چه داقول د الله تعالى دې [بعجل حنيد اې راوړو ﴿فَقَرَّبَهُۥٓ إِلَيۡهِمۡ﴾ او هغه ئې دوى ته] يعنى مخكښې [كيښودو] چونكه هغه خو فرښتې وې خوراك ئې نه كولو دغه وخت حضرت ابراهيم عليه السلام ته شك پيداشو او ﴿قَالَ أَلَا تَأۡكُلُونَ﴾ [وې وئيل چه تاسو خورئ ولې نه؟] هركله چه په دې ئې هم خوراك شروع نه كړو ﴿فَأَوۡجَسَ مِنۡهُمۡ خِيفَةٗ﴾ [نو ددوى نه په زړه كښې وويريدو] چه داخلق هسې نه مخالفين او دښمنان نه وى لكه چه په سوره هود كې تير شوې دى ﴿قَالُواْ لَا تَخَفۡ﴾ [هغوى ووئيل چه ته ويريږه مه] مونږ بنيادم نه يو فرښتې يو [او] داې ووئيل ﴿وَبَشَّرُوهُ بِغُلَٰمٍ عَلِيمٖ﴾ [هغوى ته ئې د يوځوئ خوشخبرى وركړه چه لوئ عالم] يعنى نبى [به وى] ځكه چه په مخلوق كښې د ټولو نه زيات علم انبياؤ عليهم السلام ته وى اومراد ددې نه حضرت اسحق عليه السلام دې داخبرې ددوى سره كيدې ﴿فَأَقۡبَلَتِ ٱمۡرَأَتُهُۥ فِي صَرَّةٖ﴾ [چه په دې كښې د دهٔ بى بى] حضرت ساره رضي الله عنها چه چرته ولاړه وه اوريدلې ئې لقوله تعالى وامراته قائمة (۲) د اولاد خبرې واوريدو [په چغو او خبرو راغله] چه هركله فرښتو دې ته هم داخبر واورولو لكه لقوله تعالى فبشرنها باسحاق (۳) نو په تعجب سره ﴿فَصَكَّتۡ وَجۡهَهَا وَقَالَتۡ عَجُوزٌ عَقِيمٞ﴾ [بيا ئې تندى له ټس وركړو او وې وئيل چه] اول خوزهٔ [بوډئ] بيا [شنډه] په دې وخت كښې دبچى پيداكيدل هم عجيبه خبره ده ﴿قَالُواْ كَذَٰلِكِ﴾ [فرښتو ووئيل چه] تعجب مه كوه داقول دالله تعالى اتعجبين (۴) ﴿قَالَ رَبُّكِ﴾ [ستاپروردګار داسې فرمائيلى دى] او ﴿إِنَّهُۥ هُوَ ٱلۡحَكِيمُ ٱلۡعَلِيمُ﴾ [بيشكه هغه لوئ حكمت والا لوئ پوه دې] يعنى اګر چه فى نفسه دادتعجب خبره ده مګر تاسوخاندان دنبوت يئ علم اوپوه درسره ده په دې معلومولو چه دا دالله تعالى ارشاد دې نو بياپرې تعجب نه دې پكار.

---

(۱) ترجمه:- بلكه معززه بنده دى
(۲) ترجمه:- او د ابراهيم عليه السلام بى بى ولاړه وه.
(۳) ترجمه:- او مونږ هغه د اسحاق عليه السلام زيرې وركړو.
(۴) ترجمه:-آيا ته تعجب كوې.

## معارف او مسائل

دې ځائې نه د نبی کریم ﷺ د تسلئ دپاره د تیروشوو امتونو ځنې څو پیغمبرانو ﷺ واقعات بیان شوی دی.

﴿فَقَالُوا سَلٰمًا ۖ قَالَ سَلٰمٌ ۚ﴾ فرښتو سلمًا اووئیل او خلیل الله ﷺ ورته په جواب کښې سلام په رفع سره اووئیل ځکه چې د مرفوع کیدو په صورت کښې دا جمله اسمیه شوه چې د دوام او استمرار فائده ورکوی او قوت ئې هم زیات شو ، خلیل الله ﷺ درحقیقت د قرآن عظیم الشان په هغه حکم باندې عمل کولو د کومې تر مخه چې د سلام جواب د هغې نه په زیاتو غوره الفاظو کښې دې وی.

﴿قَوْمٌ مُّنْكَرُوْنَ ۝﴾ منکر په ضمه دمیم او فتحه سره او پره او ناآشنا ته وئیلې شی. نو د گناه کار ته هم ځکه منکر وئیلې شی چې هغه هم اوپره او ناآشنا وی، دجملې مراد دا شو چې دغه فرښتې د بشر په شکل کښې راغلې وې ، ابراهیم ﷺ هغوئ لره او نه پیژندې ځکه ئې پخپل زړه کښې اووئیل چې دا پردی خلق دی مونږ ئې نه پیژنو اوکیدې شی چې هم ددغې میلمنو په مخکښې ئې ددې ذکر دتپوس کولو په ډول کړې وی ، او مقصد ئې پیژندگلو حاصلول وی.

﴿فَرَاغَ اِلٰٓى اَهْلِهٖ﴾ راغ د روغ نه مشتق دې چې معنی ئې د یوځائې نه تولیدل او په پټه وتل دی. مطلب دادې چې ابراهیم ﷺ د میلمنو د ډوډئ د انتظام دپاره کورته په داسې ډول لاړو چې میلمانه ئې په پاسیدو خبر نشو ، گنی نو هغوئ به د ډوډئ او د میلمستیا د څیزونو راوړو نه انکار کړې وو.

**د میلمستیا آداب او طریقې** : ابن کثیر رحمه الله فرمائیلی دی چې په دې آیت مبارك کښې د میلمه دپاره د میلمستیا کولو څو آداب او طریقې خودلې شوی دی. رومبئ خبره داده چې رومبې ئې دمیلمنو نه تپوس نه دې کړې چې زه تاسو دپاره خوراکه راوړم؟ بلکه په پټه اوتولیدو او د هغوئ دمیلمستیا دپاره د ټولو نه زیات غوره څیز څخې ئې هغوئ دپاره ذبح کړو. هغه ئې وریت کړو راوړو ، بله دا چې د راوړولو نه پس ئې میلمنو ته ددې تکلیف ورنکړو چې دوئ ئې خوراك کولو له راپللې بلکه هم هلته ئې ورته مخې ته خوراکه کیخوده ، چرته چې ناست وو. ﴿فَقَرَّبَهٗٓ اِلَيْهِمْ﴾ دریمه دا چې میلمستیا وړاندې کولو په صورت کښې ئې د خوراك کولو کلکتیا ئې پرې نه کوله بلکه وې فرمائیل چې:

﴿اَلَا تَاْكُلُوْنَ ۝﴾ تاسو نه خورئې څهٔ ؟(۱) دې کښې اشاره دې ته ده چې اگر که ستاسو د خوراك ضرورت نه وی ، خو زمونږ په خاطر څه ناڅه اوخورئې.

﴿فَاَوْجَسَ مِنْهُمْ﴾ یعنی ابراهیم ﷺ د دوئ د نه خوراك کولو په وجه دهغوئ نه خطره محسوس کړه چې دغه وخت دشریفانو معامله به داسې وه چې میلمه به ئې څه نه څه میلمستیا قبلوله او خوراك به ئې کولو ، که میلمه دومره هم نه قبلول نو دا خطره به تري پیدا شوه چې دا څوك دښمن کیدشی چې تکلیف رارسولودپاره راغلې وی ، په دغه وخت کښې به غلو او ظالمانو کښې هم دومره شرافت وو چې چا کره خوراك څکاك اوکړو هغوئ ته به بیا نقصان نه رسولو.

(۱) تفسیر ابن کثیر [ج: ۷ ص:۴۲۱]

﴿فَأَقْبَلَتِ امْرَأَتُهُ فِي صَرَّةٍ﴾ د ﴿صَرَّةٍ﴾ معنی غير معمولی آواز دې ، صرير د قلم چلولو آوازته وئيلې شی ، مراد دادې چې کله ساره ﷞ واؤريدل چې فرښتې ابراهيم ﷺ ته دبچی دپيدا کيدو زيرې ورکوی او دا ښکاره وه چې بچې د بی بی نه پيدا کيږی . چې پخپله ساره ﷞ وه نو دائې اوګنړله چې زيرې مونږ دواړو دپاره دې ځکه په بې اختياره ډول ئې د خلې نه د تعجب الفاظ اوختل او وې وئيل چې ﴿عَجُوزٌ عَقِيمٌ﴾ چې اول خو زۀ بوډئی اوبيا شنډه يم چې په ځوانئ کښې هم داولاد څائيګولو جوګه نه اوم او بيا په بوډا توب کښې به داسې څنګه اوشی ؟

ددې جواب کښې فرښتو اووئيل چې ﴿كَذَٰلِكِ﴾ الله ﷻ لره ټول قدرت دی دا کار به هم داسې کيږی ، چنانچه کله چې د زيری مطابق اسحاق ﷺ پيدا شو نو د ساره ﷞ عمر يو کم سل کاله اود ابراهيم ﷺ سل کاله وو. [قرطبی](١)

[الحمد لله پاره نمبر ۲۶ ختمه شوه]

قَالَ | فَمَا خَطْبُكُمْ | أَيُّهَا الْمُرْسَلُونَ ۝ | قَالُوا

اووئيل ابراهيم ﷺ | نو څه دې کار ستاسو | اے رالیږلی شوؤ فرښتو | اووئيل هغوئ |

[ابراهيم ﷺ] اووئيل چې ائې فرښتو ستاسو مقصد څه دې ؟ | هغوئ اووئيل

إِنَّا أُرْسِلْنَا | إِلَىٰ قَوْمٍ مُّجْرِمِينَ ۝ | لِنُرْسِلَ | عَلَيْهِمْ

بيشکه مونږه راليږلی شوّی يو | يو قوم مجرم ته | دپاره ددې چې اوليږو مونږه | په هغوئ باندې

مونږ يو مجرم قوم طرفته راليږلې شوی يو | د دې دپاره چې مونږ په هغوئ باندې داسې

حِجَارَةً | مِّن طِينٍ ۝ | مُّسَوَّمَةً | عِندَ رَبِّكَ | لِلْمُسْرِفِينَ ۝

کانړی | دختې نه | چې نښه دار کړې شوی دی | په نز درب ستا | دپاره دحدنه داوړيدونکو خلقو

د تيکرو کانړی راوروو | چې په هغې باندې ستا د رب سره د حد نه تيريدونکو دپاره نښې لګيدلی دی

فَأَخْرَجْنَا | مَن | كَانَ | فِيهَا | مِنَ الْمُؤْمِنِينَ ۝

بيا رااوويستل مونږه | هغه څوك | چې وؤ | په هغه کلی کښی | دمومنانونه |

نو په هغه کلی کښې چه کوم مومنان ووهغوی ترې مونږ بهر اوويستل

فَمَا | وَجَدْنَا | فِيهَا | غَيْرَ بَيْتٍ | مِّنَ الْمُسْلِمِينَ ۝ | وَتَرَكْنَا

پس بيا اونه موندو مونږه | په هغې کښی | بې ديو کورنه | دمسلمانانونه | او پريښوده مونږه

خو په هغوی کښې مونږ ديو کور نه سوا د مومنانو بله کورنئ اونه موندله | او په دې [واقعه] کښې

فِيهَا | آيَةً | لِّلَّذِينَ | يَخَافُونَ | الْعَذَابَ الْأَلِيمَ ۝

په هغې کښی | يوه نښه | دپاره دهغه کسانو | چې يريږی هغوئ | دعذاب دردناك نه |

مو د هغه خلقو دپاره يوه نخښه باقی پريخوده | چې د دردناک عذاب نه ويريږی

(١) تفسير القرطبي [ ج:١٧ص:٤٧]

وَفِىْ مُوْسٰۤى | اِذْ اَرْسَلْنٰهُ | اِلٰى فِرْعَوْنَ | بِسُلْطٰنٍ

او په قیصه دموسی کښې [نښه ده] | کله چې اولیږو مونږ هغه | فرعون ته | د دلیل

اودغه شان دموسی ﷺ په قیصه کښې هم [نښه ده] کله چې مونږ هغه د فرعون [دربار] ته په ښکاره

مُّبِيْنٍ۝ | فَتَوَلّٰى | بِرُكْنِهٖ | وَقَالَ | سٰحِرٌ

ښکاره سره | نو مخ ئې واړوو | دقوت خپل سره په غرور کښې | اووې وئیل | چې دې جادوګر دې |

دلیل سره اولیږلو خوهغه دخپل زور په وجه انکار اوکړو | او دائې اووئیل چې دا جادوګر

اَوْ مَجْنُوْنٌ۝ | فَاَخَذْنٰهُ | وَجُنُوْدَهٗ | فَنَبَذْنٰهُمْ

یا لیونې دې | پس اونیوو مونږه هغه | او لښکرې دهغه | پس اوغورزول مونږ هغوی |

یا لیونې دې | اومونږ هغه اودهغه لښکر [ټول] راونیول | او په سمندر کښې مو

فِى الْيَمِّ | وَهُوَ مُلِيْمٌ۝ؕ | وَفِىْ عَادٍ | اِذْ اَرْسَلْنَا

په دریاب کښې | او هغه ملامته کړې شوې وو | او په عادیانو کښې نښه ده | کله چې اولیږله مونږه

اوغورزول | په داسې حال کښې چې ملامته کړې شوې وو | اود عادیانو [په واقعه] کښې هم [عبرت] دې

عَلَيْهِمُ | الرِّيْحَ | الْعَقِيْمَ۝ۚ | مَا تَذَرُ | مِنْ شَىْءٍ | اَتَتْ

په هغوی باندې | هوا | بې خیره | نهٔ به ئې پریښودو | هیڅ څیز | چې رابه غله هغه هوا |

کله چې مونږ په هغوی باندې بې خیره سیلۍ راولیږله | [دا داسې سیلۍ وه چې] په کوم څیز به

عَلَيْهِ | اِلَّا جَعَلَتْهُ | كَالرَّمِيْمِ۝ؕ | وَفِىْ ثَمُوْدَ

په هغه څیز باندې | مګر کوۀ به ئې هغه | پشان دروست هډوکی | او په ثمودیانو کښې نښه ده |

تیره شوه | نو هغه به ئې ریزه ریزه کولو | ...... او [دغه شان] دثمودیانو [په واقعه] کښې هم [عبرت دې]

اِذْ قِيْلَ | لَهُمْ | تَمَتَّعُوْا | حَتّٰى حِيْنٍ۝ | فَعَتَوْا

کله چې اووئیلې شو | هغوی ته | چې نفع واخلئ | دیو وخته پورې | پس مخ واړوو هغوی |

کله چې دوئ ته اووئیلې شو | چې څو ورځې نور دنیاوی مزې واخلئ | نو هغوی

عَنْ اَمْرِ رَبِّهِمْ | فَاَخَذَتْهُمُ | الصّٰعِقَةُ | وَهُمْ يَنْظُرُوْنَ۝ | فَمَا اسْتَطَاعُوْا

دحکم درب خپل نه | پس اونیول هغوی | یو لوئ ګرس | او هغوی ورته کتل | پس طاقت نهٔ لرلو هغوی

دخپل رب دحکم نه سرکشی اوکړه | نوپه هغوی باندې عذاب راغلو | اوهغوی ورته کتل | نو بیانه خو

مِنْ قِيَامٍ | وَّمَا كَانُوْا | مُنْتَصِرِيْنَ۝ۙ | وَقَوْمَ نُوْحٍ | مِّنْ قَبْلُ ؕ

دپاسیدو | اونهٔ وو هغوی | بدل اغستونکی | او هلاك كړو مونږه قوم دنوح | مخکښې ددې تولو نه

اودریدې شو | او نه ئې زمونږ نه څه بدله واخستې شوه | اود هغوی نه وړاندې دنوح ﷺ قوم

اِنَّهُمْ | كَانُوْا | قَوْمًا | فٰسِقِيْنَ۝ؑ

بیشکه هغوئ | وو | قوم [خلق] | فاسقان |

سره هم دغه شان سلوک کړې شوې وو | بیشکه چې دغه ډیر نافرمانه قوم وو |

## آسان ترجمه قرآن

ابراهيم عليه السلام اووئيل: اے د الله تعالىٰ د طرف نه راليږلې شوو فرشتو! څه لوئې کار دې ستاسو؟. هغوی اووئيل مونږ مجرمانو خلقو ته راليږلې شوې يُو. دې دپاره چه مونږ په هغوی باندې د پخې خاؤرې کانړی راؤوَرَوُو. چه په هغې باندې به د حد نه تيريدونکو خلقو دپاره ستا د پروردګار د طرف نه خاص نښے هم لګيدلې وې، بيا دا اوشوه، چه په هغې کلی کښې کوم مومنان وو، هغوی لره مونږ د هغه ځائې نه اوويستل. او په هغې کښې د يو کور نه سوا مونږ نور کورونه د مومنانو اونه موندل او مونږ په هغې کلی کښې دهغه خلقو دپاره (د عبرت) يوه نښه پريخودے، کوم چه د دردناک عذاب نه ويريږی. او د موسیٰ عليه السلام (په واقعه) کښې هم (مونږ دغه شان نښې پريخودې وې) چه کله مونږ هغه لره په يو ښکاره دليل سره فرعون ته ليږلې وو. نو فرعون دخپل طاقت په وجه مخ اوګرځولو، او وے وئيل، چه دا جادوګر دې، يا ليونې دې. نو مونږ هغه او د هغه لښکر راؤنيولو او ټول مو په سمندر کښې اوغورزول، او هغه وو د ملامتيا لائق. او قوم عاد کښې هم (مونږ دغه شان نښې پريخودې وې) چه کله مونږ په هغوی باندې داسې سيلئ راؤليږله، چه د هرې شيګرې نه شنړه وه هغه به چه په کوم څيز تيريدله نو هغه به ئې داسې پريخودلو، لکه هډوکې چورې کړې شوې. او په ثمودیانو کښې هم (داسې نښې وې) چه کله هغوی ته اووئيلې شو چه لږ وخت پورې مزې واخلئ (بيا هم که نيغ نه شوئ نو عذاب به در باندې راشی) په دې باندې هم هغوی د خپل پروردګار حکم منلو نه سرکشی اختيار کړه، نو راؤنيول يو هيبت ناکې چغې، او دوی کتل. نتيجه دا شوه، چه په هغوی کښې نه دا طاقت وو، چه اودريږی، او نه ددې قابل وو، چه خپل ځان بچ کړی او ددوی نه هم مخکښې مونږ د نوح عليه السلام قوم هم راؤنيولې وو يقين اوکړه، هغوی ډير نافرمانه خلق وو.

### خلاصه تفسير

﴿قَالَ فَمَا خَطْبُكُمْ اَيُّهَا الْمُرْسَلُوْنَ﴾[ابراهيم] ته دنبوت په فراست سره داهم معلومه شوه چه د خوشخبرئ نه علاوه د دوئ بل هم څه مقصود شته نو دوئ ته ئې [اووئيل] چه [ښه نو] دا ووايئ چه [ستاسو لوې مهم څه په وړاندې دې؟ ﴿قَالُوْا اِنَّا اُرْسِلْنَا اِلٰى قَوْمٍ مُّجْرِمِيْنَ﴾ فرښتو ووئيل چه مونږ يومجرم قوم] يعنی قوم دلوط [طرف ته راليږلې شوی يو ﴿لِنُرْسِلَ عَلَيْهِمْ حِجَارَةً مِّنْ طِيْنٍ﴾ چه مونږ په هغوئ قورت کانړی وورووو په کومو چه ستا درب دطرف نه] يعنی په عالم غيب کښې [خاص نښې هم دی] چه بيان ئې په سوره هود کښې شوې دې او هغه﴿مُّسَوَّمَةً عِنْدَ رَبِّكَ لِلْمُسْرِفِيْنَ﴾ [د حد نه دتيريدونکو دپاره] دی وړاندې دالله تعالىٰ ارشاد دې چه هرکله په دې کلو دعذاب وخت نزدې شو﴿فَاَخْرَجْنَا مَنْ كَانَ فِيْهَا مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ﴾ [نومونږ څومره چه ايماندارو وو ټولو لره مو د هغه ځائ نه جدا کړل ﴿فَمَا وَجَدْنَا فِيْهَا غَيْرَ بَيْتٍ مِّنَ الْمُسْلِمِيْنَ﴾ پس بغير د مسلمانانو ديوکورنه بل يو کور] دمسلمانانو [مونږ هلته ونه موندو] داکنايه ده چه هلته بل هيڅ کور دمسلمانانو دسره نه وو خکه چه دکوم شی وجود دالله تعالىٰ په علم کښې نه وی هغه موجود کيدې نه شی ﴿وَتَرَكْنَا فِيْهَا اٰيَةً لِّلَّذِيْنَ يَخَافُوْنَ الْعَذَابَ الْاَلِيْمَ﴾ [اومونږ په دې واقعه کښې] همیشه دپاره [دداسې خلقو دپاره يو عبرت پريښودوکوم چه د] دردناك عذاب نه ويريږی

﴿وَفِي مُوسَىٰٓ إِذۡ أَرۡسَلۡنَٰهُ إِلَىٰ فِرۡعَوۡنَ بِسُلۡطَٰنٖ مُّبِينٖ﴾ [او] ورانديې د حضرت موسی ﷺ [په قصه کښې هم عبرت دې هرکله چه مونږ دهٔ لره فرعون ته ديوښکاره دليل] يعنی معجزې [سره وليږلو ﴿فَتَوَلَّىٰ بِرُكۡنِهِۦ﴾ پس دهٔ سره دخپلو ارکانو دسلطنت مخ واړولو ﴿وَقَالَ سَٰحِرٌ أَوۡ مَجۡنُونٞ﴾او وې وئيل چه دا ساحريا مجنون دې ﴿فَأَخَذۡنَٰهُ وَجُنُودَهُۥ فَنَبَذۡنَٰهُمۡ فِي ٱلۡيَمِّ﴾ پس مونږ دهٔ لره او ددهٔ لښکرلره ونيول او درياب ته مو ورووېشتل] يعنی غرق موکړل﴿وَهُوَ مُلِيمٞ﴾ [اودهٔ کار د ملامتياکړې وو او] وراندې دعاديانو قصه واورئ چه ﴿وَفِي عَادٍ إِذۡ أَرۡسَلۡنَا عَلَيۡهِمُ ٱلرِّيحَ ٱلۡعَقِيمَ﴾[دعاديانوپه قصه کښې هم عبرت دې هرکله چه مونږ په هغوئ نامبارکه هوا وليږله ﴿مَا تَذَرُ مِن شَيۡءٍ أَتَتۡ عَلَيۡهِ إِلَّا جَعَلَتۡهُ كَٱلرَّمِيمِ﴾ په کوم شي چه به تيريده] يعنی د هغو څيزونو نه دکومو چه دهلاکيدو حکم وو [هغه به ئې داسې کولو لکه يو شې چه خس خس[ذره ذره] شی او وراندې دثموديانو قصه واورئ ﴿وَفِي ثَمُودَ إِذۡ قِيلَ لَهُمۡ تَمَتَّعُواْ حَتَّىٰ حِينٖ﴾ [دثموديانو په قصه کښې هم عبرت دې هرکله چه هغوئ ته ووئيلې شو] يعنی حضرت صالح ﷺ ورته وفرمائيل چه [نور لږې ورځې ارام وکړئ] يعنی که دکفر نه واپس نه شوئ نو لږې ورځې پس به هلاك شئ [پس] په دې ويرولو هم ﴿فَعَتَوۡاْ عَنۡ أَمۡرِ رَبِّهِمۡ﴾ [هغو خلقو د خپل رب دحکم نه سرکشی وکړه﴿فَأَخَذَتۡهُمُ ٱلصَّٰعِقَةُ﴾ پس هغوئ لره عذاب ونيول ﴿وَهُمۡ يَنظُرُونَ﴾ او هغوئ] ددې عذاب نښنو لره [ليدلې] يعنی هغه عذاب په ډاګه راغې﴿فَمَا ٱسۡتَطَٰعُواْ مِن قِيَامٖ﴾ [پس نه ودريدلې شول] بلکه پرمخې پريوتل لکه داقول دالله تعالی دې جاثمين ﴿وَمَا كَانُواْ مُنتَصِرِينَ﴾ [اونه ئې] زمونږ نه [بدله واخستې شوه ﴿وَقَوۡمَ نُوحٖ مِّن قَبۡلُ﴾ او د دوئ نه وراندې دقوم نوح] ﷺ [داحال شوې وو] يعنی په دې سبب سره چه ﴿إِنَّهُمۡ كَانُواْ قَوۡمٗا فَٰسِقِينَ﴾[هغه لوئ نافرمانه خلق وو] هغوئ لره موهم هلاك کړی وو

## معارف او مسائل

په دغې خبرو اترو کښې کله چې ابراهيم ﷺ ته دا معلومه شوه چې داميلمانه د الله ﷻ فرښتې دی نو تپوس ئې اوکړو چې تاسو په کوم مهم باندې راغلی يئ ؟ هغوئ دلوط ﷺ په قوم باندې د عذاب د نازولو ياد ګيرنه اوکړه چې په هغوئ به کاڼی ورولې شی چې هغه به د خاوړو څخه جوړ شوی کاڼی وی .

﴿مُّسَوَّمَةً عِندَ رَبِّكَ﴾ يعنی په کاڼو به د الله ﷻ د طرفه خاص نشانيانې لګيدلې وی ، څينې مفسرينو اوفرمائيل چې په هر کاڼی باندې د هغه کس نوم به ليکلې شوی وو دچا د هلاکولو دپاره به چې ټاکلی شوی وو ، نو دغه ټاکلې کاڼو بهٔ ورپسې په هوا تلو کوم خوا به چې هغه تښتيدو په نورو آيتونو کښې چې کوم عذاب د زمکې د خلاف کيدو پرې تير شويدې نو هغه ورسره هم بې سمونه څکه نه دې چې اول پرې کاڼو ورولې شوی وی او بيا پرې زمکه خلاف کړې شوې راګذاره کړې شوی وی .

د لوط ﷺ د قوم څخه روستو ئې دموسی ﷺ د قوم او فرعون وغيره ذکر اوفرمائيلو . په دې کښې فرعون کله چې موسی ﷺ ورته د حق پيغام ورکړو چنانچه دفرعون دا کردار ئې اوخودلو ﴿فَتَوَلَّىٰ بِرُكۡنِهِۦ﴾ يعنی فرعون دموسی ﷺ څخه مخ واړولو اوخپل قوت يعنی خپل فوج اوخپلو درباريانو ته ئې مخ کړو ، د رکن لفظ معنی قوت دی نو د لوط ﷺ په کلام کښې :

﴿أَوْ آوِي إِلَىٰ رُكْنٍ شَدِيدٍ﴾(۱) هم ددې معنې دپاره راغلې دې ، دې څخه روستو د عاد او ثمود او په آخر کښې دنوح ﷺ دقوم واقعه ئې بيان کړه،دا واقعات ددې څخه ړومبې ځو خله تيرشوی دی.

| | | |
|---|---|---|
| | وَالسَّمَاءَ | بَنَيْنَاهَا |
| | او آسمان چی دې | جوړ کړې دې مونږه هغه |
| بيشکه چې دغه ډير نافرمانه قوم وو | اومونږ آسمان دخپل | |

| بِأَيْدٍ | وَإِنَّا لَمُوسِعُونَ﴿٤٧﴾ | وَالْأَرْضَ | فَرَشْنَاهَا |
|---|---|---|---|
| په لاس خپل سره | او بيشکه مونږه فراخه کونکی يو | او زمکه چی ده | غوړولې ده مونږه هغه |
| قدرت په لاسونو جوړ کړې دې | اومونږ د فراخئ خاوندان يو | او زمکه مونږ غوړولې ده | |

| فَنِعْمَ الْمَاهِدُونَ﴿٤٨﴾ | وَمِنْ كُلِّ شَيْءٍ | خَلَقْنَا | زَوْجَيْنِ | لَعَلَّكُمْ |
|---|---|---|---|---|
| پس ډير ښه غوړونکې يو مونږه | او دهر څيز نه | پيدا کړل مونږه | جوړئ | دپاره ددې چی تاسو |
| نوڅومره ښه غوړرونکې يو | ...........اوهر څيز موجوړئ جوړئ کړې دې | | د دې دپاره چې تاسو | |

| تَذَكَّرُونَ﴿٤٩﴾ | فَفِرُّوا | إِلَى اللَّهِ ۖ | إِنِّي | لَكُمْ | مِنْهُ |
|---|---|---|---|---|---|
| نصيحت قبول کړئ | پس منډه کړئ | الله ته | بيشکه زهٔ | ستاسو دپاره | دطرفه دهغه نه |
| نصيحت حاصل کړئ | نوتاسو هم الله ﷻ طرفته ورمنډه کړئ | زهٔ ستاسو دپاره دالله ﷻ | | | |

| نَذِيرٌ مُبِينٌ﴿٥٠﴾ | وَلَا تَجْعَلُوا | مَعَ اللَّهِ | إِلَٰهًا آخَرَ ۖ | إِنِّي | لَكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| يرونکې يم ښکاره | او مهٔ جوړوئ تاسو | دالله سره | معبود بل | بيشکه زهٔ | ستاسو دپاره |
| دطرفه ښکاره ويرونکې يم | او(گورئ)الله سره بل څوک معبود مه جوړوئ | بيشکه زه ستاسو دپاره | | | |

| مِنْهُ | نَذِيرٌ مُبِينٌ﴿٥١﴾ | كَذَٰلِكَ | مَا أَتَى | الَّذِينَ |
|---|---|---|---|---|
| دطرفه دهغه نه | يرونکې يم ښکاره | هم دغسې کيږی | رانغې | هغه کسانو ته |
| دهغه دطرفه ښکاره ويرونکې يم | ........دغه شان ددوئ نه وړاندې خلقو ته چې کله | | | |

| مِنْ قَبْلِهِمْ | مِنْ رَسُولٍ | إِلَّا | قَالُوا | سَاحِرٌ أَوْ مَجْنُونٌ﴿٥٢﴾ |
|---|---|---|---|---|
| چی مخکښې ددوئ نه وو | يو رسول | مگر | اووئيل هغوئ | چی دا جادوگر دې يا ليونې دې |
| هم يورسول ورغلې | .........نو هغوئ ورته جادوگر يا ليونې وئيلي دي | | | |

| أَتَوَاصَوْا | بِهِ ۚ | بَلْ هُمْ | قَوْمٌ | طَاغُونَ﴿٥٣﴾ |
|---|---|---|---|---|
| آيا دوئ وصيت کړې دې يو بل ته | په دې سره | بلکه دا خلق دی | يو قوم | سرکشه |
| آيادوئ يوبل ته ددې خبرې وصيت پريخودې دې | نه بلکه دغه خلق تول يو شان سرکشان وو | | | |

(۱) ترجمه:- يا څه مضبوطه پناه کښې ځان راولی.

| فَتَوَلَّ | عَنْهُمْ | فَمَآ اَنْتَ | بِمَلُوْمٍ﴿۵۴﴾ | وَّذَكِّرْ | فَاِنَّ الذِّكْرٰى |
|---|---|---|---|---|---|
| پس ته مخ واړوه | د دوئ نه | پس نه يې ته | ملامته كړې شوې | او نصيحت كوه | پس بيشكه نصيحت |
| نو ته د دوئ نه مخ واړوه | ځكه چې په تا باندې هيڅ ملامتيا نشته | | | او ته دوئ ته نصيحت كوه | ځكه چې |
| تَنْفَعُ | الْمُؤْمِنِيْنَ﴿۵۵﴾ | | | | |
| فائده وركوي | مومنانو ته | | | | |
| نصيحت مومنانو ته [خامخا] فائده وركوي | | | | | |

## آسان ترجمه قرآن

او آسمان مونږ په قوت سره جوړ كړې دې، او مونږ يقيناً وسعت پيدا كونكې يُو او زمكې لره مونږ فرش جوړ كړې دې نو مونږ ښه غوړونكې يُو. او د هر څيز نه مونږ جوړې پيدا كړې دى دې دپاره چه تاسو نصيحت حاصل كړئ لهٰذا ورمنډه كړئ الله تعالىٰ طرف ته يقين اوكړئ، زه د هغه د طرف نه ستاسو دپاره صفا صفا خبردارونكې راغلې يم او د الله تعالىٰ سره بل څوك معبود مهٔ جوړوئ، يقين اوكړئ، زه د هغه د طرف نه ستاسو دپاره صفا صفا خبردارونكې راغلې يم دغه شان د دوى نه مخكښې چه كوم خلق وو، هغوى ته هم هيڅ يو پيغمبر داسې نه وو راغلې، چه د هغه باره كښې هغوى دا نه وى وئيلي چه: جادوګر دې، يا ليونې دې. آيا دوى يو بل ته د دې خبرې وصيت كړې دې؟ نه، بلكه دا سركش خلق دى لهٰذا (اے پيغمبره) ته د دوى نه مخ اوګرځوه، ځكه چه ته ملامته نه ئې. او نصيحت ورته كوه، ځكه چه نصيحت ايمان راوړونكو ته فائده وركوي.

## خلاصه تفسير

﴿وَالسَّمَآءَ بَنَيْنٰهَا بِاَيْىدٍ وَّاِنَّا لَمُوْسِعُوْنَ﴿۴۷﴾﴾ [او مونږ آسمان لره په] خپل [قدرت سره جوړ كړو او زمونږ وسيع قدرت دې ﴿وَالْاَرْضَ فَرَشْنٰهَا فَنِعْمَ الْمٰهِدُوْنَ﴿۴۸﴾﴾ او مونږ مزكې لره فرش [په طورا] جوړ كړه پس مونږ څنګه [ښه خوروونكى يو [يعنى په دې كښې موښنګه څنګه نفعې اينبودې دى] ﴿وَمِنْ كُلِّ شَىْءٍ خَلَقْنَا زَوْجَيْنِ﴾ [او مونږ هرشى لره دوه دوه قسمه جوړ كړو [د دې قسم نه مراد مقابل دې پس ظاهره ده چه په هرشى كښې څه ناڅه صفت ذاتيه يا عرضيه داسې معتبر وى په كوم سره چه په بل شى كښې دغې صفت نقيض يا ضد ملحوظ وى هغه د دې مقابل شميرلې شى لكه آسمان، مزكه، جوهر، عرض، ګرمى، يخنى، خوږ، تريخ وروكې لوئ ښائسته كيدونكې او بد ښكاره كيدونكې سپين تور رڼا تيارهٔ دغسې نور ﴿لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُوْنَ﴿۴۹﴾﴾ [چه تاسو] په دې مصنوعاتو سره په توحيد باند [پوه شئ] او اے پيغمبر ﷺ دوئ ته ووايه چه هركله دا مصنوعات په يو والى د صانع دلالت كوى ﴿فَفِرُّوْٓا اِلَى اللّٰهِ﴾ [نو تاسو] لره پكار دى چه په دې دليل ونيسئ [دالله تعالىٰ] د توحيد [طرف ته منډې وهئ] او اول خو په وجه د ذكرشوو دليلونو په خپله عقل د توحيد عقيده ضرورى ګنړى بيا د دې دپاسه ﴿اِنِّىْ لَكُمْ مِّنْهُ نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ﴿۵۰﴾﴾ [زه] هم [ستاسو] د پوهولو [دپاره دالله تعالىٰ دطرف نه په ښكاره طور سره ويرونكې] جوړشوې راغلې [يم] چه د توحيد نه منكر لره به عذاب وى پس دعذاب نه د ويرې په اعتبار سره عقيده د توحيد نوره هم ضرورى شوه ﴿وَلَا تَجْعَلُوْا مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ﴾ [او بيا په نور زيات وضاحت سره وايم] چه دالله تعالىٰ

سره بل هيڅ معبود مه مقررویٔ دعنوان په تغير سره دتوحيد د مضمون په وجه د ويرولو بيا تاكيد دي چه ﴿إِنِّي لَكُم مِّنْهُ نَذِيرٌ مُّبِينٌ﴾ [زه ستاسو] دپوهولو [دپاره دالله تعالى دطرف نه ښكاره ويرونكې] راغلې [يم] وړاندې دالله تعالى ارشاد دې چه ته بيشكه په واقع كښې نذير مبين يې لكه چه اوس ذكر شو ليكن داستا مخالفين داسې جاهلان دى چه نعوذ بالله تاته كله ساحر كله مجنون وائي پس ته صبر كوه ځكه چه څنګه دوئ تاته وائي ﴿كَذَٰلِكَ مَا أَتَى الَّذِينَ مِن قَبْلِهِم مِّن رَّسُولٍ﴾ [دغه شان كوم] كافران [خلق چه ددوئ نه وړاندې تير شوى دى هغوئ ته يو پيغمبر هم داسې نه دې راغلې ﴿إِلَّا قَالُوا سَاحِرٌ أَوْ مَجْنُونٌ﴾ كوم ته چه هغوئ] يعنى ټولو يا څنو [ساحريا مجنون نه وى وئيلى] وړاندې دكفارو په دې قول ساحريا مجنون باندې په متفق كيدو تعجب ورپادوئ چه ﴿أَتَوَاصَوْا بِهِ﴾ [آيا په دې خبره ئې يو بل ته وصيت كړې راروان دې] يعنى دا اجماع داسې شوه لكه چه يو بل ته وائي او په مخه راروان وى چه ګورئ كه يو رسول راشى نو تاسو هم زمونږ په شان وايئ. وړاندې د واقعي حقيقت بيان فرمائى چه يوبل ته وصيت خونه وو واقع شوې ځكه چه څنې قومونه خو د څنو سره ملاؤ شوى نه دى ﴿بَلْ هُمْ قَوْمٌ طَاغُونَ﴾ [بلكه] وجه ددې اجماع او اتفاق داشوه چه [ټول په جمع سركش خلق دى] يعنى سبب ددې وينا سره كشى ده چونكه دا په دې ټولو كښې مشتركه ده په دې وجه وينائ هم مشتركه شوه [پس] هركله چه مخكښې خلق هم داسې تيرشوى دى او سبب ددې معلوم شو چه سركشى ده نو ﴿فَتَوَلَّ عَنْهُمْ فَمَا أَنتَ بِمَلُومٍ﴾ [ته د دوئ طرف ته خيال مه كوه] يعنى ددوئ دتكذيب پروا اوغم مه كوه [ځكه چه په تاهيڅ قسم الزام نشته] لكه داقول دالله تعالى دې چه ولاتسئل عن اصحب الجحيم() [او] په اطمينان سره خپل منصبى كار كوه فقط ﴿وَذَكِّرْ فَإِنَّ الذِّكْرَىٰ تَنفَعُ الْمُؤْمِنِينَ﴾ [نصيحت كوه ځكه چه نصيحت كول] دكومو په قسمت كښې چه ايمان نشته په هغوئ خوبه اتمام حجت اوشى او دكومو په قسمت كښې چه ايمان دې هغوئ [ايمان راوړونكو ته] هم اوكوم چه وړاندې مؤمنان دى هغوئ ته هم [نفع وركوى] البته په نصيحت كښې عامې فائدې اوحكمتونه دټولوپه اعتبار سره دى ته داكوه او دچا په ايمان نه راوړو غم مه كوه.

## معارف او مسائل

په تير شوؤ آيتونو كښې د قيامت او آخرت بيان او دهغوئ په نه منونكو باندې د عذاب ذكر وو، په دې آيتونو كښې هم د الله ﷻ دقدرت كامله بيان دې چې په دې سره د منكرانو هغه تعجب لرې كول دى كوم چې هغوئ دقيامت په قائميدو او په دوباره ژوندى كيدو باندې كوى، دغسې د توحيد ثابتول او په رسالت باندې د ايمان تاكيد دې.

﴿بَنَيْنَاهَا بِأَيْدٍ وَإِنَّا لَمُوسِعُونَ﴾ لفظ د ايد دقوت اوقدرت په معنى كښې راځى،دلته ابن عباس رضي الله عنهما د ايد هم داتفسير كړې دې ﴿فَفِرُّوا إِلَى اللَّهِ﴾ ايعنى منډې وهئ د الله ﷻ طرفته] ابن عباس رضي الله عنهما اوفرمائيل چې مراد دادى چې د خپلو ګناهونو نه منډې وهئ الله ﷻ ته د توبې په ذريعه، ابوبكر وراق اوجنيد بغدادى فرمائيلي دى چې نفس او شيطان ګناهونو ته رابلونكى اوغلونكى دى، تاسو دوئ څخه منډې اووهئ اود الله ﷻ پناه اخلئ هغه به مو د وى د شر څخه اوساتى [قرطبى][2].

---

[1] ترجمه:- او ستا نه به دهغه خلقو باره كښې تپوس نه كيرى كوم چې دوزخ ته ځى.

[2] تفسير القرطبي [ ج:۱۷ص:۵۳، ۵٤]

وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنْسَ إِلَّا

| او نه دي پيدا کړي ما پيريان | او انسانان | مګر |

| اوما خو پيريان او انسانان صرف د خپل عبادت دپاره

لِيَعْبُدُونِ ۝ مَا أُرِيدُ مِنْهُمْ مِنْ رِزْقٍ وَمَا أُرِيدُ

دپاره ددې چې عبادت اوکړي زما | نه غواړم زه | دهغوئ نه | څه رزق | اونه دا غواړم زه |

پيدا کړي دي | ....................زه ددوئ نه روزي نه غواړم | اونه [ترې نه] دا غواړم

أَنْ يُطْعِمُونِ ۝ إِنَّ اللَّهَ هُوَ الرَّزَّاقُ ذُو الْقُوَّةِ

چې دوئ دې خوراکونه راکوي ماله | بيشکه الله | هم هغه روزي ورکونکې دې | خاوند دقوت دې |

چې ماله دې خوراکونه راکوي | بيشکه الله ﷻ دټولو خلقو روزي رسان دې | دطاقت خاوند دې

الْمَتِينُ ۝ فَإِنَّ لِلَّذِينَ ظَلَمُوا ذَنُوبًا مِثْلَ

مضبوط دې | پس بې شکه دپاره دهغه کسانو | چې ظلم ئې کړې دې | حصه دعذاب ده | پشان |

مضبوط دې | نو ددې ظالمانو دپاره هم [دعذاب] حصه مقرر ده [الکه چې ددوئ [تيرو شوو] ملګرو دپاره

ذَنُوبِ أَصْحَابِهِمْ فَلَا يَسْتَعْجِلُونِ ۝ فَوَيْلٌ

دعذاب دملګرو دهغوئ | پس تلوار دې نه کوي په ما [دپاره ددې خلقو] | پس تباهي ده |

د عذاب حصه مقرر وه | نو دوئ دې په ما تلوار نه کوي | کافرانو خلقو دپاره دهغې ورځې په راتلو

لِلَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ يَوْمِهِمُ الَّذِي يُوعَدُونَ ۝

دپاره دهغه کسانو | چې کفر ئې اوکړو | دورځې دعذاب دهغوئ نه | هغه ورځ | چې هغوئ ترې يرولې کيږي

کښې ډيره تباهي ده | ....................دکومې چې ورسره وعده کولې شي

## آسان ترجمه قرآن

او ما پيريان او انسانان ددې نه سوا هيڅ کار دپاره پيدا کړي نه دي، چه دوی زما عبادت اوکړی زه ددوی نه هيڅ قسمه رزق نه غواړم، او نه دا غواړم چه دوی ما بانديې اوخوړوی. الله تعالی خو په خپله رزاق دې، مضبوط قوت والا. اوس چه کومو خلقو ظلم کړې دې، د دوی دپاره هم نمبر (دعذاب) دې، لکه څرنګه چه ددوی نه (مخکښې) ملګرو نمبر راخلې وو، ددې وجې نه زما نه دې (د عذاب راوړلو) په تلوار سره مطالبه نه کوی. غرض دا چه کومو خلقو کفر اختيار کړې دې، د دوی دپاره دهغې ورځې د وجې نه لويه خرابي ده، د کومې ورځې چه دوی سره وعده کولې شي.

## خلاصه تفسير

﴿وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنْسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ ۝﴾ [او ماپيريانو او بنيادمو لره [په اصل کښې] ددې دپاره پيداکړی دی چه زما عبادت کوی] او تبعا او تکميلا للعبادة د پيريانو او بنيادمو په پيدائش نورې نفعې مرتب کيدل ددې منافي نه دی او دغه شان دځنو پيريانو او بنيادمونه د عبادت نه صادريدل هم ددې مضمون منافي نه دی ځکه چه مطلب ددې ليعبدون اراده تشريعي ده يعني دوئ ته د عبادت حکم ورکول، نه چه ارادهٔ تکونيه يعنی په عبادت مجبور کول او تخصيص د

پیریانو او بنیادمو په دې وجه دې چه دعبادت نه مراد عبادت بالا ختیار والابتلاء دې او په ملائکوکښې اګر چه عبادت شته خو ابتلاء نشته او په نورو مخلوقاتو حیوناتو او نباتاتو وغیره کښې اختیار نشته مطلب د ارشاد دادې چه ماته مطلوب شرعی دوئ نه عبادت کول دی باقی ﴿مَآ أُرِيدُ مِنْهُم مِّن رِّزْقٍ﴾ [زۀ د هغوئ نه] دمخلوق [درزق رسولو درخواست نه کوم ﴿وَمَآ أُرِيدُ أَن يُطْعِمُونِ﴾ اونه دا درخواست کوم چه هغوئ ماته خوراك راكړى ﴿إِنَّ اللَّهَ هُوَ الرَّزَّاقُ﴾ الله تعالى په خپله دې ټولوته رزق رسوونکې دې] نوموږ ته ددې ضرورت څه وو چه موږ دمخلوقاتو رزق رسانی د دوئ متعلق کوو ﴿ذُو الْقُوَّةِ الْمَتِينُ﴾ او هغه [قوت والانهايت قوت والا دې[چه په دۀ کښې د عجزضعف اوڅه قسم احتياج عقلى احتمال هم نشته نو ددوئ نه دخوراك غوښتلو هيڅ امكان هم نشته دا ترغيب شو وړاندې ترهيب دې چه هركله د عبادت وجوب ثابت شو او دعبادت اهم ركن ايمان دې نوكه داخلق اوس هم په شرك اوكفر باندې اخته وى [نو] واوړئ چه ﴿فَإِنَّ لِلَّذِينَ ظَلَمُوا ذَنُوبًا﴾[ددې ظالمانو] دسزا[هم نمبر] په علم الهى كښې مقرردې﴿مِّثْلَ ذَنُوبِ أَصْحَابِهِمْ﴾ [لكه ددوئ] دتيرو[همخيالونمبر] مقرر[وو] يعنى دهرمجرم ظالم دپاره دالله تعالى په علم كښې خاص خاص وخت مقرر دې دغه شان نمبر په نمبر دهر مجرم بارى راځى نو هغه په عذابٌ كښې نيولې شى كله په دنياأو په اخرت دواړو كښې او كله صرف په اخرت كښې ﴿فَلَا يَسْتَعْجِلُونِ﴾[پس زمانه دې] دعذاب [زر طلب نه كوى [لكه چه د دوئ عادت دې چه دعذاب واورى نو دروغژن ئې ګڼړى څكه بيا تلوار كوى] عرض داچه هغه د نمبر ورځې راشى په كومو كښې چه ټولو نه زياته سخته ورځ دقيامت ده نو ﴿فَوَيْلٌ لِّلَّذِينَ كَفَرُوا مِن يَوْمِهِمُ الَّذِي يُوعَدُونَ﴾[ددې كافرانو دپاره به دهغې ورځ په راتلولو لويه خرابى وى د كومې چه دهغوئ سره وعده كولې شى] چنانچه په خپله دا سورت هم ددغې وعدې نه شروع كيږى انما توعدون لصادق وان الدين لواقع(¹) اوپه دې سره دسورت دشروع اواخرحسن ښكاره دې.

## معارف او مسائل

﴿وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ﴾[يعنى موږ پيريان او بنيادم دعبادت څخه سوا بل كار دپاره نه دى پيدا كړى] دې كښې دوه اشكالونه په ظاهرى نظر كښې پيداكيږى اول دا چې كوم مخلوق الله ﷻ د څه كار دپاره پيداكړې دى او دهغه اراده هم دغه ده چې دغه مخلوق دې هم دغه كار كوى نو د عقل تر مخه دا ناممكن او محال دى چې دغه مخلوق به دغې كار څخه مخ واړولې شى ولې چې دالله ﷻ ارادې او مشيت څخه خلاف څه كار كول محال دې ، دويم اشكال دادې چې په آيت مبارك كښې د انسان او جن پيداكول صرف عبادت پورې منحصر كړې شوى دى ، حالانكه د دوئ په پيدا كيدو كښې د عبادت څخه علاوه نورې فائدې او حكمتونه هم موجود دى.

د ړومبى اشكال جواب كښې څينې مفسرينو دا مضمون صرف مؤمنانو سره خاص ګرځولې دې. يعنى چې موږ مؤمنان جنات او مؤمنان انسانان سوا د عبادت څخه بل كار دپاره نه دى پيدا كړى. او ښكاره خبره ده چې مؤمنان كم وبيش د عبادت پابندى كوى. دا قول د ضحاك رحمه الله او سفيان رحمه الله وغيره دې او د ابن عباس رضي الله عنه په قرات كښې لفظ د مؤمنين هم دې سره

---

(¹) ترجمه:- او تاسو سره چې د څه وعده كولې شى هغه بالكل ريښتونې ده او جزا او سزا به ضرور وى.

راغلې دي: او قراءت داسې دې چې :
﴿وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنْسَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ إِلَّا لِيَعْبُدُوْنِ﴾ ددې قرات نه هم ددې تائيد كيږي چې د امضمون صرف د مؤمنانو په حق كښې راغلې دې او د تفسير په خلاصه كښې ددې اشكال د رفع كولو دپاره دا وئيلې شوي دي چې په دې آيت مبارك كښې د الله ﷻ د ارادې څخه مراد تكويني اراده نه ده چې د هغې خلاف واقع كيدل بۀ ګنې محال وي ، بلكه تشريعي اراده ترې مراد ده يعني دا چې مونږ دوئ صرف دې دپاره پيدا كړي دي چې مونږ ئې عبادت دپاره مامور كړو. هر كله چې د الله ﷻ حكم انساني اختيار سره مشروط ايخودې شوې دې دهغې څخه خلاف واقع كيدل محال نه دي ، يعني الله ﷻ ټولو ته دعبادت حكم وركړې دې خو ورسره ئې اختيار هم وركړې دې ، په دې بنا چا چې خداداد اختيار صحيح استعمال كړو هغه په عبادت كښې اولګيدو ، چا چې غلط استعمال كړو هغه د عبادت څخه واوړيدو .دا قول دعلي ﷺ دې او امام بغوي ﷫ نقل كړې دې[1] . او زياته غوره او واضحه توجيه هغه ده چې په تفسير مظهري كښې داسې كړې شوې ده.

چې د آيت مراد دادې چې مونږ ددوئ پيداكول په دې اندازه سره كړي دي چې په كښې استعداد او صلاحيت د عبادت كولو وي نو د هر جن و انس په فطرت كښې دا استعداد قدرتي موجود دې ، بيا څوك دغه استعداد په صحيح ډول خرچ كولو سره كامياب شي ، څوك دغه استعداد په خپلو ګناهونو او شهوتونو كښې بربادوئ ، او ددې مضمون مثال هغه حديث پاك دې چې نبي كريم ﷺ فرمائيلي دي چې:

﴿كل مولد يولد على الفطرة فأبواه يهودانه او يمجسانه﴾[2]هر پيداكيدونكې ماشوم په فطرت پيداكيږي ، بيا دهغه مور پلار هغه لره ددغې فطرت څخه اړوي څوك يهودي جوړ كړي ، څوك مجوسي جوړ كړي!

په فطرت باندې دپيدا كيدوڅخه مراد د اكثرو عالمانو په نزد په دين اسلام باندې پيدا كيدل دي ، نو څنګه چې دې حديث پاك كښې خودلې شوي دي چې په هر انسان كښې په فطري اوپيدائشي ډول باندې د اسلام او ايمان استعداد او صلاحيت ايخودې شي ، بيا كله دده مور پلار ددغې صلاحيت په ضائع كولو سره ده لره دكفر په طريقو باندې ور واچوي ، همداشان په دې آيت كښې د ﴿إِلَّا لِيَعْبُدُوْا﴾ دا مفهوم كيدې شي چې د جن و انس هر كس كښې الله ﷻ د عبادت استعداد او صلاحيت ايخودې دې[3] ، والله سبحانه وتعالى اعلم

او د دويم اشكال جواب د تفسير په خلاصه كښې دا راغلې دې چې د يو مخلوق د عبادت دپاره پيدا كول ددۀ څخه د نورو فائدو نفي نه كوي.

---

[1] تفسير البغوي [ج: ۱۷ص: ۳۸۰]
[2] صحيح البخاري كتاب الجنائز ،باب إذا سلم الصبي فمات...... إلخ [ج:۱ص:۱۸۰]
[3] تفسير المظهري[ج:۹ص:۹۱]

﴿مَآ أُرِيدُ مِنْهُم مِّن رِّزْقٍ﴾ يعنى د پيريانو او انسانانو پيدا كولو سره مې د عامو انسانانو د عادت مطابق خپله څه فائده مطلب نه ده چې ګنې دوئ دې روزى زما دپاره يا ځان دپاره يا زما دبل مخلوق دپاره پيدا كړى يا دا چې دوئ دې اوګتى او ماته دې خوراكه راكړى. دا ټول كلام د انسان په عام عادت باندې كړې شو بدې. ولې چې د لوئې څخه لوئې انسان چې غلام اخلى او په هغه باندې خرچ كوى نو دهغه مقصد ددغې غلامانو څخه خپل كار اخستل وى او په خپلو ضرورتونو او كارونو كښې ترې مدد اخستل او ګټه خپل مالك او آقا ته وركول وى. الله ﷻ ددې ټولو څيزونو څخه پورته او پاك دې. ځكه فرمائى چې ددوئ دپيداكولو څخه زما خپله څه فائده مقصود نه ده.

﴿ذَنُوبًا﴾ لفظ د ذنوب په فتحې ال سره اصل كښې غټې ډولچې يا بوقې ته وئيلې شى او دكلى په عامو كوهو باندې د اوبو ډكولو دپاره د آسانئ په غرض نمبر او وار مقرر وى، ځكه دلته هم د ذنوب معنى هم وار او نمبر حصه واخستې شوه. مراد دادې چې څنګه پخوانو امتونو ته په خپلو خپلو وختونو كښې د عمل كولو موقعه او وار وركړې شو، كومو خلقو چې پخپل وار كښې كار اونه كړو هغوئ هلاك، برباد او په عذاب كښې ګرفتار شو، دغسې د موجوده مشركانو هم وار او وخت مقرر دې، كه تر دې وخته پورې دوئ د خپل كفر څخه منع نشو نو د الله ﷻ عذاب به ئې كله په دې دنيا كښې هم وى، ګنې په آخرت كښې خوبهٔ يئ ضرور نيسى، ځكه دوئ ته اوفرمايئ چې د خپلې تيزئ څخه واوړئ يعنى كافران چې د انكار كولو او دروغژن بللو په ډول وائى چې كه مونږ واقعى مجرمان يو او په مجرمانو باندې عذاب راتلل ستاسو ﷺ د قول څخه ثابت دې نو په مونږ باندې عذاب ولې نه راځى؟ جواب ئې دادې چې عذاب پخپل مقرر وخت او په خپل وار رازى، ستاسو وار هم راتلونكې دې تادى مه كوئى.

الحمد لله نن سورة زاريات ددوشنبې په ورځ
په يويشتم ربيع الاول كال ۱۳۹۴ پوره شو.

.........

| اياتونه | سورة الطور مكية وهي تسع واربعون اية وفيها ركوعان | ركوع ګاني |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ۴۹ | شروع کوم په نوم د الله چه ډیر مهربان　زیات رحم کونکي دي | ۲ |

وَالطُّوْرِ ۝ وَكِتٰبٍ مَّسْطُوْرٍ ۝ فِيْ رَقٍّ مَّنْشُوْرٍ ۝

قسم دي په طور غر باندي | اوپه کتاب ليکلي شوي باندي | په کاغذپرانستلي شوي کښي |

په کوه طور باندي قسم دي | اوقسم دي په ليکلي شوي کتاب باندي | چي په خورشوي کاغذ کښي دي

وَّالْبَيْتِ الْمَعْمُوْرِ ۝ وَالسَّقْفِ الْمَرْفُوْعِ ۝ وَالْبَحْرِ الْمَسْجُوْرِ ۝

او په کور آباد شوي باندي | او په چت اوچت کړي شوي باندي | او په سمندر چپو وهونکي باندي |

اوقسم دي په آباد کور [او [قسم دي] په اوچت چت [يعني آسمان] | او [قسم دي] په ډک درياب

اِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ لَوَاقِعٌ ۝ مَّا لَهٗ مِنْ دَافِعٍ ۝

بيشکه عذاب | درب ستا | خامخا واقع کيدونکي دي | نشته هغه لره | هيڅوك دفع کونکي |

يقينا ستا د رب عذاب خامخا راتلونکي دي | هيڅوک ئي دفع کولي [بندولي] نشي

يَّوْمَ تَمُوْرُ السَّمَآءُ مَوْرًا ۝ وَّتَسِيْرُ الْجِبَالُ سَيْرًا ۝

په هغه ورځ | چي به اوخوزيږي اسمان | په خوزيدلو سره | او روان به شي | غرونه | په روانيدلو سره

په هغه ورځ چي اسمان به اوخوزيږي | او غرونه به دخپل ځائي نه روان شي

فَوَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِيْنَ ۝ الَّذِيْنَ هُمْ فِيْ خَوْضٍ

پس تباهي ده | په دغه ورځ | دپاره ددروغ ګنړونکو خلقو | هغه خلق | چي هغوئ | په فضول خبرو کښي

نو په دغه ورځ به د دروغ ګنړونکو دپاره هلاکت وي | څوک چي د [حق نه] انکار په لوبو کښي

يَّلْعَبُوْنَ ۝ يَوْمَ يُدَعُّوْنَ اِلٰى نَارِ جَهَنَّمَ

لوبي کوي مشغوليږي | په کومه ورځ | چي به په ديکه ديکه بوتللي کيږي خلق | وور ددوزخ ته

فضول لوبي کوي | دابه هغه ورځ وي چي دوئ به په ديکو ديکو د جهنم اور ته ديکه کولي شي

دَعًّا ۝ هٰذِهِ النَّارُ الَّتِيْ كُنْتُمْ بِهَا تُكَذِّبُوْنَ ۝

په ديکه کولو سره | دا وور دي | هغه | چي وئ تاسو | په دي سره | چي دروغ به مو ګنړلو

[اودا به ورته وئيلي شي] چي د اهغه دوزخ دي | چي تاسو بهٔ دروغ ګنړلو

اَفَسِحْرٌ هٰذَآ اَمْ اَنْتُمْ لَا تُبْصِرُوْنَ ۝ اِصْلَوْهَا

آيا اوس جادو دي | دا | يايئ تاسو | چي څه درته په نظر نهٔ راځي | سوزئ په دي کښي

[اوس اووائي] آيا دا هم جادو دي | که نه ستاسو نظر نه لګي | نو دي [دوزخ] ته ورداخل شئ | نو که

فَاصْبِرُوْٓا اَوْ لَا تَصْبِرُوْا ۚ سَوَآءٌ عَلَيْكُمْ ۭ اِنَّمَا تُجْزَوْنَ

اوس که صبر کوئ | اوکه صبر نه کوئ | يو شان دی دواړه په تاسو باندي | بيشکه تاسو له بدله درکړي کيږي

په دي صبر کوئ | اوکه بي صبري کوئ | دواړه ستاسو دپاره برابر دی | تاسو ته خو بس دهغي عملونو بدله

مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ (۱۶) اِنَّ الْمُتَّقِيْنَ فِيْ جَنّٰتٍ

دهغې | چې وئ تاسو | چې کول به تاسو | بیشکه پرهیزګاران خلق به | په باغونو کښې

درکولې شی | چې تاسو به کول | ..........بیشکه چې پرهیزګاران به د نعمتونو په باغونو کښې

وَّنَعِيْمٍ (۱۷) فٰكِهِيْنَ بِمَآ اٰتٰهُمْ رَبُّهُمْ

او نعمتونو کښې وی | خوشحالیدونکی به وی | په هغې | چې ورکړی هغوئ ته | رب د هغوئ

اوسیږی | ..........او خپل رب چې ورته څه ورکړی وی په هغې به خوشحالی کونکی وی

وَوَقٰهُمْ رَبُّهُمْ عَذَابَ الْجَحِيْمِ (۱۸) كُلُوْا وَاشْرَبُوْا

او بچ به ساتی هغوئ | رب د هغوئ | د عذاب د دوزخ نه | خورئ | او څکئ |

او خپل رب به ئې د دوزخ د عذاب نه بچ اوساتی [ورته به اووئیلې شی] چې ښه په مزه خورئ څښئ

هَنِيْٓـئًا بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ (۱۹) مُتَّكِـِٕيْنَ عَلٰى سُرُرٍ

ښهٔ د مزې سره | په سبب د هغې | چې وئ تاسو | چې کول به مو | ډډې وهونکی به وی | په تختونو باندې

دهغې [نیکو] کارونو په بدل کښې چې تاسو بهٔ کول | ډډې به ئې وهلې وی | په برابر برابر غوړیدلو

مَّصْفُوْفَةٍ ۚ وَزَوَّجْنٰهُمْ بِحُوْرٍ عِيْنٍ (۲۰) وَالَّذِيْنَ

قطار کړې شوؤ باندې | او ورواده به کړو مونږ هغوئ ته | حورې | غټ سترګې | او هغه کسان

تختونو باندې | او مونږ به ورته د غټوغټو سترګو حورې وادهٔ کړو | ..........او چاچې

اٰمَنُوْا وَاتَّبَعَتْهُمْ ذُرِّيَّتُهُمْ بِاِيْمَانٍ اَلْحَقْنَا بِهِمْ

چې ایمان ئې راوړو | او پیروی اوکړه د هغوئ | اولاد د هغوئ | په ایمان سره | نو یوځائې به کړو مونږ د هغوئ سره

ایمان راوړې دې | او خپل اولاد ورسره په ایمان راوړو کښې ملګرتیا کړې ده | نو مونږ به [په جنت کښې] د دوئ

ذُرِّيَّتَهُمْ وَمَآ اَلَتْنٰهُمْ مِّنْ عَمَلِهِمْ مِّنْ شَيْءٍ ۭ كُلُّ امْرِئٍ

اولاد د هغوئ | او کم به نهٔ کړو مونږ هغوئ لره | د عمل د هغوئ نه | هیڅ څیز | هر سړې |

اولاد د دوئ سره یوځائې کړو | او مونږ به د دوئ په عملونو کښې هیڅ کمې اونه کړو | هر یو کس به

بِمَا كَسَبَ رَهِيْنٌ (۲۱) وَاَمْدَدْنٰهُمْ بِفَاكِهَةٍ

په هغه عمل سره | چې وې کړو | ګانړه دې | او امداد به اوکړو مونږ د هغوئ | په میوؤ سره |

په خپل عمل کښې ګیروی | ..........او مونږ به جنتیانو ته میوې

وَّلَحْمٍ مِّمَّا يَشْتَهُوْنَ (۲۲) يَتَنَازَعُوْنَ

او په غوښه سره | د هغه قسمونو نه | چې غواړې ئې زړونه د هغوئ | دیویل نه به اخلی هغوئ |

غوښه اوڅهٔ چې ئې زړه غواړې ورکوؤ | ..........[د شرابو] په جامونو به یو بل

فِيْهَا كَاْسًا لَّا لَغْوٌ فِيْهَا وَلَا تَاْثِيْمٌ (۲۳)

په هغه جنت کښې | پیالئ د شرابو | چې نهٔ به وی خرابې خبری | په هغې کښې | او نهٔ نسبت د ګناه یو بل ته

سره [د خوند د پاره] انګته اچوی | خو په هغې [شرابو] کښې به نه بکواس وی | او نه د ګناه څهٔ خبره

وَيَطُوفُ عَلَيْهِمْ غِلْمَانٌ لَهُمْ

او گرزي به چاپيره | په هغوئ باندې | هلكان خادمان | چې خاص به وي دپاره دهغوئ |

اودوئ نه گيرچاپيره به د خدمت دپاره هلكان اوړي راوړي |

كَأَنَّهُمْ لُؤْلُؤٌ مَكْنُونٌ ﴿٢٤﴾ وَأَقْبَلَ

داسې ښائيسته لكه چې وي به هغوئ | ملغلرې | پټې ساتلې شوي | او مخ به كړي |

[په ښائست كښې به] لكه دپټو ساتلې شوؤ ملغلرو په شان وي | او يوبل ته به

بَعْضُهُمْ عَلَى بَعْضٍ يَتَسَاءَلُونَ ﴿٢٥﴾ قَالُوا

خينې دهغوئ [جنتيانو] نه | خينو نوروته | چې تپوس به كوي ديوبل نه | اوبه وائي هغوئ |

مخامخ ناست وي | اوخبرې اترې به كوي | ..................اودا بهٔ هم وائي چې

إِنَّا كُنَّا قَبْلُ فِي أَهْلِنَا مُشْفِقِينَ ﴿٢٦﴾ فَمَنَّ اللَّهُ

بيشكه وؤ مونږه | مخكښې ددې نه | په تېر خپل كښې | يريدونكي | پس احسان اوكړو الله |

مونږ به پخوا په خپلو كورونو كښې ډير ډير ويريدو | ..................نو الله ﷻ راباندې

عَلَيْنَا وَوَقَانَا عَذَابَ السَّمُومِ ﴿٢٧﴾ إِنَّا كُنَّا مِنْ قَبْلُ

په مونږ باندې | او بچ ئې كړو مونږه | دعذاب دگرمې هوانه | بيشكه وؤ مونږه | مخكښې ددې نه

ډير احسان اوكړو | اومونږ ئې ددوزخ دعذاب نه بچ كړو | ..........بيشكه مونږ به د دې نه وړاندې

نَدْعُوهُ إِنَّهُ هُوَ الْبَرُّ الرَّحِيمُ ﴿٢٨﴾

چې مونږ به دعا گانې غوښتلې دهغه نه | بيشكه هغه | احسان كونكې | رحم كونكې دې |

دالله ﷻ نه دعا گانې غوښتلې | ..................بيشكه هغهٔ ډير احسان كونكې مهربان دې

**آسان ترجمه قرآن**

قسم دې په كوه طور باندې. او په هغه كتاب باندې چه په ښكاره صحيفې كښې ليكلې شوې دې. او قسم په بيت المعمور باندې. او په اوچت كړې شوې چت باندې. او په ډك كړې شوې سمندر باندې. چه ستا د پروردگار عذاب ضرور واقع كيدونكې دې هيڅوک نشته چه هغې لره منع كړي. په كومه ورځ چه آسمان به چورليدو سره اوجرقيږي. او غرونه به هيبت ناكې طريقې سره روان شي. نو په هغه ورځ به لويه خرابي وي. د هغې خلقو دپاره چه حق لره دروغ گنړي. هغه كسان چه په عبثو خبرو كښې لوبې كوي چه كله دوي ديكه كړې شي اور د جهنم ته په ديكه كولو سره. چه دا هغه اور دې. چه تاسو به دروغ گنړلو. آيا دا جادو دې. يا تاسو اوس هم هيڅ نه وينئ. داخل شئ په دې كښې. بيا كه تاسو صبر كوئ او كه نه كوئ. ستاسو دپاره برابر دې. يقيناً بدله دركولې شي تاسو ته دهغې عملونو چه تاسو كول. متقيان خلق به بې شكه په باغونو او نعمتونو كښې وي. ددوي پروردگار چه دوي ته كوم نعمتونه وركړې دي. او ددوي پروردگار چه دوي لره د كوم عذاب دجهنم نه بچ كړې وو. په هغې باندې به خوشحالي كونكې وي (دوي ته به اووئيلې شي) چه ښه په مزې سره خورئ او څكئ د هغې عملونو بدله كښې چه تاسو به كول.

تکیه به ئې وهلې وی، په قطار کړې شوؤ تختونو باندې، او مونږ به دوی ته په نکاح سره غټو غټو سترګو والا حورې ورکړو. او کومو خلقو چه ایمان راوړې دې، او دهغوی اولاد هم په ایمان کښې د هغوی تابعداری کړې ده. نو دهغوی اولاد به هم مونږ هغوی سره یوځائې کړو، اودهغوی په عمل کښې به دهیڅ څیز کمې نه کوؤ هر انسان ځان د خپلې ګټې په بدله کښې رهن (ګالره) ایخودلې شوې دې او مونږ به دوی ته پرله پسې میوې، او غوښه ورکړو، څه چه ددوی زړونه غواړی. هلته کښې به دوی د شرابو په جامونو باندې داسې (دوستانه) جګړې کوی، چه په هغې کښې به نه بے فائدې خبرې وی، او نه څه ګناه او ددوی نه ګیر چاپیره به داسې ځوانان ګرځی راګرځی، چه هم ددوی د خدمت دپاره به مخصوص وی، داسې خائسته لکه پټ ساتلې شوې لعلونه. او دوی به یو بل ته مخامخ شی، د حالاتو تپوسونه به کوی. اوبه وائی چه مونږ یقیناً ددې نه مخکښې په خپله کورنئ کښې (یعنی دنیا کښې) ویره کونکی وو. پس الله تعالیٰ په مونږ باندې لوئې احسان اوکړو، او مونږ ئې د عذاب د ګرمې هوا نه بچ کړو. مونږ به ددې نه مخکښې د هغه نه دعاګانې غوختلې. حقیقت دادې، چه هم هغه دې، چه لوئې محسن او ډیر مهربان دې.

## خلاصه تفسیر

﴿وَالطُّوْرِ﴾ قسم دې په طور[غر] ﴿وَكِتٰبٍ مَّسْطُوْرٍ فِيْ رَقٍّ مَّنْشُوْرٍ﴾[او په هغه کتاب چه په بنکاره کاغذ کښې لیکلې دې] مراد ددې نه اعمال نامه ده دکومې په نسبت چه په نورو ایتونو کښې راغلې دی [كتابا یلقه منشورا](١) او په کوم شی کښې چه دغه لیکلې شوې ده هغې ته ئې تشبیهاً کاغذ وئیل ﴿وَالْبَيْتِ الْمَعْمُوْرِ﴾[او] قسم دې [په بیت المعمور] چه په اووم آسمان کښې عبادت خانه ده دفرښتو لکه چه په الدر کښې دی مرفوعا(٢) ﴿وَالسَّقْفِ الْمَرْفُوْعِ﴾[او] قسم دې [په اوچت چت] مراد آسمان دې الله تعالیٰ فرمائی وجعلنا السماء سقفا محفوظا(٣) او الله ﷻ فرمائی الله الذی رفع السموت(٤) او دا تفسیر د حضرت علی رضی الله عنه نه په صحیح سندسره په کنز العمال کښې دمستدرك او حاکم نه ذې(٥) ﴿وَالْبَحْرِ الْمَسْجُوْرِ﴾[او] قسم دې [په دریائ شور کوم چه] داوبو نه [ډك دې] وړاندې جواب دقسم دې ﴿اِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ لَوَاقِعٌ﴾[چه بیشکه ستا د رب عذاب به خامخا واقع کیږی ﴿مَّا لَهٗ مِنْ دَافِعٍ﴾ څوك ئې منع کولې نه شی] او دابه په هغه ورځ واقع کیږی﴿يَّوْمَ تَمُوْرُ السَّمَآءُ مَوْرًا﴾ په کومه ورځ چه به اسمان وخوزیږی﴿وَّتَسِيْرُ الْجِبَالُ سَيْرًا﴾ او غرونه به [د خپل ځائ نه] په ځنګ شی [مراد دقیامت ورځ ده او خوزیدل یا خو په اعتبار دمعنی متبادر وی یا مراد ددې نه څیریدل دی کوم چه په نورو ایتونو کښې دی فاذا انشقت السماء(٦) په روح المعانی کښې دابن عباس رضی الله عنه نه دواړه تفسیرونه نقل دی(٧) اوبه دواړو کښې څه تعارض

---

(١) ترجمه:- او مونږ دده اعمال نامه دده دپاره رااوباسو او مخې ته به ئې ورته کیږدو.

(٢) الدرالمنثور تحت هذه الآیة [ج:۹ ص:۳۰۶]

(٣) ترجمه:- او مونږ آسمان یو چت جوړ کړې دې چې محفوظ دې.

(٤) ترجمه:- الله تعالیٰ داسې(قادر ) دې چې هغه ذات آسمانونه بغیر د ستونو نه اوچت اودرولی دی.

(٥) المستدرك للحاکم رقم الحدیث:[۳۷٤۳]

(٦) ترجمه:-غرض دا چې کله آسمان اوشلیږی.

(٧) روح المعاني [ج:۱۹ ص:٤٢٨]

نښته وړاندې وروستو د دواړو تحقق کيدې شي اودلته د غرونو په ځنګ کيدل ذکر دي او په نورو ايتونو کښې خس خس کيدل بياالوتل ذکر دي لکه داقول ينسفهاربي() اوداقول بست الجبال بسافكانت هباء(٢) او په دې قسمونو کښې دا مقصد ذهن ته نزدې کول دي دکوم دپاره چه قسم خوړلې شوې دې او هغه داچه د قيامت د وقوع اصل وجه جزاء او سزاء ده او په مجازات کښې مدار د کار شرعي احکام دي پس دطور په قسم خوړو کښې اشاره وشوه چه الله تعالى صاحب کلام او احکام دې بيا ددې احکامو مخالفت يا موافقت مبنى د مجازاتو ده دنامه اعمالو په قسم خوړلو کښې اشاره شوه ددې موافقت يا د ممانعت د محفوظ کيدو يا منضبط کيدو ته مجازات په دې هم موقوف دی چه داحکام الهى اطاعت ضروری امر دې چه فرښتې هم باوجود د دې چه ددوئ دپاره جزا او سزا نشته ددې نه نه دی خلاصی شوی بيا نتيجه مجازات دوه ځيزونه دی جنت او دوزخ د سماء په قسم کښې اشارة اوشوه چې جنت هم دغه شان د رفعت او اوچتوالى مکان دې لکه آسمان او بحر مسجور په قسم کښې اشاره اوشوه چه دوزخ هم داسې خوفناك شې دې لکه سمندر، د تخصيص دا وجه د اقسامو دتقسيم کيدې شي او دنفس قسم توجيه دسوره حجر دايت لعمرك د لاندې او غرض وغايت ئې دسوره صافات په شروع کښې تير شوی دی وړاندې ددغې ورځې ځنې واقعات ارشاد فرمائی چه هرکله دا ثابته شوه چه مستحقينو دعذاب دپاره به عذاب ضرور واقع کيږی ﴿فَوَيْلٌ يَّوْمَىِٕذٍ لِّلْمُكَذِّبِيْنَ﴾[نو کوم خلق چه] قيامت او نورو حقوکارونو توحيد او رسالت لره [دروغژن کوونکی دی]او﴿الَّذِيْنَ هُمْ فِيْ خَوْضٍ يَّلْعَبُوْنَ﴾[کوم چه] دتکذيب[په مشغله کښې په بې هودګئ سره لګيدلی دی] چه په دې سره دوئ مستحق دعذاب شوی دی ﴿يَوْمَ يُدَعُّوْنَ اِلٰى نَارِ جَهَنَّمَ دَعًّا﴾[دهغوئ به په دغه ورځ لويه کم بختی راشی په کومه ورځ چه به دوئ لره د دوزخ د اور طرف ته ورديکه کړې شی] ځکه چه په خوشحالئ هغې ته ځوك راځی؟ بيا چې کله ددوئ دوراچولو وخت راشی نو پداسې حالت سره به نيولې شی اور ورغوزولې شی چې فيؤخذ بالنواصي والاقدام (٣)او دوئ ته به دوزخ وښودلې شي او زجرا به ورته ووئيلې شی چه ﴿هٰذِهِ النَّارُ الَّتِيْ كُنْتُمْ بِهَا تُكَذِّبُوْنَ﴾[دا هغه دوزخ دې کوم چه به تاسو دروغژن کولو] يعنی په کومو ايتونو کښې چه ددې خبرهغه وو به مو دروغژن کولو او دارنګ دغو ايتونو ته به موسحر وئيلو خيردغه خو ستاسو په نزد سحر وو ﴿اَفَسِحْرٌ هٰذَآ اَمْ اَنْتُمْ لَا تُبْصِرُوْنَ﴾[نوآيادا] هم [سحر دې] وګورئ او ووايئ [يا داچه تاسوته] اوس هم [په نظرنه راځی] لکه چه په دنيا کښې د نظر نه راتلو په وجه سره منکر شوی وئ بنه نو اوس ﴿اِصْلَوْهَا﴾ [په دې کښې داخل شئ بياخواه] په دې کښې ﴿فَاصْبِرُوْٓا اَوْ لَا تَصْبِرُوْا ۚ سَوَآءٌ عَلَيْكُمْ ۚ﴾[صبر کوئ اوکه صبرنه کوئ ستاسو په حق کښې دواړه خبرې برابردی] نه داسې کيدې شی چه ستاسو په واويلا سره تاسو ته نجات ملاوشی اونه داسې کيدې شی چه ستاسوپه تسليم او انقياد او سکوت باندې رحم وشی او وويستلې شئ بلکه هميشه به په دې کښې پاتې کيدل وی ﴿اِنَّمَا تُجْزَوْنَ مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ﴾ [اوځنکه چه تاسو

---

[1] ترجمه:- زما رب به بالکل دوئ لره والوزوی.

[2] ترجمه:-او غرونه به ريزه ريزه شی او دا به لکه د غبارې په شان شی.

[3] ترجمه:-دسر وېښتو او پښو نه به رااونيولې شی.

کول هم هغسې بدله به تاسو ته درکولې شي] تاسو کفر کولو کوم چه د ټولو نه لويه نافرماني
او دالله تعالى د حقوقو او غير متناهي کمالاتو ناشکري ده پس په بدله کښې به د دوزخ پاتې
کيدل د هميشه دپاره نصيب وي کوم چه سخت او غيرمتناهي عذاب دې وړاندې ددوئ د
اضدادو بيان دې يعنى ﴿إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي جَنَّٰتٍ وَنَعِيمٍ﴾[پرهيزګارخلق به بيشکه] دجنت [په
باغونو او سامان دعيش کښې وي] او﴿فَٰكِهِينَ بِمَآ ءَاتَىٰهُمْ رَبُّهُمْ﴾ [هغوئ ته چه کوم څيزونه] د
عيش او ارام [دهغوئ پروردګار ورکړي وي په هغې سره به ئې زړونه خوشحاله وي ﴿وَوَقَىٰهُمْ رَبُّهُمْ
عَذَابَ الْجَحِيمِ﴾او د هغوئ پروردګار به هغوئ لره دعذاب ددوزخ نه محفوظ کړي] او په جنت
کښې به ئې داخل کړي وبه فرمائي ورته چه ﴿كُلُوا۟ وَٱشْرَبُوا۟ هَنِيٓـًٔۢا بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ﴾[ښه خورئ څښئ
په مزه سره دخپلو] هغونيکو [عملونو په بدله کښې] کوم چه په دنياکښې تاسوکول ﴿مُتَّكِـِٔينَ
عَلَىٰ سُرُرٍ مَّصْفُوفَةٍ﴾ تکيه لګوونکي په تختونو کوم چه برابر خوارهٔ شوي دي ﴿وَزَوَّجْنَٰهُم بِحُورٍ عِينٍ﴾
اومونږ به دهغوئ د ښائسته غټوسترګو والو سره] يعني د حوروسره [واده اوکړو]داحال خو
دټولو ايماندارو شو[او] وړاندې د هغو خاصومؤمنانو ذکر دې دکومو اولاد چه هم ايماندار وو
پس ارشاد دې چه ﴿وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَٱتَّبَعَتْهُمْ ذُرِّيَّتُهُم بِإِيمَٰنٍ﴾[کوم خلق چه ايمان راوړي او دهغوئ
اولاد هم په ايمان کښې دهغوئ ملګري شول] يعني هغوئ هم ايمان راوړو اګر چه په عملونو
کښې هغوئ د خپلوپلارانو مرتبې ته اونه رسيدل لکه چه عدم ذکر داعمالو ددې قرينه ده او
دارنګه په حديث کښې وضاحت دې چه كانوا دونه في العمل وكانت منازل اباءهم ارفع ولم يبلغوا درجتك
وعملك رواها في الدر المنثور[1] نو ګوياچه ددوئ په عمل کښې دکمي مقتضا دا وه چه ددوئ درجه هم
کمه وي ليکن ددغو مؤمنانو پلارانو د اکرام او خوشحالولو دپاره﴿أَلْحَقْنَا بِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ﴾[مونږ به
دهغوئ اولاد لره هم] په درجه کښې [دهغوئ سره شامل کړو او] ددې شاملولودپاره [په﴿وَمَآ
أَلَتْنَٰهُم مِّنْ عَمَلِهِم مِّن شَىْءٍ﴾ مونږ دهغوئ] يعني متبوعينو جنتيانو[د عمل نه څه شي کم نه
کړو] يعني داسې به نه کوو چه ددې متبوعينو ځنې عملونه واخلو او د دوئ اولاد ته ورکړو
اوکه دواړه برابرول مقصود وي نو ددې يوصورت خو داکيدې شي چه د چاسره شپږ سوه روپۍ
وي ددهٔ نه سل واخلئ او څلور سوۀ والا له ورکړې شي چه دواړو سره پنځه پنځه سوه شي او بل
صورت کوم چه دکريمانو دشان لائق دې دادې چه د شپږو سوو والا نه هيڅ وانخلى بلکه دې
څلور سوو والا ته دوه سوه د خپل طرف نه ورکړي او دواړه برابرکړي پس مطلب دادې چه هلته
په اول صورت نه واقع کيږي چه اثرئ داوي چه دمتبوع نه دعملونو دکميدو په وجه سره دې
لاندې درجې ته راوستلې شي اوتابع پسې لړ پورته بوتلې شي او دواړه په يوه متوسطه درجه
کښې پاتې کړې داسې به نه وي بلکه دويم صورت به واقع شي چه متبوع به په خپله اوچته
درجه کښې وي اوتابع به وريسې هلته وررسولې شي او په متبوع او اولاد کښې دايمان شرط
ځکه دې چه که دغه اولاد مؤمنان نه وي نو دمؤمنانو پلارانو سره نه شي يو ځائ کيدې ځکه
چه دکافرانو نه ﴿كُلُّ ٱمْرِئٍۭ بِمَا كَسَبَ رَهِينٌ﴾[هرسړي په خپلو عملونو] دکفر [کښې به محبوس]
په اورکښې اونيولې شوي [وي] لکه داقول دالله تعالى كل نفس بما كسبت رهينة الا اصحب اليمين[2] په

[1] الدرالمنثور [ج:۹ ص:۳۰۹] و المعجم الکبير للطبراني رقم الحديث:[۱۲۰۸۲](بالأختصار)
[2] ترجمه:- هر سړي به د خپلي اعمال نامي باره کښې محبوس وي مګر ښي طرف والا.

الدرکښې داتفسیر د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه دې(۱) یعنی دنجات هیڅ صورت یې نشته په دې وجه د دوئ یوځائې کیدل د مؤمنانو پلارنو سره نه شي متصور کیدې په دې وجه په یو ځائې کیدو کښې ایمان داولاد شرط دې [او] وړاندې بیا دمطلق ایماندارو او جنتیانو بیان دې چه ﴿وَأَمْدَدْنَٰهُم بِفَٰكِهَةٍ وَلَحْمٍ مِّمَّا يَشْتَهُونَ﴾[مونږ به هغوئ ته میوې او غوښې د څه قسم چه ددوئ خوښې وی روزانه زیاتې ورکوو] او ﴿يَتَنَٰزَعُونَ فِيهَا كَأْسًا لَّا لَغْوٌ فِيهَا﴾[هلته به په خپل مینځ کښې] په طور دخوش طبعئ دشرابو جامونه دیوبل نه تښتوی راتښتوی چه په دغو] شرابو[کښې به د خرابې خبرې] څکه چه نشه به په کښې نه وی [﴿وَلَا تَأْثِيمٌ﴾اونه به څه عبثې خبرې] د عقل او وقار نه خلاف [وی او دهغوئ خواته به] د میوو وغیره دواړو دپاره ﴿وَيَطُوفُ عَلَيْهِمْ غِلْمَانٌ لَّهُمْ﴾ [داسې هلکان خی راځی] داهلکان به څوك وی ددې تحقیق به په تفسیر د سوره واقعه کښې راشی [کوم چه به خاص د دوئ] دخدمت [دپاره وی]اود ډیرحسن او جمال نه به داسې وی چه ﴿كَأَنَّهُمْ لُؤْلُؤٌ مَّكْنُونٌ﴾ [گویا په حفاظت سره ایښودې شوې ملغلرې دی] چه ذره گردوغبار پرې نه وی اوشان شوکت به یې اعلی درجې وی [او] دوئ ته به روحانی خوشحالی هم حاصله وی چنانچه په دې کښې یوبیان دادې چه ﴿وَأَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ يَتَسَاءَلُونَ﴾ [هغوئ به یو بل ته مخامخ شی خبرې به کوی] او په خبرو کښې ﴿قَالُوا إِنَّا كُنَّا قَبْلُ فِي أَهْلِنَا مُشْفِقِينَ ۞ فَمَنَّ اللَّهُ عَلَيْنَا وَوَقَانَا عَذَابَ السَّمُومِ﴾[داسې وائی چه] ورورہ اوکړو [او] مونږ ددې نه مخکښې [یعنی په دنیا کښې] دهغه نه دعاگانې غوښتل] [چې مونږ دوزخ نه اوساته جنت ته مو داخل کړه ، پس الله ﷻ دعا قبوله کړه] هغه واقعة لوئې احسان او مونږ یې د دوزخ د عذاب نه اوساتلو﴿إِنَّا كُنَّا مِن قَبْلُ نَدْعُوهُ ۖ إِنَّهُ هُوَ الْبَرُّ الرَّحِيمُ﴾ [مونږ خو ددې نه وړاندې په خپلو کورونو] یعنی په دنیا[کښې] دکار د انجام نه [ډیر ویریدلو پس خدائې په مونږ لوئې احسان کوونکې مهربان دې [او په دې مضمون سره خوشحاله کیدل ظاهر دی او چونکه دا کارپه دوه حیثیته سره نعمت وو یو فی نفسه د عذاب نه بچ کیدل دویم زمونږ دناکارو ناچیز غرض قبلول په دې وجه په دوه عنوانونو سره یې تعبیر وشو.

## معارف او مسائل

﴿وَالطُّورِ﴾ طور په عبرانی ژبه کښې غر ته وئیلې شی چې ونې [درختې] پرې توکیږی [شنې کیږی]، دلته د طور څخه هغه طور سنین مراد دې چې د مدین په زمکه کښې واقع دې . او چرته چې موسی ﷺ د الله ﷻ سره خبرې کولو شرف حاصل شوې دې ، د احادیثو په روایتونو کښې راغلی دی چې په جنت کښې څلور غرونه د جنت دی ، په دې کښې یو طور دې.[قرطبی](۲)

دطور په قسم خوړلو کښې ددې خاص لوېئ او شرف ته اشاره ده . او دې طرفته هم اشاره ده چې د الله ﷻ د طرفنه د بندگانو دپاره څه کلام او احکام راغلی دی چې پابندی پرې فرض ده .

﴿وَكِتَٰبٍ مَّسْطُورٍ ۞ فِي رَقٍّ مَّنشُورٍ﴾ د رق لفظ په اصل کښې د نرئ څرمنې په معنی کښې استعمالیږی چې د لیکلو دپاره د کاغذ په ځائې به استعمالیدله خو مراد هر هغه څیز دې چې لیکل پرې

(۱) الدرالمنثور تفسیر سورة المدثر [ج:۱۰ ص:۱۳۹]
(۲) تفسیر القرطبي [ ج:۱۷ص:۵۸] و المعجم الکبیر للطبراني رقم الحدیث:[۱۳٤۹٦]

کړې شوی وی او ترجمه ئې کاغذ کولې شی ، او کتاب مسطور څخه مراد یا خو دانسان عمل نامه ده لکه چې د تفسیر په خلاصه کښې لیکلې شوی دی او ځینې مفسرینو ددې څخه مراد قرآن عظیم الشان اخستې دې [قرطبی][1].

**آسمانی کعبه البیت المعمور:** ﴿وَالْبَيْتِ الْمَعْمُوْرِ﴾ بیت معمور په آسمان کښې دفرښتو کعبه ده چې ددنیا دکعبې په برابر کښې ده د صحیحینو په احادیثو کښې ثابت دی چې د معراج په شپه کله چې نبی کریم ﷺ اووم آسمان ته اورسیدو نو هغوئ ﷺ البیت المعمور طرفته بوتلې شو. چې په کښې هره ورځ اویا زره فرښتې د عبادت دپاره داخلیږی او بیا ئې تر قیامته پورې نمبر نه راځی. [ابن کثیر][2]

البیت المعمور د اووم آسمان د اوسیدونکو فرښتو کعبه ده څکه چې د معراج په شپه کله چې نبی کریم ﷺ البیت المعمور ته اورسیدل نو ابراهیم ﷺ ئې اولیدوچې دهغې دیوال ته تکیه لګولی ناست دی. هرکله چې هغوئ د دنیا کعبې بنا کوونکی دی څکه ئې آسمانی کعبې سره هم خاص تعلق قائم دې .[ابن کثیر][3]

﴿وَالْبَحْرِ الْمَسْجُوْرِ﴾ دبحر څخه مراد سمندر دې او مسجور د سجر څخه مشتق دې چې ډیرو معنو دپاره استعمالیږی . یو معنی ئې اور بلول هم ده . ځینې مفسرینو حضراتو هم دا معنی اخستې ده. چې قسم دې په هغه سمندر چې اور به ترې جوړ کړې شی . په دې کښې دې طرفته اشاره ده چې د قیامت په ورځ به اووه سمندرونه اور جوړ شی لکه په یو بل آیت مبارك کښې دی چې :﴿وَاِذَا الْبِحَارُ سُجِّرَتْ﴾ یعنی څلورو واړو طرفونو ته به سمندر اور جوړ شی او په میدان حشر کښې راجمع کیدونکو خلقو نه به راچاپیره شی ، هم دا معنی سعید بن مسیب رحمه الله د علی رضي الله عنه څخه نقل کړې ده ، ابن عباس رضي الله عنه ، سعید بن مسیب رحمه الله، مجاهد رحمه الله ، عبیدالله بن عمیر رضي الله عنه هم دغه تفسیر کړې دې . [ابن کثیر][4]

علی رضي الله عنه څخه یو یهودی تپوس اوکړو چې جهنم چرته دې ؟ نو هغوئ رضي الله عنه ورته اوفرمائیل چې سمندر دې ، یهودی هم چې دپخوانو کتابونو عالم وو دددې تصدیق اوکړو. [قرطبی][5]

او قتاده رحمه الله وغیره د مسجور معنې مملوء یعنی د اوبو څخه ډك کړې ده. ابن جریر رحمه الله هم دا معنی اختیار کړې ده [ابن کثیر][6] هم دا معنی ئې د تفسیر په خلاصه کښې وړاندې بیان شوې ده .

﴿اِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ لَوَاقِعٌ مَّا لَهٗ مِنْ دَافِعٍ﴾ [بیشکه ستاسو د رب عذاب به خامخا واقع کیږی چې هیڅوك ایسارونکې به ئې نه وی]داجواب د قسم دې کوم چې په طور،صحیفو د عملونو،

---

[1] ) تفسیر القرطبي [ ج:۱۷ص:۵۹]
[2] ) تفسیر ابن کثیر[ج: ۷ ص: ٤٢٧] و صحیح مسلم کتاب الإیمان ، باب الإسراء برسول الله ﷺ إلي السماوات [ج:۱ص:۹۱]
[3] ) تفسیر ابن کثیر[ج: ۷ ص: ٤٢٧]
[4] ) تفسیر ابن کثیر[ج: ۷ ص: ٤٢٩]
[5] ) تفسیر القرطبي [ ج:۱۷ص:٦١] و شعب الإیمان للبیهقي رقم الحدیث[٣٦٢] و کنز العمال رقم الحدیث:[٤٦٢٦](بإختلاف)
[6] ) تفسیر ابن کثیر[ج: ۷ ص: ٤٢٩]

البيت المعمور، آسمان او سمندر باندې خوړلې شوې دي . د کوم مضمون دپاره چې قسم خوړلې شوېدې دهغې دابيان دې چې په کافرانو به د الله ﷻ عذاب ضرور واقع کيږي.

**د فاروق اعظم رضي الله عنه واقعه :** فاروق اعظم رضي الله عنه يو ځل سورة طور اولوستو کله چې دې آيت ته اورسيدو نو يو سوړ اسويلې ئې اوکړو او د هغې څخه روستو شل ورځې بيمار وو ، خلق به ئې تپوس ته راتلل خو دا چاته معلومه نشوه چې څه بيماري ده ؟ [ابن کثير][1]

جبير بن مطعم فرمائيلي دي چې زه د مسلمان کيدو څخه ړومبې يو ځل مدينې منورې ته دې دپاره راغلم چې صحابه کرامو رضي الله عنهم سره د جنګ بدر د قيديانو باره کښې خبرې اترې اوکړم ، زه چې وراورسيدم نو نبی کريم ﷺ د ماښام په مونځ کښې سورة طور لوستلو او آواز مبارك ئې د مسجد نه بهر هم آوريدې شو ، کله ئې چې دا آيت مبارك اولوستلو چې : ﴿إِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ لَوَاقِعٌ ۝ مَا لَهُ مِن دَافِعٍ ۝﴾ نا څاپه زما دا حالت شو ګويا چې زړه مې د ويرې څخه چوی ، ما زر اسلام قبول کړو ، ما دغه وخت دا محسوسوله چې ګنی د دې ځائې څخه به اونه ځم ، او راباندې به عذاب راشي .[قرطبی][2]

﴿يَوْمَ تَمُورُ السَّمَاءُ مَوْرًا ۝﴾ په لغت کښې د اوتروالی حرکت ته مور وئيلې شی نو دا د آسما د هغې اوتروالی او د حرکت بيان دې کوم به ئې چې د قيامت په ورځ وی .

**بزرګانو سره نسبی تعلق به په آخرت کښې هم فائده ورکوی خو په ايمان کښې شرط دې :** ﴿وَالَّذِينَ آمَنُوا وَاتَّبَعَتْهُمْ ذُرِّيَّتُهُم بِإِيمَانٍ أَلْحَقْنَا بِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ﴾ يعنی هغې خلقو چې ايمان ئې راوړو او د هغوئ اولاد هم په ايمان کښې دهغوئ تابع پاتې شو يعنی مؤمنان وو نو اولاد به ئې هم ورسره په جنت کښې يو ځائې کړو. د ابن عباس رضي الله عنه د روايت مطابق نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چې د مؤمنانو صالحانو آل اولاد به هم ددغې بزرګانو درجې ته اورسوی . اګر چې هغوئ دعمل په اعتبار سره ددغې درجې حقدار نه وی څکه چې د هغوئ بزرګانو سترګې پريځې شی . [روايت کړو حاکم ، او بيهقی په خپل سنن کښې اوبزار اوابونعيم په حليه کښې ، او ابن المنذر او ابن جرير او ابن ابی حاتم ، دمظهری څخه][3]

اوطبرانی د سعيد بن جبير رضي الله عنه څخه روايت کړې دې هغوئ وائی چې ابن عباس رضي الله عنه اوفرمائيل چې : اوزما ګمان دادې چې هغوئ دې لره د نبی کريم ﷺ څخه روايت کړ يدې چې کله څوك بنده په جنت کښې داخل شی نو دخپل پلار ، مور او اولاد باره کښې به تپوس کوی چې هغوئ چرته دی ؟ ورته به اووئيلې شی چې هغوئ ستاسو درجې ته نه دی رسيدلی دغه کس به عرض او کړی چې ائې پروردګاره ! ماچې کوم عمل کړې وو هغه مې د ځان او ددې ټولو دپاره کړې وو نو د الله ﷻ د جانب څخه به حکم اوشی چې هغوئ هم ده سره د جنت په دغې درجه کښې اوساتئ .[ابن کثير][4]

---

[1] تفسير ابن كثير[ج: ۷ ص: ٤٣٠]

[2] تفسير القرطبي [ ج:۱۷ص:٦٢] و المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث:[١٤٨٤]

[3] تفسير المظهري[ج:۹ص:۹٦] و المستدرك للحاكم رقم الحديث:[٣٧٤٤](بإختصار)و تفسير ابن ابي حاتم رقم الحديث:[ ١٨٦٨٣]

[4] تفسير ابن كثير [ج: ۷ ص: ٤٣٣]

حافظ ابن كثير رحمه الله ددې روايت نقل كولو څخه روستو اوفرمائيل چې په آخرت كښې ددې روايتونو څخه دا ثابته شوه چې د نيكانو صالحانو په بركت به ئې اولاد ته فائده رسيږي او كه د عمل درجه ئې كمه وي ، بيا به هم دخپلو پلارانو پلرونو درجې ته رسولې شي . ددې بل رخ چې د نيك اولاد بركت به ئې مور ، پلار ته هم رسي دا هم د حديث څخه ثابت دی . په مسند احمد كښې د ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دې چې نبی كريم ﷺ اوفرمائيل چې الله ﷻ به د خپلو خينو نيكانو بندګانو درجه په جنت كښې دهغوئ د عمل دمناسبت څخه ډيره پورته كوی ، نو هغه به تپوس اوكړی چې زما پروردګاره ! ماته دامقام او درجه دكومې راكړې شوه ؟ زما عمل خو ددې جوګه نه وو ، نو دا جواب به وركولې شي ، چې ستاسو اولاد تاسو دپاره د بخښنې دعا كړې وه چې د هغې دا اثر دې .[امام احمد روايت كړې دې او ابن كثير اوفرمائيل چې اسناد ئې صحيح دي او تخريج ئې هغوئ اونه كړو ليكن دې دپاره شاهد شته په صحيح مسلم كښې د ابی هريره رضي الله عنه څخه]([1])

﴿وَمَآ اَلَتْنٰهُمْ مِّنْ عَمَلِهِمْ مِّنْ شَيْءٍ﴾ د الت او ايلات لفظی معنی كمول دی [قرطبی]([2]) معنی د آيت دا ده چې الله ﷻ دنيكانو خلقود اولاد د درجو پورته كولو دپاره ددغې نيكانمشرانو د نيك عمل څخه په بدل كښې څه عمل كم نه كړو بلكه پخپل فضل سره ئې دهغوئ درجې ورسره برابر كړې.

﴿كُلُّ امْرِئٍۢ بِمَا كَسَبَ رَهِيْنٌ﴾ يعنی هر انسان به پخپل عمل كښې بنديوان وی داسې به نه وی چې د بل ګناه به د چا په سر واچولې شي، مطلب دا چې په بيان شوې طريقه به د يو نيك عمل بركت بل ته رسيږی خو دګناه اثر به ئې يو بل ته نه رسيږی . [ابن كثير]([3]).

| فَذَكِّرْ | فَمَآ اَنْتَ | بِنِعْمَتِ رَبِّكَ | بِكَاهِنٍ | وَّلَا مَجْنُوْنٍ ﴿۲۹﴾ |
|---|---|---|---|---|
| پس نصيحت كوه | پس نه ئې ته | په نعمت درب خپل سره | فالګر [جوګی] | او نه ليونې |
| نو اې نبي ﷺ ته نصيحت كوه | ته دخپل په فضل سره نه خو كاهن يې | اونه ليونې يې | | |

| اَمْ يَقُوْلُوْنَ | شَاعِرٌ | نَّتَرَبَّصُ | بِهٖ | رَيْبَ الْمَنُوْنِ ﴿۳۰﴾ |
|---|---|---|---|---|
| يا وائی دوئ | چې دې شاعر دې | انتظار كوؤ مونږه | په حق ددهٔ كښې | دګردش دزمانې |
| ايا دوئ دا وائی چې دې شاعر دې | او مونږ په ده باندې د زمانې دحادثاتو انتظار كوؤ | | | |

| قُلْ | تَرَبَّصُوْا | فَاِنِّيْ | مَعَكُمْ | مِّنَ الْمُتَرَبِّصِيْنَ ﴿۳۱﴾ |
|---|---|---|---|---|
| ورته اووايه | تاسو انتظار كوئ | پس بيشكه زهٔ | ستاسو سره | دانتظار كونكونه يم |
| ته ورته اووايه | چې تاسو [زما د هلاكت] انتظار كوئ | اوزه هم [ستاسو د هلاكت] انتظار كونكې يم | | |

| اَمْ تَاْمُرُهُمْ | اَحْلَامُهُمْ | بِهٰذَآ | اَمْ هُمْ | قَوْمٌ طَاغُوْنَ ﴿۳۲﴾ | اَمْ يَقُوْلُوْنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| ايا حكم كوی دوئ ته | عقلونه ددوئ | په دې كار | يا دوئ | يوقوم دې سركشه | ياوائی دوئ |
| ايا ددوئ عقلونه بس دوئ ته دا ښائی اوكه دا خلق سركشه دی؟ | ............ايا دوئ وائی | | | | |

[1]) تفسير ابن كثير [ج: ۷ ص: ٤٣٤] و سنن ابن ماجة، ابواب الأدب ،باب بر الوالدين [ج: ۲ ص: ۲٦۰ ] مسند احمد، مسند ابي هريرة رضی الله عنه رقم الحديث:[۱۰٦۱۰]

[2]) تفسير القرطبي [ ج:۱۷ص:٦۷]

[3]) تفسير ابن كثير [ج: ۷ ص: ٤٣٤]

تَقَوَّلَهٗ ۚ بَلْ لَّا يُؤْمِنُوْنَ ۝ فَلْيَاْتُوْا بِحَدِيْثٍ

دخانه جوړ کړي دي دهٔ دا قرآن | بلکه دوئ ایمان نه راوړي | پس راد وړي دوئ | یو کلام |

چي دهٔ [قرآن] دځان نه جوړ کړي دي | داسي نه ده بلکه دوئ ایمان نه راوړي | دوی دي هم

مِّثْلِهٖٓ اِنْ كَانُوْا صٰدِقِيْنَ ۝ اَمْ خُلِقُوْا مِنْ غَيْرِ شَيْءٍ

په مثل ددي | که وی دوئ | ربښتيني | يا پيدا کړي شوي دي دوئ | بغير ديو څيز [خالق] نه |

د دي پشان کلام [جوړ کړي او] هغه دي راوړي | که دوئ ربښتوني وي | آيا دوئ د پيدا کونکي نه بغير

اَمْ هُمُ الْخٰلِقُوْنَ ۝ اَمْ خَلَقُوا السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ ۚ

يا دوئ پيدا کونکی دی دخپل ځان پخپله | يا پيدا کړي دي دوئ آسمانونه | او زمکه |

پخپله پيدا شوی دی | او که دوئ پخپله دځانونو پيدا کونکی دی | آيا دا آسمانونه او زمکه دوئ پيدا کړي دی ؟

بَلْ لَّا يُوْقِنُوْنَ ۝ اَمْ عِنْدَهُمْ خَزَآئِنُ رَبِّكَ اَمْ هُمُ الْمُصَيْطِرُوْنَ ۝

بلکه يقين نه لري دوئ | يا د دوئ سره دي | خزانې | د رب ستا | يا دوئ واکداران دی |

بلکه دوئ يقين نه کوی | آيا دوئ سره ستا د رب خزانې دی | او که دوئ واکداران دی

اَمْ لَهُمْ سُلَّمٌ يَّسْتَمِعُوْنَ فِيْهِ ۚ فَلْيَاْتِ مُسْتَمِعُهُمْ

يا شته دوئ لره | اندر پايه | چی اوريدل کوی | په هغي باندي | پس راد وړي | اوريدونکي د دوئ |

يا دوئ سره داسي اندرپايه ده | چي په هغي [بره خيژي] اوخبري آوري | [که داسي وی] نو چاچي آوريدل کړي وی

بِسُلْطٰنٍ مُّبِيْنٍ ۝ اَمْ لَهُ الْبَنٰتُ وَلَكُمُ الْبَنُوْنَ ۝ اَمْ تَسْــَٔلُهُمْ اَجْرًا

يو دليل ښکاره | يا الله لره | لونړه دي | او تاسو لره ځامن دي | يا ته غواړي د دوئ نه | څه اجر

هغه دي ښکاره دليل پيش کړي | [دوئ نه تپوس اوکړه] آيا د الله ﷻ لونړه دي او ستاسو ځامن | او که ته د دوئ نه

فَهُمْ مِّنْ مَّغْرَمٍ مُّثْقَلُوْنَ ۝ اَمْ عِنْدَهُمُ الْغَيْبُ فَهُمْ

چي ګنی دوئ | د تاوان نه | درانه کړي شوي دی | يا د دوئ سره | غيب دي | چي دوئ

څه بدله غواړي | نو دوی د تاوان په درانه شوی دی؟ | آيا دوئ سره دغيبو څه علم شته

يَكْتُبُوْنَ ۝ اَمْ يُرِيْدُوْنَ كَيْدًا ۭ فَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا

ليکل کوی [دهغي نه] | يا غواړي دوئ | مکر [چل] | پس هغه کسان | چی کافران دی |

چي دوئ هغه ليکی | او که دوئ [تاته] چل جوړ کړي دي | [خودوی ستا څه نشی کولی] بلکه کافران په پخپل

هُمُ الْمَكِيْدُوْنَ ۝ اَمْ لَهُمْ اِلٰهٌ غَيْرُ اللّٰهِ ۭ سُبْحٰنَ اللّٰهِ

هغوئ به راګيرېږی په چل خپل کښې | يا دوئ لره | معبود دي | بغير د الله نه | پاکی ده الله لره |

چل کښي پخپله راګير شي | آيا د الله ﷻ نه سوا د دوئ بل څوک معبود شته؟ | الله ﷻ د دوئ

عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ۝ وَاِنْ يَّرَوْا كِسْفًا مِّنَ السَّمَآءِ

دهغي نه | چی دوئ ئې شريکوی دهغه سره | او که اووينی دوئ | يوه ټوټه | دآسمان نه |

دجوړکړو شريکانو نه پاک دي | او که چري دوئ د آسمان يوه ټوټه راپريوتونکي اووينی

سَاقِطًا يَّقُوْلُوْا سَحَابٌ مَّرْكُوْمٌ ﴿۴۴﴾ فَذَرْهُمْ حَتّٰى

راپریوتونکي | نو اوبه وائی دوئ | چې دا وریځ ده | گوره | پس پریږده دوئ | تر هغې پورې |

نو هغه وخت به هم وائی | چې دا خو قط په قط جوړه وریځ ده | نو دوئ ترهغې وخته پورې پریږده چې

يُلٰقُوْا يَوْمَهُمُ الَّذِيْ فِيْهِ يُصْعَقُوْنَ ﴿۴۵﴾

چې ملاقات اوکړی دوئ | دورځې خپلې سره | هغه ورځ | چې په هغې کښې به | دوئ په تندر وهلې کیږی

هغه ورځ وربانديې راشی | په کومه کښې چې به ددوئ هوش په تندر اولگی |

يَوْمَ لَا يُغْنِيْ عَنْهُمْ كَيْدُهُمْ شَيْـًٔا وَّلَا

هغه ورځ | چې نۀ به دفع کوی | دهغوئ نه | تدبیردهغوئ | هیڅ څیز | اونۀ به دهغوئ سره

هغه ورځ چې ددوئ ټول تدبیرونه به هیڅ په کار نه رانشی | اونه به ورسره [دچرته نه]

هُمْ يُنْصَرُوْنَ ﴿۴۶﴾ وَاِنَّ لِلَّذِيْنَ ظَلَمُوْا عَذَابًا دُوْنَ ذٰلِكَ

امداد کیدې شی|او بیشکه هغه کسانولره|چې ظلم ئې اوکړو|عذاب دې|مخکښې دراتلو ددې وخت نه

مدداوشی|.............اوپه ظالمانو خو ددغې ورځې نه وړاندې یو عذاب راتلونکې دې

وَلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۴۷﴾ وَاصْبِرْ لِحُكْمِ رَبِّكَ

لیکن | زیات ددوئ نه | نۀ پوهیږی | او صبر کوه | حکم درب خپل ته |

خو په دوئ کښې زیات خلق نه پوهیږی | ............ او ته دخپل رب حکم ته انتظار کوه

فَاِنَّكَ بِاَعْيُنِنَا وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ حِيْنَ تَقُوْمُ ﴿۴۸﴾

بیشکه تۀ| په نظر زمونږ کښې ئې | او تسبیح وایه | دحمد درب خپل سره | څۀ وخت چې پاسې تۀ

خکه چې ته زمونږ په نظرکښې یې | اودخپل رب حمد اوتسبیح وایه | څه وخت چې ته پاځې

وَمِنَ الَّيْلِ فَسَبِّحْهُ وَاِدْبَارَ النُّجُوْمِ ﴿۴۹﴾

اودشپې په بعضې حصه کښې | پس تسبیح وایه دهغه | او روستو دستورو نه [یعني دسحر دمونځ نه]

اود شپې په څه حصه کښې دهغه تسبیح وایه| اوستورو [دډوبیدو] نه پس هم

## آسان ترجمه قرآن

لهٰذا (اے پیغمبره علیه السلام) ته نصیحت کوه، ځکه چه ته د خپل پروردګار په فضل سره نه کاهن ئې، او نه لیونې آیا دا خلق داسې وائی چه: دا صاحب شاعر دې، دده باره کښې موږ د زمانې د ګردش انتظار کوؤ او وایه چه: انتظار کوئ، زه هم تاسو سره انتظار کوم. آیا ددوی عقلونه دوی ته ددې حکم کوی، یا دوی دی سر کش خلق؟ آیا دوی وائی چه: دې صاحب دا (قرآن مجید) د ځان نه جوړ کړې دې؟ نه، بلکه دوی (د ضد د وجې نه) ایمان نه راوړی. که دوی واقعی رشتونې دی، نو ددې پشان څه کلام دې د ځان نه جوړ کړی آیا دا خلق بغیر د څه څیز نه په خپله پیدا شوې دی، یا په خپله (دخپل ځان) پیدا کونکې دی؟ یا آیا آسمان او زمکه دوی پیدا کړې دی؟ نه، بلکه اصل خبره داده، چه دوی یقین نه لری. آیا ستا د پروردګار خزانې دوی سره دی، یا دوی په هغې کښې تصرف کونکې دی؟ یا دوی سره څه پوړئ دی، چه په

هغې باندې بره خيژي، او (د عالم بالا) خبرې دې اوري، که داسې وي، نو په دوی کښې چه چا اوريدلې دی، هغه دې واضحه ثبوت راوړي آيا د الله تعالی په حصه کښې لونړه دی، او ځامن ستاسو په حصه کښې راغلې دی او آيا ته ددوی نه څه اجرت غواړې، چه دهغې په وجه دوی د تاوان د بوج نه درانه شوې دی؟ يا دوی سره د غيب علم دې، چه هغې لره دوی ليکی؟ آيا دوی څه مکر کول غواړی؟ نو په حقيقت کښې چه کوم کافران دی، مکر په هغوی باندې پريوتونکې دې آيا د الله تعالی نه سوا د دوی څوک خدائې شته؟ پاک دې الله تعالی د هغې شرک نه، کوم چه دوی کوی. او که دوی د آسمان نه راپريوتې يوه ټکړه هم اووينی، نو دا به وائی، چه دا يوه ګوره (درنه) وريځه ده لهٰذا (اے پيغمبره عليه السلام) ته دوی لره (ددوی په حال باندې) پريږده، تردې پورې چه دوی دخپلې هغې ورځې سره مخامخ شی چه په هغې کښې به دوی بے هوشه کړې شی. په کومه ورځ چه ددوی مکر به ددوی هيڅ پکار نه راځی، او نه به دوی سره څوک مدد کولې شی. او ددې نه مخکښې هم ددې ظالمانو دپاره يو عذاب دې ليکن په دوی کښې اکثرو خلقو ته پته نشته، او ته د خپل پروردګار په حکم باندې مضبوط اوسيږه، ځکه چه ته زمونږ په نظر کښې ئې او کله چه ته پاځې، په هغه وخت کښې د خپل پروردګار حمد سره دهغه تسبيح کوه او د شپې هم دهغه تسبيح کوه، او هغه وخت کښې هم، چه کله ستوری ډوبيږی.

## خلاصه تفسير

هر کله چه په تامضامين دتبليغ کولودپاره وحی کيږی لکه چه بره دجنت او دوزخ د مستحقينو تفصيل شوې دې ﴿فَذَكِّرْ فَمَآ اَنْتَ بِنِعْمَتِ رَبِّكَ بِكَاهِنٍ وَّلَا مَجْنُوْنٍ﴾[نو ته] په دې مضامينوسره خلقو لره [پوهوه ځکه چه ته دالله تعالی په فضل سره نه کاهن يې او نه مجنون يې] لکه چه دمشرکانو داقول دسورة والضحی په شان نزول کښې نقل دې قدترکك شيطنك رواه البخاری([1]) ددې مطلب دا دې چه ته کاهن نه شې کيدې ځکه چه کاهن دشيطانانو نه خبرونه حاصلوی او ستا دشيطان سره څه واسطه نشته او په يو آيت کښې دی ويقولون انه لمجنون الاية([2]) په دې کښې تانه دجنون نفی شوې ده مطلب دا چه ته نبی يې او د نبی کار هميشه نصيحت کول دی اګر چه خلق هرڅه بکواس کوی ﴿اَمْ يَقُوْلُوْنَ شَاعِرٌ نَّتَرَبَّصُ بِهٖ رَيْبَ الْمَنُوْنِ﴾ [آيا دا خلق] علاوه دکاهن اومجنون ونيلو نه ستاپه نسبت [داسې] هم [وائی چه دا شاعر دې] او [مونږ ددهٔ په باره کښې دحادثې دمرګ انتظار کوو] لکه چه په درمنثور کښې دی چه قريش په دارالندوه کښې جمع شول او ددهٔ په باره کښې ئې دامشوره وکړه چه لکه څنګه نور شاعران مړهٔ شول او ختم شول دوی ﷺ هم په هغوی کښې يودې دغه شان به دې هم هلاك شی نو د اسلام قصه به ختمه شی ﴿قُلْ تَرَبَّصُوْا فَاِنِّيْ مَعَكُمْ مِّنَ الْمُتَرَبِّصِيْنَ﴾[ته ووايه چه] ښه نو [تاسو انتظار کوئ زهٔ هم تاسو سره منتظريم] يعنی تاسو زماانجام ته ګورئ زهٔ ستاسو انجام ته دې کښې اشارة پيشن ګوئی ده چې څما انجام د فلاح اوکاميابی ده اوستاسو انجام خساره اوناکامی ده اودا مقصود نه دې چه تاسوبه مړهٔ شئ او زهٔ نه مړکيږم بلکه ددغوخلقو چه ددې نه کوم مقصود وو چه ددهٔ دين به ونه چليږی اودې به مړشی نو دين به ئې ختم شی په جواب کښې ددې ردمقصد دې چنانچه هم

[1] صحيح البخاري كتاب التفسير، تفسير سورة الضحى (بالتقديم والتاخير) [ج:۲ص:۷۳۸]
[2] ترجمه:- او وائی چې دې ديوانه دې.

دغسې وشوه او دغه خلق چه داسې داسې خبرې کوی نو ﴿أَمْ تَأْمُرُهُمْ أَحْلَامُهُم بِهَٰذَا ۚ أَمْ هُمْ قَوْمٌ طَاغُونَ﴾ [آیا ددوئ عقلونه] دکوم چه دوئ ډیر مدعیان دی [دوئ ته ددې خبرو تعلیم کوی یاداده چه دا شریر خلق دی] ددوئ دعقل اوپوهې دعوی کول ددوئ دې قول نه ثابته ده چه لوکان خیرا ما سبقونا الیه [احقاف]() اود معالم د نقل نه ددې نورتائیدکیږی چه دقریشوغټان لوئ مشهورعقلمندان وو پس په دې ایت کښې ددوئ دعقل حالت ښودلې شوې دې چه بس صاحبه صرف داعقل دې کوم چه داسې تعلیم درکوی اوکه داد عقل تعلیم نه دې نو خالص شرارت او ضد دې ﴿أَمْ يَقُولُونَ تَقَوَّلَهُ ۚ بَل لَّا يُؤْمِنُونَ﴾ [البته ایا هغوئ دا] هم [وائی چه دوئ دې] قرآن [الره په خپله جوړکړې دې] پس تحقیقی جواب خوددې دادې چه داخبره نه ده [بلکه] دا خبره څکه کوی چې [دا خلق] دعناد د وجې نه ددې اتصدیق نه کوی] اوقاعده داده چه دکوم شی بنده تصدیق نه کوی که په زړګاه هغه حق وی مګرهمیشه ئې نفی کوی اودویم الزامی جواب دادې چه ښه که چرې دا د هغه جوړ کړې وې نو [دا خلق] هم عرب او فصیح او بلیغ او قادر الکلام دی ﴿فَلْيَأْتُوا بِحَدِيثٍ مِّثْلِهِ إِن كَانُوا صَادِقِينَ﴾ [داسې څه کلام دې] جوړکړې [راوړی که دوئ] په دې دعوی کښې [ربښتونی وی] داټول مضامین د رسالت متعلق دی وړاندې د توحیدمتعلق خبرې دی چه داخلق کوم چه د توحیدنه منکردی نو ﴿أَمْ خُلِقُوا مِنْ غَيْرِ شَيْءٍ أَمْ هُمُ الْخَالِقُونَ﴾ [آیاداخلق بغیردڅه خالق نه خود بخود پیدا شوی دی یا دوئ په خپله دخان خالقان دی؟ یا] داچه نه په خپله خالقان دی اونه بغیر دخالق پیداشوی دی لیکن ﴿أَمْ خَلَقُوا السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ﴾ [هغوئ اسمانونه اومزکه پیداکړی دی] اودالله تعالی سره د خالقیت په صفت کښې شریك دی لنډه داچه کوم سړې صفت دخالقیت خاص دالله تعالی سره مخصوص کیدل اوپه خپله دخان هم د خالق دمحتاج کیدوعقیده لری نو عقلاپه دۀ لازمه ده چه دتوحیدهم قائل شی دالله تعالی سره چالره نه شریکوی اوتوحیدنه انکارهغه څوك کولې شی کوم چه دخالقیت صفت دالله تعالی سره مخصوص نه ګڼړی یا دخپل مخلوقیت نه منکروی اوچونکه داخلق دخپل غور او فکر د نیشتوالی په وجه په دې نه پوهیږی چه هرکله خالق یودې نو معبود هم لازمی یوېکاردې په دې وجه وړاندې ددوئ ددې جهل طرف ته اشاره ده چه په واقع کښې داسې نه ده ﴿بَل لَّا يُوقِنُونَ﴾ [بلکه داخلق] په وجه دجهل په توحید [یقین نه کوی] دغه جهل دادې چه په دې کښې غورنه کوی چه په خالقیت اومعبودیت کښې تلازم دې داخبرې دتوحید متعلق بیان شوې وړاندې درسالت متعلق ددوئ د نورو ګمانونو رددې چنانچه هغوئ به داهم ونیل چه که نبوت ملاویدې نوفلانی فلانی سردارد مکې یا طائف ته به ملاوشوې وو حق تعالی ددې جواب ورکوی چه ﴿أَمْ عِندَهُمْ خَزَائِنُ رَبِّكَ﴾ [آیاددې خلقو سره ستاسودرب] دنعمتونو اورحمت نو چه نبوت په کښې هم داخل دې [خزانې دی] چه کنی چالره غواړی نبوت ورکړی لکه داقول دالله تعالی دې اهم یقسمون رحمة ربك() ﴿أَمْ هُمُ الْمُصَيْطِرُونَ﴾ [یاداخلق] ددې محکمې دنبوت [حاکمان دی] چه چالره غواړی نبوت ورکوی یعنی د ورکولو دوه صورتونه دی یو خودا چه مثلاً خزانه یې په خپله قبضه کښې وی دویم داچه په قبضه کښې نه وی خوقابضان دخزانې

---

[1] ترجمه:- اوکه دا قرآن پاك څه ښۀ څیز وی نو دې خلقو به دې طرف ته زمونږ نه مخکښې والې نه کولو.
[2] ترجمه:-آیا دا خلق ستا درب رحمت تقسیمول غواړی؟

دده محکوم وی چه دده دستخط وینی نو ورکوی دلته يې ددوارو نفی وفرمائیله مطلب يې دادې چه داخلق کوم چه درسالت محمدیهﷺ نه منکر دی اودمکې او طائف سرداران درسالت مستحق ګرځوی دوئ سره ددې څه عقلی دلیل خوشته نه بلکه په خپله ددې په عکس عقلی دلیلونه قائم دی او په دې وجه يې صرف په استفهام انکاری سره بس وفرمائیلو اوس وړاندې ددلیل نقلی نفی فرمائی یعنی ﴿اَمْ لَهُمْ سُلَّمٌ يَّسْتَمِعُوْنَ فِيْهِ﴾ [ایاددې خلقو سره څه اندر پایه ده چه په هغې سره] اسمان ته خیژی [خبرې اوړی] یعنی دلیل نقلی وحی اسمانی ده او ددې دعلم دوه طریقې دی یاخو وحی په چا دآسمان نه نازله شی یا صاحب وحی اسمان ته وخیژی او ددې دواړو نفی کیدل ددې خلقو نه ښکاره دی وړاندې ددې په حقله دیوعقلی احتمال ابطال فرمائی چه که فرض کړه داخلق دا دعوی کوی چه مونږ اسمان ته خیژو اودهغه ځائ خبرې اوړو ﴿فَلْيَاْتِ مُسْتَمِعُهُمْ بِسُلْطٰنٍ مُّبِيْنٍ﴾ [نو په دوئ کښې چه کوم] دهغه ځائ [خبرې اوریدلی وی] په دې دعوه دې [څه صفادلیل پیش کړی] چه په هغې سره ثابته شی چه داسړې په دې وحی مشرف شوې دې لکه چه زمونږ نبی په خپله وحی بانددلیلونه خارقه یقینیه لری وړاندې بیا د توحید په باره کښې دیوخاص مضمون په حقله خبره ده یعنی دتوحیدمنکران چه کوم فرښتو ته دالله تعالی لونړه وائی اوشرك کوی نومونږ د دوئ نه تپوس کوو چه ﴿اَمْ لَهُ الْبَنٰتُ وَلَكُمُ الْبَنُوْنَ﴾ [ایا دالله تعالی دپاره لونړه] تجویز شوې [اوتاسو دپاره ځامن] تجویز شول یعنی دخان دپاره خو هغه شې خوښوئ کوم لره چه د اعلی درجې ګنړئ اودالله تعالی دپاره هغه شې تجویز کوئ کوم چه د ادنی درجې ګنړئ چه بیان يې دسورۀ صافات په اخرکښې په تفصیل سره اومدلل تیر شوې دې وړاندې بیا درسالت متعلق خبره ده چه ستاد رسالت دحقانیت ثابتیدو باوجود که داخلق ستا تابعداری کول دومره بدګنړی نو ﴿اَمْ تَسْـَٔلُهُمْ اَجْرًا فَهُمْ مِّنْ مَّغْرَمٍ مُّثْقَلُوْنَ﴾ [ایاته ددوئ نه څه معاوضه په تبلیغ د احکامو غواړې چې هغه تاوان دوئ ته ګران دی] او دا د الله تعالی دې قول په شان دې امرتسئلهم خرجاالخ(1) وړاندې دقیامت اوجزا په حقله دا کلام دې چې دا خلق وائی چې قیامت خو نشته دې او که فرض که وی هم نو مونږ به هلته هم په ښه حالت کښې یو لکه داقول دالله تعالی دې وماأظن الساعة قائمة ولئن رجعت الی ربی ان لی عنده للحسنی(2) نومونږ ددې په خقله ددوئ نه تپوس کووچه ﴿اَمْ عِنْدَهُمُ الْغَيْبُ فَهُمْ يَكْتُبُوْنَ﴾ [آیا د دوئ سره] علم د [غیب دې چه دوئ] هغې لره دمحفوظ کولو دپاره [لیکی] داد احقر په نزد کنایه ده دیحفظون نه خکه چه کتابت طریقه ده دحفظ پس لنډه داشوه چه په کوم کاراثباتا یانفیاڅه عقلی دلیل قائم نه وی هغه محض غیب دې ددې دعوی اثباتایا نفیا هغه څوك کوی چالره چه په څه واسطې سره په دغو غیبو مطلع کړې شی او بیا دمطلع کیدونه پس هغه دامحفوظ هم ساتی په دې وجه که د معلومیدو نه پس محفوظ نه وی بیا هم حکم او دعوی به بغیر عمله وی پس تاسو چه کوم دقیامت دنفی اودخان دپاره دحسنی قائل يئ نو ایاتاسو ته په غیبوباندې په څه واسطې سره اطلاع درکړې شوې ده لکه چه زمونږ نبیﷺ ته دقیامت داثبات اوتاسونه

(1) ترجمه:- یا ته ددوئ نه څه کته غواړې.

(2) ترجمه:-او څه قیامت والا راتلونکی خیال کښې نه راولم او که څه خپل رب ته اورسیدم نو ما لره هغه ته رسیدل هم بهتر دی.

دښه حالت دنفی خبر غیبی [په واسطه] د وحی ورکړې شوې دې اوهغه دامحفوظ ساتی اونورو ته ئې رسوی وراندې درسالت په حقله یوه بله خبره ده هغه داچه ﴿أَمْ يُرِيدُونَ كَيْدًا﴾ [ایاداخلق دصاحب رسالت سره [دڅه بدئ کوول اراده لری] چه بیان ئې په نورو ایتونو کښې دې واذیمکربك الذین کفروا لیثبتوك اویقتلوك اویخرجوك ﴿فَالَّذِينَ كَفَرُوا هُمُ الْمَكِيدُونَ﴾(١)[پس داکافران په خپله به ددې [بدئ] په وبال کښې [ګرفتار شی] چنانچه په دې قصدکښې ناکامه شول اوپه بدرکښې قتل شول وراندې بیا دتوحیدپه حقله خبره ده چه ﴿أَمْ لَهُمْ إِلَٰهٌ غَيْرُ اللَّهِ ۚ سُبْحَانَ اللَّهِ عَمَّا يُشْرِكُونَ﴾[ایاددوئ دپاره دالله تعالی نه سوا بل معبود دې الله تعالی ددوئ د شرك نه پاك دې او] وراندې بیا درسالت په حقله یوه خبره ده هغه داچه داخلق درسالت دنفی دپاره یوه خبره داهم کوی چه مونږ خو ستارسالت به هله ومنو چه ته په مونږ داسمان یوه ټکړه راوغورزوې لکه چه الله تعالی فرمائی وقالوالن نؤمن نه تراوتسقط السماء کما زعمت علینا کسفا() پوری پس ددې جواب دادې چه اول خو په دعوی باند خواه دغه دعوی درسالت وی یابل څه مطلق دلیل په دې شرط چه صحیح وی قائمول کافی دی کوم چه د رسالت ددعوی په وخت کښې بغیر دڅه قدح او جرح قائم دې اودڅه خاص دلیل قائمول ضروری نه دی اونه په دې سره په دعوی دنبوت کښې څه قدح لازمیږی تبرعاکه څه فرمائشی دلیل قائم کړې شی نو داهغه وخت کله چه په دې کښې څه مصلحت وی مثلا درخواست کوونکې طالب حق وی نو دا وګنړلې شی چه خیر په دې ذریعه به ده ته هدایت وشی اویا بل څه معتدبه حکمت وی اودلته دامصلحت هم نشته ځکه چه ددوئ دا فرمائش دحق دپاره نه دې بلکه محض د تعنت اوعناد په وجه دې او دغه داسې ضدیان دی چه ﴿وَإِن﴾ [که چرې] ددوئ دافرمائشی معجزه ظاهره هم شی او﴿يَرَوْا كِسْفًا مِّنَ السَّمَاءِ سَاقِطًا﴾[هغوئ د آسمان ټکړې لره ووینی] هم [چه راورانه ده راغورزیږی نو] هغې ته هم ﴿يَقُولُوا سَحَابٌ مَّرْكُومٌ﴾[داسې به ووائی چه دا خوقط په قط وریځ ده] لکه دا قول دالله تعالی دې [وَلَوْ فَتَحْنَا عَلَيْهِم بَابًا مِّنَ السَّمَاءِ فَظَلُّوا فِيهِ يَعْرُجُونَ](٢) پس هرکله چه مصلحت هم نه دې او د نورو مصلحتونو نفی هم مونږ ته معلومه ده بلکه ددوئ فرمائشی معجزې واقع کیدل خلاف حکمت دی پس هرکله چه ضرورت نشته مصلحت نه دې بلکه خلاف مصلحت دی بیاولې واقع کړې شی اونه ددې دوقوع په نشت باندې دنبوت نفی کیږی وراندې ددوئ په غلوفی الکفر باندکوم چه بره ایتونو نه او په شدت عناد باندکوم چه داخری ایت نه معلومیږی په طور دتفریع نبی کریم ﷺ ته تسلی ورکړې شوې ده فرمائی چه هرکله داخلق داسې طاغیان او باغیان او غالیان دی ﴿فَذَرْهُمْ حَتَّىٰ يُلَاقُوا يَوْمَهُمُ الَّذِي فِيهِ يُصْعَقُونَ﴾[نود دوئ نه] دایمان په توقع کولو غم مه کوه بلکه [دوئ لره] د دوئ په حالت باندې [پریږده تردې چه ددوئ دخپلې هغې ورځې سره واسطه

---

١) ترجمه:- او د هغه واقعې ذکر هم اوکړه چې کله دې کافرو ستا باره کښې سوچ او تدبیر کولو چې تالره قید کړی یا تا لره قتل کړی یا تا د وطن نه اوباسی.

٢) ترجمه:-اودوئ وائی چې مونږ به په تاهیڅرې ایمان نه راوړو ترڅو چې ته مونږ له دزمکې دتل نه یوه چینه راونه باسې یا ستا د کهجورو اوانګورو باغ وی اوته دهغې په مینځ کښې ځائې په ځائې نهرونه اوبهیوې یا څنګه چې ته وائې چې په مونږ باندې دآسمان نه ټکړې راونه غورزوې

٣) ترجمه:- اوکه مونږ ددوئ د پاره په آسمان کښې یو دروازه کهولاؤ کړو او بیا دوئ دورځې په وخت په هغې اوخیژی.

پریوخی په کومه کښې چه به بې هوشه شی] مراد دقیامت ورځ ده او ددې صعق تفصیل دسورة زمر په اخری ایت ونفخ الخ() په تفسیر کښې تیرشوې دې او دحتی دمعنی تحقیق د سورة زخرف په اخرکښې کوم ځائې چه حتی یلاقو راغلې دې تیر شوې دې وړاندې ددغې ورځې بیان دې یعنی ﴿يَوْمَ لَا يُغْنِي عَنْهُمْ كَيْدُهُمْ شَيْئًا﴾[په کومه ورځ به چه ددوئ تدبیرونه] کوم چه ئې په دنیاکښې داسلام د مخالفت او دخپلې کامیابئ په باره کښې کول [ددوئ هیڅ پکار رانه شی﴿وَلَا هُمْ يُنْصَرُونَ﴾ اونه] دچرته نه به [دوئ ته مدد ملاوشی] نه دمخلوق دطرف نه چه ددې خو امکان نشته اونه دخالق د طرف نه چه ددې خو وقوع نشته یعنی دغه ورځ به حقیقت معلوم شی باقی ددې نه دیخوا ایمان راوړونکې نه دی [او] په اخرت کښې خودا مصیبت به په دوئ راځی لیکن ﴿وَإِنَّ لِلَّذِينَ ظَلَمُوا عَذَابًا دُونَ ذَٰلِكَ﴾[ددې ظالمانو دپاره وړاندې ددې] عذاب [نه هم عذاب کیدونکې دې] یعنی په دنیاکښې لکه قحط او په غزوه بدر کښې قتل کیدل ﴿وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ﴾[لیکن په دوئ کښې اکثرو ته معلومه نه ده] اکثرئ شایدپه دې وجه وفرمائیل چه دځنو دپاره ایمان مقدر وو او ددوئ عدم علم په وجه ددې چه په علم سره بدلیدونکې وو په دې وجه ئې دغه عدم علم مقرر نه کړو [او] هرکله چه تاته معلومه شوه چه مونږ ددوئ دسزا دپاره یو وخت معین کړې دې نو ﴿وَاصْبِرْ لِحُكْمِ رَبِّكَ﴾[ته دخپل رب په] دې [تجویز په صبرسره کښینه] او ددې خلقو دپاره دالله تعالی د انتقام تلوار مه کوه کوم چه ته دمسلمانانو دخواهش او ددوئ دامداد په حیثیت سره غواړې اومه په دې خیال سره په انتقام کښې تلوار کوه چه داخلق به دمهلت په موده کښې تاته څه ضرر ورسوی پس ددې هم څه اندیښه مه کوه ﴿فَإِنَّكَ بِأَعْيُنِنَا﴾ ځکه چه [ته زمونږ په حفاظت کښې یې] بیاویره د چاده چنانچه هم داسې وشوه [او] که ددوئ دکفر غم په زړه راځی نو علاج ئې دادې چه الله تعالی طرف ته توجه کوه مثلا داچه ﴿وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ حِينَ تَقُومُ﴾[دپورته کیدو په وخت کښې] مثلا دمجلس نه یاد خوب نه دپورته کیدو په وخت مثلا په تهجدکښې [دخپل رب تسبیح او ثناوایه ﴿وَمِنَ اللَّيْلِ فَسَبِّحْهُ وَإِدْبَارَ النُّجُومِ﴾ او دشپې] په څه حصه [کښې هم دهغه تسبیح وایه] مثلا دماسختن په وخت کښې [او دستورو] دپریوتو[نه وروستوهم] مثلا دسحر مونځ اومطلق ذکر هم په دې کښې راغې او تخصیص ددې وختونو په خاصو وجوهاتو سره د اهتمام دپاره دې مطلب داچه خپل زړه دې خوا مشغول ساته بیا به دفکر او غم غلبه نه وی.

## معارف او مسائل

﴿فَإِنَّكَ بِأَعْيُنِنَا﴾ ددښمنانو د دښمنئ اومخالفت اودروغژنئ کولو څخه نبی کریم ﷺ ته تسلئ ورکولو دپاره په آخر دسورة کښې ئې رومبې دا اوفرمائیل چې: تاسو زمونږ په نظر کښې یئ ، یعنی زمونږ په حفاظت کښې یئ ، مونږ بهٔ تاسو ﷺ لره دهر شر څخه ساتو ، تاسو ددوئ د هیڅ خبرې پرواه مه کوئی. لکه چې په یو بل آیت مبارك کښې دی چې: ﴿وَاللَّهُ يَعْصِمُكَ مِنَ النَّاسِ﴾ الله تعالی بهٔ دخلقو نه ستاسو حفاظت فرمائی.

دې څخه روستو د الله ﷻ په تسبیح او تحمید کښې د مشغولیدو حکم ئې اوفرمائیل چې د ژوند اصل مقصد هم دې او د هر مصیبت څخه د بچ کیدو یې اصلی علاج هم اوفرمائیلو.

---

[1] ترجمه:- او شپیلی کښې به پوك اووهلې شی.

﴿وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ حِينَ تَقُومُ﴾ [د الله ﷻ حمد و تسبیح کوئی کله چې تاسو ولاړ شئ] د راولاړیدو مطلب د خوب څخه راپورته کیدل هم کیدې شی .ابن جریر رحمه الله دې لره اختیار کړی دی[1] ددې تائید دهغې حدیث پاك څخه هم کیږی چې امام احمد رحمه الله د عباده بن صامت رضی الله عنه څخه نقل کړې دې چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې څوك د شپې بیدار شی او داکلمات ئې اووئیل نو چې څه دعا کوی قبلولې به شی ، هغه کلمات دادی : ﴿لااله الاالله وحده لاشريك له له الملك وله الحمد وهو على كل شئ قدير، سبحان الله والحمد لله ولا اله الا الله والله اكبر ولا حول ولا قوة الا بالله﴾ بیا که دهٔ د مونځ کولو اراده اوکړه نو مونځ بهٔ ئې قبلولې شی .[ابن کثیر][2]

**دمجلس کفاره :** او مجاهد رحمه الله او ابوالاحوص رحمه الله وغیره د تفسیر امامانو فرمائیلی دی چې د ﴿حِينَ تَقُومُ﴾ څخه مراد دادې چې کله څوك د یو مجلس څخه پورته شی نو دادې وائی : [سبحانك اللهم وبحمدك].

عطاء بن ابی رباح رحمه الله ددې آیت مبارك په تفسیر کښې اوفرمائیل چې کله تاسو دخپل مجلس څخه پورته شئ نو تسبیح او تحمید وائې . که تاسو په دې مجلس کښې څه نیك کار کړې وی نو دهغه په نیکئ کښې به زیاتوالې اوبرکت حاصلیږی اوکه غلط کار ئې کړې وی نو داکلمات به ئې کفاره شی .

د ابی هریره رضی الله عنه څخه روایت دې چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چې څوك په یو مجلس کښې کینی او په هغې کښې ښې خرابې خبرې وی نو ددغې مجلس څخه دپورته کیدو څخه وړاندې وړاندې که هغهٔ دا کلمات اووئیل نو الله ﷻ بهٔ دهغه ټولې خطاګانې معاف کړی . کوم چې ترې دغه مجلس کښې شوی وی . هغه کلمات دادی :

﴿سبحانك اللهم وبحمدك اشهد ان لا اله الا انت استغفرك واتوب اليك﴾

ترمذی روایت کړې دې چې دا ئې الفاظ دی اونسائی په عمل الیوم واللیلة کښې روایت کړې دې او ترمذی ورته حسن صحیح حدیث وئیلې دې[3] ، [ابن کثیر څخه][4]

﴿وَمِنَ اللَّيْلِ فَسَبِّحْهُ﴾ [په شپه کښې تسبیح کوئ] په دې کښې دماښام اوماسختن مونځ هم داخل دې او عام تسبیحات هم .

﴿وَإِدْبَارَ النُّجُومِ﴾ [یعنی د ستورو ډوبیدو څخه روستو] مراد دادې څخه د صبا مونځ او ددغې وخت تسبیحات دی [ابن کثیر][5].

تمت سورة الطور بحمد الله سبحانه عصر يوم الاربعاء لثلاث وعشرين
من ربيع الاول سن ۱۴۳۱ والله المسئول لاتمام الباقي بعونه وحسن توفيقه

---

[1] تفسیر الطبري [ج:۲۲ ص:۴۸۹]

[2] تفسیر ابن کثیر [ج: ۷ ص:۴۳۹] و صحیح البخاري کتاب الجمعة ،باب فضل من تعار من اللیل فصلی [ج:۱ص:۱۵۵] و سنن ابوداود، کتاب الأدب ، باب مایقول الرجل إذا تعار من اللیل [ج:۲ص:۶۸۹] و مسند احمد، حدیث عبادة بن الصامت رضی الله عنه رقم الحدیث:[۲۲۶۷۳]

[3] جامع الترمذي ، ابواب الدعوات باب مایقول إذا قام من المجلس [ج:۲ ص:۱۸۱]

[4] تفسیر ابن کثیر [ج: ۷ ص: ۴۴۰، ۴۴۱]

[5] تفسیر ابن کثیر (بالإختصار) [ج: ۷ ص: ۴۴۱]

| آياتونه | سورة النجم مكية وهي اثنتان وستون اية وثلاث ركوعات | ركوع ګانې |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ۶۲ | شروع کوم په نوم د الله چه ډيرمهربان زيات رحم کونکې دې | ۳ |

وَالنَّجْمِ إِذَا هَوٰى ۝١ مَا ضَلَّ صَاحِبُكُمْ

قسم دې په ستورى | كله چې ډوب شى | نه دې بې لارې شوې | ملګرې ستاسو |

قسم دې په ستورى څه وخت چې ډوبيږى | چې ستاسو ملګرې [پيغمبر] نه بې لارې شوې دې اونه

وَمَا غَوٰى ۝٢ وَمَا يَنْطِقُ عَنِ الْهَوٰى ۝٣ إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ

اونه په غلطه لار روان دې | اونه خبرې كوى | دخواهش نه | نه دې دا قرآن | مګر | وحى ده |

په غلطه ګمراه شوې دې | او هغه دخپل خان نه خبرې نه جوړوى | د هغه خوهره خبره يو وحى ده |

يُوحٰى ۝٤ عَلَّمَهُ شَدِيدُ الْقُوٰى ۝٥ ذُو مِرَّةٍ فَاسْتَوٰى ۝٦

چې ليږلې كيږى هغه ته | ښودلى ده هغه ته | سخت قوت والا | خاوند دحكمت | بيا مخامخ ودريدو

چې هغه ته كولې شى | هغه ته يوه طاقتوره فرښته خودنه كوى | چې د حكمت خاونده ده | پس مخامخ شو

وَهُوَ بِالْأُفُقِ الْأَعْلٰى ۝٧ ثُمَّ دَنَا فَتَدَلّٰى ۝٨ فَكَانَ

او هغه وو | په كناره لوړه باندې | بيا نزدې راغې | او ودريدو په هوا كښې | پس شو نزدې |

په داسې حال كښې چې دافق په اوچته غاړه ولاړوو | بيا رانزدې شوه | نو د دوو ليندو

قَابَ قَوْسَيْنِ أَوْ أَدْنٰى ۝٩ فَأَوْحٰى إِلٰى عَبْدِهِ

په برابرئ | ددوو ليندو | يا ډير نزدې دې ددې نه | پس وحى اوكړه هغه | بنده دالله ته |

هومره فاصله ترمينځه پاتې شوه | يا د دې نه څه كمه | نو الله ﷻ خپل بنده ته وحى اوكړه

مَا أَوْحٰى ۝١٠ مَا كَذَبَ الْفُؤَادُ مَا رَاٰى ۝١١

هغه چې وحى ئې اوكړه | دروغ نه كړل زړه | هغه څه | چې اوليدل هغه په سترګو |

څه وحى چې ئې ورته وكړه | د هغه زړه هيڅ غلطى نه ده كړې څه چې ئې ليدلى وو.

أَفَتُمٰرُونَهُ عَلٰى مَا يَرٰى ۝١٢

آيا پس تاسو جګړه كوئ دهغه سره | په هغه څيز باندې | چې وينى ئې هغه په سترګو |

نو آيا تاسو ورسره په هغه څيز كښې جګړه كوى | چې هغه په خپلو سترګو ليدلې دې

وَلَقَدْ رَاٰهُ نَزْلَةً أُخْرٰى ۝١٣ عِنْدَ سِدْرَةِ الْمُنْتَهٰى ۝١٤ عِنْدَهَا

او بيشكه وې ليدو هغه | په راكوزيدو كښې بل خل | دونې دبيرې آخرى سره | چې دهغې سره

اوهغه دغه [فرښته] يو بل خل هم ليدلې ده | [يعنى] دسدرة المنتهى په خوا كښې چې دهغې

جَنَّةُ الْمَأْوٰى ۝١٥ إِذْ يَغْشَى السِّدْرَةَ مَا يَغْشٰى ۝١٦

جنت الماوى دې | كله چې راخوريدل | په ونه دبيرې باندې | هغه څه | چې راخوريدل به |

په خوا كښې جنت الماوى دى | څه وخت چې په بيره باندې راغوريدل څه چې راغوريدل

| لَقَدْ رَاٰى مِنْ اٰيٰتِ رَبِّهِ الْكُبْرٰى۝ | وَمَا طَغٰى۝ | الْبَصَرُ | مَا زَاغَ |
|---|---|---|---|
| بيشکه اوليدي هغه دنښو درب خپل نه لوئي | اونه دحده واوړيدو | نظر | نه کوږ شو |
| هغه دخپل رب [دقدرتونو] ډيرې غټې نښې اوليدې | اونه دهوکه شوي وو | | نه خو دهغه نظر بل خوا کوږ شوي وو |

## آسان ترجمه قرآن

قسم دي په ستورو باندې کله چه هغه پريوځي (اے د مکې اوسيدونکو) ستاسو سره اوسيدونکي دې صاحب نهٔ لاره هيره کړې ده او نهٔ بے لارې شوې دې او دې په خپل خواهش سره هيڅ نه وائي. دا خو خالص وحي ده، چه ده ته ليږلې شي ده ته يو مضبوط طاقت والا (فرشتې) تعليم ورکړې دې. چه قوت والا دې نو هغه مخې ته راغلو، هرکله چه هغه په اوچت افق باندې وو بيا هغه نزدې راغلو. او راښکته شو. تردې پورې چه هغه د دوؤ ليندو د فاصلې برابر نزدې راغلو بلکه ددې نه هم زيات نزدې. په دې طريقې سره الله تعالیٰ چه په خپل بنده باندې کومه وحي نازلوله. هغه ئې نازله کړه. څه چه هغه اوليدل، زړه په هغې کښې هيڅ غلطي نه ده کړې آيا بيا هم تاسو هغه سره د هغه څيز باره کښې جګړې کوئ، کوم چه هغه ليدلې دې؟ اوحقيقت دادې، چه هغه دې فرشتې لره په دويم کرت هم ليدلې دې. د بېرې د اونې په خوا کښې، چه دهغې نوم سدرة المنتهی دې هغې سره خوا کښې جنت الماوٰی دې هغه وخت ددې بېرې په اونې باندې هغه څيز خور شوې وو، څه چه پرې خور شوې وو (د پيغمبر) سترګې نه کږې شوې دی، او نه ئې د حد نه تجاوز کړې دې رشتيا خو دادی، چه هغه د خپل پروردګار د لويو لويو نښو نه ډيرې نښې اوليدلې.

## خلاصه تفسير

﴿وَالنَّجْمِ اِذَا هَوٰى۝﴾ [قسم دې په ستوری کله چه هغه پريوځي [يعنی هريو ستورې چه وی او په دې قسم کښې مضمون دجواب قسم ﴿مَا ضَلَّ صَاحِبُكُمْ وَمَا غَوٰى۝﴾ سره يو خاص مناسبت دې يعنی لکه څنګه چه ستورې د ختلو نه تر پريوتلو پورې په دې ټول مسافت کښې دخپل باقاعده رفتارنه اخوا ديخوانه شو دغه شان ته په خپل ټول عمر کښې دګمراه او بې لارې کيدونه محفوظ يئ او دارنګ اشاره ده دې طرف ته چه لکه څنګه په ستوری سره هدايت کيدې شی دغه شان ستانه هم په وجه دنه ګمراه کيدو اونه بې لارې کيدو هدايت کيدې شی او چونکه هرکله چه ستورې دآسمان په مينځ کښې وی نويو طرف ترې نه معلوميږی په دې وجه دغه وخت دستورې نه دلارې پته نه لګی په دې وجه يې قيد اولګولو په دې کښې دغروب اواګر چه دطلوع په وخت کښې هم دې افق ته نزدې وی ليکن داخبره د غروب په وخت کښې زياته ده چه دغه وخت دهدايت طالبان دا غنيمت ګڼرې په دې خيال سره چه که په استدلال کښې لږ شان توقف وشو نو غائب به شی په خلاف د طلوع نه چه په دې کښې بې فکری وی پس په دې کښې دې طرف ته هم اشاره وشوه چه دنبی کريم ﷺ نه هدايت حاصلول غنيمت وګڼرئ او په شوق سره ورمنده کړئ وراندې جواب دقسم دې چه ﴿مَا ضَلَّ صَاحِبُكُمْ وَمَا غَوٰى۝﴾ داستاسو [هروخت [درسره] او ستاسو په وړاندې[پاتې کيدونکې] پيغمبر چه عام احوال او افعال يې تاسوته معلوم دی دکومو نه چه په شرط دانصاف ددوئ په راستئ او حقانيت استدلال کولې

شي داپيغمبر [نه د] حقې [لارې نه بې لارې اونه په غلطه لاره دې] ضلال داچه بالکل لاره هير کړې حيران ودريږي او غوايت چه غيرلارې لره لار وګنړي په غلط طرف روان شي لکه چه په خازن([1]) کښې دی يعنی تاسو چه دوئ ﷺ په د عوی دنبوت او دعوت الی الاسلام کښې بې لارې ګنړی داسې نه ده بلکه نبی کريم ﷺ برحق دې ﴿وَمَا يَنطِقُ عَنِ الْهَوَىٰ﴾ [اونه دوئ په خپل نفسانی خواهش سره خبرې جوړې وی] لکه چه تاسو وايئ افتراء بلکه [ددوئ ﷺ ارشاد خالص وحی ده کومه چه دوئ ته ليږلې شی خواه دالفاظو هم وحی وی لکه چه قرآن ورته وائی خواه صرف دمعانيو وی لکه چه حديث ورته وائی او خواه وحی جزئی وی يا دخه قاعدې کليئ وحی وی چه اجتهاد ترې نه فرمائی پس په دې سره نفی داجتهاد نه کيږی او اصل مقصود مقام دنفی دې دکفارو ددې خيال چه دوئ ﷺ دالله تعالی طرف ته دغلطئ نسبت فرمائی وړاندې دوحی راتلو واسطه ښائی چه ﴿إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحَىٰ﴾ [دوئ ته يوه فرښته] ددې وحی دالله تعالی دطرف نه ﴿عَلَّمَهُ شَدِيدُ الْقُوَىٰ﴾ [تعليم کوی چه لوئ طاقتور دې] او هغه په خپل کوشش او محنت سره طاقتور نه شو ﴿ذُو مِرَّةٍ﴾ [بلکه پيدائشی طاقتور دې] لکه چه په يو روايت کښې په خپله حضرت جبرئيل ﷺ دخپل طاقت بيان فرمائی چه ما دقوم لوط کلی د وبيخ نه اوچت کړل اسمان ته مې يوړل او بيا مې راپريښودل په الدرکښې دسورة تکوير په تفسير کښې دا روايت دې مطلب دادې چه دا کلام د چا شيطان په ذريعه دوئ ﷺ ته نه دې رسيدلې چه د کاهن کيدو احتمال وی بلکه د فرښتې په ذريعه راغلې دې او شايد چه د شديد القوی په فرمائيلو کښې دامقصود وی چه ددې احتمال هم نه شی کيدې چه شايد په اصل کښې فرښتې راوړې وی مګر په مينځ کښې څه شيطانی تصرف شوې وی په دې کښې اشاره وشوه جواب طرف ته چه هغه نهايت شديددې دشيطان مجال نشته چه ورنزدې قدرې شی بيا د وحی ختميدونه پس په خپله الله تعال ددې د بعينه اداکولو وعده فرمائيلې ده [ان علينا جمعه وقرانه]([2]) وړاندې ددې شبهې جواب دې چه ددې وحی راوړنکی فرښته او حضرت جبرئيل ﷺ کيدل خو هغه وخت معلوميدې شی هرکله چه نبی کريم ﷺ ده لره پيژنی او پوره صحيح پيژندل موقوف دی په اصلی صورت کښې په ليدو باندې نوايا دوئ ﷺ حضرت جبرئيل ﷺ لره په خپل صورت کښې ليدلې دې ددې په نسبت فرمائی چه او داسې هم شوې ده چه کيفيت ئې دادې چه ځوپيرې خوئ په نورو صورتونو کښې ليدلې دې [بيا]يو وار داسې هم وشوه چه﴿فَاسْتَوَىٰ﴾ [هغه فرښته] په خپل [اصل صورت باندې] دوئ ﷺ ته مخامخ [ښکاره شوه﴿وَهُوَ بِالْأُفُقِ الْأَعْلَىٰ﴾ په داسې حالت کښې چه هغه[دآسمان] په اوچته کناره باندې وه [په يو روايت کښې په شرقی افق سره ددې تفسير راغلې دې لکه چه په درمنثور کښې دی] او په افق باندې په ښکاره کيدوکښې غالبا داحکمت دې چه داسمان په مينځ کښې کتل د مشقت او تکليف نه خالی نه وی او په اوچت اعلی کښې غالبا داحکمت وو چه بالکل لاند په افق باند پوره شې په نظر نه راځی په دې وجه لږ اوچت په نظر راغلو او ددې ليدو قصه داسې شوې وه چه يوه پيره نبی کريم ﷺ حضرت جبرئيل ﷺ ته خواهش ښکاره کړو چه ماته خپل اصلی صورت وښايه

---

[1] تفسير الخازن [ج:۵ ص:۴۹۶]

[2] ترجمه:-ددې جمع کول او ددې وئيل زمونږ په ذمه دی.

هغویٔ ورته د حراء په خواکښې او د ترمذی د روایت مطابق په محله جیاد کښې دخان ښودو وعده وکړه دویٔ هلته تشریف یوړو نو هغویٔ ئې په مشرقی افق باندې اولیدل چې دهغویٔ شپږ سوه وزرې وې او دومره خورې شوی وې چې دمغربی افق پورې خایٔ ئې نیولې وو دویٔ ﷺ بې هوشه پریوتل دغه وخت حضرت جبرئیل علیه السلام د بنده په شکل شو او دویٔ ته د تسلیٔ ورکولو دپاره راکوز شو چه وړاندې ئې ذکر دې [لکه داسې په جلالین کښې دی](۱) لنډه داچه دغه فرښته اول په اصلی صورت کښې په اوفق اعلی باندې نموداره شوه ﴿ثُمَّ دَنَا فَتَدَلّٰى﴾[بیا] چه هرکله دویٔ ﷺ بې هوشه شونو [هغه فرښته] دویٔ ﷺ ته [نزدې راغله بیا نوره نزدې شوه] پس د نزدې والی په وجه ﴿فَكَانَ قَابَ قَوْسَيْنِ اَوْ اَدْنٰى﴾[د دوه لیندو برابرفاصله پاتې شوه بلکه] د ډیر نزدیکت په وجه [نوره هم کمه] فاصله پاتې شوه د دوه لیندو مطلب دادې چه د عربو عادت وو چه هرکله به دوه کسانو دیوبل سره انتهائی درجه اتفاق او اتحاد کول غوښتل نو دواړوبه خپلې خپلې لیندې راواخستې مزی به ئې ورلره د یوبل سره پیوست کړل او په دې صفت کښې هم د څنو اجزاؤ په اعتبار سره څه فاصله ضرور پاتې کیږی پس ددې محاورې په وجه داکنایه شوه دقرب او اتحاد نه او چونکه دا محض د اتفاق صورې علامت وو نو که روحانی او قلبی اتفاق هم وی نو هلته او ادنی هم صادق راځی پس د او ادنی په زیاتولو سره اشاره وشوه چه د صورې مجاورت نه علاوه د دویٔ ﷺ او حضرت جبرئیل علیه السلام په مینځ کښې روحانی مناسبت هم وو چې هغه مدار اعظم دې د معرفت تامه او د حفظ صورت غرض داچه ددویٔ ﷺ په تسکین ورکولو سره د نبی کریم ﷺ تسکین وشو او ښه شو [بیا] د ښه کیدونه پس ﴿فَاَوْحٰۤى اِلٰى عَبْدِهٖ مَاۤ اَوْحٰى﴾ [الله تعالی] ددې فرښتې په ذریعه [په خپل بنده] حضرت محمد ﷺ [باندوحی نازله کړه څه چه ئې نازلول] چه تعین ئې په تخصیص سره معلوم نه دې اونه دمعلومولو حاجت شته او سره ددې چه اصل مقصود دا وخت وحی نازلول نه دی بلکه حضرت جبرائیل علیه السلام لره په خپل اصلی صورت کښې ښودل ددویٔ ﷺ ورسره پوره معرفت کول وو مګر دا وخت نوره هم وحی نازلول شاید ځکه وو چه دا په معرفت کښې زیاته مددګاره شی ځکه چه ددې وخت وحی دالله تعالی د طرف نه کیدل یقینی ده او د نورو وختونو وحی کومه چه په صورت بشریه ده کله چه نبی کریم ﷺ په یو شان سره اووینی نو زیات یقین کښې به قوت پیداشی چه په دواړو حالتونو کښې وحی راوړونکې واسطه یعنی فرښته یوه ده لکه یو کس چه دیوسړی د آواز لب و لهجې نه ښه واقف وی نو که هغه صورت بدل هم کړی او خبرې کوی نو صفا پیژندې شی وړاندې ددې لیدو په حقله دیوې شبهې جواب دې هغه شبهه داده چه په اصلی صورت کښې دلیدو باوجود دا احتمال خو هم کیدې شی چه دزړه په ادراك او احساس کښې غلطی وشی لکه چه په احساساتو کښې غلطی کیدل اکثر مشاهده کیدې شی مجنون باوجود دسلامتیا د حس څنې وخت اشنا خلقو ته دنورو خلقو نومونه اخلی پس دالیدل صحیح لیدل وو اوکهٔ نه؟ وړاندې ددې شبهې جواب یعنی دغه لیدل صحیح وو چه د دغو لیدو په وخت کښې ﴿مَا كَذَبَ الْفُؤَادُ مَا رَاٰى﴾ [زړه په لیدلی شوی شی کښې غلطی ونه کړه] پاتې شوه داچه ددې څه دلیل دې چه زړه غلطی ونه کړه پس خبره داده چه که مطلقا داسې احتمالات قابل التفات کړې شی نو په محسوساتو به

(۱) تفسیر جلالین تحت هذه الآیة[ ج:۱۰ص:۲۸۹]جامع الترمذي ، ابواب التفسیر باب ومن سورة النجم [ج:۲ ص:۱۶۳]

هیڅ اعتبار پاتې نه شي بیا خو به دټولې دنیا معاملات ګډ وډ شي هاه که دچا سره څه منشاء دشبهې معتدبه موجود وی نو په دې غورکولې شي او احتمال د خطاء قلبی منشاء داکیدې شي چه ادراك کوونکې مختل العقل وی اود نبی کریم ﷺ صحیح العقل، فطین او ذهین صاحب فراست کیدل ظاهر او مشاهد دی چونکه باوجود ددې بلیغ اثبات نه بیا هم معاندین د جګړې او خلاف نه نه واپس کیدل په دې وجه وراندې په طور دتوبیخ او تعجب ارشاد فرمائی چه هرکله تاسو دداسې کافی شافی بیان نه د معرفت او رویت ثبوت واوریدو ﴿أَفَتُمَارُونَهُ عَلَىٰ مَا يَرَىٰ﴾[نو ایادده] پیغمبر[سره دده په لیدلی] کتلی [شوی څیزکښې جګړه کوئ] یعنی دکومو څیزونو علم او ادراك چه انسان ته کیږی په هغو کښې د محسوساتو په شان څیزونه د شك شبهې نه بالاتر وی دغضب خبره ده چه تاسو په محسوساتو کښې هم اختلاف کوئ بیا خو دغسې ستاسو په محسوساتو کښې هم په زرګونو خدشې راوتلې شی [او] که چرې دا مهمل خدشه وی چه یوشې ئې یوځل لیدلی وی نو ددې پیژندل څنګه کیدې شی؟ نو جواب د ادې چه اول خو دا ضروری نه ده چه په یو ځل لیدو سره نه شي پیژندې اوکه علی سبیل التنزل دشناخت دپاره بیا دوباره لیدل ضروری وی نو ﴿وَلَقَدْ رَآهُ نَزْلَةً أُخْرَىٰ﴾[هغوئ] یعنی پیغمبر ﷺ [دې فرښتې لره بل وارهم] په صورت اصلی کښې [لیدلې ده] پس اوس خو دغه وهم هم دفع شو څکه چه په تطابق دصورتینو سره پوره تعین وشو چه او حضرت جبرائیل ﷺ دادې وراندې ددې دوباره لیدو ځائ ښائی چه کوم ځائ ئې ولیدو یعنی په شپه د معراج کښې ئې لیدلې دې ﴿عِندَ سِدْرَةِ الْمُنتَهَىٰ﴾[د سدرة المنتهی په خواکښې] سدره وائی د بیرې اونې ته او دمنتهی معنی ده دانتهاځائ په حدیث کښې راغلې دی چه دا یوه اونه ده دبیرې په اووم آسمان کښې د عالم بالا نه چه کوم اعمال او رزق وغیره راځی هغه اول سدرة المنتهی ته رسی بیا هلته نه فرښتې زمکې ته راوړی دغه شان دلته نه چې کوم اعمال بره خیژی هغه هم سدرة المنتهی ته رسی ، بیا د هلته نه اوچتولې شی ، دین کښې ددې مثال د ډاکخانې پشان دې چې تلل راتلل د خطونو د هلته نه کیږی او په عند سدرة المنتهی کښې الخ خو مکان دلیدو ښودلې شوې وو وراندې ددې مکان شرافت ښائی چه ﴿عِندَهَا جَنَّةُ الْمَأْوَىٰ﴾[ددې] سدرة المنتهی [په خواه کښې جنت الماوی دې] دماوی معنی د اوسیدو ځائ چونکه جنت د نیکو بندګانو د اوسیدو ځائ دې په دې وجه ورته جنت الماوی وائی لنډه دا چه دغه سدرة المنتهی په یو ممتاز موقع باندې ده اوس پس د تعین دمکان دلیدو نه دلیدو زمانه ښائی چه دغه لیدل کله وشو؟ پس فرمائی چه ﴿إِذْ يَغْشَى السِّدْرَةَ مَا يَغْشَىٰ﴾[هرکله دې سدرة المنتهی لره پټوله کومو څیزونو چه پټوله] په یو روایت کښې دی چه د سرو زرو پتنګان وو یعنی صورتونه ئې د پتنګانو په شان وو او په یو روایت کښې دی چه دغه فرښتې وې یعنی حقیقت د هغوئ دا وو او په یو روایت کښې دی چه ملائکو د الله تعالی نه اجازت غوښتلې وو چه مونږ هم دنبی کریم ﷺ زیارت وکړو دوئ ته اجازت وشو هغه په دې سدره جمع شوې وې داټول روایتونه په درمنثور کښې دی په دې کښې هم اشاره کیدې شی دنبی کریم ﷺ معزز اومکرم کیدو طرف ته او باقی هغه تقریر دې کوم چه په تقیید سابق کښې بیان شوې دې اوس یو احتمال داهم کیدې شی چه دداسې حیرانونکی څیزونو په لیدو سره سترګې چکرخوری په ښه شان سره قدرت په ادراك باندې نه پاتې کیږی په دې صورت کښې به د حضرت جبرئیل ﷺ د صورت څه ادراك وشی

هر كله چه دا ادراك ثانى معتبرنه شو نو بيادديې ذكر شوې خدشې چه كوم جواب په لقدراه نزلة اخرې سره وركړې شوې دې هغه كافى نه شو ددې احتمال د رفع دپاره فرمائى چه دوئ ﷺ دا عجائبات وليدل نو يوه ذره ئې هم ستركې چكراؤ نه شوې او بالكل حيرانه نه شو چنانچه دكومو څيزونو دليدو حكم وو دهغې طرف ته په نظر كولو سره د دوئ ﴿مَا زَاغَ الْبَصَرُ وَمَا طَغٰى﴾ [نظرنه واپس شو] بلكه دغه څيزونه ئې ښه اوليدل [او] دكومو څيزونو دليدو حكم چه ترڅو پورې نه وو شوى [نه] د هغوطرف ته دليدو دپاره د دوئ نظر [واښتو] يعنى د اجازت نه وړاندې ئې ونه كتل [لكه چه په مدارك كښې دى په مينځ د فرق د زاغ او طغى كښې] دا دليل دى ددوئ ﷺ د غايت استقلال ځكه چه سړې په عجيبه څيزونو كښې راشى نو بنده داوه حركتونه كوى كومو څيزونو ته چه ورته دكتووئيلې شى هغې ته ګورى نه او دكومو چه ورته نه وى وئيلې شوى هغې ته ګورى غرض انضباط په كښې نه پاتې كيږى وړاندې ددوئ دقوت استقلال بيانولو دپاره فرمائى چه ﴿لَقَدْ رَاٰى مِنْ اٰيٰتِ رَبِّهِ الْكُبْرٰى﴾ [دوئ] يعنى پيغمبر ﷺ [د خپل پروردګار] دقدرت [لوئ لوئ عجائبات وليدل] مګرد هرشى په ليدو كښې دوئ داشان وو مازاغ البصروماطغى دغه عجائبات په احاديثو دمعراج كښې راغلى دى انبياؤ ﷺ لره ليدل د روحونو ليدل جنت وغيره ليدل ، پس ثابت شو چې په نبى كريم ﷺ كښې څومره استقلال وو ، پس د متحير كيدو الخ احتمال نشته پس دخدشې چه كوم جواب په لقدراه نزلة اخرى كښې مذكور وو هغه سالم پاتې شو غرض دټول تقريرنه د رويت او معرفت دحضرت جبرائيل ﷺ متعلق شبهه دفع شوه امر رسالت ثابت او متحقق شو كوم چه مقصود وو دمقام.

## معارف ومسائل

**د سورة نجم خصوصيات:** سورت نجم ړومبې اولنې سورت دې چې رسول كريم ﷺ ئې په مكه مكرمه كښې اعلان اوفرمائيلو [راوى عبدالله بن مسعود ﷺ] قرطبى[1]. اوهم دا د ټولو نه ړومبې سورت دې چې په دې كښې د سجده آيت نازل شو . او رسول كريم ﷺ سجدهٔ تلاوت اوكړه، او په دې سجده كښې يو عجيبه صورت دا راپيښ شو چې نبى كريم كريم صلى الله عليه وسلم دا سورت په عامه ډله كښې تلاوت اوفرمائيلو، [په دې ډله كښې] مسلمانان او كافران حاضر وو. كله نبى كريم ﷺ چې كله په دې آيت مبارك باندې سجده اوكړه نو د مسلمانانو د نبى كريم ﷺ اتباع اوكړه او سجده ته لاړل ، د تعجب خبره دا وه چې څومره كافرانو او مشركان موجود وو هغوئ هم نبى كريم ﷺ سره سجدې ته لاړل صرف يو متكبر سړې وو چې دهغه په نوم كښې اختلاف دې هغه سجده او نه كړه ، خو د زمكې نه ئې د ښاؤرې يو موټې رادك كړو او خپل تندى سره ئې اولګولو او وې وئيل چې بس هم دا كافى ده ، راوى د حديث عبدالله بن مسعود فرمائى چې ما دغه كس د كفر په حالت كښې مړې شوې ليدلې دې [بخارى ، مسلم ، او اصحاب سنن روايت كړو ، ابن كثير] [2].

[1] تفسير القرطبي [ ج:۱۷ص:۸۱]
[2] صحيح البخاري كتاب التفسير ، باب سورة النجم [ج:۲ص:۷۲۱]و صحيح مسلم كتاب المساجد ومواضع الصلاة ، باب سجود التلاوة [ج:۱ص:۲۱۵]

ددې سورت په شروع کښې دا بيان دې چې رسول کريم ﷺ په حقه دې او په دوئ بادې په نازليدونکې وحی کښې هيڅا ته دشک شبهې راپورته کيدو گنجائش نشته دې.

﴿وَالنَّجْمِ إِذَا هَوَىٰ﴾ د نجم لفظ د ستورى په معنى کښې راځى ، هر يو ستورى ته نجم وئيلې شى چې نجوم ئې جمع ده ، اوکله دا لفظ په خاص طور سره د ثريا ستورى ته وئيلې شى چې د ستورو مجموعه ده، ځکه ځينې حضرات مفسرينو دلته د نجم تفسير په ثريا ستورى سره کړې دې. فراء او حسن بصرى رحمه الله رومبى تفسير يعنى مطلقې ستورى ته ترجيح ورکړې ده. [قرطبی][1]، او هم داد تفسير په خلاصه کښې غوره کړې شوې ده.

﴿إِذَا هَوَىٰ﴾ هوى د غورزيدو معنى ورکوى ، د ستورى غورزيدل ددې ډوبيدل وى ، په دې آيت مبارک کښې الله ﷻ د ستورو په قسم خوړلو د رسول کريم ﷺ د وحى حق کيدل او صحيح او د شکونو نه زيات بالا تر کيدل بيان کړى دى. په سورة صافات کښې په تفصيل سره تير شوى دى چې الله ﷻ ته اختيار دې چې هغه د خاص مصلحتونو او حکمتونو دپاره په خاص خاص مخلوقاتو قسم خورى نورو ته ددې اجازت نشته چې الله ﷻ نه سوا دا چا قسم او خورى ، دلته الله ﷻ دستورو قسم خوړلې دې چې په کښې يو حکمت دا هم دې چې ستورى په تيارۀ کښې د طرفونو او لارو خودلو دپاره استعمالولې شى او په دې سره مقصود رخ ته هدايت کيږى ، په داسې شان رسول کريم ﷺ په ذريعه د الله ﷻ لارې طرفته هدايت کيږى.

﴿مَا ضَلَّ صَاحِبُكُمْ وَمَا غَوَىٰ﴾ داجواب دقسم دې ، يعنى هغه مضمون دې چې د کوم دپاره چې قسم خوړلې شوې دې ، معنى ئې دا ده چې رسول کريم ﷺ کومې لارې ته چې خلق رابلى هغه صراط مستقيم ، منزل مقصود ، يعنى دالله تعالى د رضا صحيح لار ده ، نه هغوئ لار هيره کړېده او نه په غلطه لار روان دى.

**رسول کريم ﷺ ته په [صَاحِبُكُمْ] فرمائيلو کښې حکمت:** دلته د رسول کريم ﷺ د نوم مبارک يا د رسول اونبى د ذکر کولو په ځائې د رسول کريم ﷺ د ذات مبارک نه د [صَاحِبُكُمْ] په لفظ تعبير کولو کښې دې ته اشاره ده چې محمد ﷺ چرته بهر نه نه دې راغلى ، څوک پردې سړې نه دې چې د رسول کريم ﷺ په ربښتيا ، دروغو کښې ستاسو څه شک پاتې شى. بلکه رسول کريم ﷺ ستاسو د هر وخت ملګرې دې ، هم ستاسو په وطن کښې پيدا شوې دې ، هم دلته ئې بچپن تير کړې دې ، او هم دلته ځوان شوې دې ، د رسول کريم ﷺ د ژوند هيڅ يو اړخ ستاسو نه پټ نه دې او تاسو تجربه کړې ده چې رسول کريم ﷺ چرې هم دروغ نه دى وئيلى ، په بچپن کښې مو هم رسول کريم ﷺ لره په خراب کار کښې نه دې ليدلى ، د رسول کريم ﷺ په خويونو ، عادتونو ، امانت ، ديانت باندې ستاسو د ټولو دومره اعتبار وو چې دمکې ټولو خلقو به ورته امين وئيلو ، اوس د پيغمبرئ د دعوې په وخت تاسو هغوئ ته د دروغژن نسبت کوئ ، چا چې د انسانانو په معامله کښې کله دروغ نه دى وئيلى ، غضب دې چې په رسول کريم ﷺ دا مو تور پورې کول شروع کړل چې ده دالله ﷻ په باره کښې دروغ وئيلى دى. ځکه دې پسې فرمائى چې:

[1] تفسير القرطبي [ ج:۱۷ص:۸۲]

[وَمَا يَنطِقُ عَنِ الْهَوَىٰ ۝ إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحَىٰ ۝] يعنې چې رسول کريم ﷺ د خپله خانه جوړې کړې خبرې الله ﷻ ته منسوب کړې دهغې بالکل څه امکان نشته ، بلکه د رسول کريم ﷺ هر څه فرمائيل د الله ﷻ د طرفه وحي وی ، د وحی ډير قسمونه د بخاري شريف د احاديثو نه ثابت دی ، په دې کښې يو قسم هغه دې چې معنی او الفاظ ټول ئې د الله ﷻ د طرفه نازل شوی وی ، د هغې نوم قرآن دې ، دويم هغه چې معنی ئې د الله ﷻ د طرفه وی او الفاظ د ادا کولو ئې د رسول کريم ﷺ وی ، د هغې نوم حديث او سنت دې ، بيا په حديث کښې چې کوم مضمون د الله ﷻ د طرفه وی هغه کله د يوې معاملې صفا ، واضح فيصله او حکم وی ، کله قاعده کليه خودلې شی په کومې سره چې رسول کريم ﷺ احکام پخپل اجتهاد سره راوباسی او بيانوی يې ، په دغې اجتهاد کښې ددغې امکان پاتې کيږی چې څه غلطی اوشی ، مګر د رسول کريم ﷺ او د ټولو پيغمبرانو ﷺ دا خصوصيت دې چې کوم احکام پخپل اجتهاد سره بيانوی په هغې کښې که څه غلطی کيږی ، نو د الله ﷻ د طرفه د هغې اصلاح د وحی په ذريعه کولې شی ، رسول ﷺ پخپل غلط اجتهاد باندې قائم نشی پاتې کيدې ، پخلاف د نورو مجتهدينو عالمانو نه چې که هغوئ نه په اجتهاد کښې غلطی اوشی ، نو هغوئ پرې قائم پاتې کيدې شی ، او ددوئ دا غلطی هم يوازې دا نه چې الله ﷻ معاف کوی بلکه په حق دين باندې پوهيدو دپاره چې کوم ټول طاقت خپل لګوی په هغې هم دوئ ته ثواب ورکولې شی [څنګه چې مشهورو صحيحو احاديثو کښې راغلی دی].

په دې تقرير سره په دې آيت مبارک باندې د هغې شک جواب هم اوشو چې د رسول کريم ﷺ هر فرمان هر کله چې د الله ﷻ د طرفه وحی وی نو لازمی خبره ده چې رسول کريم ﷺ په هيڅ يوه خبره د خپل اجتهاد او خپلې رائې نه وی فرمائيلی حالانکه په صحيح احاديثو کښې ګڼ واقعات داسې بيان شوی دی چې په اول کښې رسول کريم ﷺ د څه حکم ورکړو ، بيا د وحی په ذريعه هغه بدل کړې شو ، دا ددې نخښه شوه چې اولنې حکم د الله ﷻ د طرفنه نه وو بلکه د رسول کريم ﷺ د رائې او اجتهاد نه وو ، جواب ئې تير شوې دې ، چې په ځينې وختونو کښې وحی د قاعدې کليې په شکل کښې راځی چې په هغې سره د احکامو په راوويستلو کښې پيغمبر ﷺ پخپلې رائې سره اجتهاد کوی ، هر کله چې دا قاعده کليه د الله ﷻ د طرفه راغلې ده په دې وجه دې ټولو احکامو ته هم وحی من الله اوونيلې شوه ، والله اعلم.

[عَلَّمَهُ شَدِيدُ الْقُوَىٰ ۝] ددې ځائې نه تر اوولسم آيت [لَقَدْ رَأَىٰ مِنْ آيَاتِ رَبِّهِ الْكُبْرَىٰ ۝] پورې ددې بيان دې چې د رسول کريم ﷺ په وحی کښې د هيڅ شک وشبهې ګنجائش ، نشته . دا د الله تعالی کلام دې چې رسول کريم ﷺ ته په دې شان ورکړې شوې دې چې په دې کښې د ګډون ، شک يا خطا او غلطئ هيڅ امکان نشته دې .

**د سورت نجم د آيتونو په تفسير کښې د مفسرينو اختلاف:** ددې آيتونو باره کښې د مفسرينو دوه تفسيرونه نقل شوی دی. د يو حاصل دادې چې دا ټول آيتونه د معراج بيان ګرځولې شوی . د الله ﷻ د طرفه بې واسطې تعليم او د الله ﷻ د نزديکت او ليدلو په بيان باندې محمول کړې شوی دی . [شَدِيدُ الْقُوَىٰ] [ذُو مِرَّةٍ] [فَاسْتَوَىٰ] او [دَنَا فَتَدَلَّىٰ] ټول د الله ﷻ صفات او افعال ګرځولې شوی دی . دې پسې کوم چې د ليدلو کتلو بيان دې ، هغې نه ئې د الله ﷻ ليدل او زيارت مراد اخستې دې ، په صحابه کرامو ﷺ کښې دانس ﷺ او ابن عباس ﷺ نه دا تفسير منقول دې

، په تفسير مظهري كښې ئې هم دې لره اختيار كړې دې(١) . او ډيرو حضراتو صحابه كرامو ﷺ او تابعينو او مفسرينو دا آيتونه د جبرائيل ﷺ پخپل اصلي صورت د ليدلو بيان كړځولې دي او [شَدِيدُ الْقُوَىٰ] وغيره ئې د جبرائيل ﷺ صفات خودلي دي . ددې كنړ وجوهات دي ، تاريخي حيثيت سره هم سورة نجم بالكل د ابتدائي سورتونو ځينې دې ، او د عبدالله بن مسعود ﷺ د ښكاره بيان مطابق سورة نجم د ټولو نه ړومبې هغه سورت دې چې رسول كريم ﷺ په مكمه مكرمه كښې د اعلان په طور لوستلې دې او ښكاره خبره ده چې دمعراج واقعه ددې نه روستو وه ليكن په دې كښې كلام كولې شي ، اصل وجه داده چې په حديث مرفوع كښې پخپله د رسول كريم ﷺ نه ددې آيتونو په تفسير كښې د جبرائيل ﷺ ليدل منقول دي ، مسند احمد كښې دهغې الفاظ دادې چې :

عن الشعبي عن مسروق قال كنت عند عائشة فقلت اليس الله يقول [وَلَقَدْ رَآهُ بِالْأُفُقِ الْمُبِينِ ، وَلَقَدْ رَآهُ نَزْلَةً أُخْرَىٰ] فقالت انا اول هذه الامة سالت رسول الله ﷺ انما ذاك جبرئيل لم يره في صورته خلق عليها الامرتين راه منهبطا من السماء الى الارض سادا عظم خلقه ما بين السماء والارض(٢) اخرجاه في الصحيحين من حديث الشعبي [ابن كثير](٣)

شعبي ﷺ د مسروق ﷺ نه نقل كړې دي چې هغه يو ځل د عائشه صديقه ﷺ سره وو [د الله ﷻ دليدلو په باره كښې خبرې وې] ما اووئيل چې الله ﷻ فرمائيلي دي چې [وَلَقَدْ رَآهُ بِالْأُفُقِ الْمُبِينِ](٤) ، وَلَقَدْ رَآهُ نَزْلَةً أُخْرَىٰ](٥) عائشه صديقه ﷺ اوفرمائيل چې په امت كښې د ټولو نه ړومبې ما د رسول كريم ﷺ نه ددې آيت مبارك مطلب پوښتلې دې ، رسول كريم ﷺ اوفرمائيل چې په آيت مبارك كښې دچا دليدلو بيان دې هغه جبرائيل ﷺ دې چالره چې رسول كريم ﷺ صرف دوه ځل د هغه په اصلي صورت كښې ليدلې دې په آيت مبارك كښې د كوم ليدلو چې بيان دې دهغې مطلب دادې چې رسول كريم ﷺ جبرائيل ﷺ لره آسمان نه زمكې ته په راكوزيدو ليدلې دې چې د هغه صورت مبارك د زمكې ، آسمان ترمينځه فضا ډكه وه .

صحيح مسلم كښې هم دا روايت تقريبا هم په دې الفاظو سره منقول دې(٦) او په فتح الباري كتاب التفسير كښې د حافظ ابن مردويه نه دا روايت هم په دې سند سره نقل كړې چې په كښې د عائشه صديقه ﷺ الفاظ دادي :

انا اول من سال رسول كريم ﷺ عن هذا فقلت يارسول الله ﷺ هل رايت ربك فقال لا انما رايت جبرائيل منهبطا [فتح الباري ص:۴۹۳:ج:۹]

يعني صديقه ﷺ فرمائيلي دي چې ددې آيت مبارك باره كښې دټولو نه وړاندې ما پخپله د رسول كريم ﷺ نه تپوس اوكړو چې تاسو ﷺ خپل رب ليدلې دې ؟ نو رسول كريم ﷺ اوفرمائيل چې نه ، بلكه ما جبرائيل ﷺ په راكوزيدو ليدلې دې.

---

١) تفسير المظهري [ج:٩ص:١٠٥]
٢) مسند احمد ، مسند عائشة الصديقة رضى الله عنها رقم الحديث:[٢٦٠٤٠]
٣) تفسير ابن كثير [ج: ٧ ص:٤٥٢]
٤) سورة التكوير آيت:٢٣ ،ترجمه:-او هغوئ دا فرښته په صفا غاړه باندې ليدلې هم ده.
٥) سورة النجم آيت ١٣، ترجمه:- او ددوئ دا فرښته يو ځل كتلې هم ده
٦) صحيح مسلم كتاب الإيمان ، باب معنى قول الله عزوجل ولقد راه نزلة اخري..... إلخ [ج:١ص:٩٨]

او په صحيح بخاری کښې د شيبانی نه روايت دې چې هغوئ رحمه الله د زر رضي الله عنه نه ددې آيت مبارک مطلب تپوس اوکړو چې:
[فَكَانَ قَابَ قَوْسَيْنِ أَوْ أَدْنَىٰ ۝ فَأَوْحَىٰ إِلَىٰ عَبْدِهِ مَا أَوْحَىٰ ۝] هغوئ رضي الله عنه جواب ورکړو چې مونږ ته عبدالله بن مسعود رضي الله عنه حديث بيان کړو چې محمد ﷺ جبرائيل عليه السلام لره په داسې حالت کښې اوليدو چې شپږ سوه وزرې ئې وې([1]) او ابن جرير رحمه الله پخپل سند سره د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه د آيت مبارک: [مَا كَذَبَ الْفُؤَادُ مَا رَأَىٰ ۝] په تفسير کښې دا نقل کړی دی چې رسول کريم ﷺ جبرائيل عليه السلام اوليدو په دې حالت کښې چې هغه د رفرف په جامه کښې وو او د زمکې آسمان تر مينځه فضا دهغه عليه السلام د وجود نه ډکه وه([2]).

**د ابن کثير رحمه الله تحقيق:** د حديث دا ټول روايات ابن کثير رحمه الله پخپل تفسير کښې نقل کړی دی نو بيا ئې اوفرمائيل چې د سورة نجم په دې آيتونو کښې د رويت او قرب نه مراد د جرائيل عليه السلام رويت او قرب دې، صحابه کرامو رضي الله عنهم کښې دا قول د ام المؤمنين عائشه صديقه رضي الله عنها، عبدالله بن مسعود رضي الله عنه، ابی ذر غفاری او ابی هريره رضي الله عنه دې، ځکه ابن کثير رحمه الله ددې آيتونو په تفسير کښې اوفرمائيل چې:
دې آيتونو مبارکو کښې د ليدلو او نزديکت نه مراد د جبرائيل عليه السلام ليدلې کيدل او نزديکت مراد دې کله چې هغوئ عليه السلام لره رسول کريم ﷺ رومبې ځل پخپل صورت کښې ليدلې وو، بيا ئې دويم ځل د معراج په شپه د سدرة المنتهی سره نزدې اوليدلو او دا رومبې ځل ليدل ئې د پيغمبرئ بالکل په ابتدائی زمانه کښې وو، کله چې هغوئ عليه السلام په رومبی ځل د اقراء وحی راوړله، دې نه پس وحی څه وخت دپاره بنده شوه چې رسول کريم ﷺ ته ترې سخت غم، خفګان شوې وو. ډير ځل ئې دا خيال زړه ته راغلو چې ځان د غره نه راغورزولو سره ختم کړی خو په داسې صورت کښې به ورته جبرائيل عليه السلام غائبانه آوازه ورکولو چې:
ائې محمد ﷺ! تاسو د الله تعالی په حقه رسول يئ، او زه جبرائيل عليه السلام يم، په دغې آواز به ئې زړه مبارک ته تسلی ملاؤ شوه، تر هغې چې يوه ورځ جبرائيل عليه السلام د بطحاء په ميدان کښې په اصلی صورت کښې داشان ظاهر شو چې د هغه شپږ سوه وزرې وې او پوره کناره ئې راګيره کړې وه. بيا ورته جبرائيل عليه السلام نزدې راغلو او رسول کريم ﷺ ته ئې د الله ﷻ وحی اورسوله دغه وخت په رسول کريم ﷺ باندې د جبرائيل عليه السلام د لويئ او د الله تعالی په نزد د د دوئ عليه السلام د لوئې قدر مندی حقيقت روښانه شو [ابن کثير]([3]).
خلاصه دا ده چې امام ابن کثير رحمه الله پخپله دحديث مرفوع او د صحابه کرامو رضي الله عنهم د اقوالو په بنا د سورة نجم ددې آيتونو تفسير هم دا ګرځولې دې چې په دې کښې ليدل کتل او نزدې والې د جبرائيل عليه السلام مراد دې، اودا رومبې روايت دې چې هم په دغې حالت کښې دمکې مکرمې په زمکه باندې اوشو، په ځينو روايتونو کښې ددې ليدلو دا تفصيل راغلې دې چې کله په رومبی ځل رسول کريم ﷺ جبرائيل عليه السلام لره پخپل اصلی صورت کښې اوليدو نو رسول کريم ﷺ بې

[1]) صحيح البخاري كتاب بدء الخلق ،باب إذ قال احدكم آمين والملائكة في السماء ..... إلخ[ج:١ص:٤٥٨]
[2]) صحيح البخاري كتاب بدء الخلق ،باب ذكر الملائكة [ج:١ص:٤٥٥]
[3]) تفسير ابن كثير [ج: ٧ ص:٤٤٧]

هوښه شو ، بیا جبرائیل ﷺ د انسان په صورت کښې رسول کریم ﷺ ته نزدې راغلو او ډیر ورته نزدې شو.

د دویم ځل لیدلو بیان دې پسې د سورة نجم په آیت [وَلَقَدْ رَاٰهُ نَزْلَةً اُخْرٰی] کښې راغلې دې چې د معراج په شپه اوشو ددې بیان شوؤ وجوهاتو په بنا عام مفسرین حضراتو هم دا اختیار کړې دې د ابن کثیر رحمه الله مضمون خو اوس پورته تیر شوې دې ، قرطبی رحمه الله ، ابو حیان رحمه الله ، امام رازی رحمه الله وغیره عموما هم دې تفسیر ته ترجیح ورکوی[1].

سیدی حکیم الامت هم دې لره اختیار کړې دې کوم چې د تفسیر په خلاصه کښې تیر شو بېدې. ددې حاصل دادې چې د سورة نجم په ابتدائی آیتونو کښې د الله ﷻ د لیدو ذکر نشته بلکه د جبرائیل ﷺ د لیدلو ذکر دې نووی رحمه الله په شرح مسلم کښې او حافظ رحمه الله په فتح الباری کښې هم دغه تفسیر غوره کړې دې[2].

[ذُوْ مِرَّةٍ ۖ فَاسْتَوٰی ۙ وَهُوَ بِالْاُفُقِ الْاَعْلٰی] د [مِرَّةٍ] معنی قوت دې ، دا هم د جبرائیل ﷺ د د ویم صفت ، قوت او طاقت د زیاتوالی بیانولو دپاره دې ، دپاره ددې چې د چا دا وهم نه وی چې د وحی راؤړونکې فرښتې په کار کښې څوک شیطان دخل اندازی کولې شی ، ولې چې جبرائیل ﷺ دومره قوی دې چې شیطان دهغه نزدې هم نشی ورتللې . اود [فَاسْتَوٰی] معنی برابر شو ، شوه مراد دادې چې اول ئې کله چې جبرائیل ﷺ اولیدو نو هغه آسمان نه راکوزیدو د راکوزیدو نه پس په لوړه کناره به برابر کیناستو ، افق سره د اعلی په قید کښې دا حکمت دې چې د افق هغه حصه چې زمکې سره ملاؤ شوې ښکاری هغه عام طور د نظر نه پټه پاتې کیږی ځکه په لوړ افق باندې جبرائیل ﷺ اوخودلې شو.

[ثُمَّ دَنَا فَتَدَلّٰی] د دنا معنی نزدې شو ، اود تدلی معنی زوړند شو ، مراد ترې په ټيټه نزدې کیدل دی.

[فَكَانَ قَابَ قَوْسَيْنِ اَوْ اَدْنٰی] قاب د لیندې د دستې او موتی چرته نه ئې چې نیسی او بل طرفته ئې اولی ددې دواړو ترمینځه فاصلې ته وئیلې شی چې اندازه ئې تقریبا یو لاس وی ، د قاب قوسین فرمائیلو وجه دا وه چې څنګه د دوستئ او صلح په وخت دیو لاس د بل په لاس باندې د لاس وهلو عادت دې ، دغه شان عادت بل دا وو چې دواړو کسانوبه د لیندې دستې څانونو طرفته کړې او د دواړو سرونه به ئې سره یو ځائې کړې نو دا هم د دوستئ یو نخښه ده. ددې نزدې والی په و جه به ددغې دوؤ کسانو تر مینځه د دوؤ لیندو د قابونو هومره فاصله وه یعنی تقریبا دوه لاسه یا ګزه ، دې نه پس یې او ادنی وئیلو سره داوښودل چې دا نزدیکت او پیوستوالې د عام سمی یو ځائیکیت پشان نه وو بلکه ددې نه هم زیات وو.

دې آیت مبارک کښې د جبرائیل ﷺ ډیر زیات نزدې کیدل ئې په دې وجه بیان کړل چې د هغه د رسولې وحی داوریدلو باره کښې د هیڅ شك و شبهې ګنجائش نشته او د ددې قریب او اتصال نه دا احتمال هم پاتې نشو چې ګنی رسول کریم ﷺ به جبرائیل ﷺ پیژندلې نه وی اوشیطان به په کښې د خل ورکړې وی.

[1] انظر تفسیر الطبري [ج:۲۲ ص:۵۰۶] و تفسیر القرطبي [ ج:۱۷ص:۸۸]

[2] شرح صحیح مسلم للنووی الإیمان ، باب معنی قول الله عزوجل ولقد راه نزلة اخري..... إلخ [ج:۱ص:۹۸]

﴿فَأَوْحَىٰ إِلَىٰ عَبْدِهِ مَا أَوْحَىٰ﴾ د اوحی ضمیر د فاعل الله تعالی ته راجع دی او د عبده ضمیر هم، معنی دا شوه چې جبرائیل ﷺ ئې دمعلم په حیثیت سره رسول کریم ﷺ ته بالکل نزدې ورلیږلو سره ورته وحی اوفرمائیله:

**یو علمي اشکال او ددې جواب:** دلته په ظاهري شکل کښې یو علمي اشکال دا محسوسیږي چې په پورته آیتونو کښې ضمیرونه جمهورو مفسرینو او محدثینو جبرائیل ته راجع کړي دي، د ﴿فَاسْتَوَىٰ﴾ نه واخلې ﴿فَكَانَ قَابَ قَوْسَيْنِ أَوْ أَدْنَىٰ﴾ پورې ټول ضمیرونه هم جبرائیل ﷺ ته راجع دي، او په راتلونکي آیتونو کښې هم په قول د جمهورو مفسرینو هم د جبرائیل ﷺ بیان دې نو صرف په دې آیت مبارک کښې د اوحی او عبده ضمیر الله ﷻ ته راجع کول د عبارت د چلن نه خلاف او د انتشار دضمیرونو موجب دی.

ددې جواب استاد محترم مولانا سید محمد انور شاه ﷫ دا ورکړو چې نه خو دلته د کلام په نظم کښې څه خلل شته او نه انتشار د ضمیرونو رازي بلکه حقیقت دادې چې د سورة نجم دشروع په آیت مبارک کښې د﴿إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحَىٰ﴾ په ذکر فرمائیلو سره د کوم مضمون چې شروع کړې شوې ده، د هغې زیات ضبط کړې شوې بیان داشان اوکړې شو چې وحی لیږونکې خو ښکاره خبره ده چې بغیر دالله تعالی نه بل څوک نشی کیدې خو په دې وحی رسولو کښې یوه واسطه جبرائیل ﷺ وه، څو آیتونو کښې ددې مضبوطی په پوره شان کولو نه پس بیا﴿فَأَوْحَىٰ إِلَىٰ عَبْدِهِ مَا أَوْحَىٰ﴾ اوفرمائیل نو دا د ابتدائی کلام تکمله ده، اوپه دې کښې انتشار د ضمیرونو څکه نشته چې د اوحی او عبده په ضمیر کښې ددې نه سوا بل احتمال نشی کیدې چې هغه دې الله ﷻ طرفته راجع وی څکه دا مرجع د رومبې نه ټاکلې شوې ده او ﴿مَا أَوْحَىٰ﴾ یعنی چې کومه وحی فرمائیل وو د هغې په مبهم ایښولو سره د هغې د شان لوئیوالی ته اشاره کړې شوې ده، دصحیح بخاری شریف د باب بدء الوحی د حدیث نه معلومیږي چې دا وخت کومه وحی شوې وه هغه د سورة مدثر رومبی آیتونه دی(۱)، والله اعلم.

د کلام ددې پوره نظم نه د قرآن عظیم الشان د حقانیت او ددې بالکل د الله ﷻ کلام کیدل ثابتیږي چې څنګه محدثین حضرات د رسول کریم ﷺ د احادیثو سند د خپل ځان نه رسول کریم ﷺ پورې مکمل بیانوی، په دې آیتونو کښې الله ﷻ د قرآن عظیم الشان سند داسې بیان کړو چې موحی یعنی وحی کوونکې پخپله الله ﷻ دې او معلم او مبلغ چې د الله ﷻ او د رسول کریم ﷺ ترمینځه د سند واسطه دې هغه جبرائیل ﷺ دې، په بیان شوی آیتونو کښې د جبرائیل ﷺ د شان لوئی او سخت قوی کیدل ګویا کښې ددې سند تعدیل دی.

﴿مَا كَذَبَ الْفُؤَادُ مَا رَأَىٰ﴾ د ﴿فُؤَادُ﴾ معنی زړه، او د آیت مطلب دادې چې سترګو څه لیدلی دی، زړهٔ هم په هغې باندې پوهیدو کښې څه غلطی نه ده کړې، دې غلطئ او خطا نه ئې په آیت مبارک کښې ﴿كَذَبَ﴾ سره تعبیر کړې دې چې د لیدلی شوی څیز په معلومولو کښې زړه دروغ نه دی وئیلی، یعنی غلطی او خطا نه ده کړې او د لفظ ﴿مَا رَأَىٰ﴾ معنی داده چې څه ئې اولیدل، د قرآن عظیم الشان الفاظو دا او نه ټاکل چې څه ئې اولیدل، ددې په تفسیر کښې د صحابه کرامو ﷺ او د تفسیر امامانو دوه اقوال دی چې پورته په تفصیل سره بیان کړې شوی دی

(۱) صحیح البخاري ،باب کیف کان بدء الوحي إلي رسول الله ﷺ [ج:۱ص:۳]

چې د ځینو په نزد پخپله د الله ﷻ لیدل مراد دی [دا قول د ابن عباس رضي الله عنهما دی] او د ځینې په نزد جبرائیل علیه السلام لره دهغه په اصلي صورت کښې لیدل مراد دی [دا قول د عائشه صدیقه رضي الله عنها، ابن مسعود رضي الله عنه، ابی هریره رضي الله عنه او ابی ذرالغفاری رضي الله عنه دی] ددې تفسیر مطابق دا رای لفظ د خپل حقیقي معنی په مطابق په سترګو لیدلو دپاره اووئیلې شو او د لیدلو نه پس ادراک او مهم چې د زړهٔ کار دې هغه زړهٔ ته منسوب شوې دې، دلیدلو نه مجازي معنی د زړهٔ دلیدو څه ضرورت پیښ نه شو [لکه څنګه چې قرطبي او کړل] [1].

اوس دا سوال پاتې شو چې په آیت مبارک کښې د ادراک نسبت قلب ته کړې دې، حالانکه د مشهورو حکیمانو قول دې چې د ادراک تعلق عقل یا نفس ناطقه سره وې، ددې جواب دادې چې دقرآن عظیم الشان د ډیرو آیتونو نه معلومیږی چې د ادراک او فهم اصل مرکز قلب دې څکه کله د عقل نه هم د قلب په لفظ سره تعبیر کړې شوې دې لکه په آیت مبارک ﴿لمن کان له قلب﴾ [2] کښې قلب نه مراد عقل اخستې شوې دې، ولې چې قلب د عقل مرکز دې، قرآني آیتونه ﴿لَهُمْ قُلُوبٌ لَا يَفْقَهُونَ بِهَا﴾ [3] وغیره په دې ګواه دی.

﴿وَلَقَدْ رَآهُ نَزْلَةً أُخْرَىٰ ۝ عِندَ سِدْرَةِ الْمُنتَهَىٰ﴾ دلته د راه په ضمیر کښې هم هغه دوه اقول دی چې الله ﷻ مراد دې او که جبرائیل علیه السلام؟

د﴿نَزْلَةً أُخْرَىٰ﴾ معنی د دویم ځل نازلیدل دی، د غوره تفسیر مطابق دا نازلیدل هم د جبرائیل علیه السلام دی او څنګه چې د رومبی ځل لیدلو مقام قرآن عظیم الشان په دې عالم دنیا کښې د مکې مکرمې هغه افق اعلی خودلې وه، دا شان ددغې دویم ځل لیدلو مقام ئې په اووم آسمان کښې د سدرة المنتهی او خودلو او دا ښکاره ده چې په اووم آسمان باندې د رسول کریم ﷺ تشریف اوړل د معراج په شپه کښې تیر شوی دی، دې نه ددغې دویم لیدلو وخت هم فی الجملة ټاکلې کیږی، سدره په لغت کښې د بیرې ونې ته وئیلې شی او د منتهی معنی د انتها ځائې، په اووم آسمان باندې د رحمان د عرش لاندې د بیرې ونه ده، د مسلم په روایت کښې ئې دا ونه په شپږم آسمان کښې خودلې ده او د دواړو روایتونو تطبیق په دې شان کیږی چې ددې جرړې په شپږم آسمان او څانګې ئې په اوم آسمان خورې دی [قرطبی] [4] او دعامو فرښتو د رسایئ دا آخری حد دې څکه ورته منتهی وئیلې شی، په ځینې روایتونو کښې دی چې د الله ﷻ احکام اول د رحمان د عرش نه سدرة المنتی ته نازلیږی، دلته متعلقه فرښتو ته سپارلې شی، او دزمکې نه آسمان ته تلونکې عمل نامې وغیره هم فرښتې هم دغې ځائې پورې رسوی هلته نه د الله ﷻ په وړاندې ئې د پیش کولو څه بل صورت وی، په مسند احمد کښې د امضمون د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه منقول دې. [ابن کثیر] [5].

---

[1] تفسير القرطبي بالإختصار [ ج:۱۷ص:۹۳]

[2] ترجمه:- دچا په سینه کښې زړه وی.

[3] ترجمه:- دچا زړونه چې داسې دی چې په هغې نه پوهیږی.

[4] تفسير القرطبي بالإختصار [ ج:۱۷ص:۹٤]

[5] تفسیرابن کثیر تحت هذه الآية [ج:۷ ص:٤٥٤] ومسند احمد ،مسندعبدالله بن مسعود رضي الله عنه رقم الحديث:[۳٦٦٥]

[عِنْدَهَا جَنَّةُ الْمَأْوٰى﴿۱۵﴾] د [مَأْوٰى] معنی تیکانه او د آرام ځائې ، جنت ته ئې ماوی په دې وجه اوفرمائیل چې د انسان اصل ځائې او مقام هم دادې ، هم دغلته آدم ؈ او بی بی حوا پیدا شوی دی . او هم ددغه ځائې نه زمکې ته راکوز کړې شو . او بیا به هم دغه د جنتیانو مقام وی .

**د جنت او دوزخ موجوده مقام** :- دې آیت مبارک دا هم اوخودل چې جنت اوس هم موجود دې څنګه چې د جمهور امت هم دا عقیده ده چې جنت او دوزخ به د قیامت نه پس نشی پیدا کولې بلکه دا اوس هم موجود دی ، دې آیت مبارک د جنت واقع کیدو ځائې هم اوخودلو چې هغه د اووم آسمان دپاسه درحمان د عرش لاندې دې ګویا کښې اووم آسمان ددې زمکه او درحمن عرش چت دې ، د دوزخ محل وقوع د قرآن عظیم الشان په یو آیت یا د حدیث پاک په روایت کښې په ښکاره نه دې خودلې شوې ، د سورة طور د آیت مبارک [وَالْبَحْرِ الْمَسْجُوْرِ﴿۶﴾](۱) نه ځینې مفسرینو دا مطلب راؤښکلې دې چې دوزخ د سمندر نه لاندې زمکې په تل کښې دې ، چې په هغې دا وخت څه درونډ اوسخت غلاف راخور کړې شوې دې ، هغه به په قیامت کښې اوشلیږی او ټول سمندر به اور کړی .

په اوسنۍ زمانه کښې د یورپ ډیرو ماهرانو په زمکې برما کولو سره بل طرفته ئې وتل غوښتل تر شپږو میلو چې وراورسیدل نو داسې سخت کاڼې ورته رامخې ته شو چې برمې په کښې کار نه کولو ، په بله علاقه کښې هم دغه شان اوشو ، او داسې نورو علاقو کښې هم نو معلومه شوه چې دننه په زمکه کښې شپږ میله پس داسې یو کاڼې هر چرته موجود دې چې هیڅ قسم مشین او برمه په کښې کار نشی کولې حالانکه د زمکې قطر په زرګونو میله جوړیږی صرف شپږ میله په کښې سائنسدانو او د هغوئ مشینونو مزل اوکړو او بیا پاتې راغلل ، که د یو صحیح روایت تر مخه د جهنم محل وقوع په دغې غلاف کښې دننه ثابت شی نو څه لرې خبره نه ده . والله اعلم

[اِذْ يَغْشَى السِّدْرَةَ مَا يَغْشٰى﴿۱۶﴾] [کله چې پټ کړې وو سدری لره څه پټوونکی څیز] صحیح مسلم کښې د عبدالله بن مسعود ؓ نه روایت دې چې دغه وخت سدرة المنتهی باندې د سرو زرو جوړ شوی پتنګان هر طرفته راغورزیدل(۲) داسې معلومیږی چې په دغه ورځ سدرة المنتهی په خاص طور ښائسته شوې وه ، ولې چې دغلته یو عزت مند میلمه رسول کریم ﷺ راتلونکې وو .

[مَا زَاغَ الْبَصَرُ وَمَا طَغٰى﴿۱۷﴾] زاغ د زیغ نه مشتق دې ، اوددې معنی کوږ اوبې لارې کیدل دی ، او طغی د طغیان نه مشتق دې او ددې معنی د حد نه تیریدل دی . ددې دواړو لفظونو نه مراد دا بیانول دی چې رسول کریم ﷺ څه اولیدل په هغه نظر څه خطا یا غلطی اونه کړه ، دا دهغې شک جواب دې چې کله د انسان نظر هم خطا کیږی ، قرآن عظیم الشان دوه لفظونه استعمال کړل ولې چې دنظر غلطی د دوؤ وجوهاتو نه کیدې شی ، یو دا چې کوم څیز ئې لیدل غوښتل نو دهغې نه ئې نظر بل طرفته واؤړیدو خکه په ما زاغ سره د داسې قسم غلطئ نفی کړې شوې ده چې د هغوئ نظر چرته بل ځائې نه وو لګیدلې بلکه خاص په هغه ځائې اولګیدو چرته ئې چې کتل غوښتل ، د نظر دویم قسم غلطی دا هم کیدې شی چې نظر خو هم هغه ځائې غورزیږی

---

(۱) ترجمه:- او(قسم دې) په ډک دریاب
(۲) صحیح مسلم کتاب الإیمان ، باب الإسراء [ج:۲ص:۹۷]

چرته چې نظر غورزول غواړي څو دې سره ئې نظر په خوا کښې نورو څیزونو باندې هم غورزیږي چې ځینې وختونه په کښې د ګډوډ خطره کیدې شی ، ددې غلطئ دلرې کولو دپاره ئې ﴿وَمَا طَغٰى﴾ اوفرمائیل.

کومو حضراتو چې ددې سابقه آیتونو روایت حضرت جبرائیل علیه السلام نه کړې دې ، هغوئ ددې آیت مبارك هم دا مفهوم کرځوی چې د جبرائیل امین په لیدلو کښې ستر ګو هیڅ غلطی نه ده کړې ، ددې د بیانولو ضرورت په دې وجه راپیښ شو چې جبرائیل علیه السلام د وحی یوه واسطه وه، که نبی کریم ﷺ هغوئ په ښه شان اونه وینی او وې نه پیژنی نو بیا خو وحی د شك څخه خالی نه پاتې کیږی.

**ددې آیتونو په تفسیر کښې یو بل مفید تحقیق** :: د پخوانو محدثینو نمونې حضرت استاد مولانا سید محمدانور شاه کشمیری رحمة الله علیه سره چې بیشکه په دې زمانه کښې یوه نخښه د الله تعالیٰ د نخښو نه ده او په زمکه کښې یو حجة الله وو ، د دوئ علوم بیشکه د حافظ ابن حجر رحمة الله علیه او ذهبی غوندې ، د امامانو د حدیث د علومو نمونه وو او په مشکلاتو القرآن باندې ددوئ یو مستقل تصنیف د انتهائی باریکو علومونو او معرفتونو خزانه ده ، د سورۂ نجم په آیتونو کښې د صحابه کرامو رضی الله عنهم او تابعینو نه چې واخلې د مجتهدینو امامانو اومحدثینو مفسرینو اقوال او په دې کښې علمی اشکالونه معروف او مشهور دی. مشکلات القرآن کښې دوئ ددې آیتونوتفسیرپه داشان اوفرمائیلوچې دزیاتوروایتونوترمینځه تطبیق،سمون اوجوړښت راشی.

بیا د احقر بل استاد شیخ الاسلام مولانا شبیر احمد عثمانی رحمة الله علیه چې کله د صحیح مسلم شرح فتح الملهم لیکله او د اسراء او معراج په بیان کښې د سورۃ نجم ددې آیتونو حواله راغله نو د مسئلې د اهمیت تر مخه ئې ددې آیتونو تفسیر پخپله د انور الاساتذه قدس سره په قلم سره اولیکل او د خپل کتاب فتح الملهم حصه ئې جوړ کړو ، او پخپل فوائد القرآن کښې ئې هم دې له اختیار کړو. په دې شان دا تحقیق د احقر د دوؤ بزرګانو استاذانو اتفاقی تحقیق شو، ددې د کتلو نه مخکښې څو خبرې مخې ته لرل پکار دی چې تقریبا ټول عالمان او امامان ئې منی اول دا چې رسول کریم ﷺ جبرائیل علیه السلام په خپل اصلی صورت کښې دو ځل لیدلې دې ، اود دې دواړو ځلو لیدلوبیان د سورۃ نجم په آیتونو کښې موجود دې. د دویم ځل لیدل په کوم ځائې او کومه زمانه کښې ؟ دې له خو په د ې آیتونو کښې متعین کړو بیان کړه چې دا لیدل او ښکاره خبره ده ې اوم آسمان ته د رسول کریم ﷺ تشریف اوړل صرف په شپه د معراج کښې شوی وو ، ددې نه ددې رویت ځائې هم معلوم شو او وخت هم چې هغه شپه وه معراج کښې اوشو ، د رومبی ځل ځائې او وخت په دې آیتونو کښې نه دې ټاکلې شوې خو په صحیح بخاری باب بدء الوحی کښې د جابر بن عبدالله د لاندې بیان شوې حدیث نه دا دواړه څیزونه ټاکلې شوی دی .

قال وهو يحدث عن فترة الوحي فقال في حديثه بينا انا امشي اذاسمعت صوتامن السماء فرفعت بصري فاذا الملك الذي جاءني بحراء جالس على كرسي بين السماء والارض فرعبت منه فرجعت فقلت

رسول کریم ﷺ په وحی کښې د فترت یعنی د وقفې ذکر کولو سره اوفرمائیل چې یوه ورځ کله چې زۀ روان اووم ناګاهانه مې د آسمان د طرفه یو آواز واؤریدو ما چې پورته اوکتل نو اومې لیدل چې هغه فرښته کومه چې راته په حراء کښې راغلې وه د آسمان او زمکې تر مینځه په یوه کرسئ

زملـوني فـانزل اللـه تعـالى يأيها المدثر قم فانذر الى قوله والرجز فاهجر فحمي الوحي وتتابع

باندې ناسته وه زه ترې په رعب کښې شوم او کورته واپس راغلم او اومې وئيل چې په ما باندې څه راواچوئی دغه وخت الله ﷻ د سورة مدثر آيتونه والرجز فاهجر پورې نازل کړل ، دې نه پس آسمانی وحی په مخه راتلل شروع شو.

دې حديث پاک نه معلوم شو چې جبرائيل ﷺ لره په اصلی صورت کښې د ليدلو ړومبی واقعه د وحی د ملتوی کيدو په زمانه کښې د مکې مکرمې په زمکه هغه وخت راپيښه شوه کله چې هغوئ دمکې په ښار کښې چرته روان وو ، دې نه معلوم شو چې ړومبئ واقعه د معراج نه مخکښې د مکې په زمکه او د ويمه واقعه په اووم آسمان دمعراج په شپه راپيښه شوه.

دويمه دا خبره هم ټول منی چې د سورة نجم په ابتدائی آيتونو کښې کم ناکم آيت [وَلَقَدۡ رَاٰهُ نَزۡلَةً اُخۡرٰى﴾ نه تر [لَقَدۡ رَاٰى مِنۡ اٰيٰتِ رَبِّهِ الۡكُبۡرٰى﴾ پورې ټول آيتونه د معراج د واقعې باره کښې دی.

ددې بيان شوؤ خبرو تر مخه استاد محترم حجة الاسلام مولانا انور شاه کشميری ﷫ د سورة نجم د ابتدائی آيتونو تفسير په دې شان فرمائيلې دې چې :

قرآن عظيم الشان د عام طرز مطابق د سورة نجم په ابتدائی آيتونو کښې د دوؤ واقعاتو ذکر کړې دې . يو واقعه جبرائيل ﷺ لره دهغوئ په اصلی صورت کښې د هغې وخت ليدلو ده کله چې هغوئ ﷺ د وحی د فترت په زمانه کښې په مکه مکرمه کښې چرته روان وو او دا واقعه د اسراء او معراج نه مخکښې ده.

دويمه واقعه د معراج د شپې چې په کښې د جبرائيل ﷺ لره دهغوئ ﷺ په اصلی صورت کښې د دوباره کتلو نه څه زيات د نورو عجيبه څيزونو او د الله ﷻ د لويو نخښو ليدل بيان شوی دی ، په دې لويو نخښو کښې پخپله د الله ﷻ زيارت او ليدل کول هم احتمال لری.

دسورة نجم د ابتدائی آيتونو اصل مضمون د رسول کريم ﷺ په پيغمبرئ او دهغوئ په وحی کښې د شکونو راؤښکو جواب دې چې د ستورو په قسم خوړلو سره ئې اوفرمائيل چې رسول کريم ﷺ ارشاد نه امت ته چې ورکوی نه په هغې کښې د څه غير اختياری غلطئ امکان شته او نه د اختياری غلطئ او ددوئ ﷺ چې څه فرمائی د خپل نفسانی غرض نه نه وائی بلکه دا ټول د الله ﷻ د طرفه ليږلې وحی وی ، بيا هر کله چې دا وحی د جبرائيل ﷺ په واسطې سره ليږلې شی ، نو هغه د معلم او مبلغ په حيثيت وحی رسوی ، څکه ئې د جبرائيل ﷺ مخصوص صفات او د شان د لوئيو الی بيان په څو آيتونو کښې اوکړو ، په دې کښې د زيات تفصيل وجه شايد چې دا هم وی چې د مکې مکرمې مشرکان د اسرافيل ﷺ او ميکائيل ﷺ فرښتو نه خو واقف وو ، د جبرائيل ﷺ نه واقف نه وو ، په هر حال د جبرائيل ﷺ د صفاتو بيانولو نه پس ئې د وحی اصل مضمون بيان کړو. [فَاَوۡحٰۤى اِلٰى عَبۡدِهٖ مَاۤ اَوۡحٰى﴾.

تر دې پورې دا ټول يوولس آيتونه دی چې په کښې د وحی او پيغمبرئ د توثيق په لړ کښې د جبرائيل ﷺ د صفاتو بيان دې اوکه غور اوکړې شی نو دا ټول صفات په جبرائيل ﷺ باندې بې تکلفه صادقيږی . دې لره که د الله ﷻ صفت اوګرځولې شی لکه چې څينو مفسرينو کړی دی نو د تکلف او تاويل نه خالی نه دی ، لکه :

[شَدِيۡدُ الۡقُوٰى﴾ ، [ذُوۡ مِرَّةٍ﴾، [دَنَا فَتَدَلّٰى﴾ ، [فَكَانَ قَابَ قَوۡسَيۡنِ اَوۡ اَدۡنٰى﴾ دا کلمات خو په تاويل سره الله ﷻ دپاره وئيلې شی خو بې تاويله او بې تکلفه ددې مصداق هم جبرائيل ﷺ کيدې شی ،

ځکه په دې ابتدائی آیتونو کښې د کومو لیدلو نزدیکت او یو ځائې والئ چې ذکر دې هغه ټول د جبرائیل ﷺ دلیدو سره متعلق کرځول ډیر زیات نزدې او زیات سالم معلومیږي.

البته ددې نه پس دولسم آیت مبارک ﴿مَا كَذَبَ الْفُؤَادُ مَا رَأَىٰ﴾ نه تر ﴿لَقَدْ رَأَىٰ مِنْ آيَاتِ رَبِّهِ الْكُبْرَىٰ﴾ پورې چې په کښې د اسراء او معراج د واقعې بیان کیږی په دې کښې هم د جبرائیل ﷺ دوباره په اصلی صورت باندې اګر چې بیان شوی دی مګر د نورو ﴿آيَاتِ كُبْرَىٰ﴾ په ضمن کښې دی چې په کښې دالله تعالی دلیدلو احتمال هم کیدې شی دکوم چې تائید په صحیح احادیثو ، دصحابه کرامو ﷺ او د تابعینو په اقوالو سره کیږی هغه نظر انداز کیدې نشی. ځکه د ﴿مَا كَذَبَ الْفُؤَادُ مَا رَأَىٰ﴾ تفسیر دادې چې څه د رسول کریم ﷺ سترګو مبارکو اولیدل د هغوئ ﷺ زړۀ د هغې تصدیق اوکړو چې صحیح ئې اولیدل ، په دې تصدیق کښې ئې زړۀ مبارک هیڅ غلطی اونه کړه ، ددې تعبیر په ﴿مَا كَذَبَ﴾ لفظ سره کړې شوې دې او په دې کښې الفاظ ، څه ئې چې اولیدل ، عام دی ، په دې کښې د جبرائیل ﷺ لیدل هم شامل دی او څه چې په شب معراج کښې رسول کریم ﷺ اولیدل هغه ټول په کښې شامل دی ، او په دې کښې د ټولو نه زیات اهم پخپله د الله ﷻ لیدل او زیارت کول دی ، ددې تائید د راتلونکی آیت مبارک ددې ارشاد نه هم کیږی، فرمائی چې :

﴿أَفَتُمَارُونَهُ عَلَىٰ مَا يَرَىٰ﴾ چې په کښې د مکې مشرکانو ته خطاب دې چې رسول کریم ﷺ څه اولیدل یا به آئندې وینی هغه د جنګ اختلاف کولو یا په شک کښې د پریوتو ځیز نه دې. خالص حق او حقیقت دې ، په دې آیت مبارک کښې ئې دا اونه فرمائیل چې :

﴿أَفَتُمَارُونَهُ عَلَىٰ مَا رَأَىٰ﴾ بلکه ﴿عَلَىٰ مَا يَرَىٰ﴾ په صیغه د مستقبل سره ئې اوفرمائیل چې په راتلونکی وخت کښې لیدل چې د معراج په شپه کښې کیدونکی وو هغې ته هم اشاره ده او ددې نه پس آیت مبارک ﴿وَلَقَدْ رَآهُ نَزْلَةً أُخْرَىٰ﴾ کښې ددې هم خبرې ښکاره کول دی ، او پدې آیت مبارک کښې هم د دواړو لیدلو احتمال دې یعنی چې هغه د الله ﷻ او جبرائیل ﷺ لیدل دی ، د جبرائیل ﷺ لیدل خو ښکاره دی او د الله ﷻ لیدلو ته اشاره داسې موندې شی چې لیدلو دپاره نزدې والې عادتا ضروری دې لکه په حدیث پاک کښې د الله ﷻ نازلیدل لاندینی آسمان ته په آخره شپه کښې چې بیان شوی دی . ﴿عِندَ سِدْرَةِ الْمُنتَهَىٰ﴾ ددې مطلب دادې چې څه وخت هغوئ ﷺ سدرة المنتهی سره وو چې د نزدیکت مقام دې الله ﷻ سره هغه وخت ئې اولیدلو ، پدې کښې د الله ﷻ زیارت هم مراد ګولو باندې دا حدیث پاک ګواه دې چې رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې :

واتیت سِدْرَةَ الْمُنْتَهٰی فغشیتنی ضبابة حذرت لها ساجدا وهذه الضبابة(١) هی الظلل من الغمام التی فیها الله ویتجلی [یعنی زه سدرة المنتهی ته اورسیدم نو زۀ د وریځې پشان یو ځیز کیر کړم زۀ هغې ته په سجده پریوتم د قیامت په ورځ په محشر کښې د الله ﷻ ښکاره کیدل د قرآن عظیم الشان په یو آیت مبارک کښې داشان بیان شوی دی چې د وریځو د سوری پشان په څه ځیز کښې به الله ﷻ نزول فرمائی]

داشان دې پسې آیت مبارک ﴿مَا زَاغَ الْبَصَرُ وَمَا طَغَىٰ﴾ مفهوم هم دواړو لیدلو لره شامل دې ، او ددې نه دا زیات ثابت شو چې دا لیدل د بیدارئ په حالت کښې په سترګو لیدلو سره شوی دی.

(١) سنن النسائی کتاب الصلاة، باب فرض الصلاة..... إلخ رقم الحدیث:[٤٥٠]

خلاصه داده چې په کومو آیتونو کښې د معراج د شپې بیان دې په دې کښې دلیدلو باره کښې چې څومره الفاظ راغلی دی په هغې ټولو کښې د جبرائیل علیه السلام او د الله ﷻ د لیدلو دواړو احتمال شته ، نورو حضراتو هم ددې تفسیر د الله ﷻ په لیدلو سره کړې دې ، دد ې گنجائش د قرآن عظیم الشان په الفاظو کښې موجود دې .

**دالله تعالیٰ دلیدلو مسئله** :: ټول صحابه کرام رضی الله عنهم ، تابعین او جمهور د امت په دې متفق دی چې په آخرت کښې به جنتیان او عام مؤمنان د الله ﷻ زیارت کوی لکه چې صحیح احادیث په دې باندې گواه دی ، دې نه دومره معلوم شو چې د الله ﷻ لیدل او زیارت کول څه ناآشنا یا ناممکن نه دی ، البته په دنیا کښې انسانی نظر دومره طاقت نه لري چې ددې برداشت اوکړې شی ځکه ئې دلته امکان نشته خو دآخرت په معامله کښې پخپله قرآن عظیم الشان فرمائی چې : [فَكَشَفْنَا عَنكَ غِطَاءَكَ فَبَصَرُكَ الْيَوْمَ حَدِيدٌ] [یعنی د قیامت په ورځ به د انسان نظر تیز کړې شی، پردې به ترې لرې کړې شی] امام مالک رحمه الله فرمائیلی دی چې په دنیا کښې هیڅ یو انسان ځکه الله ﷻ نشی لیدلې چې نظر ئې فانی دې ، او الله ﷻ باقی دې ، کله چې په آخرت کښې به ورته باقی نظر ورکړې شی ځکه به د الله ﷻ په لیدو کښې ټول رکاوټونه لرې شی . تقریبا دا مضمون د قاضی عیاض نه هم منقول دې او د صحیح مسلم په یو حدیث کښې تقریبا خبره ښه په ښکاره شوې ده چې الفاظ ئې دادی: [واعلموا انکم لن تروا ربکم حتی تموتوا] [پوهه شئ چې د مړ کیدو نه مخکښې به تاسو بالکل الله ﷻ نشئ لیدلې ، فتح الباری][1] دې نه دا امکان هم راوزی چې الله ﷻ رسول ﷺ ته د معراج په شپه ددغې فانی نظر په ځائې باقی نظر ورکړې وی او په هغې سره د الله ﷻ دیدار او زیارت ئې کړې وی ځنگه چې ددې جهان په بهر وتلو ورته جنت ، دوزخ او د الله ﷻ د قدرت خاص نخښې اوخودلې شوې ، ولې چې هغوئ علیه السلام دغه وخت په دې دنیوی جهان کښې نه وو ، هر کله چې امکان ثابت شو نو بیا دا مسئله پاتې کیږی چې آیا لیدل شوی دی او که نه ؟ په دې باره کښې دا حادیثو روایتونه مختلف او د قرآن عظیم الشان آیتونه محتمل دی ځکه د صحابه کرامو رضی الله عنهم او تابعینو او ددین داامامانو ترمینځه دا مسئله همیشه اختلافي پاتې شوې ده ، ابن کثیر رحمه الله ددې آیتونو په تفسیر کښې اوفرمائیل چې عبدالله بن عباس رضی الله عنهما رسول کریم ﷺ لره د الله تعالیٰ لیدل ثابتوی او د سلف صالحینو یوې ډلې ددې تابعداری کړې ده ، او د صحابه کرامو رضی الله عنهم او تابعینو ډیرو ډلو دې نه اختلاف کړې دې ، وړاندې ئې د دواړو ډلو دلیلونه وغیره بیان کړی دی .

دغه شان حافظ په فتح الباری سورة نجم کښې دصحابه کرامو رضی الله عنهم او تابعینو ددې اختلاف ذکر کولو نه پس ځینې اقوال داسې هم نقل کړی دی چې ورسره د دغې دواړو مختلفو اقوالو ترمینځه تطبیق راتلې شی . اوفرمائیلی ئې دی چې قرطبی رحمه الله په مفهم کښې دا خبره غوره کړې ده چې په دې معامله کښې هیڅ فیصله اونه کړی شی ، بلکه چپ او غلی پاتې کیدل اختیار کړې شوې دې ، ځکه چې دا مسئله څه عملی مسئله نه ده چې په یو طرف ئې عمل کول ضروری وی بلکه ددې تعلق عقیدې سره دې چې په کښې تر څو پورې دیقینی ثبوت دلیلونه نه وی هیڅ فیصله نشی کیدې او تر څو چې په یوه خبره کښې څه یقینی طرف معلوم نشی نو

[1] فتح الباری کتاب التفسیر باب تفسیر سورة النجم [ج: ۱۳ص:۴۳۰]

هلته به په ځائې اودریږي او چپ به پاتې کیږي. [فتح الباري](۱) د احقر په نزد هم دا محفوظه او احتیاطي خبره ده ځکه مې ددې مسئلې دوه طرفه دلیلونه او وجوهات بیان کړل. والله سبحانه و تعالی اعلم

أَفَرَءَيْتُمُ اللَّٰتَ وَالْعُزَّىٰ ﴿١٩﴾ وَمَنَوٰةَ الثَّالِثَةَ الْأُخْرَىٰ ﴿٢٠﴾

آیا غور کړې دې تاسو | په حقیقت دلات | او دعزی | او دمنات | چې دریم بل دې |

آیا تاسو چرې دلات او عزی په حالت باندې غور کړې دې؟ | اودریم دمنات په حالت

أَلَكُمُ الذَّكَرُ وَلَهُ الْأُنثَىٰ ﴿٢١﴾ تِلْكَ إِذًا قِسْمَةٌ ضِيزَىٰ ﴿٢٢﴾ إِنْ هِيَ

آیا تاسو لره خامن دې | او هغه لره لونړه | دا خو بیا | تقسیم دې | دبې دانصافئ | نه دی دا |

آیاستاسو دې خامن وی او دالله ﷻ دې لونړه؟ | دا خو دیربې انصافه تقسیم دې | دا [ستاسو معبودان] خو

إِلَّا أَسْمَاءٌ سَمَّيْتُمُوهَا أَنتُمْ وَآبَاؤُكُم مَّا أَنزَلَ اللَّهُ

مگر تش نومونه دی | چې اینبودلی دی هغه | تاسو | او پلارانو ستاسو | نه دې نازل کړې الله |

تش نومونه دی | چې پخپله تاسو او ستاسو نیکونو ایخودی دی | الله ﷻ په دې څیزونو

بِهَا مِن سُلْطَانٍ ۚ إِن يَتَّبِعُونَ إِلَّا الظَّنَّ وَمَا تَهْوَى الْأَنفُسُ ۖ

په دې باندې څه سند | نه دی روان دوئ | مگر په گمان پسې | او په هغه پسې | چې غواړي ئې نفسونه

هیڅ دلیل نه دې رالیږلې | داخلق صرف د گمان او دخپل نفس د خواهشونو تابعداری کوی

وَلَقَدْ جَاءَهُم مِّن رَّبِّهِمُ الْهُدَىٰ ﴿٢٣﴾ أَمْ لِلْإِنسَانِ

او بیشکه راغلې دې دوئ ته | دطرفه درب ددوئ نه | هدایت [لاره نیغه] | آیا انسان لره حق دې

ددې باوجود چې دخپل رب دطرفه ورته هدایت رارسیدلې دې | ..........آیا د انسان

مَا تَمَنَّىٰ ﴿٢٤﴾ فَلِلَّهِ الْآخِرَةُ وَالْأُولَىٰ ﴿٢٥﴾ وَكَم مِّن مَّلَكٍ

هغه څیز | چې غواړي ئې هغه | پس الله لره دې آخرت | او دنیا | او ډیرې دی دفرښتونه

هر ارمان پوره کیږي | [نه بلکه دهر ارمان پوره کیدل] الله ﷻ سره دی په آخرت او دنیا کښې | په

فِي السَّمَاوَاتِ لَا تُغْنِي شَفَاعَتُهُمْ شَيْئًا إِلَّا مِن بَعْدِ

په آسمانونو کښې | چې نه شي دفع کولې | سفارش دهغوئ | هیڅ څیز لره | مگر | پس دهغې

آسمانونو کښې ډیر فرښتې دی | چې د هغوئ سفارش هیڅ فائده نشي ورکولې البته دا

أَن يَأْذَنَ اللَّهُ لِمَن يَشَاءُ وَيَرْضَىٰ ﴿٢٦﴾ إِنَّ الَّذِينَ

چې حکم اوکړي الله | دپاره دهغه چا | چې غواړي ئې هغه | او راضي وی هغه | بیشکه هغه کسان

چې الله ﷻ چاته اجازت ورکړي | اود هغه رضا وی | ..........................بیشکه خوک چې

(۱) فتح الباري کتاب التفسیر باب تفسیر سورة النجم [ج: ۱۳ص:٤٣٤]

| لَا يُؤْمِنُوْنَ | بِالْاٰخِرَةِ | لَيُسَمُّوْنَ | الْمَلٰٓئِكَةَ | تَسْمِيَةَ |
|---|---|---|---|---|
| چي ايمان نه راوړي | په آخرت باندې | هغوئ نومونه ږدي | په فرښتو باندې | نومونه |

په آخرت ايمان نه راوړي | ..................هغوئ په فرښتو د زنانئو نومونه ايږدي

| الْاُنْثٰى ﴿۲۷﴾ | وَمَا لَهُمْ | بِهٖ | مِنْ عِلْمٍ ؕ | اِنْ يَّتَّبِعُوْنَ | اِلَّا الظَّنَّ ۚ |
|---|---|---|---|---|---|
| دښځو | حالانکه نشته هغوئ لره | په دې باندې | هيڅ علم | نه کوي پيروي هغوئ | مگر دگمان |

.........حال دادې چې دوی سره په دې باندې هيڅ علم نشته | .....خو بس په گمان پسې روان دي

| وَاِنَّ الظَّنَّ | لَا يُغْنِيْ | مِنَ الْحَقِّ | شَيْـًٔا ﴿۲۸﴾ |
|---|---|---|---|
| او بيشکه گمان | نه دفع کوی | دحق نه | هيڅ څيز |

اوگمان دحق په مقابله کښې هيڅ کار نه ورکوی |

## آسان ترجمه قرآن

آيا تاسو د لات او عزّٰی (په حقيقت باندې) هم غور کړې دې، او په يو بل دريم باندې، چه دهغه نوم منات دې؟ آيا ستاسو دپاره دې ځامن وی، او د الله تعالٰی دپاره لونړه؟ بيا خو دا ډير بې انصافه تقسيم شو. د ددوی حقيقت ددې نه سوا هيڅ نه دې، چه دا څه نومونه دی، چه تاسو او ستاسو پلار نيکه ايخودلې دی، الله تعالٰی ددوی په حق کښې هيڅ ثبوت نه دې نازل کړې، په حقيقت کښې دا کافران خلق صرف وهم او گمان او نفساني خواهشاتو پسې روان دی، حالانکه ددوی د پروردگار د طرف نه دوی ته هدايت راغلې دې. آيا انسان ته د هر هغه څيز حق حاصل دې، د کوم چه دې خواهش کوی؟ (نه) ځکه چه آخرت او دنيا خو ټول په ټوله د الله تعالٰی په اختيار کښې دی. او په آسمانونو کښې ډيرې فرشتې دی، چه دهغوی سفارش هيڅا ته د هيڅ څيز فائده نه ورکوی، البته ددې نه پس فائده ورکولې شی، چه الله تعالٰی د چا دپاره اوغواړی، اجازت ورکړی، او په هغې باندې راضی شی کوم خلق چه په آخرت باندې ايمان نه لری، هغوی فرشتو لره د زنانئو په نومونو باندې يادوی حالانکه هغوی ته ددې خبرې لږ شان علم هم نشته، هغوی صرف وهم او گمان پسې روان دی، او حقيقت دادې، چه وهم او گمان د حق په معامله کښې بالکل کار نه ورکوی.

## خلاصه تفسير

اے مشرکانو پس ددې نه چه دنبی کريم ﷺ حق وئيلس او د وحی تابعدار کيدل ثابت شو او دوئ په دې وحی سره دتوحيد حکم فرمائی کوم چه په عقلی دليلونو سره هم ثابت دې او تاسو بيا هم د بتانو عبادت کوئ نو ﴿اَفَرَءَيْتُمُ اللّٰتَ وَالْعُزّٰى ﴿۱۹﴾ وَمَنٰوةَ الثَّالِثَةَ الْاُخْرٰى ﴿۲۰﴾﴾ [ايا تاسو] چرته ددې بتانو مثلا [لات او عزی او ديودريم منات په حال غور هم کړې دې] چه تاسو ته معلومه شوې وې چه دغه قابل د عبادت دی اوکه نه دی پس په کلمې دفاء سره دافائده وشوه چه ستاد خبردارولو نه پس خبرداريدل پکار وو او دتوحيدمتعلق يوه بله خبره قابل غور ده چه تاسوکومو ملائکو ته دالله تعالی لونړه وايئ او معبودان يځ جوړوئ نو ﴿اَلَكُمُ الذَّكَرُ وَلَهُ الْاُنْثٰى ﴿۲۱﴾﴾ [ايا ستاسو دپاره خو ځامن] تجويز وی او خدائ دپاره لونړه] تجويزوی يعنی کومو جينکولره چه تاسو عاراو شرم او دنفرت قابلې گڼئ د هغوئ دې خدائ طرف ته نسبت وشی ﴿تِلْكَ اِذًا قِسْمَةٌ

ضِيزٰى﴾ [په دې حالت كښې خو دا ډېرنا جائزتقسيم شو] چه ښه شې ستاسو په حصه كښې او بدشې د الله تعالى په حصه كښې نعوذبالله منه داېٔ بنا على العرف اوفرمائيل ورنه د الله تعالى دپاره خو ځامن تجويزكول هم ناجائزه خبره ده ﴿اِنْ هِىَ اِلَّآ اَسْمَآءٌ﴾[دا] ذكرشوى معبودان بتان او ملائك په ذكرشوې عقيده [خالص نومونه دى] يعنى دامسميات دخداېٔ كيدو په حيثيت سره هيڅ موجود شې نشته بلكه په مثل د هغو اسماؤ دى دكومو چه چرته مصداق نه وى ﴿سَمَّيْتُمُوْهَآ اَنْتُمْ وَاٰبَآؤُكُمْ﴾ [كومولره چه تاسو او ستاسوپلارانو] د ځانه [مقرركړى دى ﴿مَّآ اَنْزَلَ اللّٰهُ بِهَا مِنْ سُلْطٰنٍ﴾ الله تعالى خو ددوئ] د معبود كيدو[هيڅ دليل] عقلى يانقلى [نه دې راليږلې] بلكه ﴿اِنْ يَّتَّبِعُوْنَ اِلَّا الظَّنَّ وَمَا تَهْوَى الْاَنْفُسُ﴾[داخلق] په دې عقيده دالوهيت د غيرالله كښې [صرف په بې اصله خيالاتو او دخپل نفس په خواهش] د كوم چه ددوئ دبې اصله خيالاتو نه پيداكيږى [چليږى] په دواړوكښې فرق داشو چه دهرعمل نه وړاندې يوه عقيده وى او عزم او يو اراده كومه چه دعمل دپاره محركه وى پس په دواړو سره د دواړو طرف ته اشاره ده ﴿وَلَقَدْ جَآءَهُمْ مِّنْ رَّبِّهِمُ الْهُدٰى﴾[حال دادې چه دوئ ته ددوئ د رب دطرف نه] په واسطه دنبى كريم ﷺ كوم چه حق ګو او د وحى الهى پيروكاردې د دوئ سره [هدايت] دواقعى امر[راغلې دې] يعنى په خپله خو په خپله دعوى څه دليل نه لرى او ددې دعوې په تفصيل باندې درسول الله ﷺ په ذريعه سره دليل اورى او بياهم نه منى داخو خبرې وې دالله تعالى نه سوا دبل چاد معبود كيدو په ابطال كښې وړاندې ددې بيان دې چه تاسو كومو بتانو لره په دې غرض سره معبود منئ چه دوئ به دالله تعالى سره ستاسو سفارش وكړى دا غرض هم محض دهوكه او باطل دې سوچ وكړئ چه ﴿اَمْ لِلْاِنْسَانِ مَا تَمَنّٰى﴾[اياانسان ته ددهٔ هره يوه تمنا ملاويږى] واقعه داسې نه ده ځكه چه هره يوه تمنا [هم دالله تعالى په اختياركښې ده ﴿فَلِلّٰهِ الْاٰخِرَةُ وَالْاُوْلٰى﴾ د اخرت] هم [او ددنيا] هم پس هغه چالره چه غواړى پوره كوى او په قطعى نص كښې دانبودلې شوې ده چه الله تعالى ددوئ دا باطله تمنا پوره كول نه غواړى نه په دنياكښې به ددوئ په حاجتونو كښې شفاعت وكړى نه په اخرت كښې چه هلته د عذاب نه دنجات شفاعت وكړى په دې وجه يقيناهغه به پوره نه شى [او] بې چاره بتان به څه شفاعت وكړى چه په هغوئ كښې په خپله اهليت د شفاعت نشته په هغې درباركښې خو چه كوم خلق اهل دى دهغوئ هم بې د اجازت د حق نه څه وس نه چليږى چنانچه ﴿وَكَمْ مِّنْ مَّلَكٍ فِى السَّمٰوٰتِ﴾[ډيرې فرښتې په اسمانونو كښې موجوددى] شايد په دې كښې اشاره وى لوئ شان طرف ته مګرسره ددې لوئ شان ﴿لَا تُغْنِىْ شَفَاعَتُهُمْ شَيْـًٔا﴾[ددوئ سفارش ذره هم په كار نه شى راتلې] بلكه په خپله شفاعت نه شى موندې ﴿اِلَّا مِنْ بَعْدِ اَنْ يَّاْذَنَ اللّٰهُ لِمَنْ يَّشَآءُ وَيَرْضٰى﴾[مګرپس د دې چه الله تعالى دچا دپاره چه غواړى اجازت وركړى او] ددهٔ دپاره په شفاعت كولو سره [راضى شى] يرضى ئې ځكه زيات كړو چه چرته دمخلوق اذن بې درضا نه هم څه دباؤ يا مصلحت سره كيدې شى دالله جل شانه په معامله كښې ددې هم څه لرې احتمال نشته چه هغه په څه دباؤ سره مجبور شى راضى شى وړاندې ددې بيان دې چه فرښتولره د اولاد مقرر كول كفر دې چه ﴿اِنَّ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ﴾ [كوم خلق په اخرت ايمان نه لرى] بلكه ددې نه د انكار په وجه كافر دى ﴿لَيُسَمُّوْنَ الْمَلٰٓئِكَةَ تَسْمِيَةَ الْاُنْثٰى﴾[هغوئ فرښتولره]د الله تعالى [دلونړو په نوم سره نامزد كوى] ددوئ په اخرت باندې دكفرد تعبير په تخصيص سره شايددې طرف ته اشاره وى چه داټولې ګمراهئ د

اخرت نه په بې فکرئ سره پیداشوی دی ورنه د اخرت معتقد ته دخپل نجات خامخا فکر وی او دلته انثی په معنئ د لور ده لکه په دې قول دالله تعالی کښې واذا بشر احدهم بالانثی() او هرکله چه ملائکو لره دالله تعالی سره دشریکولو کفر کیدل واضحه شو نو بتانو لره دشریك جوړولو کفر کیدل خو په درجه اولی ثابت شو په دې وجه صرف په دې باند بس وشو وړاندې ددې بیان دې چه فرښتو لره دالله تعالی لونړه مقررول باطله عقیده ده ﴿وَمَا لَهُمْ بِهِ مِنْ عِلْمٍ﴾[حال دادې چه ددوئ سره په دې باند څه دلیل نشته﴿إِنْ يَتَّبِعُونَ إِلَّا الظَّنَّ﴾ صرف په بې اصله خیالاتو باندروان دی﴿وَإِنَّ الظَّنَّ لَا يُغْنِي مِنَ الْحَقِّ شَيْئًا﴾ او یقینابې اصله خیالات د حق امر] په ثابتولو کښې [ذره هم مفید کیدې نه شی].

## معارف او مسائل

تیرو شوؤ آیتونو کښې د نبی کریم ﷺ د نبوت او رسالت او د نبی کریم ﷺ د وحی د محفوظ کیدو دلیلونو تفصیلی بیان وو. په دې آیتونو کښې ددې مقابل دعربو د مشرکانو ددې فعل د بدئ بیان دی چې هغوئ بغیر د څه دلیل نه مختلفو بتانو لره خپل معبود او کار ساز جوړ کړی دی او فرښتو ته د الله ﷻ لونړه وائی ، او په ځینې روایتونو کښې دی چې هم دغې بتانو ته به هم دوئ د الله تعالی لونړه وئیلې.

د عربو د مشرکانو بتان بې شمیره دی دکومو بهٔ ئې چې عبادت کولو خو درې په کښې زیات مشهور دی او ددوئ په عبادت باندې د عربو لوې لوې قبائل لګیدلی وو.. ① لات ② عزی ③ منات. لات د ثقیف قبیلې [اهل طائف] بت وو او عزی د قریشو او منات دبنی هلال. ددې بتانو په ځایونو باندې مشرکانو لوئې لوئې شاندار مکانونه جوړ کړی وو چې دکعبې درجه به ئې ورته ورکوله. دمکې فتح کولو څخه روستو نبی کریم ﷺ دغه ټول وران کړل .[قرطبی په لنډو]([2]).

﴿تِلْكَ إِذًا قِسْمَةٌ ضِيزَىٰ﴾ ، ضوز څخه مشتق دې چې معنی ئې ظلم کول او حق تلفی کول دی. څکه ابن عباس ﷠ د ﴿قِسْمَةٌ ضِيزَىٰ﴾ معنی ظالمانه ویش کړې ده.

**د ظن مختلف اقسام اودهغې احکام:** ﴿وَإِنَّ الظَّنَّ لَا يُغْنِي مِنَ الْحَقِّ شَيْئًا﴾ دظن لفظ په عربی کښې د مختلفو معنو دپاره استعمالولې شی ، یوه معنی ئې دا هم ده چې بې بنیاده خیالونو ته ظن وئیلې شی. په آیت مبارك کښې هم دا مراد دی او هم دا د مکې د مشرکانو دبت پرستئ سبب وو ، ددې د ازالې دپاره دا فرمائیلې شوی دی ، د ظن بله معنی د یقین مقابل ده ، یقین هغې قطعی علم ته وئیلې شی چې د واقعې مطابق وی او د شك شبهې څه لار په کښې نه وی. لکه د قرآن عظیم الشان یا متواترو احادیثو څخه حاصل شوې علم. ددې مقابل ظن هغه علم ته وئیلې شی چې په بې بنیاده خیالاتو خو نه بلکه د دلیل په بنیاد قائم وی خو دغه دلیل داسې یقینی نه وی چې په کښې بل څه احتمال نشی کیدې ، لکه دعامو روایتونو د حدیث څخه ثابتیدونکی احکام. په دې بنا د اول قسم مسئلو ته قطعیات او یقینیات وئیلې شی. اوبل قسم ته ظنیات وئیلې شی ، او دا ظن په شریعت کښې معتبر دی په قرآن و حدیث کښې ددې

[1] ترجمه:- او کله دوئ کښې چاته دلور خبر ورکړې شی.
[2] تفسیر القرطبي [ ج:۱۷ص:۹۹]

د معتبر کیدو شواهد موجود دي او د ټول امت په نزد واجب العمل دي ، په دې آیت مبارک کښې کوم ظن چې بې اعتباره بللې شوې دې - دې ځخه مراد بې بنیاده او بې دلیله خیالونه دی، ځکه څه اشکال نشته.

فَاَعۡرِضۡ    عَمَّنۡ
| پس اوګرزه ته | دهغه چانه |
| تۀ ده‌غه چا پرواه مکوه

تَوَلّٰی    عَنۡ ذِكۡرِنَا    وَلَمۡ يُرِدۡ    اِلَّا الۡحَيٰوةَ الدُّنۡيَا ؕ    ذٰلِكَ مَبۡلَغُهُمۡ
چې مخ ئې واړوو | دذکرزمونږ نه | اونۀ لری اراده | سوا دژوند ددنیا نه | دا حد دې ددې خلقو
چې زمونږ د نصیحت نه بې پرواه شوی دی | او د دنیا د ژوند تیرولو نه بغیر بل هیڅ مقصد نه لری | د دوی

مِّنَ الۡعِلۡمِ ؕ    اِنَّ رَبَّكَ    هُوَ اَعۡلَمُ    بِمَنۡ    ضَلَّ
دعلم | بیشکه رب ستا چې دې | هغه ښه پوهه دې | په هغه چا | چې بې لارې شو |
د پوهې آخرې حد بس دغه دې | ستا رب په هغه چا ښه پوهیږی چې د لارې نه ګمراه شوې وی

عَنۡ سَبِيۡلِهٖ ۙ    وَهُوَ اَعۡلَمُ    بِمَنِ    اهۡتَدٰی ۝    وَلِلّٰهِ
دلارې دهغه نه | او هغه ښه پوهه دې | په هغه چا | چې په نیغه لار روان دې | او الله لره دی |
او هغه په دې هم پوهیږی | چې څوک په سمه لار روان دې | او په

مَا فِي السَّمٰوٰتِ    وَمَا فِي الۡاَرۡضِ ۙ    لِيَجۡزِيَ
هغه چې په آسمانونو کښې دی | او هغه چې په زمکه کښې دی | دپاره ددې چې بدله ورکړی |
آسمانونو او په زمکه کښې هرڅه چې موجود دی هغه ټول د الله ﷻ دی | چې کومو کسانو د بدۍ لار

الَّذِيۡنَ    اَسَآءُوۡا    بِمَا    عَمِلُوۡا    وَيَجۡزِيَ
هغه کسانولره | چې بدی ئې کړی وی | په سبب دهغې عمل | چې کړې ئې وی | او بدله ورکړی |
اختیار کړې ده هغوی ته د بدۍ سزا ورکړی | او کومو کسانو چې نیکی کړې د ، هغوی ته د

الَّذِيۡنَ    اَحۡسَنُوۡا    بِالۡحُسۡنٰی ۝    اَلَّذِيۡنَ    يَجۡتَنِبُوۡنَ
هغه کسانوله | چې نیکی ئې کړی وی | په نیکۍ سره | دا نیکان هغه کسان دی | چې ځان ساتی |
نیکۍ ښکلې بدله ورکړی | دا [نیکان] هغه کسان دی چې د ورو ګناهونه

كَبٰٓئِرَ الۡاِثۡمِ    وَالۡفَوَاحِشَ    اِلَّا اللَّمَمَ ؕ    اِنَّ رَبَّكَ
دلویو ګناهونو نه | او دبې حیایۍ دکارونو نه | سوا دورو ګناهونو نه | بیشکه رب ستا |
نه سوا د لویو لویو ګناهونو او د بې شرمۍ د کارونو نه ځان بچ ساتی | ستا رب

وَاسِعُ الۡمَغۡفِرَةِ ؕ    هُوَ    اَعۡلَمُ    بِكُمۡ    اِذۡ اَنۡشَاَكُمۡ    مِّنَ الۡاَرۡضِ
مالک دې د ډیرې ښه بښنې | هغه | ښه خبر دې | په تاسو | کله چې هغه پیدا کړئ تاسو | د زمکې نه |
د ډیر فراخه بخښش مالک دې | هغه ته ستاسو حال ښه معلوم دې | څه وخت چې ئې تاسو د زمکې نه پیدا کړی وئ

وَاِذْ اَنْتُمْ | اَجِنَّةٌ | فِيْ بُطُوْنِ | اُمَّهٰتِكُمْ | فَلَا تُزَكُّوْٓا

او څه وخت چې تاسو | [پټ] بچي وئ | په خېټو کښې | دمیندو ستاسو | پس مه پاکوئ تاسو |

او څه وخت چې تاسو د میندو په خېټو کښې بچي وئ | بس خپل خانونه مه پاکوئ

اَنْفُسَكُمْ ؕ | هُوَ اَعْلَمُ | بِمَنِ | اتَّقٰى ﴿۳۲﴾

خانونه خپل | هغه ښه خبر دي | په هغه چا | چې خان ئې اوساتو دګناه نه |

الله ﷻ پرهیز ګار خلق ډیر ښه پیژنی |

## آسان ترجمه قرآن

لهٰذا (اے پیغمبره) ته د داسې سړی فکر مه کوه، چه هغه (د هدایت نه) مخ اړولې دې او د دنیوی ژوند نه سوا هغه بل څه غواړی نه. د داسې خلقو د علم اندازه بس هم دغه ده ستا پروردګار ښه پیژنی، چه څوک دهغه د لارې نه بې لارې شوې دی، او هم هغه ښه پیژنی، چه چا لاره موندلې ده او په آسمانونو کښې چه څه دی، هغه هم، او په زمکه کښې چه څه دی، هغه هم د الله تعالی دی، نتیجه داده، چه کومو خلقو بد کارونه کړې دی، هغه به هغوی ته د هغوی د عملونو بدله هم ورکړی، او کومو خلقو چه نیک کارونه کړې دی، هغوی ته به بهترینه بدله ورکړی. هغه خلق چه د لویو لویو ګناهونو او د بے حیائئ کارونو نه ځان ساتی، البته کله کله د خویدلو خبره جدا ده. یقین اوکړه، چه ستا پروردګار ډیر وسیع مغفرت والا دې، هغه په تاسو باندې ښه پوهیږی، چه کله هغه تاسو د زمکې نه پیدا کړئ، او کله چه تاسو د میاندو په ګیډو کښې بچي وئ، لهٰذا تاسو خپل ځانونه پاک مه ګنړئ، هغه ښه پوهیږی، چه څوک پرهیزګار دی.

## خلاصه تفسیر

هرکله چه اِنْ يَّتَّبِعُوْنَ اِلَّا الظَّنَّ او جَآءَهُمْ مِّنْ رَّبِّهِمُ الْهُدٰى ؕ سره د عربو دمشرکانو عناد کول معلوم شو چه سره دنزول دقرآن او دهدایت نه دوئ په خپل ګمان او خواهش چلیږی او دعناد کوونکی نه دحق قبلولو امید نه وی ﴿فَاَعْرِضْ عَنْ مَّنْ تَوَلّٰى ۙ عَنْ ذِكْرِنَا﴾[نو دداسې سړی نه خپل خیال واړوه کوم چه زمونږ د نصیحت خیال نه ساتی﴿وَلَمْ يُرِدْ اِلَّا الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا ؕ﴾ او بغیر ددنیوی ژوندنه دده بل مقصود نه وی] چه ددې وجه په اخرت باندې دایمان نشتوالی دې کوم چه د لایومنون بالاخرة نه بره معلوم شوې دې او ﴿ذٰلِكَ مَبْلَغُهُمْ مِّنَ الْعِلْمِ ؕ﴾[ددې خلقو دپوهې د رسایئ حد بس دغه] د دنیاژوند [دې] هرکله چه ددوئ دناپوهئ او بې فکرئ حددې ځائ ته رسیدلې دې نو ددوئ فکر مه کوه ددوئ معامله الله تعالی ته حواله کړه بس ﴿اِنَّ رَبَّكَ هُوَ اَعْلَمُ بِمَنْ ضَلَّ عَنْ سَبِيْلِهٖ ۙ﴾ [ستاسوپروردګار ښه پوهه دې چه څوك د هغه د لارې نه وختې دې﴿وَهُوَ اَعْلَمُ بِمَنِ اهْتَدٰى ﴿۳۰﴾﴾ او هم هغه هغه چالره هم ښه پیژنی کوم چه په نیغه لاره دې] په دې سره خو دهغه علم ثابت شو [او] په دې سره ئې قدرت ثابت دې چه ﴿وَلِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ۙ﴾ [څه چه په اسمانونو او په مزکه کښې دی هغه ټول دالله تعالی په اختیار کښې دی] هرکله چه هغه په علم او قدرت دواړو کښې کامل دې او دده په احکامو او قانون باندې په عمل کولو سره دخلقو دوه قسمونه دی ګمراه او په هدایت عمل کوونکی نو﴿لِيَجْزِيَ الَّذِيْنَ اَسَآءُوْا بِمَا عَمِلُوْا﴾ [انجام کار دادې چه بدکار

کوونکو ته به د هغوئ د] بد[کار په عوض کښې] په خاص طور [جزاء ورکړي ﴿وَيَجْزِيَ الَّذِيْنَ اَحْسَنُوْا بِالْحُسْنٰى﴾ اونیك کار کوونکو ته به د هغوئ دنیك کار کولو په عوض کښې] په خاص طور [جزاء ورکړی] ددې مقتضا داده چه هغه ته ئې حواله کړئ وړاندې دهغو خلقو بيان دې کوم چه نیکو کار محسنین دی﴿اَلَّذِيْنَ يَجْتَنِبُوْنَ كَبٰٓئِرَ الْاِثْمِ وَالْفَوَاحِشَ اِلَّا اللَّمَمَ﴾ [هغه خلق داسې دی چه دکبیره گناهونونه او[په دې کښې] دبې حيايئ د خبرونه [بالخصوص مگر واړه کارونه کله کله اوشی دکومې نيکوکارئ چه دلته ذکر دې په هغې کښې ددوئ خلل نه راځی مطلب داستثناء دادې چه دکومو نیکو کاروچه په دې ایت کښې مدح شوې ده او ددوئ دالله تعالی په نزد دمحبوب کيدو اظهارشوې دی ددې دمصداق جوړيدو دپاره دکبیره گناهونونه ځان ساتل خو شرط دی لیکن د وړوگناهونو کله کله صدور ددې منافی نه دې یعنی د محبوبیت منافی نه دې البته په صغیره گناهونوکښې هم دا شرط دې چه عادت ئې جوړ نه کړی او اصرارېږې نه کوی هسې په اتفاقی طور سره وشی ورنه په عادت او اصرارسره صغیره گناه هم کبیره گرځی او داستثناء مطلب دا نه دې چه د صغائرو اجازت دې او دکبائرو نه دځان ساتلود شرط دامطلب دې چه نیکوکاروته ددوئ دنيك عمل ښه جزاء ملاويدل دکبائرو نه په اجتناب موقوف دې ځکه چه مرتکب دکبائرو هم چه کله نیکی کوی جزاء به مومی لکه دا قول الله تعالی دې ﴿فمن يعمل مثقال ذرة خيرا يره﴾[۱] پس داشرط د جزاء ورکولو په اعتبار سره نه دې بلکه ده لره د محسن او محبوب عندالله د لقب ورکولو په اعتبار سره دې په کوم چه عنوان د احسنو دلالت کوی ښه پوهه شئ او بره چه دکومو بدکارونو د سزا ورکولو بیان راغې په دې سره دگناهگارو د ناامیده کیدو وهم کیدې شو چه اثر به ئې دا وو چه دايمان او توبې نه به دناامیده کیدو او محسنینوته به دنیکې جزا وعدې ورکولو سره ددوئ عجب او غرور کښې دمبتلاکيدو وهم او خطره وه وړاندې ددې وهمونو ردکړې شوې دې ﴿اِنَّ رَبَّكَ وَاسِعُ الْمَغْفِرَةِ﴾ [بیشکه ستاد رب مغفرت ډير لوئ وسيع دې] گناهگارو لره دگناه په تدارك سره بې همته کيدل نه دی پکارهغه که غواړی نو بغير دکفر او شرك نه نورې بدئ محض په فضل سره معاف کوی نو په تدارك سره به ئې ولې نه معاف کوی او دغه شان نیکی کوونکی لره عجب او غرور کول نه دی پکار ځکه چه په نیکیوکښې ځنې وخت داسې پټ نقصانونه ملاويږی دکومو په سبب چه هغه قابل قبول پاتې نه شی او دعامل دغې طرف ته په فکرنه کيدو سره د هغې خبر هم نه وی اوالله ﷻ ته خو علم دې هرکله چه دغه نیکئ مقبولې نه وی نو کوونکې ئې محسن او محبوب نه دې بيا عجب او غرور دځه دې او داخبره چه ستاسو دهيڅ حالت په خپله تاسوته اطلاع نه وی او الله تعالی ته اطلاع وی داځه دتعجب خبره نه ده بلکه دابتداء نه ددې وقوع کيږی چنانچه ﴿هُوَ اَعْلَمُ بِكُمْ اِذْ اَنْشَاَكُمْ مِّنَ الْاَرْضِ﴾ [هغه تاسولره [ستاسوحالاتولره دهغې وخت نه] ښه پيژنی کله چه تاسولره ئې[یعنی ستاسو نیکهٔ حضرت ادم ؑ لره ئې] دزمکې[لره ئې دخاورې [نه پیداکړئ] دکوم په ضمن کښې چه په واسطې سره تاسو هم د خاورې نه پیداشوئ﴿وَاِذْ اَنْتُمْ اَجِنَّةٌ فِيْ بُطُوْنِ اُمَّهٰتِكُمْ﴾ [اوکله چه تاسو دخپلو میندو په گیډوکښې بچی وئ] او په دې دواړو حالتونو کښې تاسوته په خپله خپل ځه علم نه وو او مونږ ته علم وو پس دغه شان اوس هم ستاسو په خپله

---

[۱] ترجمه:- پس کوم کس چې لره شان نیکی اوکړی هغه به بیامومی.

دخان نه ناواقفه کیدل او زمونږ عالم او واقف کیدل څه دتعجب خبره نه ده هرکله چه داخبره ده ﴿فَلَا تُزَكُّوٓا اَنْفُسَكُمْ﴾ [نو تاسو خپل ځانونه پاك مه ګڼړئ] ځکه چه ﴿هُوَ اَعْلَمُ بِمَنِ اتَّقٰى﴾ [تقوی دارو لره هغه ښه پیژني] چه فلانی متقی دې فلانې نه دې اګر چه صورتا افعال د تقوی ددواړونه صادیریږي .

## معارف او مسائل

﴿فَاَعْرِضْ عَنْ مَّنْ تَوَلّٰى ۙ عَنْ ذِكْرِنَا وَلَمْ يُرِدْ اِلَّا الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا ؕ ذٰلِكَ مَبْلَغُهُمْ مِّنَ الْعِلْمِ﴾ [تاسو داسې خلقوپسې مخه مه اوړئ چې زمونږ د یاد څخه مخ اړوی او د دنیوی ژوند څخه سوا ددوئ څه مقصد نه وی دا د هغوئ انتهائی علم او هنر دې]

**ضروری خبرداری:** قرآن کریم دا دهغه کافرانو حال بیان کړې دې کوم چې د آخرت او قیامت نه منکر دی افسوس دې چې د انګریزانو تعلیم اود دنیا هوس اوخواهش نن صبا زمونږ دمسلمانانو هم دا حال جوړ کړې دې چې زمونږ ټول علوم اوفنون د علمی پرمختګ ټول کوششونه ، صرف د معاشیاتو چاپیره تاویدل شروع شو د معادیاتو [دآخرت د معاملاتو] چیرته په هیره هم خیال نه رازی ، مونږ د رسول کریم ﷺ نوم اخلو او د نبی کریم ﷺ د شفاعت امید لرو مګر حالت داشو چې الله تعالی خپل رسول ﷺ ته دداسې حالت د خاوندانو نه د مخ اړولو هدایت کوی ، نعوذ بالله منه

﴿ اَلَّذِيْنَ يَجْتَنِبُوْنَ كَبٰٓئِرَ الْاِثْمِ وَالْفَوَاحِشَ اِلَّا اللَّمَمَ﴾ دې آیت مبارك کښې د هدایت ربانی تابعداری کوونکو نیکو کارو خلقو ذکر دمدح په مقام کښې فرمائیلو کښې سره دهغوئ پیژندګلې ئې داسې خودلې ده چې هغوئ د لویو لویو ګناهونو عموما او د فحش او بې حیایئ کارونونه خصوصا لرې پاتې کیږی په دې کښې یو استثناء د لمم په لفظ سره فرمائیلې شوې ده او د استثناء حاصل هم هغه دې چې پورته د تفسیر په خلاصه کښې اولیکلې شو چې دې خلقو څخه به دمحسن خطاب په لمم کښې اخته کیدو سره واپس نشی اخستې .

دلمم په تفسیر کښې د صحابه کراموؓ اوتابعینوؒ څخه دوه قوله منقول دی ، یو داچې دې څخه مراد دواړه ګناهونه دی چې د سورة نساء په آیت مبارك کښې ترې په سئیات سره تعبیر شوې دې لکه فرمائی چې ﴿اِنْ تَجْتَنِبُوْا كَبٰٓئِرَ مَا تُنْهَوْنَ عَنْهُ نُكَفِّرْ عَنْكُمْ سَيِّاٰتِكُمْ﴾[1] .

داقول د ابن عباسؓ او ابو هریرهؓ نه ابن کثیر نقل کړې دې[2] ، بل قول دادې چې دې څخه مراد هغه ګناه ده چې انسان څخه یو وخت اتفاقی طور صادره شی او بیا ترې توبه اوکړی او د توبې څخه روستو بیا دهغې خواته نه وی تلې ، داقول هم ابن کثیرؒ په روایت د ابن جریرؒ اول د مجاهدؒ څخه نقل کړې دې او بیا هم د ابن جریرؒ په نورو روایتونو کښې دا قول د عطاء په واسطه د ابن عباسؓ څخه او روایت د حسن بصریؒ د ابی هریرهؓ څخه هم نقل کړې دې[3] ، ددې حاصل هم دادې چې چا نیك بنده نه اتفاقا لویه ګناه

---

[1] ) ترجمه:- دکومو کارونو چې تاسو منع کولې شی ، په هغې کښې چې کوم غټ غټ کارونه دی که تاسو دهغې نه ځان بچ اوساتلو نو ستاسو وړې وړې بدئ به ستاسو نه لرې کړې شی.

[2] ) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآیة [ج: ۷ ص:٤٦٠]

[3] ) تفسیر ابن کثیر [ج: ۷ ص:٤٦١]

اوشوه او هغه ترې توبه اوکړه نو دا بنده هم د صالحينو او متقينو د لړئي څخه نه اوځي ، سورة آل عمران کښې هم دا مضمون ښه په ډاګه داسې راغلي دې : ﴿وَالَّذِينَ إِذَا فَعَلُوا فَاحِشَةً أَوْ ظَلَمُوا أَنفُسَهُمْ ذَكَرُوا اللَّهَ فَاسْتَغْفَرُوا لِذُنُوبِهِمْ ۗ وَمَن يَغْفِرُ الذُّنُوبَ إِلَّا اللَّهُ ۚ قف وَلَمْ يُصِرُّوا عَلَىٰ مَا فَعَلُوا وَهُمْ يَعْلَمُونَ﴾ اودا هم د جمهورو علماء کرامو په نزد اتفاقي خبره ده چې په کومې وړې ګناه باندې هميشوالئ اوشي او عادت ئې جوړ کړې شي، هغه هم کبيره شي، څکه په ذکر شوی خلاصه تفسير کښې د لمم تفسير په هغې وړو ګناهونو سره کړې شوې دې په کومې چې کلک والی او اصرار نه وی کړې شوې.

**د وړې او لوئې ګناه تعريف :** * : دا مضمون په پوره تفصيل سره د سورة نساء په آيت مبارك ﴿إِن تَجْتَنِبُوا كَبَائِرَ مَا تُنْهَوْنَ عَنْهُ﴾(۱) په تفسير معارف القرآن کښې ليکلې شوې دې هلته ئې اوګورئي.

﴿هُوَ أَعْلَمُ بِكُمْ إِذْ أَنشَأَكُم مِّنَ الْأَرْضِ وَإِذْ أَنتُمْ أَجِنَّةٌ فِي بُطُونِ أُمَّهَاتِكُمْ﴾ ، ﴿أَجِنَّةٌ﴾ د جنين جمع ده ، د مور په خيټه بچی ته جنين وئيلې شي په دې آيت مبارك کښې الله ﷻ انسان په دې خبرداره کړې دې چې هغه ته دخپل ځان علم هم دومره نشته څومره چې د هغه پيدا کوونکی خالق سبحانه ته دې ولې چې د مور په خيټه کښې دپيدائش مختلف دورونه چې په دهٔ تير شوی دی دغه وخت دهٔ هيڅ علم او شعور نه لرلو خو دهٔ جوړونکې ښه پوهيدو د چا حکيمانه تخليق چې دې جوړولو ، په دې کښې انسان لره په عاجزئ او کم علمئ باندې خبرداره کولو سره دا هدايت کړې شوېدې چې هغه کوم يو څه ښه او نيك کار چې کوی هغه دهٔ ذاتی کمال نه دې د الله ﷻ وربخښلې انعام دې چې د کار کولو دپاره ئې اندامونه هم هغه پاك ذات جوړ کړل هغې ته د حرکت ورکولو قوت هغه ور اوبخښلو بيا په زړهٔ کښې ورته دنيك کارکولو بلونکې او بيا په هغې باندې قصد او عمل هم د هغه پاك ذات په توفيق سره اوشو نو چا لوئې څخه لوئې نيك ، صالح ، متقی او پرهيزګار انسان ته هم دا حق نه رسی چې په خپل عمل باندې فخر کوی او دغې عمل لره خپل کمال اوبولی او په غرور کښې اخته شي ، دې څخه علاوه د ټولو څيزونو ادانړه په خاتمې او انجام باندې ده اوس ددې حال معلوم نه دې چې خاتمه په کوم حال کيږی نو فخر او غرور کول په څه باندې دا هدايت په راتلونکی آيت مبارك کښې د اشان بيان فرمائي: ﴿فَلَا تُزَكُّوا أَنفُسَكُمْ ۖ هُوَ أَعْلَمُ بِمَنِ اتَّقَىٰ﴾ يعنی تاسو د خپل نفس د پاکوالی دعوی مه کوئ ولې چې دا صرف الله ﷻ پيژنی چې څوك څنګه دی او د کومې درجې دی څکه چې فضيلت په تقوی باندې اړه لري په ظاهری عملونو باندې نه او تقوی هم هغه معتبره ده چې ترمرګه پورې قائمه پاتې شي.

د زينب بنت ابی سلمه رضي الله عنها نوم دهغې والدينو بره ايښې وو چې معنی ئې نيکو کاره ده ، نبی کريم ﷺ دا آيت مبارك : ﴿فَلَا تُزَكُّوا أَنفُسَكُمْ﴾ تلاوت کړو او ددې نوم ايښودو څخه ئې منع اوفرمائيله ولې چې په دې کښې خپل نيك کيدو دعوی ده ، دهغې نوم ئې بدل کړو او زينب ئې کړو .[مسلم په خپل صحيح کښې روايت کړو ، ابن کثير](۲)

---

(۱) ترجمه:- دکومو کارونو چې تاسو منع کولې شی ، په هغې کښې چې کوم غټ غټ کارونه دی که تاسو دهغې نه ځان بچ اوساتلو نو ستاسو وړې وړې بدئ به ستاسو نه لرې کړې شي.

(۲) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ۷ ص: ٤٦٣] وصحيح مسلم كتاب الأداب، باب إستحباب تغيير الإسم إلى حسن..... إلخ [ج: ۲ ص: ۲۰۸]

امام احمد د عبدالرحمان بن ابی بکره ﷺ څخه روایت کړې دې چې یو کس د نبی کریم ﷺ په وړاندې د یو بل سړي صفت بیان کړو ، نبی کریم ﷺ منع کړو او وې فرمائیل چې که د چا صفت بیانول غواړې نو په دې الفاظو سره کوه چې زما په علم کښې دا کس نیك او متقی دی ، ﴿ولا ازکی علی الله احدا﴾ [یعنی زه دانه شم وئیلې چې دا کس د الله ﷻ په نزد هم دغسې پاك او صفا دې څنګه ئې چې زه ګنړم](١).

اَفَرَءَيْتَ الَّذِيْ تَوَلّٰى ۝ وَاَعْطٰى قَلِيْلًا وَّاَكْدٰى ۝ اَعِنْدَهٗ

آیا اولیدو تا | هغه سړې چې اوګرځیدو دحق نه | او ورئې کړو مال | لږ | | او منع شو | آیا دهغه سره دې

آیا تاهغه سړې لیدلې دې کوم چې مخ واړولو | اولږ غوندې [مال] ئې ورکړو | اوبیا ئې لاس راښکلو | آیا

عِلْمُ الْغَيْبِ فَهُوَ يَرٰى ۝ اَمْ لَمْ يُنَبَّاْ بِمَا

علم دغیبو | چې هغه وینی حقیقت | یا نه دې خبر کړې شوې دې | په هغه |

دهٔ سره دغیبو علم دې | چې [هرڅه] وینی ګوری | آیا ده ته دهغې مضمون خبر نه دې رارسیدلې

فِيْ صُحُفِ مُوْسٰى ۝ وَاِبْرٰهِيْمَ الَّذِيْ

چې په صحیفو دموسی کښې دی | او په صحیفو دابراهیم کښې دی | هغه [ابراهیم علیه السلام] |

چې دموسی ﷺ په صحیفو کښې وو | او د ابراهیم ﷺ د صحیفو چې ټول حکمونه ئې

وَفّٰى ۝ اَلَّا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِّزْرَ اُخْرٰى ۝ وَاَنْ لَّيْسَ

چې پوره ئې کړوکارخپل | چې نهٔ به اوچتوی | یو بوج اوچتونکې | بار دبل چا | او دا چې نشته

په ځائې کړل | دا چې هیڅ یو بار وړونکې به د بل چا بار اوچتولې نشی | اودا چې هر

لِلْاِنْسَانِ اِلَّا مَا سَعٰى ۝ وَاَنَّ سَعْيَهٗ سَوْفَ يُرٰى ۝

انسان لره | مګر هغه چې کوشش اوکړو هغه | او بیشکه کوشش دهغه | به ډیر زر اولیدې شی |

انسان ته هم هغه ملاویږی | چې دکوم هغه کوشش کوی | اوداچې دانسان کوشش به ډیر زر اولیدې شی

ثُمَّ يُجْزٰىهُ الْجَزَآءَ الْاَوْفٰى ۝ وَاَنَّ اِلٰى رَبِّكَ الْمُنْتَهٰى ۝

بیا به ورکړې شی هغه ته | بدله | پوره | او بیشکه چې رب ستا ته | آخر رسیدل دی |

بیا به ورته پوره پوره بدله ورکړې شی | اودا چې [ټول] ستا رب طرفته ورتلل دی

وَاَنَّهٗ هُوَ اَضْحَكَ وَاَبْكٰى ۝ وَاَنَّهٗ هُوَ اَمَاتَ وَاَحْيَا ۝ وَاَنَّهٗ

او بیشکه هغه | اوخندوی | او ژړوی | او بیشکه هغه مره کړل | او ژوندی ئې کړل | او بیشکه هغه

اودا چې هغه خندول او ژړل کوی | او دا چې هغه وژل اوژوندی کول کوی | ..........اودا چې

(١) مسند احمد، حدیث ابی بکرة ﷺ رقم الحدیث:[۲۰۴۸٤]

خَلَقَ الزَّوْجَيْنِ الذَّكَرَ وَالْاُنْثٰى ۝ مِنْ نُّطْفَةٍ اِذَا تُمْنٰى ۝

پیدا کړې جوړې | دناارینه [نر] او دزنانه [ښځه] | دنطفې نه | کله چې واچولې شي رحم ته |

دنر او د مادې جوړې هغه د نطفې نه پیدا کړې دي | څه وخت چې [په رحم کښې] تویه کړې شي

وَاَنَّ عَلَيْهِ النَّشْاَةَ الْاُخْرٰى ۝ وَاَنَّهٗ هُوَ اَغْنٰى

او بیشکه چې دهغه ذمه واري ده | پیدا کول | ددویم ځل | او بیشکه چې هغه | غني کړو [انسان]

اودا چې دوباره ژوندون هم دهغه ذمه واري ده| ..........اودا چې هم هغه غني کول کوي اوهم

وَاَقْنٰى ۝ وَاَنَّهٗ هُوَ رَبُّ الشِّعْرٰى ۝ وَاَنَّهٗۤ اَهْلَكَ

او جائیداد ئې ورکړو | او بیشکه چې هغه | رب دشعرې ستورې دې | او بیشکه چې هغه هلاک کړل

هغه جائداد ورکوي | اودا چې د شعرې [ستورې] رب دې| اودا چې هغه

عَادَا الْاُوْلٰى ۝ وَثَمُوْدَا فَمَاۤ اَبْقٰى ۝ وَقَوْمَ نُوْحٍ

عادیان رومبني | او ثمودیان | پس باقي ئې پرې نښودو هیڅوک | او قوم دنوح علیه السلام |

اولنی عادیان هم تباه کړې دي | اوثمودیان هم | هیڅوک ئې باقي نه دي پرېښې | اوددوئ نه

مِّنْ قَبْلُ ۭ اِنَّهُمْ كَانُوْا هُمْ اَظْلَمَ وَاَطْغٰى ۝

مخکښې دهغوئ نه | بیشکه چې هغوئ | وو | خاص هم هغوئ | ډیر ظالمان | او ډیر سرکشان |

وړاندې د نوح علیه السلام قوم [ئې هم هلاک کړې وو] | ځکه چې هغوئ ډیر ظالمان وو | او سرکشه وو

وَالْمُؤْتَفِكَةَ اَهْوٰى ۝ فَغَشّٰىهَا

او پاسترشوې کلي | هغه اوچت کړل او راغوزارئې کړل | بیا ئې خور کړو په هغه کلي باندې |

او [دغه] اوړیدلې کلي هم هغه [په بل مخ] اړولي وو | نو دهغې کلونه ئې راتاؤ کړه | هغه څه چې

مَا غَشّٰى ۝ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكَ تَتَمَارٰى ۝ هٰذَا نَذِيْرٌ

هغه څه چې خور ئې کړو | نو په کومو نعمتونو | درب خپل | به ته شک کوې | دا خبرداروونکي دې |

ئې راتاؤ کړو| نو ته به د خپل رب په کوم کوم نعمت کښې شک کوې | دا [پیغمبر] هم دپخوانو

مِّنَ النُّذُرِ الْاُوْلٰى ۝ اَزِفَتِ الْاٰزِفَةُ ۝ لَيْسَ لَهَا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ

دخبرداروونکو رومبنونه | نژدې راغې | راتلونکي ساعت | نشته هغې لره | بغیر دالله نه |

ویرونکو پشان یو ویرونکي دې | هغه [دقیامت] راتلونکې [ساعت] راورسیدو | دالله ﷻ نه بغیر دابل څوک

كَاشِفَةٌ ۝ اَفَمِنْ هٰذَا الْحَدِيْثِ تَعْجَبُوْنَ ۝ وَتَضْحَكُوْنَ

څوک ښکاره کونکي | ایا پس ددې خبرې نه | تاسو تعجب کوئ | او تاسو خاندئ |

نشي لرې کولې| آیا تاسو ددې کلام په حق کښې تعجب کوئ؟ | او خندا ګانې ورپورې کوئ

وَلَا تَبْكُوْنَ ۝ وَاَنْتُمْ سٰمِدُوْنَ ۝ فَاسْجُدُوْا لِلّٰهِ وَاعْبُدُوْا ۩

او نه ژاړئ | او تاسو غافله یئ | پس سجده اوکړئ | الله ته | او بندګي اوکړئ |

او ژړا نه کوئ| .......... اوتاسو غافلان یئ | الله ﷻ ته سجدې لګوئ | اودهغه عبادت کوئ

## آسان ترجمه قرآن

(اے پیغمبره) آیا تا هغه سړي هم لیدلي دي، چه د حق نه ئې مخ واړولو او لږه شان ورکړه ئې اوکړه، او بیا منع شو آیا هغه سره د غیبو علم دې، چه هغه ئې ویني؟ آیا هغه نه دې خبر په هغه څه باندې، کوم چه د موسٰی علیه السلام په صحیفو کښې لیکلي شوي دي، او د ابراهیم علیه السلام په صحیفو کښې هم، چه مکمل وفادار دې؟ یعنې دا خبره، چه هیڅ یو پیټې والا د بل پیټې (د ګناه) پیټې نشي اوچتولې اودا چه انسان ته د خپل کوشش نه سوا د بل څیز (د بدلې اخستلو) حق نشته او زرده چه او به کتلې شي کوشش دهغه بیا به دهغه بدله هغه ته پوره پوره ورکړې شي. او دا چه آخر کښې ستاسو (ټولو) واپسی خپل پروردګار طرف ته ده اودا چه هم هغه دې، چه خندول کوي، او ژړول کوي. او هم هغه دې، چه مرګ هم ورکوي، او ژوند هم ورکوي او دا چه هم هغه د نر او ماده دوه جوړې پیدا کړي دي. (او هغه هم) صرف د یو څاڅکي نه چه کله هغه اوڅڅولې شي اودا چه د دوباره ژوند ورکولو ذمه هم هغه اخستلې ده. اودا چه هم هغه دې، چه مال دار جوړوي، او دولت محفوظ کوي اوهم هغه دې، چه د شعرٰی ستوري پروردګار دې اودا چه هم هغه دې، چه د پخوانې زمانې قوم عاد ئې هلاک کړي دي او ثمودیان هم. او هیڅوک ئې باقي نه دي پریخي. او دهغوی نه مخکښې ئې د نوح علیه السلام قوم لره هم (هلاک کړو) بے شکه هغوی د ټولو نه زیات ظالمان اوسرکش خلق وو. اوکوم کلي چه اُلټه کړي شوي وو هغې لره هم هغه نسکور کړي وو بیا چه کوم (هیبت ناک) څیز هغوی پټ کړل. هغوی ئې پټ کړل. لهٰذا (اے انسانه) ته به د خپل پروردګار په کوم کوم نعمت کښې شک کوې؟ دا (پیغمبر) هم خبردارونکي دي، د مخکښېنو خبردارونکو پشان. کوم ساعت چه نزدې راتلونکي دې هغه نزدې راغلي دې، د الله تعالٰی نه سوا هیڅوک نشته. چه هغه لرې (دفع) کړي. نو آیا تاسو په دې خبره باندې تعجب کوئ؟ او (دې پورې) خاندئ. او ژاړئ نه. او حال دا چه تاسو تکبر سره لوبو ټوقو کښې اخته یئ اوس (هم) ټیټ شئ الله تعالٰی ته. او دهغه بندګي اوکړئ.

**شان نزول**:: در منثور د ابن جریر په روایت دا نقل کړی دی چې یو کس مسلمان شوې وو ، یو ملګری ملامته کړو چې خپل د پلار نیکه دین دې ولې پریښودو ؟ هغه ورته اووئیل چې د الله تعالٰی د عذاب نه ویریږم ، هغه اووئیل چې ته ماته څه راکړه نو ستا عذاب به زه پخپله ذمه واخلم ا و ته به د هغذاب نه خلاص شې. هغه ورته څه ورکړل ، هغه نور هم اوغوښتل نو د ډیر اصرار نه پس ئې ورته نور هم څه ورکړل او د پاتې کاغذ ئې سره د ګواهانو لیکلې ورکړو. روح المعانی کښې ددغې کس نوم ولید بن مغیره لیکلې دې چې اسلام راوړو ته ئې مخه شوې وه ، د هغه دوست ملامته کړو او د عذاب ذمه داری ئې په خپل سره واخسته[1].

### خلاصه تفسیر

او تاخو دنیکانو صفتونه واوریدل ﴿أَفَرَءَيْتَ الَّذِي تَوَلَّىٰ﴾[نو ایا تا داسې سړې هم لیدلې دې کوم چه] د حق دین نه [مخ واړولو] یعنی داسلام نه واپس شو ﴿وَأَعْطَىٰ قَلِيلًا وَأَكْدَىٰ﴾ [او لږ مال ئې ورکړو او] بیائې [بند کړو] یعنی دکوم سړی سره چه ئې دمال ورکولو وعده دخپل مطلب دپاره کړې وه هغه ئې هم پوره ورنه کړو او ددې نه دامعلومه شوه چه داسې سړې به دنورو دنفعې

---

[1] الدرالمنثور تحت هذه الآية [ج:۹ ص:۳۲۹] و روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۲۰ ص:۱۵]

دپاره څه خرڅ کړی هرکله چه دخپل مطلب دپاره پوره خرڅ نه شی کولې چه حاصل دهغې ددهٔ
بخیل کیدل دی ﴿اَعِنْدَهٗ عِلْمُ الْغَیْبِ فَهُوَ یَرٰی﴾ [آیا ددې سړی سره] په څه صحیح ذریعې سره [علم
غیب دې چه هغې لره وینی] دکوم په ذریعه چه ورته معلومه شوه چه فلانې سړې به زما د
گناهونو عذاب په خپل سر واخلی مابه د عذاب نه بچ کړی ﴿اَمْ لَمْ یُنَبَّاْ بِمَا فِیْ صُحُفِ مُوْسٰی﴾ [آیا دهٔ
ته ددې مضمون خبرنه دې رسیدلې کوم چه دموسی علیه السلام [په صحیفوکښې دې [او د درمنثور
د روایت مطابق دسورة اعلی په تفسیرکښې دموسی علیه السلام دا لس صحیفې دتوارت نه علاوه
دی] وَاِبْرٰهِیْمَ الَّذِیْ وَفّٰیٓ او دارنګ دابراهیم[علیه السلام په صحیفوکښې او دا به په سوره اعلی کښې
راشی] کوموچه احکامولره پوره په ځایْ کړل] ﴿اَلَّا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِّزْرَ اُخْرٰی﴾ او هغه مضمون [دا] دې
[چه هیڅوك د چاګناه په خپل ځان] په داسې طور سره [نه شی اخستې] چه ګناه کوونکې بری
شی بیاداسړې څنګه پوهه شو چه زماټول ګناهونه به داسړې په خپل سر واخلی ﴿وَاَنْ لَّیْسَ
لِلْاِنْسَانِ اِلَّا مَا سَعٰی﴾ [اودا] مضمون دې[چه انسان ته] دایمان په باره کښې [به صرف خپله ګټه
ملاوېږی] یعنی دبل ایمان به ددهٔ په کار رانه شی پس که ددې ملامت کوونکی سړی سره ایمان
وې نو بیا به هم ددې سړی په کارنه راتلونو بیالاڅه کوې چه هلته هم ایمان نه لری ﴿وَاَنَّ سَعْیَهٗ
سَوْفَ یُرٰی﴾ [او دا] مضمون دې [چه دانسان کوشش به ډیر زروکتلې شی ﴿ثُمَّ یُجْزٰىهُ الْجَزَآءَ الْاَوْفٰی﴾
بیابه دهٔ ته پوره بدله ورکړې شی] سره ددې بیادا سړې دخپلې فلاح دکوشش نه څنګه غافله
شو ﴿وَاَنَّ اِلٰی رَبِّكَ الْمُنْتَهٰی﴾ [اودا] مضمون دې [چه]ټولولره[ستا د پروردګار خوا ته رسیدل دی]
بیا هغه سړې څنګه زړهٔ ور شو ﴿وَاَنَّهٗ هُوَ اَضْحَكَ وَاَبْكٰی﴾ [او دا] مضمون دې [چه هغه خندول کوی
اوهغه ژړول کوی ﴿وَاَنَّهٗ هُوَ اَمَاتَ وَاَحْیَا﴾ اوداچه هغه وژنی او هغه ژوندی کوی ﴿وَاَنَّهٗ خَلَقَ الزَّوْجَیْنِ
الذَّكَرَ وَالْاُنْثٰی مِنْ نُّطْفَةٍ اِذَا تُمْنٰی﴾ او داچه هغه دواړه قسمه یعنی نراو مادې لره دنطفې نه جوړوی
کله چه] هغه په رحم کښې [غورزولې شی] یعنی مالك دتمامو تصرفاتو هغه الله تعالی دې بل
نه دې بیا دغه سړې څنګه پوهه شو چه د قیامت په ورځ به دا تصرف چه مالره د عذاب نه بچ
کړی د چابل په قبضه کښې به شی ﴿وَاَنَّ عَلَیْهِ النَّشْاَةَ الْاُخْرٰی﴾ [او دا] مضمون دې [چه دوباره
پیداکول] حسب وعده [د هغه ذمه ده]یعنی داسې ضروری کیدونکې ده لکه چه د چا په ذمه
وی نو ددې سړی د زړهٔ ورکیدو وجه داهم نه وه پکارچه قیامت به نه راځی ﴿وَاَنَّهٗ هُوَ اَغْنٰی
وَاَقْنٰی﴾ [او دا] مضمون دې [چه هغه غنی کول کوی] یعنی سرمایه ورکوی [او سرمایه ورکړی
محفوظ] او [باقی یې ساتی ﴿وَاَنَّهٗ هُوَ رَبُّ الشِّعْرٰی﴾ او داچه هغه مالك دې دستوری شعری هم]
دکوم چه به په جاهلیت کښې څنو خلقو عبادت کوو یعنی ددې تصرفاتو او اشیاؤ مالك هم هغه
دې لکه د اولنوتصرفاتو مالك چه هغه دې او برنی تصرفات په خپله دانسان په بدن کښې دی
او وروستنی تصرفات دانسان په متعلقاتوکښې دی چنانچه مال او ستورې دواړه خارج دی او
شايددې دواړو په ذکر کښې اشاره وی چه چا لره تاسو مدد ګار خپل ګنړئ د دغو رب هم
مونږ یو بیا بل ته په قیامت کښې ددې سړی دګمان موافق څه تصرف رسیدې شی ﴿وَاَنَّهٗ اَهْلَكَ
عَادَا الْاُوْلٰی﴾ [او دا] مضمون دې [چه هغه پخوانی قوم د عاد لره] ددوئ دکفرپه وجه [هلاك
کړل ﴿وَثَمُوْدَا فَمَآ اَبْقٰی﴾ او ثمود لره هم چه] ددوئ نه یې [چالره باقی پرې نښودو ﴿وَقَوْمَ نُوْحٍ مِّنْ
قَبْلُ﴾ او ددوئ نه وړاندې قوم دنوح]علیه السلام [لره] یې هلاك کړل ﴿اِنَّهُمْ كَانُوْا هُمْ اَظْلَمَ وَاَطْغٰی﴾ [بیشکه

هغه دټولو نه زيات ظالمان او شرارتيان وو] چه په نهه نيم سوه کاله دعوت باندې هم په لاره نه شو ﴿وَالْمُؤْتَفِكَةَ اَهْوٰى﴾[او] دلوط عليه السلام دقوم [الټه کړوکلولره يې هم راوېشتلې وو﴿فَغَشّٰىهَا مَا غَشّٰى﴾ بيا هغو کلولره يې ګيرکړل کوم څيز چه ګيرول] يعنې دپاسه نه پرې ګټې وريدل شروع شو پس دې سړی که په دې قصو کښې غور کولې نودکفرد عذاب نه به ويريدلې وو او بې فکره کيدو به نه وړاندې په دې ټولو مضامينو باندې تفريع فرماتی چه اے انسانه هرکله چه په داسې داسې مضامينو باندې تالره آګاه کولې شی چه په وجه دهدايت کيدو هرمضمون په خپل ځای يو نعمت ربانی دې ﴿فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكَ تَتَمَارٰى﴾ پس ته دخپل رب په کوموکومو نعمتونو کښې به شك] او انکار[کوې] اوددې مضامينوپه آوريدو نفع نه اخلې ﴿هٰذَا نَذِيْرٌ مِّنَ النُّذُرِ الْاُوْلٰى﴾ [دا] پيغمبر [هم د وړاندې پيغمبرانو په شان يو پيغمبردې] دهٔ لره اومنئ ځکه چه ﴿اَزِفَتِ الْاٰزِفَةُ﴾[هغه رز راتلونکې شې نزدې راغلې دې] مرادقيامت دې اوکله چه هغه راشی نو﴿لَيْسَ لَهَا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ كَاشِفَةٌ﴾[څوك غيرالله دهغې واپس کوونکې نشته] پس د چا په بروسه دبې فکرئ ګنجائش نشته ﴿اَفَمِنْ هٰذَا الْحَدِيْثِ تَعْجَبُوْنَ﴾ [پس ايا] داسې دويرې په خبرو اوريدو هم [تاسو خلق په دې کلام] الهی [سره تعجب کوئ ﴿وَتَضْحَكُوْنَ﴾ او] په مسخرو سره [خاندئ ﴿وَلَا تَبْكُوْنَ﴾ او] د ويرې د عذاب نه [ژاړئ نه ﴿وَاَنْتُمْ سٰمِدُوْنَ﴾ او تاسو] داطاعت نه [تکبرکوئ پس] ددې تکبراو غفلت نه واپس شئ او ددې پيغمبردتعليم مطابق ﴿فَاسْجُدُوْا لِلّٰهِ وَاعْبُدُوْا﴾[دالله تعالی اطاعت کوئ او] دده بغير دشرکت نه [عبادت کوئ] چه تاسو نجات بيا مومئ.

## معارف او مسائل

[اَفَرَءَيْتَ الَّذِيْ تَوَلّٰى﴾ د [تَوَلّٰى﴾ لفظی معنی مخ اړول دی ، مراد دادې چې د الله جل جلاله د فرمانبردارئ نه مخ واړوی. [وَاَعْطٰى قَلِيْلًا وَّاَكْدٰى﴾ ، [اَكْدٰى﴾ دکدية نه مشتق دې ، کدية هغې سخت کاڼړی ته وئيلې شی چې د څه کوهی يا بنياد کنستو په وخت په زمکه کښې راوزی او په کنستلو کښې رکاوټ جوړ شی. ځکه د [اَكْدٰى﴾ معنی دا شوه چې اول څهٔ ورکړی او بيا دورکړې نه لاس واخلی ، دآيت مبارک په شان نزول کښې چې يوه واقعه پورته بيان شوې ده ، ددې مطابق خو معنی ښکاره ده او که دې ته او نه کتلې شی نو معنی به ئې دا وی چې کوم بنده د الله جل جلاله په لار کښې څه خرچ اوکړو او بيا ئې پريخودو يا په شروع کښې څه قدرې د الله جل جلاله تابعدارئ ته ئې مخه شوه او بيا ئې پريخوده ، ددې لفظ دا تفسير مجاهد رحمه الله ، سعيد بن جبير رضي الله عنه ، عکرمه رحمه الله او قتاده رحمه الله نه منقول دې ، [ابن کثير رحمه الله][1].

[اَعِنْدَهٗ عِلْمُ الْغَيْبِ فَهُوَ يَرٰى﴾ په شان نزول کښې چې کومه قيصه بيان شوې ده د هغې مطابق خو دآيت مبارک مطلب چې دادې کوم يو کس اسلام دې دپاره پريخودو چې د هغه يو ملګری ورته وئيلی وو چې د آخرت ستا عذاب بهٔ زه پخپله ذمه واخلم او تا به د عذاب نه بچ کړم. نو دغې بې وقوف ددې يقين اوکړو آيا دهٔ ته علم غيب حاصل دې ؟ چې په هغې سره ئې وينی چې زما د کفر عذاب به واقعی هغه پخپل سر واخلی دا خو په ښکاره تيروتل ځکه ښکارې چې يو خو ددهٔ علم غيب نشته او نه بل څوک د چا عذاب پخپل سره اخستې شی چې په آخرت کښې به ئې بچ کړی.

[1] تفسير ابن کثير تحت هذه الآية [ج: ۷ ص:٤٦٣]

او که دي ته اونه ګورو نو د آيت معنی بهٔ دا شي چې څوک د الله ﷻ په لار کښې په خرچ کولو شروع اوکړي او بيا ترې لاس واخلي نو د هغې وجه دا کيدې شي چې که دې دغه مال خرچ کړي نو نور به ورته دکومې راشي ؟ ددې خيال په رد کښې ئې اوفرمائيل چې آيا ده ته علم غيب دې چې دهغې په ذريعه ورته دا معلوم شوی دی چې دموجوده مال په ختميدو سره به ورته نور مال د کومې راځي ؟ نو دا غلط څکه دی چې يو خو ددهٔ علم غيب نشته او بله دا خبره صحيح نه ده چې نور مال بهٔ ورته دکومې راځي ؟ څکه چې الله ﷻ فرمائی چې : [وَمَآ اَنْفَقْتُمْ مِّنْ شَیْءٍ فَهُوَ يُخْلِفُهٗ ۚ وَهُوَ خَيْرُ الرّٰزِقِيْنَ﴾ [ستاسو د الله ﷻ په لار کښې د خرچ کړی مال بدله به الله ﷻ نور درکړی او هغه دټولو نه زيات غوره روزی ورکوونکې دې] په غور کولو سره د قرآن عظيم الشان دا ارشاد د مال دولت په معامله کښې يوازې نه بلکه د هر قوت او د عقل مندئ باره کښې دې چې څوک ئې په دنيا کښې خرچ کړي ، الله ﷻ د هغه په بدن کښې د هغې نور بدل ما يتحلل پيدا کوی ،ورنه که دا سې نه وې نو د شپيتو اويا کالو په عمر کښې بهٔ انسانی اندامونه ټول بې کاره شوی وو ، ولې چې فولاد هم په دومره عمر استعمال سره بالکل بې کاره کيږی. څنګه چې الله ﷻ د انسان ټول اندامونو کښې چې څه په محنت سره تحليل کيږی د خودکاره مشين پشان دده بدل د دننه نه پيدا کيږی. داشان د مال معامله هم داشان ده چې انسان خرچ کوی او ددهٔ بدل څی راځی.

يو حديث پاک کښې راغلی دی چې رسول کريم ﷺ بلال رضی الله عنه ته اوفرمائيل چې [انفق يابلال ولاتخش من ذي العرش اقلالا﴾ [اے بلال رضی الله عنه ! د الله تعالی په لار کښې په مخه خرچ کوه او دعرش د خاوند الله ﷻ دطرفه ددې خطره مه لره چې هغه به تاسو نيستمند کړی] [ابن کثير][1].

[اَمْ لَمْ يُنَبَّاْ بِمَا فِيْ صُحُفِ مُوْسٰى ۙ وَاِبْرٰهِيْمَ الَّذِيْ وَفّٰٓى ۙ﴾ په د ې آيت مبارک کښې د ابراهيم علیه السلام يو خاص صفت [وَفّٰٓى﴾ بيان کړې شوې دې ، لفظ وفآء د وعده يا لوظ پوره کولو معنی لری .

**دابراهيم علیه السلام خاص صفت وعده پوره کولو څه تفصيل** :: مراد دادې چې ابراهيم علیه السلام کوم لوظ الله ﷻ سره کړې وو چې د الله ﷻ فرمانبرداری بهٔ کوی او دهغه پيغام به مخلوق ته رسوی ، هغویٔ دغه لوظ په هر شان سره پوره کړو ، سره ددې چې په سختو آزميښتونو کښې راګير شو ، د [وَفّٰٓى﴾ هم دغه تفسير ابن جرير رحمه الله او ابن کثير رحمه الله وغيره اختيار کړې دې[2] .

دحديث پاک په څينې روايتونو کښې د ابراهيم علیه السلام خاص خاص عملونه د [وَفّٰٓى﴾ سبب خودلې شوې دې هغه دې سره بې سمونه نه دې څکه چې په اصل کښې د وعدې پوره کول عام دی ، د الله ﷻ په ټولو حکمونو باندې عمل کول او فرمانبرداری کول چې په کښې خپل عملونه هم دا خل دی ، او د پيغمبریٔ د فرائضو په ذريعه د الله ﷻ د عام مخلوق اصلاح کول هم ، په دغې عملونو کښې دا عملونه هم دی چې بيان ئې د حديث په دې روايتونو کښې راغلې دې. لکه ابن ابی حاتم دابی امامه رضی الله عنه نه روايت کړې دې چې رسول کريم ﷺ د آيت مبارک تلاوت کړو : [وَاِبْرٰهِيْمَ الَّذِيْ وَفّٰٓى ۙ﴾ بيا ئې د [وَفّٰٓى﴾ د مطلب تپوس اوکړو ، ابو امامه رضی الله عنه عرض اوکړو چې الله ﷻ اودهغه رسول ﷺ ډير زيات ښه پوهيږی .

[1] تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ٧ ص:٤٦٣] و المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث:[١٠١٣]

[2] تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ٧ ص:٤٦٣]

یو رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې مراد دادې چې:
[وَفَّى عمل يومه بأربع ركعات في اول النهار﴾ [یعنی ابراهیم ﷺ د ورځې د خپلو عملونو مکمل کول په داسې شان اوکړل چې دورځې په اول سر کښې ئې څلور کعته اوکړل] [ابن کثیر] (۱)
ددې تائید دهغې حدیث نه هم کیږی چې ترمذی ﷫ د ابی ذر ﷛ نه روایت کړې دې چې رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې:
[ابن ادم اركع لي اربع ركعات من اول النهار اكفك اخره﴾ [یعنی الله ﷻ فرمائی: اې بنیادمه! تـه د ورځې په شروع کښې ما دپاره څلور رکعته مونځ کوه نو زه به دې د آخر د ورځې پورې د ټول کارونو ذمه واخلم] [ابن کثیر] (۲)
او هم ابن ابی حاتم ﷫ په یو روایت کښې د معاذ بن انس ﷛ نه نقل کړی دی چې رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې زه درتـه اوښایم چې الله ﷻ ابراهیم ﷺ تـه د [الَّذِيْ وَفّٰى﴾ خطاب ولې ورکړو؟ بیا ئې اوفرمائیل چې وجه داده چې هغوئ ﷺ به هره ورځ دصبا پـه وخت اومابنام کښې دا لوستل:
(۳) [فَسُبۡحٰنَ اللّٰهِ حِيۡنَ تُمۡسُوۡنَ وَحِيۡنَ تُصۡبِحُوۡنَ۝ وَلَهُ الۡحَمۡدُ فِي السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضِ وَعَشِيًّا وَّحِيۡنَ تُظۡهِرُوۡنَ۝﴾ [ابن کثیر] (۴)
**دابراهیم ﷺ اود موسی ﷺ د صحیفو خاص هدایات او تعلیمات:** د پخوانو پیغمبرانو ﷺ څخه کله چې د چا قول یا تعلیم په قرآن عظیم الشان کښې ذکر کولې شی نو دهغې حاصل دا وی چې ددې امت دپاره هم هغه واجب العمل وی تر څو چې د هغې خلاف څه شرعی نص نه وی، دې پسې په اتلسو آیتونو کښې ددې خاص تعلیماتو بیان دې چې دموسی ﷺ او ابراهیم ﷺ په صحیفو کښې وو، پـه دې کښې عملی احکام چې تعلق ئې د رومبنو آیتونو سره دې هغه صرف دوه باقی تعلیمات، عبرت نصیحت او دالله تعالی د قدرت د آیتونو باره کښې دی هغه دوه دادی:
[اَلَّا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِّزۡرَ اُخۡرٰى۝﴾ او [وَاَنۡ لَّيۡسَ لِلۡاِنۡسَانِ اِلَّا مَا سَعٰى۝﴾، اصل کښې د وزر معنی بوج ده او د رومبی آیت معنی داده چې څوک بوج پورته کوونکې به د خپل ځان نه سواد بل بوج نه پورته کوی.
د بوج نه مراد د گناه بوج دې او دهغې عذاب دې. مطلب دادې چې د قیامت پـه ورځ بـه د یو کس عذاب په بل نشی اچولې، نه به چا ته ددې اختیار وی چې هغـه د بل عذاب پـه خپـل سر واخلی، د قرآن عظیم الشان په یو بل آیت مبارک کښې ددې بیان د اشان راغلې دې چې [وَاِنۡ تَدۡعُ مُثۡقَلَةٌ اِلٰى حِمۡلِهَا لَا يُحۡمَلۡ مِنۡهُ شَيۡءٌ﴾ [یعنی کـه د گناهونو پـه بوج بار کړې شوی بنده د خلقو نه خواست اوکړی چې زما څه بوج تاسو پورته کړئ نو د چا مجال به نه وی چې د هغه د بوج څه حصه به پورته کړې شی]

---

(۱) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآية [ج: ۷ ص:۴۶۳] و الدرالمنثور تحت هذه الآية [ج:۹ ص:۳۲۹]
(۲) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآية [ج: ۷ ص:۴۶۳] و جامع الترمذي، ابواب الوتر باب ماجاء في صلاة الضحي [ج:۱ ص:۱۰۸]
(۳) ترجمه:- پس ته دالله تعالی تسبیح وایه د مابنام په وخت او د سحر په وخت کښې او ټولو آسمانونو او زمکه کښې د هغه حمد وئیلې کیږی او دزوال نه پس دماسپخین په وخت کښې.
(۴) تفسیر ابن کثیر تحت هذه الآية [ج: ۷ ص:۴۶۳، ۴۶۴] و تفسیر ابن ابي حاتم رقم الحديث:[۱۷۴۷۹] و مسند احمد، حدیث معاذ بن انس ﷛ رقم الحديث:[۱۵۶۲۴]

**د یو په ګناه به بل نشي نیول** :: په دې آیت مبارک کښې دهغه چا د خیال هم رد اوشو چې بیان ئې په شان نزول کښې راغلې دې چې په مسلمانیدو باندې یو صاحب خپل ملګرې ملامته کړو او ورته ئې اووئیل چې ستا د حصې عذاب به د قیامت په ورځ زه ټول پخپل سر واخلم او تابه بچ کړم ، دې آیت نه معلومه شوه چې د الله ﷻ په نزد داسې هیڅرې نشې کیدې چې د یو په ګناه کښې بل اونیولې شي .

یو حدیث پاک کښې چې داسې راغلی دی چې مړی باندې په ماتم کوونکو او ژړا کوونکو باندې مړې نیولې شي [بحواله د صحیحینو په روایت د ابن عمر ﷺ] (۱) نو دا د هغه مړی باره کښې دی چې پخپله هم په مړی باندې د ماتم او ویر ژړا کولو عادت او خواهش مند وو او خپلو وارثانو ته به ئې پخپل مرګ باندې د ویر ژړا کولو وصیت کړې وی [مظهری] (۲) نو په دې صورت کښې به ئې عذاب هم پخپل دغه عمل په وجه اوشو د بل د عمل عذاب نه شو.

بل حکم دې : ﴿وَأَن لَّيْسَ لِلْإِنسَانِ إِلَّا مَا سَعَىٰ﴾ ددې اصل دادې چې څنګه یو کس د بل عذاب په سر نشي اخستلې ، دا شان چاته دا حق حاصل نه دې چې د بل چا د عمل په بدله کښې پخپله عمل اوکړی او هغه د هغه عمل نه خلاص کړی . لکه یو کس د بل چا د طرفه فرض مونځ ادا کړی یا د بل چا د طرفه فرض روژه اونیسی ، او هغه بل کس د خپل فرض مونځ او روژې څخه خلاص شي یا داچې یو کس د بل چا د طرفه ایمان قبول کړی او هغه ته په دې وجه مؤمن اووئیلې شي.

ددې مذکوره آیت مبارک په دې تفسیر باندې هیڅ فقهی اشکال او شبه نه کیږی څکه چې زیاته نه زیاته شبه دحج او زکوة په مسئله کښې دا کیدې شي چې دضرورت په وخت کښې یو کس د بل کس د طرفه حج بدل ادا کولې شي ، که غور اوکړې شي نو دا اشکال په دې وجه صحیح نه دی چې که یو کس پخپل ځائې حج بدل دپاره لیږل او د هغه اخراجات برداشت کول ، یا یو کس د خپله طرفه په زکوة ورکولو باندې مامور کول هم په حقیقت کښې دهغه کس د عمل او سعی جز دې. څکه د : ﴿لَّيْسَ لِلْإِنسَانِ إِلَّا مَا سَعَىٰ﴾ سره بې سمونه نه دی.

**د ثواب رسولو مسئله** :: هرکله چې پورته معلومه شوه چې ددې مذکوره آیت مبارک مفهوم دادې چې یو کس د بل فرائض ایمان او مونځ روژه وغیره ادا کړینو دې سره هغه خلاصیدې نشي ، نو دې سره دا نه لازمیږی چې د یو کس د نفلی عمل ثواب او فائده بل کس ته نشي رسیدلې ، د یو کس دعاء او دصدقې ثواب بل کس ته ملاویدل دنصوص شرعیه څخه ثابت او د ټول امت په نزد یوه اجماعی مسئله ده. [ابن کثیر] (۳)

صرف د امام شافعی رحمه الله په دې مسئله کښې اختلاف دې چې د قرآن عظیم الشان د تلاوت ثواب بل چا ته رسولې یا بخښلې شي که نه، امام شافعی ددې څخه انکار کوی او د آیت مبارک عام مفهوم اخلی او ددې څخه استدلال کوی. دجمهورو امامانو او دامام اعظم ابوحنیفه رحمه الله په نزد څنګه چې د دعا او صدقې ثواب بل کس ته رسولې شي دغه شان د قرآن

۱) صحیح البخاري کتاب الجنائز ،باب مایکره من النیاحة علی المیت [ج:۱ص:۱۷۲] و صحیح مسلم کتاب الجنائز، باب المیت یعذب ببکاء اهله [ج:۱ص:۳۰۲]
۲) تفسیر المظهري[ج:۹ص:۱۲۶]
۳) تفسیر ابن کثیر [ج: ۷ ص:٤٦٥]

عظیم الشان د تلاوت ثواب او د هر نفلي عبادت ثواب هم بل ته بخښلي شي او هغه به ورته ملاویږي ، امام قرطبي رحمه الله پخپل تفسیر کښې فرمائیلي دي چې ډیر احادیث په دې باندې شاهد دي چې یو مسلمان ته دبل مسلمان د نیک عمل ثواب رسیدې شي[1] ، تفسیر مظهري هم په دې مقام هغه احادیث راجمع کړي دي چې بل ته ثواب رسیدل تري ثابتیږي[2].

آیت مبارک کښې دصحف موسی علیه السلام او ابراهیم علیه السلام په حواله چې کومې دو مسئلې بیان شوي دي. یو دا چې د یو ګناه عذاب به بل ته نه وي او د یو په ګناه کښې به بل نشي نیولې. بله دا چې دهر کس په غاړه چې دکومو اعمالو شرعي ذمه داري ده دهغه نه دخپلې غاړې خلاصولو طریقه صرف داده. چې پخپله ئې ادا کړي ، د بل په د ادا کولو ئې ذمه نه فارغیږي ، نو دا اګر چې د ټولو پیغمبرانو علیهم السلام په شریعتونو کښې وو خو د لته د موسی علیه السلام او ابراهیم علیه السلام خصوصیت شائد ځکه اوکړې شي چې د دوئ علیهما السلام په زمانه کښې دا جاهلانه رسم جاري شوي وؤ چې د پلار په بدله ځوئې لره د ځوئي په بدله کښې پلار لره یا ورو خور وغیره قتل کولې شو او ددې دواړو شریعتونو د جاهلیت دغه رسم ختم کړو

[﴿وَأَنَّ سَعْيَهُ سَوْفَ يُرَىٰ﴾ یعنی د هر چا صرف ظاهري سعي کافي نه ده د الله ﷻ په دربار کښې به د سعي اصل حقیقت هم کتلې شي چې په اخلاص ئې کړې وه یا د نورو دنیوي غرضونو دپاره ئې کړې وو ، یو حدیث پاک کښې د رسول کریم ﷺ ارشاد مبارک دې چې:

[﴿انما الاعمال بالنیات﴾[3] [یعنی صرف دتمل شکل کافي نه دې چې نیت په کښې خالص دالله تعالی د رضا وی نو هله به نیک عمل قبلیږي]

[﴿وَأَنَّ إِلَىٰ رَبِّكَ الْمُنتَهَىٰ﴾ [یعنی آخر به ټول الله ﷻ ته واپس کیږي چې دخپلو عملونو حساب به ورکوي]

ځینې مفسرینو ددې جملې دا مطلب ګرځولې دې چې د انساني غور ، فکر سلسله د الله ﷻ ذات ته په رسیدو ختمیږي ، د الله ﷻ ذات او صفات حقیقت په څه غور ، فکر سره نه حاصلیدې شي ، اونه د غور ، فکر کولو اجازت هم په کښې شته ، لکه په ځینې روایتونو کښې راغلي دي چې د الله ﷻ په نعمتونو کښې غور ، فکر کوئي ، د الله ﷻ په ذات کښې غور ، فکر مه کوئي بلکه د الله ﷻ علم ته اوسپارئ ولې چې دا ستاسو د وس خبره نه ده[4].

[﴿وَأَنَّهُ هُوَ أَضْحَكَ وَأَبْكَىٰ﴾ یعنی په ټولو انسانانو کښې خوشحالي او غم او ددې په نتیجه کښې د خندا او ژړا سلسله هر سړي کتلې شي .او ددې دواړو څیزونو په نتیجه کښې ددې په ظاهر او باطن کښې راپیښیدونکي اسبابو طرفته چې منسوب کړي شي نو په دې سره معامله ختمیږي، دا د غور او فکر مقام دې ،څوك چې دې ته په ژور نظر سره اوګوري چې خوشحالي یا غم او خندل او ژړل پخپله دده یا دبل چا په قبضه کښې نه دي ، دا دواړه څیزونه دالله ﷻ د طرفه دي ، هم هغه ذات اسباب پیدا کوي او هم هغه په دې کښې تاثیر پیدا کوي ، هغه ذات

[1] تفسیر القرطبي [ج:۱۷ص:۱۱٤]
[2] تفسیر المظهري[ج:۹ص:۱۲۷]
[3] صحیح البخاري [ج:۱ص: ۲]
[4] تفسیر ابن کثیر [ج: ۷ ص:٤٦٦]و تفسیر المظهري[ج:۹ص:۱۳۰]

چې کله اوغواړي نو ژړيدونکي خلق په يو ساعت کښې په خندا کوي او په خندا خلق په يو ساعت کښې په ژړا کوي ، ولنعم ماقيل:

بگوش گل چه سخن که خندان است
بعندليب چه فرموده ئے که نا لان است

[ګلاب ته دې څه وئيلي دي چې خنديدونکې وي ، بلبل ته دې څه فرمائيلي دي چې ژړا کوي]

﴿وَأَنَّهُ هُوَ أَغْنَىٰ وَأَقْنَىٰ﴾ دغنا معنی مالداري مشهوره ده او اغنا د بل مالداره کولو ته وئيلې شي ، اقنی د قنيه نه مشتق دې چې معنی ئې محفوظه او ساتلې شوې پنګه يعنی سرمايه ده ، د ټول آيت دا معنی شوه چې هم الله ﷻ خلقو لره مالداره او غنی جوړوی هغه چاله چې اوغواړي دومره پنګه سرمايه ورکوی چې محفوظه ئې ساتلې شي.

﴿وَأَنَّهُ هُوَ رَبُّ الشِّعْرَىٰ﴾ شعری د يو ستوری نوم دې چې جوزاء پسې دې ، د عربو څينې قومونو به ددغې ستوری عبادت کولو ، څکه ئې په خصوصيت سره د هغې نوم واخستو او وې خودل چې ددې ستوری مالک او پروردګار هم الله ﷻ دې اګر چې هغه د ټولو ستورو ، آسمانونو او زمکې ، خالق او مالک او پروردګار دې.

﴿وَأَنَّهُ أَهْلَكَ عَادًا الْأُولَىٰ ۝ وَثَمُودَ فَمَا أَبْقَىٰ﴾ عاد قوم د دنيا په سختو قومونو کښې ياديږی ، دا په دوؤ ډلو اولی او اخری کښې تقسيم شوی وو ، دوئ ته هود ﷺ د رسول په حيثيت ليږلې شوې وو د نافرمانئ په وجه پرې دهوا د طوفان عذاب راغلو ، ټول قوم هلاک شو ، د نوح ﷺ نه پس په عذاب سره هلاکيدونکې قوم رومبي دا وو [مظهری][1].

او ثمود هم ددې پشان دويم شاخ دې ، دې ته د پيغمبر په حيثيت صالح ﷺ ليږلې شوې وو ، ددوئ په نافرمانی کوؤنکو باندې دسخت آواز عذاب راغلو ، او ددوئ زړونه اوچاؤدل او هلاک شو.

﴿وَالْمُؤْتَفِكَةَ أَهْوَىٰ﴾ د [مُؤْتَفِكَة] لفظی معنی مؤتلفه ده ، دا د يو څو پيوستو ودانو او ښارونو نوم وو ، دوئ ته لوط ﷺ د پيغمبر په حيثيت اوليږلې شو ، دنافرمانئ او بې حيائ د عملونو په سزا کښې د دوئ ودانئ جبرائيل ﷺ نسکورې د پورته راګذار کړې.

﴿فَغَشَّاهَا مَا غَشَّىٰ﴾ [يعنی راګير کړې دغه ودانئ کوم څيز چې راګير کړې وې] مراد ترې کانړې راورول دي چې ددغې ودانو د راګذارولو نه پس پرې راؤرولې شو ، تر دې پورې دصحف موسی ﷺ او ابراهيم ﷺ په حواله د تعليماتو بيان ختم شو.

﴿فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكَ تَتَمَارَىٰ﴾ د [تَمَارَىٰ] معنی جنګ او مخالفت کول دی ، ابن عباس رضی الله عنهما اوفرمائيل چې دا خطاب هر انسان ته دې چې په بيان شوؤ آيتونو د قرآن عظيم الشان او د موسی ﷺ او ابراهيم ﷺ په صحيفو کښې راغلو آيتونو کښې څوک لږ فکر هم کوی نو هغه ته د رسول کريم ﷺ اود هغوئ ﷺ د راغلې وحی او تعليماتو په حقوالی کښې چا ته د شک ګنجائش نه پاتې کيږی ، او د پخوانو قومونو د هلاکت او عذاب د واقعاتو په آؤريدو سره د مخالفت نه د لرې کيدو ښه موقع په ګوتو رازی چې د الله ﷻ يو نعمت دې سره ددې تاسو د الله ﷻ په کوم کوم نعمت کښې به جنګ او خلاف کوئ.

---

[1] تفسير المظهري[ج:۹ص:۱۳۲]

[﴿هٰذَا نَذِيۡرٌ مِّنَ النُّذُرِ الۡاُوۡلٰى﴾] په هذا سره اشاره قرآن عظیم الشان یارسول ﷺ ته ده چې دوئ هم پخوانو کتابونو پشان د الله ﷻ د طرفه یو نذیر جوړ شوي لیږلي شوي دي چې صراط مستقیم او ددین دنیا په کامیابئ باندې مشتمل هدایات ئې راوړی دی او ددوئ مخالفت کوونکی د الله ﷻ د عذاب نه ویروی.

[﴿اَزِفَتِ الۡاٰزِفَةُ ۚ لَیۡسَ لَهَا مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ كَاشِفَةٌ﴾] ازف د قرب په معنی کښې رازی، معنی دا شوه: نزدې راتلونکې څیز نزدې راورسیدو چې بغیر د الله ﷻ نه ئې څوک لرې کوونکې نشته، مراد ترې قیامت دی، ددې نزدې رارسیدل د ټولې د نیا د عمر په اعتبار سره دی چې امت محمدیه ﷺ ددې په بالکل آخر کښې قیامت ته نزدې دی.

[﴿اَفَمِنۡ هٰذَا الۡحَدِیۡثِ تَعۡجَبُوۡنَ ۙ وَ تَضۡحَكُوۡنَ وَ لَا تَبۡكُوۡنَ﴾] د [﴿هٰذَا الۡحَدِیۡثِ﴾] نه مراد قرآن عظیم الشان دي، د آیت معنی دا شوه چې د قرآن عظیم الشان پشان د الله ﷻ کلام چې پخپله یوه معجزه ده ستاسو په مخکښې راغله، آیا په دې هم تاسو تعجب کوئی او د ټوقو په طور ورپورې خاندئی او پخپلې نافرمانئی باندې یا په عمل کښې کوتاهئ باندې نه ژاړئی.

[﴿وَ اَنۡتُمۡ سٰمِدُوۡنَ﴾] د سمود لغوی معنی غفلت او بې فکری ده، [﴿سٰمِدُوۡنَ﴾] د غافلون په معنی ده، د سمود بله معنی سندرې او ټنګ ټکور ده چې دا هم دلته مراد کیدې شی [څنګه چې څینې امامانو دا تفسیر کړې دې][1].

[﴿فَاسۡجُدُوۡا لِلّٰهِ وَ اعۡبُدُوۡا﴾] یعنی تیر شوی آیتونه کوم چې انسان ته د عبرت او نصیحت سبق ورکوی، ددې غوښتنه داده چې تاسو ټول د الله تعالی په مخکښې په عاجزئی او خاکسارئ سره ټیټیږئی او سجده کوئی، او خالص هم دهغه عبادت کوئی.

صحیح بخاری کښې د ابن عباس رضی الله عنه نه روایت دې چې د سورة نجم په دې آیت باندې رسول کریم ﷺ سجده اوکړه چې ورسره مسلمانان او مشرکان هم شریک شو ټولو انسانانو او پیریانو سجده اوکړه[2]، او هم د بخاری او مسلم په روایت کښې د عبد الله بن مسعود رضی الله عنه نه روایت دې چې رسول کریم ﷺ دسورة نجم تلاوت اوفرمائیلو او په دې کښې ئې سجدهٔ تلاوت ادا کړه، رسول کریم ﷺ سره ټولو موجود خلقو سجده اوکړه، خو یو قریشی بوډا د زمکې نه یو موټې خاوره واخسته او تندی پورې ئې اولګوله او وې وئیل چې ما دپاره هم دا کافی ده. عبدالله بن مسعود رضی الله عنه اوفرمائیل چې ما دغه سړې د کفر په حالت کښې وژلې شوې لیدلې دې[3]. ددې مطلب دادې چې مؤمنانو خو سجده به ضرور د رسول کریم ﷺ په تابعدارئی کښې کوله، کوم مشرکان هم چې د رسول کریم ﷺ سره په دغې سجدې کولو کښې یو ځائې شو هغه الله ﷻ په هغوئ باندې هم داسې حالت غالب کړو چې ټول په سجده کولو مجبور شو اګر چې هغه وخت دهغوئ سجده د کفر په وجه څه ثواب نه لرلو مګر دهغې اثر دا اوشو چې هغوئ ټول بیا مسلمانان شو، صرف هم دغه یو کافر په کښې د کفر په حالت

---

[1] تفسیر ابن کثیر [ج: ۷ ص: ٤٦٨]
[2] صحیح البخاري كتاب التفسير، با سورة النجم [ج:۲ص:۷۲۱]
[3] صحیح البخاري كتاب التفسير، باب سورة النجم [ج:۲ص:۷۲۰] و صحیح مسلم کتاب المساجد ومواضع الصلاة، باب سجود التلاوة [ج:۱ص:۲۱۵]

کنبې اوورژلې شو چا چې په سجده کولو دغه نخره راؤښکله
د زید بن ثابت په روایت د صحیحینو په یو حدیث پاک کنبې راغلی دی چې هغوئ ﷺ د رسول کریم ﷺ په مخکنبې تول سورة نجم او لوستلو خو هغوئ سجده اونه کړه(۱) . دې نه دا نه لازمیږی چې سجده واجبه یا لازمه نه ده . ولې چې په دې کنبې دا احتمال دې چې دغه وخت دې د هغوئ ﷺ اودس نه وی یا دسجدې کولو نه ورته بل څه عذر راپیښ وی چې سمدستی سجده کولو نه مانع وی ، ولې چې سمدستی سجده کول ضروری نه دی ، روستو هر کولې شی، والله اعلم

تمت سورة النجم بعونه وحمده سبحانه وتعالى ليلة الجمعة لعزة الربيع الثاني ۱۴۳۰ هجري
في اسبوع واحد ويتلوه تفسير سورة القمر انشاء الله تعالى وهو ولي التوفيق .

| ایاتونه | | سورة القمر مكية وهي خمس وخمسون اية وثلاث ركوعات | | رکوع ګانې |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ۵۵ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زیات رحم کونکې دې | | ۳ |

اِقْتَرَبَتِ | السَّاعَةُ | وَانْشَقَّ | الْقَمَرُ ۝۱ | وَاِنْ يَّرَوْا | اٰيَةً
نزدې راغې | وخت دقیامت | او دوه ټوټې شوه | سپوږمۍ | او که اووینی دا خلق | هره نښه |
قیامت رانزدې شو | او سپوږمۍ اوچاؤدله | .............. اودوئ که یوه نښه اووینی | نو دهغې نه

يُّعْرِضُوْا | وَيَقُوْلُوْا | سِحْرٌ | مُّسْتَمِرٌّ ۝۲ | وَكَذَّبُوْا | وَاتَّبَعُوْٓا
نو مخ اړوی | اووائی | دا جادو دې | روان | او دروغ ئې اوګڼړو | او پیروی ئې اوکړه |
مخ اړوی | او وینا شروع کړی چې دا جادو دې | چې دهمیشه نه راروان دې | اودوئ پیغمبران دروغژن

اَهْوَآءَهُمْ | وَكُلُّ اَمْرٍ | مُّسْتَقِرٌّ ۝۳ | وَلَقَدْ جَآءَهُمْ | مِّنَ الْاَنْۢبَآءِ | مَا
دخواهشاتو خپلو | او هر کار | قرار نیونکې دې | او راغلې دې دوئ ته | دخبرونونه | هغه خبر
اوګنړل | او پخپلو خواهشاتو پسې روان شول | او دهر کار دپاره وخت مقرر دې | او دوئ ته دومره خبرونه راغلل چې

فِيْهِ | مُزْدَجَرٌ ۝۴ | حِكْمَةٌ | بَالِغَةٌ | فَمَا تُغْنِ
چې په هغې کنبی | منع ده دکفر نه | حکمت دې | چې رسیدونکې دې مقصد ته | خو نهٔ رسوی فائیده [دوئ ته]
په هغې کنبې کافی زور نه ده | دا وچت حکمت [نه ډک دې] | خو ویرونکی څیزونه دوی ته هیڅ فائده نه ورکوی

النُّذُرُ ۝۵ | فَتَوَلَّ | عَنْهُمْ | يَوْمَ | يَدْعُ | الدَّاعِ | اِلٰى شَيْءٍ
یرونکې | پس مخ واړوه | د دوئ نه | په کومه ورځ | چې رابلی: | بلونکې | یو څیز
نو اې نبی ﷺ ته ددوئ پرواه مه ساته | په کومه ورځ چې به یو رابلونکې [فرښته] دوئ یو ناخوښهٔ څیز ته راوبلی

(۱) صحيح البخاري ابواب ماجاء في سجود القرآن ، باب من قرا السجدة ولم يسجد [ج:۱ص:۱۴۶] و صحيح مسلم كتاب المساجد ومواضع الصلاة ، باب سجود التلا

| نُّكُرٍ ⁶ | خُشَّعًا | أَبْصَارُهُمْ | يَخْرُجُونَ | مِنَ الْأَجْدَاثِ |
|---|---|---|---|---|
| ناخوښه ته | حال دا چې يريدونکې به وي | سترگې ددوئ | رااوځي به | دقبرونو نه |
| سترگې به ئې کوزې وي \| او دقبرونو نه به په داسې حالت کښې رابهر شي | | | | |

| كَأَنَّهُمْ | جَرَادٌ | مُّنتَشِرٌ ⁷ | مُّهْطِعِينَ | إِلَى الدَّاعِ |
|---|---|---|---|---|
| لکه چې دوئ وي | مولخان | خواره وارهٔ | منډې وهونکې به وي | طرف دبلونکې ته |
| لکه چې دوی راخوارهٔ شوې ملخان دی\| بلونکې طرفته به په منډه روان وي | | | | |

| يَقُولُ الْكَافِرُونَ | هَٰذَا يَوْمٌ | عَسِرٌ ⁸ |
|---|---|---|
| وائي به کافران | دا ورځ ده | سخته |
| کافران به اووائي چې داخو ډيره سخته ورځ ده\| | | |

## آسان ترجمه قرآن

قيامت نزدې شوې دې، او سپوږمۍ اوچوده او ددې خلقو حال دادې، چه که دوی څه نښه اووينې، نو مخ اړوی، او وائي چه دا خو يو تلونکې جادو دې دوی حق لره دروغ گنړی، او خپلو خواهشاتو پسې روان دی، او هر کار په خپل وخت بانديې قرارې نيونکې دې اودې خلقو ته (د مخکښنو قومونو) د واقعاتو نه دومره خبرې رارسيدلې دی چه په هغې کښې د تنبيه دپاره ډير سامان موجود وو. زړه ته کوزيدونکې خبرې وې، بيا هم دغې تنبيهاتو دوی ته هيڅ فائده ورنکړه. لهٰذا (اے پيغمبره عليه السلام) ته هم ددوی پروا مه کوه په کومه ورځ چه رابلونکې به دوی يو ناخوښه څيز ته راوبلی په هغه ورځ به دوی خپلې سترگې ښکته کړې وی، او دقبرونو نه به داسې راوځی، لکه هر طرف ته خواره شوې ملخان منډې به وهی هغې بلونکې طرف ته، هم دا کافران (چه دقيامت نه ئې انکار کولو) به وائي، چه دا خو ډيره سخته ورځ ده.

## خلاصه تفسير

ددې کفارو دپاره زاجر يعنی په غلطئ خبردار کوونکې خبره خو د اعلی درجې ثابته ده چنانچه ﴿اِقۡتَرَبَتِ السَّاعَةُ وَانۡشَقَّ الۡقَمَرُ﴾ [قيامت نزدې راغې] په کوم کښې چه به په تکذيب لوئ مصيبت راشی [او] ددې قيامت نزدې کيدو مصداق هم واقع شو چنانچه [سپوږمئ نيمه شوه] او په دې سره دقيامت نزدې کيدو تصديق داسې کيږی چه شق قمر معجزه ده دنبی کريم ﷺ چه په دې سره ددوئ نبوت ثابتيږی او دنبی هرقول صادق وی په دې وجه ضروری ده چه دقيامت د نزدې کيدو خبرکوم چه دوئ ﷺ ورکړې دې هغه هم صادق دې په دې سره تحقق د زاجر متعين شو [او] ددې مقتضی داوه چه [داخلق] په دې سره منزجراو متاثر شوی وې ليکن ددوئ دا حالت دې ﴿وَاِنۡ يَّرَوۡا اٰيَةً يُّعۡرِضُوۡا﴾ چه [که څه معجزه وينی نو وروستوکوی ئ] ﴿وَيَقُوۡلُوۡا سِحۡرٌ مُّسۡتَمِرٌّ﴾ او وائی چه داجادودې اوس به ختم شی] داکنايه ده ددې دباطل کيدونه چه دباطل اثر تره يروخته پورې قائم نه پاتې کيږی لکه چه دالله تعالی ارشاد دې وما يبدء الباطل وما يعيد مطلب دادې چه دقيامت په نزدې کيدو سره نصيحت حاصلول خو دنبوت محمديه په اعتقاد باندې موقوف دې داخلق په خپله خو ددې دليل ته په نظر دتامل سره نه گوری او داباطل گنړی نو بياپه دې سره په دوئ څه اثرکيږی [او] په دې اعراض او په باطلولو د دعوې د معجزې

کښې په خپله ﴿وَكَذَّبُوا وَاتَّبَعُوا أَهْوَاءَهُمْ﴾ [داخلق] په باطل اصرار کوونکی شول او حق ئې [دروغژن کړو او دخپل نفساني خواهشاتو پیروي ئې وکړه] یعنی د دوئ اعراض دځه صحیح دلیل په وجه سره نه دې بلکه سبب ددې اعراض خواهش نفساني دې او دعناد په وجه دحق تکذیب دې [او] داچه دوئ معجزو ته جادو وائی چه اثرئ زر زائله کیږی پس قاعده داده چه ﴿وَكُلُّ أَمْرٍ مُّسْتَقِرٌّ﴾ [هرې خبرې لره] پس دځه وخت نه چه په خپل اصلی حالت راشی [قرار ورلره راشی] یعنی دحق حق کیدل او دباطل باطل کیدل داسبابواو اثارو نه په عام طور سره متعین شی مطلب دادې چه اګر چه په واقع کښې خو فی الحال هم حق متعین او واضح دې مګر کم فهمه که پرې اوس هم نه پوهیږی نو پس د ځه وخت نه به دوئ ته هم ظاهره شی شرط ددې چه د غورنه کار واخلی نو دځو ورځو نه پس به تاسو ته معلومه شی چه دا فانی سحر دې یا باقی حق دې [او] ددې ذکر شوی زاجرنه علاوه ﴿وَلَقَدْ جَاءَهُم مِّنَ الْأَنبَاءِ مَا فِيهِ مُزْدَجَرٌ﴾ [ددې خلقو سره خو د تیروامتونوددوئ [خبرو نه هم دومره رسیدلی دی چه په هغې کښې] ﴿حِكْمَةٌ بَالِغَةٌ فَمَا تُغْنِ النُّذُرُ﴾ کافی [عبرت یعنی داعلی درجې پوهه]حاصلیدونکی [ده پس] ددوئ داکیفیت دې چه ویرونکی څیزونه دوئ ته هیڅ فائده نه ورکوی او هر کله چې حال دادې﴿فَتَوَلَّ عَنْهُمْ﴾ [نو ته ددوئ طرف ته خیال مه کوه] هرکله چه دغه وخت دقیامت او عذاب دکوم نه چه دوئ ویرولې شی راشی نو په خپله به معلومه شی وړاندې ددغې ورځې بیان دې یعنی﴿يَوْمَ يَدْعُ الدَّاعِ إِلَىٰ شَيْءٍ نُّكُرٍ﴾ [په کومه ورځ چه یو بلونکې فرښته] دوئ لره [یو ناخوښه شي طرف ته راوبلی ﴿خُشَّعًا أَبْصَارُهُمْ﴾ ددوئ سترګې به] د ذلت او هیبت نه [ښکته شوې وی﴿يَخْرُجُونَ مِنَ الْأَجْدَاثِ كَأَنَّهُمْ جَرَادٌ مُّنتَشِرٌ﴾ او د قبرونونه به داسې را اوځی لکه ملخان چه خوارهٔ شوی وی] او بیا چه راوځی ﴿مُّهْطِعِينَ إِلَى الدَّاعِ﴾[د بلونکی طرف] یعنی د حساب موقف ته کوم ځائ ته چه دجمع کیدو دپاره بلونکی اواز کړې دې [به په منډه روان وی] او دهغه ځائ سختې چه اووینی﴿يَقُولُ الْكَافِرُونَ هَٰذَا يَوْمٌ عَسِرٌ﴾ [کافران به وائی چه دا ورځ ډیره سخته ده].

## معارف او مسائل

دې سورت څخه وړاندې سورة یعنی النجم په ﴿أَزِفَتِ الْآزِفَةُ﴾ باندې ختم شوې دې چې په کښې د قیامت د نزدې راتلو بیان دې او ددې سورة شروع هم ددغې مضمون ﴿اقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ﴾ څخه شوې ده . دې پسې د قیامت د نزدې کیدو د یو بل دلیل د سپوږمۍ څیرې کیدو بیان شوې دې ولې چې د قیامت د نخښو تفصیل ډیر لوئې دې دهغې څینې یوه لویه علامه خو پخپله د نبی کریم ﷺ پیغمبر کیدل دی څنګه چې په حدیث پاک کښې هم راغلی دی چې زما راتلل او قیامت داسې یو ځائې دی لکه د لاس دوه ګوتې(۱). داسې نور روایتونه هم شته دې چې په هغې کښې د نبی کریم ﷺ راتلل د قیامت نخښه خودلې شوې ده . داشان دا هم د قیامت رانزدې کیدو یوه لویه نخښه د ه چې د نبی کریم ﷺ د معجزې په ډول سپوږمۍ دوه ټکړې شوه .او بیا رایوځائې شوه. داشان د سپوږمۍ څیرې کیدل په دې حیثیت سره هم د قیامت نخښه ده چې څنګه دغه وخت سپوږمۍ د الله ﷻ په قدرت سره دوه ټوټې شوه دغسې په

(۱) صحیح البخاري کتاب الرقاق ،باب قول النبی صلی الله علیه وسلم: انا بعثت انا والساعة کهاتین [ج:۲ص:۹۶۳]

قيامت كښې ټولې سيارې اوستورې ټوټې ټوټې كيدل څه لرې خبره نه ده.

**د سپوږمۍ د څيرې كيدو معجزه:** دمكې مكرمې كافرانو نبى كريم ﷺ څخه د نبى كريم ﷺ د پيغمبرۍ څخه نخښه او معجزه طلب كړه نو الله ﷻ د نبى كريم ﷺ د حقانيت ثابتولو دپاره د سپوږمۍ د څيرې كيدو معجزه ښكاره كړه څنګه چې قرآن عظيم الشان دلته په دې آيت مبارك كښې ﴿وَانْشَقَّ الْقَمَرُ﴾ فرمائى ، او صحيح احاديث چې د صحابه كرامو ؓ د يوې ډلې په روايت سره راغلى دى چې په كوم كښې عبدالله بن مسعود ؓ ، عبدالله بن عمر ؓ ، جبير بن مطعم ؓ ، ابن عباس ؓ او انس بن مالك ؓ وغيره شامل دى . او عبدالله بن مسعود ؓ پخپله دغه وخت كښې موجود وو او ددې معجزې د سترګو حال بيانوى[۱] . امام طحاوى ؒ او ابن كثير ؒ د سپوږمۍ دوه ټوټې كيدو روايتونه متواتر بللى دى[۲] څكه د نبى كريم ﷺ ددې معجزې واقع كيدل په يقينى دليلونو سره ثابت دى .

د واقعې خلاصه داده چې د مكې مشركانو نبى كريم ﷺ څخه د سپوږمۍ په شپه كښې كله چې نبى كريم ﷺ په منى كښې وو د نبى كريم ﷺ د پيغمبرۍ نخښنهٔ طلب كړه نو الله ﷻ دا ښكاره معجزه ښكاره كړه . سپوږمۍ دوه ټكړې شوه ، يو ټكړه ئې مشرق ته او بله ئې مغرب ته لاړه او د دواړو ټكړو تر مينځه غر ښكاريدو . نبى كريم ﷺ ټولو موجودو خلقوته اوفرمائيل چې اوګورئى او ګواهۍ وركړئ ، كله چې ټولو خلقو دا معجزه اوليدله نو دا دواړه ټكړې بيا رايو ځائې شوې . ددې ښكاره معجزو څخه خو انكار د سترګو خاوند نشو كولې . بيا هم د مكې مشركانو اووئيل چې محمد ﷺ په ټول جهان باندې جادو نشى كولې ، د بهر څخه چې كوم خلق راتلونكى دى دهغوئ انتظار اوكړئى هغوئ څخه تپوس اوكړو چې هغوئ ددې متعلق څه وائې ؟ چې هغوئ هم د سپوږمۍ د دوه ټكړې كيدل ليدلى دى كه نه ؟ [بيهقى وابوداؤد په طيالسى كښې] د عبدالله بن مسعود ؓ په روايت كښې دى چې كوم خلق د بهر څخه راغلل هغوئ هم داحال بيان كړو چې هغوئ هم دسپوږمۍ دوه ټكړې كيدل ليدلى دى[۳].

د ځينې روايتونو مطابق د سپوږمۍ دوه نيم كيدو دا معجزه په مكه مكرمه كښې دوه ځل راپيښه شوه خو دصحيح روايتونو څخه يو ځل ثبوت ملاويږى . [بيان القرآن][۴]

په دې معامله كښې د حديث څو روايتونه دادى چې دابن كثير څخه اخستې شوى دى .

① په صحيح بخارى كښې د انس بن مالك ؓ په روايت نقل دى چې :

﴿ان اهل مكة سالوا رسول الله ﷺ ان يريهم اية فاراهم القمر شقين حتى راوا حراء بينهما﴾[بخارى ومسلم][۵] [د مكې خلقو درسول كريم ﷺ نه سوال اوكړو چې د خپل نبوت دپاره څه نخښنه راته اوښايئ نو الله تعالى سپوږمۍ دوه ټكړې كړې ورته اوخودله تر دې چې د حراء غر ئې ددغې ټكړو ترمينځه اوليدو]

② دصحيح بخارى ، مسلم اومسند احمد په حواله عبدالله بن مسعود ؓ روايت كوى:

---

[۱] جامع الترمذي ، ابواب التفسير باب سورة القمر[ج:۲ ص:۱٦٤]
[۲] تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ۷ ص: ٤٧۲]
[۳] مسند الطيالسي رقم الحديث :[۲۸۹] و دلائل النبوة للبيهقي رقم الحديث :[٥٦٥]
[۴] تفسير بيان القرآن تحت هذه الآية [ج:۱۱ ص:۸۲]
[۵] صحيح البخاري كتاب المناقب ،باب سؤال المشركين ان يريهم النبي ﷺ آية.... الخ [ج:۱ص:٥۱۳]

﴿انشق القمر على عهد رسول الله ﷺ شقين حتى نظروا اليه فقال رسول الله ﷺ اشهدوا﴾
[د رسول کریم ﷺ په زمانه کښې سپوږمۍ دوه ټکړې شوه چې ټولو په ښه شان اولیده او نبی کریم ﷺ خلقو ته اووئیل چې اوګورئی او ګواهی ورکړئی]
او ابن جریر رحمه الله هم په خپل سند سره دا حدیث پاک په دې الفاظو کښې نقل کړې دې چې:
﴿كنا مع رسول الله ﷺ بمنى فانشق القمر فأخذت فرقة خلف الجبل فقال رسول الله ﷺ اشهدوا اشهدوا﴾(۱) [عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمائیلی دی چې مونږ په منی کښې رسول کریم ﷺ سره وو ناګاهانه سپوږمۍ دوه ټکړې شوه او یوه ټکړه ئې د غر د روستو شاته لاړه ، نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چې ګواهئ ورکړئی ګواهی ورکړئ](۲)
۳ هم د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه په روایت سره ابو داؤد طیالسی دا هم نقل کړی دی چې:
﴿انشق القمر بمكة حتى صار فرقتين فقال كفار قريش اهل مكة هذا سحر سحركم به ابن ابى كبشة انظروا السفار فان كانوا راؤا ما رايتم فقد صدق وان كانوا لم يروا مثل ما رايتم فهو سحر سحركم به فسئل السفار قال وقدموا من كل جهة فقالوا رايناه﴾
[کله چې نبی کریم ﷺ په مکه مکرمه کښې وو نو سپوږمۍ دوه ټکړې شوه د قریشو کافرانو اووئیل چې دا جادو دې ، ابن ابی کبشه [محمد ﷺ] په تاسو جادو کړې دې نو تاسو انتظار کوئی د بهر نه راتلونکو مسافرو ته که هغوئ هم د سپوږمۍ دا دوه ټکړې کیدل لیدلی وی نو نبی کریم ﷺ رښتیا اووئیل او که د بهر نه خلقو داسې نه وی لیدلی نو بیشکه دا جادو دې بیا ئې د بهر نه راتلونکو نه تحقیق اوکړو چې هر طرف نه راغلی وو ټولو اقرار اوکړو چې مونږ دوه ټکړې کیدل لیدلی دی] [ابن کثیر](۳).

**دشق القمر په واقعې باندې څه شبهې او جواب:** په دې باندې یوه شبه خو د یونانی فلسفې په بنا باندې کړې شویده . حاصل د هغې دادې چې په آسمان او سیارو کښې څیرې کیدل او پیوستیدل نشی کیدې خو دا خالص ددوئ بې بنیاده دعوی ده چې دلیلونه ئې څه بنیاد نه لري . اسلامی متکلمینو دهغې لغو او باطل کیدل ښه واضح کړی دی او تر ننه پورې په څه عقلی دلیل سره د سپوږمۍ دوه نیمه کیدل ناممکن کیدل نه دی ثابت کړې شوی ، البته ناخبره عوام دخپل عقل څخه لرې هر څیز ته ناممکن وائی . خو ښکاره خبره ده چې معجزه وائی هم دېته چې دعام عادت څخه خلاف دعامو خلقو د قدرت څخه بهر حیرانوونکې اولرې وی . ګنی هغه معمولی کار ته به څوك معجزه وائی چې هر وخت کیدې شی.
بله عامه شبه دا کیدې شی چې که داسې د لوئې شان واقعه راپیښه شوې وې نو د ټولې دنیا په تاریخونو کښې به ددې بیان وو.خو د سوچ ګولو خبره ده چې دا واقعه په مکه مکرمه کښې د شپې په وخت راپیښه شوې ده ، دغه وخت به په ډیرو ملکونو کښې ورځ وه چې هلته ئې د

(۱) صحيح البخاري كتاب المناقب ،باب سؤال المشركين ان يريهم النبي ﷺ آية.... إلخ [ج:۱ص:۵۱۳] و صحيح مسلم كتاب صفة القيامة، باب انشقاق القمر ، و مسند احمد، مسند عبد الله بن مسعود رضي الله عنه رقم الحديث:[۳۵۸۳]
(۲) تفسير الطبري تحت هذه الآية [ج:۲۲ ص:۵۶۶]
(۳) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ۷ ص:۴۷۲] و مسند ابی داود الطيالسی رقم الحديث:[۲۸۹ ] ودلائل النبوة للبيهقي رقم الحديث :[۵۶۵]

ښکاره کیدو اولیدلې کیدو سوال نه پیدا کیږي. او په ځینې ملکونو کښې به د نیمې شپې یا ددې څخه هم روستو وی په کوم وخت کښې چې عامه دنیا ا وده وی او ویښ خلق خو هم هر وخت سپوږمئ ته نه ګوری. زمکې باندې دهغې خوریدلی رڼا کښې دهغه دوه ټکړې کیدلو سره څه اثر نه پریوځی دهغې په وجه دې طرفته د خلقو به خیال شوې وې. بیا دا د لږ ساعت قیصه وه امروزه لیدلې شی چې په یو ملك کښې سپوږمئ تندر نیولی وی او نن صبا خو ړومبې ددې اعلانونه هم کیږی خو بیا هم په زرګونو او لکونو خلق ددې څخه ناخبره پاتې کیږی هغوئ ته هیڅ پته نه وی نو آیا دا ددې خبرې دلیل جوړیدې شی چې سپوږمئ د سره تندر نه ده نیولې، څکه ددنیا په عامو تاریخونو کښې ددې نه ذکر کیدل ددې د دروغژنې سبب نشی جوړې دې.

ددې څخه علاوه د هندوستان په مشهور او مستند تاریخ فرښته کښې ددې بیان هم موجود دې چې په هندوستان کښې مهاراجه مالیبار دا واقعه پخپلو سترګو اولیدله او خپلې روزنامچه کښې ئې دلیکلو حکم ورکړو او هم دا واقعه دهغه د مسلمانیدو سبب جوړ شو او پورته د ادبو داؤد طیالسی رحمه الله اوبیهقی د روایتونو څخه هم دا ثابت شوی دی چې پخپله دمکې مشرکانو هم د بهر دخلقو څخه ددې تحقیق کړې وو او د مختلفو اړخونو راتلونکو ددې واقعې دلیدلو تصدیق کړې وو. والله تعالی اعلم.

﴿وَإِن يَرَوْا آيَةً يُعْرِضُوا وَيَقُولُوا سِحْرٌ مُّسْتَمِرٌّ﴾ د مستمر معنی ډیر وخت په ځائې پاتې کیدونکې ده څنګه چې په فارسی او اردو کښې هم مشهوره ده، خو په عربی ژبه کښې دا لفظ مر او استمر کله د تیریدو او ختمیدو په معنی هم راځی، د تفسیر امامانو مجاهد رحمه الله او قتاده رحمه الله هم دلته دغه معنی بیان کړې ده، په دې بنا د آیت مبارك مطلب به داوی چې دا دجادو اثر دې چې ډیر وخت نشی چلیدې پخپله به لاړ شی، ختم به شی او د مستمر بله معنی قوی او سخت هم رازی، ابوالعالیه رحمه الله او ضحاك رحمه الله په دې آیت مبارك کښې د مستمر هم دا تفسیر کړې دې او مراد به دا وی چې دا ډیر قوی جادو دې.

کله چې د مکې خلقو ددغې لیدلو څخه انکار اونه کړې شو نو دې ته ئې جادو یا سخت جادو وئیلو سره خپل زړه ته ساتلو ورکول شروع کړه.

﴿وَكُلُّ أَمْرٍ مُّسْتَقِرٌّ﴾ د استقرار لغوی معنی په ځائې اودریدل دی، د آیت مبارك مطلب دا دې چې هر کار هر څیز خپل انتها ته په رسیدو سره آخر صفا کیږی، په څه چل ور سره په حقیقت باندې اچولې شوې پرده، آخر لرې شی او د حق حقوالې او د باطل باطلوالې په ډاګه شی.

﴿مُّهْطِعِينَ إِلَى الدَّاعِ﴾ د مهطعین لفظی سر پورته کوونکې ده، د آیت مبارك معنی دا شوه چې د بلونکی آواز پسې سر پورته کوونکی به محشر ته منډې وهی، او دې څخه په ړومبی آیت مبارك کښې چې کوم ﴿خُشَّعًا أَبْصَارُهُمْ﴾ راغلې دې، چې معنی ئې د نظر او سر ښکته لرونکی ده، ددې دواړو ترمینځه سمون داسې راوستې شی چې د محشر ځایونه بهٔ مختلف وی، چرته به خلق سر پورته او چرته سر ښکته ولاړ وی.

كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ

| دروغ اوګڼړو [آخرت] | مخکښې ددوئ نه

|ددې نه وړاندې د نوح ﷺ قوم [پیغمبران]

قَوْمُ نُوْحٍ فَكَذَّبُوْا عَبْدَنَا وَقَالُوْا مَجْنُوْنٌ

قوم دنوح ﷺ | نو دروغ اوګڼړو هغوئ | بنده زمونږه | اووې وئيل | چې دا ليوني دې |

دروغ ګنړلي وو | نوزمونږ بنده ئې دروغژن اوګنړلو | اودائي اووئيل چې [نوح ﷺ] ليوني

وَّازْدُجِرَ ۞ فَدَعَا رَبَّهٗٓ اَنِّيْ مَغْلُوْبٌ

او بدې ردې ورته اوونيلې شوې | پس هغه آواز اوکړو | رب خپل ته | چې بيشکه زۀ | بې وسه شوم |

او د سختې خبرورته ورکړې شوېدې | په دې باندې هغه د خپل رب نه سوال اوکړو | چې زه ډيره

فَانْتَصِرْ ۞ فَفَتَحْنَآ اَبْوَابَ السَّمَآءِ بِمَآءٍ مُّنْهَمِرٍ ۞

پس تۀ بدله واخله | پس پرانستې مونږه | دروازې دآسمان | په اوبو ډيرو راتونيدونکو سره |

عاجزه شوې يم | نوته زما بدله واخله | نومونږ دآسمان دروازې دشرپ په اوبو سره راپرانستلې

وَّفَجَّرْنَا الْاَرْضَ عُيُوْنًا فَالْتَقَى الْمَآءُ عَلٰٓى اَمْرٍ

او جارې کړه مونږه | زمکه | په چينو سره | پس يو ځائې شوې [تولې] اوبه | په هغه کار باندې |

اود زمکې نه مو چينې راوبيولې | نوتولې اوبه په هغه کار پسې يوځائې شوې کوم چې

قَدْ قُدِرَ ۞ وَحَمَلْنٰهُ عَلٰى ذَاتِ اَلْوَاحٍ وَّدُسُرٍ ۞

چې اندازه کړې شوې وۀ | او سور کړو مونږه هغه | په کښتئ دتختو او ميخونو والا کښې |

تجويز شوې وو | اومونږ ﷺ د تختو او دميخونو په يوه بيړئ کښې سور کړو

تَجْرِيْ بِاَعْيُنِنَا ۚ جَزَآءً لِّمَنْ كَانَ كُفِرَ ۞

چې ګرزيدله به | په نګرانئ زمونږ کښې | دا بدله وه | دپاره دهغه چا | چې بې قدرې ئې شوې وه |

چې زمونږ دسترګو په وړاندې روانه وه | دادهغه چا دپاره بدله اخستل وو | چې انکار ترې شوې وو

وَلَقَدْ تَّرَكْنٰهَآ اٰيَةً فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ ۞ فَكَيْفَ

او پريښودله مونږه هغه کشتئ | يوه نښه | نو آيا شته څوک نصيحت اغستونکې | پس څرنګې وۀ |

اودا واقعه مو د نښې په طور پريخوده | نوآيا څوک عبرت اخستونکې شته؟ | نوااوګوره چې|

كَانَ عَذَابِيْ وَنُذُرِ ۞ وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْاٰنَ لِلذِّكْرِ

عذاب زما | او يروني زما | او آسان کړې دې مونږه | دا قران | دپاره دنصيحت |

زما عذاب اوزماويرول څنګه وو؟| اومونږ قران [د بندګانو] پوهولو دپاره آسان کړې دې

فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ ۞

نو آيا شته څوک نصيحت قبلونکې ||

نوآيا څوک نصيحت قبلونکې شته|

## آسان ترجمه قرآن

ددوی نه مخکښې د نوح علیه السلام قوم هم د دروغ ګڼړلو طریقه اختیار کړې وه. نوهغوی زمونږ بندګان دروغژن اوګڼړل اووے وئیل چه: دا لیونې دې، او هغهٔ ته دهمکیانې ورکړې شوې. په دې باندې هغه خپل پروردګار ته آواز اوکړو، چه زه بې وسه شوې یم، اوس هم ته بدله واخله. نو مونږ په شیبو وریدونکې باران سره د آسمان دروازې پرانستلې او زمکه مو اوشلوله. د هغې نه مو چینې جوړې کړې، او دغه شان (دواړه قسمه) تولې اوبه د هغه کار دپاره یوځائې شوې کوم چه مقدر شوې وو. او نوح علیه السلام لره مونږ د تختو او میخونو والا (کشتی) باندې سور کړو چه زمونږ په نګرانئ کښې روانه وه، دې دپاره چه د هغې (پیغمبر) بدله واخلو، د کوم چه بے قدری شوې وه او حقیقت دادې، چه مونږ هغوی لره (د عبرت) یوه نښه جوړه کړه. نو آیا څوک شته، چه نصیحت حاصل کړی؟ اوس سوچ اوکړه، چه زما عذاب او زما ویرول څرنګه وو؟ او حقیقت دادې، چه مونږ قرآن مجید د نصیحت حاصلولو دپاره آسان جوړ کړې دې، نو څوک شته چه نصیحت حاصل کړی؟

### خلاصه تفسیر

﴿كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوحٍ فَكَذَّبُوا عَبْدَنَا﴾[ددې خلقو نه وړاندې قوم دنوحؑ] [تکذیب وکړو یعنی زمونږ دبنده] خاص نوح ؑ [تکذیب ئې وکړو﴿وَقَالُوا مَجْنُونٌ وَازْدُجِرَ﴾ او وې وئیل چه دا لیونې دې او] محض په دې بې هوده خبره ئې بس ونه کړو بلکه ددوئ نه یو عبث کار هم سرزد شو یعنی [نوحؑ] [ته] ددوئ دطرف نه [دړکه] هم [ورکړې شوه] چه ذکر ئې په سورة شعراء کښې دې لئن لم تنته یانوح لتکونن من المرجومین(¹) ﴿فَدَعَا رَبَّهُ أَنِّي مَغْلُوبٌ﴾ [نوحؑ] [خپل رب ته دعاوکړه چه زهٔ] بالکل [عاجزه شوم] ددې خلقو مقابله نه شم کولې ﴿فَانْتَصِرْ﴾[پس ته] ددوئ نه [بدل واخلې] یعنی دوئ هلاك کړې لکه داقول دالله تعالی دې رب لاتذر علی الارض من الکافرین دیارا(²) ﴿فَفَتَحْنَا أَبْوَابَ السَّمَاءِ بِمَاءٍ مُنْهَمِرٍ﴾[پس مونږ په ډیرو وریدونکواوبوسره داسمان دروازې پرانستلې ﴿وَفَجَّرْنَا الْأَرْضَ عُيُونًا﴾ او دمزکې نه مو اوبه جاری کړې ﴿فَالْتَقَى الْمَاءُ عَلَى أَمْرٍ قَدْ قُدِرَ﴾ بیا] د اسمان اومزکې [اوبه ددې کار] پوره کیدو [دپاره یوځائې شوې کوم چه] په علم الهی کښې [تجویزشوې وو] مراد ددې نه هلاکت دې دکفارو یعنی دواړه اوبه یوځائې شوې طوفان زیات شو په کوم کښې چه ټول غرق شول﴿وَحَمَلْنَاهُ عَلَى ذَاتِ أَلْوَاحٍ وَدُسُرٍ تَجْرِي بِأَعْيُنِنَا﴾ [او مونږ نوحؑ] [لره] دطوفان نه دمحفوظ ساتلودپاره [په تختواومخونو والا کشتئ باندې کومه چه زمونږ په نګرانئ کښې] داوبو په سطح [روانه وه] سره دمؤمنانو[سور کړو﴿جَزَاءً لِمَنْ كَانَ كُفِرَ﴾ داټول د هغه سړی د بدلې اخستودپاره وشو دکوم چه بې قدری شوې وه] مراد نوحؑ دې او چونکه دالله تعالی او درسول په حکم کښې تلازم دې په دې کښې کفر بالله هم راغې پس دا شبهه پاتې نه شوه چه داغرق دکفربالله په سبب نه وو شوې ﴿وَلَقَدْ تَرَكْنَاهَا آيَةً فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ﴾[اومونږ دې واقعې لره دعبرت دپاره] په قصواو تذکروکښې [پرینبوده پس ایاڅوك نصیحت حاصلوونکې شته؟] مقصود ددې نه نصیحت حاصلولو ته ترغیب دې﴿فَكَيْفَ كَانَ عَذَابِي وَنُذُرِ﴾ [بیا] وګوره

¹) ترجمه:- اې نوح که ته منع نه شوې نو سنګسار به کړې شې.
²) ترجمه:-اې زما ربه! په مخ دزمکې دکافرونو نه یوکس پرې نږدې.

[زما عذاب او ويرول څنګه شو؟] يعنى دكوم شى نه چه ويرول واقع شوى وو هغه څنګه پوره شو؟ نو ددې ويرولو حاصل هم عذاب شو غرض د عذاب الهى دوه عنوانونه شول يو په خپله عذاب او دويم د وعده الهى پوره كيدل ﴿وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِن مُّدَّكِرٍ﴾[اوموږ قرآن لره [كوم چه مشتمل دى په داسې ذكر شوو قصو] دنصيحت حاصلولودپاره اسان كړو] دتولو دپاره عموما په وجه د واضح كيدو دبيان اودعربودپاره خصوصا په وجه د عربۍ ژبې [پس ايا؟ په دې قرآن كښې داسې مضامين د نصيحت په ليدو[څوك نصيحت حاصلوونكې شته] يعنى دمكې كفارو لره بالخصوص په دې قصوسره ويريدل پكار دى.

## معارف او مسائل

﴿ مَجْنُونٌ وَازْدُجِرَ﴾ د ﴿وَازْدُجِرَ﴾ لفظى معنى زورنه وركړې شوې ده [ددې عطف په لفظ قالوا باندې دې څكه مراد دادې چې دې خلقو نوح ﷺ ته مجنون هم اووئيلو بيا په ويرولو او غصو وركولو سره د پيغمبرئ درسولو څخه منع كول هم او غوښتل لكه په يو بل آيت مبارك كښې دى چې دغې خلقو نوح ﷺ ته دا دركه وركړه چې كه تاسو ﷺ د تبليغ او بلنې څخه منع نه شوئ نو زمونږ بۀ دې په كاڼرو ويشتو سره مړ كړو.

عبد بن حميد د مجاهد ﷺ څخه نقل كړى دى چې د نوح ﷺ د قوم څينو خلقو به چرته نوح ﷺ را ايسار كړو نو كله به ئې دهغوئ ﷺ مرئ خفه كوله تر هغې چې هغوئ ﷺ به بې هوشه شو، بيا به چې په هوش كښې شو ، الله ﷻ څخه بۀ ئې دا دعا غوښتله چې يا الله ﷻ زما قوم معاف كړې هغوئ دحقيقت څخه خبر نه دى[1] ، تر نهه نيمو سوؤ كالو پورې دغسې د هغوئ د زيانو په جواب كښې بۀ نوح ﷺ دعا ګانې كولې ، په آخره كښې چې عاجز شو نو خيرې ئې اوكړې چې بيان ئې په راتلونكى آيت كښې دې او په نتيجه كښې ئې ټول قوم غرق كړې شو.

﴿فَالْتَقَى الْمَاءُ عَلَى أَمْرٍ قَدْ قُدِرَ﴾ يعنى د زمكې څخه راخوټكيدونكى او د آسمان څخه راوريدونكې دواړه اوبه په دې شان يوځائې شوې چې ورسره د الله ﷻ مقرره كړې فيصله پوره شوه . تر دې چې د غره په څوكو هم چا پناه بيا نه موندله.

﴿ذَاتِ أَلْوَاحٍ وَدُسُرٍ﴾ الواح دلوح جمع ده معنى ئې تختئ د ه ، او دسر د دسار جمع ده چې معنى ئې ميخ ده ، هغې رسئ او تار ته هم وئيلې شى په كومې چې د كشتئ تختې پيوندولې شى .

﴿وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِن مُّدَّكِرٍ﴾، لِلذِّكْرِ د ذكر معنى يادول او نصيحت او عبرت حاصلول هم راځى چې دواړه دلته مراد كيدې شى . يعنى قرآن عظيم الشان لره الله ﷻ د يادولو دپاره آسان كړې دې ، دا خبره دې څخه روښې بل كتاب ته نه وه حاصله شوې ، يعنى پوره تورات ، انجيل يا زبور چا ته زبانى ياد نه وو . خو قرآن عظيم الشان د مسلمانانو وړو ته هم ياد دې چې د يو زور زير فرق هم ترې نه رازى د څوارلسو سوؤ كالو څخه په هره زمانه كښې ددې همدغه شان دې چې هر قسم او هر ځائې د لكونو مسلمانانو حافظانو په سينو كښې د الله ﷻ داكتاب محفوظ دې .

[1] الزهد الإمام احمد بن حنبل رقم الحديث [۲۸۰] و تفسير المظهري[ج:۹ص:۱۳۷]

اودا معنی ئې هم کيدې شي چې قرآن عظيم الشان خپل د عبرت او نصيحت مضمونونه داسې آسان بيان کړي دي چې څنګه يو لوئې څخه لوئې عالم ، ماهر فلسفي او حکيم ترې فائده پورته کوي داسې هر امي او جاهل چې علمونو سره ئې هيڅ مناسبت نه وي ، هغه هم د قرآن عظيم الشان د عبرت اونصيحت په مضمون باندې پوهيږي او اثر قبلوي.

**د يادولو او نصيحت او عبرت حاصلولو دپاره قرآن کريم آسان کړې شوې دې خو د اجتهاد او د احکامو د استنباط دپاره نه :** په دې آيت مبارک کښې ﴿يَسَّرْنَا﴾ سره ﴿لِلذِّكْرِ﴾ په قيد لګولو سره داهم خودلې شوې ده چې قرآن عظيم الشان د يادولو او ددې مضمون د نصيحت او عبرت حاصلولو تر حده پورې آسان جوړ کړې شوې دې چې هر عالم ، جاهل ، ورکوټې اولوئې ترې يو شان فائده حاصلولې شي ، دې څخه لازم نه رازي چې د قرآن عظيم الشان څخه د مسئلو او حکمونو استنباط هم داسې آسان وي ، دا په خپل ځائې يومستقل اومشکل فن دې چې په کښې صرف هغه کامل او مضبوط عالمان کار کولې شي چا چې په دې خپل عمرونه لګولې وي ، دا دهر چا ميدان نه دې ، په دې سره د هغې خلقو غلطی په ډاګه شوه چې د قرآن عظيم الشان ددې جملې په ډاډ د قرآن عظيم الشان مکمل تعليم ددې د اصولو او قواعدو څخه حاصل نه کړي او پخپلې رائې سره مجتهد جوړيږي،او قرآن عظيم الشان څخه مسئلې اوحکمونه راؤبشکل غواړي نو دا د ښکاره ګمراهۍ لار ده

كَذَّبَتْ عَادٌ فَكَيْفَ كَانَ عَذَابِىْ وَنُذُرِ ﴿١٨﴾

| دروغ اوګڼرو | عاديانو | پس څرنګې وؤ | عذاب زما |

| عاديانو هم[پيغمبران] دروغژن اوګڼړل | نو[اوګوره] چې زما

إِنَّآ أَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِيحًا صَرْصَرًا

او يرول زما | بيشکه اوليږله مونږه | په هغوئ باندې | هوا | تيزه |

عذاب او ويرل څنګه شو؟! بيشکه مونږ په هغوئ باندې يوه تيزه سيلئ راوليږله | په

فِى يَوْمِ نَحْسٍ مُّسْتَمِرٍّ ﴿١٩﴾ تَنْزِعُ النَّاسَ كَاَنَّهُمْ

په ورځ دمنحوستيا مسلسله کښی | چې راايستل به ئې خلق | داسې لکه چې هغوئ |

داسې ورځ چې [دهغوی په حق کښې] هميشه سپيره وه|اخلق به ئې راغورزول | لکه چې هغوی د راوتو کهجورو

اَعْجَازُ نَخْلٍ مُّنْقَعِرٍ ﴿٢٠﴾ فَكَيْفَ كَانَ عَذَابِىْ وَنُذُرِ ﴿٢١﴾

تنې وی دکجورو | ايستلې شوی | پس څرنګې وؤ | عذاب زما | او خبردارياني زما |

تنې دی چې [په زمکه] پرتې دی | نو[اوګوره چې] زما عذاب او ويرول څنګه وو؟|

وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْاٰنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ ﴿٢٢﴾

او آسان کړې دې مونږه | دا قرآن | دپاره دنصيحت | نو آيا شته څوک نصيحت قبلونکې |

اومونږ قرآن [دبندګانو] پوهولودپاره آسان کړې دې | نوآيا څوک نصيحت قبلونکې شته ؟

كَذَّبَتْ ثَمُوْدُ بِالنُّذُرِ۝ فَقَالُوْٓا اَبَشَرًا مِّنَّا وَاحِدًا

دروغ اوګڼړلي | ثمودیانو | خبرداریانې | پس اوویل هغوئ | آیا سړې | زمونږ نه | یو |

ثمودیانو هم پیغمبران دروغژن اوګڼړل | هغوئ اوویل چې آیا مونږ دخپل ځان په شان د یو انسان

نَّتَّبِعُهٗٓ ۙ اِنَّآ اِذًا لَّفِیْ ضَلٰلٍ وَّسُعُرٍ۝ ءَاُلْقِیَ

مونږ پیروي اوکړو دهغه | بیشکه بیا خویه یو مونږه | خامخا په ګمراهۍ کښې | او په لیونتوب کښې

تابعداري اوکړو | مونږ به په دغه وخت په ګمراهۍ او لیونتوب کښې یو | آیا په مونږ تولو کښې

الذِّكْرُ عَلَیْهِ مِنْۢ بَیْنِنَا بَلْ هُوَ كَذَّابٌ

ایا رااوغورزولې شو ذکر | بس په ده باندې | دمنځه زمونږ نه | بلکه دې | غټ دروغژن دې |

بس هم په ده وحی نازله شوې ده | نه ، بلکه غټ دروغژن دې | ...........چې لافې وهی

اَشِرٌ۝ سَیَعْلَمُوْنَ غَدًا مَّنِ الْكَذَّابُ

او تکبر کونکې دې | زر دې چې معلوم به شی هغوئ ته | صباله | چې څوک دې غټ دروغژن |

............ صبا [په قیامت کښې] به ورته معلومه شی | چې څوک غټ درغژن او لافوو

الْاَشِرُ۝ اِنَّا مُرْسِلُوا النَّاقَةِ فِتْنَةً لَّهُمْ

متکبره | بیشکه مونږه | لیږونکی داوښې یو | په طور دفتنې | دپاره ددوئ |

............ | مونږ ددوئ د امتحان دپاره د یوې اوښې لیږونکی یو | ته ددوئ کارونو ته

فَارْتَقِبْهُمْ وَاصْطَبِرْ۝ وَنَبِّئْهُمْ اَنَّ الْمَآءَ قِسْمَةٌۢ

پس انتظار کوه دوئ ته | او صبر کوه | او خبر ورکړه دوئ ته | چې بیشکه اوبه | تقسیم شوی دی

ګوره | او [د دوی په خبرو] صبر کوه | .......اودوئ ته خبرورکړه | چې اوبه ددوئ په مینځ کښې ویشلې

بَیْنَهُمْ ۚ كُلُّ شِرْبٍ مُّحْتَضَرٌ۝ فَنَادَوْا

په منځ ددوئ کښې | هروار داوبو ته | حاضر کړې شوې دی خپل وارولا | پس آواز اوکړو هغوئ |

شوې دی | نود وار خاوندان دې خپل خپل وار ته حاضریږی | بیا هغوئ خپل

صَاحِبَهُمْ فَتَعَاطٰى فَعَقَرَ۝ فَكَیْفَ كَانَ عَذَابِیْ

ملګری خپل ته | پس ونې نیوله | بیا ئې شله کړه [اووې وژله] | پس څرنګې ووځ | عذاب زما |

بدبخت ملګرې اولیږلو | هغه [اوښۀ] اونیوله | [اودهغې پښې ئې زخمی کړې] | نو [اوګوره چې] زما عذاب

وَنُذُرِ۝ اِنَّآ اَرْسَلْنَا عَلَیْهِمْ صَیْحَةً وَّاحِدَةً فَكَانُوْا

او خبرداریانې زما | بیشکه اولیږو مونږه | په هغوئ باندې | دتندر آواز | یو | پس شو هغوئ

او ویرول څنګه وو؟ | مونږ په هغوئ یوه چغه اووهله | .............نوداسې چوره شول لکه

كَهَشِیْمِ الْمُحْتَظِرِ۝ وَلَقَدْ یَسَّرْنَا الْقُرْاٰنَ لِلذِّكْرِ

پشان دچقیدلو ونو | دشپول لګونکې | او آسان کړې دې مونږه | دا قران | دپاره دنصیحت |

دشپول لګونکې [دلاسه] | .............اومونږ قران [دبندګانود] پوهولودپاره آسان کړې دې

فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ ۞ كَذَّبَتْ قَوْمُ لُوطٍ بِالنُّذُرِ ۞

نو آيا شته څوك نصيحت قبلونكي | دروغ اوګڼړلي | قوم دلوط | خبرداريانې زمونږه |

نو آيا څوك نصيحت قبلونكې شته| دلوط ﷺ قوم هم پيغمبران دروغژن ګڼړلي وو

اِنَّآ اَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ حَاصِبًا اِلَّآ اٰلَ لُوطٍ ؕ

بيشكه اوليږله مونږه | په هغوئ باندې | هوا كاڼړي وورونكې | سوا | دكوروالو دلوط ﷺ نه |

نو په هغوى باندې مونږ دكاڼړو نه دكه سيلئ اوچلوله | خودلوط ﷺ په كوروالا نه

نَّجَّيْنٰهُمْ بِسَحَرٍ ۞ نِّعْمَةً مِّنْ عِنْدِنَا ؕ كَذٰلِكَ

مونږه بچ كړل هغوئ | دشپې په آخرى حصه كښى | په فضل سره | دطرفه زمونږ نه | دارنګې |

هغوئ مو صبا وختى بچ كړل | ..................دا زمونږ فضل وو | څوک چې [زمونږ]

نَجْزِیْ مَنْ شَكَرَ ۞ وَلَقَدْ اَنْذَرَهُمْ

بدله وركوؤ مونږه | هغه چاته | چې شكر ئې اوويستلو | او خبردار كړې وؤ لوط هغوئ لره |

شكر كوى | مونږ ورته هم دغسې بدله وركوو | او [پيغمبر] دغه خلق زمونږ د نيولو [عذاب] نه

بَطْشَتَنَا فَتَمَارَوْا بِالنُّذُرِ ۞ وَلَقَدْ رَاوَدُوْهُ

دنيولو زمونږ نه | پس هغوئ شكمنې اوګڼړلې | ديرونې خبرى | او هغوئ طلب كړې وؤ دلوط نه |

ويرولى وو | هغوئ په دغه تعليم كښې جګړې شروع كړې | اودلوط ﷺ نه ئې د هغه د ميلمنو په

عَنْ ضَيْفِهٖ فَطَمَسْنَآ اَعْيُنَهُمْ فَذُوْقُوْا عَذَابِیْ

په باره دميلمنو دهغه كښى | پس ړندې كړې مونږه | سترګې دهغوئ | پس اوڅكئ مزه | دعذاب زما

غلط نيت مطالبه اوكړه | نو مونږ يې سترګې په ړندې كړې | نو اوس زما عذاب او زما د

وَنُذُرِ ۞ وَلَقَدْ صَبَّحَهُمْ بُكْرَةً عَذَابٌ مُّسْتَقِرٌّ ۞

او ديرونې زما | او بيشكه راغې هغوئ ته | وختى سحر | عذاب قرار نيونكې [هميشه]

ويرولو مزه اوڅكئ | اوسحر وختى به هغوئ باندې هميشه عذاب راغلو

فَذُوْقُوْا عَذَابِیْ وَنُذُرِ ۞ وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْاٰنَ لِلذِّكْرِ

پس اوڅكئ مزه | دعذاب زما او ديرونې زما | او آسان كړې دې مونږه | دا قرآن | دپاره دنصيحت

نو [واخلئ] زما دعذاب او دويرولو مزه اوڅكئ|اومونږ قرآن [دبند ګانو] پوهولو دپاره آسان كړې دې

فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ ۞ وَلَقَدْ جَآءَ اٰلَ فِرْعَوْنَ النُّذُرُ ۞

پس نو آيا شته څوك نصيحت قبلونكې | او بيشكه راغلې وې | آل دفرعون ته | خبرداريانې |

نو څوک نصيحت قبلونكې شته؟ | اود فرعون قوم ته د ويرې ډير څيزونه راغلى وو

كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا كُلِّهَا فَاَخَذْنٰهُمْ اَخْذَ عَزِيْزٍ

دروغ اوګڼړلې هغوئ | نښې زمونږه | ټولې | پس رااونيول مونږه هغوئ | نيشان دنيولو | دغالب

هغوئ زمونږ ټولې نښې دروغ اوګڼړلې | نومونږ هغوئ د يو مضبوط اود قدرت د خاوند د رانيولو

| مُّقْتَدِرٍ۝ |
| --- |
| قدرت والا |
| پشان اونيول |

## آسان ترجمه قرآن

عادیانو هم ویرونکو (پیغمبرانو) لره دروغژن کړي وو، بیا اوګوره، چه زما عذاب او زما ویره څرنګه وه. مونږ په یو مسلسل سپېره ورځ کښې هغوی باندې تیزه هوا راپریخې وه چه ویشتل به ئې خلق، لکه چه دوی د کهجورو ویستلې شوې تنې دی. اوس سوچ اوکړه، چه زما عذاب او زما ویرول څرنګه وو ؟ او حقیقت دادې، چه مونږ قرآن مجید د نصیحت حاصلولو دپاره آسان جوړ کړې دې، اوس آیا څوک شته چه نصیحت حاصل کړی. ثمودیانو هم ویرونکو (پیغمبرانو) لره دروغژن اوګنړل. نو وے وئیل چه: آیا مونږ په خپلو کښې د یو سړی تابعداری اوکړو؟ که داسې اوکړو، نو یقیناً مونږ به په لویه ګمراهئ او لیونتوب کښې پریوځو آیا مونږ ټولو خلقو کښې صرف هم دا سړې وو، چه په ده باندې نصیحت نازل شو؟ نه! بلکه په اصل کښې دا سړې د ټولو نه زیات دروغژن او وُران کارې دې. (مونږ پیغمبرصالح علیه السلام ته اوؤئیل چه) صبا ته به دوی ته پته اولګی چه لوئې دروغژن او وُران کارې څوک وو؟ مونږ دوی ته د دوی د آزمائش دپاره اوښه رالیږو، ددې وجې نه ته دوی ته ګوره او صبر نه کار واخله. او دوی ته اووایه، چه د کوهی اوبه ددوی په مینځ کښې تقسیم کړې شوې دی. هر د اوبو حقداربه په خپل نمبر حاضرېږی نوهغوی خپل سړې راوبللو،نوهغه لاس اوږد کړو. او (اوښه) ئې قتل کړه اوس سوچ اوکړه، چه زما عذاب او زما ویرول څرنګه وو؟ یقیناً مونږ په هغوی باندې صرف یوه چغه راؤلیږله. پس شو هغوی پشان د غوبل کړې شوې شهول اوحقیقت دادې چه مونږ قرآن مجید لره د نصیحت حاصلولو دپاره آسان جوړ کړې دې،نو شته څوک نصیحت حاصلونکې؟ د لوط علیه السلام قوم هم ویرونکی (پیغمبران) دروغژن کړي وو. مونږ په هغوی باندې د کاڼرو باران راؤرولو. سوا د لوط علیه السلام د کورنئ نه، چه هغوی لره مونږ د پیشمنئ په وخت کښې بچ کړې وو. دا زمونږ د طرف نه یو نعمت وو کوم خلق چه شکرګذار وی، مونږ هغوی ته دغه شان بدله ورکوؤ. او لوط علیه السلام هغې خلقو لره زمونږ د راتیولو نه ویرولي وو، لیکن هغوی شک اوکړو په ویرولو کښې. او هغوی لوط علیه السلام نه د هغه د میلمنو دپاره کښې غوښتنه کړې وه نو په دې باندې مونږ دهغوی سترګې ړندې کړې، چه: اوڅکئ عذاب زما او ویرول زما. او یقیناً صبا راغې په دوی باندې عذاب چه همیشه وو، چه : اوڅکئ، زما عذاب او زما د ویرولو مزه اوحقیقت دادې، چه مونږ قرآن مجید لره د نصیحت حاصلولو دپاره آسان جوړ کړې دې، نو آیا څوک شته چه نصیحت حاصل کړی؟ او د فرعون قوم ته هم ویره ورکونکې راغلې وو. هغوی زمونږ ټولې نښې دروغژنې اوګنړلې، نو اونیول مونږ هغوی پشان د رانیولو د زورآور ذات چه قدرت والا دې.

## خلاصه تفسير

﴿كَذَّبَتْ عَادٌ﴾ دعادقوم] هم دخپلو پیغمبرانو [تکذیب وکړو] د هغوئ قصه واورئ چه ﴿فَكَيْفَ كَانَ عَذَابِي وَنُذُرِ۝﴾ [زما عذاب او ویرول څنګه شو؟] او هغه قصه داده چه ﴿إِنَّا أَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِيحًا

﴿صَرْصَرًا فِيْ يَوْمِ نَحْسٍ مُّسْتَمِرٍّ﴾ [مونږ په دوئ يوه سخته هوا اوليږله د مسلسل نحوست په ورځ كښې]
يعنى دغه زمانه دهغوئ په حق كښې د هميشه دپاره ځكه منحوسه شوه چه په دغه ورځ كوم
عذاب راغې هغه عذاب د برزخ سره متصل شو بيا عذاب د اخرت ددې سره متصل شو كوم
چه به ددوئ نه چرته منقطع نه شي او ﴿تَنْزِعُ النَّاسَ ۙ كَاَنَّهُمْ اَعْجَازُ نَخْلٍ مُّنْقَعِرٍ﴾ [هغې هوابه خلقو لره
داسې] ددوئ دځاې نه [پورته كول راويشتل چه ګويا هغه د ويستلو شو كجوروتنې دى] په دې
تشبيه كښې علاوه ددوئ د راويشتلو نه اشاره ددوئ دقامت اوږد والى طرف ته هم ده [پس]
﴿فَكَيْفَ كَانَ عَذَابِيْ وَنُذُرِ﴾ [زما عذاب اوويرول څنګه] هيبتناك [شو﴿وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْاٰنَ لِلذِّكْرِ﴾
اومونږ قرآن لره دنصيحت حاصلولودپاره اسان كړې دې﴿فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ﴾ ايا څوك نصيحت
حاصلوونكې شته؟ ﴿كَذَّبَتْ ثَمُوْدُ بِالنُّذُرِ﴾ ثموديانو] هم [دپيغمبرانو تكذيب وكړو] ځكه چه ديو
پيغمبر تكذيب مستلزم دې دټولو پيغمبرانوتكذيب لره ﴿فَقَالُوْۤا اَبَشَرًا مِّنَّا وَاحِدًا نَّتَّبِعُهٗۤ﴾ [اووئ وئيل
ايامونږ د داسې سړى تابعدارى اوكړو كوم چه زمونږ د جنس بنيادم دې او] نوكران او خادمان
يې نشته [يوازې دې] يعنى ياخو فرښته وې نومونږ به يې اتباع كړې وه په دين كښې يا نوكران
او خادمان وې نو په دنيوى كارونو كښې به يې مونږ تابعدارى كوله هركله چه بشر دې او هغه
هم يوازې دې نو نه يې په كارونو كښې د تابعدارئ څه امر مقتضى شته نه په دين كښې اوكه
مونږ په دې حالت كښې ددهٔ تابعدارى وكړو ﴿اِنَّاۤ اِذًا لَّفِيْ ضَلٰلٍ وَّسُعُرٍ﴾ [نو په دې صورت كښې به
مونږ په لويه غلطئ] بلكه [جنون كښې پريوځو ﴿ءَاُلْقِيَ الذِّكْرُ عَلَيْهِ مِنْۢ بَيْنِنَا بَلْ هُوَ كَذَّابٌ اَشِرٌ﴾ ايا په
مونږ ټولوكښې] دې منتخب شو [وحى پرې نازله شوه] هركز داسې نه ده [بلكه دې لوئ
دروغژن او تكبركوونكې دې] دامتكبره دلويئ داسې خبرې كوى چه خلق مالره سردار وګڼړى
الله تعالى حضرت صالح ته وفرمائيل چه ته ددوئ په دې فضول خبرومه غمژن كيږه
﴿سَيَعْلَمُوْنَ غَدًا مَّنِ الْكَذَّابُ الْاَشِرُ﴾ [هغوئ ته به ډير زر] دمرګ سره [معلومه شي چه په دروغه
تكبركوونكې څوك وو] يعنى داخلق ووكوم چه په انكار د نبوت كښې كاذب او دروغژن وو او
د نبى تابعدارئ نه ئې د تكبر په وجه شرم كولو او داخلق كومو چه داوښې معجزه يې طلب كوله
نو ﴿اِنَّا مُرْسِلُوا النَّاقَةِ فِتْنَةً لَّهُمْ﴾ [مونږ] ددوئ ددرخواست موافق دكتې نه [اوښه راويستونكى] يو د
هغوئ دازمانش دايمان [دپاره﴿فَارْتَقِبْهُمْ وَاصْطَبِرْ﴾ پس دوئ] حركتونوته يې [ګوره او په
صبرسره ناست اوسه او دې خلقو ته] هركله چه اوښه پيداشى نو ﴿وَنَبِّئْهُمْ اَنَّ الْمَآءَ قِسْمَةٌۢ بَيْنَهُمْ﴾
[دا اوښايه چه اوبه] دكوهى [تقسيم كړې شوى دى] يعنى ستاسود ځاروو اود اوښې نمبر مقرر
شوې دې ﴿كُلُّ شِرْبٍ مُّحْتَضَرٌ﴾ [هريودې په خپل خپل وار حاضرى كوى] يعنى اوښه دې په خپل
نمبر اوبه څښى او ځاروى دې په خپل نمبر چنانچه اوښه پيداشوه او حضرت صالح دغسې
وفرمائيل [پس] ددې نمبرد ابونه هغوئ تنګ شول او﴿فَنَادَوْا صَاحِبَهُمْ فَتَعَاطٰى فَعَقَرَ﴾ [هغوئ
ددې] دقتلولودپاره [خپل ملګرى] قدار[لره راؤبللوپس هغه] په اوښه [ګزار اوكړواو] دې لره
يې [مړه كړه پس] اوګوره ﴿فَكَيْفَ كَانَ عَذَابِيْ وَنُذُرِ﴾ [زماعذاب او ويرول څنګه شو] چه بيان يې
وړاندې راځى هغه داچه ﴿اِنَّاۤ اَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ صَيْحَةً وَّاحِدَةً﴾ [مونږ په دوئ يوه نعره] دفرښتې [مسلط
كړه ﴿فَكَانُوْا كَهَشِيْمِ الْمُحْتَظِرِ﴾ پس هغوئ] په دې سره [داسې شول لكه د غنوشپول لګونكى]
دشپول [ماتې شوې غنې] يعنى دفصل يا ځاروو وغيره د حفاظت دپاره چه دغنو وغيره شپول

کوی او خو ورځې پس تول خس خس شی دغه شان دوئ تباه او هلاك شول دعربو خلق دې مشبه به لره یعنی د فصل چاپیره شپول لره شپه ورخ لیدلو نو هغوئ په دې تشبیه ښه پوهیدل ﴿وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ﴾ [او مونږ قرآن کریم لره دنصیحت حاصلولو دپاره آسان کړې دې پس آیا څوك نصیحت حاصلوونکې شته؟ ﴿كَذَّبَتْ قَوْمُ لُوطٍ بِالنُّذُرِ﴾ قوم لوط عليه السلام هم [دپیغمبرانو تکذیب وکړو] ځکه چه د یو پیغمبر تکذیب مستلزم دې دټولو تکذیب لره ﴿إِنَّا أَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ حَاصِبًا﴾ [مونږ په هغوئ دکاڼړو باران اوکړو ﴿إِلَّا آلَ لُوطٍ نَجَّيْنَاهُمْ بِسَحَرٍ﴾ بغیرد متعلقینو دلوط] عليه السلام [نه] یعنی بغیر دمؤمنانونه [چه دوئ لره يې دشپې په اخرکښې] دکلی نه بهرکړل او دعذاب نه يې [بچ کړل ﴿نِعْمَةً مِنْ عِنْدِنَا﴾ دخپل طرف نه په فضل کولوسره ﴿كَذَٰلِكَ نَجْزِي مَنْ شَكَرَ﴾ کوم چه شکر کوی] یعنی ایمان راوړی [مونږه هغوئ له داسې بدله ورکوو] چه دقهرنه يې بچ کوو [او] مخکښې د عذاب راتلونه ﴿وَلَقَدْ أَنْذَرَهُمْ بَطْشَتَنَا فَتَمَارَوْا بِالنُّذُرِ﴾ [لوط] عليه السلام [دوئ لره زمونږ د حملې نه ویرولی وو پس هغوئ په ویرولو کښې جګړې پیداکړې] یعنی یقین يې ونه کړو [او] هرکله چه لوط عليه السلام ته زمونږ فرښتې په شکل دمیلمنو راغلې او دغو خلقو ته دښائسته هلکانو راتلل معلوم شو نو دلته راغلل ﴿وَلَقَدْ رَاوَدُوهُ عَنْ ضَيْفِهِ﴾ [دغو خلقو دلوط] عليه السلام [نه دده میلمنولره په بدنیت سره اخستل غوښتل] په کوم سره چه اول لوط عليه السلام وویریدو مګر هغه فرښتې وې [پس مونږه] هغو فرښتو ته حکم ورکړو ﴿فَطَمَسْنَا أَعْيُنَهُمْ﴾ [د هغوئ سترګې يې خړې کړې] یعنی جبرائیل عليه السلام خپل ځانګونه د هغوئ په سترګو ووهل په کوم سره چه دهغوئ سترګې پټې شوې لکه چه داسې په الدرکښې د قتاده نه دی او په ژبه دقال یا دحال هغوئ ته وویلې شوچه ﴿فَذُوقُوا عَذَابِي وَنُذُرِ﴾ [واخلئ زما دعذاب مزه وڅکئ] اول خو داواقعه دسترګوبیکاره کیدو وړپیښه شوه [او] بیا ﴿وَلَقَدْ صَبَّحَهُمْ بُكْرَةً عَذَابٌ مُسْتَقِرٌّ﴾ [سحر وختی په دوئ دائمی عذاب راغې] او ارشاد وشو ﴿فَذُوقُوا عَذَابِي وَنُذُرِ﴾ [چه واخلئ زما د ویرولو او عذاب مزه وڅکئ] داجمله اول دړندیدو په عذاب وئیلې شوې وه دلته دهلاکت په عذاب باندې ده په دې وجه څه تکرار نشته ﴿وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ﴾ [او مونږ قرآن لره دنصیحت حاصلودپاره اسان کړې دې پس ایا څوك نصیحت حاصلوونکې نشته او] فرعون او ﴿وَلَقَدْ جَاءَ آلَ فِرْعَوْنَ النُّذُرُ﴾ [فرعونیانو ته هم د ویرولو ډیرڅیزونه ورسیدل مراد دموسی عليه السلام ارشادات او معجزې دی چه په ارشاداتو سره په تشریعی طور او په معجزاتو سره په تکوینی طور دوئ لره ویرولې شول مګر ﴿كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا كُلِّهَا﴾ [دې خلقو زمونږ ټولو] نښنولره کومې چه دوئ ته راغلې وې هغه نهه معجزې کومې چه مشهورې دی [درغږنې کړې] یعنی ددغومدلول او مقتضا توحید الهی او نبوت دموسی عليه السلام لره يې دروغږن کړو که نه وی نو دواقعاتو دوقوع تکذیب خو کیدې نه شی ﴿فَأَخَذْنَاهُمْ أَخْذَ عَزِيزٍ مُقْتَدِرٍ﴾ [پس مونږ دوئ لره زبردست صاحب قدرت په نیولو باندې ونیول] یعنی هرکله چه مونږ دوئ لره په قهراو غلبې سره ونیول نو دوئ هیڅ دفعیه ونه کړې شوه پس دعزیز مقتدر نه مراد الله تعالی دې.

## معارف او مسائل

**د ځینو لغتونو تشریح**: ﴿سُعُرٍ﴾ دا لفظ په دغې آیتونو کښې دوه ځل راغلې دې اول د قوم ثمود په بیان کښې ددوئ خپل قول دې چې هلته یسعرلفظ د لیونتوب په معنی راغلې دې دویم

ځائې کښې الله ﷻ د مجرمانو د عذاب باره کښې فرمائيلي دي ﴿فِىْ ضَلٰلٍ وَّسُعُرٍ﴾ چې معنی د جهنم اوردې نو داهل لغت د ښکاره بیان مطابق د سعر لفظ په دواړو معنو کښې استعمالیږی.
﴿رَاوَدُوْهُ عَنْ ضَيْفِهٖ﴾ د مراودت معنی داده چې د خپل نفساني خواهش پوره کولو دپاره څوك تیر باسی ، مراد دادې چې د لوط ﷺ قوم دهلکانو دبدکارئ بد عادت لرلو ا و الله ﷻ دغه دوه فرښتې دښکلو بې ږیرې هلکانو په صورت کښې راؤلیږلي ، د اشیطانان د خپل د خواهش نشانه جوړولو دپاره د لوط په کو راؤختل چې دغې هلکانو څخه خپل ګنده خواهش پوره کړی خو لوط ﷺ دروازه بنده کړه ،بیا هغوئ دروازه ماته کړه یا په دیوال وراوړیدل په دې سره لوط ﷺ پریشانه شو نودغه وخت ورته فرښتو راز ښکاره کړو او وې وئیل چې هیڅ فکر مه کوئ دا خلق زمونږ هیڅ نشی کولې ، مونږ د الله ﷻ فرښتې دوئ ته عذاب ورکولو دپاره راغلی یو.
سورة قمر د قیامت نزدې کیدو د بیان څخه شروع کړې شو دپاره ددې چې هغه کافران او مشرکان په خود کښې راشی کوم چې ددنیا په هوا او هوس کښې اخته او د آخرت څخه غافله وی ، ړومبې د قیامت د عذاب بیان اوکړې شو ، ددې څخه روستو په دنیا کښې هم ددوئ د خراب انجام خودلو دپاره د پنځو مشهورو قومونو حالات او د پیغمبرانو ﷺ په مخالفت باندې ددوئ د خراب انجام او په دنیا کښې هم په شان شان عذابونو کښې اخته کیدل بیان کړې شوی دی.
تولو څخه ړومبې د نوح ﷺ د قوم بیان اوکړې شو ، ځکه چې دا د دنیا هغه ړومبې قوم دې چې د الله ﷻ په عذاب کښې راګیر کړې شوې وو ، دا قیصه په تیرو شوؤ آیتونو کښې راغلې ده اوس په دې آیتونو کښې د څلورو قومونو عاد ، ثمود ، قوم لوط او قوم فرعون بیان دې ، ددوئ واقعات او تفصیلی قیصې د قرآن عظیم الشان په ګڼړو ځایونو کښې بیان شوی دی دلته د هغې اجمالی بیان دې.
داپنځه قومونه ددنیا زیات مضبوط او زیات قابو موندونکی قومونه وو چې په څه طاقت سره ئې رالاندې کول چا دپاره آسان نه وو،په دې آیتونو کښې په دوئ باندې د الله ﷻ عذاب راتلل اوخودلې شو او د هر یو قوم په انجام باندې قرآن عظیم الشان دا جمله ارشاد اوفرمائیله:
﴿فَكَيْفَ كَانَ عَذَابِىْ وَنُذُرِ﴾ یعنی په دومره مضبوط اوګڼړ قومونو د الله ﷻ عذاب راغلونو اوګورئې چې هغه څنګه ددې عذاب په وړاندې د ماشو او مچانو په ډول اووژلې شو او هم دې سره ئې د مؤمنانو او کافرانود نصیحت دپاره دا جمله ئې بیا بیا اوفرمائیله:
﴿وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْاٰنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ﴾ یعنی د الله ﷻ ددې لوئې عذاب څخه بچ کیدو لار قرآن عظیم الشان دې او قرآن عظیم الشان لره د عبرت او نصیحت حاصلولو تر حده پورې مونږ ډیر آسان کړې دې ، هغه لوئې بد نصیبه اوبې برخې دې چې دې څخه فائده پورته نه کړی ، وریسې راتلونکو آیتونو کښې د پیغمبر په زمانه کښې موجود خلقو ته په خطاب کولو سره داخودلې شوې دی چې ددې زمانې منکران او کافران په دنیا دولت ، شمیر اوطاقت کښې د عاد او ثمود او فرعون د قوم وغیره څخه زیات نه دی ، بیا دوئ څنګه بې فکره ناست دی.

أَكُفَّارُكُمْ خَيْرٌ مِّنْ أُولَٰئِكُمْ أَمْ لَكُمْ

| ايا كافران ستاسو [اے قريشو] | غوره دي | دهغه كافرانونه | يا ستاسو دپاره

نو اياستا سود زمانې كافران د هغوئ نه غوره دي | اوكه ستاسو دپاره

بَرَاءَةٌ فِي الزُّبُرِ ۝ أَمْ يَقُولُونَ نَحْنُ جَمِيعٌ مُّنتَصِرٌ ۝

خلاصي دي | په كتابونو كښې | يا وائي دوئ | چې مونږه ډله يو | بدل اغستونكي

په كتابونو كښې څه معافى ليكلې شوې ده | اوكه دوئ داخيال كوي چې مونږه غالبه ډله يو

سَيُهْزَمُ الْجَمْعُ وَيُوَلُّونَ الدُّبُرَ ۝ بَلِ السَّاعَةُ

زر دې چې شكست به وركړې شي | ډلې ته | اواوبه گرزوى دوئ | شاگانې | بلكه قيامت |

داټولې ډلې به زر بيلات اوكړي | او په شا اړخ به اوتښتي | خوددوئ په حق كښې اصلي وعده

مَوْعِدُهُمْ وَالسَّاعَةُ أَدْهَىٰ وَأَمَرُّ ۝ إِنَّ الْمُجْرِمِينَ

خاني دوعدې ددوئ دې | او قيامت | ډير سخت دې | او ډير تريخ دې | بيشكه دا مجرمان خلق

د قيامت ده | اوقيامت ډير سخت او تريخ څيزدې | ..........دامجرمان په غټه گمراهئ

فِي ضَلَالٍ وَسُعُرٍ ۝ يَوْمَ يُسْحَبُونَ

په گمراهئ كښې دي | او په بې عقلئ كښې دي | په كومه ورځ | چې به راښكلې كيږي دوئ

او په لويه بې عقلئ كښې پراته دي | په كومه ورځ چې به په اور كښې راښكلې شي

فِي النَّارِ عَلَىٰ وُجُوهِهِمْ ذُوقُوا مَسَّ سَقَرَ ۝ إِنَّا

په وور كښې | په مخونو ددوئ باندې | اوڅكئ مزه | ددرسيدو | ددوزخ دوور | بيشكه مونږه

[نوورته بۀ اوويلې شي] چې [اوس] ددوزخ داور مزه اوڅكئ | ..........مونږ هر يو

كُلَّ شَيْءٍ خَلَقْنَاهُ بِقَدَرٍ ۝ وَمَا أَمْرُنَا إِلَّا وَاحِدَةٌ

هر څيز | پيدا كړو مونږه هغه | په اندازه سره | او نۀ دې حكم زمونږه | مگر حكم يو

څيز په يو خاص انداز پيدا كړې دې | ..........او زمونږ [دقيامت] حكم راتلل بس

كَلَمْحٍ بِالْبَصَرِ ۝ وَلَقَدْ أَهْلَكْنَا أَشْيَاعَكُمْ فَهَلْ

لكه رپول | دسترگو | او هلاك كړل مونږه | [قومونه] مشابه ستاسو | آيا شته څوك |

لكه د سترگو رپ دې | او مونږ ستاسو په شان څومره هلاك كړې دي | نو آيا څوك عبرت اخستونكې

مِن مُّدَّكِرٍ ۝ وَكُلُّ شَيْءٍ فَعَلُوهُ فِي الزُّبُرِ ۝

نصيحت قبلونكې | او هر څيز | چې كړې وى دوئ هغه | په كتابونو كښې درج دې |

شته؟ | ..........اوهرڅه چې دوئ اوكړل | هغه په كتابونو كښې ليكلې دى

وَكُلُّ صَغِيرٍ وَكَبِيرٍ مُّسْتَطَرٌ ۝ إِنَّ الْمُتَّقِينَ

اوهرووكې عمل | او لوئ عمل | ليكلې شوې پروت دې | بيشكه پرهيزگاران خلق به |

اوهره وړه اوغټه خبره په كښې ليک ده | ..........بيشكه پرهيزگاران به

| فِيْ جَنّٰتٍ وَّنَهَرٍ ۝ فِيْ مَقْعَدِ صِدْقٍ عِنْدَ مَلِيْكٍ |
| --- |
| په باغونو او نهرونو کښې وی \| په ځائې \| رښتینې کښې به وی \| په خوا دبادشاه |
| په باغونو کښې د ننه اود نهرونو په غاړه اوسیږی \| په یو اوچت ځائې کښې د هغې بادشاه سره |
| مُّقْتَدِرٍ ۝ |
| دلویو قدرتونو والا کښې [به وی] \| |
| چې د قدرتونوخاوند دې |

## آسان ترجمه قرآن

آیا ستاسو د زمانې دا کافران غوره دی دهغوی نه. یا ستاسو دپاره (د خدائې) په کتاب کښې د بے ګناهۍ څه وعده لیکلې شوې ده؟ یا دوی وائی چه مونږ داسې ډله یو، چه خپل ځان بچ کولې شو؟ (حقیقت دادې چه) زر ده چه دغې ډلې ته به شکست ورکړې شی او دوی به اوتښتی شا کولی صرف دا نه. بلکه د دوی د اصل وعدې وخت خو قیامت دې، او قیامت به ډیر زیات مصیبت والا او ډیر زیات تریخ وی. حقیقت دادې، چه دا مجرمان خلق په لویه ګمراهۍ او بې عقلۍ کښې پراته دی په هغه ورځ چه دوی به په اور کښې پر مخې راښکلې کیږی (په هغه ورځ به دوی ته ویلې شی چه) او څکئ د دوزخ د مسه کولو خوند. مونږ هر څیز لره په ناپ تول سره پیدا کړې دې او زمونږ حکم بس یو کرت د سترګې د رپ پشان پوره کیږی. او ستاسو ملګری مونږ مخکښې هلاک کړې دی، اوس او وایئ. آیا شته څوک چه نصیحت حاصل کړی؟ او کوم کارونه چه دوی کړې دی، هغه ټول په اعمال نامو کښې درج دی. او هره وړه او لویه خبره لیکلې شوې ده. (البته) چه کومو خلقو د تقوٰی طریقه اختیار کړې ده. هغوی به په باغونو او نهرونو کښې وی په یو رښتونې عزت والا مجلس کښې، د هغې بادشاه په خوا کښې، د چا په قبضه کښې چه ټول اقتدار دې.

### خلاصه تفسیر

دادکفارو قصې او دکفرپه وجه په دوئ دعذاب راتلوواقعات خو تاسوواوریدل اوس هرکله چه تاسوهم ددې جرم دکفر مرتکب یئ نو ستاسو دعذاب نه دبچ کیدو هیڅ وجه نشته ﴿اَكُفَّارُكُمْ خَيْرٌ مِّنْ اُولٰٓئِكُمْ اَمْ لَكُمْ بَرَآءَةٌ فِي الزُّبُرِ ۝﴾ [ایاپه تاسوکښې چه کوم کافران دی په دوئ کښې ددغو] مذکوره تیرو [خلقو نه څه فضیلت دی] دکوم په وجه چه به تاسو سره د جرم کولو سزا ونه مومئ [یاتاسو دپاره] په اسمانی [کتابونو کښې څه معافی] نامه لیکلې شوې [ده] اګرچې څه خاص فضیلت نه وی [یا] په دوئ کښې څه داسې قوت دې کوم چه به دوئ لره دعذاب نه بچ کړی لکه چه ﴿اَمْ يَقُوْلُوْنَ نَحْنُ جَمِيْعٌ مُّنْتَصِرٌ ۝﴾ [داخلق وائی چه زمونږ داسې جماعت دې کوم چه به غالب وی] او هرکله چه ددوئ د مغلوب کیدو واضح دلیلونه موجود دی او په خپله هم ددوئ د مغلوبیت یقین دې نو بیا داخبره دې لره مستلزمه ده چه په دوئ کښې څه داسې قوت شته کوم چه دعذاب نه منع کول کولې شی دادرې احتماله دی دعذاب نه دبچ کیدو اووایئ چه په دوئ کښې کوم یوصورت په واقع کښې شته د اولنو دوؤ احتمالونو بطلان خو ظاهرباهردې پاتې شو دریم احتمال پس داسبابو عادیو په اعتبارسره اګر چه فی نفسه ممکنه ده مګر په دلالت

ددليلونو ددې وقوع به نه وى بلكه ددې دعكس وقوع به وى چه په دې سره به ددوئ كذب ظاهرشى او دغه دعكس وقوع به داسې وى چه ﴿سَيُهْزَمُ الْجَمْعُ وَيُوَلُّونَ الدُّبُرَ﴾[دير زربه] ددوئ [داجماعت شكست وخورى او په شابه وتښتى] اودا پيشن گوئى په بدر او احزاب وغيره كښې واقع شوه او دانه چه دوئ په دنيوى عذاب باندې بس پاتې شوه ﴿بَلِ السَّاعَةُ مَوْعِدُهُمْ وَالسَّاعَةُ أَدْهَىٰ وَأَمَرُّ﴾[بلكه] لوئ عذاب [په قيامت] كښې به وى چه [ددوئ] اصل [وعده] هغه [ده او قيامت] څه وړوكې شې مه گڼړئ بلكه دغه [لوئ سخت اؤ ناخوښه شې دې] او داموعود ادهى وامر خامخاواقع كيدونكې دې او ددې د وقوع نه په انكاركښې ﴿إِنَّ الْمُجْرِمِينَ فِي ضَلَالٍ وَسُعُرٍ﴾[دامجرمان] يعنى كفار[په لويه غلطئ او بې عقلئ كښې] پراته [دى] او دغه غلطى به ډير زر دوئ ته هركله چه علم اليقين په عين اليقين سره بدل شى ظاهرشى او هغه به داسې وى چه ﴿يَوْمَ يُسْحَبُونَ فِي النَّارِ عَلَىٰ وُجُوهِهِمْ﴾[په كومه ورځ چه به داخلق پړمخې دجهنم اور ته راښكودې شى﴿ذُوقُوا مَسَّ سَقَرَ﴾ نو دوئ ته به ووئيلې شى چه ددوزخ]د اور [لگيدو مزه اوڅكئ] اوكه چرې دوئ ته ددې نه شبهه وى چه قيامت اوس ولې نه واقع كيږى نو ددې وجه داده چه ﴿إِنَّا كُلَّ شَيْءٍ خَلَقْنَاهُ بِقَدَرٍ﴾[مونږ هرشى لره] په اعتبارد زمانې وغيره په يوخاص [انداز سره پيدا كړې دې] كوم چه زمونږ په علم كښې دې يعنى زمانه وغيره مونږ ددې په خپل علم كښې معين او مقدره كړې ده دغه شان دقيامت د وقوع دپاره هم يووخت معين دې پس ددې عدم وقوع فى الحال په وجه ددې د وخت د نه راتلودې ددې نه دهوكه خوړل نه دى پكارچه دقيامت وقوع به نه وى [او] هركله چه دده وخت راشى نو دغه وخت به ﴿وَمَا أَمْرُنَا إِلَّا وَاحِدَةٌ كَلَمْحٍ بِالْبَصَرِ﴾[زمونږ حكم] ددې وقوع متعلق [بس داسې ديو وارې وى لكه دسترگو رپ] غرض د وقوع نفى خو باطله شوه [او] كه تاسوته دا شبهه وى چه زمونږ طريقه دالله تعالى په نزد ناخوښه او مبغوضه نه ده كه قيامت هم شى زمونږ څه فكر نشته نو په دې باره كښې واورئ چه ﴿وَلَقَدْ أَهْلَكْنَا أَشْيَاعَكُمْ﴾ [مونږ ستاسو د طريقې خلقو لره] په خپل عذاب سره [هلاك كړى دى] كوم چه دليل دې ددې طريقې دمبغوض كيدواو دغه ستاسوطريقه ده په دې وجه مبغوض ده او دادليل نهايت واضحه دې﴿فَهَلْ مِن مُّدَّكِرٍ﴾[پس ايا] په دې دليل سره [څوك نصيحت حاصلوونكې شته او] داهم نه ده چه ددوئ عملونه دعلم الهى نه به غائب پاتې شى دكوم په وجه چه به د الله تعالى په نزد ددوئ دطريقې دمبغوض كيدو باوجود دسزانه د بچ كيدو احتمال وى بلكه﴿وَكُلُّ شَيْءٍ فَعَلُوهُ فِي الزُّبُرِ﴾ [څه چه داخلق كوى ټول] الله تعالى ته معلوم دى [په عملنامو كښې] هم ليكلى [دى او] دانه ده چه څه به ليكلى وى اوڅه به پاتې شوى وى بلكه﴿وَكُلُّ صَغِيرٍ وَكَبِيرٍ مُّسْتَطَرٌ﴾ [هره وړه لويه خبره] په دې كښې [ليكلې شوې ده] پس په وقوع د عذاب كښې څه شبهه پاتې نه شوه داخو دكفارو حال شو ﴿إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي جَنَّاتٍ وَنَهَرٍ﴾ [او] كوم چه [پرهيزگارخلق] دى هغه به د جنت [په باغونوكښې او په نهرونو كښې وى ﴿فِي مَقْعَدِ صِدْقٍ عِندَ مَلِيكٍ مُّقْتَدِرٍ﴾ په يو عمده مقام كښې دقدرت والابادشاه په خواكښې] يعنى د جنت سره به دالله تعالى قرب هم وى.

## معارف او مسائل

**د څينو لغتونو تشريح** :- زبر د زبور جمع ده ، په لغت كښې هر ليكلى كتاب ته زبور وئيلې شى [1] او دهغې خاص كتاب نوم هم زبور دې چې په داؤد عليه السلام باندې د الله ﷻ د طرفه نازل شوې دې.

﴿اَدۡهٰی وَاَمَرُّ﴾ د ﴿اَدۡهٰی﴾ معنی زيات هيبتناك او امرد مر څخه راخستې شوې دې چې اصلي معنی ئې تريخ ده او هر سخت او تكليف وركوونكي څيز ته ته مر او امر وئيلې شي .

﴿فِیۡ ضَلٰلٍ وَّ سُعُرٍ﴾ د ضلال معنی گمراهي مشهوره ده او د لته د سعر معنی د جهنم اور دې ، اشياعكم اشياع دشيعة جمع ده چې معنی ئې تابعدار او بالكې ده ، مراد هغه خلق دی چې په عمل كښې د دوئ په شان دی .

﴿مَقۡعَدِ صِدۡقٍ﴾ د مقعد معنی مجلس او مقام ده د صدق معنی حق ده مراد دې چې مجلس به حق وی چې په كښې به څه بې كاره او بې هوده خبره نه وی .

﴿اِنَّا كُلَّ شَیۡءٍ خَلَقۡنٰهُ بِقَدَرٍ﴾ د قدر لغوی معنی اندازه كول او څه څيز د حكمت او مصلحت مطابق په اندازې سره جوړولو معنی وركوی ، دې آيت مبارك كښې دا لغوی معنی هم مراد كيدې شی چې الله ﷻ د جهان ټول مخلوقات ، ددې هر هر قسم په يوحكيمانه انداز سره ، لوئې وركوتې او په مختلف شان او شكل كښې جوړ كړی دی ، بيا دهر قسم د يو يو غړی په پيدا كولو كښې هم حكيمانه اندازئې په لوئې نعمت سره ايخودې دې ، گوتې ئې ټولې يو شان نه دی جوړې كړی . په اوږد والی كښې ئې فرق كيخودو ، د لاسونو ،پښو اوږدوالی ، پلنوالی او ددې د پرانستلو او بندولو ، راغونډولو او اوږدولو دپاره ئې په كښې اسپرنگونه اولگول د يو يو اندام يو يو حصه اوگورئی نو د الله ﷻ د قدرت اوحكمت عجيبه عجيبه ننداري به درته برڅيره ښكاره شی . اود شريعت په اصطلاح كښې د قدر لفظ د الله ﷻ د تقدير په معنی هم استعماليږی ، او د تفسير اكثرو امامانو د حديث د ځينې روايتونو په بنا د لته د قدر څخه مراد تقدير الهی اخستې دې .

مسند احمد رحمه الله ، مسلم ، ترمذی كښې د ابی هريرةؓ رضی الله عنه په روايت راغلی دی چې د قريشو مشركانو يو ځل نبی كريم ﷺ سره د تقدير په مسئله جگړه كوله څكه دا آيت مبارك نازل شو[1] . ددې معنی په اعتبار سره د آيت مبارك مطلب به دا وی چې مونږ د ټول جهان دپيداكيدو څخه وړاندې هر څيز د هغې اندازه زمانه مكان ، او ددې د كميدو زياتيدو پيمانه ليكلې ده ، نو دهر څيز پيدا كيدل او د هغې د حالاتو بدلون وغيره ټول هر څه ددغې ازلي تقدير په مطابق وی .

د تقدير دا مسئله د اسلام قطعی عقيده ده ، ددې منكر كافر دې . او كومې فرقې ئې چې تاويل سره انكار كوی هغه فاسقان دی ، امام احمد رحمه الله ، ابو داؤد رحمه الله او طبرانی د عبدالله بن عمر رضی الله عنه نه روايت كړې دې چې نبی كريم ﷺ اوفرمائيل چې په هر امت كښې څه خلق مجوسيان وی ، ددې محمدی ﷺ امت مجوسيان هغه خلق دی چې د تقدير څخه انكار كوی ، داسې خلق چې ناروغه شی نو تپوس له مه ورځئ ، چې مړ شی نو په كفن ، دفن كښې ئې مه شريكيږئی . [روح المعانی][2] والله اعلم .

تمت بعون الله سبحانه وبحمده سورة القمر يوم الثلاثاء لستة من الربيع الثانی ۱۴۳۰ هجري ويتلوها انشاء الله سورة الرحمن .

[1] صحيح مسلم كتاب القدر، باب كل شئ بقدر [ج:۲ص:۳۳۶] و جامع الترمذي ، ابواب القدر باب ماجاء في الرضاء والقضا [ج:۲ ص:۳۷]و مسند احمد ، مسند ابي هريرة رضی الله عنه رقم الحديث:۹۷۳۰۶

[2] روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۲۰ ص:۱۰۳] و سنن ابوداود، كتاب السنة ، باب في القدر [ج:۲ص:۶۴۴]و مسند احمد،مسند عبدالله بن عمر رضی الله عنه رقم الحديث:[۵۵۸۴]

| آیاتونه | سورة الرحمٰن مکیة وهي ثمان وسبعون آیة وثلاث رکوعات | رکوع گانې |
|---|---|---|
| | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ | |
| ⑦ | شروع کوم په نوم د الله چه ډیر مهربان زیات رحم کونکې دې | ③ |

اَلرَّحۡمٰنُ ① عَلَّمَ الۡقُرۡاٰنَ ② خَلَقَ الۡاِنۡسَانَ ③ عَلَّمَهُ الۡبَیَانَ ④

رحمن | ښودلې دا قران | هغه پیدا کړو انسان | وې ښودو هغه ته | بیان [دخبرو کولو]

الله ډیر مهربان دې|چې د قرآن تعلیم ئې ورکړې دې |هم هغه انسان پیدا کړې دې|هغه ته ئې خبرې خودلې دې

اَلشَّمۡسُ وَالۡقَمَرُ بِحُسۡبَانٍ ⑤ وَّالنَّجۡمُ وَالشَّجَرُ یَسۡجُدٰنِ ⑥

نمر | او سپوږمۍ | په حساب سره دی | او ستورې | او ونې | سجدې کوی [الله ته] |

نمر او سپوږمۍ هم د حساب پابند دی | ..........اوبوټې او ونې هم هغه ته سجدې کوی

وَالسَّمَآءَ رَفَعَهَا وَوَضَعَ الۡمِیۡزَانَ ⑦ اَلَّا تَطۡغَوۡا

او آسمان | پورته کړو الله هغه لره | او کیښودو ئې میزان | چې اونۀ کړئ تاسو زیاتې |

اوآسمان هغه پورته کړې دې | او تله [دانصاف ئې] مقرر کړې ده | چې تاسو تول

فِی الۡمِیۡزَانِ ⑧ وَاَقِیۡمُوا الۡوَزۡنَ بِالۡقِسۡطِ وَلَا تُخۡسِرُوا الۡمِیۡزَانَ ⑨

په میزان کښې | او برابر کوئ | تول | په انصاف سره | او مۀ کموئ | تله

کښې کمی زیاتې نه کوئ | اوتول په انصاف باندې برابر کوئ | او په تله کښې کمې مه کوئ

وَالۡاَرۡضَ وَضَعَهَا لِلۡاَنَامِ ⑩ فِیۡهَا فَاکِهَةٌ وَّالنَّخۡلُ

او زمکه | کیښوده الله هغه | دپاره دمخلوقاتو | په هغې کښې | میوې دی | او دکجورو ونې دې

او هم هغه دخلقو دپاره زمکه خوره کړې ده | چې په هغې کښې میوې دی| اود کهجورو ونې خاوندانې

ذَاتُ الۡاَکۡمَامِ ⑪ وَالۡحَبُّ ذُو الۡعَصۡفِ وَالرَّیۡحَانُ ⑫ فَبِاَیِّ اٰلَآءِ

خاوندانې دغلافونو | او دانې دی | بوسو والا | او رزق دې [غله ده] | پس کوم یو نعمت |

دغلافونو|اوغله ده چې د بوسو اود خوراکې[دواړو] څیز دې |او خوشبویه گلونه نو[ائې پیریانو او انسانانو]

رَبِّکُمَا تُکَذِّبٰنِ ⑬ خَلَقَ الۡاِنۡسَانَ مِنۡ صَلۡصَالٍ کَالۡفَخَّارِ ⑭

درب ستاسو | دروغ گڼرئ تاسو | پیدا ئې کړو انسان | دوچې ختې نه | پشان دټیکرې |

تاسوبه دخپل رب کوم کوم نعمت دروغ گڼرئ| هغه انسان د ختې نه پیدا کړو|چې دټیکرې په شان ټینگیدله

وَخَلَقَ الۡجَآنَّ مِنۡ مَّارِجٍ مِّنۡ نَّارٍ ⑮ فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّکُمَا

او پیدا ئې کړل پیریان | دشغلې نه | دوور نه | پس کوم یو نعمت به | درب ستاسو |

اوپیریان ئې داور د شغلې نه پیدا کړل | نو[ائې پیریانو او انسانانو]تاسوبه دخپل رب کوم کوم

تُکَذِّبٰنِ ⑯ رَبُّ الۡمَشۡرِقَیۡنِ وَرَبُّ الۡمَغۡرِبَیۡنِ ⑰ فَبِاَیِّ اٰلَآءِ

دروغ گڼرئ تاسو | رب ددواړو مشرقونو دې | او رب ددواړو مغربونو دې | پس کوم یو نعمت به

نعمت دروغ گڼرئ |هغه دوؤ مشرقونو او د دوؤمغربونو رب دې | نو[ائې پیریانو او انسانانو]تاسوبه

رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ۝۱۸ مَرَجَ الْبَحْرَيْنِ يَلْتَقِيٰنِ ۝۱۹

درب ستاسو | دروغ گنړئ تاسو | روان ئې کړل | دوه دريابونه | چې ديوبل سره يو ځائي کيږي |

دخپل رب كوم كوم نعمت دروغ گنړئ | هغه دوه دريابونه روان کړي دي | چې سره يوځائي هم دي

بَيْنَهُمَا بَرْزَخٌ لَّا يَبْغِيٰنِ ۝۲۰ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا

په منځ ددواړو کښې | پرده ده | چې په يو بل نه وراوړي | پس کوم يو نعمت به | درب ستاسو |

اوددې دواړو په مينځ کښې پرده هم ده | دواړه پرې يو بل ته وراندې کيدې نشي | نو تاسوبه دخپل رب کوم کوم

تُكَذِّبٰنِ ۝۲۱ يَخْرُجُ مِنْهُمَا اللُّؤْلُؤُ وَالْمَرْجَانُ ۝۲۲ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ

دروغ گنړئ تاسو | راوځي | ددې دواړونه | ملغلرې | او مرجان | پس کوم يو نعمت به

نعمت دروغ گنړئ | ددې دواړو دريابونو نه ملغلرې اومرجان راوځي | ............نو تاسوبه دخپل

رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ۝۲۳ وَلَهُ الْجَوَارِ الْمُنْشَئٰتُ فِي الْبَحْرِ

درب ستاسو | دروغ گنړئ تاسو | او هغه لره دی کشتئ [جهازونه] | اوچتې اوچتې | په درياب کښې

رب کوم کوم نعمت دروغ گنړئ | اودغه جهازونه هم دهغه په اختيار کښې دي | چې په سمندر کښې دغرونو

كَالْاَعْلَامِ ۝۲۴ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ۝۲۵

پشان دغرونو | پس کوم يو نعمت به | درب ستاسو | دروغ گنړئ تاسو |

په شان اوچت ولاړ دی | نو تاسوبه دخپل رب کوم کوم نعمت دروغ گنړئ |

## آسان ترجمه قرآن

هغه (الله تعالی) رحمٰن دې چه د قرآن مجيد تعليم ئې ورکړو. هم هغه انسان لره پيدا کړو. هم هغه انسان ته خبره واضحه کول اوښودل. لمر او سپوږمۍ په يو حساب کښې تړلې شوې دی. او بوټی او ونې ټول دهغه مخکښې سجده کوی او آسمان هغه پورته کړې دې، او هم هغه تله جوړه کړې ده. چه تاسو په تول کښې ظلم اونه کړئ او انصاف سره وزن صحيح ساتئ، او په تول کښې کمې مه کوئ. او زمکه هغه د ټولو مخلوقاتو دپاره جوړه کړې ده په دې کښې ميوې، او د کسوړو والا کجهورو ونې دی. او بهوسو والا غله او خوشبو والا گلونه هم. نو(اے انسانانو او پيريانو) اوس اووايئ، چه تاسو دواړه به د خپل پروردگار کوم کوم نعمتونه دروغ گنړئ؟ هغه انسان لره د ټيکرى پشان کړنگار کونکې ختې نه پيدا کړې دې، او پيريان ئې د اور د لمبې نه پيدا کړې دی اوس اووايئ چه تاسوبه دخپل پروردگار کوم کوم نعمتونه دروغ گنړئ؟ د دواړو مشرقونو او دواړو مغربونوپروردگار هم هغه دې اوس اووايئ، چه تاسوبه دخپل پروردگار کوم کوم نعمتونه دروغ گنړئ؟ هغه دوه سمندرونه داسې روان کړې دی چه دواړه خپلو کښې يو ځائې کيږی. (بياهم) د دغې دواړو په مينځ کښې يوه پرده ده، چه دواړه د خپل حد نه نه تيريږی اوس اووايئ، چه تاسو به د خپل پروردگار کوم کوم نعمتونه دروغ گنړئ؟ د دغې دواړو سمندرونو نه لعلونه او ملغلرې راوځي. اوس اووايئ، چه تاسو به د خپل پروردگار کوم کوم نعمتونه دروغ گنړئ؟ او دهغه په قبضه کښې هغه جهازونه دی، چه په سمندر کښې د غرونو پشان اودرولې شوې دی. اوس اووايئ، چه تاسو به د خپل پروردگار کوم کوم نعمتونه دروغ گنړئ؟

**د سورت ترون اوه [فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا] جملې د بيا بيا راوړو حکمت :** دې څخه وړاندې سورت القمر کښې اکثر مضمونونه په سرکش قومونو باندې د الله ﷻ د عذاب د نازليدو په باره کښې وو ، څکه د هر يو عذاب څخه پس د خلقو د خبرداره کولو دپاره ئې يوه خاص جمله بيا بيا استعمال کړې ده چې ﴿فَكَيْفَ كَانَ عَذَابِي وَنُذُرِ﴾ ده او دې سره متصل د ايمان او فرمانبردارئ د شوق پيدا کولو دپاره بله جمله ﴿وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ﴾ بيا بيا راوړې ده .

سورة رحمان کښې ددې مقابل زيات مضمونونه د الله ﷻ د دنيا اود آخرت د نعمتونو په بيان کښې دی . څکه کله ئې چې د يو نعمت بيان اوکړو . نو يوه جمله د خلقو د خبرداره کولو او د نعمت د شکر شوق پيدا کولو دپاره ئې اوفرمائيل ﴿فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ﴾ او په ټول سورت کښې دا جمله يو ديرش ځل راوړې شوې ده چې په ښکاره خو دوباره والې يعنې تکرار ترې معلوميږي او د څه لفظ او جملې دوباره راوړل هم د تاکيد فائده ورکوي . په دې بنا دا هم د فصاحت او بلاغت خلاف نه ده . خصوصا د قرآن عظيم الشان په دې دواړو سورتونو کښې کومه جمله چې دوباره کړې شوې ده . هغه خو په شکل کښې دوباره کيدل ښکاري خو د حقيقت په لحاظ سره د هرې جملې يو نوی مضمون سره د تعلق لرلو په وجه خالص دوباره کول نه دی څکه چې په سورة قمر د هر يو نوی عذاب څخه پس ددې په باره کښې ﴿فَكَيْفَ كَانَ عَذَابِي وَنُذُرِ﴾ راغلې دې ، دا شان په سورة رحمان کښې د هر نوی نعمت د بيان څخه روستو ، ﴿فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا﴾ بيا بيا راوړې شوې دې ، هر کله چې هر ځل د يو نوی نعمت د بيان څخه پس راوړې شوې دې څکه خالص تکرار نه شو ، علامه سيوطی رحمه الله ددې قسم دوباره راوړلو نوم ترديد خودلې دې . دا دعربو د فصيحو او بليغو خلقو په کلام کښې ښه او خواږه ګڼړلې شوی دی ، په نظم او نثر دواړو کښې استعماليږي او صرف په عربئ کښې نه بلکه په فارسئ ، اردو وغيره کښې هم ددې نظيرونه د منلو شوؤ شاعرانو په کلام کښې موندې شی ، دا موقعه ددې دجمع کولو نه ده . په تفسير روح المعانی وغيره کښې دلته ددې ګڼړ نظيرونه هم نقل کړې شوی دی

**خلاصه تفسير**

﴿الرَّحْمَٰنُ﴾ د [رحمن] بې شميره نعمتونه دی په هغې کښې يو روحانی نعمت دادې چه ﴿عَلَّمَ الْقُرْآنَ﴾ هغه احکام د [قرآن وښودلو] يعنی قرآن ئې نازل کړو چه د هغه بندګان پرې ايمان راوړی او ددې علم حاصل کړی په دې عمل وکړی چه ددائمی عيش او راحت سامان ورته حاصل شی او دهغه يو نعمت جسمانی دې هغه داچه ﴿خَلَقَ الْإِنسَانَ﴾[هغه انسان لره پيداکړو] بيائې ﴿عَلَّمَهُ الْبَيَانَ﴾[ده ته خبرې وښودلې] چه په زرګونو فائدې پرې مرتب کيږی منجمله په دې کښې دقرآن د بل په ژبه کښې رسيدل دی او يونعمت جسمانی افاقی دادې چه دده په حکم سره ﴿الشَّمْسُ وَالْقَمَرُ بِحُسْبَانٍ﴾ [نمر او سپوږمئ په حساب سره چليږی ﴿وَالنَّجْمُ وَالشَّجَرُ يَسْجُدَانِ﴾ او بوټی اوتنه دارې اونې دواړه] دالله تعالی [مطيع دی] د نمر سپوږمئ چليدل خو په دې وجه نعمت دې چه په دې سره دشپې ورځې يخنئ ګرمئ مياشتې کال حساب مرتب وی او ددې فائدې ظاهرې دی او داونوسجده په دې وجه نعمت دې چه الله تعالی په دې کښې انسان دپاره بې شميره فائدې پيداکړی دی [او] يو نعمت دادې چه ﴿وَالسَّمَاءَ رَفَعَهَا﴾[ده اسمان

اوچت کړو] چه په دې سره علاوه دنورو فائدو کومې چه داسمان سره متعلق دی لویه فائده داده چه دا ته وګوری نو انسان ددا دجوړونکی په عظمت شان باندې استدلال وکړی لکه چه الله تعالی فرمائی يَتَفَكَّرُونَ فِي خَلْقِ السَّمٰوٰتِ الخ(١) اویونعمت دادې چه [هغه] په دنیاکښې ﴿وَوَضَعَ الْمِيزَانَ ۝﴾[تله کیښوده ﴿أَلَّا تَطْغَوْا فِي الْمِيزَانِ ۝﴾ چه تاسوپه تول کښې کمې زیاتې مه کوئ او] هرکله چه دداسې لوئ فائدې دپاره جوړه ده چه دا آله ده دحقوقو دلین دین د پوره کولو په کومې سره چه په زرګونو ظاهری او باطنی مفاسدلرې کیږی نوتاسو ددې نعمت په خصوصیت سره شکرکوئ او په دې شکر کښې داهم ده چه ﴿وَأَقِيمُوا الْوَزْنَ بِالْقِسْطِ وَلَا تُخْسِرُوا الْمِيزَانَ ۝﴾[په انصاف] او حق رسانئ [سره تول او وزن ټيك کوئ او تول کموئ مه او] یو نعمت دادې چه ﴿وَالْأَرْضَ وَضَعَهَا لِلْأَنَامِ ۝﴾[هغه دمخلوق] دفائدې [دپاره مزکې لره] ددې په ځائ [کیښوده ﴿فِيهَا فَاكِهَةٌ وَالنَّخْلُ ذَاتُ الْأَكْمَامِ ۝﴾چه په دې کښې میوې دی او دکجورې اونې دی دکومو چه] په میوو باندې[غلافونه دی او] په دې کښې﴿وَالْحَبُّ ذُو الْعَصْفِ وَالرَّيْحَانُ ۝﴾ [غله ده په کومه کښې چه بوس] هم [دی او] په دې کښې [نوردخوراك څیزونه] هم [دی] لکه ډیرې ترکاریانې وغیره﴿فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ۝﴾[پس اے پیریانو او بنیادمو]د نعمتونو ددې دومره کثرت او عظمت باوجود [تاسو به د خپل درب کم کومم نعمتونو نه منکر یئ ، او منکریدل لوئې ضد دې او بدیهیاتو بلکه دمحسوساتو نه انکاردې او یونعمت دادې چه (خَلَقَ الْإِنْسَانَ مِنْ صَلْصَالٍ كَالْفَخَّارِ ۝)[دا انسان] اول اصل یعنی ادمﷺ [لره دداسې خاوړې نه کومه چه د ټیکری په شان کړنګیده پیداکړو] چه اجمالا ئې په څوایتونو کښې بره ذکر راغلې دې ﴿وَخَلَقَ الْجَانَّ مِنْ مَارِجٍ مِنْ نَارٍ ۝﴾[او پیریانو] اول اصل [لره خالص داوږ نه] په کوم کښې چه لوګې نه وو[پیداکړل] او بیاپه دواړو نوعوکښې د توالد او تناسل په ذریعه نسل وچلیدوددې تشریح د سوره حجره په دویمه رکوع کښې راغلې ده ﴿فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ۝﴾[پس اے پیریانو اوبنیادمو] سره دنعمتونو ددې دومره کثرت او عظمت نه [تاسوبه دخپل رب دکومو کومو نعمتونو نه منکریږئ؟] مراد ددې بره تیرشوې دې او﴿رَبُّ الْمَشْرِقَيْنِ وَرَبُّ الْمَغْرِبَيْنِ ۝﴾[هغه ددواړو مشرقونو او دواړو مغربونو] حقیقی [مالك دې] مراد ددې نه دنمرسپوږمۍ د ختو او پریوتواوفق دې په دې کښې هم وجه دنعمت ظاهره ده چه دشپې او ورځې دشروع او ختمیدو سره ډیرغرضونه متعلق دی ﴿فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ۝﴾[پس اے پیریانواو بنیادمو] سره دنعمتونو ددومره کثرت او عظمت نه [تاسوبه دخپل رب د کوموکومو نعمتونو نه منکریږئ؟] او یو نعمت دادې چه ﴿مَرَجَ الْبَحْرَيْنِ يَلْتَقِيَانِ ۝﴾[هغه دوه دریابونه] صورتا [یوځائ کړل] په ظاهرکښې [دیو بل سره ملاوډدی او] حقیقتا ﴿بَيْنَهُمَا بَرْزَخٌ لَا يَبْغِيَانِ ۝﴾ [د دواړو په مینځ کښې چه تشریح ئې په سوره فرقان کښې د ختمیدو مخ یوه نیمه رکوع مخکښې الخ تیر ه شوې ده او یوه] قدرتی [پرده ده چه] ددې په وجه [دواړه] د خپلې خپلې موقعې نه [تجاوز نه شی کولی] دخوږو او ترخواوبو نفعې هم ظاهرې دی او دواړو په یو ځائ کیدو کښې داستدلال نعمت هم دې ﴿فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ۝﴾[پس اے پیریانواو بنیادمو] سره ددومره کثرت او عظمت دنعمتونو [تاسوبه دخپل رب دکوموکومونعمتونونه منکریږئ؟] او ددریابونو متعلق یو نعمت

١) ترجمه:- دآسمانونو او زمکې په پیدا کیدو کښې غور کوی.

دادي چه ﴿يَخْرُجُ مِنْهُمَا اللُّؤْلُؤُ وَالْمَرْجَانُ﴾ [ددواړونه ملغلري اومرجانونه برامدکيږي] دملغلرو او مرجانونو نفعي او وجهي دنعمت خو ظاهري دي ﴿فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ﴾ [پس اے پيريانو او بنيادمو] ددي دومره نعمتونو دکثرت او عظمت باوجود [تاسو به دخپل رب د کومو کومو نعمتونو نه منکريږئ؟ او يو نعمت دادي چه ﴿وَلَهُ الْجَوَارِ الْمُنْشَآتُ فِي الْبَحْرِ كَالْأَعْلَامِ﴾ دهغه] په اختيار او ملکيت کښي [دی جهازونه کوم چه په سمندرکښي دغرونوپه شان اوچت ولاړ ليدي شي] ددي فائدي هم ظاهري دی بلکه اظهري دی ﴿فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ﴾ [پس اے پيريانو او بنيادمو] سره دنعمتونو ددومره کثرت او عظمت [تاسودخپل رب دکوموکومو نعمتونونه منکريږئ؟]

## معارف او مسائل

**سورة الرحمن مکي دي اوکه مدني** :: په دي کښي اختلاف دي ، امام قرطبي رحمه الله دحديث د څو روايتونو په وجه دي ته غوره وئيلی دی چي مکی دي ، په ترمذی کښي د جابر رضي الله عنه روايت دي چي رسول کريم صلی الله عليه وسلم د ځينو خلقو په وړاندي ټول سورة رحمان تلاوت کړو خو دغه خلق ئي په اوريدو خاموش پاتي شو ، رسول کريم صلی الله عليه وسلم اوفرمائيل چي ما په ليلة الجن کښي دا سورت پيريانو ته واورولو نو د اثر قبلولو په لحاظ سره هغوئ تاسو نه زيات غوره ځکه وو چي کله به مي ﴿فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ﴾ تلاوت کړو نو پيريانو ټولو به په يو آواز داسي اووئيل: ﴿لابشئ من نعمك ربنا نكذب فلك الحمد﴾ [ائي زمونږ پروردګاره! ستا د هيڅ نعمت دروغژنی او ناشکري مونږ نه کوو ، هم تا لره ثنا ده][1] دي حديث نه معلوميږی چي دا سورت مکی دي ولي چي ليلة الجن په مکه مکرمه کښي وه ، په کومه کښي چي پيريانو ته تعليم او تبليغ کړي وو.
په دي شان نور هم څو روايات قرطبی نقل کړی دی چي ددي نه ددي سورت مکی کيدل معلوميږی[2] . د اسورت د رحمان لفظ نه شروع کړي شو ، په دي کښي يو مصلحت دا هم وو چي دمکي کافران د الله جل جلاله دنومونو ځيني درحمان نوم نه خبر نه وو ځکه به ئي وئيل چي ﴿وَمَا الرَّحْمَٰنُ﴾ [رحمان څه څيز دي]. ځکه د الله جل جلاله ددي نوم مبارک نه د هغوئ د خبرولو په غرض دلته د رحمان نوم مبارک راوړل غوره کړي شو.
بله وجه دا هم ده چي مخکښي کوم کار د رحمان چي بيان کړي شوي ، يعنی د قرآن عظيم الشان تعليم ، ، په دي کښي دا خودلي شوی دی چي د قرآن عظيم الشان ددي تعليم غوښتونکي او بلونکي سبب خالص د الله جل جلاله رحمت دي ګنی د هغه لوئي ذات په ذمه څه کار واجب يا ضروری نه دي چي تپوس ئي ترې اوکړي شي او نه هغه د چا محتاج دي.
دي پسي په ټول سورت کښي د الله جل جلاله ددنيوی اووينی نعمتونو بيان په مسلسل شوي دي ، په ﴿عَلَّمَ الْقُرْآنَ﴾ سره د هغه نعمت د بيان نه ئي شروع اوفرمائيله کوم چي د ټولو نه لوئي نعمت دي ، ددي بيان نه شروع ځکه اوکړي شوه چي ټولو نه لوئي نعمت قرآن عظيم الشان دي ځکه چي د انسان د معاش ، معاد ، ددين ، اودنيا دواړو ښيګړي او برکات ټول په دي کښي راجمع دی ، چا چي قرآن عظيم الشان خپل کړو او د هغي حق ئي ادا کړو لکه صحابه کرام رضي الله عنهم چي

[1] جامع الترمذي ، ابواب التفسير باب تفسير سورة الرحمن[ج:۲ ص:۱٦٤]
[2] تفسير القرطبي [ ج:۱۷ص۱۵۱

الله ﷻ دوئ لره دآخرت په درجاتو او نعمتونو سرخ رواو اوچت کړي دي ، په دنيا ئې هم ورته درجات او مقام ورکړوچې لويو لويو بادشاهانو ته هم حاصل نه وي .

د قاعدې په جو [عَلَّمَ﴾ دوه مفعوله غواړي ، يو خودلې شوې علم او بل هغه بنده چې علم ورته خودلې شوې وي . اوس دلته يو مفعول خودلې شوې علم په ګوته کړې شو مګر بل مفعول چاته چې قرآن عظيم الشان خودلې شوې دې په ګوتـه نـه کړې شو. څکه ځينې مفسرينو اوفرمائيل چې دې نه رسول کريم ﷺ مراد دې چا ته چې الله ﷻ د قرآن عظيم الشان تعليم بې واسطې ورکړواو هغه ټول مخلوق هم تر مراد دی چې چاته الله ﷻ د رسول کريم ﷺ په واسطه تعليم ورکړو. او دا هم کيدې شي چې د قرآن عظيم الشان د نازلولو مقصد د الله ﷻ ټول مخلوق تـه د هدايات لار خودل او ټولو ته اخلاق ا ونيک عملونه خودل دی. څکه يو خاص مفعول په ګوته نه کړې شو چې اشاره هم دې عموم ته اوشي .

[خَلَقَ الْإِنسَانَ ۝ عَلَّمَهُ الْبَيَانَ ۝﴾ انسان پيدا کول پخپله د الله ﷻ يو نعمت دې او د طبعي ترتيب په اعتبار سره هم هغه د ټولو نـه وړانـدې دې ، تر دې پورې چې اول اګر چې تعليم د قـرآن عظيم الشان رومبې بيان کړې شوې دې ، ښکاره خبره ده چې هغـه هـم د انسان پيدا کولو نـه پس کيدې شي. خو قرآن عظيم الشان د قرآن پاک تعليم د نعمت بيان د انسان د پيدا کولو نعمت په بيان باندې وړاندې کولو سره دې ته اشاره اوفرمائيله چې د انسان پيدائش اصل مقصد هم تعليم قرآن او د هغه ښودلې لارې باندې تلل دی ، لکه بل آيت مبارک کښې فرمائی چې [وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ ۝﴾ [مونږ پيريـان او انسانان خالص دپـاره دعبادت کړی دی] چې هغوئ دې زما عبادت کوی ، ښکاره خبره ده چې عبادت د الله ﷻ د خودنې نه بغير نشي کيدې ، ددې ذريعه قرآن عظيم الشان دې ، څکه د قرآن عظيم الشان د تعليم د انسان د پيدا کولو په نعمت باندې وړاندې بيان کړې شوې دې .

د انسان دپيدا کيدونه پس کوم نعمتونه چې انسان ته ورکړې شوې دی هغه بې شميره دی په هغې کښې خصوصا د بيان د تعليم ذکر کولو کښې دا حکمت معلوميږی چې د کومو نعمتونو تعلق ددې او موجوده پاتې کيدو سره دې. لکه خوراک ، څکاک ، د يخنئ ګرمئ نـه د ځان ساتلو انتظام ، د استوګنې انتظام وغيره ، په دې نعمتونو کښې خو هر سادار او ځناور شريک دی ، کوم نعمتونه چې انسان سره خصوصيت لری د هغې نه اول خو ئيې د قرآن عظيم الشان د تعليم ذکر اوکړو ، هغې نه پس د بيان دتعليم،ولې چې د قرآن عظيم الشان فائده ورکول او فائده اخستل په بيان باندې انحصار لری .

او په دې کښې زبانی بيان هم داخل دې ، ليکلو ، خط او پوهلو او پوهيدلو ددې چې څومره ذريعې الله ﷻ پيدا کړی هغه د بيان په مفهوم کښې شامل دی . او بيا د مختلفو علاقو مختلف زبانونه ا و ددې محاورات ټول ددې تعليم بيان حصې دی چې د [وَعَلَّمَ آدَمَ الْأَسْمَاءَ كُلَّهَا﴾(۱) عملی تفسير دې . [فَتَبَارَكَ اللَّهُ أَحْسَنُ الْخَالِقِينَ ۝﴾.

[الشَّمْسُ وَالْقَمَرُ بِحُسْبَانٍ ۝﴾ الله ﷻ انسان دپـاره چې د زمکې او آسمانونو کوم نعمتونه پيدا کړی دی، پدې کښې د پورتنی مخلوق شمس او قمر په خصوصيت سره ذکر شوې دې څکه چې

(۱) ترجمه:- او الله تعالی آدم ﷺ ته د هر خيز دنوم علم ورکړو.

ددې جهان ټول نظام ددې دوارو سیارو او حرکتونو او ددې پلوشو سره تړلی دی ، د ځینې حضراتو په نزد حسبان بضم الحاء لکه دغفران ، سبحان ، قرآن پشان د مصدر په معنی دې او ځینې فرمائی چې دا دحساب جمع ده او د آیت مراد دادې چې د شمس او قمر حرکات چې پرې د انسان دژوند ټول کاروبار انحصار لری ، دشپې ورځې اختلاف د موسمونو بدلیدل ، د کال او میاشتو ټاکل ددې ټول حرکات او د دورنو محکم نظام د یو خاص حساب او اندازې مطابق چلیږی ، او که حسبان د حساب جمع اوګرځولې شی نو معنی به ئې دا وی چې ددې ځینې د هر یو د دورې جدا جدا حساب دې ، داشمسی او قمری نظام په مختلف قسم حسابونو باندې چلیږی ، حساب هم دا سې مضبوط او محکم دې چې په لکونو کلونو کښې دیو منټ بلکه د یو سیکنډ فرق نه راځی .

دا زمانه د سائنس او ترقئ زمانه بللې شی او ددې حیرانوونکو نوؤ نوؤ ایجادونو عقل مند خلق حیران کړی دی ، لیکن د انسانی کاریګرئ او د الله ﷻ د پیدا کولو تر مینځه ښکاره فرق هرڅوك وینی ګوری ، په انسان جوړ کړو څیزونو کښې ورانیدل او سمول لازمی طور جاری وی اود هر څومره مضبوط مشین څه موده پس مرمت کول راځی، کم نا کم د ګریس ورکولو ضرورت خو ئې پیښیږی، او تر هغې وخته پورې هغه مشین د کار کولو جوګه نه وی ، بل خوا د الله ﷻ جاری کړې شوی دا عظیم الشان مخلوقات نه خو چرته د مرمت حاجت لری او نه ئې چرته په رفتار کښې فرق راځی .

﴿وَّالنَّجْمُ وَالشَّجَرُ يَسْجُدٰنِ﴾ نجم هغه وني ته وئیلې شی چې دهغې زیلئ خوریږی او تنا یې نه وی. او شجر تنه دارې وني ته وئیلی شی ، یعنی هر قسم وني که جلیغونو والا وی او که تنې والا ټولې الله ﷻ ته سجده کوی ، سجده کول چونکه ډیر د تعظیم او اطاعت علامت دې. ددې نه دې ځایې کښې مراد دادې چې هره یوه ونه ، بوټی او جلیغه داره ونې اوددې پانړو ، میوؤ او ګلونو لره الله ﷻ دخاص خاص کارونو او د انسان دفائدې دپاره پیدا کړی دی. یعنی دهر یو کارمقرر کړې شوې ده چې هغه به فلانې کار کوی ، په دوئ کښې هر یو په خپل خپل کارلګیدلې دې ، او د الله ﷻ د حکم تابع دی ، په دې ایښودی شوی فوائدو او خاصیتونو څخه خلقو ته فائدې رسی. دې تکوینی او جبری تابعدارئی د الله ﷻ ته ئې سجده اوفرمائیلې شوه [روح ، مظهری][1].

﴿وَالسَّمَآءَ رَفَعَهَا وَوَضَعَ الْمِيْزَانَ﴾ رفع ، او وضع خپل مینځ کښې مخالف لفظونه دی ولې چې د رفع معنی پورته کول ، او د وضع معنی لاندې کول ایښودل او ښکته کول دی ، په دې آیت مبارك کښې اول آسمان پورته کول او لوړ والې ورکول ذکردی چې په کښې ظاهری پورته والې هم داخل دی او معنوی یعنی درجه او مرتبه ئې هم د زمکې په نسبت لوړه ده . آسمان او زمکه دواړه د قرآن عظیم الشان په هر ځائې کښې سره خپل مینځ کښې مخالف بللې شوی دی ، په دې آیت مبارك کښې د آسمان د پورته کولو د بیان نه یو بل میزان وضع کولو بیان راغلې دې چې آسمان سره ئې مخالفت تقابل نشته ، خو په غور کولو سره معلومیږی چې دلته هم درحقیقت د آسمان په مقابله کښې زمکه راوړې شوې ده .

---

[1] روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۲۰ ص:۱۱۵] و تفسير المظهري[ج:۹ص:۱۴۶]

لکه څنګه چې د دریو آیتونو نه پس [وَالْأَرْضَ وَضَعَهَا لِلْأَنَامِ] راغلی دی. نو په اصل کښې تقابل د رفع سماء او د وضع ارض ده مګر ددې دواړو ترمينځه دريم څيز يعنی د وضع ميزان ذکر د يو خاص حکمت سره کړې شوې دې. داسې معلوميږی چې حکمت په دې کښې دې چې وضع ميزان او بيا ددې نه پس د ميزان د صحيح صحيح استعمال حکم چې ددې نه وروستو په دريو آيتونو کښې راغلې دې دهغې تولو خلاصه د عدل او انصاف قائمول دی ، او د چا دحق بربادولو او ظلم نه ځان ساتل دی ، دلته د رفع سماء او د وضع ارض په مينځ کښې دميزان ذکرکولو کښې دې ته اشاره بيا موندې شي چې د آسمان او زمکې د پيداکولو اصلی غرض او مقصد په دنيا کښې عدل او انصاف قائمول دی او په زمکه کښې امن و امان هم عدل و انصاف سره قائم پاتې کيدې شی ، ګنی فساد به وی ، والله سبحانه وتعالی اعلم.

د ميزان لفظ تفسير په دې آيت مبارک کښې قتاده رحمه الله ، مجاهد رحمه الله او سدی رحمه الله وغيره په عدل سره کړې دې ولې چې دميزان اصل مقصد هم عدل دې، اوځينې مفسرينو دلته ميزان پخپله مشهوره معنی اخستې دی، حاصل ئې هم هغه دې چې په حقونو کښې د عدل او انصاف نه دې کار اخستې شی او د ميزان په معنی کښې هر هغه آله داخله ده چې پرې باندې د يو څيز اندازه ټاکلې شی که هغه دوه چاپړی والا تله [ترازو] وی يا د پيمانه کولو څه نوې آله وی.

[أَلَّا تَطْغَوْا فِي الْمِيزَانِ] په رومبی آيت مبارک کښې دميزان د پيدا کولو ذکر وو ، دې جمله کښې د دې مقصد ښکاره شوې دې [تَطْغَوْا] د طغيان نه مشتق دې ، چې معنی ئې بې انصافی او ظلم ده ، مراد دادی چې ميزان الله ﷻ دې دپاره جوړ کړې دې چې تاسو په تول کښې د کمی زياتی کولو سره ظلم کښې اخته نشئ.

[وَأَقِيمُوا الْوَزْنَ بِالْقِسْطِ] د قسط لفظی معنی انصاف ده ، مراد ئې ښکاره دې چې صحيح صحيح تول کول په انصاف سره قائم کړی.

[وَلَا تُخْسِرُوا الْمِيزَانَ] د خسر معنی په تول کښې کمی کول دی کومه خبره چې په رومبئ جمله [أَقِيمُوا الْوَزْنَ] کښې د شته والی په اندازه کښې بيان کړې شو ده. دا دهغې د نيشتوالی طرف دې چې په تول کښې کمې راوستل حرام دی.

[وَالْأَرْضَ وَضَعَهَا لِلْأَنَامِ] انام د سحاب په وزن سره ساه دار ته وئيلې شی چې په زمکه کښې اوسيدل او ګرځيدل کوی. [قاموس][1].

بيضاوی ددې ترجمه هر خاوند د روح کړې ده[2] ، او ښکاره خبره داده چې دلته د انام نه مراد پيريان او بنيادم دی ، ولې چې د ټولو ساه دارو ځينې دا دواړو قسمه ساه دار د شرعی حکمونو دوئ ته خطاب کړې شوې دې لکه فرمائی چې : [فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ].

[فِيهَا فَاكِهَةٌ] فاکهه هرې داسې ميوې ته وئيلې شی چې د خوراک کولو نه پس عام طور د مزې دپاره خوړلې شی.

---

[1] ) تاج العروس فصل الهمزة [ج: ١ص:٧٦١٥]
[2] ) تفسير البضاوی [ج: ٥ ص:٢٥٣]

[وَالنَّخْلُ ذَاتُ الْأَكْمَامِ﴾ اکمام د کم بالکسر جمع ده هغه غلاف او پردې ته وئیلې شی چې د کهجورو وغیره په میوؤ باندې په اول سر کښې ختلې وی.

[وَالْحَبُّ ذُو الْعَصْفِ﴾ حب بفتح الحاء بتشدید الباء دانې ته وائی لکه غنم، چنړه، وریژې، ماش، مسور وغیره شو، او عصف هغه پردې او غلاف ته وائی چې په کښې دانه د الله تعالی په قدرت سره بنده او انغښتې وی چې د ماشو، مچانو، خرابو هواګانو وغیره نه پاکه او صفا پاتې شی. ددانې پیدا کولو سره د ذوالعصف په لفظ زیاتولو سره د غافل انسان دې طرفته مخا راګرځولې شوې ده چې کومه روټئ، دال وغیره چې د ورځې ئې خو خو ځل خورئی، خالق او مالک ددې یوه یوه دانه په څنګه عجیبه کاریګرئ سره د خاوری او اوبو نه پیدا کړه، بیا ئې څنګه د زمکې د ضرری چینجو او څیزونو نه د ساتلو دپاره ئې په هره یوه دانه باندې غلاف او پرده اوخیژوله تردې چې بیا هغه ستاسو د خوراک نمرئ جوړه شوه، په عصف ذکر کولو سره یو بل نعمت ته هم داسې کیدې شی چې دا بوس ستاسو د څاروؤ خوراکه جوړیږی د کومو چې تاسو پئ خورئی او د سورلئ کولو او د بار اوړلو کار ترې اخلئ.

[وَالرَّيْحَانُ﴾ دریحان مشهوره معنی خوشبوئی ده، ابن زید ئې هم دا معنی اخستې ده، چې الله ﷻ د زمکې دپیدا کیدونکو ونو، بوټو نه خوشبو ګلونه پیدا کړل، کلمه ریحان دمغز او روزئ په معنی هم استعمالولې شی لکه فرمائی چې:

[خرجت اطلب ريحان الله﴾ [زه دالله تعالی د روزئ لټولو دپاره اووتم.] [1] ابن عباس رضي الله عنه په دې آیت مبارک کښې د ریحان تفسیر په روزئ سره کړې دې.

[فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ﴾، [آلَاءِ﴾ جمع ده، معنی ئې نعمتونه دی، ددې مخاطب پیریان او انسانان دی، قرینه ئې داده چې د سورة رحمان په ګڼو آیتونو کښې د پیریانو بیان دې.

[خَلَقَ الْإِنْسَانَ مِنْ صَلْصَالٍ كَالْفَخَّارِ﴾ په اتفاق سره د لته د الانسان نه مراد آدم عليه السلام دې چې هغوئ عليه السلام د خاورې نه پیدا شوی وو، صلصال هغه خیټې ته وئیلې شی چې اوچه شی، او د فخار معنی داده چې په اوبو کښې ملاؤ شوی په اور پخه کړې شی.

[وَخَلَقَ الْجَانَّ مِنْ مَارِجٍ مِنْ نَارٍ﴾ [جَانّ﴾ د پیریانو جنس ته وئیلې شی، مارج د اور نه راپورته کیدونکې لمبې معنی ورکوی، د پیریانو د پیدا کیدو د ټولو نه لوئې عنصر د اور لمبه ده، څنګه چې د بنیادم د پیدا کیدو د ټولو نه لوئې عنصر خاوره ده.

[رَبُّ الْمَشْرِقَيْنِ وَرَبُّ الْمَغْرِبَيْنِ﴾ یخنئ او ګرمئ کښې د نمر د راختلو ځائې بدلیږی په دې وجه په ژمی کښې د نمر مشرق یعنی دنمر د راختلو ځائې جدا او په ګرمئ کښې جدا وی. په دې لحاظ سره د دې دواړو ځایونو څخه په آیت مبارک کښې په مشرقین سره تعبیر شوې دې، داشان ددې په مقابله کښې یې مغربین اوفرمائیل ځکه چې په ژمی کښې د نمر د پریوتولو ځائې جدا وی او په ګرمئ کښې جدا وی

[مَرَجَ الْبَحْرَيْنِ] د مرج معنی آزاد او بې قیده پریخودل دی، د بحرین څخه مراد دوه دریابونه، خوږ او تریخ دې، الله ﷻ په زمکه کښې دواړه قسمه دریابونه پیدا کړی دی، یو نیم ځائې دا دواړه سره یو ځائې کیږی هم، خو په دغه صورت کښې دا دواړه قسمه اوبه تر ډیره حده پورې

[1] تفسیر القرطبي [ ج:۱۷ص:۱۵۷]

سره نه يو ځائې كيږي. يو طرفته خوږې او بل طرفته ترخې ، او ځينوځايونو كښې دا صورت حال لاندې باندې وي. كوم ځائې كښې چې د تريخ درياب اوبه په خوږ درياب راشي نو هلته دلاندې درياب اوبه خوږې وي او د پورته درياب مالګينې او ترخې وي. اوبه د رقيق او لطيف كيدو باوجود تر يوې فاصلې پورې يو بل سره نه ګډې وډې كيږي جدا جدا خپلې ذائقې سره روانې وي. ځكه الله ﷻ فرمائي چې

[مَرَجَ الْبَحْرَيْنِ يَلْتَقِيٰنِ ۝ بَيْنَهُمَا بَرْزَخٌ لَّا يَبْغِيٰنِ ۝] يعني دغه دواړه قسمه اوبۀ تر ډيره حده پورې يو ځائې روانې وي او سره د نرموالى نه يو بل سره ګډون نه كويې چې خوند ئې بدل كړي او په يو بل غالب شي.

[يَخْرُجُ مِنْهُمَا اللُّؤْلُؤُ وَالْمَرْجَانُ ۝] ملغلرې او مرجان دواړه قيمتي جواهرات دي چې د ونې په شان څانګې ئې وي. اودواړه درياب نه راوځي. خو مشهوره داده چې دا دواړه د تريخ درياب نه راوځي. د خوږنه نه راوځي. په دې آيت مبارک كښې د دواړو نه راوتل بيان شوي دي. ددې توجيه دا هم كيدې شي چې ملغلرې هم دواړه دريابونو كښې پيدا كيږي خو خواږه دريابونه تول بهيږي او جاري وي ، دهغې نه دغه جواهرات راؤښكل څه آسان كار نه وي چرته چې خواږه دريابونه سمندر ته غورزيږي ، هلته ترې دا قيمتي جواهرات راؤښكلې شي ځكه وئيلې كيږي چې ددې ځائې تريخ سمندر دې.

[وَلَهُ الْجَوَارِ الْمُنْشَئٰتُ فِي الْبَحْرِ كَالْأَعْلَامِ ۝] جواري د جارية جمع ده ، ددې يوه معنى كشتۍ ده چې دلته هم دا مراد ده ، [مُنْشَئٰتُ] د نشا نه مشتق دې چې معنى ئې راپرسيدل او راپورته كيدل دي ، مراد ترې د كشتو هغه بادبانونه دي چې د جنډو پشان لوړ لوړ جوړولې شي ، په دې كښې د كشتۍ د كاريګرئ او په اوبو دپاسه ددې د چليدو دحكمت بيان دې.

| كُلُّ مَنْ | عَلَيْهَا | فَانٍ ۝ | وَّيَبْقٰى | وَجْهُ رَبِّكَ |
|---|---|---|---|---|
| تول هغه څوك | چې په دې زمكه باندې دي | فنا كيدونكي دي | او باقي به پاتې كيږي | ذات درب ستا |
| هرڅه چې په دې زمكه باندې موجود دي | هغه فناكيدونكي دي | او صرف ستا د رب ذات باقي پاتې كيدونكي دې چې د | | |

| ذُو الْجَلٰلِ | وَالْإِكْرَامِ ۝ | فَبِأَيِّ آلَاءِ | رَبِّكُمَا | تُكَذِّبٰنِ ۝ |
|---|---|---|---|---|
| چې خاوند دلويئ دې | او دعزت وركولو دې | پس كوم يو نعمت به | درب ستاسو | دروغ ګڼرئ تاسو |
| لويئ او داحسان خاوند دې | ..........نو تاسوبه دخپل رب كوم كوم نعمت دروغ ګڼرئ | | | |

| يَسْئَلُهُ | مَنْ | فِي السَّمٰوٰتِ | وَالْأَرْضِ ط | كُلَّ يَوْمٍ |
|---|---|---|---|---|
| غواړي دهغه نه | [هغه تول] هر څوك | چې په آسمانونو كښې دي | او په زمكه كښې دي | هره ورځ |
| دآسمانونوا و زمكې تول مخلوق دهغه نه دعا كوي | ..........هغه هر وخت په يو كار | | | |

| هُوَ | فِي شَأْنٍ ۝ | فَبِأَيِّ آلَاءِ | رَبِّكُمَا | تُكَذِّبٰنِ ۝ |
|---|---|---|---|---|
| هغه | په يونوى كار كښى دې | پس كوم يو نعمت به | درب ستاسو | دروغ ګڼرئ تاسو |
| كښې لګيا وي | ..........نو تاسوبه دخپل رب كوم كوم نعمت دروغ ګڼرئ | | | |

سَنَفْرُغُ لَكُمْ اَيُّهَ الثَّقَلٰنِ ۝ فَبِاَيِّ اٰلَاۤءِ رَبِّكُمَا

زر به وزګار شو مونږ | تاسو ته | اے دوه درنو قبيلو | پس كوم يو احسان به | درب ستاسو |

انې د پيريانو او انسانو [دلو] مونږ ډير زر تاسو ته اوزګاريږو | نو تاسو به دخپل رب كوم كوم

تُكَذِّبٰنِ ۝ يٰمَعْشَرَ الْجِنِّ وَالْاِنْسِ اِنِ اسْتَطَعْتُمْ

دروغ ګنړئ تاسو | اے ډلې دپيريانو | او دانسانانو | كه چرې طاقت رسى ستاسو |

نعمت دروغ ګنړئ | انې د پيريانو او انسانانو ډلو ! كه چرې تاسو نه كيدې شي

اَنْ تَنْفُذُوْا مِنْ اَقْطَارِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ فَانْفُذُوْا ؕ لَا تَنْفُذُوْنَ

چې بهر اوځئ تاسو | دغاړې [حدونو] | داسمانونو نه | او دزمكې نه | نو اوځئ | نه شئ وتلې

چې داسمانونو او د زمكې د حدونو نه چرته اووځئ | نو بيشكه اوځئ | خوبغير

اِلَّا بِسُلْطٰنٍ ۝ فَبِاَيِّ اٰلَاۤءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ۝ يُرْسَلُ

| مګر په طاقت سره | پس كوم يو قدرت به | درب ستاسو | دروغ ګنړئ تاسو | اوبه ليږلې شي |

د طاقت نه وتلې نشئ | نو تاسو به دخپل رب كوم كوم نعمت دروغ ګنړئ | په تاسو دواړو [ډلو]

عَلَيْكُمَا شُوَاظٌ مِّنْ نَّارٍ ۙ وَّنُحَاسٌ فَلَا تَنْتَصِرٰنِ ۝

په تاسو باندې | لمبه دوور نه | او لوګې | پس مقابله به نشئ كولې تاسو |

د اور شغلې او لوګې راپريښودې شي | ..........نو تاسو به ئې بيرته كولې نشئ

فَبِاَيِّ اٰلَاۤءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ۝ فَاِذَا انْشَقَّتِ السَّمَاۤءُ

پس كوم قدرت به | درب ستاسو | دروغ ګنړئ تاسو | پس كله چې | اوشليږي | آسمان

نو تاسو به دخپل رب كوم كوم نعمت دروغ ګنړئ | ..........بياهر كله چې آسمان اوشليږي

فَكَانَتْ وَرْدَةً كَالدِّهَانِ ۝ فَبِاَيِّ اٰلَاۤءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ۝

او شى | سور | پشان دځرمنې | پس كوم يو قدرت به | درب ستاسو | دروغ ګنړئ تاسو |

او د سرې ځرمنې په شان تک سور شي | نو تاسو به دخپل رب كوم كوم نعمت دروغ ګنړئ

فَيَوْمَئِذٍ لَّا يُسْئَلُ عَنْ ذَنْۢبِهٖۤ اِنْسٌ وَّلَا جَاۤنٌّ ۝

پس په دغه ورځ به | تپوس نه كيږي | په باره دګناهونو دهغه كنبې |د يو انسان نه | او نه د يو پيرى نه

بيا په دغه ورځ به د انسان يا د پيرى نه دهغه د ګناهونو په باره كنبې تپوس نه كيږي [بلكه هرڅه مونږ پيژنو]

فَبِاَيِّ اٰلَاۤءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ۝ يُعْرَفُ الْمُجْرِمُوْنَ

پس كوم يو احسان به | درب ستاسو | دروغ ګنړئ تاسو | پيژندې به شى | مجرمان خلق |

نو تاسو به دخپل رب كوم كوم نعمت دروغ ګنړئ | مجرمان خو به د شكل نه پخپله پيژندې شى

بِسِيْمٰهُمْ فَيُؤْخَذُ بِالنَّوَاصِيْ وَالْاَقْدَامِ ۝ فَبِاَيِّ اٰلَاۤءِ

په نښو دهغوئ سره | پس نيوې كيږى به | دويختو دتندى نه | او دخپو نه | پس كوم قدرت به

نود تندى د [ويختو] او د پښو نه به رانيولې شي | ..........نو تاسو به دخپل

| رَبِّكُمَا | تُكَذِّبٰنِ۝ | هٰذِهٖ | جَهَنَّمُ | الَّتِيْ يُكَذِّبُ | بِهَا |
|---|---|---|---|---|---|
| درب ستاسو | دروغ گنړئ تاسو | دا دوزخ دې | هغه | چې دروغ به گنړلو | دې لره |

رب کوم کوم نعمت دروغ گنړئ | دا هغه دوزخ دې | ............................ چې مجرمانو

| الْمُجْرِمُوْنَ۝ | يَطُوْفُوْنَ | بَيْنَهَا | وَبَيْنَ | حَمِيْمٍ اٰنٍ۝ |
|---|---|---|---|---|
| مجرمانو خلقو | هغوئ به گرځي | په منځ ددوزخ کبنې | او په منځ | دګرمو يشيدلو اوبو کبنې |

به دروغ گنړلو | دوئ به ددغه اور او د ګرمو ويشيدلو اوبو په مينځ کبنې په ګرځيدو [مجبوره] وي

| فَبِاَيِّ اٰلَآءِ | رَبِّكُمَا | تُكَذِّبٰنِ۝ |
|---|---|---|
| پس کوم يو قدرت به | درب ستاسو | دروغ گنړئ تاسو |

نو تاسو به دخپل رب کوم کوم نعمت دروغ گنړئ |

## آسان ترجمه قرآن

په دې زمکه کښې چه څه دی، فنا کيدونکې دی. او (صرف) ستا د پروردګار جلال والا او فضل و کرم والا ذات به باقي پاتې وی. اوس اووايئ، چه تاسو به د خپل پروردګار کوم کوم نعمتونه دروغ ګنړئ؟ په آسمانونو او زمکه کښې چه څوک دی، هم د هغه نه (خپل حاجتونه) غواړی، هغه هره ورځ په څه شان کښې دې اوس اووايئ، چه تاسو به د خپل پروردګار کوم کوم نعمتونه دروغ ګنړئ؟ زر ده چه مونږ ستاسو (حساب دپاره) فارغ کيدونکې يو اے دوؤ درنو مخلوقاتو ! اوس اووايئ، چه تاسو به د خپل پروردګار کوم کوم نعمتونه دروغ ګنړئ؟ اے د انسانانو او پيريانو ډلوا که تاسو طاقت لرئ، چه د آسمانونو او زمکې د حدودو نه بهر اوځئ، نو بهر اوځئ، تاسو د زبردست طاقت نه بغير وتلې نه شئ اوس اووايئ، چه تاسو به د خپل پروردګار کوم کوم نعمتونه دروغ ګنړئ؟ په تاسو باندې به د اور شغلې او د تانبې د رنګ پشان لوګې راؤليږلې شی، بيا به تاسو د خپل ځان دفاع نشئ کولې. اوس اووايئ، چه تاسو به د خپل پروردګار کوم کوم نعمتونه دروغ ګنړئ؟ (غرض دا چه هغه وخت به راشی) چه کله آسمان اوچوی، او د سرې څرمنې پشان به سور ګلاب جوړ شی، اوس اووايئ، چه تاسو به د خپل پروردګار کوم کوم نعمتونه دروغ ګنړئ؟ بيا په دغه ورځ به نه د انسان نه دهغه د ګناه باره کښې پوښتنه کولې شی، او نه د پيری نه اوس اووايئ، چه تاسو به دخپل پروردګار کوم کوم نعمتونه دروغ ګنړئ؟ مجرمان خلق به د هغوی د علامو نه پيژندلې شی، بيا به هغوی د سر د ويښتو نه او د پښو نه رانيولې شی. اوس اووايئ، چه تاسو دواړه به د خپل پروردګار کوم کوم نعمتونه دروغ ګنړئ؟ دا دې هغه جهنم، چه دې لره به مجرمانو دروغ ګنړلو. دوی به ددې او د ختکيدلو اوبو په مينځ کښې ځی راځی. اوس اووايئ، چه تاسو به د خپل پروردګار کوم کوم نعمتونه دروغ ګنړئ؟

## خلاصه تفسير

څومره نعمتونه چه تاسو خلقو اؤريدلي دی تاسولره په توحيداو اطاعت سره ددغوشکر اداکول پکاردی او په کفراو معصيت سره ناشکری نه دی کول پکارځکه چه ددې عالم دفناکيدونه پس يو بل عالم راتلونکې دې کوم ځائ چه به په ايمان اوکفر باندې جزاء او سزا واقع کيږی دکومو

بيان چه په راتلونكو ايتونوكښې دې پس ارشاددې چه ﴿كُلُّ مَنۡ عَلَيۡهَا فَانٍ﴾ [څومره] پيريان او بنيادم [په مخ د مزكه باندې موجود دى ټول به فناشى او] صرف﴿وَيَبۡقَىٰ وَجۡهُ رَبِّكَ ذُو الۡجَلٰلِ وَالۡاِكۡرَامِ﴾ [ستاد پروردګارذات كوم چه عظمت] والا [او] باوجود دعظمت [احسان والادې باقى به پاتې شى] چونكه مقصود خبردارول دثقلينويعني پيريانو او بنيادمو دى او دغه ټول په مزكه دى په دې وجه په فناكيدو كښې داهل ارض ذكر وشوپه دې ذكرى تخصيص سره دنورو څيزونو دفناكيدونفى نه لازميږى او دلته دالله تعالى دوه صفتونه دعظمت او احسان په دې وجه ذكر كړې شو چه يوصفت ذاتى دويم اضافى دې مطلب ددې دادې چه اكثراهل عظمت دنورو په حال توجه نه كوى مګرالله تعالى سره ددې عظمت هغه په خپلو بندګانو رحمت او فضل فرمائى او چونكه دعالم دافنا اوددې نه پس دجزاء او سزا خبر وركول انسان ته دايمان دولت بخښى په دې وجه دامجموعه هم يو لويْ نعمت دې په دې وجه فرمائى ﴿فَبِاَيِّ اٰلَاۤءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ﴾[پس اے پيريانو او بنيادمو]سره ددې كثرت او عظمت دنعمتونو [تاسويه دخپل رب دكومو كومو نعمتونو نه منكريږئ؟] وړاندې په يو خاص طورسره ددې عظمت او اكرام متعلق مضمون دې يعنى هغه داسې باعظمته دې چه ﴿يَسۡـَٔلُهٗ مَنۡ فِى السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضِ﴾[دده نه] خپل خپل حاجتونه [ټول اسمان او مزكې والا غواړى] دمزكې والوْ حاجتونه خو ظاهردى او اسمان والا اګر چه دخوراك څښاك محتاج نه دى ليكن درحمت او عنايت خو ټول محتاج دى وړاندې دحق تعالى فضل او احسان په يوبل عنوان سره بيان شوې دې ﴿كُلَّ يَوۡمٍ هُوَ فِىۡ شَاۡنٍ﴾[هغه هروخت په څه كار كښې وى] دا مطلب نه دې چه دافعالو صدور د ده دذات د لوازمونه دې ورنه قديم والې به دحادث لازم شى بلكه مطلب دادې چه څومره تصرفات په عالم كښې واقع كيږى هغه دهغه تصرفات دى په كومو كښې چه د هغه انعامات او احسانات هم داخل دى لكه ايجاد او ابقاء كوم چه عام رحمت دې او رزق او اولاد وركول كوم چه ټول دنيوى رحمتونه دى او هدايت او علم وركول او توفيق دعمل كوم چه دينى رحمتونه دى پس سره دعظمت داسې اكرام او احسان فرمائيل داهم يو عظيم نعمت دې ﴿فَبِاَيِّ اٰلَاۤءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ﴾[پس اے پيريانو او بنيادمو] سره ددې دومره كثرت او عظمت دنعمتونو [تاسويه د خپل رب دكوموكومو نعمتونو نه منكريږئ؟]دا مضمون د جلال او اكرام يْ دخالق دبقاء متعلق وفرمائيلو وړاندې بيا د مخلوق دفنا متعلق ارشاددې چه تاسو خلق دامه ګنړئ چه بيابه دغه فناهميشه وى او عذاب او ثواب به نه وى بلكه مونږ به تاسو لره دوباره ژوندى كړو او جزاء او سزا به دركړو داداسې فرمائى چه ﴿سَنَفۡرُغُ لَكُمۡ اَيُّهَ الثَّقَلٰنِ﴾[اے پيريانو او بنيادمو مونږ به ډير زرستاسو] د حساب كتاب [دپاره فارغ شو] يعنى حساب كتاب اخستونكى يو مجازا اومبالغتاًئ داپه خالى او فارغ كيدو سره تعبير وفرمائيلو او مبالغه داسې ده چه انسان هركله دټولو كارونو نه فارغ شى او يوطرف ته متوجه شى نو دغه پوره توجه ګنړلې شى دانسانى فهم مطابق دا عنوان اختياركړې شو ورنه دالله تعالى اصل شان دادې چه هغه ته يو مشغوليت دبل مشغوليت مانع نه وى او د هغه چه كوم طرف ته څه وخت توجه وى تامه او كامله وى هلته دناقصې توجه دسره احتمال نشته او د تير په شان وړاندې ارشاد دې چه دا دحساب كتاب خبر دركول هم يو عظيم نعمت دې﴿ فَبِاَيِّ اٰلَاۤءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ﴾ [پس اے پيريانو اوبنيادمو] سره ددې كثرت او عظمت د نعمتونو[تاسو به دخپل رب دكوموكومونعمتونو نه منكريږئ؟] وړاندې دحساب دتاكيد دپاره

فرمائی چه دغه وخت داهم احتمال نشته چه څوك چرته بچ لاړشي چنانچه ارشاد دي چه ﴿يٰمَعْشَرَ الْجِنِّ وَالْاِنْسِ اِنِ اسْتَطَعْتُمْ اَنْ تَنْفُذُوْا مِنْ اَقْطَارِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ﴾ [اے ډلې د پیریانو او بنیادمو که تاسوته داقدرت وی چه دآسمان اومزکې دحدودونه چرته بهرلاړشئ نو] مونږ هم ګورو ﴿فَانْفُذُوْا﴾ پس [وځئ] مګر ﴿لَا تَنْفُذُوْنَ اِلَّا بِسُلْطٰنٍ﴾ [بغیرد زور نه نه شئ وتلې] او زور شته نه پس دوتلو وقوع هم ممکن نه ده او داحالت به بعینه په قیامت کښې وی بلکه هلته خو به ددې نه هم زیات عجزوی غرض چرته د تښتیدو احتمال پاتې نه شو او داخبره ښودل هم موجب د هدایت او لوئ نعمت دې ﴿فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ﴾ [پس اے پیریانو او بنیادمو] سره ددې دومره کثرت او عظمت دنعمتونو [تاسو به دخپل رب دکوموکومو نعمتونونه منکریږئ؟] وړاندې په وخت دعذاب کښې دانسان دعجز ذکر فرمائی لکه چه بره دحساب په وخت کښې دده د عاجزه کیدو ذکر وو یعنی اے دپیریانو او بنیادمو مجرمانو ﴿يُرْسَلُ عَلَيْكُمَا شُوَاظٌ مِّنْ نَّارٍ وَّنُحَاسٌ فَلَا تَنْتَصِرٰنِ﴾ [په تاسو دواړو به] د قیامت په ورځ [د اورشغله او لوګې درپریښودې شی بیا به تاسو] دغې لره [دخان نه لرې نه کړې شئ] داشغله او لوګې غالبا هغه دی دکوم چه ذکر په سوره والمرسلت کښې دې ﴿اِنْطَلِقُوْٓا اِلٰى ظِلٍّ ذِيْ ثَلٰثِ شُعَبٍ ۙ لَّا ظَلِيْلٍ وَّلَا يُغْنِيْ مِنَ اللَّهَبِ ۭ اِنَّهَا تَرْمِيْ بِشَرَرٍ﴾ ([1]) پس سورې لوګې دې او شرر لمبه ده والله اعلم او ددې ښودل هم دهدایت د ذریعه کیدو په وجه یو لوئ نعمت دې ﴿فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ﴾ [پس اے پیریانو او بنیامو] سره ددې دومره دیروالی او عظمت دنعمتونو [تاسوبه دخپل رب دکوموکومونعمتونونه منکریږئ؟] غرض هرکله چه زمونږ حساب اخستل او ستاسو د حساب او عذاب په وخت کښې عاجزه کیدل معلوم شو نو په دې سره دقیامت په ورځ دحساب او عذاب واقع کیدل ثابت شو چه بیان ئې دادې چه ﴿فَاِذَا انْشَقَّتِ السَّمَآءُ فَكَانَتْ وَرْدَةً كَالدِّهَانِ﴾ [هرکله] قیامت راشی په کوم کښې چه [به اسمان څیرې شی او داسې به سورشی لکه سره چمړه] یعنی څرمن شاید دارنګ به څکه وی چه داعلامه د غضب ده او غضب کښې مخ سورکیږی او دا د اسمان څیریدل هغه دی کوم چه د ﴿وَقَالَ الَّذِيْنَ لَا يَرْجُوْنَ﴾ دپارې په شروع کښې په دې قول دالله تعالی کښې ﴿وَيَوْمَ تَشَقَّقُ﴾ الخ([2]) سره راغلی دی او داخبر ورکول هم یونعمت دې ﴿فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ﴾ [پس اے پیریانواوبنیادمو] سره ددې دومره کثرت او عظمت د نعمتونو [تاسو به دخپل رب دکوموکومو نعمتونونه منکریږئ؟] دا خودحساب وقوع او ددې وخت اوښودې شو وړاندې دحساب او طریق فیصله ارشاد فرمائي په کومه ورځ چه به دا واقعات ارسال شواظ نحاس انشقاق سماء وغیره کیږی ﴿فَيَوْمَئِذٍ لَّا يُسْـَٔلُ عَنْ ذَنْۢبِهٖٓ اِنْسٌ وَّلَا جَآنٌّ﴾ [نو په دغه ورځ به] دالله تعالی دمعلومولو دپاره [دچاانسان اوپیری نه دده دجرم متعلق تپوس نه کیږی] ولې چه الله تعالی ته تول معلوم دی یعنی حساب به په دې غرض نه وی بلکه په خپله هغوئ ته به د معلومولو او خبردارولو دپاره سوال او حساب وی لقوله تعالی فوربك لنسئلنهم اجمعين ([3]) او داخبرورکول هم

---

[1] (المرسلت :۳۰-۳۲) ترجمه:- یو سیوری طرفته راشئ چې دهغې د رې شاخونه دی ، چې په هغې کښې نه سیورئ شته دې اونه ګرمی نه بچ کول کوی هغه داوور غټې غټې تکرې راولی.

[2] ترجمه:- او په کومه ورځ چې آسمان اوشلیږی.

[3] ترجمه:- نوستاپه پروردګار مې دې قسم وی چې مونږ ددې ټولو نه ددوئ د عملونو باره کښې تپوس کوؤ.

یونعمت دي ﴿فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ﴾ [پس اے پیریانواوبنیادمو] سره ددې دومره ډېر والی او عظمت د نعمتونو [تاسوبه دخپل رب دکوموکومو نعمتونونه منکرېږئ؟] داخود حساب کیفیت شو چه په طور دتحقیق به نه وی بلکه په طوردتوبیخ به وی وړاندې دابنائی چه الله تعالی ته خو تعیین د جرمونواو مجرمانو معلوم دې په دې وجه دتحقیق ضرورت به نه وی لیکن فرښتو ته به مجرمان څنګه معلومېږی پس ارشاد فرمائی چه ﴿يُعْرَفُ الْمُجْرِمُونَ بِسِيمَاهُمْ﴾[مجرمان خلق به په خپله حلیه سره] چه دمخونو توروالي او دسترګو زیړوالي دې لکه چه داقول دالله تعالی دې ﴿تَسْوَدُّ وُجُوهٌ﴾(١) ، ﴿وَنَحْشُرُ الْمُجْرِمِينَ يَوْمَئِذٍ زُرْقًا﴾(٢)[پیژندې شی پس] ددوئ ﴿فَيُؤْخَذُ بِالنَّوَاصِي وَالْأَقْدَامِ﴾[دسر د ویښتواو دپښونه به نیولي شی] او په راښکلو به جهنم ته ورغورځولې شی یعنی د چاسر دچاپښه د عملونو مطابق یا کله سر کله پښه په غرض داجتماع داقسامو دعذاب او داخبر ورکول هم یونعمت دي ﴿فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ﴾[پس اے پیریانواو بنیادمو] سره ددې دومره کثرت او عظمت دنعمتونو[تاسوبه دخپل رب دکوموکومو نعمتونونه منکرېږئ؟] وړاندې زیات عذاب ښائی﴿هَٰذِهِ جَهَنَّمُ الَّتِي يُكَذِّبُ بِهَا الْمُجْرِمُونَ﴾ [دادې هغه جهنم کوم لره چه مجرمانو خلقو] یعنی تاسو [دروغژن کولو ﴿يَطُوفُونَ بَيْنَهَا وَبَيْنَ حَمِيمٍ آنٍ﴾ هغه خلق به ددوزخ او ګرمو جوشیدلو اوبو په مینځ کښې چکر لګوی] یعنی کله به د اور عذاب وی کله به د ګرمو اوبو دکومو تحقیق چه دسوره مؤمن په اتمه رکوع کښې تیرشوې دې او داخبرورکول هم یو نعمت دي ﴿فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ﴾[پس اے پیریانو اوبنیادمو] سره ددې دومره کثرت او عظمت د نعمتونو [تاسوبه دخپل رب د کومو کومو نعمتونونه منکرېږئ؟].

## معارف ومسائل

[كُلُّ مَنْ عَلَيْهَا فَانٍ وَيَبْقَىٰ وَجْهُ رَبِّكَ ذُو الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ] د [عَلَيْهَا] ضمیر ارض ته راجع دې چې بیان ئې ړومبې راغلې دې. په [وَالْأَرْضَ وَضَعَهَا لِلْأَنَامِ] دې نه علاوه زمکه په هغې عامو څیزونو کښې حسابیږی چې ورته د ضمیر راجع کولو دپاره ړومبې نه ئې ذکر کول لازم نه دی ، معنی ئې دا شوه چې کوم پیریان او بنیادم په زمکه باندې دی ټول فنا کیدونکی دی ، په دې کښې دپیرانو او انسانانو تخصیص څکه کړې شوې دې چې په دې سورت کښې مخاطب هم دغه دواړه دی ، دې نه دا نه لازمیږی چې آسمان او دآسمان اوسید ونکی به ګنی نه فنا کیږی ،څکه چې په بل آیت مبارک کښې الله ﷻ په عامو لفظونو کښې د ټول مخلوق فنا کیدل هم په ښکاره فرمائیلی دی ، [كُلُّ شَيْءٍ هَالِكٌ إِلَّا وَجْهَهُ](٣).

[وَجْهُ رَبِّكَ] د جمهورو مفسرینو په نزد د وجه څخه مراد د الله ﷻ ذات دې او په [رَبِّكَ] کښې ضمیر د خطاب رسول کریم ﷺ ته راجع دې ، دا درسول کریم ﷺ خاص قدر او عزت دې چې د تعریف په خاص مقام کښې ورته په عبده سره خطاب دې او کله ئې رب الارباب خپل ځان ته

(١) ترجمه:-او ځینې مخونه به تور وی.
(٢) ترجمه:- اومونږ به په هغه ورځ مجرمان خلق په داسې حالت کښې راجمع کړو چې هغوئ به شنې سترګې به ئې نیولې وی
(٣) ترجمه:- د هغه نه سوا نور ټول څیزونه فنا کیدونکی دی.

نسبت كړې دې دلته چې [رَبِّكَ] ئې اوفرمائيل ، د مشهور تفسير په جوړ د آيت مبارك معنى دا شوه چې دزمكې آسمان ټول مخلوق چې پيريان او بنيادم په كښې هم داخل دى ټول په ټوله فانى دى ، باقى پاتې كيدونكې خالص دالله تعالى ذات دې .

فانى كيدو نه مراد دا هم كيدې شى چې د غه ټول څيزونه دا وخت هم پخپل ذات كښې فانى دى د هميشه پاتې كيدو قابل نه دى او د امعنى ئې هم كيدېش ى چې د قيامت په ورځ به دا ټول څيزونه فنا شى .

او ځينو مفسرينو د[وَجْهُ رَبِّكَ] تفسير په طرف سره كړې دې ، په دې صورت كښې د آيت مبارك معنى به دا وى چې په ټولو موجوداتو كښې بقاء صرف هغې څيزونو لره ده چې دالله ﷻ په جانب كښې دى ، په دې كښې د هغه لوئې ذات او صفات هم داخل دى ، او د مخلوقاتو په عملونو ا و حالاتو كښې چې د كوم څيز تعلق الله ﷻ سره دى هغه هم شامل دې ، حاصل به ئې دا وى چې انسان ، پيريان او فرښتې چې الله ﷻ دپاره كار كوى هغه كار هم باقى دې چې نه به فنا كيږى . [مظهرى ، قرطبى او روح]([1]).

او ددې مفهوم تائيد د قرآن عظيم الشان ددې آيت مبارك نه هم كيږى [مَا عِنْدَكُمْ يَنْفَدُ وَمَا عِنْدَ اللّٰهِ بَاقٍ] تاسو سره چې څه مال او دولت او قوت او راحت يا دچا مينه او عداوت وى دا ټول فنا كيدونكى دى او څه چې الله ﷻ سره دى هم هغه باقى پاتې كيدونكى دى ، الله ﷻ سره دا نسان د عملونو او حالاتو ځينې هغه څيز دې چې تعلق ئې الله ﷻ سره وى نو هغې لره فنا نشته دې، والله اعلم.

[ذُو الْجَلٰلِ وَالْاِكْرَامِ] يعنى هغه رب د لويئ او جلال خاوند دى او د اكرام خاوند هم ، د اكرام دخاوند كيدو مطلب دا هم كيدې شى چې په حقيقت كښې د هر عزت او قدر يوازې هم هغه ذات حقدار دې او دا معنى يئ هم كيدې شې چې هغه ذات سره ددې نه چې ددنيا د عامو بادشاهانو او د لويئ د خاوندانو پشان نه دې چې نورو ته هډو ګورى نه بلكه هغه سره د لويئ او جلال د خپلو مخلوقاتو هم عزت كوى چې د پيدا كولو نه پس ورته بې شميره نعمتونه وركوى او خواستونه او دعا ګانې ئې آورى . دې پسې آيت مبارك د دويمې معنې ګواهى وركوى او دا لفظ [ذُو الْجَلٰلِ وَالْاِكْرَامِ] د الله ﷻ د هغې خاص صفاتو څخه دې چې ددعا په وخت ددې په ذكر كولو سره ئې الله ﷻ دعا قبلوى ، ترمذى ، نسائى او مسند احمد كښې دربيعه ابن عامر نه روايت دې چې رسول كريم ﷺ اوفرمائيل :

[الظوا بيا ذُو الْجَلٰلِ وَالْاِكْرَامِ]([2]) الظوا د الظاظ نه مشتق دې چې معنى ئې لازم نيول دى ، د حديث پاک مراد دادې چې پخپلو دعاګانو كښې د [يَاذَا الْجَلٰلِ وَالْاِكْرَامِ] يادلرئ او په دې سره دعا كوى . [مظهرى]([3]).

[يَسْئَلُهُ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ كُلَّ يَوْمٍ هُوَ فِيْ شَاْنٍ] [د زمكې آسمان ټول مخلوقات د الله ﷻ محتاج دى او هم د هغه نه خپل حاجتونه غواړى ، زمكې والا مخلوق خپل مناسب حاجتونه ، روزى

---

[1] ) روح المعاني [ج: ۲۰ ص:۱۳۹] و تفسير القرطبي [ ج:۱۷ص:۱۶۵]
[2] ) مسند احمد ، حديث ربيعة بن عامر ﷺ رقم الحديث:[۱۷۵۹۶]
[3] ) تفسير المظهري[ج:۹ص:۱۵۰]

صحت، عافیت ، آرام او راحت بیا د آخرت بخښنه ،رحمت او جنت غواړي . آسماني مخلوق اګر چې خوراک، څکاک نه کوي . مګر د الله ﷻ د رحمت او مهرباني هر وخت محتاج وي چې هر وخت ئې د الله ﷻ نه غواړي ، دې پسې [كُلَّ يَوْمٍ] هم ددې [يَسْئَلُ] ظرف دې ، مطلب دا چې دوئ دغه سوالونه هر وخت د الله ﷻ نه کوي ، او یوم نه هم مراد عرفي ورځ نه ده ، بلکه مطلق وخت ترې مراد دې حاصل ئې دادې چې د هرې علاقې مخلوق په بیلو بیلو ژبو کښې هر وخت د الله ﷻ نه خپل خپل حاجتونه غواړي او دا ښکاره خبره ده چې ټول دزمکې والا او آسماني مخلوق او ددې یو یو کس بې شمیره حاجتونه لري چې هر وخت ئې په خپله کښې سوا ددغې لوئې او جلال د خاوند قادر مطلق بل هیڅوک نه شي آوریدلې او نه څوک پوره کولې شي څکه ئې [كُلَّ يَوْمٍ] سره دا هم اوفرمائیل چې :

[هُوَفِي شَأْنٍ] یعنی هر وخت او هر ساعت د الله ﷻ خاص شان وي څوک ژوندې کوي ، چاته مرګ راولي ، چا ته عزت ورکوي او چا ته ذلت ورکوي ، روغ لره بیماروي او بیمار لره رغوي ، څوک د غم نه خلاصوي او څوک په غم کښې اخته کوي ، چا سوال کوؤنکی ته د هغه غوښتلې څیز ورکوي ، د چا ګناه معاف کوي او جنت ته د تلو حقدار ئې جوړوي ، یو قوم لره لوړ او د اقتدار خاوند جوړوي او څینې قوم بې قدره او ذلیل کوي غرض دا چې هر ساعت او هره ګړئی د الله ﷻ خاص شان وي .

[سَنَفْرُغُ لَكُمْ أَيُّهَ الثَّقَلَانِ] ثقلان د ثقل تثنیه ده ، معنی ئې تول او پیټې دې ، نو د ثقلان معنی دوه پیټې شو ، مراد ترې انسانان او پیریان دی .

ثقل په عربي ژبه کښې هر داسې څیز ته وئیلې شي چې وزن قدر او قیمت ئې معلوم وي څکه رسول کریم ﷺ اوفرمائیل : [انی تارك فیكم ثقلین الخ][1] زه دخپل ځان نه پس په تاسو کښې دوه وزن دار دقدر قابل څیزونه پریږدم چې ستاسو د هدایت او اصلاح کار به کوي ، ددې دواړو څیزونو بیان په څینې روایتونو کښې کتاب الله وعترتی راغلې دې . په څینو کښې کتاب الله وسنتی[2] راغلې دې . حاصل د دواړو هم یو دې ، ولې چې د عترت نه مراد خپل اولاد دې . چې نسبي او روحاني دواړه قسمه اولاد په کښې شامل دی څکه مراد ټول صحابه کرام ﷺ شو ، او د حدیث پاک معنی دا شوه چې د رسول کریم ﷺ نه پس دوه څیزونه د هدایت او اصلاح ذریعه ده یو د الله ﷻ کتاب بل د رسول کریم ﷺ صحابه کرام ؓ او معاملو او حکمونو کښې د هغوئ عمل کول ، او په کوم روایت کښې چې دعترت په ځائې دسنت لفظ راغلې دې د هغې حاصل دادې چې د رسول کریم ﷺ تعلیمات کوم چې د صحابه کرامو ؓ په ذریعه مسلمانانو ته رسیدلی دی .

بهر حال په دې حدیث پاک کښې د ثقلین څخه مراد وزن دار او د قدر قابل څیزونه دی ، په آیت مبارک کښې پیریانو او بنیادمونو دواړو ته ثقلین پدې اعتبار سره وئیلې شوې دی چې د زمکې په ټولو ساه لرونکو څیزونو کښې پیریان او بنیادم د ټولو څخه زیات وزن دار او دقدر قابل دی .

---

[1] السنن الكبرى للنسائی رقم الحدیث [۸۱۴۸] و المعجم الكبیر للطبراني رقم الحدیث:[۴۸۴۷]

[2] السنن الكبرى للبیهقي رقم الحدیث ۴۶۶۵ و المستدرك للحاكم رقم الحدیث:[۲۹۱]

[سَنَفۡرُغُ] د فراغ نه مشتق دي چې معنى ئې د كار روزګار نه اوزګاريدل ده ، د فراغ مقابل په لغت كښې شغل دې ، او د فراغ لفظ د دوو څيزونو خبر وركوى ، اول دا چې په څه شغل كښې اخته وو ، بل دا چې اوس ددغې شغل په ختمولو سره فارغ شو ، دا دواړه خبرې خو په مخلوقاتو كښې مشهورې دى ، انسان په يو كار كښې اخته وى او بيا ترې اوزګار شى خو الله ﷻ ددې دواړو نه برى دې . د هغه يو كار د پاره ئې روكاوټ نشى جوړيدې ، بل اوزګاريدل ئې هم لكه د انسان په شان نه وى چې بالكل څه كار بيا نه كوى .

څكه په آيت مبارك كښې د [سَنَفۡرُغُ] لفظ ديو تشبيه او استعارې د پاره راغلې دې چې په عامو انسانانو كښې رواج لرى چې د يو كار داهميت ضباطولو د پاره وئيلې شى چې مونږ دې كار ته اوزګار شو ، مطلب دا وى چې اوس به دا كار په پوره توجه سره كوى ، او څوك چې په پوره توجه سره يو كار كوى نو هغه د پاره په محاوره كښې دا وئيلې شى چې سوا د دې نه ده ته بل هيڅ كار نشته .

دې نه په رومبى آيت مبارك كښې دا بيان شوى وو چې د آسمانونو او زمكې ټول مخلوقات او ددې هر يو فرد الله ﷻ نه خپل خپل حاجتونه غواړى او الله ﷻ هر وخت په هر حال كښې د هغوئ د خواست پوره كولو په لحاظ سره په يو خاص شان كښې وى ، په آيت مبارك د سنفرغ لكم كښې دا خودلې شوى دى چې د قيامت په ورځ به د خواستونو د هغې دقبليدو او په هغې باندې د عمل كولو سلسله بنده شى هغه وخت به كار صرف يو پاتې شى او د مختلفو شانونو څينې به صرف يو شان وى ، يعنى حساب ، كتاب ، او عدل و انصاف سره فيصله كول .[روح](١).

[يَٰمَعۡشَرَ ٱلۡجِنِّ وَٱلۡإِنسِ إِنِ ٱسۡتَطَعۡتُمۡ أَن تَنفُذُواْ مِنۡ أَقۡطَارِ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ فَٱنفُذُواْۚ لَا تَنفُذُونَ إِلَّا بِسُلۡطَٰنٖ] په تير شوى آيت كښې پيريان او بنيادم په ثقلين سره مخاطب كړې شو ، دا اوخودلې شو چې د قيامت په ورځ به هم يو كار دا وى چې د ټولو پيريانو او بنيادمو د عملونو جائزه به اخستې شى ، د هغې د ذرې ذرې جزا او سزا به وركولې شى . دې آيت مبارك كښې دا خودل منظور دى چې د جزا د ورځې د حاضرئ او د عملونو د حساب نه به څوك هم نشى تښتيدې د هيچا دا وس نشته چې د مرګ يا قيامت نه په تښتيدو سره ځان خلاص كړې شى . د لته ئې د ثقلان په ځائې [يَٰمَعۡشَرَ ٱلۡجِنِّ وَٱلۡإِنسِ] ښكاره نوم سره يا د كړل او پيريان ئې په بنيادمو باندې وړاندې كړل ، په دې كښې دې ته اشاره كيدې شى چې د آسمانونو او زمكې نه بهر پورې وتل ډير قوت او طاقت غواړى ، الله ﷻ پيريانو ته د بنيادمونو نه زيات طاقت وركړې دې څكه د پيريانو بيان وړاندې كړې شو ، د آيت مبارك مطلب دادې چې اې پيريانو او بنيادمو كه ستاسو دا ګمان وى چې چرته به اوتښتئ او داسې به د ملك الموت د وس نه بهر شئ ، يا به د قيامت نه چرته بهر اوتښتئ او حساب كتاب نه به خلاص شئ نو د خپل دغې طاقت آزميښت اوكړئى كه د آسمانونو او زمكې نه بهروتې شئ نو اوكړئى او اوښايئ ، دا څه آسانه خبره نه ده ، دې د پاره لوئې طاقت او وس پكار دى چې د پيريانو او بنيادمو دواړو قومونو ته حاصل نه دې ، ددې حاصل دادې چې په اصل كښې د اخودل نه دى چې آسمانونو او زمكې نه د بهر وتلو ګنى امكان او احتمال شته بلكه د فرض محال په ډول ددوئ بې وسى خودل دى ، په آيت مبارك كښې كه د مرګ نه

(١) روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ٢٠ ص:١٤٥]

تښتيدل مراد وي نو هم دا دنيا ئې مصداق ده چې څوک ددې نه دوتلو وس نه لري چې ګنې د مرګ نه به خلاص شي ، ددې نه وتل هم د انساني خيال مطابق خودلي شوي دي ، ورنه بالفرض که څوک ددې نه بهر راؤځي نو بيا هم د الله ﷻ د قدرت د احاطې نه خو بهر ته وتل نشي کيدې که مراد د محشر د حساب ، کتاب او جواب ورکولو نه د تښتيدو ناممکن کيدل ښکاره کړې شوي وي نو ددې عملي صورت د قرآن عظيم الشان په نورو آيتونو او په روايتونو د حديث کښې دادې چې دقيامت په ورځ بهٔ آسمان څيرې شي او ټولې فرښتې به دزمکې په کنارو باندې راشي او دهر طرف نه به راګير او محاصره وي ، پيريان او بنيادم چې د قيامت دا هيبتناک څيزونه چې اووينې نو يو خوا بل خوا به تښتي ، هر طرفته به د فرښتو چاپيره اودريدل چې اووينې نو خپل ځائې ته به واپس راشي ، [روح](۱).

**کوم فضائي سفر چې نن صبا د مصنوعي سيارو او راکټونو سره کيږي دهغه دې آيت سره هيڅ جوړ نشته** :: دې زمانه کښې چې دزمکې د کشش نه په بهر وتلو او په خلا کښې سيارو ته په رسيدو کومې تجربې چې کولې شي ، ښکاره خبره ده چې دا آسمان ن بهر وتل نه دي بلکه د آسمان د سطح نه ډير لاندې کيږي د آسمانونو نه د پورې وتلو ددې سره هيڅ تعلق نشته . دا خو آسمانونو ته نزدې رسيدل هم نه دي نو د وتلو خو ئې ترې سوال نه پيدا کيږي ، بيا هم څينې سادګان دا آيت مبارک د خلائي سفرونو دامکان کيدو او جائز کيدو دپاره پيش کوي چې د قرآن عظيم الشان دمعنو نه بالکل د ناواقفيت دليل دې .

[يُرْسَلُ عَلَيْكُمَا شُوَاظٌ مِّنْ نَّارٍ ۙ وَّنُحَاسٌ فَلَا تَنْتَصِرٰنِ] ابن عباس رضي الله عنهما او د تفسير نورو امامانو اوفرمائيل چې شواظ د اور هغې شغلې ته وئيلې شي چې لوګې ئې نه وي او نحاس هغه لوګي ته وئيلې شي چې د اور څه رنړا په کښې نه وي ، په دې آيت مبارک کښې هم جنات او انسانان په خطاب کولو او پرې باندې د اور او لوګې ورپريښو د بيان مطلب دا هم کيدې شي چې حساب ، کتاب نه پس چې مجرمان به جهنم کښې اچولې شي ، په هغې کښې بهٔ دا دوه قسمونه عذاب وي چرته به د اور داسې لمبه وي چې د سرهٔ په لوګې په کښې نه وي او چرته به داسې لوږې وي چې د سره به ورسره د اور څه رنړا نه وي ، او څينو مفسرينو دې لره د تير شوي آيت تکلمله داسې ګرځولې ده چې ائې پيريانو او بنيادمو د آسمانونو د حدونو نه وتل ستاسو د وس خبره نه ده که تاسو داسې اراده اوکړئ نو کوم خوا به تښتئ د اور شغلې او لوګې بهٔ مو راګير وي[ابن کثير](۲).

[فَلَا تَنْتَصِرٰنِ] دا د انتصار نه مشتق دې چې معنې ئې چا لره په مدد کولو سره هغه د مصيبت نه اوښکل دی ، مطلب دا دې چې د الله ﷻ د عذاب نه د خلاصولو دپاره به تاسو ټول د پيريانو اوبنيادمو څينې څوک د چا مدد نشي کولې چې دهغې په ذريعه به د عذاب نه خلاص شي .

[فَيَوْمَئِذٍ لَّا يُسْـَٔلُ عَنْ ذَنْۢبِهٖٓ اِنْسٌ وَّلَا جَآنٌّ] يعنې په دغه ورځ به د چاپيرې يا بنيادم نه دهغه د ګناه په باره کښې تپوس نشي کولې ، ددې يو مطلب هغه دې چې د تفسير په خلاصه کښې داسې

۱) روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۲۰ ص:۱۴۸]
۲) تفسير ابن کثير [ج: ۷ ص:۴۹۷ ، ۴۹۸]

اخستي شوې دي چې خلقو نه به دا تپوس نه کیږي چې فلانې جرم تاسو کړې دې که نه ؟ ځکه چې هغه خو به د فرښتو لیکل شوؤ په عمل نامه کښې موجود وي.

او د الله ﷻ په علم ازلي کښې خو ددې نه مخکښې موجود دی، بلکه دا تپوس به ترې کولې شي چې فلانې جرم دې ولې کړې وو؟ دا د ابن عباس رضي الله عنهما تفسیر دې، او مجاهد رحمه الله ارفرمائیل چې کومې فرښتې د مجرمانو په عذاب باندې مقررې دې هغوئ ته به د مجرمانو د تپوس کولو ضرورت نه وي چې تاسو دا جرم کړې دې که نه ؟ بلکه د هر جرم به یو خاص نخښه د مجرمانو په څیرو باندې ښکاره وي، د هغې نخښې مطابق به فرښتې هر مجرم جهنم ته ګذاروي. دې پسې آیت مبارک کښې هم دا مضمون راغلې دې چې:

[يُعۡرَفُ الۡمُجۡرِمُوۡنَ بِسِيۡمٰهُمۡ] ددې دوارو تفسیرونو حاصل دادې چې دا واقعه د هغې وخت ده کله چې به په محشر کښې د حساب، کتاب نه پس د مجرمانو په جهنم کښې د ورګذارولو فیصله اوشي نو دغه وخت به ورسره د ګناهونو په باره کښې څه خبرې اترې نه وي بلکه د هغوئ د څیرو د نخښو مطابق به په جهنم کښې ورګذارولې شي.

او قتاده رحمه الله اوفرمائیل چې دا دهغې وخت حال دې کله به چې یو ځل د مجرمانو نه دهغوئ د جرمونو په باره کښې تپوس اوشي نو هغوئ به په قسمونو خوړلو دهغې نه انکار اوکړي. ځکه به ئې په ژبو او خلو مهرونه اولګولې شي. د پښو لاسونو او نورو اندامونو نه به ئې پرې ګواهي اخستې شي. دا دریواړه تفسیرونه ابن کثیر نقل کړي دي[۱] چې خپل مینځ کښې سره نزدې دي، هیڅ بې سموني په کښې نشته.

[يُعۡرَفُ الۡمُجۡرِمُوۡنَ بِسِيۡمٰهُمۡ فَيُؤۡخَذُ بِالنَّوَاصِيۡ وَالۡاَقۡدَامِ ﴿ؕ۴۱﴾] د [سِيۡمٰهُمۡ] معنی نخښه ده، حسن بصري رحمه الله فرمائیلي دي چې په دغه ورځ مجرمان چې دکومو به په جهنم کښې د اچولو فیصله کیږي دهغوئ علامت به داوي چې مخونه به ئې تور او سترګې شنې وين و دغم خفګان په وجه به ئې مخونه زروند وي فرښتې به ئې ددغې نخښو په ذریعه نیسي.

[نَوَاصِيۡ] د ناصیه جمع ده د تندي ویښتو ته وئیلې شي، د نواصي او اقدام نه د نیولو دا مطلب هم کیدې شي چې څوک به دسر د ویښتو نه رانښکلې شي او څوک د پښو نه یا به هر یو کس کله په یو شان او کله په بل شان نیولې او راښکلې شي او دا معنی ئې هم کیدې شي چې د سرو ویښتها و پښې به ئې یو ځائې کړې شي، [دا ضحاک اوفرمائیل، روح][۲].

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| | | | وَلِمَنۡ | خَافَ |
| | | | او دپاره دهغه چا | چې اویریدو |
| | | |  ......اوڅوک چې دخپل رب په وړاندې | |
| مَقَامَ | رَبِّهٖ | جَنَّتٰنِ ﴿ۚ۴۶﴾ | فَبِاَيِّ الَآءِ | رَبِّكُمَا |
| دودریدو نه \| رب | خپل ته | دوه باغونه دي | پس کوم یو نعمت به | درب ستاسو |
| د پیش کیدو نه ویریږي | نو هغوئ دپاره دوه باغونه دي | نو تاسو به دخپل رب کوم کوم نعمت | | |

[۱] تفسیر ابن کثیر [ج: ۷ ص:۴۹۹]
[۲] روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۲۰ ص:۱۵۶]

تُكَذِّبٰنِ ﴿٤٧﴾ ذَوَاتَآ اَفْنَانٍ ﴿٤٨﴾ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا

دروغ گنړئ تاسو | [باغونه] خاوندان | دشنو ښانگو | پس کوم یو نعمت به | درب ستاسو |

دروغ گنړئ | په دې دواړو باغونو کښې به ډیر ښاخونه وی | نو تاسو به دخپل رب کوم کوم نعمت

تُكَذِّبٰنِ ﴿٤٩﴾ فِيْهِمَا عَيْنٰنِ تَجْرِيٰنِ ﴿٥٠﴾ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ

دروغ گنړئ تاسو | په هغې دواړو کښې به وی | دوه چینې | روانې | پس کوم یو نعمت به

دروغ گنړئ | په دې دواړو باغونو کښې دوه چینې بهیږی | ..........نو تاسو به دخپل

رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٥١﴾ فِيْهِمَا مِنْ كُلِّ فَاكِهَةٍ زَوْجٰنِ ﴿٥٢﴾

درب ستاسو | دروغ گنړئ تاسو | په هغې دواړو کښې به وی | دهرې میونې نه | دوه قسمه

رب کوم کوم نعمت دروغ گنړئ | په هغې کښې به دهرې یوې میوې دوه دوه قسمونه وی

فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٥٣﴾ مُتَّكِـِٕيْنَ عَلٰى فُرُشٍۢ

پس کوم یو نعمت به | درب ستاسو | دروغ گنړئ تاسو | تکیه وهونکی به وی | په داسې فرشونو باندې

نو تاسو به دخپل رب کوم کوم نعمت دروغ گنړئ | ..........هغوئ به داسې فرشونو باندې

بَطَآئِنُهَا مِنْ اِسْتَبْرَقٍ ؕ وَجَنَا الْجَنَّتَيْنِ دَانٍ ﴿٥٤﴾

چې استرونه دهغې به | دغټو ریښمونه وی | او میوه | دباغونو به | ښکته زنګیدونکې وی

ډډې وهونکې ناست وی | چې د هغې استرونه به د غټو ریښمونه جوړوی | او د دواړو باغونو میوې به نژدې وی

فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٥٥﴾ فِيْهِنَّ قٰصِرٰتُ

پس کوم یو نعمت به | درب ستاسو | دروغ گنړئ تاسو | په دغه نعمتونو کښې به | لنډ کتونکې حورې وی

نو تاسو به دخپل رب کوم کوم نعمت دروغ گنړئ | .......... په هغې کښې به سترګې ښکته

الطَّرْفِ ۙ لَمْ يَطْمِثْهُنَّ اِنْسٌ قَبْلَهُمْ وَلَا جَآنٌّ ﴿٥٦﴾

چې ګوتې به نه وی وروړې هغوئ له | یو انسان | مخکښې ددې جنتیانونه | او نه یو پیری

ساتونونکې ښځې وی | چې ددې جنتیانونه وړاندې چا انسان یا پیری به لاس هم نه وی وراوړې

فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٥٧﴾ كَاَنَّهُنَّ الْيَاقُوْتُ

پس کوم یو نعمت به | درب ستاسو | دروغ گنړئ تاسو | داسې ښائیسته لکه چې هغوئ | یا قوت

نو تاسو به دخپل رب کوم کوم نعمت دروغ گنړئ | هغه ښځې به داسې [سرې سپینې] وی | لکه یاقوت

وَالْمَرْجَانُ ﴿٥٨﴾ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٥٩﴾ هَلْ جَزَآءُ الْاِحْسَانِ

او مرجان وی | پس کوم یو نعمت به | درب ستاسو | دروغ گنړئ تاسو | نه ده بدله دنیکئ

او مرجان | نو تاسو به دخپل رب کوم کوم نعمت دروغ گنړئ | ..........او د احسان بدله د

اِلَّا الْاِحْسَانُ ﴿٦٠﴾ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٦١﴾ وَمِنْ دُوْنِهِمَا

مگر نیکی ده | پس کوم یو صفت به | درب ستاسو | دروغ گنړئ تاسو | او علاوه ددغه دوو باغونو نه

احسان نه سوا بله څه ده | نو تاسو به دخپل رب کوم کوم نعمت دروغ گنړئ | او ددې دواړو نه علاوه

جَنَّتٰنِ ﴿٦٢﴾ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٦٣﴾ مُدْهَآمَّتٰنِ ﴿٦٤﴾

به دوه باغونه نور وی | پس کوم یو نعمت به | درب ستاسو | دروغ گنړئ تاسو | شنه شنه گڼ باغونه

دوه باغونه نور دی | نو تاسو به دخپل رب کوم کوم نعمت دروغ گنړئ | دواړه باغونه تک شنه دی

فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٦٥﴾ فِيْهِمَا عَيْنٰنِ

پس کوم یو نعمت به | درب ستاسو | دروغ گنړئ تاسو | په هغې دواړو کښې به | دوه چینې وی

نو تاسو به دخپل رب کوم کوم نعمت دروغ گنړئ | ..........په دې باغونو کښې به د اوبو دوه

نَضَّاخَتٰنِ ﴿٦٦﴾ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٦٧﴾

جوش وهونکې [دفوارې پشان] | پس کوم یو نعمت به | درب ستاسو | دروغ گنړئ تاسو

چینې راخوټکیږی | ..........نو تاسو به دخپل رب کوم کوم نعمت دروغ گنړئ

فِيْهِمَا فَاكِهَةٌ وَّنَخْلٌ وَّرُمَّانٌ ﴿٦٨﴾ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ

په هغې دواړو کښې به | میوې وی | او کجورې به وی | او انار به وی | پس کوم یو نعمت به

په دې [باغونو] کښې به میوې او کهجورې او انار وی | ..........نو تاسو به دخپل

رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٦٩﴾ فِيْهِنَّ خَيْرٰتٌ حِسَانٌ ﴿٧٠﴾

درب ستاسو | دروغ گنړئ تاسو | په دې نعمتونو کښې به | نیک خویه | ښائیسته ښځې وی |

رب کوم کوم نعمت دروغ گنړئ | په دې باغونو کښې به نیک خویه ښکلې ښځې وی

فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٧١﴾ حُوْرٌ مَّقْصُوْرٰتٌ

پس کوم یو نعمت به | درب ستاسو | دروغ گنړئ تاسو | حورې به وی | پټې ساتلې شوی |

نو تاسو به دخپل رب کوم کوم نعمت دروغ گنړئ | ..........دا حورې به په خیمو کښې

فِى الْخِيَامِ ﴿٧٢﴾ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٧٣﴾ لَمْ يَطْمِثْهُنَّ

په خیمو کښې | پس کوم یو نعمت به | درب ستاسو | دروغ گنړئ تاسو | گوتې به نهٔ وی وړ وړې هغوئ له

محفوظې وی | نو تاسو به دخپل رب کوم کوم نعمت دروغ گنړئ | ددوئ نه وړاندې به ورته چا

اِنْسٌ قَبْلَهُمْ وَلَا جَآنٌّ ﴿٧٤﴾ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا

یو انسان | مخکښې ددې جنتیانو نه | او نهٔ یو پیری | پس کوم یو نعمت به | درب ستاسو

انسان یا پیروی لاس نه وی وراوړې | ..........نو تاسو به دخپل رب کوم کوم نعمت

تُكَذِّبٰنِ ﴿٧٥﴾ مُتَّكِـِٕيْنَ عَلٰى رَفْرَفٍ خُضْرٍ

دروغ گنړئ تاسو | ډډې وهونکې به ناست وی | په قالینونو باندې | چې شین رنگې به وی

دروغ گنړئ | ..........دوئ بهٔ شنو شنو قیمتی قالینونو

وَّعَبْقَرِيٍّ حِسَانٍ ﴿٧٦﴾ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٧٧﴾

صفا سوتره به وی | او ښائیسته به وی | پس کوم یو نعمت به | درب ستاسو | دروغ گنړئ تاسو

اوپه ښائسته صوفو ډډې وهلې وی | نو تاسو به دخپل رب کوم کوم نعمت دروغ گنړئ

| تَبٰرَكَ | اسْمُ | رَبِّكَ | ذِي الْجَلٰلِ | وَالْاِكْرَامِ |
|---|---|---|---|---|
| ډیر برکتناک دی | نوم | درب ستا | چې خاوند دلویئ دی | او دعزت ورکولو دی |

ستاد رب نوم ډیر برکتی دی | چې د لوئې شان او عزت خاوند دی

## آسان ترجمه قرآن

او کوم سړی چه (په دنیا کښې) د خپل پروردګار مخکښې اودریدلو نه ویرېږی، د هغه دپاره به دوه باغونه وی اوس اووایئ، چه تاسو به د خپل پروردګار کوم کوم نعمتونه دروغ ګنړئ؟ دواړه باغونه به د ښاخونو نه ډک وی اوس اووایئ، چه تاسو به د خپل پروردګار کوم کوم نعمتونه دروغ ګنړئ؟ په دغې دوؤ باغونو کښې به دوه چینې بهیږی اوس اووایئ، چه تاسو به د خپل پروردګار کوم کوم نعمتونه دروغ ګنړئ؟ په دغې دواړو کښې به د هرې میوې دوه دوه جوړې وی. اوس اووایئ، چه تاسو به د خپل پروردګار کوم کوم نعمتونه دروغ ګنړئ؟ هغوی (جنتیان) به په داسې بسترو باندې تکیه لګولې وی، چه د هغې استر به د ورېښمو نه وی، او د دواړو باغونو میوې به راښکته شوې وی. "اوس اووایئ، چه تاسو به د خپل پروردګار کوم کوم نعمتونه دروغ ګنړئ؟ " په دغې باغونو کښې به هغه (حورې) ښکته کونکې د نظرونو وی، چه هغوی ته به ددې جنتیانو نه مخکښې نه چرته انسان رسیدلې وی، او نه پېرې "اوس اووایئ، چه تاسو به د خپل پروردګار کوم کوم نعمتونه دروغ ګنړئ؟ " هغه به داسې وی لکه یاقوت او مرجان "اوس اووایئ، چه تاسو به د خپل پروردګار کوم کوم نعمتونه دروغ ګنړئ؟" د نیکئ بدله د نیکئ نه سوا نور څه ده؟ "اوس اووایئ، چه تاسو به د خپل پروردګار کوم کوم نعمتونه دروغ ګنړئ؟ " او په دغې باغونو کښې به څه کمې درجې والا دوه باغونه نور وی اوس اووایئ، چه تاسو به د خپل پروردګار کوم کوم نعمتونه دروغ ګنړئ؟ دواړه (باغونه) به د شینکی د ډیروالی د وجې نه توروالی ته مائل وی اوس اووایئ، چه تاسو به د خپل پروردګار کوم کوم نعمتونه دروغ ګنړئ؟ په هغې کښې به جوش وهونکې چینې وی. اوس اووایئ، چه تاسو به د خپل پروردګار کوم کوم نعمتونه دروغ ګنړئ؟ په هغې کښې به میوې او کهجورې او انار وی. اوس اووایئ، چه تاسوبه دخپل پروردګار کوم کوم نعمتونه دروغ ګنړئ؟ په هغې کښې به ښائسته سیرت او ښائسته صورت والا بیبیانې وی. اوس اووایئ چه تاسوبه د خپل پروردګار کوم کوم نعمتونه دروغ ګنړئ؟ هغه حورې، چه په خیمو کښې به حفاظت سره ساتلې شوې وی اوس اووایئ، چه تاسوبه دخپل پروردګار کوم کوم نعمتونه دروغ ګنړئ؟ هغوی ته به ددې جنتیانو نه مخکښې نه چرته انسان رسیدلې وی، او نه پېرې. اوس اووایئ، چه تاسو به د خپل پروردګار کوم کوم نعمتونه دروغ ګنړئ؟ (هغې جنتیانو به) په شنو قالینونو باندې او په عجیبه قسم ښائسته بسترو باندې تکیه لګولې وی اوس اووایئ، چه تاسو به د خپل پروردګار کوم کوم نعمتونه دروغ ګنړئ؟ ډیر برکت والا نوم دې ستا د پروردګار چه عظمت والا هم دې، او کرم والا هم دې.

## خلاصه تفسیر

په دې ایتونو کښې ددوه باغونو ذکرد وَلِمَنْ خَافَ نه شروع شوې دې دنورو دوه باغونو ذکر د وَمِنْ دُوْنِهِمَا نه اولنی دوه باغونه د خواصومقربینو دی وروستنی دوه باغونه دعامو مؤمنانو دپاره

دليلونه ددې تعين اوتقسيم به وراندې وليکلې شي دلته صرف تفسير ليکلې شي په تيرو آيتونو کښې دمجرمانو دسزا ګانوذکر وو دلته دمؤمنانوصالحانو دجزاء ذکر شروع کيږي [او] د جنتيانوحال دادې چه په دوئ کښې دوه قسمه دي خواص او عوام پس ﴿وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهٖ جَنَّتٰنِ﴾ [کوم سړې] چه دخواصونه وي او [د خپل رب په وړاندې د اودريدو نه] هروخت [ويريږي] اوويريږي چه دشهوتونو او نافرمانيونه ځان ساتي او داشان د خواصودې ځکه چه په عواموخوکله کله ويره راځي اوکله ددوئ نه ګناهونه هم کيږي اګر چه توبه وباسي غرض کوم سړې چه داسې متقي وي [د هغه دپاره] په جنت کښې [به دوه باغونه وي] يعني دهرمتقي دپاره به دوه باغونه وي او غالبا په دې تعدادکښې حکمت ددوئ دتکرم اوتنعم اظهاردې لکه چه څنګه په دنياکښې دنعمت د خاوندانو سره اکثرمنقولات او غيرمنقولات څيزونه ډير وي ﴿فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ﴾ [پس اے پيريانواو بنيادمو] سره ددومره کثرت او عظمت دنعمتونو [تاسويه دخپل رب دکوموکومونعمتونونه منکريږئ؟] ﴿ذَوَاتَاۤ اَفْنَانٍ﴾ او دغه [دواړه باغونه به ډيرو ښاخونو والاوي] په دې کښې دسورې دګنړيدو او دميوو ډيروالي طرف ته اشاره ده ﴿فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ﴾ [پس اے پيريانواو بنيادمو] سره دومره کثرت او عظمت د نعمتونو [تاسو به دخپل رب دکوموکومو نعمتونونه منکريږئ؟] ﴿فِيْهِمَا عَيْنٰنِ تَجْرِيٰنِ﴾ په دې دواړو باغونو کښې به [دوه چينې وي چه] ترلرې پورې به [بهيدونکې رواني وي] ﴿فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ﴾ پس اے پيريانو او بنيادمو] سره ددومره کثرت او عظمت دنعمتونو [تاسويه دخپل رب د کومو کومونعمتونونه منکريږئ؟] او ﴿فِيْهِمَا مِنْ كُلِّ فَاكِهَةٍ زَوْجٰنِ﴾ [په دې دوؤ باغونو کښې به دهرې ميوې دوه قسمونه وي] چه په دې کښې زيات خوند اومزه ده کله ديو قسم مزه اخلې کله دبل قسم ﴿فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ﴾ [پس اے پيريانو او بنيامو] سره ددې دومره کثرت او عظمت دنعمتونو [تاسويه دخپل رب دکوموکومو نعمتونو نه منکريږئ؟] او ﴿مُتَّكِـِٕيْنَ عَلٰى فُرُشٍۢ بَطَآئِنُهَا مِنْ اِسْتَبْرَقٍ ۚ وَجَنَا الْجَنَّتَيْنِ دَانٍ﴾ [دغه خلق به تکيه لګولې په داسې فرشونو باندې ناست وي دکومو استر چه به دغټو ريخمووي] او قاعده ده چه دپاسه کپړه په نسبت داسترزياته نفيسه وي پس هرکله چه ئې استرد استبرقووي نو چه دپاسه به څنګه وي [اوددې دواړو باغونوميوه به ډيره نزدې وي] چه په ولاړې ناستې ملاستې هرشان سره به په لاس راځي ﴿فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ﴾ [پس اے پيريانو او بنيادمو] سره ددومره کثرت اوعظمت دنعمتونو [تاسويه دخپل رب کوم کوم نعمتونونه منئ؟] او ﴿فِيْهِنَّ قٰصِرٰتُ الطَّرْفِ ۙ لَمْ يَطْمِثْهُنَّ اِنْسٌ قَبْلَهُمْ وَلَا جَآنٌّ﴾ [په دې] باغونو په مکاناتواومحلاتو] کښې به ښکته نظر کوونکې] يعني حورانې [وي چه ددې] جنتي [خلقونه وړاندې به په دوئ نه چا بنيادم تصرف کړې وي اونه چاپيرې] يعني بالکل محفوظې غير مستعملې شوې به وي ﴿فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ﴾ [پس اے پيريانو اوبنيادمو] سره ددومره کثرت او عظمت دنعمتونو [تاسو به دخپل رب دکوموکومو نعمتونونه منکريږئ؟] او رنګونه به ئې دومره صفا او شفاف وي چه ﴿كَاَنَّهُنَّ الْيَاقُوْتُ وَالْمَرْجَانُ﴾ [ګويادغه ياقوت او مرجان دي] اوممکنه ده چه تشبيه په سرخئ کښې هم وي او تعدد دمشبه به غالبا داهتمام دپاره وي ﴿فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ﴾ [پس اے پيريانو اوبنيادمو] سره ددمره کثرت اوعظمت د نعمتونو [تاسويه دخپل رب دکوموکومونعمتونو نه منکريږئ؟] وړاندې د

ذکرشوی مضمون تقریر او تاکیدذي چه ﴿هَلْ جَزَآءُ الْإِحْسَانِ إِلَّا الْإِحْسَانُ﴾ [آیادغایت اطاعت بدله بغیردعنایت نه بله څه کیدي شي] دوئ انتهائی اطاعت وکړو پس په صله کښې هم دغایت عنایت مورد شو ﴿فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ﴾ [پس اے پیریانو اوبنیادمو] سره ددومره کثرت او عظمت دنعمتونو [تاسو به د خپل رب د کومو کومونعمتونونه منکریږئ؟] دا خو دخواصود باغونودصفت ذکر اوشو [او] مخکښې دعامو مؤمنانو دباغونو ذکردې یعنی ﴿وَمِنْ دُونِهِمَا جَنَّتَانِ﴾ [ددې] ذکر شوو [دوه باغونونه په کمه درجه کښې دوه باغونه نوردی] کوم چه دعامومؤمنانودپاره دی او هریو ته به دوه دوه ملاویږی ﴿فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ﴾ [پس اے پیریانواوبنیادمو] سره ددومره کثرت او عظمت دنعمتونو[تاسوبه دخپل رب دکوموکومو نعمتونونه منکریږئ؟] او وړاندې ددې باغونوصفت دې چه ﴿مُدْهَامَّتَانِ﴾ [دغه دواړه باغونه به ډیرزیات شنه وی ﴿فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ﴾ پس اے پیریانو اوبنیادمو] سره ددومره کثرت اوعظمت دنعمتونو[تاسو به دخپل رب دکوموکومو نعمتونونه منکریږئ؟ ﴿فِيهِمَا عَيْنَانِ نَضَّاخَتَانِ﴾ په دې دواړو باغونوکښې به دوه چینې وی چه جوش به وهی ﴿فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ﴾ پس اے پیریانو اوبنیامو] سره ددومره کثرت اوعظمت دنعمتونو[تاسوبه دخپل رب دکوموکومونعمتونونه منکریږئ؟] جوش وهل په وجه ددې چه دادچینې دلوازمونه دی په برنو چینوکښې هم داصفت مشترك وو اوهلته تجرین هم دې او دلته نشته پس داقرینه ده ددې چه داچینې په صفت دجریان کښې داولودواړو چینونه کمې دی او داباغونه دهغو دواړو باغونو نه کم دی او ﴿فِيهِمَا فَاكِهَةٌ وَنَخْلٌ وَرُمَّانٌ﴾ [په دې دواړو باغونوکښې به میوې او کجورې او اناروی ﴿فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ﴾ پس اے پیریانو اوبنیامو] سره ددومره کثرت اوعظمت دنعمتونو[تاسوبه دخپل رب دکوموکومو نعمتونونه منکریږئ؟] دلته مطلق فاکهه او بیاپه تفصیل کښې په نخل او رمان باندې بس کول اوهلته په لفظ دکل سره دهر قسم فواکهو وضاحت او بیاپه لفظ د زوجان سره ددوئ دډیروالی ذکرپه کوم سره چه دفواکهې کثرت معلومیږی داټول قرائن ددې دی چه اولنی باغونه ددې وروستنوباغونونه افضل او اعلی دی او ﴿فِيهِنَّ خَيْرَاتٌ حِسَانٌ﴾ [ددې] باغونو په مکانونو[کښې به خوب سیرته او خویصورته ښځې به وی] یعنی حورې ﴿فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ﴾ [پس اے پیریانو اوبنیادمو] سره ددومره کثرت او عظمت دنعمتونو[تاسو به دخپل رب دکومو کومونعمتونونه منکریږئ؟ ﴿حُورٌ مَقْصُورَاتٌ فِي الْخِيَامِ﴾ هغه ښځې به غنم رنګې وی] او [په خیموکښې به محفوظې وی ﴿فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ﴾ پس اے پیریانو اوبنیامو] سره ددومره کثرت اوعظمت دنعمتونو[تاسوبه دخپل رب دکوموکومو نعمتونونه منکریږئ؟] او ﴿لَمْ يَطْمِثْهُنَّ إِنْسٌ قَبْلَهُمْ وَلَا جَانٌّ﴾ [ددې] جنتی [خلقونه به وړاندې نه په دوئ باندې چابنیادم تصرف کړې وی اونه چاپیری] یعنی غیر مستعمل به وی ﴿فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ﴾ [پس اے پیریانو اوبنیامو] سره ددومره کثرت اوعظمت دنعمتونو[تاسوبه دخپل رب د کومو کومو نعمتونو نه منکریږئ؟] هلته دیاقوتو اومرجانو سره تشبه ورکول کومه چه مفید مبالغې ده اودلته صرف په حسان باندې بس کول دارنګ قرینه ده چه اولنی دوه باغونه ددې ورستودوه باغونه افضل دی او ددې ځای ټول صفتونه هلته صراحتایا اشارتا مذکوردی مثلاخوش سیرته کیدل د قصرات الطرف معلوم شوحورکیدل په قرینې دمقام سره

معلومیږی دمقصورات نه زیات عصمت او عفت باندې لفظ دقصرت الطرف دلالت کوی چه څوك داسې وی هغه به ضرور په کورکښې اوسیږی او﴿مُتَّكِئِينَ عَلَىٰ رَفْرَفٍ خُضْرٍ وَعَبْقَرِيٍّ حِسَانٍ﴾[هغه خلق به په شنومشجرو اوعجیبه خویصورته جامو] په فرشونو [تکیه لګولی ناست وی﴿فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ﴾ پس اے پیریانواوبنیادمو] سره ددومره کثرت اوعظمت دنعمتونو[تاسویه دخپل رب دکوموکومونعمتونونه منکریږئ؟] په دې کښې به غورکولوسره معلومیږی چه ددې دوه باغونو فرش به چه نسبت داولو دوه باغونونه په کمه درجه وی څکه چه هلته تصریح ده په ریخمی کیدو بیاپه غبرګ کیدو او دلته نشته اوس وړاندې په خاتمه کښې دالله تعالی ثناصفت دې په کوم کښې چه ددې ټولومضامینوکوم چه په سوره رحمن کښې په تفصیل سره بیان شوی دی تائیداو تاکیددې چه ﴿تَبَارَكَ اسْمُ رَبِّكَ ذِي الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ﴾[لوئ بابرکت دې نوم ستادرب کوم چه عزت والا اواحسان والادې] دنوم نه مرادصفتونه دی کوم چه دذات نه غیرنه دی پس حاصل دجملې ثناء شوه دکمال د ذات او صفاتوسره او شایددلفظ داسم په زیاتولو سره مقصود مبالغه وی چه مسمی څومره کامله او بابرکته وی ددهٔ خو اسم هم مبارك او کامل دې.

## معارف او مسائل

څنګه چې په رومبو آیتونو د مجرمانو دسختو سزاګانو بیان وو ، په دې آیتونو کښې دهغوئ بالمقابل د مؤمنانو صالحانو د اعلی جزاګانو او نعمتونو بیان دې چې په کښې د جنتیانو د رومبو دوؤ باغونو او دې کښې د موجود نعمتونو بیان دې ، دې څخه روستو د نورو دوؤ باغونو او په دې کښې تیار کړو شوؤ نعمتونو بیان دې .

**رومبي دوه باغونه چې كومو حضراتو دپاره مخصوص دى هغه په دې شان په ګوته كړې شو:*:** ﴿وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ﴾ یعنی ددې دوؤ باغونو حقدار هغه خلق دی چې هر وخت په هر حال کښې د الله ﷻ په وړاندې د قیامت د ورځې د پیشئ اوحساب کتاب څخه ویریږی ، چې په نتیجه کښې ئې د هیڅ ګناه خواته نه ورځی، ښکاره خبره ده چې داسې خلق خاص سابقین او مقربین کیدې شی.

د نورو دوؤ باغونو حقدار بهٔ څوك خلق وی ، ددې وضاحت په دغې آیتونو کښې نه دې کړې شوې خو داخودلې شوی دی چې دابه د رومبودوؤ باغونوڅخه په درجه کښې کم وی لکه فرمائی :

﴿وَمِن دُونِهِمَا جَنَّتَانِ﴾ یعنی د رومبو دوؤ باغونو نه کم درجه دوه باغونه نور دی ددې مقام د قرینې نه معلوم شو چې ددې دواړو باغونو حقدار به عام مؤمنان وی چې خاصو نژدیکانو څخه په درجه کښې کم وی].

د رومبو او د نورو دوؤ باغونو په تفسیر کښې مفسرینو حضراتو نور هم توجیهات بیان کړی دی دلته دا اختیار کړې تفسیر چې رومبنی دوه باغونه د سابقین اولین او خاص مقربین دپاره دی او نور دوه باغونه دعامو مؤمنانو دپاره دی او دا چې نور دوه باغونه د رومبو دوؤ باغونو څخه په درجه کښې کم دی د حدیث د روایتونو تر مخه هم دا تفسیر غوره معلومیږی لکه چې بیان القرآن د در منثور په حواله دا مرفوع حدیث نقل کړې دې چې نبی کریم ﷺ د آیت :*:

﴿وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ جَنَّتَانِ﴾ او ﴿وَمِن دُونِهِمَا جَنَّتَانِ﴾ په تفسیر کښې اوفرمائیل :

﴿جنتان من ذهب للمقربين وجنتان من ورق لاصحاب اليمين﴾ [مقربينو دپاره دسرو زرو دوه باغونه جوړ شوي دي او اصحاب اليمين دپاره دوه باغونه د چاندئ يعنې سپينو زرو جوړ شوي دي چې نيکان مؤمنان دي] داشان په در منثور[1] کښې د براء بن عازب ﷺ څخه دا موقوف روايت شوي دې چې : ﴿العينان تجريان خيرمن النضاختان﴾ [دکومو دوؤ چينو باره کښې چې تجريان وئيلې شوي دي هغه زياتې غوره دي دهغې دوؤ چينو څخه دکومو باره کښې چې ﴿نضاختان﴾ [فرمائيلی دی ځکه چې د نضاختان معنی خوټکيدلې دوه چينې نو دا صفت په هره چينه کښې ی ليکن کومو لره يې چې د تجريان په عنوان سره بيان کړی دی په هغو کښې د خټکيدلو نه علاوه تر لرې پورې دزمکې په سر باندې د بهيدلو صفت په کښې زيات وی.

جنتيانو ته د حاصليدونکو څلورو چينو دا اجمالی بيان وو. اوس ددې آيتونود الفاظو سره دهغې معنې اوکورئی فرمائی چې :*:

﴿وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ﴾ د اکثرو مفسرينو په نزد د مقام رب څخه مراد د قيامت په ورځ د الله ﷻ په وړاندې حساب دپاره پيش کيدل دی ، او ددې څخه د ويريدو مطلب دادې چې په جلوت او خلوت کښې او د ظاهر ،باطن په ټولو حالاتو کښې دهغه دا مراقبه هميشه وی چې ماله يوه ورځ د الله ﷻ په وړاندې پيش کيدل اود عملونو حساب ورکول دی او ښکاره ده چې دداسې مراقبې خاوند به دګناه خواته هم نه اورځی ، او قرطبی وغيره مفسرينو حضراتو د مقام رب دا تفسير هم کړې دې چې الله ﷻ زمونږ په هر قول او فعل او پټ او ښکاره عمل باندې نګران او قائم دې ، زمونږ هر حرکت د هغه په وړاندې دې نو ددې حاصل به هم هغه وی چې د الله ﷻ دا مراقبه به ئې ګناهونو څخه محفوظ ساتی.

﴿ذَوَاتَا أَفْنَانٍ﴾ دا دواړه د ړومبو دوؤ باغونو صفت دې چې د ډيرو څانګو والا به وی چې ددې دا اثر لازمی دې چې سويرې به ئې هم ګڼې اوګور وی او ميوې به ئې هم زياتې وی ، نور دوه باغونه چې بيان ئې راروان دې دهغې دا صفت نه دې بيان شوې چې په کښې اشاره ددې کمئ ته کيدې شی.

﴿فِيهِمَا مِن كُلِّ فَاكِهَةٍ زَوْجَانِ﴾ د ړومبو دوؤ باغونو په صفت کښې د ﴿مِن كُلِّ﴾ الفاظو سره بيان شوی دی چې په دې کښې به هر قسم ميوې وی ، ددې په مقابله کښې نورو دوؤ باغونو دپاره صرف د ﴿فَاكِهَةٍ﴾ الفاظ راوړې شو چې ميوې به په کښې وی خو هر قسم نه.

د ﴿زَوْجَانِ﴾ معنی داده چې اوچې اولوندې بهٔ وی اوداهم کيدې شی چې يوقسم به دعامې مشهورې مزې وی اوبل قسم بهٔ خاص ددې څخه په ډيره لوړه پيمانه اوخوند کښې وی[مظهری]

﴿لَمْ يَطْمِثْهُنَّ إِنسٌ قَبْلَهُمْ وَلَا جَانٌّ﴾ د طمث لفظ ډير معنو دپاره استعماليږی ، د حيض وينې ته هم طمث وئيلې شی ، او حيضناکې ښځې ته هم طمث وئيلې شی ، پيغلې جينې سره کوروالی ته هم طمث وئيلې شی. دلته ئې هم دا معنی مراد ده ، ددې مطلب داهم کيدې شی چې دغې

[1] الدرالمنثور [ج:۹ ص:۳٦٧] و شعب الإيمان للبيهقي رقم الحديث[٤١٠]و المستدرك للحاكم رقم الحديث:[٢٨٢] (بإختلاف في الألفاظ)

حورو ته هيڅ انسان او پيرئ به لاس نه وی وروړي ځنګه چې د تفسير په خلاصه کښې بيان شو او داهم کيدې شی چې ځنګه په دنيا کښې په انسانی ښځو باندې چې کله پيريان هم اوګومارلي شی هلته به ددې هم څه امکان نه وی.

﴿هَلْ جَزَآءُ الْإِحْسَانِ إِلَّا الْإِحْسَانُ﴾ د خاصو نزديکانو د دوؤ باغونو د څه تفصيل بيانولو ځخه روستو ئې دا ارشاد اوفرمائيلو چې د احسان عمل جزاء هم ښه کيدې شی. ددې څخه سوا په کښې بل هيڅ احتمال نشته دې حضراتو چې د نيك عمل کولو هميشه پابندی اوکړه نو د الله ﷻ د طرفنه ورته د اعلی جزا بدله ورکول پکار وو چې دوئ ته ورکړې شوه.

﴿مُدْهَآمَّتَانِ﴾ د ډير زيات شينوالی په وجه چې کوم تور والې شان ښکاری هغې ته ادهمام وئيلې شی، مراد هم دادې چې ددې دواړو باغونو خيرازی به ددې د زيات شينوالی په وجه وی، دا صفت اګر چې په ړومبو دوؤ باغونو کښې نه دی بيان شوې خو دې څخه دا نه لازميږی چې ګنی په هغې کښې به دا صفت نه وی بلکه ﴿ذَوَاتَآ أَفْنَانٍ﴾ چې د هغوئ په صفت کښې بيان کړې شوی دی په هغه کښې د ﴿مُدْهَآمَّتَانِ﴾ صفت هم شامل دې.

﴿فِيهِنَّ خَيْرَاتٌ حِسَانٌ﴾ د ﴿خَيْرَاتٌ﴾ څخه مراد د سيرت او کردار ښه والې اود ﴿حِسَانٌ﴾ څخه مراد د شکل و صورت ښکلا ده. اودا خبره به هم د دواړو باغونو په حورو کښې شريکه وی چې اشاره ورته په تيرو شوؤ آيتونو کښې موجوده ده.

﴿مُتَّكِئِينَ عَلَىٰ رَفْرَفٍ خُضْرٍ وَعَبْقَرِيٍّ حِسَانٍ﴾ په قاموس کښې دی چې ﴿رَفْرَفٍ﴾ هغه شين رنګې ريښمينه کپړه چې ترې فرش، تکيه او د زينت نور سامان جوړولې شی. او په صحاح کښې دی چې په کومو باندې د ونو، بوټو او ګلونو نقشې وی په اردو کښې ورته مشجر وئيلې شی. ﴿وَعَبْقَرِيٍّ﴾ هرې اعلی او ښکلې کپړې ته وئيلې شی، په ﴿حِسَانٍ﴾ سره ددې د ښائست صفت بيان کړې شوې دې.

﴿تَبَارَكَ اسْمُ رَبِّكَ ذِي الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ﴾ سورة رحمان کښې زيات د الله ﷻ دنعمتونو اوپه انسان باندې داحساناتو بيان دې، ددې په ختميدو باندې د خلاصې په طور دا جمله ارشاد شوه چې دهغې پاك ذات خو به څه وائې چې نوم ئې هم زيات برکتی دې او هم د هغه لوئې ذات په نوم سره دا ټول نعمتونه قائم دی والله سبحانه وتعالی اعلم،

تمت: سورة الرحمن بحمد الله وعونه للحادي عشر من الربيع الثاني ۱۴۳۰ هجري يوم السبت

.....

| اياتونه | سورة الواقعه مكية وهي ست وتسعون اٰية وثلاث ركوعات | ركوع گاني |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | |
| ۹۶ | شروع كوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم كونكې دې | ۳ |

إِذَا وَقَعَتِ الْوَاقِعَةُ ۝١ لَيْسَ لِوَقْعَتِهَا كَاذِبَةٌ ۝٢

كله چې | راشي | هغه كيدونكې واقعه | نشته دې راتلو دهغې لره | دروغ كونكې يو نفس |

څه وخت چې قيامت راشي | د هغې په راتلو كښې هيڅ شک نشته

خَافِضَةٌ رَّافِعَةٌ ۝٣ إِذَا رُجَّتِ الْأَرْضُ

هغه به ښكته كونكې وي | پورته كونكې به وي | كله چې | اوخوزولې شي | زمكه

نوځوک به ښكته [ذليله] كړي | او ځوک بۀ اوچت [معزز] كړي | څه وخت چې به په زمكه

رَجًّا ۝٤ وَّبُسَّتِ الْجِبَالُ بَسًّا ۝٥ فَكَانَتْ

په خوزولو سختو سره | او ريز مريز كړې شي | غرونه | په ريزه كولو سختو سره | پس شي هغه

په ډير زور سره زلزله راشي | اوغرونه به ريزه ريزه شي | ..........نو

هَبَآءً مُّنْبَثًّا ۝٦ وَّكُنْتُمْ أَزْوَاجًا ثَلٰثَةً ۝٧ فَأَصْحٰبُ الْمَيْمَنَةِ

دوړه | خوره وره | او شئ تاسو | قسمونه [ډلې] | درې | پس يوه ډله به وي ښي طرف والا

خوره [الوتلې] دوړه به شي | اوستاسو بۀ درې ډلې شي | نود [عرش د] ښي طرف خاوندان به وي

مَآ أَصْحٰبُ الْمَيْمَنَةِ ۝٨ وَأَصْحٰبُ الْمَشْئَمَةِ مَآ أَصْحٰبُ الْمَشْئَمَةِ ۝٩

څه ښه نصيبي دي ښي طرف والا | او بله ډله گس طرف والا | څه بد نصيبه دي گس طرف والا |

د ښي طرف خاوندان څومره ښه خلق دي | اود گس طرف خاوندان | د گس طرف خاوندان څومره خراب خلق دي

وَالسّٰبِقُوْنَ السّٰبِقُوْنَ ۝١٠ أُولٰٓئِكَ

او مخكښې كيدونكي په نيكۍ كښې | مخكښې كيدونكې به وي په جنت كښې | هم دغه خلق

اوكوم چې داوچتې مرتبې خاوندان دي | ..........نوهغوئ د اوچتې مرتبې خاوندان

الْمُقَرَّبُوْنَ ۝١١ فِيْ جَنّٰتِ النَّعِيْمِ ۝١٢ ثُلَّةٌ مِّنَ الْأَوَّلِيْنَ ۝١٣

نزديكان دي [الله ته] | په جنتونو دنعمتونو كښې به وي | لويه ډله به وي | داولنو خلقو نه

دي | هغوئ [الله] ته ډير نزدې دي | دنعمتونو دكو باغونه كښې به وي | په دې كښې به زيات دپخوانو خلقو وي

وَقَلِيْلٌ مِّنَ الْاٰخِرِيْنَ ۝١٤ عَلٰى سُرُرٍ مَّوْضُوْنَةٍ ۝١٥

او لږ به وي | دروستنو خلقو نه | ناست به وي په تختونو باندې | چې ښرلې شوي به وي په ملغلرو سره

او لږ به د روستنو خلقو نه وي | ..........دوئ بۀ دسرو زرو په تارونو ښرلې شوۀ تختونو ،

مُّتَّكِـِٔيْنَ عَلَيْهَا مُتَقٰبِلِيْنَ ۝١٦ يَطُوْفُ عَلَيْهِمْ وِلْدَانٌ

ډډه وهونكي به وي | په هغې باندې | يو بل ته مخ كونكي | گرځي به | په هغوئ باندې | هلكان

ډډې لگولې يو بل ته مخامخ ناست وي | ..........داسې هلكان بۀ ورباندې ځيزونه گرځوي

مُّخَلَّدُوْنَ ﴿۱۷﴾ بِاَكْوَابٍ وَّاَبَارِيْقَ ﴿۱۸﴾ وَكَاْسٍ

چې همیشه به وی هلکوانی دهغوی | دپیالو سره | او دشیشې دبوتلونو سره | او دجامونو سره

چې تل به هلکان وی | پیالې اود شیشې بوتلې اود بهیدونکو شرابو [دکې] پیالې به وی |

مِّنْ مَّعِيْنٍ ﴿۱۸﴾ لَّا يُصَدَّعُوْنَ عَنْهَا وَلَا يُنْزِفُوْنَ ﴿۱۹﴾

اودروانې چینې دشرابونه | نهٔ به سرګردانه کیږی هغوی | دڅکلو دهغې نه | او نهٔ به ئې عقل خرابیږی

............دهغه په وجه به نه د هغوی سر درد راځی اونه ئې په عقل کښې خرابی راځی

وَفَاكِهَةٍ مِّمَّا يَتَخَيَّرُوْنَ ﴿۲۰﴾ وَلَحْمِ طَيْرٍ مِّمَّا

او دمیوو سره | دهغه قسمونونه | چې خوښوی ئې [جنتیان] | اودغوښې دمارغانو سره | دهغې قسم نه

اوداسې میوې کومې چې هغوی خوښوی | او د هر هغه مارغه غوښه به وی کومه چې د هغوی زړونه

يَشْتَهُوْنَ ﴿۲۱﴾ وَحُوْرٌ عِيْنٌ ﴿۲۲﴾ كَاَمْثَالِ اللُّؤْلُؤِ

چې زړونه ئې غواړی دهغوی | او حورې به وی | ښائیسته سترګو والا | پشان | دملغلرو

غواړی | اوحورې د غټو سترګو میرمنې | داسې پاکې لکه پټې ساتلې شوې

الْمَكْنُوْنِ ﴿۲۳﴾ جَزَآءًۢ بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۲۴﴾

پټو ساتلو شوو | دا به دبدلې په طور وی | په سبب دهغې عمل | چې وو هغوی | چې کوو به ئې

ملغلرې | ..............دا به دهغوی دنیکو عملونو بدله وی | چې هغوی به کول

لَا يَسْمَعُوْنَ فِيْهَا لَغْوًا وَّلَا تَاْثِيْمًا ﴿۲۵﴾ اِلَّا قِيْلًا

نهٔ به اوری هغوی | په هغې کښې | عبث خبرې | اونهٔ دګناه خبرې | مګر | یوه خبره |

نهٔ بهٔ هلته فضول خبره آوری | اونه دګناه وینا | بس هر طرفته به دسلام سلام آوازونه وی

سَلٰمًا سَلٰمًا ﴿۲۶﴾ وَاَصْحٰبُ الْيَمِيْنِ ﴿۲۷﴾ مَآ اَصْحٰبُ الْيَمِيْنِ ﴿۲۷﴾ فِىْ سِدْرٍ

سلام سلام | او ملګری دښی لاس | څومره ښه نصیبی دی ښی لاس والا | هغوی به په بیرو

..............او د ښی طرف خاوندان څومره ښه خلق دی | هلته بهٔ اوسیږی چې بې ازغو

مَّخْضُوْدٍ ﴿۲۸﴾ وَّطَلْحٍ مَّنْضُوْدٍ ﴿۲۹﴾ وَّظِلٍّ مَّمْدُوْدٍ ﴿۳۰﴾

بې ازغو کښې وی | او په کیلو قط په قط کښې به وی | او په سورو اوږدو کښې به وی |

بیرې به په کښې وی | او قط په قط کیلې به وی | او اوږده اوږوده سیورې به وی

وَّمَآءٍ مَّسْكُوْبٍ ﴿۳۱﴾ وَّفَاكِهَةٍ كَثِيْرَةٍ ﴿۳۲﴾ لَّا مَقْطُوْعَةٍ

او په اوبو جاریو کښې به وی | او په میوو ډیرو کښې به وی | چې نهٔ به ختمیدونکې وی |

اوبهیدونکې اوبه بهٔ وی | اوډیرې ډیرې میوې به وی | .............. نه بهٔ ختمیږی

وَّلَا مَمْنُوْعَةٍ ﴿۳۳﴾ وَّفُرُشٍ مَّرْفُوْعَةٍ ﴿۳۴﴾ اِنَّآ اَنْشَاْنٰهُنَّ

او نهٔ به پکښې څه منع وی | او په فرشونو اوچتو کښې به وی | ایشکه چې مونږ به پیدا کړوبیبیانې د هغوی

اونه بهٔ پرې باندې څهٔ بندیز وی | او اوچت اوچت فرشونه بهٔ وی | مونږ دهغې خائې ښځې ډیرې ښې روغې

إِنْشَاءً ۝ فَجَعَلْنٰهُنَّ أَبْكَارًا ۝ عُرُبًا أَتْرَابًا ۝

په نوي پيدا کولو سره | او جوړې به کړو مونږه هغوئ | نوې پيغلې جونې | عاشقانې | همزولې

کړې دي | داسې مو جوړې کړې دي | چې هميشه به پيغلې وي | محبوبې به وي | همځولې به وي

لِأَصْحٰبِ الْيَمِينِ ۝ ثُلَّةٌ مِّنَ الْأَوَّلِينَ ۝ وَثُلَّةٌ مِّنَ الْآخِرِينَ ۝

دپاره دملګرو دښي لاس | لويه ډله به وي | داولنو خلقو نه | او لويه ډله به وي | دروستنو خلقو نه

د ښي طرف د خاوانود پاره | په دوئ کښې به ډير دپخوانو خلقو نه وي | او ډير به د روستنو خلقو نه وي

وَأَصْحٰبُ الشِّمَالِ ۝ مَا أَصْحٰبُ الشِّمَالِ ۝ فِي سَمُومٍ

او دګس طرف خلق | څه بدنصيبي ده دګس طرف دخلقو | په ګرمو هواګانو کښې به وي |

اوڅوک چې دګس اړخ خاوندان وي[هائې هائې] دګس اړخ خاوندان څومره خراب خلق دي.

وَحَمِيمٍ ۝ وَظِلٍّ مِّنْ يَحْمُومٍ ۝ لَّا بَارِدٍ وَّلَا كَرِيمٍ ۝

اوپه ګرمو اوبوکښې به وي | اوپه سوري دتورلوګي کښې به وي | چې نه به يخ وي | اونه به آرام ورکونکي وي

په ګرمو بادونواو په ويشيدلو اوبو کښې اودتک تور لوګي په سيوری کښې به وي | چې نه به يخ وي او نه به

إِنَّهُمْ كَانُوا قَبْلَ ذٰلِكَ مُتْرَفِينَ ۝ وَكَانُوا يُصِرُّونَ

بيشکه هغوئ | وو | مخکښې ددې نه | خوشحاله [دولتمند] | اووو هغوئ | چې ټينګتيا به ئې کوله

زړه خوشحالوي | هغوی ددې قيامت نه وړاندې ډير خوشحاله وو | او په ډيره غټه ګناه [يعني شرک]

عَلَى الْحِنْثِ الْعَظِيمِ ۝ وَكَانُوا يَقُولُونَ ۝ أَئِذَا مِتْنَا

په ګناه لويه باندې | او وو هغوئ | چې وئيل به ئې | آيا هرکله چې | مړه شو مونږه

باندې انښتي وو | ..........اوداې به وئيل چې آيا مونږ يو خل مړه شو

وَكُنَّا تُرَابًا وَّعِظَامًا أَإِنَّا لَمَبْعُوثُونَ ۝ أَوَآبَاؤُنَا

او شو مونږه خاورې | او هډوکي | آيا مونږ به | دوباره راژوندي کيږو | آيا او پلاران زمونږه

او خاورې شو | اوهډوکي شو | نو لابيا به هم راژوندي کيږو | اوکه زمونږ پخواني پلاران

الْأَوَّلُونَ ۝ قُلْ إِنَّ الْأَوَّلِينَ وَالْآخِرِينَ ۝ لَمَجْمُوعُونَ ۝

مخکښي هم | ورته اووايه | بيشکه اولني | او آخرني خلق * | خامخا به راجمع کړې کيږي |

نيکونه ؟ | ائې محبوبه! ته ورته اووايه | چې وړاندينی او روستني ټول به د يوې مقررې ورځ

إِلَىٰ مِيقَاتِ يَوْمٍ مَّعْلُومٍ ۝ ثُمَّ إِنَّكُمْ أَيُّهَا الضَّالُّونَ الْمُكَذِّبُونَ ۝

وخت مقررته | دورځې معلومې | بيا به بيشکه تاسو | اے ګمراهانو | دروغ ويونکو

په معلوم وخت راجمع کيږئ | بيا به تاسو ائې ګمراهانو ؛ دروغ ګڼرونکو

لَآكِلُونَ مِنْ شَجَرٍ مِّنْ زَقُّومٍ ۝ فَمَالِئُونَ مِنْهَا الْبُطُونَ ۝

خامخا خوړونکي يئ | دونې دزقوم نه | پس ډکونکي به يئ | دهغې نه ختيو لره |

د زقوم دونې نه خوراک کوئ | ..........او هم ددې نه ختيې ډکونکې يئ

فَشٰرِبُوْنَ عَلَيْهِ مِنَ الْحَمِيْمِ ۚ فَشٰرِبُوْنَ شُرْبَ الْهِيْمِ ۗ

پس څکونکی به یئ | په هغې باندې | دګرمو اوبو نه | پس څکونکی به یئ | اېشان دتږو جل وهلو اوښانو

بیا په دې باندې ویشیدلې اوبه څښئ | ...................... بیا به دسخت تږی اوښ په شان

هٰذَا نُزُلُهُمْ يَوْمَ الدِّيْنِ ۗ

دا | میلمستیا ددوئ ده | په ورخ دجزاء |

څکاک کوئ | دابه دقیامت په ورځ دهغوئ میلمستیا وی |

## آسان ترجمه قرآن

چه کله هغه کیدونکې واقعه پیښه شی نو دهغې پیښیدلو لره به هیڅوک دروغژن کونکې نه وی. هغه به یو لاندې باندې کونکې څیز وی. چه کله زمکه یوې زلزلې سره اوجړقولې شی. او غرونه ذرې ذرې کړې شی تردې پورې چه هغه به الوځولې شوې ګرد پاتې شی. او (خلقو) تاسو به په دریو ډلو کښې تقسیم کړې شئ نوچه کوم ښې لاس والا دی، څه لوئې شان دې د ښې لاس والو او کوم چه ګس لاس والا دی. څه بدحال دې د ګس لاس والو او کوم چه سبقت وړونکې دی، هغوی خو دی سبقت اوړونکې داهم هغه دی، چه د الله تعالیٰ خاص نزدې بندګان دی. هغوی به د نعمتونو په باغونو کښې وی. د پخوانو خلقو نه ډیر. او د روستنو خلقو نه لږ. د سرو زرو تارونو نه جوړ کړې شوې اوچتو تختونو باندې. یو بل ته مخامخ په هغې باندې به ئې تکیه لګولې وی. همیشه دپاره هلکان به دهغوی مخښې ته ګرځی راګرځی. دَداسې شرابو پیالو، جګونو او جامونو سره چه هغې سره به نه د دوی په سر کښې درد راځی، او نه به بے هوشه کیږی. اوهغه میوې به اخلی، کومې چه هغوی خوښوی او د مارغانو هغه غوښه، چه هغې ته به ددوی زړه کیږی. اوهغه غټو سترګو والا حورې. داسې لکه پټې کړې شوې ملغلرې. دا ټول به بدله وی دهغې کارونو، کوم چه دوی کول. دوی به په دې جنت کښې نه څه عبث خبره اوری. او نه څه د ګناه خبره. خو چه کومه خبره کیږی، د سلامتۍ سلامتۍ به وی اوهغه چه د ښې لاس والا دی، نو څه ښه دی هغه ښې لاس والا .(هغوی به مزې کوی) دازغو نه پاک د بیرو په اونو کښې او لاندې باندې (تت په تت) د کیلو په اونو کښې.او لرې پورې خور شوې سورې کښې. او په بهیدونکو اوبو کښې او په ډیرو میوو کښې. چه نه به چرې ختمیږی، او نه به په هغوی باندې څه بندیز وی. او په اوچتو بسترو کښې به وی یقین اوکړه، مونږ هغه ښځو ته نوې پیدائش ورکړې دې پس هغوی لره مو پیغلې جوړې کړې دی (د خاوندانو دپاره) د مینې نه ډکې، په عمر کښې برابرې دا ټول هر څه د ښې لاس والو دپاره دی. (چه په دوی کښې به)ډیر خلق د مخکښنو نه وی. او ډیر به د روستنو نه وی اوکوم چه ګس لاس والا دی، څه بدحال دې د ګس لاس والو. هغوی به وی، په ګرموهواګانو کښې، او په خوټکیدلو اوبو کښې. او په تور لوګی کښې چه نه به یخ وی، او نه فائده رسونکې. دا خلق ددې نه مخکښې ډیر په مزو کښې وو. او په لویو درنو ګناهونو باندې به ټینګیدل او وئیل به ئې چه: آیا هرکله چه مونږ مړه شو، او خاورې او هډوکې شو، نو آیا مونږ لره به دوباره ژوندی کولې شی؟ او آیا زمونږ پخوا تیر شوې پلار نیکه هم؟ اووایه چه: یقیناً ټول مخکښنی او روستنی خلق. د یو مقرر کړې شوې ورځې په مقرر کړې شوې وخت باندې به ضرور راجمع کولې شی. بیا

تاسو اے دروغژن کونکو گمراهانو. خامخا د يو داسې اونې نه به خورونکي يئ، چه دهغې نوم زقوم دې بيا به دهغې نه گيډې ډکوی. بيا به دهغې نه پس خوټکيدلې اوبه څکل وی. او څکل هم داسې، څرنګه چه د تندې بيمارۍ والا (جَل وهلې) اوښ څکي دا به ميلمستيا وی، ددې خلقو د جزا او سزا په ورځ.

## خلاصه تفسير

﴿اِذَا وَقَعَتِ الْوَاقِعَةُ﴾ [هركله چه قيامت راشي ﴿لَيْسَ لِوَقْعَتِهَا كَاذِبَةٌ﴾ دكوم په واقع كيدو كښې چه څه خلاف نشته] بلكه واقع كيدل ئې بالكل صحيح او حق دی ﴿خَافِضَةٌ رَّافِعَةٌ﴾ [نوهغه به] خنولره [لاندكړي] اوخنولره به اوچت كړي] يعني د كفارو ذلت اود مؤمنانواوچت والي به په دغه ورځ ظاهرشي ﴿اِذَا رُجَّتِ الْاَرْضُ رَجًّا﴾ [هركله چه په] مزكه سخته زلزله راشي ﴿وَّبُسَّتِ الْجِبَالُ بَسًّا﴾ اوغرونه به بالكل ريزه ريزه شي ﴿فَكَانَتْ هَبَآءً مُّنْۢبَثًّا﴾ بيابه دغه د [الوتونكى گرد] په شان [شي ﴿وَّكُنْتُمْ اَزْوَاجًا ثَلٰثَةً﴾ اوتاسو] ټول بنيادم كوم چه دا وخت موجود يئ يا وړاندې تيرشوی دی يا آئنده راتلونكی دی [درې قسمه به شئ] د كومو تفصيل چه وړاندې راځي خواص مؤمنان اوعوام مؤمنان اوكفار چه په سوره رحمن كښې هم دادرې قسمونه ذكر دی او په راتلونكو آيتونوكښې ئې خواصوته مقربين او سابقين وئيلی دی او عوامومؤمنانو ته ئې اصحاب اليمين او كفاروته ئې اصحاب الشمال او په دې آيتونو كښې داذاوقعت نه ترثلثةپورې ځنې واقعات داولې شپيلۍ دوخت بيان شوی دی لكه رجت چه دسوره حجر په شروع كښې راغلې دې او بست او ځنې واقعات د دويمې شپيلۍ دی لكه خَافِضَةٌ رَّافِعَةٌ او كُنْتُمْ اَزْوَاجًا او ځنې مشترك دی لكه اِذَا وَقَعَتِ او لَيْسَ لِوَقْعَتِهَا چونكه داولې شپيلۍ نه تردويمې شپيلۍ پورې ټول ديووخت په حكم كښې دې په دې وجه هر جزء دوخت ته دهرې واقعې وخت وئيلې شی وړاندې په دې درې واړو قسمونوكښې دتقسيم بيانولو نه پس ئې د درې واړو احكام جدا جدابيان كړل اول اجمالا بيا تفصيلاچه درې قسمونه كوم چه ذكرشوی دی [پس] په دوئ كښې يو قسم يعني ﴿فَاَصْحٰبُ الْمَيْمَنَةِ مَآ اَصْحٰبُ الْمَيْمَنَةِ﴾ [كوم چه ښى طرف والادی هغه ښى طرف والا څه ښه دی] مراد ددې نه هغه دی چه كوموته عملنامه په ښی لاس وركړې شي اواگرچه دامطلب خو په مقربينوكښې هم مشترك دې ليكن په دې صفت باندې په بس كولو سره دې طرف ته اشاره موندې شي چه په دوئ كښې داصحاب اليمين نه سوا بل څه صفت د خاص قرب نه شی موندې دغه شان مراد ددې نه عوام مؤمنان شول او په دې كښې اجمالا ددوئ دحالت ښه والې وښودې شو وړاندې په فِيْ سِدْرٍ مَّخْضُوْدٍ الخ سره ددې اجمال تفصيل شوې دې [او] بل قسم يعني ﴿وَاَصْحٰبُ الْمَشْئَمَةِ مَآ اَصْحٰبُ الْمَشْئَمَةِ﴾ [كوم چه كيڼ طرف والا دی هغه كيڼ طرف والا څومره بددی] مراد د دې نه هغه دی كوموته چه عملنامه په كيڼ لاس وركړې شي يعنی كفاراو په دې كښې اجمالاددوئ دحالت بدوالې وښودې شو وړاندې په فِيْ سَمُوْمٍ الخ سره ددې اجمال تفصيل دې [او] دريم قسم يعنی ﴿وَالسّٰبِقُوْنَ السّٰبِقُوْنَ﴾ [كوم چه داعلى درجې دی هغه خوداعلى درجې دی] او﴿اُولٰٓئِكَ الْمُقَرَّبُوْنَ﴾ [هغه] دالله تعالى سره [خاص قرب لرونكی دی] په دې كښې ټول داعلى درجې بندگان داخل دی انبياء ﷺ اولياء كرام صديقين اوكامل متقيان اوپه دې كښې اجمالا ددوئ دحالت اوچتوالې وښودلې شو وړاندې په فِيْ جَنّٰتِ النَّعِيْمِ الخ سره ددې اجمال تفصيل كولې شي يعنی [دا] مقرب ﴿فِيْ جَنّٰتِ النَّعِيْمِ﴾ [خلق به دآرام په باغونو كښې وی] چه زيات

تفصیل یې په علی سرړ سره راخی او په درمیان کښې په دې خاصومقربینو کښې دډیروجماعتونو شاملیدل بیانوی چه ﴿ثُلَّةٌ مِّنَ الْاَوَّلِیْنَ ﴾[ددوئ] مقربینو[یوه لویه ډله خوبه دوړاندې خلقو نه وی ﴿وَقَلِیْلٌ مِّنَ الْاٰخِرِیْنَ ﴾ اولږ به دروستوخلقونه وی] د وړاندې نه مراد متقدمین دی دحضرت آدم علیه السلام نه واخله دنبی کریم ﷺ نه تر وړاندې پورې او دوروستونه مراد دنبی کریم ﷺ نه واخله ترقیامته پورې لکه چه په درکښې دحضرت جابر رضی الله عنه نه مرفوعا دی او په متقدمینوکښې دسابقینود ډیروالی اوپه متاخرینوکښې دلږوالی وجه داده چه خواص په هره زمانه کښې کم وی اومتقدمین یعنی دحضرت آدم علیه السلام دزمانې نه دخاتم الانبیاء ﷺ پورې زمانه ډیره اوږده ده په نسبت دامت محمدیه کوم چه قیامت ته نزدې پیداشوی دی نو په اقتضاء دزمانې دعادت په دغه اوږده زمانه کښې خواص په نسبت دامت محمدیه دزمانې دلندوالی خواص به کم وی ځکه چه په دغه اوږده زمانه کښې لاك دوه لاکه خو انبیاء علیهم السلام دی اودخاتم الانبیاء ﷺ په زمانه کښې خوبل نبی نشته په دې وجه دخواصو مقربینویوه لویه ډله خوبه دمتقدمینونه وی او دمتاخرینویعنی په امت محمدیه کښې به ددغونه کم وی وړاندې دخواصومقربینودپاره چه کوم نعمتونه مقرردی دهغې تفصیل دادې چه ﴿عَلٰی سُرُرٍ مَّوْضُوْنَةٍ ﴾ مُّتَّكِـِٕیْنَ عَلَیْهَا مُتَقٰبِلِیْنَ ﴾[هغه] مقرب [خلق به دسروزرو دتارونونه په اودلو شوتختونو تکیه لګولی مخامخ ناست وی] په درمنثور کښې دحضرت عباس رضی الله عنه نه دلفظ دمَّوْضُوْنَةٍ داتفسیرنقل کړې دې ﴿یَطُوْفُ عَلَیْهِمْ وِلْدَانٌ مُّخَلَّدُوْنَ ﴾[او ددوئ سره به داسې هلکان وی کوم چه به همیشه هلکان وی دوئ به څیزونه راوړی تلل راتلل به کوی ﴿بِاَكْوَابٍ وَّاَبَارِیْقَ ۙ وَكَاْسٍ مِّنْ مَّعِیْنٍ ﴾ پیالې اوکوزئ اود شرابوداسې جامونه کوم چه به د بهیدونکوشرابونه ډکولې شی] ددې تحقیق په سوره صافات کښې تیرشوې دې ﴿لَّا یُصَدَّعُوْنَ عَنْهَا وَلَا یُنْزِفُوْنَ ﴾ [نه به ددې نه هغوئ ته درد سروی اونه به ددې نه په عقل کښې فتور راځی] داهم په سوره صافات کښې تیرشوی دی ﴿وَفَاكِهَةٍ مِّمَّا یَتَخَیَّرُوْنَ ﴾[اومیوې کومولره چه به دوئ خوښوی ﴿وَلَحْمِ طَیْرٍ مِّمَّا یَشْتَهُوْنَ ﴾ او دمارغانو غوښې کومې چه به ددوئ دزړونو خوښې وی ﴿وَحُوْرٌ عِیْنٌ ﴾ او ددوئ دپاره به ښائسته غټې سترګې ښځې وی] مراد حورې دی چه رنګونه به یې داسې صفااوشفاف وی ﴿كَاَمْثَالِ اللُّؤْلُؤِ الْمَكْنُوْنِ ﴾[لکه] په حفاظت سره[پټې ایښودې شوې ملغلرې ﴿جَزَآءًۢ بِمَا كَانُوْا یَعْمَلُوْنَ ﴾ دابه ددوئ دعملونو په صله کښې ملاویږی]او ﴿لَا یَسْمَعُوْنَ فِیْهَا لَغْوًا وَّلَا تَاْثِیْمًا ﴾[هلته به نه بکواس اوری اونه هغوئ څه عبث خبره] اوری یعنی په شرابوڅښلو سره یاهسې هم داسې څیزونه به مومی په کومو چه خوند مزه ورکیدې شی [پس] دهرطرف نه به ﴿اِلَّا قِیْلًا سَلٰمًا سَلٰمًا ﴾[دسلام سلام اوازونه راځی] لکه دا قول دالله تعالی وَالْمَلٰٓىِٕكَةُ یَدْخُلُوْنَ عَلَیْهِمْ مِّنْ كُلِّ بَابٍ ۚ سَلٰمٌ عَلَیْكُمْ اولکه داقول دالله تعالی تَحِیَّتُهُمْ فِیْهَا سَلٰمٌ کوم چه دلیل د اعزاز او اکرام دې غرض روحانی جسمانی هرقسم لذت اومسرت به داعلی درجې وی داجزاء د سابقینو بیان کړې شوه [او] وړاندې داصحاب الیمین دجزاء تفصیل دې یعنی ﴿وَاَصْحٰبُ الْیَمِیْنِ ۙ مَاۤ اَصْحٰبُ الْیَمِیْنِ ﴾[کوم چه دښی طرف والادی هغه ښی طرف والا څنګه ښه دی] ددې اجمال اعاده دتفصیل نه وړاندې ځکه وشوه چه دهغې اجمال فصل راغلې وو اوس وړاندې ددوئ دښه والی بیان دې چه ﴿فِیْ سِدْرٍ مَّخْضُوْدٍ ﴾ وَّطَلْحٍ مَّنْضُوْدٍ ﴾[هغوئ به په هغوباغونو کښې وی په کوموکښې چه به بې ازغوبیر وی او

برله پسې کیلې به وی ﴿وَظِلٍّ مَّمْدُوْدٍ﴾ اواوږد سورې به وی ﴿وَمَآءٍ مَّسْكُوْبٍ﴾ او بهیدونکې اوبه به وی ﴿وَفَاكِهَةٍ كَثِيْرَةٍ﴾ او په کثرت سره میوې به وی ﴿لَا مَقْطُوْعَةٍ وَّلَا مَمْنُوْعَةٍ﴾ چه ختمیږی به نه] لکه ددنیامیوې چه په فصل تمامیدو سره تمامې شی [اونه به ترې نه دوئ منع کولې شی] لکه ددنیاباغوانان چه ترې نه خلق منع کوی ﴿وَفُرُشٍ مَّرْفُوْعَةٍ﴾ [او دنګ دنګ فرشونه] ځکه چه په کومودرجوکښې دغه خوارهٔ وی هغه درجې به اوچتې وی اوچونکه مقام د خوشحالئ دې اوخوشحالی بغیردښځونه نه کاملیږی په دې طورسره ددې عیش داسبابوپه ذکرسره دښځوښته والې معلوم شو په دې وجه وړاندیږدجنتی ښځوطرف ته ئې د اَنْشَاْنٰهُنَّ ضمیر راجع کړو او ددوئ ذکرفرمانی چه ﴿اِنَّآ اَنْشَاْنٰهُنَّ اِنْشَآءً﴾ [مونږه] دهغه ځائ [هغوښځولره] په کوموکښې چه دجنت حورې هم شاملې دی اوددنیاښځې هم لکه چه په روح المعانی کښې دترمذی په حواله سره دامرفوع حدیث نقل دې چه په دې آیت کښې چه دکوموښځودنوی تخلیق ذکردې ددغونه مرادهغه ښځې دی کومې چه په دنیاکښې بوډئ ګانې یابدشکله وې دهغوئ په حقله فرمانی چه مونږ هغوښځولره [په خاص طورجوړې کړې دی] چه تفیصل ئې وړاندې راځی ﴿فَجَعَلْنٰهُنَّ اَبْكَارًا﴾ [یعنی مونږ هغوښځو لره داسې جوړې کړې چه هغوئ پیغلې دی] یعنی دنزدیکت نه پس به بیا پیغلې کیږی لکه چه په درمنثورکښې دحضرت ابوسعیدخدری رضی الله عنه نه مرفوع حدیث ثابت دې او ﴿عُرُبًا اَتْرَابًا﴾ [محبت کوونکې دی] یعنی حرکات نازو اندازحسن اوجمال هرڅه به دهغوئ دلکش وی او دجنتیانوسره [هم عمره دی] ددې تحقیق په سوره صٓ کښې تیرشوې دې ﴿لِّاَصْحٰبِ الْيَمِيْنِ﴾ [داټول څیزونه دښی جانب والودپاره دی] وړاندې دا ښائی چه د ښی طرف والابه هم دمختلف قسم خلق وی یعنی ﴿ثُلَّةٌ مِّنَ الْاَوَّلِيْنَ﴾ [ددوئ] اصحاب الیمینو [یوه لویه ډله به د وړاندې نه وی ﴿وَثُلَّةٌ مِّنَ الْاٰخِرِيْنَ﴾ اویوه لویه ډله به د وروستونه وی] بلکه په ورستو کښې به اصحاب الیمین په نسبت د وړومبوپه شمیرکښې زیات وی چنانچه په احادیثو کښې وضاحت دې چه ددې امت دمؤمنانومجموعه به دتیرو ټولو امتونو دمؤمنانودمجموعې نه زیاته وی اوددې داصورت کیدې شی چه اصحاب الیمین دی ددې امت زیات وی ځکه چه داخواصومقربینواکثریت خو په متقدمینوکښې په خپله دبرنی آیت نه ثابت شوی دی اوهرکله چه اصحاب الیمین په مرتبه کښې د مقربینونه کم دی نو ددوئ جزاء به هم کمه وی پس ددې توجیه داده چه دمقربینو په جزاء کښې هغه دعیش سامانونه زیات ذکردی کوم چه ښاریانوته زیات مرغوب دی او داصحاب الیمین په جزاء کښې هغه د عیش سامانونه زیات ذکردی کوم چه دباندو او صحراء اوکلوخلقوته زیات مرغوب دی په دې کښې دې طرف ته اشاره ده چه په دې دواړوکښې به داسې فرق وی لکه د ښارپه خلقو او باندو او صحراء په خلقوکښې چه وی لکه چه داسې په روح کښې دی [او] وړاندې دکفارو اوددوئ دعذابونو ذکردې یعنی ﴿وَاَصْحٰبُ الشِّمَالِ ۙ مَآ اَصْحٰبُ الشِّمَالِ﴾ [کوم چه کینړطرف والا دی دغه کینړطرف والاڅومره بددی] اوددې اجمال تفصیل دادې چه ﴿فِيْ سَمُوْمٍ وَّحَمِيْمٍ﴾ [هغه خلق به په اورکښې وی او په جوشیدلو اوبوکښې دی ﴿وَظِلٍّ مِّنْ يَّحْمُوْمٍ﴾ اود تورلوګی په سورې کښې دی ﴿لَّا بَارِدٍ وَّلَا كَرِيْمٍ﴾ چه نه یخ وی اونه خوشحاله کوونکې] یعنی دسورې نه یوه جسمانی نفع وی راحت اویخ والې اویوه روحانی نفع وی لذت اوفرحت دغلته به دواړه نه وی داهغه لوګې دې دکوم ذکرچه بره په سوره رحمن کښې په لفظ دنحاس راغلې دې وړاندیږددې عذاب وجه ارشاد ده چه ﴿اِنَّهُمْ كَانُوْا قَبْلَ

ذٰلِكَ مُتْرَفِيْنَ ﴾[هغه خلق به ددې نه وړاندې] يعني په دنياكښې [په لويه خوشحالئ كښې وو او] ددې خوشحالئ به غرور كښې ﴿وَكَانُوْا يُصِرُّوْنَ عَلَى الْحِنْثِ الْعَظِيْمِ﴾ به[په ډيره لويه ګناه] يعني په شرك او كفر [باندې اصرار كولو] مطلب دادې چه ايمان ئې نه راوړو [او] وړاندې ددوئ دكفر بيان دې كومې لره چه زيات دخل دې دحق په نه طلب كولوكښې يعني ﴿وَكَانُوْا يَقُوْلُوْنَ﴾ دغو [به داسې وئيل ﴿ءَاِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا وَّعِظَامًا ءَاِنَّا لَمَبْعُوْثُوْنَ﴾ چه كله مونږ مړه شوا وخاورې اوهډوكې شو نو آيا ددې نه پس به مونږ دوباره ژوندى كړې شو ﴿اَوَاٰبَآؤُنَا الْاَوَّلُوْنَ﴾ اوآيازمونږ وړاندې پلاران نيكونه هم] به ژوندى شي چونكه دقيامت په منكرانوكښې ځنې كفار دنبى كريم ﷺ په زمانه كښې هم وو په دې وجه ددوئ په حقله ارشاددې چه ﴿قُلْ اِنَّ الْاَوَّلِيْنَ وَالْاٰخِرِيْنَ ۝ لَمَجْمُوْعُوْنَ﴾[ته ووايه چه ټول وړومبي او وروستي به جمع كړې شي ﴿اِلٰى مِيْقَاتِ يَوْمٍ مَّعْلُوْمٍ﴾ ديومعين تاريخ په وخت باندې ﴿ثُمَّ اِنَّكُمْ اَيُّهَا الضَّآلُّوْنَ الْمُكَذِّبُوْنَ﴾ بيا] د جمع كيدونه پس [به تاسوا ے ګمراهانودروغژن كوونكو ﴿لَاٰكِلُوْنَ مِنْ شَجَرٍ مِّنْ زَقُّوْمٍ﴾ دزقوم اونه به درلره خوړل وى ﴿فَمَالِـُٔوْنَ مِنْهَا الْبُطُوْنَ﴾ اوګيډه به ترې نه ډكول وى ﴿فَشٰرِبُوْنَ عَلَيْهِ مِنَ الْحَمِيْمِ﴾ بيا به په دې دپاسه جوشيدلې ګرمې اوبه څښل وى ﴿فَشٰرِبُوْنَ شُرْبَ الْهِيْمِ﴾ بيا څښل هم دتږو اوښانوپه شان] غرض ﴿هٰذَا نُزُلُهُمْ يَوْمَ الدِّيْنِ﴾[ددې خلقو به دقيامت په ورځ داميلمستياوى]

## معارف ومسائل

**دسورة واقعه خصوصي خاصيت په مرض وفت كښې د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه سبق خودونكي هدايات ::** ابن كثير رحمه الله د ابن عساكر په حواله ابى ظبيه نه دا واقعه نقل كړې ده چې د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه د وفات په مرض كښې عثمان ذوالنورين رضي الله عنه تپوس دپاره ورغلو ، تپوس ئې ترې او كړو چې درته څه تكليف دې ؟ وې فرمائيل چې [ذنوبى] [د ګناهونو تكليف مې دې] بيا ئې ترې تپوس اوكړو چې [ماتشتهى] [تاسو څه غواړئى؟] وې فرمائيل چې [رحمة ربى] [دخپل رب رحمت غواړم] بيا عثمان رضي الله عنه ورته اوفرمائيل چې زه ستاسو دپاره څوك طبيب راوبلم ، نو وې فرمائيل چې : [الطبيب امرضنى] [هم طبيب بيمار كړې يم] بيا عثمان رضي الله عنه اوفرمائيل چې بيت المال نه څه مال تاسو ته راؤليږم؟ وې فرمائيل چې [لاحاجة لى فيها] [زما ورته حاجت نشته دې] عثمان رضي الله عنه اوفرمائيل چې تاسو دا خواست قبول كړئى چې ستاسو نه پس ستاسو د لونړو پكار راشى ، وې فرمائيل چې ستاسو زما لونړو باره كښې دا فكر كوئى چې هغوئ به ګنې غريبانان شى يا به ئې لوږې تندې سره مخ شى مګر ماته ددې فكر بالكل نشته. ځكه چې ما خپلو لونړو ته تاكيد كړې دې چې هره شپه دې سورة واقعه تلاوت كوئى ولې چې ما دا رسول كريم ﷺ نه آوريدلى دى چې :

[من قرا سورة الواقعة كل ليلة لم تصبه فاقة ابدا[ابن كثير]()] [څوك چې هره شپه سورة واقعه لولى هغه به هيچرې لوږه كښې نه اخته كيږى]

ابن كثير دا روايت د ابن عساكر په سند نقل كولو نه پس ددې تائيد د نورو سندونو او كتابونو نه هم پيش كړې دې.

---

[1] تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ۷ ص:۵۱۲] و شعب الإيمان للبيهقي رقم الحديث[۲۳۹۵]

[إِذَا وَقَعَتِ الْوَاقِعَةُ] ابن کثير رحمه الله اوفرمائيل چې واقعه د قيامت د نومونو څخه يو نوم دی ، ولې چې ددې په واقع کيدو کښې د څه شک شبهې گنجائش نشته[1] .

[لَيْسَ لِوَقْعَتِهَا كَاذِبَةٌ] ، [كَاذِبَةٌ] د عاقبة او عافية پشان مصدر دې او معنى يې داده چې ددې په واقع کيدو کښې هيڅ دروغ نشي کيدې ، څينې حضراتو کاذبة د تکذيب په معنى گرځولې دې ، معنى ئې ښکاره داسې ده چې قيامت راتلل دروغژن کيدې نشي .

[خَافِضَةٌ رَّافِعَةٌ] يعنى دقيامت واقعه به د لوئې مرتبې ډير قومونه او خلق ذليل او خوار کړى او ډير ذليل او خوار خلق او قومونه به سربلند او پورته کړى ، د ابن عباس رضي الله عنهما نه ددې جملې هم دا تفسير منقول دې ، او مقصد ئې هيبتناک کيدل او په دې کښې دعجيبه قسم انقلابونو راپيښيدو بيان دې لکه چې د بادشاهانو او حکومتونو ليدل د انقلاب په وخت کيدې شى چې پورته خلق په کښې ښکته او ښکته خلق په کښې پورته شى ، نيست مند شته مند شى او شته مند نيست مند شى[2].

**د حشر په ميدان کښې د حاضرينو درې قسمونه:** [وَكُنتُمْ أَزْوَاجًا ثَلَاثَةً] ابن کثير رحمه الله اوفرمائيل چې د قيامت په ورځ به ټول خلق په دريو ډلو کښې تقسيم شى ، يوه ډله به دعرش ښى طرفته وى ، دا به هغه وى چې د آدم عليه السلام د ښئ جانب نه پيدا شو او عمل نامه به ورته په ښى لاسونو کښې ورکولې شى ، او دعرش په ښى طرف به راجمع کولې شى دا ټول خلق به جنتيان وى .

بله ډله به د عرش په گس طرف کښې جمع کيږى چې د آدم عليه السلام د گسې ډډې نه پيدا شوى دى . عمل نامه به ورته په ښى لاسونو کښې ورکولې شى ، ټول به گسې غاړې ته راجمع کولې شى او ټول به جهنميان وى ، [نعوذ بالله من صنيعهم] اودريمه قسم ډله به د سابقينو وى چې د عرش د رب په مخکښې به د خصوصى امتياز او نزديکت په مقام کښې به وى ، په دوئ کښې به پيغمبران عليهم السلام ، رسولان عليهم السلام ، شهيدان او اولياء الله شامل وى د دوئ شمير به داصحاب اليمين په نسبت کم وى[3] .

په آخر د سورت کښې ددې درې وارو بيان بيا په دې سلسله کښې راځى چې د انسانانو د مرگ د وخت نه به دا نخښې محسوسيږى چې مړ کيدونکې په کومه ډله کښې شامليدونکې دې ؟

[وَالسَّابِقُونَ السَّابِقُونَ] امام احمد رحمه الله دعائشه صديقه رضي الله عنها نه روايت کړې دې چې رسول کريم صلى الله عليه وسلم صحابه کرامو رضي الله عنهم نه تپوس اوکړو چې تاسو ته معلومه ده چې د قيامت په ورځ به ظل الله يعنى دالله تعالى سورى ته وړاندې والې کوونکى څوک خلق وى ؟ صحابه کرامو رضي الله عنهم عرض اوکړو چې [الله ورسوله اعلم] رسول کريم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چې دا هغه خلق دى چې کله ورته د حق بلنه ورکړې شى نو هغوئ ئې قبوله کړى او حق چې واخستې شى نو ادا ئې کړى او د خلقو په باره کښې هغسې فيصله کوى څنگه چې په خپله باره کښې کوى[4].

---

[1] تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ۷ ص:۵۱۳]
[2] روح المعاني [ج: ۲۰ ص:۱۹۷]
[3] تفسير ابن كثير [ج: ۷ ص:۵۱۵]
[4] مسند احمد ،مسند الصديقة عائشة رضى الله عنها رقم الحديث:[۲۴۳۷۹]

مجاهد رحمه الله اوفرمائيل چې د سابقين نه مراد انبياء دی ، ابن سيرين رحمه الله اوفرمائيل چې د چا د دواړو قبلو طرف مونځ کول نصيب شوی وی ، او حسن رحمه الله او قتاده رحمه الله اوفرمائيل چې په هر امت کښې به سابقين وی ، ځينې مفسرينو اوفرمائيل چې مسجد ته د ټولو نه رومبې تلونکی به سابقين وی . ابن کثير رحمه الله ددې ټولو قولونو د نقل کولو نه پس فرمائيلی دی چې دا ټول اقوال به پخپل ځائې صحيح دی ، په دې کښې څه اختلاف نشته ، ولې چې سابقين هم هغه خلق دی چې چا په دنيا کښې نيکو کارونو ته وړاندې والې کړې وی ، نو څوک چې په دنيا کښې په نيک عمل کولو کښې د ټولو نه وړاندې وی ، هغوئ به په آخرت کښې هم په سابقين کښې شامل وی ، ولې چې په آخرت کښې به د عمل په جوړ جزاء ورکولې شی([1]).

[ثُلَّةٌ مِّنَ الْأَوَّلِينَ ۝ وَقَلِيلٌ مِّنَ الْآخِرِينَ ۝] ، [ثُلَّةٌ] ډلې ته وئيلې شی ا و زمخشری ئې معنی لويه ډله کړې ده ، [روح]([2]).

**د اولين ، آخرين نه څوک مراد دی** :- دلته د اولين او آخرين د تقسيم بيان دوه ځل راغلې دې اول د سابقين مقربين په سلسله کښې دويم د اصحاب اليمين يعنی د عامو مؤمنانو په سلسله کښې په رومبی ځائې يعنی سابقين کښې دا فرق کړې شوې دې چې د سابقين ځينې به [ثُلَّةٌ] وی او د آخرين ځينې به کم وی لکه چې په بيان شوی آيت مبارک کښې دی او بل ځائې کښې د اصحاب اليمين په بيان کښې اولين ، آخرين دواړو کښې [ثُلَّةٌ] لفظ راغلې دې معنی ئې دا شوه چې اصحاب اليمين په اولينو به هم لوئې جماعت وی اوداشان داخرينو نه به هم لويه ډله وی لکه فرمائی چې :

[ثُلَّةٌ مِّنَ الْأَوَّلِينَ ۝ وَثُلَّةٌ مِّنَ الْآخِرِينَ ۝] اوس د غور کولو قابل خبره د اده چې د اولين نه مراد کوم خلق دی او آخرين نه مراد کوم خلق دی ؟ په دې کښې د مفسرينو حضراتو دوه اقوال دی ، يو دا چې د آدم عليه السلام د زمانې ته د رسول کريم صلی الله عليه وسلم د زمانې د شروع کيدو نه وړاندې پورې ټول خلق په اولين کښې داخل دی او د خاتم الانبياء صلی الله عليه وسلم د زمانې نه چې واخلې تر قيامته پورې راتلونکی خلق په آخرين کښې داخل دی ، دا تفسير مجاهد رحمه الله ، او حسن رحمه الله نه ابن ابی حاتم رحمه الله په سند سره نقل کړی دی([3]) . او ابن جرير رحمه الله هم دا تفسير اختيار کړې دې د بيان القرآن په خلاصه تفسير کښې هم د ا اختيار کړې شوې دې کوم چې دا بيان کړې شو ، او ددې په دليل کښې د جابر رضی الله عنه مرفوع حديث ئې نقل کړې دې ، دا حديث پاک ابن عساکر پخپل سند سره داسې نقل کړې دې چې کله رومبې آيت مبارک کوم چې د سابقين مقربين په سلسله کښې راغلې دې نازل شو يعنی [ثُلَّةٌ مِّنَ الْأَوَّلِينَ ۝ وَقَلِيلٌ مِّنَ الْآخِرِينَ ۝] . نو عمر فاروق رضی الله عنه په تعجب سره عرض او کړو چې يارسول الله صلی الله عليه وسلم ! آيا په تيرو شوؤ امتونو کښې به سابقين زيات وی ، او په مونږ کښې به کم وی ؟ دې نه پس يو کال پورې دې پسې آيت نازل نشو ، کله چې يو کال پس دا آيت مبارک نازل شو چې : [ثُلَّةٌ مِّنَ الْأَوَّلِينَ ۝ وَثُلَّةٌ مِّنَ الْآخِرِينَ ۝] نو رسول کريم صلی الله عليه وسلم اوفرمائيل چې :

---

[1]) تفسير ابن کثير [ج: ۷ ص:۵۱۷]
[2]) روح المعاني [ج: ۲۰ ص:۲۰٦]
[3]) تفسير المظهري[ج:۹ص:۱۷٤ ، ۱۷۵]

[اسمع یا عمر ما قد انزل الله ثُلَّةٌ مِّنَ الْأَوَّلِينَ وَثُلَّةٌ مِّنَ الْآخِرِينَ الا وان من ادم الى ثلة وامتى ثلة، والحديث، ابن كثير] (۱) [ائې عمر رضی الله عنه ! واوره چې الله جل جلاله نازل کړل چې د اولینو ځینې به ثلة لویه ډله وی او په آخرینو کښې به هم ثلة لویه ډله وی او یادلرئ چې د آدم علیه السلام نه تر ما پورې یوه ثلة ده او زما امت بله ثلة ده] او ددې مضمون تائید دهغې حدیث پاک نه هم کیږی چې امام احمد رحمه الله او ابن ابی حاتم رحمه الله د ابی هریره رضی الله عنه نه روایت کړې دې چې کله : [ثُلَّةٌ مِّنَ الْأَوَّلِينَ وَقَلِيلٌ مِّنَ الْآخِرِينَ] نازل شو نو په صحابه کرامو رضی الله عنهم دا سخته شوه چې مونږ به د امتونو تیرو شوؤ په نسبت کم یو ، دغه وخت دویم آیت مبارک نازل شو چې [ثُلَّةٌ مِّنَ الْأَوَّلِينَ وَثُلَّةٌ مِّنَ الْآخِرِينَ] دغه وخت رسول کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چې زما امید دې چې تاسو یعنی زما امت محمدیه صلی الله علیه وسلم به د ټولو خلقو په مقابله کښې څلورمه ، دریمه ، بلکه نیمه حصه د جنتیانو یئ او په پاتې نیمو کښې به هم څه حصه ستاسو وی [ابن کثیر] (۲).

ددې نتیجه به داوی چې په مجموعی طور به د جنتیانو اکثریت د امت محمدی وی مګر دې دواړو احادیثو نه په دلیل نیولو کښې یو اشکال دادې چې [قَلِيلٌ مِّنَ الْآخِرِينَ] خو د سابقینو مقربینو باره کښې راغلی دی او په بل آیت مبارک کښې چې [ثُلَّةٌ مِّنَ الْآخِرِينَ] راغلې دې هغه د سابقینو مقربینو باره کښې نه بلکه د اصحاب الیمین باره کښې دی.

ددې جواب په روح المعانی (۳) کښې د اورکړې دې چې اصحاب کرام رضی الله عنهم او عمر فاروق رضی الله عنه چې په رومبی ایت سره غمژن شوی وو دهغې وجه دا کیدې شی چې غالبا د هغوئ خیال به دا راغلې وی چې لکه څنګه سابقینو کښې به د امت محمدیه صلی الله علیه وسلم شمیر کم وی د اسې به په اصحاب الیمین کښې هم د امت محمدیه صلی الله علیه وسلم شمیر کم وی. خو هر کله چې د اصحاب الیمین په تشریح کښې په اولین او آخرین دواړو کښې لفظ د ثلة نازل شو نو دغه شبه ختمه شوه او مطلب ئې دا راوختو چې په ټولو جنتیانو خلقو کښې به د امت محمدیه شمیر زیات وی. په سابقین اولین کښې د امت محمدیه شمیر څکه کم راځی چې دوؤ لکو پورې خو په هغوئ کښې پیغمبران علیهم السلام وو ، چې درجې ته ئې هیڅوک نیک ، صالح او پرهیزګار بنده نشی رسیدلې ، خلاصه ددې ټولو دا شوه چې د امت محمدیه د جنتیانو شمیر به د ټولې دنیا د خلقو نه زیات وی صرف سابقین اولین کښې به ئې شمیر څکه کم وی چې د غې ټولو کښې خو صرف دوه لکه پیغمبران علیهم السلام دی څکه څه د غم خبره نه ده.

لیکن ابن کثیر رحمه الله ، ابو حیان رحمه الله ، قرطبی رحمه الله ، روح المعانی رحمه الله او مظهری وغیره په ټولو تفسیرونو کښې دویم تفسیر غوره بللې دې ، د هغې حاصل دادې چې د اولین او اخرین دواړه ډلې د امت محمدیه صلی الله علیه وسلم مراد دی، اولین ددې امت قرون اولی یعنی صحابه کرام رضی الله عنهم او تابعین وغیره دی چې په حدیث کښې ئې ورته خیر القرون فرمائیلی دی او آخرین ددې نه پس خلق دی (۴)

---

(۱) تفسیر ابن کثیر [ج: ۷ ص:۵۱۸]

(۲) تفسیر ابن ابي حاتم رقم الحدیث:[۱۸۷۷۵] و تفسیر ابن کثیر [ج: ۷ ص:۵۱۸] و مسند احمد ،مسند ابی هریرة رضی الله عنه رقم الحدیث:[۹۰۸۰]

(۳) روح المعاني [ج: ۲۰ ص:۲۰۸]

(۴) روح المعاني [ج: ۲۰ ص:۲۰۸] و تفسیر ابن کثیر [ج: ۷ ص:۵۱۸]

کوم مرفوع حدیث پاک چې د رومبی تفسیر په تائید کښې د جابر رضی الله عنه په روایت لیکلې شوې دې ، ابن کثیر رحمه الله دهغې باره کښې اوفرمائیل چې : [ولکن فی اسناده نظر] د دویم تفسیر باره کښې په دلیل نیولو کښې ئې هغه قرآنی آیتونه پیش کړی دی چې په کښې امت محمدیه د ټولو نه زیات غوره خودلې شوې دې لکه فرمائی[1] چې :
[كُنْتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ] وغيره او وې فرمائيل چې دا خبره ډيره لرې ده چې په امت محمديه كښې د سابقين مقربين شمير د نورو امتونو په نسبت كم وى ، څكه غوره خبره داده چې [ثُلَّةٌ مِّنَ الْأَوَّلِينَ]
نه مراد ددې امت هغه رومبئ زمانه قرن اولى دى او د [وَقَلِيلٌ مِّنَ الْآخِرِينَ] نه مراد د امت محمديه روستنی خلق دی چې په کښې به د سابقينو مقربينو شمير كم وى .
ددې قول په تائید کښې ابن کثیر رحمه الله د حسن بصری رحمه الله قول د ابن ابی حاتم رحمه الله په روایت داپیش کړې دې چې حسن دا آیت مبارک [وَالسّٰبِقُوْنَ السّٰبِقُوْنَ] تلاوت کړو نو وې فرمائیل چې سابقین خو زمونږ وړاندې تیر شو لیکن یا الله ﷻ ! مونږ په اصحاب الیمین کښې داخل کړې ، اود حسن رحمه الله نه په دویم روایت کښې دا الفاظ هم نقل کړی دی چې [ثُلَّةٌ مِّنَ الْأَوَّلِينَ] په تفسیر کښې ئې اوفرمائیل چې [ثُلَّةٌ مِّمن مضى من هذه الامة] یعنی د اولین نه ددې امت وړاندینی خلق دی .
داسې محمد بن سیرین اوفرمائیل چې د [ثُلَّةٌ مِّنَ الْأَوَّلِينَ وَقَلِيلٌ مِّنَ الْآخِرِينَ] باره کښې به علماء دا اوفرمائیل او امید به ئې لرلو چې دا اولین او آخرین ټول به ددې امت څینې وی [ابن کثیر][2].
او په روح المعانی کښې ددې دویم تفسیر په تائید کښې یو مرفوع حدیث په حسن سند سره د ابی بکر رضی الله عنه په روایت دا نقل کړې دې :
[اخرج مسدد فی مسنده وابن المنذر والطبرانی وابن مردویه بسند حسن عن ابی بکرة عن النبی ﷺ فی قوله سبحانه ثُلَّةٌ مِّنَ الْأَوَّلِينَ قال هما جمیعا من هذه الامة][3]
او ابن عباس رضی الله عنهما نه هم په ضعیف سند سره یو مرفوع حدیث ډیرو محدثینو نقل کړې دې چې الفاظ ئې دادی :
[هما جمیعا من امتی] [دا دواړه اولین او اخرین به هم زما د امت نه وی][4]
ددې تفسیر مطابق به دسورت په شروع کښې د [وَكُنْتُمْ أَزْوَاجًا ثَلٰثَةً] مخاطب به هم امت محمدیه وی او دا درې واړه قسمونه به هم د امت محمدیه ﷺ وی [روح المعانی][5].
تفسیر مظهری کښې رومبی تفسیر څکه ډیر لرې کرڅولې شوې دې چې د قرآن عظیم الشان آیتونه په دې ښکاره دلالت کوی چې امت محمدیه ﷺ د ټولو وړاندې امتونو نه یات غوره دې او ښکاره داده چې د یو امت غوروالې په دې وی چې په کښې د اعلی ډلې شمیر زیات وی . څکه دا خبره لرې ده چې په دې زیات غوره امت کښې ددې سابقینو شمیر کم وی ،

[1] تفسیر ابن کثیر [ج: ۷ ص:۵۱۸]
[2] تفسیر ابن کثیر [ج: ۷ ص:۵۱۸ ، ۵۱۹]
[3] روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۲۰ ص:۲۰۸]
[4] روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۲۰ ص:۲۰۸]
[5] روح المعاني [ج: ۲۰ ص:۲۰۸]

د قرآن عظیم الشان د آیتونو [كُنتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ] او [لِتَكُونُوا شُهَدَاءَ عَلَى النَّاسِ وَيَكُونَ الرَّسُولُ عَلَيْكُمْ شَهِيدًا] نه دامت محمدیه ﷺ زیات غوره والي په ټولو امتونو باندې ثابت دې او ترمذی، ابن ماجه او دارمی د بهز بن حکیم نه روایت کړې دې او ترمذی دا سند حسن بللې دې دحدیث الفاظ دادی:

[انتم تتمون سبعين امة انتم اخيرها واكرمها على الله تعالى][1][تاسو به د اویاؤ امتونو خاتمه یئ چې دهغې څینې به تاسو د ټولو نه په آخر کښې او دالله تعالی په نزد د ټولو نه زیات عزت مند او زیات غوره یئ]

او امام بخاری رحمه الله د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه روایت کړې دې چې رسول کریم ﷺ اوفرمائیل: آیا تاسو په دې راضی یئ چې تاسو څلورمه حصه جنتیان یئ؟ مونږ عرض او کړو چې بیشکه مونږ په دې راضي یو. وې فرمائیل چې:

[والذي نفسي بيده اني لارجوا ان تكونوا نصف اهل الجنة،مظهري][2][قسم دې په هغه ذات د چا په قبضه کښې چې زما روح دې زما دا امید دې چې تاسو [یعنی امت محمدیه ﷺ] د ټولو جنتیانو په نیمه به یئ]

او ترمذی رحمه الله، حاکم رحمه الله او بیهقی رحمه الله د بریده رضی الله عنه نه روایت نقل کړې دې چې ترمذی رحمه الله ددې سند ته حسن او حاکم ورته صحیح وئیلې دې، د حدیث پاک الفاظ دادی چې رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې:

[اهل الجنة مائة وعشرون صفا ثمانون منها من هذه الامة واربعون من سائر الامم] [جنتیان به ټول شپږ شلې صفونه وی چې په کښې به اتیا صفونه ددې امت وی او په پاتې څلویښتو صفونو کښې به ټول امتونه شریک وی] [مظهری][3]

پدې روایتونو کښې ددې امت جنتیان چرته د ټولو امتونو د جنتیانو څلورمه حصه، چرته نیمه اوخودلې شو لیکن په دې آخری روایت کښې په دریو کښې دوه حصې ددې امت اوخودلې شو، په دې کښې څه بې سمونی [تعارض] ځکه نشته چې داد رسول کریم ﷺ اندازه ده چې په مختلفو وختونو کښې په کښې زیاتوالي خودلې شوې دې، والله اعلم.

[عَلَىٰ سُرُرٍ مَّوْضُونَةٍ] د موضونة په باره کښې ابن عباس رضی الله عنه نه ابن جریر رحمه الله او ابن ابی حاتم رحمه الله او بیهقی رحمه الله وغیره دا نقل کړې دی چې ددې معنی هغه کټه ده چې د سرو زرو د تارونو کار پرې شوې وی[4].

[1] جامع الترمذي، ابواب التفسير تفسير سورة آل عمران[ج:۲ ص:۱۲۹] و سنن ابن ماجة، ابواب الزهد ،باب صفة امة محمد ﷺ [ج:۲ ص:۳۱۶] سنن الدارمی كتاب الرقاق، باب فی قول النبي ﷺ انتم آخر الامم رقم الحديث:[۲۸۱۶]
[2] تفسير المظهري[ج:۹ص:۱۶۸] و صحيح البخاري كتاب الرقاق ،باب كيف الحشر [ج:۲ص:۹۶۵]
[3] تفسير المظهري[ج:۹ص:۱۶۸] و جامع الترمذي، ابواب صفة الجنة باب ماجاء في صف اهل الجنة [ج:۲ ص:۸۱] و المستدرك للحاكم رقم الحديث:[۲۷۴]
[4] تفسير الطبري [ج:۲۴ص:۳۸۷] و تفسير ابن ابي حاتم رقم الحديث:[۱۸۷۷۶]

[وِلْدَانٌ مُّخَلَّدُوْنَ] ددې نه مراد هغه هلکان دي چې همیشه به هلکان وي چې عمر به ئې بالکل نه بدلیږي ، ددې غلمانو باره کښې غوره تحقیق دادې چې د حورو پشان دوئ هم د جنت پیداوار دي چې دواړه به د جنتیانو خادمان وي ، د حدیث پاک درو ایتونو نه ثابت دي چې یو جنتي سره به په زرګونو خادمان وي ، [مظهري]([1]).

[بِاَكْوَابٍ وَّاَبَارِيْقَ ۙ وَكَاْسٍ مِّنْ مَّعِيْنٍ] ، [اَكْوَابٍ] د کوب جمع د ه د اوبو څکلو داسې لوښي ته وائي څنګه چې زمونږ ګلاس وي ، [اَبَارِيْقَ] د ابریق جمع د ه ، ددستې لوښي ته وئیلې شي ، [كَاْسٍ] خاص دشرابو پیالئ ته وئیلې شي ، د [مَعِيْنٍ]مطلب دادې چې داشراب به د جاري چینې نه راوړې شوي وي.

[لَّا يُصَدَّعُوْنَ] دا د صداع نه مشتق دي چې معنی ئې سر دردي ده ، دنیوي شراب چې زیات اوڅکلې شي نو سر درد راولي او سرګرځیدل پیدا کوي خو د جنت شراب به دې نه پاک وي.

[وَلَا يُنْزِفُوْنَ] دنزف معنی تول کوهې داوبو نه تشول د ي، دلته مراد د عقل نه خالي کیدل دي.

[وَلَحْمِ طَيْرٍ مِّمَّا يَشْتَهُوْنَ] یعنی د مارغانو غوښه څنګه چې د هغوئ خواهش وي په حدیث پاک کښې راغلي دي چې جنتیان کله د یو مارغه د غوښې خواهش اوکړي نو هغه به په هغه شکل کښې ورته پیش شي ، چې څنګه ئې غواړي ، که د کبابونو ، وریتې ، سرې کړې په شکل ئې غواړي هم په هغې شکل کښې به ورته پیش شي ، [مظهري]([2]).

[وَاَصْحٰبُ الْيَمِيْنِ ۙ مَاۤ اَصْحٰبُ الْيَمِيْنِ] اصحاب یمین په اصل کښې مؤمنان متقیان دي ، او په اولیاء الله کښې به ګناهګار مسلمانان هم دوئ سره یو ځائې کیږي ، ځینې خو به دالله تعالی په فضل سره ، ځینې د چا نبي په شفاعت سره د بخښلو او معاف کیدو نه پس اوځینې بهٔ د عذاب نه پس چې د ګناه نه صفا شي نو هغوئ به هم د اصحاب یمین په ډله کښې شامل شي ، ولې چې ګناهګار مؤمن دپاره د جهنم اور په حقیقت کښې عذاب نه بلکه دکوټه وغیره نه دپاکولو یو طریقه او تدبیر دي [مظهري]([3]).

[فِيْ سِدْرٍ مَّخْضُوْدٍ ۙ وَّطَلْحٍ مَّنْضُوْدٍ ۙ وَّظِلٍّ مَّمْدُوْدٍ ۙ وَّمَآءٍ مَّسْكُوْبٍ] د جنت نعمتونه بې شمیره ، بې مثاله او بې قیاسه دي ، په دې کښې کوم نعمتونه چې قرآن عظیم الشان ذکر کړي دي هغه د مخاطبینو د فکر د انداز او دهغوئ د خوښې د څیزونو ذکر کوي ، د عربو خلق چې د کومو تفریحونو او دکومو میوؤ چې عادت وو ، دلته دهغې ځینې د څو بیان شوي دي.

[فِيْ سِدْرٍ مَّخْضُوْدٍ] سدره د بیرې ونې ته وئیلې شي ، مَخْضُوْدٍ هغه بیرو ته وائي چې غنې ئې پریکړې شوي وي ، او دمیوې د زوره ئې څانګې راټیټې شوي وي ، د جنت دا بیرې به ددنیا د بیرو پشان نه وي بلکه د چاټو [منګیانو] هومره به وي چې په خوند ، رنګ او بوئی کښې بهٔ ورته هم ددنیا بیرې هیچرې نشي رسیدې.

---

[1] تفسیر المظهري[ج:۹ص:۱۶۸] و جامع الترمذي ، ابواب صفة الجنة باب ماجاء في ما لا دني اهل الجنة من الكرامة [ج:۲ ص:۸۳]

[2] تفسير المظهري[ج:۹ص:۱۶۹] و مسند البزار ،مسند عبدالله بن مسعود ﷺ رقم الحديث:[۲۰۳۲] و مجمع الزوائد رقم الحديث:[۱۸۷۳۴] و كتاب اهل الجنة باب في ثياب الجنة.

[3] تفسير المظهري[ج:۹ص:۱۷۱]

[وَطَلْحٍ مَّنضُودٍ] طلح د کیلې ونه ، مَنضُودٍ چې میوه ئې قط په قط وی څنګه چې د کیلې په غونچه کښې وی .
[وَظِلٍّ مَّمْدُودٍ] [اوږد سیورې] د صحیحینو په حدیث کښې دی چې د جنت ځینو ونو سیورې بهٔ دومره اوږد وی چې په اس سور بنده به ئې په سلو کالو کښې نشی غوځولې(۱).
[وَمَآءٍ مَّسْكُوبٍ] جاری او به چې په زمکه کښې بهیږی .
[وَفَاكِهَةٍ كَثِيرَةٍ] د کثیرة په معنی کښې داهم داخل دی چې د میوؤ شمیر به ئې ګنړ وی او داهم چې قسمونه او جنسونه به ئې ګنړی.
[لَّا مَقْطُوعَةٍ وَلَا مَمْنُوعَةٍ] د مقطوعة نه مراد دادی چې د فصل او موسم په ختمید باندې ختم شی ، څنګه چې د دنیا دعامو میوؤ هم دا حال دې چې د خپل خپل موسم په ختمید و باندې ختمیږی ، خو د جنت هره میوه به هر وخت په هر موسم کښې موجوده پاتې کیږی .د [مَمْنُوعَةٍ] مراد هم دادې چې څنګه په دنیا کښې د باغونو کښیان[باغوانان] خوک پردې دهغې میوؤ شوکولو ته نه پریږدی ، دغه شان څهٔ منع کول به دجنت په میوؤ کښې نه وی .
[وَفُرُشٍ مَّرْفُوعَةٍ] ، [فُرُشٍ] دافراش جمع ده چې معنی ئې توشک یا فرش ده ، د فرش لوړ والي اول خو څکه دې چې دا مقام پخپله لوړ دې ، دویم دا چې پخپله دا فرش په زمکه باندې نه بلکه په تختونو او چپرکټونو بهٔ وی ، دریم دا چې پخپله دغه فرش به هم پیرړه وی او ځینو مفسرینو دلته د فرش نه مراد ښځه اخستې ده ولې چې دښځې نه هم په فراش سره تعبیر کولې شی لکه په حدیث پاک کښې فرمائی چې :
[الولد للفراش](۲) [اولاد د ښځې دې] دې پسې آیتونو کښې چې د جنتیانو ښځو صفات بیان شوی دی هغه هم ددې معنې قرینه دی ،[مظهری](۳) . په دې صورت کښې د مرفوعة لفظ د درجو د لوړ والی معنې ورکوی ، یعنی د لوئې مرتبې.
[إِنَّا أَنشَأْنَاهُنَّ إِنشَاءً] د [إِنشَاءً] معنی پیدا کول دی ، د هن ضمیر د جنت ښځو ته راجع دې اګر چې په نزدې تیرو شوؤ آیتونو کښې دهغې ذکر نشته دې ، مګر په لږه فاصله کښې د سابقینو په بیان کښې ددوئ بیان راغلې دې څکه ورته ضمیر راجع کیدې شی او که په دې آیت مبارک کښې د فراش نه مراد جنتی ښځې وی نو ضمیر دوئ ته راجع کیدل ښکاره دی ، دغه شان په فرش ، توشک ، تولائی وغیره د مزو د څیزونو په ذکر کولو کښې پخپله یو دلالت ښځې ته بیا موندې شی څکه هم ضمیر دوئ ته راجع کیدې شی .
معنی د آیت مبارک داده چې مونږ د جنت د ښځو پیدا کول په یو خاص انداز سره کړی دی اود اخاص انداز د جنت د حورو دپاره خو داسې دې چې هغوئ په جنت کښې بغیر د څائیګولو نه پیدا شوی دی ، او ددنیا ښځې چې جنتیانې شی نو دهغوئ د خاص پیدا کولو مطلب به دا وی چې ددنیا بد شکلی ، تور والې ، بوډاوالې یانور عیبونه به ئې ختم کړې شی ، ښکلې ، سرې

---

(۱) صحیح البخاري کتاب التفسیر ، تفسیر سورة الواقعة [ج:۲ص:۷۲٤] و صحیح مسلم کتاب الجنة وصفة نعیمها واهلها [ج:۲ص:۳۷۸]
(۲) صحیح البخاري کتاب البیوع ،باب تفسیر المشبهات [ج:۱ص: ۲۷۵]
(۳) تفسیر المظهري[ج:۹ص:۱۷۲]

سپينې ، پيغلې او بې عيبه به کړې شي . لکه ترمذي شريف او بيهقي کښې د انس ﷺ نه روايت دې چې رسول کريم ﷺ اوفرمائيل چې د [إِنَّا أَنشَأْنَاهُنَّ] په تفسير کښې اوفرمائيل چې کومې ښځې په دنيا کښې بوډئی ، چوڅئ ، سپين سرې او بدشکله وی ، په دې نوی پيدائش سره به هغوئ ځوانې او ددغې عيبونو نه پاکې وی[1] ، او بيهقی د عائشه صديقه ﷺ په روايت سره بيان کړی دی چې يوه ورځ رسول کريم ﷺ کور ته تشريف راوړو ، ماسره يو بوډئی ناسته وه ، رسول کريم ﷺ تپوس اوکړو چې دا څوک دی ، ما عرض او کړو چې پخپلوئ کښې زما يوه ترور ده ، هغوئ د خوش طبعئ په طور اوفرمائيل : [لاتدخل الجنة عجوز] [جنت ته به بوډئی نه داخلیږی] دغه غريبه ډيره خفه شوه ، او ځينې روايتونو کښې راغلی دی چې په ژړا شوه نو رسول کريم ﷺ ورته تسلی ورکړه ، او دخپلې خبرې مبارکې حقيقت ئې دابيان کړو چې جنت ته لاړې شې نو بوډئی به پاتې نشې . او پيغله به ئې او هم دغه آيت مبارک ئې تلاوت کړو . [مظهری][2].

[أَبْكَارًا] د بکر جمع ده ، پيغلې جنئ ته وئيلې شی ، مراد دادې چې د جنت د ښځو پيدا کول به په دې شان سره وی چې د هر کور والی نه پس به بيا پيغله کيږی .

[عُرُبًا] دعروبة جمع ده ، هغې ښځې ته وئيلې کيږی چې د خپل خاوند عاشقه وی او د هغه زړه پورې معشوقه وی .

[أَتْرَابًا] د ترب جمع ده ، معنی ئې همزولې ده چې په ښاؤرو کښې ئې سره يو ځائې لوبې کړې وی ، يعنی په جنت کښې به ټولې ښځې اوسړی سره خپل مينځ کښې همزولی وی ، د حديث په ځينې روايتونو کښې دی چې د ټولو عمر به درې ديرش کاله وی .[مظهری][3].

[ثُلَّةٌ مِّنَ الْأَوَّلِينَ ۝ وَثُلَّةٌ مِّنَ الْآخِرِينَ ۝] د [ثُلَّةٌ] معنی لويه ډله او د اولين او آخرين په تفسير کښې د مفسرينو حضراتو دوه قوله پورته د سابقون په بيان کښې ذکر شوی دی .

که داولين نه مراد هغه خلق وی چې د آدم ﷺ د زمانې نه د رسول کريم ﷺ د زمانې د شروع کيدو نه وړاندې وو ، د آخرين نه مراد ، د رسول کريم ﷺ امت تر قيامته پورې وی ، نو ددې آيت حاصل به داوی چې د اصحاب اليمين يعنی د مؤمنانو متقيانو شمير د پخوانو امتونو په مجموعه کښې به يوه لويه ډله وی او يوازې په امت محمديه ﷺ کښې به يوه ډله وی . په دې صورت کښې اول خو د امت محمديه ﷺ د غوره والی دپاره هم څه کم نه دی چې د پخوانو لکونو پيغمبرانو ﷺ د امتونو هومره داامت شی چې زمانه ئې ډيره لږه ده .دې نه علاوه د [ثُلَّةٌ] په لفظ کښې د اهم گنجائش شته چې دثلة آخرين شمير به د اولين نه زيات شی .

اوکه دويم تفسير مراد واخستې شی چې اولين او آخرين دواړه ددې امت مراد دی لکه چې ابن عباس ﷺ نه بغوی او حضرت ابی بکره ﷺ نه مسدد ، طبرانی او ابن مردويه روايت کړې دې

[1] ) جامع الترمذي ، ابواب التفسير باب ومن تفسير سورة الواقعة (با لإختصار)[ج:۲ ص:۱۲۵]

[2] ) تفسير المظهري[ج:۹ص:۱۷۳] و شرح السنة للبغوی (بإختلاف فی الالفاظ) رقم الحديث:[۳۶۰۶] و المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث:[۵۷۰۳]

[3] ) تفسيرالمظهري[ج:۹ص:۱۷۳] وجامع الترمذي،ابواب صفة الجنة باب ماجاء فی سن اهل الجنة [ج:۲ص:۸۱]

چې رسول کريم ﷺ ددې آيت مبارک په تفسير کښې اوفرمائيل : [هما من امتى ][1]
يعنى[اولين او آخرين دواړه زما د امت څخه دوه ډلې دى] ددې معنى په لحاظ سره ثابتيږى
چې سابقين اولين صحابه کرامو ؓ او تابعينو وغيره پشان حضراتو څخه بۀ هم دا امت تر
آخره پورې بالکل محرومه نه وى . اګر چې په آخرى دور کښې بۀ داسې خلق کم وى او مؤمنان
متقيان اولياء الله خو به ددې تـول امت پـه اول آخر کښې پـه ګنړ شمير کښې وى او د امت
محمديه ﷺ هيڅ دور به د اصحاب اليمين د ډلې نه ، خالى نه وى ، ددې ثبوت دهغې حديث
نه هم کيدې چې په صحيح بخارى او مسلم کښې د معاويه ؓ نه منقول دې چې رسول کريم
ﷺ اوفرمائيل:

زما امت کښې بۀ يوه ډله هميشه په حق باندې قائم پاتې کيږى او د زرګونو مخالفتونو باوجود
بۀ هغوئ د نيکئ اوهدايت کار کوى ، هغې ته به د چامخالفت څه نقصان نشى رسولې ، تردې
چې د قيامت قائميدو پورې به دغه ډله په خپل کار کښې اخته وى[2].

| | |
|---|---|
| نَحۡنُ خَلَقۡنٰكُمۡ فَلَوۡلَا تُصَدِّقُوۡنَ ۝ | |
| مونږه پيدا کړى يئ تاسو \| نو ولې تصديق نۀ کوى تاسو | |
| هم مونږ تاسو پيدا کړى يئ انو ولې قيامت نه منئ | |
| اَفَرَءَيۡتُمۡ مَّا تُمۡنُوۡنَ ۝ ءَاَنۡتُمۡ تَخۡلُقُوۡنَهٗۤ | |
| آيا فکر کړې دې تاسو\|هغه نطفې ته \|چې تاسو ئې دزنا نه بچه دان ته اچوئ \|آياتاسو بچې جوړوئ دهغې نه | |
| نبه دا راته اووائې چې تاسو کومه منى [رحم] ته رسوئ \| نو تاسو د هغې نه بنيادم پيدا کوئ | |
| اَمۡ نَحۡنُ الۡخٰلِقُوۡنَ ۝ نَحۡنُ قَدَّرۡنَا بَيۡنَكُمُ الۡمَوۡتَ | |
| يا مونږ جوړونکى يو دهغې \| مونږه په اندازه تقسيم کړې دې \| په منځ ستاسو کښې \| مرګ | |
| که مونږ ئې پيدا کوؤ \|.............مونږ ستاسو په مينځ کښې مرګ مقرر کړې دې | |
| وَمَا نَحۡنُ بِمَسۡبُوۡقِيۡنَ ۝ عَلٰٓى اَنۡ نُّبَدِّلَ | |
| او نۀ يو مونږه \| چې سبقت اوشى په مونږ باندې [يعنى نۀ يو عاجزه] \| چې بدل کړو مونږه \| | |
| اومونږ د دې نه عاجزه نه يو \| چې ستاسو په ځائې ستاسوپشان نور خلق پيدا کړو | |
| اَمۡثَالَكُمۡ وَنُنۡشِئَكُمۡ فِىۡ مَا لَا تَعۡلَمُوۡنَ ۝ | |
| شکلونه ستاسو \| او راپيدا کړو تاسو \| په هغه شکل کښې \| چې تاسو ته هډو معلوم نۀ دى | |
| او تاسو په داسې حالت کښې پيدا کړو \| چې تاسو ته هډو معلوم نه وى | |

[1] تفسير البغوي هذه الآية [ج: ۸ ص:۱۸] و روح المعاني [ج: ۲۰ ص:۲۰۸]
[2] صحيح مسلم كتاب الإمارة، باب قوله صلي الله عليه وسلم :لا تزال طائفة من امتي ظاهرين... إلخ
[ج:۲ص:۱۴۳ ] و صحيح البخاري كتاب المناقب ، باب سؤال المشركين ان يريهم النبي ﷺ [ج:۱ص:۵۱۴]

وَلَقَدْ عَلِمْتُمُ النَّشْاَةَ الْاُوْلٰى فَلَوْلَا تَذَكَّرُوْنَ ۝ اَفَرَءَيْتُمْ

او بیشکه معلوم دي تاسو ته | پیدائش اولني [خپل] | نو ولې سبق نه حاصلوئ | ایا سوچ کړي دي تاسو

اوتاسو ته د رومبی پیدائش حال ښه معلوم دی| نو ولې سبق نه اخلئ ؟ | ............ ښه دا خو

مَّا تَحْرُثُوْنَ ۝ ءَاَنْتُمْ تَزْرَعُوْنَهٗٓ اَمْ نَحْنُ الزّٰرِعُوْنَ ۝

هغه تخم | چې کرئ ئې تاسو | آیا تاسو | زرغونوئ هغه | یا مونږ زرغونونکی یو دهغې

اووائې چې تاسو چې کوم فصل کرئ | نو هغه تاسو راټوکوئ | که مونږ ئې رازرغنوؤ ؟

لَوْ نَشَآءُ لَجَعَلْنٰهُ حُطَامًا فَظَلْتُمْ تَفَكَّهُوْنَ ۝

که اوغواړو مونږه |خامخاجوړ به کړو مونږ هغه | بوس | پس شئ به تاسو|چې خبري به جوړوئ قسماقسم

که مونږ اوغواړو نو هغه بهٔ چوري چوري کړو | ............ نوتاسو به حیران پاتې شئ .

اِنَّا لَمُغْرَمُوْنَ ۝ بَلْ نَحْنُ مَحْرُوْمُوْنَ ۝ اَفَرَءَيْتُمُ

چې مونږه خو تاونیان شو | بلکه مونږه | محرومه کړي شوی یو دحصې نه | ایا سوچ کړي دي تاسو

چې اوس خو مونږ تاوانیان شو| بلکه بالکل خالی لاس پاتې شو | ........ ښه دې اوبو ته خو اوګورئ

الْمَآءَ الَّذِيْ تَشْرَبُوْنَ ۝ ءَاَنْتُمْ اَنْزَلْتُمُوْهُ مِنَ الْمُزْنِ

په دې اوبو باندې | هغه اوبه | چې تاسو ئې څکئ | آیا تاسو | نازل کړي دی هغه | دوريځې نه

............ چې تاسو ئې څکئ | ............ آیا دا تاسو د وريځو نه

اَمْ نَحْنُ الْمُنْزِلُوْنَ ۝ لَوْ نَشَآءُ جَعَلْنٰهُ اُجَاجًا

یا مونږه نازلونکی یو دهغې | که اوغواړو مونږه | جوړې به کړو مونږه دا اوبه| سختې تروې

راوروئ که د دې نه ورونکی هم مونږ يو؟| که مونږ اوغواړو نو دا به ترخې کړو

فَلَوْلَا تَشْكُرُوْنَ ۝ اَفَرَءَيْتُمُ النَّارَ الَّتِيْ تُوْرُوْنَ ۝

نو ولې تاسو شکر نهٔ اوباسی | ایا سوچ کړي دي تاسو | وورته | هغه وور | چې بلوئ ئې تاسو

نوتاسو ولې شکرنه اوباسئ ؟ | ښه نو اور ته اوګورئ کوم چې تاسو بلوئ

ءَاَنْتُمْ اَنْشَاْتُمْ شَجَرَتَهَآ اَمْ نَحْنُ الْمُنْشِـُٔوْنَ ۝ نَحْنُ جَعَلْنٰهَا

ایا تاسو پیدا کړی ده | ونه دهغې | یا مونږه یو | پیدا کونکی دهغې | مونږه جوړه کړی ده دغه ونه

............ آیا ددې ونه تاسو پیدا کړې ده | او که [ددې] پیدا کونکی مونږ یو ؟

تَذْكِرَةً وَّمَتَاعًا لِّلْمُقْوِيْنَ ۝ فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّكَ

ذریعه د وریادولو | او سامان | دپاره دحاجتمندو [مسافرانو] | پس تسبیح وایه| دنوم درب خپل

داخو مونږ دنصیحت یوذریعه اوحاجتمندو کسانو له فائده مند خیز پیدا کړې دې | نو ته دخپل لوئې رب دنوم

الْعَظِيْمِ ۝

چې لوئ دې |

پاکی بیانوه|

## آسان ترجمه قرآن

مونږ تاسو پيدا کړي يئ، بيا تاسو تصديق ولې نه کوئ؟ خبر را کړئ ماته، چه کومه نطفه تاسو څڅوئ، آيا تاسو هغې لره پيدا کوئ، يا پيدا کونکې مونږ يو ؟ مونږ ستاسو په مينځ کښې د مرګ فيصلې کړې دی، او هيڅوک نشته، چه مونږ ددې خبرې نه عاجزه کړی چه مونږ ستاسو په ځائې ستاسو پشان نور خلق راولو، او تاسو دوباره په داسې حالت کښې پيدا کړو، چه تاسو ئې نه پيژنئ. او تاسو پوهيږئ په اولنې پيدائش باندې، بيا ولې سبق نه اخلئ پس خبر را کړئ ماته، چه څه تاسو په زمکه کښې کرئ آيا تاسو هغې لره زرغونوئ، يا زرغونونکې مونږ يو که مونږ اوغواړو، نو دې لره به ذرې ذرې کړو، نو او به ګرځئ تاسو تعجب کونکی. چه په مونږ باندې خو تاوان راغې. بلکه مونږ يُو بدنصيبه. پس خبر را کړئ ماته، چه دا اوبه چه تاسو ئې څکئ. آيا دا تاسو راوروئ د وريځو نه، يا راورونکې مونږ يُو؟ که مونږ اوغواړو، نو دې لره به ترخې اوګرځوؤ، بيا هم تاسو شکر نه ادا کوئ؟ پس خبر را کړئ ماته، چه دا اور چه تاسو ئې بلوئ، آيا ددې اونه تاسو پيدا کړې ده يا پيدا کونکې مونږ يُو؟ مونږ دا اور نصيحت او د مسافرو دپاره د فائدې څيز ګرځولې دې لهٰذا (اے پيغمبره) ته د خپل عظيم پروردګار نوم اخستلو سره دهغه تسبيح کوه.

## خلاصه تفسير

﴿نَحْنُ خَلَقْنٰكُمْ﴾[مونږ تاسولره] اول وار[پيداکړی دی] کومولره چه تاسوهم منئ ﴿فَلَوْلَا تُصَدِّقُوْنَ۝﴾ [نو بيا تاسو] په اعتبارددې دنعمت کيدو دتوحيد او په اعتباردددې چه په بياپيدا کولوقدرت دليل دې د قيامت [تصديق ولې نه کوئ] وړاندې ددې پيداکولوبيا ددې داسبابود بقاء تفصيل او يادګيرنه ده يعنی ﴿اَفَرَءَيْتُمْ مَّا تُمْنُوْنَ۝﴾ [ابنه نو بيادا وښايئ چه تاسوکومه] دبڅورحمونوته [منی رسوئ ﴿ءَاَنْتُمْ تَخْلُقُوْنَهٗ اَمْ نَحْنُ الْخٰلِقُوْنَ۝﴾ آياهغې لره تاسو بنيادم جوړونکی يئ اوکه مونږئ جوړ وو] اوظاهره ده چه مونږ ئې جوړ وو او ﴿نَحْنُ قَدَّرْنَا بَيْنَكُمُ الْمَوْتَ﴾[مونږ ستاسوپه مينځ کښې مرګ لره] په معين وخت [مقرر کړې دی] مطلب دادې چه جوړول او دې جوړ شوی لره تريو خاص وخته پورې باقی ساتل داټول زمونږ کار دې وړاندې دابنائی چه لکه څنګه دانسان دذات پيداکول او باقی ساتل ئې زمونږ کار دې دغه شان ستاسو موجوده صورت لره باقی ساتل هم زمونږ کار دې او ﴿وَمَا نَحْنُ بِمَسْبُوْقِيْنَ۝﴾[مونږ ددې نه عاجزه نه يو﴿عَلٰۤى اَنْ نُّبَدِّلَ اَمْثَالَكُمْ﴾ چه ستاسوپه شان ستاسوپه ځائې نور] بنيادم [پيداکړو﴿وَنُنْشِئَكُمْ فِیْ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ۝﴾ او تاسولره داسې صورتونه جوړکړوکومولره چه تاسوپيژنئ هم نه] يعنی مثلا د بنيادم نه د خناور په صورت کښې مسخ کړو چه ګمان ئې هم نشته [او] وړاندې خبرداروَل دی ددې په دليل يعنی ﴿وَلَقَدْ عَلِمْتُمُ النَّشْاَةَ الْاُوْلٰى﴾[تاسوته داول خل پيداکيدوعلم حاصل دې] چه دغه زمونږ په قدرت سره دې ﴿فَلَوْلَا تَذَكَّرُوْنَ۝﴾[بيا تاسوولې نه پوهيږئ؟] چه پوهه شئ ددې نعمت شکر ادا کړئ او دتوحيداقرار وکړئ او په قيامت کښې په دوباره ژوندی کيدوهم استدلال وکړئ وړاندې يوبل خبرداری دې يعنی ﴿اَفَرَءَيْتُمْ مَّا تَحْرُثُوْنَ۝ ءَاَنْتُمْ تَزْرَعُوْنَهٗۤ﴾[ابنه بياداوښايئ تاسوچه څه] تخم وغيره [کرئ هغې لره تاسوراټوکوئ﴿اَمْ نَحْنُ الزّٰرِعُوْنَ۝﴾ اوکه مونږ ئې راټوکوونکی يو] يعنی په مزکه کښې دتخم په غورزولو کښې خوستاسوڅه دخل هم شته ليکن

دغې لره د مزكې نه راويستل دا دچاكاردې؟ وړاندې دابنائی چه لكه څنګه دمزكې نه اونه تېوكول زمونږ كار دې وړاندې ددغې اونې نه ستاسوفائده اخستل هم زمونږ په قدرت اوحكمت باندې موقوف دی لكه چه داسې بره هم فرمانيلې شوی وو يعنی ﴿لَوْنَشَآءُ لَجَعَلْنٰهُ حُطَامًا﴾ [كه مونږ وغواړونو دې] پيداوار [لره په خس خس كړو] يعنی دانې به په كښې ونه شی او پانړې به ئې وچې شی خس خس به شی ﴿فَظَلْتُمْ تَفَكَّهُوْنَ﴾ [بيا به تاسو حيران پاتې شئ] چه اوس خو ﴿اِنَّا لَمُغْرَمُوْنَ﴾ [په مونږه تاوان راغې] يعنی په سرمايه كښې نقصان وشو او نقصان څه ﴿بَلْ نَحْنُ مَحْرُوْمُوْنَ﴾ [بلكه بالكل محرومه شولو] يعنی ټوله سرمايه لاړه ختمه شوه وړاندې دريم خبردارې دې يعنی ﴿اَفَرَءَيْتُمُ الْمَآءَ الَّذِيْ تَشْرَبُوْنَ﴾ [ښه بياداوښايئ چه كومې اوبه تاسو څښئ ﴿ءَاَنْتُمْ اَنْزَلْتُمُوْهُ مِنَ الْمُزْنِ اَمْ نَحْنُ الْمُنْزِلُوْنَ﴾ آيا هغه دوريځې نه تاسو وروئ اوكه مونږ ئې ور ووُ] بيادغه اوبه دڅښلو قابلې جوړول زمونږ بل نعمت دې چه ﴿لَوْنَشَآءُ جَعَلْنٰهُ اُجَاجًا فَلَوْلَا تَشْكُرُوْنَ﴾ [كه مونږ وغواړو دغه به ترخې كړو نو تاسوشكر ولې نه كوئ؟] اولوئ شكر عقيده د توحيد اود كفرپرېښودل دی وړاندې څلورم خبردارې دې يعنی ﴿اَفَرَءَيْتُمُ النَّارَ الَّتِيْ تُوْرُوْنَ﴾ [ښه بيادا وښايئ چه كوم اور لره تاسوبلوئ ﴿ءَاَنْتُمْ اَنْشَاْتُمْ شَجَرَتَهَآ اَمْ نَحْنُ الْمُنْشِئُوْنَ﴾ دهغې اونې لره] په كومه كښې چه دا اور دې چه بيان ئې دسورة يسٓ په آخركښې دې اودغه شان دكومو ذريعو نه چه دا اورپيداكيږی هغه ذريعې [تاسوپيداكړی دی اوكه مونږ ئې پيداكوونكی يو ﴿نَحْنُ جَعَلْنٰهَا تَذْكِرَةً وَّمَتَاعًا لِّلْمُقْوِيْنَ﴾ مونږ دې لره] ددوزخ داورياد خپل قدرت [دياددلو څيزاود مسافرودپاره دفائدې شې جوړكړې دې] ورياددول يوه دينی فائده ده اوبله دنيوی فائده په اور باندې خوراك پخول دی اوتخصيص دمسافرد حصر دپاره نه دې بلكه په سفركښې داور دكمو موندو سبب يو عجيبه شې وی اوپه متاعاكښې دې طرف ته هم اشاره وشوه چه داور نه فائده اخستل هم زمونږ دقدرت نه دی ﴿فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيْمِ﴾ [پس] دكوم ذات چه داسې قدرت دې [دخپل] دغې [عظيم الشان پروردګاردنوم تسبيح] اوثناء [كوئ] چه كمال د ذات اوصفات يې مقتضی د مستحق كيدو دحمداو ثناء دې او دنوم دتسبيح وغيره تحقيق دسوره رحمن په آخری ايت كښې تير شوې دې.

## معارف او مسائل

د سورة په شروع كښې تردې ځائې پورې په محشر كښې د انسانانو درې قسمه او د درې واړو قسمونو حكمونه اوجزاء ، سزا بيان شوی وو. اوس په دې آيتونو كښې هغې ګمراهانو خلقو ته خبردارې وركول دی چې بالكل د قيامت د قائميدو او دوباره ژوندی كيدو قائل اومنونكی نه دی ، يا د الله ﷻ په عبادت كښې نور خلق شريكان ګرځوی .د انسان دهغې غفلت اوجهالت څخه پرده لرې كول دی چې كومو دې په هيره كښې اچولې دې. ددې وضاحت دادې چې په دې دنيا كښې چې څومره څيزونه موجود دی يا موجوديدونكی دی ، يا په آئنده كښې راتلونكی دی ، ددې پيدا كول ، بيا ددې باقی لرل بيا ئې د انسان په مختلفو كارونو كښې لګول دا ټول په حقيقت كښې د الله ﷻ دقدرت او حكمت كرشمې دی ، كه د اسبابو پردې تر منځه نه وی او انسان ددې ټولو څيزونو دپيداكولو نيغ په نيغه ليدل اوكړی نو په

ايمان راوړلو به مجبوره شي. خو الله ﷻ دنيا د امتحان ځائې جوړ کړې دې ځکه چې دلته څه موجوديږي او ښکاره کيږي ، هغه د اسبابو په پردو کښې رازي.

او الله ﷻ پخپل کامل قدرت او حکمت بالغه سره دې اسبابو او مسبباتو تر مينځه داسې يوه مضبوط رابطه قائمه کړې ده چې چرته سبب موجود شي نو مسبب ورسره په خپله وجود کښې رازي . چې ليدونکې ئې لازم ملزوم ګنړي او ظاهر بين نظرونه هم په دغې سلسله د اسبابو کښې انښتې پاتې شي . او د کائناتو پيدا کول هم خپلو دغې اسبابو ته منسوب کوي ، دهغې څخه نظر واوړي کوم چې حقيقي کوونکې قوت اودغې اسبابو او مسبباتو ګردش ورکوونکې دې .

په دې آيتونو کښې الله ﷻ اول پخپله د انسان دپيداکولو حقيقت واضح کړو بيا دانساني ضروورياتو دپيداکولو د حقيقت څخه ئې پرده اوچته کړه ، انسان لره په مخاطب کولو سره ئې سؤالات اوکړل . ددغې سؤالاتو په ذريعه ئې اصل جواب ته لار خودل اوکړل ، ولې چې په سؤالاتو کښې ددغې اسبابو کمزوري او د پيدا کولو علت نه کيدل ئې په ښکاره کړل .

په دې آيتونو کښې ړومبې آيت مبارک ﴿نَحْنُ خَلَقْنٰكُمْ﴾ يو دعوى ده او وروسې آيتونه ددې دليلونه دي ، د ټولو څخه ړومبې پخپله د انسان په پيدا کولو باندې يو سوال اوکړې شو ولې چې عاقل انسان چونکه امروزه دا ويني ګورې چې د نارينه او زنانه په يو ځائيکت سره بچې د مور په خيټه کيږي چې هم دغلته وده کوي اوتياريږي او دنهو مياشتو څخه روستو د يو مکمل انسان په صورت کښې پيدا شي نو دې څخه غافل انسان دا اوګنړي چې دانسان دپيداکيدو اصلي علت د نارينه او زنانه يو ځائيکت دې ، ځکه سؤال اوکړې شو. ﴿أَفَرَءَيْتُم مَّا تُمْنُونَ ۝ ءَأَنتُمْ تَخْلُقُونَهُۥٓ أَمْ نَحْنُ ٱلْخَٰلِقُونَ ۝﴾ يعنى ائې انسانه ! لږ شان غور خو اوکړه چې د بچې د پيدا کيدو کښې ستا دخل ورکول سوا د دې څخه بل څه دي چې د منى يو څاڅکې دې خاص ځائې ته اورسولو . ددې څخه روستو تاته خبر دې چې په دې نطفه باندې څه څه دورنه تير شول او څه څه تغيرات راغلل ، په څه څهٔ شان سره په انسان کښې هډوکې ، غوښې او پوستکې ، ځرمنې پيدا شوې اوپه څه څه شان سره په دې وړوکې جهان کښې څنګه څنګه نازك مشينونه د غذا حاصلولو د وينې جوړولو د حيواني روح پيدا کولو ، بيا د ليدلو ، وئيلو آؤريدو او د سوچ کولو او پوهيدلو قوت ئې ددهٔ په وجود کښې نصب کړل چې په دې شان د انسان وجود ګرځنده کارخانه جوړه شوه ، پلار ته ئې هم خبر نشته او مور ته ئې هم ، د چا په خيټه کښې چې دا هر څه کيږي ، آخر که عقل په دنيا کښې څه څيز دې نو هغه ولې نه پوهيږي چې په عجيب ، غريب حکمتونو باندې مشتمل انساني وجود آيا پخپله جوړ شوې دې ؟ که څوك جوړوونکې شته نو هغه څوك دې ؟ مور پلار ته خو ئې خبر هم نشته چې څه جوړ شو ؟ څنګه جوړ شو ، هغه ته د بچې دپيداکيدو لږ شان وړاندې پورې هم دا هم معلومات نه وي چې دغه ماشوم هلك دې که جينئ ؟ بيا آخر هغه کوم قدرت دې چا چې د خيټې ، بيا درحم پردې د بچې څخه د راچاپيره جلئ په دريو تيرو کښې دا ښکلې ، آؤريدونکې ، ليدونکې سوچ او پوهه لرونکې وجود ئې تيار کړو ؟ بيا هم ددې په جواب کښې که په ﴿فَتَبَارَكَ ٱللَّهُ أَحْسَنُ ٱلْخَٰلِقِينَ ۝﴾ وئيلو باندې څوك مجبوره نشي نو هغه به د عقل ړوند کيدې شي او بس

دې پسې نورو آيتونو کښې ئې دا هم اوخودل چې ائې انسانانو! تاسو د پيدا کيدو ، اوګرځيدونکی راګرځيدونکی کار کوؤنکی انسان جوړيدو څخه پس هم په خپل وجود ،بقاء او په ټول کاروبار کښې هم زمونږ محتاج يئ ، مونږ ستاسو د مرګ هم د اوسه څخه يووخت مقرر کړې دې ، او ددې مقرر وخت څخه وړاندې چې کوم عمرونه تاسو ته درکړې شو. په هغې کښې تاسو خپل ځانونه پوره اختيار من بيا مومئ ، داهم ستاسو غلطيدل دی ، زمونږ پدې باندې هم قدرت دې ، چې اوس اوس تاسو لره په فنا کولو سره ستاسو په ځائې بل قوم پيدا کړو ، اودا هم قدرت لرو چې ستاسو د فنا کولو په ځائې ستاسو دا صورت د يو ځاروی يا بې ساه صورت کښې بدل کړو؟ دا مضمون ددې آيتونو دې :

﴿نَحْنُ قَدَّرْنَا بَيْنَكُمُ الْمَوْتَ وَمَا نَحْنُ بِمَسْبُوقِينَ ۝ عَلَىٰ أَن نُّبَدِّلَ أَمْثَالَكُمْ وَنُنشِئَكُمْ فِي مَا لَا تَعْلَمُونَ ۝﴾ دمرګ مقدر کيدو او په ټاکلی وخت باندې راتلو کښې دې ته هم اشاره ده چې تاسو په خپل باقی پاتې کيدو کښې آزاد او پخپل اختيار نه يئ بلکه ستاسو باقی پاتې کيدل تر يو ټاکلی وخت پورې تاسو لره الله ﷻ د يو خاص قوت ، قدرت او د عقل او حکمت لرونکی جوړ کړی يئ ، ددې څخه په کار اخستو سره تاسو ډير څه کولې شئ.

﴿وَمَا نَحْنُ بِمَسْبُوقِينَ﴾ حاصل دادې چې زمونږ د ارادې څخه وړاندې کيدونکې او په دې باندې غالب راتلونکې بل هيڅوك نشته ، مونږ دا وخت هم چې څه کول غواړو نو کولې شو چې :

﴿أَن نُّبَدِّلَ أَمْثَالَكُمْ﴾ [ستاسو پشان څه بل قوم راولو]

﴿وَنُنشِئَكُمْ فِي مَا لَا تَعْلَمُونَ ۝﴾ او ستاسو هغه شکلونه جوړ کړو کوم چې تاسو يې پيژنئ هم نه دا هم کيدې شی چې د يو ځناور او ځاروی په شکل کښې بدل شئ. لکه پخوانی ځنې امتونه چې د بيزوګانو او خنزيرانو په شکلونو کښې بدل شوی وو ، او داهم کيدې شی چې تاسو د کاڼړو تيږو وغيره په شکل کړې شئ.

﴿أَفَرَأَيْتُم مَّا تَحْرُثُونَ ۝﴾ د انسان دپيدا کولو په معامله کښې دانسان د غفلت اوطبعی اسبابو په پرده کښې په ښکيل کيدوسره د اصل خالق اومالك څخه د بې خبره کيدو پرده ئې څيرې کړه ، بيا ددهٔ د غذا حقيقت ئې په دې اندازه ښکاره کړو چې سؤال يې اوکړو چې تاسو څه په زمکه کښې تخم کرئ. لږ شان غور خو اوکړئ چې ددغې تخم څخه په ونلې پيدا کولو کښې ستاسو د عمل څه او څومره دخل دې ؟ که غور اوکړئ نو جواب ئې سوا ددې څخه بل جوړ نشو چې زمونږ دخل په کښې صرف د کرلو دې ، يعنې کروندګر په هل چلولو سره او په کهاد [انبار] اچولو سره هغه زمکه نرمه کړی چې کومه نرمه غوړکی. دهغو دانې نه راوځی دهغې دپاره د زمکې سختوالې څه بنديز جوړ نشی ، نو د تخم کرونکی انسان ټول کوشش هم دې يو ټکی څخه چاپيره ګرځی . او کله چې ونه رابرڅيره شی نو دهغې په حفاظت دا کوشش راچاپيره شی ليکن د يو دانې نه ونه راويستل دده دوس کار نه دې او نه دا دعوی کولې شی چې ما دا ونه جوړه کړيده نو بيا هم هغه سوال کيږی چې د منونو ښاوړو په ډيری کښې د پرتې دانې نه دا ښکلې او په زرګونو فائده باندې مشتمله او نه چا جوړه کړه ؟ جواب ئې سوا ددې څخه بل څه کيدې شئ چې هم دهغه مالك او خالق دکائناتو کامل قدرت او عجيبه کاريګری ددې جوړونکې ده.

دي څخه روستو داشان اوبه چې انسان ئې په څكلو سره ژوندې پاتې كيږي . اور چې خپله خوراكه پرپخوی ، او خپلې كاريګرئ په دې روانوی ، ددې ټولو په پيدا كولو باندې ئې هم دغسې د سؤال وجواب بيان اوكړو اوپه آخر كښې ئې دټولو خلاصه بيان كړه : ﴿نَحْنُ جَعَلْنٰهَا تَذْكِرَةً وَّمَتَاعًا لِّلْمُقْوِيْنَ﴾ ، ﴿مُقْوِيْنَ﴾ د اقواء څخه مشتق دې ، ددې مجرد قواء دې چې معنى ئې صحراء ده ، په دې بنا د مقوی معنى په صحرا كښې د كښته كيدونكې ده چې مراد ترې مسافر دې ، چې په ځنګل كښې چرته ايساريدو سره د خپل خوراك څكاك انتظام كښې اخته وی ، او مراد د آيت مبارك داد‌ چې دا ټول پيدا كول هم زمونږ د قدرت او حكمت نتيجه وی.
﴿فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيْمِ﴾ ددې لازمی او عقلی نتيجه داكيدل پكار دی چې انسان د الله ﷻ په كامل قدرت او په توحيد باندې ايمان راوړئ او دخپل لوئ رب د نوم تسبيح لولی چې هم دا د هغه د نعمتونو شكر دې.

فَلَآ اُقْسِمُ بِمَوٰقِعِ النُّجُوْمِ ۝ وَاِنَّهٗ لَقَسَمٌ

| پس نۀ | زۀ قسم خورم | په ځايونو | دستورو باندې | او بيشكه دا | خامخا قسم دې

| نوزه دستورو په ډوبيدوپه ځايونو قسم خورم | ..........اوكه تاسو پوهيږئ

لَّوْ تَعْلَمُوْنَ عَظِيْمٌ ۝ اِنَّهٗ لَقُرْاٰنٌ كَرِيْمٌ ۝ فِيْ كِتٰبٍ مَّكْنُوْنٍ ۝

كه پوهيږئ تاسو | لوئ | بيشكه دا | خامخا قرآن عزتمند دې | په كتاب پټ ساتلې شوی كښې

نو دا ډير لوئې قسم دې | دا ډير عزت مند قرآن دې | چې په لوح محفوظ كښې [ليكلې شوې] دې

لَّا يَمَسُّهٗٓ اِلَّا الْمُطَهَّرُوْنَ ۝ تَنْزِيْلٌ مِّنْ رَّبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۝

نشی وروړې ګوتې دۀ لره | مګر پاكان خلق | نازل شوې دې | دطرفه درب دمخلوقاتونه |

چې دپاكو نه سواهيڅوک به ورته ګوتې نه اوړی | دا قرآن پاک د پروردګار دطرفه نازل شوې دې

اَفَبِهٰذَا الْحَدِيْثِ اَنْتُمْ مُّدْهِنُوْنَ ۝ وَتَجْعَلُوْنَ رِزْقَكُمْ

ايا پس ددې كلام سره | تاسو | بې پرواهی كونكی يئ | اوګرځوئ تاسو | حصه خپله [په دې نعمت كښې]

نو ايا تاسو ددې كلام په منلو كښې بې پرواهی كوئ | او ددې دروغژن كول مو ځان دپاره [لكه] خوراک جوړ

اَنَّكُمْ تُكَذِّبُوْنَ ۝ فَلَوْلَآ اِذَا بَلَغَتِ

دا چی تاسو | دروغ ګڼړئ [دا قرآن] | نو ولې نۀ [واپس كوئ روح] | كله چی | او رسيږی روح

كړې دې | ..........نو څه وخت چې ساه مرئ ته راشی | ..........

الْحُلْقُوْمَ ۝ وَاَنْتُمْ حِيْنَئِذٍ تَنْظُرُوْنَ ۝ وَنَحْنُ اَقْرَبُ

مرئ ته | او تاسو | په دغه وخت كښی | ګورئ [چی اوزی روح] | مونږه | زيات نزدې يو

.......... | او تاسو ورته په هغه وخت كښې ګورئ | او دغه [قريب الموت] ته مونږ ستاسونه زيات

اِلَيْهِ مِنْكُمْ وَلٰكِنْ لَّا تُبْصِرُوْنَ ۝ فَلَوْلَآ

هغه ته | ستاسو نه | وليكن تاسو نۀ وينئ | نو ولې نۀ [واپس كوئ دغه روح] |

نزدې يو | .......... خو تاسو مونږ نه وينئ | ..........نو كه تاسو دچا په حكم

| | | | |
|---|---|---|---|
| اِنْ كُنْتُمْ | غَيْرَ مَدِيْنِيْنَ ﴿٨٦﴾ | تَرْجِعُوْنَهَآ | اِنْ كُنْتُمْ |
| که یئ تاسو \| چې نه یې دبل دحکم لاند \| [نو ولې نه] واپس کوئ دغه روح \| که یئ تاسو \| | | | |
| نه یئ \| نو دغه ساه واپس راولئ [کله چه د هغه نه اوځی او مړ شی] \| که تاسو پخپله وینا کښې | | | |
| صٰدِقِيْنَ ﴿٨٧﴾ | فَاَمَّآ | اِنْ كَانَ | |
| رښتنیې [په دې خیال کښې چې تاسو دبل دحکم دلاند نه یئ] \| نو پس بیا \| که چرې وی دغه مړې \| | | | |
| رښتونی یئ \|...... نوڅوک چې په نزدو خلقو کښې شمیر دی \| نو | | | |
| مِنَ الْمُقَرَّبِيْنَ ﴿٨٨﴾ | فَرَوْحٌ | وَّرَيْحَانٌ ﴿٥﴾ | وَّجَنَّتُ نَعِيْمٍ ﴿٨٩﴾ وَاَمَّآ |
| دنزدیکانونه \| نو دهغه دپاره راحت \| او ښه رزق \| او جنت دنعمتونو دې \| او هر چې دا خبره | | | |
| هغه دپاره راحت دې \| او خوراکونه دی \| او د نعمتونو باغونه دی \|...... اوڅوک چې | | | |
| اِنْ كَانَ | مِنْ اَصْحٰبِ الْيَمِيْنِ ﴿٩٠﴾ | فَسَلٰمٌ | لَّكَ مِنْ اَصْحٰبِ الْيَمِيْنِ ﴿٩١﴾ |
| که چرې وی هغه \| ښی طرف دخلقو نه \| نو سلامتیا ده \| تالره \| [ته] دښی طرف دخلقو نه ئې \| | | | |
| د ښی اړخ خلق دی \| هغوئ ته به او وئیلې شی \| چې ته په امن و امان سره اوسیږه \| ځکه چې ته دښی طرف خاوندیې | | | |
| وَاَمَّآ | اِنْ كَانَ | مِنَ الْمُكَذِّبِيْنَ | الضَّآلِّيْنَ ﴿٩٢﴾ فَنُزُلٌ |
| او هر چې دا خبره \| که وی هغه \| ددوزغ گنړونکو \| گمراهانونه \| پس ملمستیا ده | | | |
| او که د دروغ گنړونکو گمراهانو څنی وی \|...... نوهغوئ ته به د ویشیدلو | | | |
| مِّنْ حَمِيْمٍ ﴿٩٣﴾ | وَّتَصْلِيَةُ جَحِيْمٍ ﴿٩٤﴾ | اِنَّ هٰذَا | لَهُوَ حَقُّ الْيَقِيْنِ ﴿٩٥﴾ |
| دگرمو اوبو نه \| او سوزیدل دی په وور کښې ددوزخ \| بیشکه دا خبره \| خامخا دیقین حقه ده \| | | | |
| اوبو میلمستیا ورکولې شی \| او په دوزخ کښې به ورننوځی \| بیشکه دا خبره حقه ده | | | |
| فَسَبِّحْ | بِاسْمِ رَبِّكَ | الْعَظِيْمِ ﴿٩٦﴾ ع | |
| پس تسبیح وایه \| په نوم درب خپل سره \| چې لوئ دې \| | | | |
| نو ته د خپل لوئې رب دنوم پاکی بیانوه | | | |

## آسان ترجمه قرآن

اوس زه په هغې ځایونو باندې قسم خوړلو سره وایم، کوم ځائې چه ستوری پریوځی او که تاسو پوهیږئ، نو دا لوئې زبردست قسم دې چه دا لوئې عزت منل قرآن دې. چه په یو محفوظ کتاب کښې (د مخکښې نه) لیکلې شوې دې دې لره هغه خلق مسه کوی، چه ښه پاک وی دا دټولو جهانونو د پروردگار د طرف نه لږلږ نازلولې شی. آیا بیا هم تاسو ددې کلام نه بې پرواهی کوئ؟ او تاسو هم دې لره خپل روزګار جوړ کړې دې چه (دې ته) دروغ وایئ؟ بیا داسې ولې نه کیږی، چه کله (د چا) ساه مرئ ته راورسی. او هغه وخت تاسو (په افسوس سره) هغه ته ګورئ او ستاسو نه زیات مونږ هغه ته نزدې یو، لیکن تاسو ته نه ښکاری. که ستاسو حساب کتاب کیدونکې نه دې، نو داسې ولې نه کیږی. چه تاسو هغې ساه لره واپس راولئ، که تاسو رشتونې یئ؟ بیا که وی هغه (مړ کیدونکې) د الله تعالٰی د نزدې بندګانو نه. نو (هغه

دپاره) آرام دي، خوشبويانې دي، او د نعمتونو نه ډک باغونه دي او که هغه د ښي لاس والو نه وي. نو (هغه ته به اوويلې شي چه:) تا دپاره سلامتي ده، چه ته د ښي لاس والو نه ئې او که هغه د گمراهانو نه وي، چه حق لره دروغژن گنړي. نو (هغه دپاره) د خوټکيدلو اوبو ميلمستيا ده. او دوزخ ته داخليدل دي. په دې کښې هيڅ شک نشته، چه بالکل هم دا يقيني خبره ده. لهٰذا (اے پيغمبره عليه السلام) ته د خپل پروردگار لوئ اختستلو سره د هغه تسبيح کوه.

## خلاصه تفسير

اوپه عقلي دليلونو سره پس دمرګ نه دژوندي کيدو د امکان ثابتيدونه پس دقرآن نه چه ددې واقع کيدل ثابت دی اوتاسودې قرآن لره نه منئ: ﴿فَلَآ أُقْسِمُ بِمَوٰقِعِ النُّجُومِ﴾[پس خه قسم خورم دستورو په پريوتو﴿وَإِنَّهُۥ لَقَسَمٌ لَّوْ تَعْلَمُونَ عَظِيمٌ﴾ اوکۀ تاسو غوروکړئ نو دايو ډيرلوئ قسم دې] او قسم په دې خبره خورم ﴿إِنَّهُۥ لَقُرْءَانٌ كَرِيمٌ﴾[چه دا] قرآن کوم چه په پيغمبر ﷺ نازليږي دالله تعالی دطرف نه د نازليدو په وجه [يومکرم قرآن دې ﴿فِى كِتَٰبٍ مَّكْنُونٍ﴾کوم چه په يو محفوظ کتاب] يعنې لوح محفوظ [کښې] دوړاندې نه [ليك دې] او هغه لوح محفوظ داسې دې ﴿لَّا يَمَسُّهُۥٓ إِلَّا ٱلْمُطَهَّرُونَ﴾[چه دۀ لره بغير دپاکوفرښتونه] چه دګناهونونه بالکليه پاکې دی [بل څوك] شيطان وغيره [لاس نه شی وروړې] ددې په مضامينوخبريدل خولږې خبره ده پس دهغه ځائ نه ئ دلته په خاص طورسره راتلل دفرښتې په ذريعه دی اوهم دانبوت دې اوشيطانان دۀ لره راوړې نه شی چه په احتمال دکهانت وغيره سره په نبوت کښې هم وی لکه داقول دالله تعالی دې نزل به الروح الامين(١) او داقول وماتنزلت به الشيطين(٢) ددې نه ثابته شوه چه ﴿تَنزِيلٌ مِّن رَّبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ﴾[داد رب العٰلمين د طرف نه راليږلې شوې دې] کوم چه اشارتا مدلول دکريم وه دلته د ستورو په پريوتوقسم دخپل مفهوم اومقصدپه اعتبارسره داسې دې لکه په شروع دسوره نجم کښې دې دکوم چه هلته بيان شوې دې کوم کښې چه دستوروپه اعتبارد غروب د نبی کريم ﷺ په نبوت سره موصوف کيدل او دمنارالهدی کيدلو مثل والې هم بيان شوې دې کوم چه مقصود دمقام دې اوقسمونه څومره چه په قرآن کښې دی په دې وجه چه په مطلوب دلالت کوی تول عظيم دی ليکن خنې خنې دمطلوب دخاص اهتمام او په دې دزيات خبرداراولو دپاره دعظيم کيدو وضاحت ئ هم فرمائيلې دې لکه چه دلته او په سوره فجر کښې اجمالا مطلب د مقام هغه دې کوم چه په تفصيل سره دسوره شعراء په آخری رکوع کښې ارشادشوې دې [پس] ددې دالله تعالی دطرف نه نازليدل ثابت شونو ﴿أَفَبِهَٰذَا ٱلْحَدِيثِ أَنتُم مُّدْهِنُونَ﴾[آياتاسوخلق دې کلام لره سرسری خبره گنړئ] يعنې واجب التصديق ئ نه گنړئ [او] ددې مداهنت نه زيات دا چه ﴿وَتَجْعَلُونَ رِزْقَكُمْ أَنَّكُمْ تُكَذِّبُونَ﴾[او تاسو دروغژن کول خپله غذاجوروئ] اوپه دې وجه د توحيداوقيامت د واقع کيدونه هم انکارکوئ [پس] که دا انکارحق دې نو ﴿فَلَوْلَآ إِذَا بَلَغَتِ ٱلْحُلْقُومَ﴾ [څه وخت چه] دمرګ راتلوپه وخت دچاسرې [روح مرئ ته اورسی ﴿وَأَنتُمْ حِينَئِذٍ تَنظُرُونَ﴾ او تاسودغه وخت] ناست يئ په افسوسناك نظر سره [ورته گورئ ﴿وَنَحْنُ أَقْرَبُ إِلَيْهِ

(١) ترجمه:- دا امانتدارو فرښتو راوړې دې.
(٢) ترجمه:-اودا شيطانانو نه دې راوړې.

مِنكُمْ﴾ اومونږ] دغه وخت [هغه] مړ کیدونکي [سړی ته ستاسو نه هم زیات نزدې یو] یعنی تاسونه هم زیات ددغې سړی په حال خبر یوځکه چه تاسوصرف ظاهری حالت وینئ اومونږ دده په باطنی حالت باندهم خبرداریو﴿وَلٰكِنْ لَّا تُبْصِرُوْنَ۝﴾ [لیکن] زمونږ دې علمی قرب لره په وجه دخپل جهل اوکفر [تاسونه پیژنئ نو] په واقع کښې ﴿فَلَوْلَآ اِنْ كُنْتُمْ غَيْرَ مَدِيْنِيْنَ۝﴾ [که ستاسو حساب کتاب کیدونکې نه وی] لکه چه ستاسوخیال دې [نو تاسودغه روح] دبدن طرف ته ﴿تَرْجِعُوْنَهَآ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ۝﴾[بیا ولې نه واپس کوئ] دکوم چه دغه وخت ستاسوتمناهم وی [که] دقیامت نه په انکار اوحساب کښې [تاسو رښتونی یئ؟] مطلب داچه قرآن صادق دې او وقوع دقیامت ناطق پس مقتضی د وقوع متحققه شوه او مانع هیڅ امرنشته پس واقع کیدل ثابت شو او په دې دپاسه ستاسوانکار اونفی. کول په دلالت دحال ددې مستلزمه ده چه ګویاتاسو روح لره په خپل وس کښې ګنړئ چه اګرکه په قیامت کښې الله تعالی دوباره روح اچول وغواړی لکه چه مقتضی دقرآن ده مګرمونږ به ئې اچولوته نه پرېږدو او دوباره پورته کیدل به پرې نه ږدو په داسې زورسره نفی کوئ ګنې ځوك چه خان عاجزګنړی هغوئ دوقوع د دلیلونونه پس داسې د زور خبره څنګه کوی پس که تاسوئ په خپل وس کښې ګنړئ نو لږخپل زور هغه وخت وښایئ هرکله چه یوکس دمړکیدو په حالت وی او دڅوندارزو هم کوی اوچه څوك ورته ګوری رحم ئې پرې راځی او غمژن کیږی هم او دغه زور ښودل دادی چه دغه روح ختلوته مه پرېږدئ بدن ته ئې واپس کړئ هرکله چه په دې ستاسو وس نشته چه روح بدن ته واپس کړئ نو ددوباره پیداکولونه په منع کولوبه ستاسوڅنګه وس وشی پس داسې بې مقصده دعوی ولې کوئ اوچونکه مقام دې دنفی دقدرت اونفی د علم مستلزم ده نفی دتعلق دقدرت لره په دې وجه په نحن اقرب جمله معترضه کښې ئې ددغودعلم تام نفی وفرمائیله اوچونکه داکافی دلیل ددوئ دپاره شافی نه شوپه دې وجه په لاتبصرون کښې ئې توبیخ هم وفرمائیلواوچونکه په دې تقدیرسره اثبات دقدرت هم وشو په دې وجه دبعث سره داد توحیددلیل هم دې وړاندې دبدلې ورکولو دکیفیت ارشاددې یعنی داخو ثابته شوه چه قیامت به په خپل وخت ضرور راځی [بیا] هرکله چه قیامت قائم شی نو ﴿فَاَمَّآ اِنْ كَانَ مِنَ الْمُقَرَّبِيْنَ۝﴾[پس کوم سړی چه دمقربینونه وی] دکومو ذکرچه بره تیرشوې دې والسابقون الخ ﴿فَرَوْحٌ وَّرَيْحَانٌ ۙ وَّجَنَّتُ نَعِيْمٍ۝﴾[دهغه دپاره خو راحت دې او] د فراخی. [خوراکونه دی او د آرام جنت دې﴿وَاَمَّآ اِنْ كَانَ مِنْ اَصْحٰبِ الْيَمِيْنِ۝﴾ اوکوم سړې چه دښی لاس والونه وی] دکوموذکرچه بره تیرشوې دې واصحب الیمین الخ ﴿فَسَلٰمٌ لَّكَ مِنْ اَصْحٰبِ الْيَمِيْنِ۝﴾[نو هغه ته به ووئیلې شی چه ستادپاره] دهرافت اوخطرې نه [امن وامان دې چه ته دښی طرف والونه یئ] او دا وینابه خواه ابتداء وی که په فضل سره یاپه توبې سره ئې داول نه مغفرت وشی یا انتهاء وی که پس د سزانه ئې مغفرت وشی اودلته دروح اوریحان نه فرمائیل دنفی دپاره نه دی بلکه اشاره دې طرف ته ده چه دوئ به دسابقینونه په دې کارونوکښې کم وی ﴿وَاَمَّآ اِنْ كَانَ مِنَ الْمُكَذِّبِيْنَ الضَّآلِّيْنَ۝﴾[اوکوم سړې چه د دروغژن کوونکو] او [ګمراهانونه وی ﴿فَنُزُلٌ مِّنْ حَمِيْمٍ۝﴾ نو په جوشیدلو ګرمواوبوسره به دهٔ لره میلمستیاوی ﴿وَّتَصْلِيَةُ جَحِيْمٍ۝﴾ اوپه دوزخ کښې به ورلره داخلیدل وی ﴿اِنَّ هٰذَا لَهُوَ حَقُّ الْيَقِيْنِ۝﴾ بیشکه دا] څه چه ذکر شول [تحقیقی یقینی خبره ده پس] د چاسره چه داتصرفات دی ﴿فَسَبِّحْ

﴿بِاسۡمِ رَبِّكَ الۡعَظِيۡمِ﴾ [دخپل] دې [عظيم الشان پروردګار دنوم تسبيح] اوئنا [وايئ] او دا اوس لږ وړاندې تيرشوې دې.

## معارف او مسائل

په تير شوؤ آيتونو کښې په عقلي دليلونو سره په قيامت کښې د دوباره ژوندي کيدوثبوت د الله ﷻ په کامل قدرت اوپه دنيوي پيدا کولو سره ورکړې شوې دې. ورپسې نقلي دليل پرې داسې قائم کړې شو چې الله ﷻ پرې قسم اوخوړو.

﴿فَلَآ اُقۡسِمُ بِمَوٰقِعِ النُّجُوۡمِ﴾ د قسم په شروع کښې لا راوړل يوه عامه محاوره ده لکه لا والله او د جاهليت په قسمونو کښې لا وابيك مشهور دې، ځينې حضراتو دا لا حرف زيات بللې اوګرځولې دې. او ځينې ئې دا توجيه کړې ده چې په دې موقعه د لا حرف دمخاطب دګمان د نفي دپاره وي، يعنی ليس كما تقول [څنګه چې ستاخيال دې] خبره هغسې نه ده بلکه حقيقت هغه دې چې د قسم خوړلو څخه روستو ښکاره کولې شي.

﴿بِمَوٰقِعِ﴾ د موقع جمع ده، چې معنی ئې د ستورو د ډوبيدو ځائې يا وخت دې، په دې آيت مبارك کښې ئې په ستورو باندې قسم دهغې د ډوبيدو دوخت سره مقيد کړې دې، لکه چې سورة نجم کښې هم دوخت دغروب قيد دې: ﴿وَالنَّجۡمِ اِذَا هَوٰی﴾ کښې ددې مقيد کولو حکمت دادې چې دهر ستورې د عمل دافق د کنارونه کټ کيدل ښکارې، او ددې اثرات فنا کيدونکې ليدې شي او ورسره ددې حادث کيدل او د الله ﷻ د قدرت محتاجه کيدل ثابتيږي.

﴿ اِنَّهٗ لَقُرۡاٰنٌ كَرِيۡمٌ ﴿﴾ فِیۡ كِتٰبٍ مَّكۡنُوۡنٍ ﴿﴾ لَّا يَمَسُّهٗۤ اِلَّا الۡمُطَهَّرُوۡنَ﴾. تيرو شوؤ آيتونو کښې د مواقع النجوم په قسم خوړلو سره د جواب قسم مضمون په دې آيتونو کښې بيان شوې دې. حاصل ئې دادې چې د قرآن عظيم الشان او مکرم او محفوظ کيدل او دمشرکانو ددې خيال رد کول دې چې ګنې داد چا انسان جوړ کړې يا معاذ الله دشيطان راوړلې شوې کلام دې.

﴿كِتٰبٍ مَّكۡنُوۡنٍ﴾ لفظي معنی پټ کړې شوې کتاب دې، مراد ترې لوح محفوظ دې ﴿لَّا يَمَسُّهٗۤ اِلَّا الۡمُطَهَّرُوۡنَ﴾ دلته دوه مسئلې د غور کولو جوګه دی او د تفسير د امامانو په کښې اختلاف دې، اول دا چې د نحوي ترکيب په اعتبار سره په دې جمله کښې دوه احتمالونه دی يو دا چې د کوم کتاب يو صفت مکنون راغلو، دا جمله دهغې کتاب دويم صفت دې، او ضمير د ﴿لَّا يَمَسُّهٗۤ﴾ هم دغې کتاب ته راجع دې، په دې صورت کښې به د آيت مبارك معنی دا وی چې دغې کتاب مکنون لره سوا د پاك مخلوق څخه بل څوك نشي مس کولې او دا هم ښکاره ده چې په دې صورت کښې د ﴿مُطَهَّرُوۡنَ﴾ څخه مراد صرف فرښتې کيدې شي، د کومو رسائي چې لوح محفوظ ته کيدې شي او داخبره هم ښکاره ده چې په دې صورت کښې د مس لفظ د لاس ور اوړلو په معنی نشی اخستې بلکه په دې کښې دليکلو شوؤ مضامينو باندې خبريدل ترې مراد اخستې شي، ولې چې لوح محفوظ ته لاس ور اوړل د چا مخلوق فرښتې وغيره کار نشي کيدې. [قرطبی][1] دبيان القرآن په بيان کړې خلاصه تفسير کښې هم دا ترکيب اومفهوم اختيار کړې شو او تفسير ئې اوکړې شو.

---

[1] تفسير القرطبي [ ج:۱۷ص:۲۲۵]

دویم احتمال ددې جملې په ترکیب نحوی کښې دادې چې د قرآن عظیم الشان صفت اوګرځولې شی چې پورته په ﴿إِنَّهُ لَقُرْآنٌ كَرِيمٌ﴾ کښې ذکر شوې دې ، په دې صورت کښې به د ﴿لَا يَمَسُّهُ﴾ ضمیر د قرآن عظیم الشان طرفته راجع کیږی . او دې څخه به مراد هغه صحیفه وی چې په کښې قرآن عظیم الشان لیکلې شوې وی او د مس لفظ معنی به حقیقی واخستې شی ، د مجاز ضرورت به پاتې نشی ، ځکه قرطبی وغیره مفسرینو دې ته غوره وئیلی دی او امام مالك رحمه الله اوفرمائیل چې د ﴿لَا يَمَسُّهُ إِلَّا الْمُطَهَّرُونَ﴾ په تفسیر کښې چې څه ما آوریدلی دی په هغې ټولو کښې زیات غوره قول دادې چې ددې هم هغه مطلب دې کوم چې د سورة عبس ددې آیت مبارك دی یعنی:﴿فِي صُحُفٍ مُّكَرَّمَةٍ مَّرْفُوعَةٍ مُّطَهَّرَةٍ بِأَيْدِي سَفَرَةٍ كِرَامٍ بَرَرَةٍ﴾([1])[قرطبی، روح المعانی]([2])

او ددې حاصل دادې چې دا جمله د ﴿كِتَابٍ مَّكْنُونٍ﴾ صفت نه دې بلکه د قرآن عظیم صفت دې. او د قرآن عظیم الشان څخه مراد هغه صحیفې دی چې راوړنکو فرښتو په لاسونو کښې ورکولې شی.

بله دغور جوګه مسئله چې اختلاف هم په کښې شوې دې په دې آیت مبارك کښې داده چې د مطهرون څخه څوك مراد دی؟ د صحابه کرامو رضی الله عنهم ، تابعینو او مفسرینو یو لوئې ډلې په نزد د مطهرون څخه مراد فرښتې دی چې د ګناهونو اوګنده خصلتونو اوکارونو څخه پاکې دی ، دا قول د انس رضی الله عنه اود سعیدبن جبیر رضی الله عنه څخه منقول دی .[قرطبی]([3]) اود ابن عباس رضی الله عنهما هم داقول دې . [ابن کثیر]([4]) امام مالك رحمه الله دا اختیار کړې دې .[قرطبی]([5]).

او څینې حضراتو اوفرمائیل چې قرآن عظیم الشان څخه مراد هغه مصحف دې چې زمونږ لاسونو کښې دې او مطهرون څخه مراد هغه خلق دی چې د ظاهری او معنوی لوئې او وړې پلیتئ څخه پاك وی . لویه پلیتی ، جنابت ، نفاس او حیض او نفاس دې . او وړوکې پلیتی په اودس کولو سره لرې کیږی ، دا تفسیر عطاء طاؤس رحمه الله ، سالم رحمه الله اومحمد باقر څخه منقول دې .[روح]([6]) په دې جمله کښې جمله د [لَا يَمَسُّهُ] اګر چې جمله خبر یه ده خو دې خبر لره به بحکم د انشاء یعنی نهی دممانعت معنی کښې ګرځولې کیږی ، او د دې آیت مبارك مطلب به داشی چې مصحف قرآن پاك ته لاس ور اوړل جائز نه دی ، او طهارت په مفهوم کښې دا هم داخل دی چې ظاهری پلیتئ دې ئې په لاس هم نه وی ، او باطنی پلیتئ څخه دې هم پاك وی . او حدث اکبر یعنی جنابت کښې هم نه وی . قرطبی رحمه الله دې تفسیر ته اظهر فرمائیلی دی او تفسیر مظهری هم ددې په غورو الی زور ورکړې دې([7]).

[1] ترجمه:- ، هغه داسې صحیفې دی چې مکرمې دی ، رفیع المکان دی ، مقدسې دی ، اودداسې لیکونکو په لاسونو کښې دی چې مکرم اونیکان دی.
[2] تفسیر القرطبي [ ج:۱۷ص:۲۲۵]و روح المعاني [ج:۲۰ ص:۲۷٤ ، ۲۷۵]
[3] تفسیر القرطبي [ ج:۱۷ص:۲۲۵]
[4] تفسیر ابن کثیر [ج: ۷ ص:٥٤٤]
[5] تفسیر القرطبي [ ج:۱۷ص:۲۲۵]
[6] روح المعاني [ج: ۲۰ ص: ۲۷۵]
[7] تفسیر المظهري[ج:۹ص:۱۸۲]

د فاروق اعظیم رضی الله عنه د اسلام راوړلو په واقعه کښې دا ذکر دی چې هغوی رضی الله عنه کله خپله خور بې بې د قرآن په تلاوت اولیدله نو قرآن پاڼړې مبارکې یې کتل غوښتل خور بی بی ئې د ورکولو څخه انکار اوکړو. او هم دا رسول کریم صلی الله علیه وسلم ئیې په دلیل کښې ورته پیش کړو، فاروق اعظم رضی الله عنه په غسل کولو مجبوره شو، بیا ئې دغه پاڼړې اولوستلې، دې څخه هم دا آخری تفسیر غوره ښکاری، او دحدیث پاك د کومو روایتونو تر مخه چې ناپاك بنده قرآن عظیم الشان ته لاس ور اوړو څخه منع کړې ده[1]. ځینې حضراتو دغه روایتونه د آخری تفسیر د غوروالی ثابتولو دپاره پیش کړی دی.

مگر چونکه په دې مسئله کښې د ابن عباس رضی الله عنه او انس رضی الله عنه وغیره اختلاف دې کوم چې پورته ذکر شوې دې، په دې وجه ډیرو حضراتو بې اودسه قرآن پاك ته لاس لگولو څخه منع فرمائیلې ده، او ددې په استدلال کښې یې مذکوره آیت مبارك پرینښودې او صرف د حدیث روایتونه یې پیش کړی دی [روح المعانی][2] هغه احادیث دادی:

امام مالك رحمه الله په مؤطا کښې د رسول کریم صلی الله علیه وسلم هغه مکتوب گرامی نقل کړې دې چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم عمرو بن حزم رضی الله عنه ته لیکلې وو په هغې کښې یوه جمله دا هم ده چې: لا یمس القرآن الا طاهر [ابن کثیر][3] یعنی قرآن عظیم الشان ته به سوا دپاك بنده څخه لاس بل څوك نه وراوړی.

او په روح المعانی کښې دا روایت د مسند عبدالرزاق رحمه الله، ابن ابی داؤد او ابن المنذرنه هم نقل کړې دې، او طبرانی رحمه الله او ابن مردویه رحمه الله دعبدالله بن عمر رضی الله عنه روایت نقل کړې دې چې قرآن عظیم الشان اوفرمائیل چې: لَا یَمَسُّ القرآن الا طاهر[4] [قرآن عظیم الشان ته دې سوا د پاك بنده بل څوك لاس نه وراوړی]

**مسئله**: ددې مذکوره روایتونو په بناء دجمهور امت او د څلورو امامانو په دې باندې اتفاق دې چې قرآن پاك ته لاس لگولو څخه وړاندې طهارت شرط دې. او ددې خلاف کول گناه ده. دظاهری نجاست څخه لاس پاك، اودس کښې کیدل او د جنابت په حالت کښې نه کیدل ټول په دې کښې داخل دی. د علی رضی الله عنه، ابن مسعود رضی الله عنه، سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه، سعید ابن زید رضی الله عنه عطاء زهری، نخعی، حکم، حماد، امام مالك، امام شافعی، امام ابوحنیفه مسلك هم دا دې. پورته چې کوم اختلاف د اقوالو نقل کړې شوېدې هغه صرف په دې خبره کښې دې چې دا مسئله چې په احادیثو کښې مذکور او ثابته ده او دجمهورو امت په نزد مسلم ده. آیا دا خبره د قران پاك ددې پورته آیت مبارك څخه هم ثابت ده که نه؟ ځینې حضراتو دا مضمون او د احادیثو مضمون یو گرځولې دې. او ددې آیت مبارك او د احادیثو څخه یې دا مسئله ثابته کړې ده، نورو حضراتو دا آیت مبارك په استدلال کښې د پیش کولو څخه احتیاط اوکړو، ځکه

---

[1] المستدرك للحاكم رقم الحديث:[١٤٤٧] والموطا مالك، كتاب القرآن باب الأمر بالوضوء لمن مس القرآن [ج: ١ ص:١٩٩]
[2] روح المعاني [ج: ٢٠ ص: ٢٧٥]
[3] تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ٧ ص:٩٤٥] والموطا مالك، كتاب القرآن باب الأمر بالوضوء لمن مس القرآن [ج: ١ ص:١٩٩]و المستدرك للحاكم رقم الحديث:[١٤٤٧]
[4] روح المعاني [ج: ٢٠ ص: ٢٧٥] و المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث:[١٣٠٣٩]

چې په دې کښې اختلاف دې خو د ذکر شوې احادیثو په وجه ټولو دا مسلك اختیار کړې دې چې بې اودسه او بې طهارت نه قرآ ن ته لاس اوړل جائز نه دی . په دې وجه خلاف په مسئله کښې نشته دې . بلکه ددې په دلیل کښې شوې دې .

**مسئله:** کومه کپړه چې د قرآن عظیم الشان وقایو سره گندلې شوې وی دهغې حکم هم د قرآن عظیم الشان دې چې بې اودسه او بې پاکئ ورته لاس اوړل څلورو واړو امامانو په اتفاق سره جائز نه دی ، البته د قرآن عظیم الشان هغه کسوړې ، رومالونه چې د قرآن عظیم الشان څخه بیل وی نو دغې کپړو کښې انغښتی قرآن عظیم الشان ته لاس ور اوړل او په بې اودسئ کښې هم د امام ابی حنیفه رحمه الله په نزد جائز دی خو د امام مالك رحمه الله اوامام شافعی رحمه الله په نزد داهم نا جائز دی [مظهری] ([1])

**مسئله:** کوم جامه چې اغوستې وی د هغې په لستونړې یا لمنې سره د الله ﷻ پاك كلام نیول هم جائز نه دی.البته په بیل رومال یا څادر لوپټې سره اغستې اونیوې شی. [مظهری] ([2])

**مسئله:** علماء کرامو اوفرمائیل چې هم ددې آیت څخه په درجه اولی دا هم ثابتیږی چې د جنابت یا حیض ا ونفاس په حالت کښې د قرآن عظیم الشان تلاوت هم جائز نه دې ، تر څو چې غسل او نه کړی . ځکه چې هر کله د قرآن عظیم الشان د لیکلو شوؤ حرفونو او نقشونو دا تعظیم واجب دې نو ا صل حروف چې په ژبې سره ادا کیږی ، دهغې تعظیم ددې څخه زیات ضروری واجبیدل پکار دی دې مقتضا خو دا وه چې بې اودسه ته دې د قرآن عظیم الشان تلاوت کول هم جائز نه وی مگر دبخاری شریف او مسلم شریف په حوالہ د ابن عباس رضی الله عنه د روایت کړی دمسند احمد رحمه الله په حواله د علی رضی الله عنه د روایت کړی حدیث تر مخه بې اودسه د قرآن عظیم الشان تلاوت کول او د رسول کریم ﷺ څخه ثابت دی([3])،ځکه فقهاء کرام بې اودسه د قرآن عظیم الشان دتلاوت کولو اجازت ورکړې دې . [مظهری] ([4])

﴿أَفَبِهَٰذَا الْحَدِيثِ أَنتُم مُّدْهِنُونَ﴾ ﴿مُّدْهِنُونَ﴾ د ادهان څخه مشتق دې ، لغوی معنی ئې د تیلو مالش کول دی چې اندامونه ئې ورسره نرم شی ځکه د نرمولواو په ناجائزوموقعو کښې د نرمئ کولو او د منافقت په مفهوم استعمالیږی . دې آیت مبارك کښې دا لفظ د الله ﷻ د آیتونو په تصدیق کښې دمنافقت یا دروغژن بللو په معنی کښې استعمال شوې دې .

﴿فَلَوْلَا إِذَا بَلَغَتِ الْحُلْقُومَ ۝ وَأَنتُمْ حِينَئِذٍ تَنظُرُونَ ۝ وَنَحْنُ أَقْرَبُ إِلَيْهِ مِنكُمْ وَلَٰكِن لَّا تُبْصِرُونَ ۝ فَلَوْلَا إِن كُنتُمْ غَيْرَ مَدِينِينَ ۝ تَرْجِعُونَهَا إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ ۝﴾

په رومبو آیتونو کښې اول په عقلی دلیلونو سره او بیا د الله ﷻ د طرفه په قسم خوړلو سره او ددې په مقهور او مغلوب کیدو کیفیت طرفته اشاره کولو سره دوه خبرې ثابت کړې شوې دی. اول دا چې قرآن پاك دالله ﷻ كلام دې . په دې کښې د شیطان یا جن وغیره هیڅ تصرف نشی کیدې په دې کښې چې څه دی هغه حق دی . بله مسئله دا چې د قرآن پاك په مسائلو کښې

---

[1] تفسير المظهري[ج:۹ص:۱۸۲] و رد المختار (الشامية) كتاب الطهارة باب الحيض: [ج: ۲ ص:۳۹٤]
[2] تفسير المظهري[ج:۹ص:۱۸۲] و البحر الرائق كتاب الطهارة باب ما يمنعه الحيض [ج: ۲ص:۲۸۳ ، ۲۸٤]
[3] مسند احمد ،مسند علی بن ابی طالب کرم الله وجهه رقم الحديث:[۸٤۰]
[4] تفسير المظهري[ج:۹ص:۱۸۲]

ورته خاص اهميت حاصل دي ، هغه د قيامت راتلل او د ټولو مړګانو راژوندي کيدل او دالله ﷻ په وړاندې حساب دپاره پيش کيدل دی . او ددې په آخر کښې د کافرانو او مشرکانو ددې واضحه دلائلو خلاف د قرآن پاك د حقانيت او په قيامت کښې د مړګانو راژوندي کيدلو نه انکار کړي شوې وو .

د قيامت او د دوباره ژوندي کيدو نه انکار کول ګويا ددوئ د طرفه دا دعوی کول دی چې ددوئ ځان او روح پخپله هم ددوئ په قبضه کښې دې او ددوئ په خپل ژوند کښې ددوئ څه دخل شته ، ددوئ ددې باطل خيال رد کولو دپاره په بيان شوؤ آيتونو کښې د يوقريب المرګ انسان په مثال ورکولو سره يې اوښودل چې کله دهغه روح مرئ ته رسيږي اوتاسو ټول دهغه عزيزان ، ترېوران ، دوستان او خپلوان دهغه حال ګورئ او د زړه نه ددهٔ روح نه وتل او ژوندي پاتې کيدل غواړئ خو دغه وخت ټول د خپلې بې وسئ احساس او اقرار کوی چې هيڅوك ددې مړکيدونکی ځان نشی خلاصولې ، ځکه الله ﷻ اوفرمائيل چې دغه وخت دخپل علم او قدرت په لحاظ سره مونږ ستاسو په نسبت دغې مړکيدونکی ته زيات نزدې يو ، دنزدې کيدو مطلب ددهٔ داندرونی اوظاهری حالاتو نه واقف کيدل او په هغې پوره قدرت دې ، او وې فرمائيل چې ، خو تاسو زمونږ دانزديکت اود مړ کيدونکی زمونږ تصرف مې کيدل په سترګو نه وينې ، خلاصه داده چې ناسو ټول ددهٔ د ژوند او روح حفاظت غواړې خو ستاسو دا وس نه رسی ، مونږ د خپل علم او قدرت په اعتبار سره ده ته زيات نزدې يو ، زمونږ د تصرف ، ارادې او حکم تابع دې ، په کوم وخت کښې چې مونږ دهغه روح اوښکل مقرر کړی دی هغه هيڅوك نشی ايسارولې . ددې مثال په وړاندې کولو سره ارشاد فرمائی چې که تاسو ګڼرئی چې د مرګ څخه روستو به تاسو نشئ ژوندي کولې او تاسو دومره تکړه او بهادر يئ چې د الله ﷻ د قابو څخه بهر يئ نو ښه ده اول خو ددغې مړ کيدونکی ځان بچ کولې نو بيا خپل ځانونه د الله ﷻ دقبضې څخه بهر ګڼړل اودمرګ څخه روستو د دوباره ژوندي کولو څخه انکار کول ځومره د بې عقلئ نخښه ده .

﴿فَأَمَّآ إِن كَانَ مِنَ ٱلْمُقَرَّبِينَ﴾ په وړاندې آيتونو کښې په مختلفو دليلونو او مختلفو عنواناتو سره دا واضح کړې شو چې ددنيا دا موجوده ژوند يو ورځ ختميدل او دمرګ په وخت د ټولو عزيزانو ، دوستانو او ډاکټرانو بې وسه کيدل امروزه ليدلې شی ، داشان دا هم يقينی اوګڼرئ چې دمرګ څخه روستو دوباره ژوندي کيدل او د خپلو عملونو حساب هم ورکول دی . او د حساب ، کتاب ، څخه پس جزا او سزا هم يقينی ده . او په جزاء سزا کښې د ټول مخلوق په دريو ډلو کښې تقسيميدل او د هرې يوې برخې جدا جدا کيدل چې د سورت په شروع کښې بيان شوی دی . دهغې اجمال بيا دلته ذکر کړې شوې دې چې مرګ څخه روستو که دغه بنده مقربينو يعنی سابقينو کښې شامل وې نو سراسری آرام دې ، اوکه په دغې ډله کښې شامل نه وی بلکه اصحاب اليمين کښې شامل وی نو هم به د جنتونو د نعمتونو حقدار وی اوکه د دريمې ډلې څينې وی نو د جهنم اور ويشدونکو اوبو ګذران وی ، په آخر کښې ئې اوفرمائيل چې ﴿إِنَّ هَٰذَا لَهُوَ حَقُّ ٱلْيَقِينِ﴾ يعنی دا سزا اوجزاء چې بيان شوه حقه اوبالکل يقينی خبره ده هيڅ شك شبه په کښې نشی کيدې .

﴿فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيمِ﴾ د سورت په ختميدو باندې نبی کريم ﷺ ته خطاب دې چې تاسو ﷺ د خپل رب د نوم تسبيح وائې يعنی دهغې ټولو څيزونو نه دهغه لوئې ذات ﷻ پاکی بيانوئ چې د هغه د شان لائق نه دی ، په دې کښې د مونځ دننه تسبيحات او ددې بهر تسبيحات ټول داخل دی ، او کله د مونځ نه هم په تسبيحاتو سره تعبير کولې شی ، نو دا حکم د مونځ د بندوبست او اهتمام کولو هم شو ، والله اعلم.

تمت سورة الواقعة بحمد الله وعونه ليلة الثلاثاء لعشرين

من ربيع الثاني ۱۳۹۱ هجري ويتلوه انشاء الله تعالى سورة الحديد

| رکوع گانې | | سورة الحديد مدنية وهي تسع وعشرون اية واربع رکوعات | | اياتونه |
|---|---|---|---|---|
| | | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | |
| ۴ | | شروع کوم په نوم د الله چه ډير مهربان زيات رحم کونکې دې | | ۲۹ |

سَبَّحَ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ

پاکی بيان کړې ده | الله لره | هر هغه څيز | چې په آسمانونو کښې دې | او په زمکه کښې دې |

په زمکه او آسمانونو کښې چې څوک اوسيږی هغوی ټول د الله تعالی پاکی بيانوی

وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ① لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ

او هغه غالب دې | دحکمت خاوند دې | هغه لره ده | بادشاهی دآسمانونو | او دزمکې |

اوهغه غالب دې صاحب دحکمت دې | دآسمانونو اود زمکې بادشاهی صرف دهغه ده

يُحْيٖ وَيُمِيْتُ ۚ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ② هُوَ الْاَوَّلُ

هغه ژوندی کول کوی | او مړه کول کوی | او هغه په هر څيز باندې | قادر دې | هغه اول دې |

هم هغه دې چې ژوندی کول کوی او مړه کول کوی | او الله تعالی په هر څيز قادر دې |هغه [الله] د ټولو

وَالْاٰخِرُ وَالظَّاهِرُ وَالْبَاطِنُ ۚ وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ③ هُوَ

او آخر دې | او ښکاره دې | او پټ دې | او هغه په هر څيز باندې | ښه عالم دې | هغه

نه اول وو | او د ټولونه روستوبه وی | [په قدرتونوسره] ښکاره دې | او پټ هم دې | او په هر څۀ ښه پوهه دې

الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ فِيْ سِتَّةِ اَيَّامٍ ثُمَّ اسْتَوٰى

هغه ذات دې | چې پيدا ئې کړل آسمانونه | او زمکه | په شپږو ورځو کښې | بيا برابر شو [قائم شو]

[الله تعالی] داسې ذات دې | چې آسمانونه او زمکه ئې په شپږو ورځو کښې پيدا کړل | بيا په عرش

عَلَى الْعَرْشِ ؕ يَعْلَمُ مَا يَلِجُ فِي الْاَرْضِ وَمَا

په عرش باندې | معلوميږی هغه ته | هغه څه | چې ننوځی | په زمکه کښې | او هغه څه

باندې قائم شو | الله تعالی پوهيږی په هغه څه چه په زمکه کښې ورننوځی | او په هغه څه پوهيږی

يَخْرُجُ مِنْهَا وَمَا يَنْزِلُ مِنَ السَّمَآءِ وَمَا يَعْرُجُ فِيهَا ۗ

چي راوځي | دهغې نه | او هغه | چي راكوزيږي | داسمان نه | او هغه چي خيژي | په هغې كښي

چې د دې نه راوځي |او په هغه څه چې د آسمان نه راكوزيږي | او په هغه څه چې دې [آسمان] ته خيژي

وَهُوَ مَعَكُمْ اَيْنَ مَا كُنْتُمْ ۗ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُونَ

او هغه ستاسو سره دې | هر خاني كښي چي | يئ تاسو | او الله | په هغه كارونو | چي كوئ ئې تاسو

اوتاسو چې كوم خائې هم يې هغه درسره دې| ..........اوالله تعالى ستاسو ټول كارونه وينى گورى

بَصِيْرٌ ۝ لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۗ وَاِلَى اللّٰهِ

بنه ليدونكي دې | هغه لره ده | بادشاهي دآسمانونو | او دزمكي | او خاص الله ته |

دآسمانونو او د زمكې بادشاهي صرف دهغه ده| ..........اوټولې معاملې بۀ الله تعالى ته

تُرْجَعُ الْاُمُوْرُ ۝ يُوْلِجُ الَّيْلَ فِي النَّهَارِ وَيُوْلِجُ النَّهَارَ

واپس گرزولې كيږي | ټول معاملات | ننباسي | شپه | په ورځ كښي | او ننباسي ورځ

پيش كيږي | ..........هغه شپه په ورځ كښې داخلوى| او ورځ په شپه كښې داخلوى|

فِي الَّيْلِ ۗ وَهُوَ عَلِيْمٌ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ۝

په شپه كښي | او هغه | خبردار دې | په پټو رازونو دسينو باندې |

..........او هغه دزړونو په پټو رازونو ښۀ پوهه دې |

## آسان ترجمه قرآن

په آسمانونو او زمکه کښې چه کوم څيزونه دی، هغه د الله تعالیٰ تسبيح کوی او هم هغه دې، چه د اقتدار مالک هم دې د حکمت مالک هم دې. د آسمانونو او زمکې بادشاهت هغه دپاره دې، هم هغه ژوند ورکوی، او مرګ ورکوی، او هغه په هر څيز باندې پوره قدرت لرونکې دې. هغه اول هم دې، او آخر هم ، ظاهر هم دې، او پټ هم او هغه په هر څيز باندې پوهيدونکې دې. هم هغه دې، چه آسمانونه او زمکه ئې په شپږو ورځو کښې پيدا کړې دی. بيا ئې په عرش باندې استواء اوفرمائيله هغه هر هغه څيز باندې پوهيږی، کوم چه په زمکه کښې داخليږی، او کوم چه د دې نه اوځی، او هر هغه څيز چه د آسمان نه نازليږی، او کوم چه آسمان ته خيژی، او تاسو چه چرته کښې هم يئ، هغه ستاسو سره دې، او څه چه تاسو کوئ، الله تعالیٰ هغه وينی. د آسمانونو او زمکې بادشاهت هغه دپاره دې، او ټول معاملات الله تعالیٰ طرف ته واپس کولې شی، هغه شپې لره په ورځ کښې داخلوی، او ورځې لره په شپه کښې داخلوی او هغه په سينو کښې پټې کړې شوو خبرو باندې هم پوهيږی.

## خلاصه تفسير

﴿سَبَّحَ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ﴾[دالله تعالى پاكى بيانوى څه چه په اسمانونو اومزكه كښې] مخلوقات [دى] په زبان قال يا په زبان حال سره ﴿وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ۝﴾[او هغه زبردست] او [حكمت والادې ﴿لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ﴾ دهغه حكومت دې په اسمانونواومزكه كښې﴿يُحْيٖ

وَيُمِيتُ ۚ﴾ هغه ژوند ورکوي او] هغه [مرګ ورکوي ﴿وَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ﴾ اوهغه په هرڅه قادردې ﴿هُوَ الْأَوَّلُ﴾ هم هغه] دټول مخلوق نه [وړاندېدې ﴿وَالْآخِرُ﴾او هغه] به دټولو د ذاتي يا صفاتي فناکيدونه [ورستو] هم وي يعنې په هغه نه د وړاندې نه څه عدم راغلې دې اونه آئنده په څه درجه کښې په دهٔ دعدم راتلوڅه امکان شته په دې وجه دټولو په اخرکښې هم هغه دې ﴿وَالظَّاهِرُ وَالْبَاطِنُ ۖ﴾[اوهغه] دمطلق وجود په اعتبارسره ازروئ دلائل نهايت [ظاهردې اوهغه] د ذات دحقيقت په اعتبار سره نهايت [پټ دې] يعنې څوك دهغه د ذات ادراك نه شي کولې [او] اګرچه هغه په خپله خو داسې دې چه مخلوق ته په يوحيثيت سره معلوم دې اوپه يوحيثيت سره غيرمعلوم ليکن ټول مخلوق من کل الوجوه هغه ته معلوم دی ﴿وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ﴾ [اوهغه هرشی لره ښه پيژندونکې دې] او ﴿هُوَ الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ فِي سِتَّةِ أَيَّامٍ﴾[هغه داسې] قادر[دې چه هغه اسمانونو اومزکې لره په شپږو ورځو] مقدارزمانه [کښې پيداکړل ﴿ثُمَّ اسْتَوَىٰ عَلَى الْعَرْشِ ۚ﴾ بيا په عرش] کوم چه مشابه دې دتخت دسلطنت سره داسې [قائم شو] اوجلوه فرما شوځنګه چه ددهٔ دشان سره لائق دی او﴿يَعْلَمُ مَا يَلِجُ فِي الْأَرْضِ﴾ [هغه هرڅه پيژنی کوم څيزونه چه په مزکه کښې داخليږی] مثلاباران ﴿وَمَا يَخْرُجُ مِنْهَا﴾[اوکوم څيزونه چه ددې نه راوځی] مثلا نباتات ﴿وَمَا يَنزِلُ مِنَ السَّمَاءِ﴾[او څه شې چه داسمان نه نازليږی ﴿وَمَا يَعْرُجُ فِيهَا ۖ﴾ اوڅه چه ورته خيژی] مثلا ملائکې چه خيژی کوزيږی اومثلا احکام دکومو چه نزول کيږی او عملونه دبندګانوچه پورته خيژی [او] لکه څنګه چه ددې څيزونوهغه ته علم دې دغه شان ستاسو ټول حالات هم هغه ته معلوم دی چنانچه ﴿وَهُوَ﴾ [هغه] دعلم او اطلاع په اعتبارسره ﴿مَعَكُمْ أَيْنَ مَا كُنتُمْ ۚ﴾[تاسوسره وی خواه تاسوخلق هرځائ چه يئ] يعنې تاسوپه هيڅ ځائ کښې دهغه نه پټ نه شی پاتې کيدې ﴿وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ﴾[اوهغه ستاسوټولو عملونو لره هم وينی ﴿لَّهُ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ۚ﴾ دهغه حکومت دې په اسمانونوکښې او په مزکه کښې ﴿وَإِلَى اللَّهِ تُرْجَعُ الْأُمُورُ﴾ او دالله تعالی طرف ته دټولو کارونو] جوهريه او عرضيه [واپسی ده] يعنې په قيامت کښې به پيش شی په دې کښې دتوحيدسره ضمنادقيامت هم اثبات وشو ﴿يُولِجُ اللَّيْلَ فِي النَّهَارِ﴾[هم هغه] د[شپې] اجزاؤ [لره په ورځ کښې داخلوی] چه په دې سره ورځ لويه شی ﴿وَيُولِجُ النَّهَارَ فِي اللَّيْلِ ۚ﴾[او هم هغه] د [ورځې] اجزاء [لره په شپه کښې داخلوی] چه په دې سره شپه لويه شی [او] ددې قدرت سره دهغه علم داسې دې چه ﴿وَهُوَ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ﴾[هم هغه د زړهٔ خبرولره پيژنی]

## معارف او مسائل

**د سورهٔ حديد څينې خصوصيتونه ::** پنځه سورتونه په حديث پاك کښې په مسبحاتو سره تعبير کړې شوی دی ، دکوم په شروع کښې چې سبح يايسبح راغلې دې ، دهغې څينې ړومبې د اسورت حديد دې . دويم سورهٔ حشر دې ، دريم سورة الصف دې ، څلورم سورهٔ جمعه ده ، پنځم سورهٔ تغابن دې و ابی داود شريف ، ترمذی او نسائی شريف کښې د عرباض بن ساريه ﷺ څخه روايت دې چې رسول کريم ﷺ به د شپې د اودهٔ کيدو څخه وړاندې دا مسبحات لوستل او ارشاد ئې اوفرمائيلو چې په دې سورتونو کښې يو آيت داسې دې چې د زرو آيتونو

ځخه زيات غوره دي(١) ، ابن كثير ددې روايت كولو څخه روستو اوفرمائيل چې دغه زيات غوره آيت د سورة حديد دا آيت مبارك دې چې ﴿هُوَ الْأَوَّلُ وَالْآخِرُ وَالظَّاهِرُ وَالْبَاطِنُ ۖ وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ﴾(٢)
ددې پنځو سورتونو ځينې په رومبو دريو سورتونو حديد ، حشر ، صف ، سبح په لفظ د ماضي او په روستو دوؤ يعنى جمعه او تغابن كښې په صيغې د مضارع سره يسبح راغلې دې ، په دې كښې دې ته اشاره ده چې د الله ﷻ تسبيح او ذكر په هره زمانه ، هر وخت ماضي ، مستقبل او حال كښې جارى پاتې كيدل پكار دى ، [مظهرى](٣).

**د شيطاني وسوسو علاج** :: ابن عباس ﷠ اوفرمائيل چې كه ستاسو په زړه كښې د الله ﷻ او د حق دين باره كښې شيطان څه وسوسه واچوى نو دا آيت مبارك رو رو وايئ چې : ﴿هُوَ الْأَوَّلُ وَالْآخِرُ وَالظَّاهِرُ وَالْبَاطِنُ ۖ وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ﴾(١).
ددې آيت مبارك په تفسير اود اول ، آخر ، ظاهر ، باطن په معنى كښې د مفسرينو حضراتو څخه لسو اقوالو څخه زيات اقوال منقول دى چې هيڅ تعارض او بې سمونى په كښې نشته دې .د ټولو ګنجائش شته، د اول معنى خو تقريبا ټاكلې شوې ده يعنى د موجودګئ په اعتبار سره د ټولو موجوداتو اوكائناتو څخه وړاندې او رومبې دې ، ولې چې ټول موجودات هم د هغه پيدا كړې شوى دى ، ځكه هغه لوئې ذات د ټولو څخه اول دې ، او د آخر معنى ځينى حضراتو دا كړيده چې د ټولو موجوداتو د فنا كيدو څخه روستو به هغه باقى پاتې كيږى ، لكه په ﴿كل شئ هالك الاوجهه﴾(٥) كښې دا په ښكاره بيان شوى دى . او فنا كيدو څخه مراد عام دې ، خواه د فنا ا وعدم واقع كيدل اوشى لكه چې د قيامت په ورځ به عام مخلوقات فنا شى يا د فنا واقع كيدل نه وى ، خو فنا او نيشت كيدل ئې ممكن وى او هغه پخپل ذات كښې د نيشت كيدو دخطرې څخه خالى نه وى ، نو دې ته دموجودوالى په وخت كښې هم فانى وئيلې شى . دا يوازې د الله ﷻ ذات كيدې شى چې نه پرې اول كښې څه نيشتوالې راغلې دې او نه پدې په آئنده كښې ددې د راتلو څه امكان شته ځكه ورته آخر هم وئيلې شى.
او امام غزالى اوفرمائيل چې الله ﷻ ته د معرفت په اعتبار سره آخر وئيلې شوې دې چې د ټولو څخه آخر معرفت د هغه لوئې ذات دې انسان په علم او معرفت كښې په مخه وده كوى مګر دا ټولې درجې چې ده ته حاصل شوې په لاره كښې ددې ټولو درجو مختلف پړاؤونه دى چې دهغې انتها او آخرى حد د الله ﷻ پيژندل دى ، [روح المعانى](٦)
او ظاهر څخه مراد هغه ذات دې چې پخپلو ظاهريدو كښې د ټولو ځيزونو څخه لوړ او زيات پورته وى او هر كله چې ظاهريدل د موجوديدو فرع ده نو هر كله چې د الله ﷻ موجودوالې په

---

(١) سنن ابوداود، كتاب الأدب ، باب ما يقال عند النوم [ج:٢ص:٦٨٨] و جامع الترمذي ، ابواب فضائل القرآن باب ماجاء فيمن قرا حرفا من القرآن ماله من الآجر[ج:٢ ص:١١٩] وسنن الكبرى للنسائى رقم الحديث[٨٠٢٦]
(٢) تفسير ابن كثير [ج: ٧ ص:٥]
(٣) تفسير المظهري[ج:٩ص:١٨٧]
(٤) تفسير ابن كثير [ج: ٦ ص:٧]
(٥) ترجمه:- ټول ځيزونه فنا كيدونكى دى سوا د هغه ذات نه.
(٦) روح المعاني [ج: ٢٠ ص:٣٠]

ټولو موجوداتو باندي پورته او وړاندي دي ځکه د هغه ظاهريدل هم په ټولو باندي پورته دی چي په دنيا کښي دهغه لوئي ذات څخه زيات بل هيڅوك ظاهر نشته ، په دي شان چي په هر څيز کښي د هغه لوئي ذات د قدرت او حکمت ننداري ددنيا په هره ذره کښي ښکاره دی. او د خپل ذات دحقيقت په اعتبار سره باطن دي چي حقيقت ته ئي د هيڅ عقل او خيال رسائی نشی کيدي.

اے برتر از قياس و گمان وخيال دوهم وزهرچه ديده ايم وشنيد يم خواده ايم(۱)

﴿وَهُوَ مَعَكُمْ أَيْنَ مَا كُنْتُمْ﴾ [هر چرته چي تاسو يئ الله ﷻ تاسو سره دي] ددي يو ځائي والی حقيقت او کيفيت څخه د چا مخلوق علم نشی چاپيره کيدي ، خو وجود ئي يقينی دي ، د لوئي ذات موجودگی يقينی ده، ددي څخه بغير نه خو د انسان موجودگی قائمه پاتي کيدي شی او نه څه کار دهغه څخه کيدي شی هم د هغه اراده او قدرت ټول هر څه دی ، چي په هر حال او هر ځائي کښي هر انسان سره دی. والله اعلم.

آمِنُوا بِاللَّهِ
| ايمان راوړئ | په الله باندي |
| تاسو په الله تعالی او دهغه په رسول ايمان راوړئ

وَرَسُولِهِ وَأَنْفِقُوا مِمَّا جَعَلَكُمْ مُسْتَخْلَفِينَ
او په رسول دهغه باندي | او خرچ کړئ | دهغه څيزونونه | چي جوړ کړئ يئ تاسو الله | خليفگان
او دهغي مالونو نه يوحصه خيرات کړئ | چي تاسو ئي په کښي د نورو خلقو خليفه گان جوړ کړی يي

فِيهِ فَالَّذِينَ آمَنُوا مِنْكُمْ وَأَنْفَقُوا لَهُمْ
په هغي کښی | نو هغه کسان | چي ايمان ئي راوړو | ستاسو نه | او مال ئي خرچ کړو | دپاره دهغوئ
په تاسو کښي چي چا ايمان راوړي دي | اوخيراتونه يي کړی دی | هغوئ دپاره لويه

أَجْرٌ كَبِيرٌ ۞ وَمَا لَكُمْ لَا تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالرَّسُولُ
اجر لوئ دي | اوڅه شوی دی تاسو لره | چي ايمان نه راوړئ | په الله باندي | حال دا چي رسول |
بدله مقرر ده |اودا په تاسو څه شوی دی | چي په الله باندي ايمان نه راوړئ؟| اوحال دادي چي

يَدْعُوكُمْ لِتُؤْمِنُوا بِرَبِّكُمْ وَقَدْ أَخَذَ مِيثَاقَكُمْ
رابلی تاسو | چي ايمان راوړئ تاسو | په رب خپل | او اخستلی ده هغه | وعده ستاسو نه |
رسول مودي خبري ته رابلی|چي تاسو پخپل رب ايمان راوړئ|او الله تعالی ستاسونه کلکه وعده هم اخستي ده

إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ ۞ هُوَ الَّذِي يُنَزِّلُ عَلَى عَبْدِهِ آيَاتٍ
که يئ تاسو | ايمان راوړونکی | هغه هغه ذات دي | چي نازلوی | په بنده خپل باندي | آيتونه
که چرې تاسو يقين کوئ|...... الله تعالی هغه ذات دي چي پخپل بنده ئي ښکاره آياتونه نازل کړی دی

---

(۱) ترجمه:- اي د قياس ، کمان او خيال او وهم نه برتر ذاته ! او د هغه ټولو څيزونو نه (برتر ذاته) کوم چي مونږ اوکتل کوم چي مونږ واوريدل ، او دچا باره کښي چي مونږ اولوستل.. اي زما د ټولو بحثونو مباحثو نه اوچت ذاته! زه که يو فرق بيان کړم او که زه يو مثال ورکړم نو په هغي خاوړه.

بَيِّنٰتٍ لِّيُخْرِجَكُمْ مِّنَ الظُّلُمٰتِ اِلَى النُّوْرِ ط وَاِنَّ اللّٰهَ

واضحه | دپاره ددې چې راوباسي تاسو | د تيرونه | رڼا ته | او بيشکه الله

د دې دپاره چې تاسو د [کفر د] تيارونه [د ايمان] رڼا ته راوباسي | اويقينا الله تعالى

بِكُمْ لَرَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ ۝ وَمَا لَكُمْ اَلَّا تُنْفِقُوْا

په تاسو باندې | خامخا مهربانه رحم کونکې دې | او څه وجه ده تاسو لره | چې خرچ نه کوې |

په تاسو ډير مئين او ډير مهربانه دې | او دا په تاسو څه شوې دي | چې تاسو د الله تعالى په

فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَلِلّٰهِ مِيْرَاثُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ط

په لاره د الله کښې | حال دا چې الله لره دې | ميراث | د آسمانونو | او د زمکې

لار کښې خرچ نه کوئ. | حال دا دې چې آسمانونه او زمکه ټول به آخر الله تعالى ته پاتې کيږي

لَا يَسْتَوِيْ مِنْكُمْ مَّنْ اَنْفَقَ مِنْ قَبْلِ الْفَتْحِ

برابر کيدې نه شي | ستاسو نه | هغه څوك | چې خرچ ئې اوکړو | مخکښې | د فتحې نه

په تاسو کښې هغه کسان [د نورو سره] برابر نه دي | چې د [مکې] فتحې نه مخکښې ئې [د الله تعالى په لار کښې

وَقٰتَلَ ط اُولٰٓئِكَ اَعْظَمُ دَرَجَةً مِّنَ الَّذِيْنَ

او جهاد ئې اوکړو | دا کسان چې دي | ډير لوئ دي | په لحاظ د درجې سره | د هغه کسانو نه |

خرچونه کړي دې | او جهاد ئې کړې دې | دغه کسان په مرتبه کښې د هغه خلقو نه ډير اوچت دې

اَنْفَقُوْا مِنْ بَعْدُ وَقٰتَلُوْا ط وَكُلًّا وَّعَدَ اللّٰهُ

چې خرچ ئې اوکړو | اروستو د فتحې نه | او جهاد ئې اوکړو | حال دا چې د هر يو سره | وعدې کړې دی الله

چې روستو ئې خرچونه کړي دی | او جنګيدلي دی | او الله تعالى د ټولو سره د ښيګړې وعده کړې ده

الْحُسْنٰى ط وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ ۝ مَنْ ذَا الَّذِيْ

ښې ښې | او الله | په هغه کارونو | چې تاسو ئې کوئ | خبردار دې | څوك دې | هغه

..........او الله تعالى ستاسو د کارونو نه ښه خبر دې | څوك شته چې

يُقْرِضُ اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا فَيُضٰعِفَهٗ لَهٗ وَلَهٗٓ

چې قرض ورکوي | الله ته | قرض | ښه | چې دوچند کړي هغه | دپاره دهغه | او هغه لره دي

الله تعالى ته په ښه شان قرضه ورکړي | نو الله تعالى به ئې دهغه دپاره په څو څو چنده زياته کړي

اَجْرٌ كَرِيْمٌ ۝ يَوْمَ تَرَى الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنٰتِ يَسْعٰى

اجر عزتمند | په هغه ورځ | چې اووينې ته | مومنان سړي | او مومنانې ښځې | چې منډې به وهي

او د هغه دپاره دعزت بدله ده | هغه ورځ [هم ديادساتلو قابله ده] چې ته به مومنان او مومنانې اووينې

**آسان ترجمه قرآن**

**په الله تعالى او دهغه په رسول باندې ايمان راوړئ، او په کوم (مال) چه الله تعالى تاسو قائم مقام جوړ کړې يئ د هغې نه (د الله تعالى په لاره کښې) خرچ کوئ. نو په تاسو کښې چه کومو خلقو ايمان راوړې**

دي، او هغوی (د الله تعالی په لاره کښې) خرچ کړي دي، دهغوی دپاره لوئې اجردې او ستاسو دپاره څه وجه ده، چه تاسو په الله تعالی باندې ایمان نه لرئ، حالانکه رسول(ص) تاسو ته دعوت درکوی، چه تاسو په خپل پروردګار باندې ایمان راوړئ، او هغه ستاسو نه وعده اخستلې ده، که تاسو واقعی مومنان یئ الله تعالی هغه ذات دې، چه په خپل بنده باندې ښکاره آیتونه نازلوی، دې دپاره چه تاسو د تیرو نه اوباسی او رنړا ته مو راولی، او یقین اوکړئ، چه الله تعالی په تاسو باندې ډیر شفیق ډیر مهربان دې، او ستاسو دپاره څه وجه ده، چه تاسو د الله تعالی په لاره کښې خرچ نه کوئ، حالانکه د آسمانونو او د زمکې ټول میراث الله تعالی دپاره دي، په تاسو کښې کومو خلقو چه د فتح (مکې) نه مخکښې خرچ کړي دي، او جنګ ئې کړي دي، هغوی (د روستنو خلقو سره) برابر نه دی، او هغوی په درجه کښې د هغې خلقو نه اوچت دی، کومو چه د (فتح مکې نه) پس خرچ کړې دې، او جنګ ئې کړې دې او الله تعالی د ښیګړې وعده د ټولو سره کړې ده او تاسو چه څه کوئ، الله تعالی په هغې باندې مکمل خبردار دې، څوک دی چه الله تعالی ته قرض ورکړی؟ ښه قرض چه دهغې په نتیجه کښې الله تعالی هغې ورکونکی ته څو چنده زیات کړی؟ او دغه سړی ته به ډیر عزت مند اجر ملاؤ شی.

## خلاصه تفسیر

﴿اٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ﴾[تاسو خلق په الله تعالی او دهغه په رسول ایمان راوړئ او] چه ایمان راوړئ نو ﴿وَاَنْفِقُوْا مِمَّا جَعَلَكُمْ مُّسْتَخْلَفِيْنَ فِيْهِ﴾ [په کوم مال کښې چه هغه تاسولره د نورو قائمقام جوړکړی دی دهغې نه] دهغه په لاره کښې [خرڅ کوئ] په دې عنوان داستخلاف کښې دې طرف ته اشاره ده چه دامال تاسونه وړاندې دبل چاسره وو او دغه شان به تاسو نه پس دبل لاس ته لاړشی پس هرکله چه داهمیشه پاتې کیدنکې نه دې نو دادغه شان جمع کول اوساتل او په ضروری مصرف کښې ئې نه خرڅ کول د حماقت نه سوا نور څه دی [پس] ددې حکم موافق ﴿فَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنْكُمْ﴾[چه کوم خلق په تاسو کښې ایمان راوړی او] دایمان راوړو نه پس دالله تعالی په لاره کښې ﴿وَاَنْفَقُوْا لَهُمْ اَجْرٌ كَبِيْرٌ﴾[خرڅ کوی دهغوئ دپاره لوئې ثواب دې او] کوم خلق چه ایمان نه راوړی ددغونه مونږ تپوس کووچه﴿وَمَا لَكُمْ لَا تُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ﴾ [تاسولره ددې څه سبب دې چه تاسو په الله تعالی ایمان نه رواړئ] په دې کښې ایمان بالرسول هم راغلې ﴿وَالرَّسُوْلُ يَدْعُوْكُمْ لِتُؤْمِنُوْا بِرَبِّكُمْ﴾[حال دادې چه] د ایمان راوړو قوی دواعی موجود دی هغه داچه [رسول ﷺ دکوم رسالت چه په دلیلونو سره ثابت دې [تاسولره دې خبرې طرف ته رابلی چه تاسوپه خپل رب] دده ددرکړې شوی تعلیم مطابق [ایمان راوړئ] یو داعی خوداشو [او] بل داعی دادې چه﴿وَقَدْ اَخَذَ مِيْثَاقَكُمْ﴾ [په خپله خدائ تاسونه] دایمان راوړو میثاق په الست بربکم کښې [عهداخستې وو] چه اجمالی اثرئ ستاسوپه فطرت کښې هم موجود دې او دالله تعالی رسول چه کومې معجزې او دلیلونه راوړی دی هغې هم ددې یاد دهانی وکړه پس ﴿اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ﴾ [که تاسوایمان راوړئ] نودا دواعی کافی دی کنی بیادایمان راوړو دپاره دکوم داعی انتظار دې لکه داقول دالله تعالی فبای حدیث بعدالله وایته یؤمنون وړاندې ددې مضمون والرسول الخ نورۀ تشریح دِه چه ﴿هُوَ الَّذِيْ﴾[هغه داسې] رحیم [دې ﴿يُنَزِّلُ عَلٰى عَبْدِهٖٓ اٰيٰتٍۢ بَيِّنٰتٍ﴾ چه په خپل بنده] خاص محمدصلی الله علیه وسلم [صفاصفا ایتونه لیږی] کوم چه دحسن عبارت اوخاص اعجاز

په وجه واضح مقصود باندې دلالت کوی ﴿لِيُخْرِجَكُمْ مِّنَ الظُّلُمٰتِ إِلَى النُّورِ﴾[چه هغه] خاص بنده [تاسولره د] کفراوجهل د [تیارونه] دایمان اوعلم دحقیقتونو [رڼرا طرف ته راولی] لکه داقول دالله تعالی دې لتخرج الناس من الظلمت الی النورباذن ربهم ﴿وَإِنَّ اللّٰهَ بِكُمْ لَرَءُوفٌ رَّحِيمٌ﴾ [اوبیشکه الله تعالی ستاسوپه حال لوئ مشفق مهربان دې] چه هغه داسې دتیارو نه راویستونکې ستاسوطرف ته راولیږلو [او] په دې مضمون کښې خوپه ایمان راوړو سوال وو اوس دالله تعالی په لاره کښې په خرڅ نه کولو سوال دې چه مونږ تپوس کوو چه ﴿وَمَا لَكُمْ أَلَّا تُنفِقُوا فِي سَبِيلِ اللّٰهِ﴾[تاسودپاره ددې کوم سبب دې چه تاسو دالله تعالی په لاره کښې خرڅ نه کوئ حال دادې چه] ددې هم یو قوی داعی دې هغه داچه ﴿وَلِلّٰهِ مِيرَاثُ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ﴾[ټول اسمانونه اومزکه به په اخرکښې الله تعالی ته پاتې شی] هرکله چه ټول مالکان مړه شی اوهغه پاتې شی پس هرکله چه به دټولو مالکانونه یوه ورځ پاتې کیږی نو په خوشحالئ سره ئ ولې نه ورکوی چه ثواب ئ هم وشی او داسمان ذکرکول سره ددې چه هیڅ یو مخلوق هم ددې مالك نه دې شایدددې نکتې دپاره وی چه لکه څنګه اسمان بغیردشرکت نه دده ملك دې دغه شان مزکه هم دحقیقت په اعتبارسره خوفی الحالِ هم دهغه ملك دې او اخربه په ظاهری طورهم دده په ملك کښې پاتې شی دامضمون دلفظ دمستخلفین دشرح په طوروشو وړاندې دخرڅ کوونکو ددرجو تفاضل بنائی چه اګرچه خرڅ کول په دې وجه چه امرئ شوې دې دهریو دپاره کوم چه ایمان راوړی خرڅ کوی موجب داجردې لیکن بیا هم تفاوت دې هغه داچه ﴿لَا يَسْتَوِي مِنكُم مَّنْ أَنفَقَ مِن قَبْلِ الْفَتْحِ وَقَاتَلَ﴾[کوموخلقودمکې دفتح نه وړاندې] دالله تعالی په لاره کښې خرڅ کړې دې او] دالله تعالی په لاره کښې [جنګ ئ کړې دې] اوکوم چه دمکې دفتح نه پس جنګیدل اوخرڅ ئ وکړودواړه [برابرنه دی] بلکه ﴿أُولَٰئِكَ أَعْظَمُ دَرَجَةً مِّنَ الَّذِينَ أَنفَقُوا مِن بَعْدُ وَقَاتَلُوا﴾[هغه خلق په درجه کښې دهغې خلقونه زیات دی کوموچه] دمکې دفتح نه [پس خرڅ وکړو اوجنګ ئ وکړواو] هسې خو﴿وَكُلًّا وَعَدَ اللّٰهُ الْحُسْنَىٰ﴾ [دالله تعالی دښیګړې] یعنی ثواب [وعده دټولو سره کړې ده ﴿وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ﴾ اوالله تعالی ته ستاسودټولو عملونو پوره خبر دې] په دې وجه ثواب به ددواړو وختونو په عمل ورکوی په دې وجه کومو خلقو ته چه موقع دمکې دفتح نه وړاندې دخرڅ کولو ملاؤنه شوه هغوئ ته هم ترغیبا وایوچه ﴿مَّن ذَا الَّذِي يُقْرِضُ اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا﴾[څوك دې هغه کوم چه الله تعالی ته په ښه شان] یعنی په خلوص سره [دقرض په طور ورکړی ﴿فَيُضَاعِفَهُ لَهُ﴾ بیا به الله تعالی دې] د ورکړې شوو ثواب [لره ددې سرې دپاره دوچند کوی او] ددوچندئ سره ﴿وَلَهُ أَجْرٌ كَرِيمٌ﴾[دهغه دپاره غوره اجر] تیارکړې شوې [دې] په دوچندکولو سره ئ دمقدارزیاتول بیان کړل اوپه لفظ دکریم سره ددې جزاء دکیفیت غوره والی طرف ته اشاره ده.

## معارف ومسائل

[وَقَدْ أَخَذَ مِيثَاقَكُمْ] د ې نه د ازل میثاق هم مراد کیدې نـ ی څکه چې الله ﷻ د مخلوقاتو د پیدا کولو نه مخکښې ټول روحونه راجمع کړل او ترې نه ئې وعده واخسته چې زه رب العالمین یم، ددې بیان قرآن عظیم الشان داسې کوی چې:

[أَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ ۖ قَالُوا بَلَىٰ ۛ][1] او دا هم کیدې شی چې ددې میثاق نه هغه میثاق او لوظ مراد وی چې

[1] ترجمه:- آیا زه ستا رب نه یم؟ ټولو جواب ورکړو ولې نه.

د رومبنو پیغمبرانو ﷺ او د رسول کریم ﷺ د امتونو نه په خاتم الانبیاء ﷺ باندې او هغوئ سره د مدد کولو په باره کښې اخستې شوې وه ، ددې بیان په قرآن عظیم الشان کښې داسې راغلې دې چې :

[ثُمَّ جَآءَكُمْ رَسُولٌ مُّصَدِّقٌ لِّمَا مَعَكُمْ لَتُؤْمِنُنَّ بِهِ وَلَتَنصُرُنَّهُ ۚ قَالَ ءَأَقْرَرْتُمْ وَأَخَذْتُمْ عَلَىٰ ذَٰلِكُمْ إِصْرِي ۖ قَالُوٓا أَقْرَرْنَا ۚ قَالَ فَاشْهَدُوا وَأَنَا مَعَكُم مِّنَ الشَّٰهِدِينَ] [1]

[إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ] [یعنی که تاسو مؤمنان یئ] دلته داسوال پیدا کیږی چې دا کلام هغې کافرانو سره روان دې چې دهغوئ په نه مؤمن کیدو باندې خبر داریٔ ددې نه رومبې راغلې دې : [وما لكم لا تؤمنون بالله] بیا دا وئیل به څنګه صحیح شی چې [إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ]

جواب ئې دادې چې کافران او مشرکان هم په الله ﷻ باندې د ایمان راوړلو دعویدار وو، د بتانو باره کښې به ئې دا وئیل چې مونږ ددوئ عبادت ځکه کوؤ چې دوئ به د الله ﷻ په نزد زمونږ سفارش کوی [مَا نَعْبُدُهُمْ إِلَّا لِيُقَرِّبُونَآ إِلَى ٱللَّهِ زُلْفَىٰٓ] [2] نو د آیت مبارک مطلب دا شو چې تاسو خلق چې په الله ﷻ باندې د ایمان راوړلو دعوی کوئ که تاسو دا دعوی رښتیا کوئی نو بیا به الله ﷻ باندې د ایمان راوړلو صحیح او اعتباری صورت اختیار کړئ چې ددې نه بغیر نشی کیدې چې په الله ﷻ باندې د ایمان راوړلو سره دهغه لوئې ذات په رسول باندې هم ایمان راوړئی.

[وَلِلَّهِ مِيرَٰثُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ۚ] میراث په اصل کښې هغې ملکیت ته وئیلې شی چې د رومبی مالک دمرکیدو نه پس د هغه ژوندی وراثانو ته په لاس ورشی او دا جبری ملکیت وی داسې د آسمانونو او زمکې میراث کیدل د الله ﷻ دپار ګرځول دا حکمت لری چې ستاسو خوښه وی او که نه چې دکومو څیزونو تاسو نن مالکان یئ هغه به آخری د الله ﷻ خاص ملکیت شی مطلب دادې چې اګر چې د ټول هر څه حقیقی مالک هر وخت الله ﷻ دې خو څینې څیزونه ئې په عارضي طور دخلقو ملکیت ګرځولی دی ، په آخر کښې به د خلقو دا عارضی ملکیت هم ختم شی ، چې په ظاهره او حقیقت کښې به په هر شان د الله ﷻ ملکیت اوګرځی ، اوس که ددې عارضی ملکیت په صورت کښې د الله ﷻ په نوم خرچ کوئی نو ددې بدل به ئې درته الله ﷻ په آخرت کښې درکوی نو په دې شان ددغې څیزونو هغه عارضی ملکیت به ستاسو مستقل او همیشه اوګرځی.

ترمذی شریف کښې د عائشه صدیقه رضي الله عنها نه روایت دې چې یوه ورځ مونږ چیلئ ذبح کړه ، د هغې زیاته حصه مو تقسیم کړه صرف یو لاس مو کور دپاره پریښودو . رسول کریم ﷺ زمانه تپوس اوکړو چې تاسو سره څومره پاتې شوه؟ ما ورته عرض اوکړو چې یو لاس مو کور دپاره پریښودو. رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې سوا ددغې لاس نه نوره ټوله چیلئ باقی پاتې شوه[3]

---

[1] ترجمه:- نوبیاتاسوته بل یو پیغمبرددې تصدیق کولو د پاره راشی نوتاسو (خواه مخواه) په هغه ایمان راوړئ او(خواه مخواه) هغه سره مدد کوئی اووئیل آیا تاسو اقرار اوکړو او واخسته تاسو په دې باندې ټینګه وعده زما اووئیل هغوئ اقرار اوکؤو مونږ اووئیل الله نو ګواهان اوسئ او زه ستاسو سره دګواهانو نه یم

[2] ترجمه:- مونږ ددوئ عبادت صرف په دې وجه کوؤ چې مونږ د الله تعالی مقرب جوړ کړی.

[3] جامع الترمذي ، ابواب صفة القيامة باب منه [ج:۲ ص:۷۳]

ولې چې هغه زياته چيلئ د الله ﷻ په لار کښې خيرات کړې شوه چې هغه سره بهٔ تاسو باقي پاتې کيږئ ، او کور د پاره اېښودلې لاس بهٔ هم دلته ختم شي [مظهرى] [۱].

په تيرو شوؤ آيتونو مبارکو کښې د الله ﷻ په لار کښې د خرچ کولو تاکيد بيانولو نه پس په ورپسې آيت مبارک کښې دا خودلې شوي دي چې د الله ﷻ په لار کښې چې څه څيز هم هر وخت خرچ کړې شي نو ثواب به ئې خامخا وي خو د ثواب کمې زياتې اوفرق به د ايمان، اخلاص او وړاندې والي په اعتبار سره وي ځکه ئې اوفرمائيل چې :

[لَا يَسْتَوِي مِنكُم مَّنْ أَنفَقَ مِن قَبْلِ الْفَتْحِ وَقَاتَلَ] يعنى کوم مسلمان چې د الله ﷻ په لار کښې مال خرچ کوي دهغوئ دوه قسمونه دي ، يو هغه چې د مکې د فتح نه ئې وړاندې ايمان راؤړې ، او مال ئې خرچ کړې وي ، دويم هغه چې دمکې د فتح نه پس په جهاد کښې شريک شي او د الله ﷻ په لار کښې خرچ هم اوکړي ، نو دا دواړه قسمه سره برابر نه دي ، بلکه ددوئ د ثواب په درجو کښې فرق دې ، چا چې د مکې مکرمې فتح نه اول ايمان راؤړو د الله ﷻ په لار کښې مال خرچ کړ او جهاد ئې اوکړو ، ددې خلقو ثواب دهغې کسانو نه زيات دې چې دمکې د فتح نه روستو ئې ايمان راوړې جهاد ئې کړې او د الله ﷻ په لار کښې ئې خرچ کړې وي .

**د صحابه کرامو ﷺ د درجو مقررولو دپاره د مکې فتح پيمانه ګرځول څه حکمت لري ؟:** څوک چې د مکې دفتح نه مخکښې مسلمانان شوي او اسلامي خدمات کښې ئې حصه اخستې وي دهغوئ مقام به د هغه صحابه کرامو ﷺ په نسبت سره زيات لوړ وي څوک چې د مکې د فتح نه پس مسلمانان شوي او اسلامي خدمتونه ئې کړي وي ، ددې خبرې اعلان هم په دې آيت مبارک کښې اوشو.

دې دپاره دمکې فتح پيمانه ګرځول داحکمت لري چې دمکې د فتح نه مخکښې سياسي حالات او ښکاره اسباب داسې نه ښکاريدل چې اسلام به خور شي يا به مسلمانان ترقي او کړې شي هر کله چې خلق اکثر ظاهري حالاتو ته ګوري څينې خلق اګر چې خپلې کمزورئ له کبله په دې باندې عمل کولو همت نشي کولې ، خو سره ددې مړاني او عزم خاوندان چې کومه نظريه يا کم والي او ډير والي باندې د نظر کولو نه بغير د هغې قبلولو ته ورمنډې کوي.

فتح مکه نه مخکښې د ايمان راؤړونکو په وړاندې د مسلمانانانو کم والې او کمزوري وه او زمانه کښې چې اسلام او ايمان ښکاره کول خپل سر به تلې کښې اېښودل او خپل کورو ، په دې وجه د مشرکانو طرفه ورت د زيانونو رسيدو سلسله وه ، خصوصا د اسلام دشروع په رور، ګويا هلاکيدو دپاره پيش کول وو ، ښکاره خبره د ه چې په دغه زمانه کښې چا اسلام قبول نه کړو ، خپل ځانونه ئې په خطره کښې واچول او بيا د رسول کريم ﷺ په مدد او ددين په خدمت کښې خپل ځان او مال اولګولو ، د هغوئ د ايمان مضبوطيا او دعمل اخلاص ته نور خلق نشي رسيدې.

ورو رو حالات بدليدل ، مسلمانان قوي کيدل ، تردې پورې چې مکه مکرمه فتح شوه او په ټولو عربو باندې د اسلام حکومت قائم شو ، دغه وخت د قرآن عظيم الشان ددې بيان مطابق :

---

[۱] تفسير المظهري[ج:۹ص:۱۹۰]

[يَدْخُلُوْنَ فِيْ دِيْنِ اللّٰهِ اَفْوَاجًا] يعنى خلق به د الله ﷻ په دين كښې ډلې ډلې داخليږى. ددې ظهور اوشو څکه ډيرو خلقو د اسلام په حقانيت باندې يقين لرلو، خود خپل ضعف او اسلام د مخالفينو دقوت او شان شوكت اودهغوئ د تكليفونو دويرې به يې د اسلام اظهار كولو كښې ويره محسوله. اوس دهغوئ د لارې نه دا روكاوټ هم ختم شو نو خلق ډلې ډلې په اسلام كښې داخليدل شروع شو د قرآن عظيم الشان دې آيت مبارک د هغوئ هم عزت او قدر كړې دې او هغوئ سره ئې هم دبخښنې او رحمت وعده كړې ده خو دائې اوخودل چې دهغوئ درجه هغې خلقو سره نشى برابريدې څوک چې د خپل همت، اولولعزمئ او ايمانى قوت په وجه د مخالفتونو او زيانونو د خطرې نه بې پرواه شو او د اسلام اعلان ئې اوكړو او په سخت وخت كښې د اسلام پكار راغلل.

خلاصه دا شوه چې عزم او همت او د ايمان د قوت درجات متعين كولو دپاره د فتح مكه څخه وړاندې او روستو حالات د يو حد فاصل حيثيت لرى. په دې وجه يې په دې مذكوره آيت مبارك كښې اوفرمائيل چې دا دواړه ډلې برابر نه شى كيدې.

**ټولو صحابه كرامو ﷺ دپاره د بخښنې او رحمت زيرې او د صحابه كرامو ﷺ د نور امت نه يو جدا حيثيت:**

په دې آيتونو كښې اگرچې د صحابه كرامو ﷺ ترمينځه د درجو فرق بيان كړې شوې دې ليكن په آخر كښې فرمائى چې: [وَكُلًّا وَّعَدَ اللّٰهُ الْحُسْنٰى] [يعنى سره د دغې فرق الله ﷻ هر يو سره د حسنى وعده كړې ده] ولې چې ټولو صحابه كرامو ﷺ د فتح مكه نه مخكښې روستو څه نا څه خرچ د الله ﷻ په لار كښې كړې دې اود اسلام خلاف خلقو په مقابله او جنگ كښې شريک شوى دى څكه دا اعلان د بخښنې او رحمت ټولو صحابه كرامو ﷺ دپاره عام او شامل دې.

ابن حزم ﷫ فرمائيلى دى چې دې سره د سورة انبياء بل آيت مبارک يو ځائې كړئ په كوم كښې چې فرمائى:

[اِنَّ الَّذِيْنَ سَبَقَتْ لَهُمْ مِّنَّا الْحُسْنٰٓى ۙ اُولٰٓئِكَ عَنْهَا مُبْعَدُوْنَ ۙ لَا يَسْمَعُوْنَ حَسِيْسَهَا ۚ وَهُمْ فِيْ مَا اشْتَهَتْ اَنْفُسُهُمْ خٰلِدُوْنَ] [يعنى كومو خلقو دپاره چې مونږ حسنى مقرر كړې ده هغوئ به د جهنم نه داسې لرې اوسيږى چې ضررر رسان آوازونه به هم دهغوئ غوږونو ته نه رسيږى، او زړۀ پورې نعمتونو كښې بۀ هميشه هميشه پاتې كيږى]

پدې زير بحث آيتونو مباركو كښې [وَكُلًّا وَّعَدَ اللّٰهُ الْحُسْنٰى] راغلې دې او په دې آيت مبارک كښې چا دپاره چې د حسنى وعده ده، هغوئ دپاره د جهنم د اور نه د ډير لرې پاتې كيدو اعلان دې، حاصل دا دې چې قرآن عظيم الشان ددې ذمه وارى واخسته چې صحابه كرامو ﷺ نه كه اولين دى او كه آخرين دى د يو نه هم، په ټول عمر كښې څه گناه هم اوشى نو هغوئ پرې كلک نه پاتې كيږى، بلكه توبه ترې اوباسى، يا خوبيا الله تعالى دوئ ته دصحابيت او مدد د پيغمبر ﷺ او د لويو دينى خدمتونو او ددوئ د بې شميره نيكيانو په وجه معاف كوى، او تر هغې پورې به ئې الله ﷻ نه وفات كوى، تر څو ئې چې ټول گناهونه ورته په دغه شان نه وى معاف كړى، يا د دنيا مصيبتونه، آفتونه او زيات نه زيات د برزخ څه تكليف بۀ دهغوئ دگناهونو كفاره جوړه شى.

او په کومو احاديثو کښې چې ځينې صحابه کرامو ﷺ باندې د مرګ نه پس د عذاب بيان راغلې دې[۱] هغه د آخرت او دجهنم عذاب نه دې بلکه برزخي او د قبر عذاب دې ،دا څه لرې خبره نه ده چې الله ﷻ په دغې سره د هغوئ هغه ګناه معاف کړې وی دکومې نه چې په ژوندې کښې ورته د توبې کولو توفيق نه وی حاصل شوې نو په حقيقت کښې د آخرت د عذاب نه خلاصولو دپاره به دغه تکليف په دوئ باندې راوستې شوې وی.

**د صحابه کرامو ﷺ مقام د قرآن کريم او حديث نه پيژندل کيدېښي . د تاريخي روايتونو نه نه:** خلاصه دا شوه چې صحابه کرام ﷺ د رسول کريم ﷺ او د نور امت ترمينځه د الله ﷻ جوړه کړې واسطه او ذريعه دی امت ته د قرآن عظيم الشان درسيدو ذريعه د دوئ ﷺ نه بغير بله نشته او نه ورته بغير د دوئ ﷺ نه د قرآن عظيم الشان د معنو او تعليماتو د رسول کريم ﷺ د رسيدو بله ذريعه شته ، څکه په اسلام کښې د دوئ ﷺ يو خاص مقام دې ، ددوئ ﷺ مقامات د تاريخي کتابونو درطب ، يا بس دروايتونو نه نشي پيژندلې بلکه د قرآن عظيم الشان او احاديثو په ذريعه سره پيژندلې کيد يشی .

په دوی کښې که چا نه څه خوئيدل اوغلطي هم شوې وه نو اکثريه هغه اجتهادی غلطي او خطا وه چې هيڅ ګناه نه لری بلکه د صحيح احاديثو د ښکاره بيان مطابق په دې هم يو اجر ملاويږی اوکه واقعی څه ګناه ترې هم شوې وه نو هغه د دوی د ټولو نيکو عملونو ، درسول الله ﷺ او د اسلام د مدد او خدمت په مقابله کښې هيڅ حيثيت نه لری بيا به هغوی د الله تعالی څه دومره ويردل چې معمولی ګناه کولو سره به هم رپيدل او سمدستی به ئې توبه کوله او پخپل ځان باندې به ئې د دې د سزا جاری کولو کوشش کولو چا به ځان دجمات په ستنې پورې ترلو او د توبې قبليو پورې به هم دغه شان ترلې پاتې کيدوبله دا چې د هغوی نيکئ دومره زياتې وې چې پخپله به يې د ګناه کفاره ګرځيدې د دې څخه علاوه د دوی دګناهونو د عامې بخښنې اعلان الله تعالی په دې آيت مبارکه کښې او په نورو آياتونو کښې کړې دې او صرف د بخښنې اعلان نه بلکه تردې حده پورې يې اعلان کړې دې چې [رضی الله عنهم ورضو عنه] هغوی ته ئې دخپلې رضامندئ سند ورکړې دې بيا که د هغوی ترمينځه څه جنګ راپيښ شوې دې نو دهغې په وجه ورته رد بد وئيل بالکل حرام اود رسول الله ﷺ د ارشاد مطابق د لعنت موجب دې اوخپل ايمان په خطره کښې اچول دی نعوذبالله منه

دې باره کښې اکثرو تاريخی روايات نه څه اعتباری نه لری او که په څه وجه د منلو قابل وی نو د قرآن عظيم الشان او حديث پاک ارشادونو په مقابله کښې د هغې حيثيت نه پاتې کيږی ، هغوئ ﷺ ټولو ته الله ﷻ بخښنه کړې ده.

**د صحابه کرامو ﷺ باره کښې د ټول امت اجماعي عقيده:** د صحابه کرامو ﷺ په باره کښې عقيده داده چې د صحابه کرامو ﷺ قدر او عزت کول او مينه ورسره کول د هغوئ ﷺ تعريف او صفت کول او دهغوئ ﷺ تر مينځه د راپيښو شوؤ جګړو او اختلافاتو وغيره باره کښې د خاموش پاتې کيدل او څوک په کښې مجرم نه ګرځول لازم دی ، د اسلامی عقيدو په ټولو کتابونو کښې ددې اجتماعی عقيدې ښکاره بيانونه موجود دی ، لکه د امام احمد ﷫

---

[۱] اوګورئ:- سنن النسائی کتاب الجنائز ، باب ضمة القبر وضغطته[ج: ۱ ص:۲۸۹]

رساله چې د اصطخري په روايت سره مشهوره ده دهغې ځنيې الفاظ دادي چې :
[لايجوز لاحد ان يذكر شيئاً من مساويهم ولايطعن على احد منهم بعيب ولانقص فمن فعل ذلك وجب تاديبه [شرح العقيدة الواسطية معروف به الدرة المضية ص:۳۸۹] [هيچا دپاره دا جائز نه دی چې د صحابه کرامو ﷡ د څه بد ، عيب يا خرابی بيان اوکړی يا ورته څه بدرد اووائی ، يا دهغوئ ﷡ عيب يا خرابی بيان کړي او داسې کوونکی ته سزا ورکول واجب دی].
او ابن تيميه ﷫ په الصام المسلول کښې د صحابه کرامو ﷡ د فضائلو او خصوصياتو ډير آيتونه او د احاديثو روايات ليکلو نه پس دا ليکلی دی چې :
[وهذا مما لانعلم فيه خلافاً بين اهل الفقه والعلم من اصحاب رسول الله ﷺ والتابعين لهم باحسان وسائر اهل السنة والجماعة فانهم مجمعون على ان الواجب الثناء عليهم والاستغفار لهم والترحم عليهم والترضى عنهم واعتقاد محبتهم وموالاتهم وعقوبة من اساء فيهم القول ](۱)[تر کومهس چې زمونږ په علم کښې دی مونږ په دې معامله کښې د عالمانو فقهاء صحابه کرامو ﷡ او تابعينو ترمينځه څه اختلاف نه بياموندو ولې چې دټولو په دې اجماع ده چې امت باندې واجب دی چې د ټولو صحابه کرامو ﷡ تعريف او ثناء بيانوی اوهغوئ دپاره بخښنه غواړی ، او هغوئ لره د الله ﷻ رحمت او رضا سره ذکر کړی ، دهغوئ په مينه او دوستئ باندې دې ايمان لری او څوک چې د هغوئ ﷡ باره کښې بې ادبی کوی هغه ته دې سزا ورکوی].
او ابن تيميه ﷫ په شرح عقيده واسطيه کښې چې د ټول امت محمديه اهل السنت والجماعت عقيده ئې بيان کړې ده د صحابه کرامو ﷡ خپل مينځ کښې د جنګ باره کښې ئې ليکلی دی چې :
[ويمسكون عما شجر بين الصحابة ويقولون هذه الاثار المروية فى مساويهم منها ما هو كذب ومنها ما زيد فيها ونقص وغير وجهه والصحيح منه هم فيه معذرون اما مجتهدون مصيبون واما مجتهدون مخطئون وهم مع ذلك لا يعتقدون ان كل واحد من الصحابة معصوم من كبائر الاثم وصغائره بل يجوز عليهم الذنوب فى الجملة ولهم من الفضائل والسوابق ما يوجب مغفرة ما يصدر منهم حتى انهم يغفر لهم من السيات ما لا يغفر لمن بعدهم](۲)[اهل سنت والجماعت خاموشي اختياروی دهغې اختلافی معاملو نه چې د صحابه کرامو ﷡ ترمينځه راپيښې شوې دی او وائی چې کوم روايات په هغوئ ﷡ کښې په چا باندې عيب لګوونکی دی دهغې حقيقت دادې چې ځينې خو بالکل دروغ دی او په ځينو کښې زياتې کمې کړې شوې دې او حقيقت ئې بدل کړې شوې دې او چې څه صحيح دی هغوئ ﷡ په هغې کښې معذوره وو ولې چې [هغوئ چې څه کړی وو الله ﷻ دپاره يې کړی وو ، اجتهاد يې کړو] يا خو هغوئ ﷡ په صحيح خبره باندې وو [نو ددئ لره ډېل ثواب وو يا به په خطا باندې وو نو معذور او ديو ثواب مستحق وو] خو سره ددې ټولو خبرو نه دوئ دا عقيده نه لری چې هر صحابی ﷡ د لوئې وروکې ګناه نه پاک دی بلکه د هغوئ ﷡ نه ګناه کيدلې شی خو د دوئ فضائل اود اسلام خدمات ئې داسې دی چې د هغوئ ﷡ د بخښنې موجب دی تر دې پورې چې دهغوئ ﷡ بخښنه اومعافی به دومره فراخه وی چې په امت کښې به د نورو دپاره نه وی].

---

(۱) الصارم المسلول المسئلة الثالثة: انه يقتل ولا يستتاب سواء كان مسلما اوكافرا [ج: ۱ص:۵۷۸]
(۲) شرح العقيدة الوسطية لابن تيمية إمساك اهل السنة عن الخوض فيما شجر في الصحابة [ج: ۱ص:۳٤۱]

د صحابه کرامو رضي الله عنهم په مقام او د هغوئ رضي الله عنهم په درجاتو او فضائلو باندې تفصيلي بحث د سورة فتح په آيتونو [والذين معه الخ] لاندې تير شوي دې . او احقر پدې بحث باندې يو تفصيلي رساله د مقام صحابه په نوم سره ليکلې ده چې مستقله خوره شوې ده ، چې په کښې د صحابه کرامو رضي الله عنهم عدالت ، ددوئ مشاجرات ، او ددوئ په باره کښې د تاريخي روايتونو د حيثيت او درجې مکمل تحقيق دې هغه دې اوکتلې شي .

يَوْمَ تَرَى الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنٰتِ يَسْعٰى

| په هغه ورځ | چې اووينې ته | مومنان سړي | او مومنانې ښځې | چې منډې به وهي

هغه ورځ [هم ديادساتلو قابله ده] چې ته به مومنان او مومنانې اووينې

نُورُهُمْ بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَبِأَيْمَانِهِمْ بُشْرٰىكُمُ الْيَوْمَ

نور دهغوئ | مخکښې دهغوئ نه | او ښي طرف دهغوئ ته | زيرې دې تاسو لره | نن ورځ |

چې [دايمان] خپله رڼړا به ترې نه وړاندې او ښي طرف ته خوريږي | نن تاسو ته زيرې درکوو

جَنّٰتٌ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهٰرُ خٰلِدِينَ فِيهَا ط ذٰلِكَ

جنتونه دی | چې بهيږي به | لاند دهغې نه | نهرونه | چې هميشه به وي | په هغې کښې | دا انجام

دداسې باغونو چې دهغې لاندې به ولې بهيږي | هميشه به په کښې اوسيږي | هم دا دټولونه

هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ ﴿۱۲﴾ يَوْمَ يَقُولُ الْمُنٰفِقُونَ وَالْمُنٰفِقٰتُ

هم دا | کاميابي ده لويه | په دغه ورځ به | وائي | منافقان سړي | او منافقانې ښځې |

لويه کاميابي ده | ............ . دابه هغه ورځ وي چې منافقان سړي او منافقانې ښځې

لِلَّذِينَ آمَنُوا انْظُرُونَا نَقْتَبِسْ

هغه کسانوته | چې ايمان ئې راوړې وي | چې لږ اوګورئ مونږ ته | چې مونږ رڼړا واخلو |

به دايمان خاوندانو ته وائي | چې مونږ ته لږ انتظار اوکړئ چې مونږ هم ستاسو د نور نه رڼړا واخلو

مِنْ نُورِكُمْ ج قِيلَ ارْجِعُوا وَرَاءَكُمْ فَالْتَمِسُوا

دنور [رڼړا] ستاسو نه | ورته به اووئيلې شي | چې واپس شئ | شاګانو خپلو ته | اوګورئ

دوئ ته به اووئيلې شي | چې تاسو وا پس لارشئ ابيا [هلته ځان دپاره] رڼړا تلاش کړئ | بيا به ددې دواړو [ډلو]

نُورًا ط فَضُرِبَ بَيْنَهُمْ بِسُورٍ لَهُ

رڼړا [بل ځاۍ کښې] | پس اوبه وهلې شي | په منځ دهغوئ کښې | يو ديوال | چې په هغې کښې به

په مينځ کښې يو ديوال اودرولې شي | ............ په هغې کښې به يوه دروازه وي | چې

بَابٌ ط بَاطِنُهُ فِيهِ الرَّحْمَةُ وَظَاهِرُهُ

يوه دروازه وي | دننه دهغې چې به وي | په هغې کښې به | رحمت وي | او بهر طرف دهغې چې به وي

دننه طرف ته به په کښې رحمت وي | او بهر طرف ته به ترې عذاب وي | منافقان به

مِنْ قِبَلِهِ الْعَذَابُ ﴿١٣﴾ يُنَادُونَهُمْ أَلَمْ نَكُنْ مَّعَكُمْ

دمخې طرف نه به | عذاب وی | آواز به کوی منافقان مومنانوته | چی آیا نهٔ وو مونږ | ستاسو سره

مومنانوپسې چغې وهی | چې [ائې خلقو!] آیا مونږ [په دنیا کښې] ستاسو ملګری نه وو

قَالُوا بَلَىٰ وَلَٰكِنَّكُمْ فَتَنْتُمْ أَنْفُسَكُمْ وَتَرَبَّصْتُمْ

اوبه وائی مومنان | چی هو | ولیکن تاسو په فتنه کښی واچول | خانونه خپل | او موقعې ته مو کتل

دوئ بهٔ جواب ورکړی| نه بلکه تاسو خپل ځانونه په نفاق کښې اچولی وو| اوتاسو [به په مونږ د مصیبتونو] انتظار

وَارْتَبْتُمْ وَغَرَّتْكُمُ الْأَمَانِيُّ حَتَّىٰ جَاءَ

او شك به مو کوو | او دوکه درکړه تاسو له | امیدونو [د دروغو] | تر هغې پورې | چی راغې |

کولو| او شک به مو کولو| اوستاسو امیدونو تاسو په دهوکه کښې اچولې وئ| تردې چې دالله

أَمْرُ اللَّهِ وَغَرَّكُمْ بِاللَّهِ الْغَرُورُ ﴿١٤﴾ فَالْيَوْمَ

حکم دالله | او دوکه درکوله تاسو له | په معامله دالله کښی | دوکه باز شیطان] | پس نن ورځ به |

تعالی حکم [مرګ] راغلو| اوتاسو دالله تعالی په حق کښې فریبی [شیطان] دهوکه کړئ| نو نن ورځ

لَا يُؤْخَذُ مِنْكُمْ فِدْيَةٌ وَلَا مِنَ الَّذِينَ كَفَرُوا

نهٔ اخستلې کیږی | ستاسو نه | فدیه [معاوضه] | او نهٔ د هغه کسانو نه | چی کفر ئې کړې وو |

بهٔ تاسو نه څه فدیه نشی قبلولې| .......... اونه د هغه خلقو نه چې کفر ئې اختیار کړې وو

مَأْوَاكُمُ النَّارُ هِيَ مَوْلَاكُمْ وَبِئْسَ الْمَصِيرُ ﴿١٥﴾

ځائې دورتلو ستاسو | وور دې | دا وور | ملګرې ستاسو دې | او ډیر بد ځائې دورتلو دې |

ستاسو د ټولو ځائې دوزخ دې | هم دغه [دوزخ] ستاسو ملګرې دې |او هغه ډیر خراب ځائې دې

أَلَمْ يَأْنِ لِلَّذِينَ آمَنُوا أَنْ تَخْشَعَ

آیا وخت لا نهٔ دې راغلې | دپاره دهغه کسانو | چی ایمان ئې راوړې دې | چی اوېرېږی

آیا په ایمان دارو باندې لاهغه وخت راغلې نه دې | چې دهغوئ زړونه دالله تعالی دذکر

قُلُوبُهُمْ لِذِكْرِ اللَّهِ وَمَا نَزَلَ مِنَ الْحَقِّ وَلَا يَكُونُوا

زړونه دهغوئ | دوجې دذکر دالله نه | او دوجې دهغې حق نه چی نازل کړې دې الله | او نهٔ شی هغوئ

اودهغه دنازل شوی ربنتینی کلام په وړاندې نرم شی | اودهغې خلقو په شان نشی

كَالَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ مِنْ قَبْلُ فَطَالَ

پشان دهغه کسانو | چی ورکړې شوې وو ورته کتاب | مخکښی ددې نه | پس اوږده شوه

چې وړاندې ورته کتاب ورکړې شوې وو| ............ بیا په هغوئ اوږده زمانه تیره شوه

عَلَيْهِمُ الْأَمَدُ فَقَسَتْ قُلُوبُهُمْ وَكَثِيرٌ مِنْهُمْ فَاسِقُونَ ﴿١٦﴾

په هغوئ باندې | زمانه | پس سخت شو | زړونه دهغوئ | او زیات دهغوئ نه | فاسقان دی |

نودهغوئ زړونه سخت شول | او په هغوئ کښې ډیر کسان [اوس هم] بدعمله دی

اِعْلَمُوْٓا | اَنَّ اللّٰهَ | يُحْيِ الْاَرْضَ | بَعْدَ مَوْتِهَا ؕ | قَدْ بَيَّنَّا

پوهه شئ | چې بیشکه الله | ژوندئ کوی زمکه | روستو د مرګ دهغې نه | صفاصفا ښودلي دي موږ

پوهه شئ چې الله تعالی زمکه د اوچیدو نه پس بیا زرغونوی | ............ موږ تاسو ته

لَكُمُ الْاٰيٰتِ | لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ ۝ | اِنَّ الْمُصَّدِّقِيْنَ

تاسو ته نښې | چې تاسو د عقل نه کار واخلئ | بیشکه صدقې ورکونکی سړي |

واضحه مثالونه خکه بیان کړي دي | چې تاسو پرې پوهه شئ | بیشکه صدقه

وَالْمُصَّدِّقٰتِ | وَاَقْرَضُوا | اللّٰهَ | قَرْضًا حَسَنًا

او صدقې ورکونکی ښځې | او هغه خلق چې قرض ئې ورکړو | الله له | قرض حسن |

ورکونکي سړي او صدقه ورکونکې ښځې | او هغه خلق چې د الله تعالی په لاره کښې په

يُّضٰعَفُ | لَهُمْ | وَلَهُمْ | اَجْرٌ كَرِيْمٌ ۝ | وَالَّذِيْنَ

دوچند به ورکړې کیږي | هغوئ ته | او دپاره دهغوئ | اجر عزتمند دي | او هغه کسان

اخلاص سره خرچ کوي | نو دهغوئ صدقه به څو چنده زیاتولې شي | او د هغوئ دپاره ډیر د عزت اجر دي | او کومو

اٰمَنُوْا | بِاللّٰهِ | وَرُسُلِهٖٓ | اُولٰٓئِكَ

چې ایمان ئې راوړو | په الله باندې | او په رسولانو دهغه باندې | دغه کسان چې دي |

کسانو چې په الله تعالی او د هغه په رسول ایمان راوړې دې | ............ هم دغه خلق

هُمُ الصِّدِّيْقُوْنَ ۖ | وَالشُّهَدَآءُ | عِنْدَ رَبِّهِمْ ؕ | لَهُمْ | اَجْرُهُمْ

هم دوئ رښتني دي | او ګواهان دي د حق | په نز د رب خپل | دپاره دهغوئ دي | اجر دهغوئ |

رښتوني دي | او د خپل رب په نیز [د حق] ګواهان دي | هغوئ دپاره [خصوصي] اجر دي | او هغوئ

وَنُوْرُهُمْ ؕ | وَالَّذِيْنَ | كَفَرُوْا | وَكَذَّبُوْا | بِاٰيٰتِنَآ | اُولٰٓئِكَ

او نور دهغوئ | او هغه کسان | چې کفر ئې اوکړو | او دروغ ئې اوګڼړل | آیتونه زمونږ | دا کسان |

دپاره به رڼړا هم وي | او کومو خلقو چې انکار کړې دې | او زمونږ ایتونه ئې دروغ اوګڼړل | نو هم دغه خلق

اَصْحٰبُ الْجَحِيْمِ ۝

خاوندان د دوزخ دي |

دوزخیان دي |

## آسان ترجمه قرآن

په هغه ورځ چه کله ته مومنان سړی او مومنانې ښځې اووینې، چه د هغوی نُور به د هغوی مخښې ته او دهغوی نه ښي طرف ته منډې وهی (او دوی ته به اووئیلې شی چه) نن تاسو ته زیرې دې دهغې باغونو، چه دهغې لاندې به نهرونه بهیږی، چه په هغې کښې به تاسو همیشه دپاره اوسیږئ، هم داده، چه لویه زبردسته کامیابی ده په هغه ورځ به منافقان سړی او منافقانې ښځې ایمان والو ته اووائی چه: لږ موږ ته انتظار اوکړئ، چه ستاسو د نُور نه موږ هم څه رڼړا حاصله کړو نو دوی ته به اووئیلې شی، چه: تاسو

روستو لاړ شئ، بيا نور تلاش کړئ. بيا به ددوی په مينځ کښې يو ديوال حائل کړې شي، چه په هغې کښې به يوه دروازه وی، چه دهغې نه دننه به رحمت وی او بهر طرف ته به عذاب وی. هغوی به مومنانو ته آواز کوی چه: آيا مونږ تاسو سره نه وو؟ مومنان به ورته اووائی چه: اوا ولې نه، ليکن تاسو خپله خپل ځانونه په فتنه کښې واچول، او په انتظار کښې وئ او په شک کښې پراته وئ او د دروغو آرزوګانو تاسو په دهوکه کښې اچولې وئ تردې پورې چه د الله تعالى حکم راغلو، او هغې لوئې دهوکې باز (شيطان) تاسو د الله تعالى باره کښې دهوکه کولئ. نو نن به ستاسو نه نۀ فديه قبلولې شی، او نه دهغې خلقو نه چه (ښکاره ئې) کفر اختيار کړې وو، او ستاسو ځائې دوزخ دې، هم هغه ستاسو ساتونکې دې، او دا ډير بد انجام دې. کومو خلقو چه ايمان راوړې دې، آيا دهغوی دپاره اوس هم وخت نه دې راغلې، چه دهغوی زړونه د الله تعالى د ذکر دپاره، او کوم حق چه راليږلې شوې دې د هغې دپاره نرم شی؟ او دوی د هغې خلقو پشان جوړ نه شی، کومو ته چه مخکښې کتاب ورکړې شوې وو، بيا په هغوی باندې اوږده موده تيره شوه او د هغوی زړونه سخت شول، او (نن) په هغوی کښې ډير خلق نافرمان دی؟ ښه پوهه شئ، چه الله تعالى زمکې ته دهغې د مرګ نه پس ژوند ورکوی مونږ ستاسو دپاره نښې ښکاره واضحه کړې دی، دې دپاره چه تاسو د عقل نه کار واخلئ يقيناً کوم چه صدقه ورکونکې سړی او صدقه ورکونکې زنانه دی، او هغوی الله تعالى ته قرض ورکړې دې، ښه قرض د هغوی دپاره به (هغه صدقه) څو چنده زياته کړې شی، او د هغوی دپاره عزت مند اجر دې. او کومو خلقو چه په الله تعالى باندې او دهغه په رسول باندې ايمان راوړې دې، هم هغوی دخپل رب په نزد صديقين او شهيدان دی دهغوی دپاره به د هغوی اجر او د هغوی نور وی، او کومو خلقو چه کفر اختيار کړې دې، او زمونږ د نښو تکذيب ئې وکړو، دغه کسان دوزخيان دی.

## خلاصه تفسير

هغه ورځ هم ديادولوده ﴿يَوْمَ تَرَى الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَٰتِ يَسْعَىٰ نُورُهُم بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَبِأَيْمَٰنِهِم﴾[په کومه ورځ چه ته مسلمانانو سړو اومسلمانانوښځولره وويني چه ددوئ نور ددوئ نه وړاندې او ددوئ ښی طرف ته منډې وهی] دانوربه پل صراط باندې دتيريدودپاره به ددوئ سره وی او په يوروايت کښې دی چه کيڼ طرف ته به هم وی لکه چه په درمنشور([1])کښې دی نو تخصيص دښی طرف شايدپه دې وجه وی چه ددې طرف نوربه زيات قوی وی اونکته په دې تخصيص کښې شايدداوی چه دابه نښه وی ددوئ دعملنامې په ښی لاس کښې د ورکولواو په مخکښې نورکيدل خوپه داسې موقعوعام عادت دې او ددوئ ته به ووئيلې شی چه ﴿بُشْرَىٰكُمُ الْيَوْمَ﴾[نن تاسو ته خوشخبری ده ﴿جَنَّٰتٌ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَٰرُ خَٰلِدِينَ فِيهَا﴾دداسې باغونوچه لاندترې نهرونه بهيږی چه په کوموکښې به دوئ هميشه اوسيږی] او ﴿ذَٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ﴾[دالويه کاميابی ده] ظاهره ده چه دا خبره به هم دغه وخت وئيلې شي او دا وخت په طوردخبرورکولو وئيلې شی او بشرکم ويونکې غالبافرښتې دی لکه داقول دالله تعالى دې تتنزل عليهم الملئكة ان لاتخافوا ولاتحزنوا وابشروا الخ([2]) يا به يې الله تعالى په خپله په دې خطاب سره مشرف وفرمائی او دابه

---

[1] الدرالمنثور [ج:۹ ص:٤١٥] و المستدرك للحاكم رقم الحديث:[٣٧٨٤]
[2] ترجمه:- په دوئ به فرښتې نازليږی چې تاسو انديښنه مه کوئ اونه غم او خوشحاله اوسئ.

هغه ورځ وی ﴿يَوْمَ يَقُولُ الْمُنٰفِقُوْنَ وَالْمُنٰفِقٰتُ لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوا﴾[په کومه ورځ چه منافقان سړی اومنافقانې ښځې مسلمانانوته] په پل صراط باندې[ووائی چه] ﴿انْظُرُوْنَا نَقْتَبِسْ مِنْ نُّوْرِكُمْ﴾ لږ [زمونږ انتظار وکړئ چه مونږ هم ستاسوپه نورسره څه رڼړا حاصله کړو] دابه هغه وخت وی کله چه مسلمانان دخپلوعملونو اوایمان په برکت سره ډیر وړاندې لاړشی اومنافقان کوم چه په پل صراط دمسلمانانو سره ورخيژی ورروستوپه تیاره کښې به پاتې شی خواه دوئ سره داول نه نورنه وی یا لکه چه د درمنثور په یو روایت کښې دی چه ددوئ سره به هم څه قدرې نور وی او بیابه هغه مړشی او شاید حکمت په عطاء دنورکښې داوی چه په دنیاکښې دظاهری اعمالوپه اعتبارسره هغوئ دمسلمانانو سره اوسیدل مګرپه اعتباردعقیدې په زړه سره جداوو په دې وجه به اول دوئ ته دظاهری اعمالوپه وجه سره نور ملاوشی مګربیا په زړه کښې دایمان او تصدیق دنشت والی په سبب دغه نورورك شی او دارنګ ددوئ دټګئ او دوکې جزاء هم داده چه اول دوئ ته نورملاوشو بیا خلاف د ګمان ورك شوغرض هغوئ به مسلمانانوته د اوریدو دپاره اووائی ﴿قِيْلَ ارْجِعُوْا وَرَآءَكُمْ﴾ [دوئ ته به جواب ورکړې شی] داجواب ورکوونکی به خواه فرښتې یا مؤمنان وی [چه تاسوخپلې شاته واپس شئ﴿فَالْتَمِسُوْا نُوْرًا﴾ بیا] دهغه ځائ نه [رڼړا تلاش کړئ] د درمنثور د روایت مطابق ددې شاته نه مرادهغه ځائ دې کوم ځائ چه دسختې تیارې نه پس په پل صراط دختلوپه وخت کښې نورتقسیم شوې وویعنی دنور تقسیمیدو ځائ هغه دې هلته لاړشئ راواخلئ چنانچه هغوئ به هلته لاړشی هرکله چه هلته هم څه ملاؤ نه شی بیابه دې خواراشی ﴿فَضُرِبَ بَيْنَهُمْ بِسُوْرٍ لَّهٗ بَابٌ﴾[بیابه] مسلمانانوته ونه رسی بلکه [ددوئ] فریقینو[به مینځ کښې به یو دیوال قائم کړې شی په کوم کښې چه به یوه دروازه] هم [وی] چه کیفیت ئ دادې چه﴿بَاطِنُهٗ فِيْهِ الرَّحْمَةُ وَظَاهِرُهٗ مِنْ قِبَلِهِ الْعَذَابُ﴾ [ددې په دننه طرف کښې به رحمت وی او بهرطرف ته به ئ عذاب وی] ددرمنثور د روایت مطابق دادیوال اعراف دې او ددننه نه دمؤمنانو جانب او دبهرنه دکافرانوجانب مراددې او درحمت نه مراد جنت دې او دعذاب نه مراد دوزخ دې اوشایددا دروازه دخبرواترو دپاره وی یا په دې دروازه دجنت لار وی او داعراف زیات تحقیق دسوره اعراف په پنځمه رکوع کښې تیرشوې دې غرض هرکله چه ددوئ اومسلمانانو په مینځ کښې دیوال حائل شی او دوئ په خپله په تیاره کښې پاتې شی نو دغه وخت به ﴿يُنَادُوْنَهُمْ اَلَمْ نَكُنْ مَّعَكُمْ﴾[دغه] منافقان [هغوئ] مسلمانانو[ته آواز وکړی چه آیا] په دنیاکښې [مونږتاسوسره نه وو] یعنی په عملونواوطاعتونو کښې به مونږ تاسوسره شریك وونون هم ملګرتیا پکارده ﴿قَالُوْا بَلٰى وَلٰكِنَّكُمْ فَتَنْتُمْ اَنْفُسَكُمْ﴾[هغوئ] مسلمانان [به ووائی چه] هو [وئ خولیکن] دغسې کیدل څه په کار نه راځی ځکه چه محض په ظاهرکښې مونږ سره وئ او باطنی حالت ستاسوداوو چه [تاسوخپل ځان لره په ګمراهئ کښې نښلولې وو او] هغه ګمراهی داوه چه تاسودپیغمبرصلی الله علیه وسلم اومسلمانانوسره دښمنی لرله او په هغوئ دحادثوواقع کیدو﴿وَتَرَبَّصْتُمْ وَارْتَبْتُمْ﴾[تاسومنتظروئ] او خواهشمندوئ [او] داسلام په حقوالی کښې [تاسوشك کولو﴿وَغَرَّتْكُمُ الْاَمَانِيُّ﴾ اوتاسولره ستاسوبې هوده ارزوګانوپه دوکه کښې غورخولی وئ﴿حَتّٰى جَآءَ اَمْرُ اللّٰهِ﴾ تردې چه په تاسودالله تعالی حکم راغې] مراددبې هوده ارزوګانونه دادې چه اسلام به ختم شی او داچه زمونږ مذهب حق دې او دنجات موجب دې اومراددالله تعالی د حکم نه مرګ دې یعنی ټول عمر په دغه کفریاتوباندې اصرارکوونکی پاتې

شوئ توبه موهم ونه کړه ﴿وَغَرَّكُم بِاللَّهِ الْغَرُورُ﴾ [او تاسولره دوکه کوونکی] یعني شیطان [دالله تعالی باره کښې په دوکه کښې غورخولي وئ] هغه داسې چه الله تعالی به په مونږ مؤاخذه نه کوی ددې مجموعي حاصل دادې چه ددې کفریاتوپه وجه ستاسو ظاهری ملګرتیادنجات دپاره کافي نه ده ﴿فَالْيَوْمَ لَا يُؤْخَذُ مِنكُمْ فِدْيَةٌ﴾[غرض نن به نه تاسونه څه معاوضه واخستې شی ﴿وَلَا مِنَ الَّذِينَ كَفَرُوا﴾ اونه دکافرانونه] یعني اول خود معاوضې ورکولودپاره تاسوسره څه شته نه لیکن بالفرض که وې هم بیابه هم نه قبلیدل ځکه چه دا دارالجزاء ده اودارالعمل نه دې او ﴿مَأْوَاكُمُ النَّارُ هِيَ مَوْلَاكُمْ﴾[ستاسودټولوځائ دوزخ دې هغه ستاسو] دهمیشه دپاره [ملګرې دې ﴿وَبِئْسَ الْمَصِيرُ﴾ او هغه] واقعي ناکاره ځائ دې] داقول فالیوم الخ یا خوبه دمؤمنانووی یادالله تعالی ددې ټول بیان نه داثابته شوه چه په کوم ایمان کښې دضروری طاعاتو کمې وی هغه ګویاکالعدم نه دې لیکن کامل هم نه دې په دې وجه په راتلونکوآیتونو کښې ددې دتکمیل دپاره په صورت دعتاب مسلمانانوته حکم فرمائی چه ﴿أَلَمْ يَأْنِ لِلَّذِينَ آمَنُوا﴾[آیادایماندارو] نه چه کوم خلق په ضروری طاعاتوکښې کمې کوی لکه دګناهګارومسلمانانوحالت چه وی نو آیاددوئ [دپاره] اوس هم [ددې خبرې وخت نه دې راغلې ﴿أَن تَخْشَعَ قُلُوبُهُمْ لِذِكْرِ اللَّهِ﴾چه ددوئ زړه دالله تعالی دنصیحت ﴿وَمَا نَزَلَ مِنَ الْحَقِّ﴾ اوکوم چه حق دین] دالله تعالی دطرف نه [نازل شوې دې] چه دغه نصیحت خداوندی دې [ددې په وړاندې‌ښکته شی] یعني په زړه سره دضروری طاعتونودپابندئ او دګناهونو دپریښودلو قصد  اوکړی اودې ته خشوع په معنی دسکون ځکه ووئیلې شو چه دزړه په مطلوبه حالت باندې‌زیاتې کیدل سکون دې او معصیت طرف ته تلل مشابه دحرکت دی [او] په ذکرشوې معنی باندې‌په خشوع کښې په وخت اړولوسره چه مطلب يې په توبه کښې وخت اړول دی دغه ﴿وَلَا يَكُونُوا كَالَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ مِن قَبْلُ﴾ [دهغوخلقو په شان نه شی کوموته چه ددوئ نه وړاندې] اسمانی [کتاب ملاؤ شوې وو] یعني یهود او نصارا چه دوئ هم دخپلو کتابونو دمقتضی نه خلاف په شهواتواونافرمانیوکښې مشغولیدل شروع کړل [بیا] په دغه حالت کښې ﴿فَطَالَ عَلَيْهِمُ الْأَمَدُ﴾[په هغویوه اوږده زمانه تیره شوه] اوتوبه کارنه شول ﴿فَقَسَتْ قُلُوبُهُمْ﴾[بیا] ددې توبې په نه کولو سره [دهغو زړونه] ښه [سخت شول] چه اضطراری ندامت اوملامت ورته هم نه کیدو [او] نوبت يې دې ته ورسیدو چه ددغې سخت دلئ په وجه ﴿وَكَثِيرٌ مِّنْهُمْ فَاسِقُونَ﴾ ډیرخلق دهغو] نه [کافردی] ځکه چه په معاصی باندې اصرارکول ښه يې ګڼړل اودبرحق نبی سره دبښمنی اکثرسبب دکفرجوړیږی مطلب دادې چه مسلمانانو لره زرتوبه کول پکار دی ځکه چه ځنې وخت بیادتوبې توفیق پاتې نه شی اوځنې وخت کفرته نوبت رسی وړاندې فرمائی چه که ستاسوخلقوپه زړونو کښې دګناهونو څه خرابی کمه یازیاته پیداشوې وی نو داددې وهم په بناباندې‌دتوبې نه مانع مه ګڼړئ چه اوس به په توبې سره څه اصلاح وشی بلکه ﴿اعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ يُحْيِي الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا﴾[په دې خبره پوهه شئ چه الله تعالی] دداسې شان مالك دې چه هغه [مزکې لره ددې داوچیدونه پس ژوندئ کوی] پس دغه شان په توبه کولوباندې په خپل رحمت سره مړ زړه لره ژوندې اوتیك کوی پس مایوسه کیدل نه دی پکار ځکه چه ﴿قَدْ بَيَّنَّا لَكُمُ الْآيَاتِ﴾[مونږ تاسوته] ددې [مثالونه بیان کړی دی ﴿لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ﴾ چه تاسوپوهه شئ] دمثال یانمونې نه مرادلکه چه په مدارك کښې دی دمزکې ژوندی کول دی اوجمع راوړل يې شایدچه په وجه دتکرار دوقوع وی وړاندې دبره ذکر شوی خرڅ

کولو فضیلت ارشاددې یعنی ﴿إِنَّ الْمُصَّدِّقِينَ وَالْمُصَّدِّقَٰتِ﴾[بیشکه صدقه ورکوونکی سړی او صدقه ورکوونکې ښځې اودا] صدقه ورکوونکی ﴿وَأَقْرَضُوا اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا﴾[الله تعالی لره په خلوص سره قرض ورکوی هغه] دغه [صدقه] په اعتبارد ثواب [به﴿يُضَٰعَفُ لَهُمْ﴾ دهغوئ دپاره زیاتولې شی او] ددوچندئ سره ﴿وَلَهُمْ أَجْرٌ كَرِيمٌ﴾[هغوئ دپاره غوره اجر] تجویزشوې [دې] تفسیرد دې اوس تیرشوې دې [او] وړاندې دبره ذکرشوی ایمان فضیلت ارشاددې چه ﴿وَالَّذِينَ آمَنُوا بِاللَّهِ وَرُسُلِهِ﴾[کوم خلق چه په الله تعالی او دهغه په رسولانو باندې] پوره [ایمان لری] یعنی په کومو کښې چه ایمان او تصدیق اوپاندی دطاعاتو په مکمله درجه کښې وی ﴿أُولَٰئِكَ هُمُ الصِّدِّيقُونَ ۖ وَالشُّهَدَاءُ عِنْدَ رَبِّهِمْ﴾[داسې خلق دالله تعالی په نزد صدیقان او شهیدان دی] چه بیان ئې دسوره نسآء په نهمه رکوع کښې تیرشوې دې یعنی دا مرتبې دکمال او دکامل ایمان په برکت نصیب کیږی او دشهید حاصل دالله تعالی په لاره کښې خپل نفس خرڅ کول دی یعنی چه خپل ځان دالله تعالی په لاره کښې پیش کړی اګرچه قتل نه شی ځکه چه دغه داختیارنه بهرده ﴿لَهُمْ أَجْرُهُمْ وَنُورُهُمْ﴾[ددغودپاره] په جنت کښې [دهغوئ] خاص [اجراو] په صراط باندې[دهغوئ] خاص [نوروی او] وړاندې دکفارو ذکرفرمائی چه ﴿وَالَّذِينَ كَفَرُوا وَكَذَّبُوا بِآيَاتِنَا﴾[کوم خلق کافران شول او زمونږ آیتونوئ دروغژن کړل﴿أُولَٰئِكَ أَصْحَابُ الْجَحِيمِ﴾ هم دغه خلق دوزخیان دی].

## معارف ومسائل

[﴿يَوْمَ تَرَى الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ يَسْعَىٰ نُورُهُمْ بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَبِأَيْمَانِهِمْ﴾] [یعنی هغه ورځ د یادولو قابله ده چې په کومه ورځ به مؤمنان نارینه او مؤمنانې زنانه داسې وینې چې د هغوئ نور به دهغوئ نه مخکښې مخکښې او ښی او ګس طرفته وی]

دغې ورځې نه مراد د قیامت ورځ ده ، د نور ورکولو دا معامله به پل صراط باندې د روانیدو نه څه وخت وړاندې راپیښیږی ، ددې تفصیل په یو حدیث پاک کښې راغلې دې چې ابی امامه باهلی نه روایت دې ، ابن کثیر رحمه الله دې لره په حوالـه د ابن ابی حاتم رحمه الله نقل کړې دې ، دا حدیث پاک ډیر اوږد دې ، دې کښې دا بیان دې چې ابو امامه رضی الله عنه د دمشق ښار په یو جنازه کښې شریک شو ، چې فارغ شو نو خلقو ته ئې دمرګ او آخرت وردیادولو دپاره دمرګ قبر بیا د حشر څه حالات بیان کړل دهغې د څو جملو ترجمه داده :

بیا به تاسو میدان حشر ته منتقل کولې شئ ، په هغې کښې به مختلفې مرحلې او د اودریدود ځائې وی یو ځائې به په کښې داسې راشی چې د الله ﷻ په حکم به ځینې څیرې سپینې او روښانه کړې شی او ځینې څیرې به تورې کړې شی ، بیا به یوه موقعه داسې راشی چې په میدان حشر کښې به راجمع کړې شوؤ خلقو ټولو باندې یوه سخته تیاره راشی ، هر څوک به هیڅ نه وینی ، هغې نه پس به نور اوویشلې شی ، هر مؤمن ته به نور ورکړې شی . هم د [۱]ابن ابی حاتم رحمه الله په دویم روایت کښې د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه منقول دی چې په مؤمنانو به دغه نور د هر یو د نیک عمل مطابق تقسیمولې شی د چا نور به لکه د غر وی ، د چا به د کهجورې ونې هومره وی ، دچا به د انسان دقدر برابر وی ، دټولو نه کم نور به دهغه چا وی

[۱] تفسیر ابن ابي حاتم تحت هذه الآية رقم الحديث:[۱۸۸۲۱]

چې صرف په ګوته کښې به ئې نور وي . هغه به هم کله روښانه شي او کله به مړ شي [ابن کثير] ([1]).

بيا ابو امامه باهلي رضي الله عنه اوفرمائيل چې منافقينو او کافرانو ته به هيڅ ورنکړې شي او وې فرمائيل چې دې واقعې لره قرآن عظيم الشان د يو مثال په عنوان سره په دې آيت مبارک کښې بيان کړې دې :

[اَوْ كَظُلُمٰتٍ فِىْ بَحْرٍ لُّجِّىٍّ يَّغْشٰهُ مَوْجٌ مِّنْ فَوْقِهٖ مَوْجٌ مِّنْ فَوْقِهٖ سَحَابٌ ؕ ظُلُمٰتٌۢ بَعْضُهَا فَوْقَ بَعْضٍ ؕ اِذَاۤ اَخْرَجَ يَدَهٗ لَمْ يَكَدْ يَرٰىهَا ؕ وَمَنْ لَّمْ يَجْعَلِ اللّٰهُ لَهٗ نُوْرًا فَمَا لَهٗ مِنْ نُّوْرٍ ۝]

او وې فرمائيل چې مؤمنانو ته ورکړې شوې نور به د دنيا د نور پشان نه وي بلکه ددې مثال به دنظر وي چې هم هغه څوک به ترې کتل کولې شي چې کوم په سترګو او په نظر روغ وي بل روند ته ئې هيڅ فائده نه وي ، په دې شان به دغې نور نه يو کافر اوفاسق ته څه فائده نه شي رسيدلې [ابن کثير] ([2]).

د امامه باهلي رضي الله عنه ددې حديث پاک نه معلوم شو چې کله به په ميدان حشر کښې د سختې تيرې نه پس نور په مؤمنانو تقسيم شي او کافر ، منافق ته به هيڅ نور ورنکړې شي .

مګر طبراني د ابن عباس رضي الله عنهما نه دا روايت نقل کړې دې چې رسول کريم ﷺ اوفرمائيل چې :

پل صراط سره به الله ﷻ هر مؤمن ته نور ورکړي ، او هر منافق ته هم خو کله چې دوئ پل صراط ته اورسيږي نو د منافقانو نور به ترې واخستې شي [ابن کثير] ([3]).

دې نه معلومه شوه چې منافقانو ته به هم په اول کښې نور ورکړې شي خو پل صراط ته په رسيدو به ترې واپس واخستې شي . په هر حال يا ورته د اول نه نور نه وي ورکړې شي يا واپس اخستې شوی وي ، دغه وخت به هغوئ د مؤمنانو نه خواست کوي چې لږ شان ايسار شئ چې مونږ هم ستاسو د نور نه فائده حاصله کړو ، ولې چې په دنيا کښې مونږ هم درسره په مونځ ، حج ، زکوٰة ا وجهاد ټولو څيزونو کښې شريک پاتې شوي وو . هم دغه خواست به ئې اونه منلې شي چې بيان ئې راروان دې او د منافقانو د حال سره مناسب خو دا دی چې ړومبې دوئ ته هم لکه د مسلمانانو پشان نور ورکړې شي او بيا ترې واخستې شي ، ولې چې الله ﷻ اورسول کريم ﷺ سره د دهوکې کولو سزا هم دغه شان مناسب ده ، لکه قرآن عظيم الشان فرمائی چې :

[يُخٰدِعُوْنَ اللّٰهَ وَهُوَ خَادِعُهُمْ] [منافقان الله ﷻ ته دتير ورکولو کوشش کوي او الله ﷻ دوئ ته تير ورکوونکې دې]. امام بغوي رحمه الله فرمائيلی دی چې دې تير ورکولو مطلب دادې چې ړومبې به ورته نور ورکړې شي مګر خالص په هغه وخت به ترې واخستې شي کوم وخت چې ورته ضرورت وي([4]) ، په دغې وخت به مؤمنانو سره هم انديښنه پيدا شي څکه به د الله ﷻ نه سوال اوکړي چې زمونږ نور تر آخره پورې پوره اولرې لکه قرآن عظيم الشان هم فرمائی چې :

---

[1]) تفسير ابن كثير [ج: ٨ ص:١٥] ومصنف ابن ابي شيبة كلام ابن مسعود ﷺ رقم الحديث :[٣٤٥٥٨]
[2]) تفسير ابن كثير [ج: ٨ ص:١٦]
[3]) تفسير ابن كثير [ج: ٨ ص:١٧]
[4]) تفسير البغوي تحت هذه الآية [ج: ٨ ص:٣٥]

[يَوْمَ لَا يُخْزِي اللَّهُ النَّبِيَّ وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ ۖ نُورُهُمْ يَسْعَىٰ بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَبِأَيْمَانِهِمْ يَقُولُونَ رَبَّنَا أَتْمِمْ لَنَا نُورَنَا] [1] [مظهري] [2]
صحيح مسلم ، احمد ، او دار قطنی کښې د جابر بن عبد الله رضي الله عنه په مرفوع حديث کښې هم راغلی دی چې په اول کښې به مؤمن او منافق دواړو ته نور ورکړې شي خو پل صراط ته په رسيدو به منافقانو نه نور واخستې شي [3] . او په تفسير مظهری کښې ددې دواړو ترمينځه تطبيق [4] راوستل داسې کړې شوی دی چې د رسول کريم ﷺ د زمانې مبارکې منافقان هر کله چې په ذريعه د وحی کافران ثابت کلی شوی وو ځکه به هغوی ته هم په اول کښې لکه د کافرانو نور نشی ورکولی او په اول سر کښې نور ورکول او بيا ترې اخستل به هغې کافرانو څخه کيږی کوم چې د رسول الله ﷺ د زمانې څخه پس وی چې وحی به بنده شوی وی او بيا به ورته منافق نشی وئيل کيدې ځکه چې بغير د الله څخه د چا د زړه حال بل چاته معلوميدې نشی دغه شان منافقان هغه دی چې په قرآن عظيم الشان او حديث کښې په بدلون راوستو سره دهغې معنی ورانوی او خپل باطل مطلب ترې حاصلوی.نعوذبالله منه

**ميدان حشر کښې د نور او تيرې اسباب:** ① دلته په تفسير مظهری کښې د قرآن پاک او حديث نه د محشر د تيرې او نور اسباب هم بيان کړې شوی دی. چې د علمی تحقيقاتو نه زيات اهم دی. څه هغه نقل کوم ، [لَعَلَّ اللّٰهَ يَرْزُقُنَا نُوْرًا] جماتونو ته
ابو داؤد او ترمذی د بريده رضي الله عنه او ابن ما جه د انس رضي الله عنه نه دا مرفوع حديث روايت کړې دې ، چې رسول کريم ﷺ اوفرمائيل چې : هغې خلقو ته زيرې واوروه چې په تيرو شپو کښې جماتونو ته ځی د قيامت په ورځ د مکمل نور . اوهم ددې مضمون روايات د سهل بن سعد رضي الله عنه ، زيد بن حارثه رضي الله عنه ، ابن عباس رضي الله عنه ، ابن عمر رضي الله عنه ، حارثه بن وهب رضي الله عنه ، ابی امامه رضي الله عنه ، ابو الدرداء رضي الله عنه ، ابوسعيد رضي الله عنه ، ابوموسی رضي الله عنه ، ابوهريره رضي الله عنه ، عائشه صديقه رضي الله عنها وغيره څخه منقول دی . [مظهری] [5].

② مسند احمد او طبرانی کښې د ابن عمر رضي الله عنه نه روايت دې چې رسول کريم ﷺ اوفرمائيل چې : [من حافظ على الصلوات كانت له نوراً وبرهاناً ونجاة يوم القيامة ومن لم يحافظ عليها لم يكن له نوراً ولا برهاناً ولا نجاة وكان يوم القيامة مع قارون وهامان وفرعون.]
[څوک چې د پنځو مونځونو پوره پابندی کوی ، هغه دپاره دا مونځ د قيامت په ورځ نور ، برهان او نجات جوړيږی او څوک ئې چې پوره پابندی نه کوی نو نه به دا هغه دپاره برهان وی،

[1] ترجمه:- په کومه ورځ چې به الله تعالى نبی ﷺ او چې کوم مسلمانان ده سره دی هغه به رسوا نه کړی ، دهغوئ نور به د هغې مخې ته او ښی طرفته منډې وهی ، داسې دعا به کوی چې اې الله تعالى! اې زمونږه ربه! زمونږ دپاره دا نور تر آخره پورې ايسار کړه.
[2] تفسير المظهري[ج:۹ص:۱۹۵]
[3] صحيح مسلم كتاب الإيمان ، باب إثبات الشفاعة وإخراج الموحدين من النار [ج:۱ص:۱۰۷]و مسند احمد ،مسند جابر بن عبدالله رقم الحديث:[۱۴۷۲۱]
[4] تفسير المظهري[ج:۹ص:۱۹۶]
[5] تفسير المظهري[ج:۹ص:۱۹۲] و سنن ابوداود، كتاب الصلاة ، باب ماجاء فى المشى إلى الصلاة فى الظلم [ج:۱ص:۸۳]و جامع الترمذي ، ابواب الصلاة باب ماجاء فى فضل العشاء والفجر فى الجماعة [ج:۱ ص:۵۳] و سنن ابن ماجة، ابواب المساجد والجماعات ،باب المشى إلى الصلاة [ج:۱ ص:۵۶ ].

نه نجات او هغه به قارون ، هامان او فرعون سره وي[1].

③ طبراني كښې د ابى سعيد ﷺ نه روايت دي چې رسول كريم ﷺ اوفرمائيل چې: څوک چې سورة كهف وائي د قيامت په ورځ به هغه دپاره دومره نور وي چې د دې ځائې نه به مكې مكرمې پورې خوريږي ، اوپه بل روايت كښې راغلي دي چې څوک د جمعې په ورځ سورة كهف وائي نو دقيامت په ورځ دهغه قدمونو نه به دآسمان تر لوړوالي پورې نور خليږي[2].

④ امام احمد د ابى هريره ﷺ نه روايت كړې دې چې رسول كريم ﷺ اوفرمائيل چې: څوک د قرآن عظيم الشان يو آيت مبارک هم تلاوت كوي هغه آيت به ده دپاره د قيامت په ورځ نور وي.

⑤ ديلمي د ابى هريره ﷺ نه مرفوعا روايت كړې دې چې په ما باندې درود ليږل به په پل صراط باندې د نور سبب جوړيږي[3].

⑥ طبراني د عباده بن صامت ﷺ نه دا حديث پاک روايت كړې دې چې رسول كريم ﷺ د حج احكام بيانولو سره اوفرمائيل د حج او عمرې د احرام نه په فارغيدو سره چې سر خرئيلې شي نو په هغې كوم ويښته چې په زمكه پريوزي هغه به د قيامت په ورځ نور وي[4].

⑦ مسند بزار كښې د ابن مسعود ﷺ نه مرفوعا روايت دې چې په منى كښې دجمرو ويشتل به د قيامت په ورځ نور وي[5].

⑧ طبراني په جيد سند سره د ابى هريره ﷺ نه مرفوعا روايت كړې دې چې د چا ويښته د اسلام په حالت كښې سپين شي هغه به د هغه دپاره دقيامت په ورځ نور وي[6].

⑨ بزار په جيد سند سره د ابى هريره ﷺ نه مرفوعا روايت كړې دې چې څوک د الله ﷻ د لارې په جهاد كښې يو غشې هم اولى هغه دپاره به د قيامت په ورځ د نور وي[7].

⑩ بيهقي په شعب الايمان كښې په منقطع سند سره د ابن عمر ﷺ نه مرفوعا روايت كړې دې چې په بازار كښې د الله ﷻ ذكر كوونكي ته به دهغه د هر ويښته په بدله كښې د قيامت په ورځ يو نور وركولې شي[8].

⑪ طبراني د ابى هريره ﷺ نه مرفوعا نقل كړې دي چې څوک د يو مسلمان مصيبت او تكليف لرې كړي نو الله ﷻ به هغه دپاره په پل صراط باندې د نور دوه شعبې جوړې كړې چې په هغې سره به يو جهان روښانه شي، دهغې شمير د الله ﷻ نه سوا بل څوک نشي پيژندې[9].

---

[1] مسند احمد ، مسندعبدالله بن عمرو ﷺ رقم الحديث:[٦٥٧٦] و صحيح ابن حبان رقم الحديث:[١٤٦٧]
[2] مسند احمد ،مسند ابى هريرة ﷺرقم الحديث:[٨٤٧٥]
[3] الفردوس بما ثور الخطاب للديلمي رقم الحديث:[٣٨١٤]
[4] المعجم الأوسط للطبراني رقم الحديث:[ ٢٣٢٠]
[5] مسند البزار بحواله تفسير المظهري[ج:٩ص:١٩٤]
[6] جامع الترمذي ، ابواب الجهاد باب فضل من شاب شيبة فى سبيل الله [ج:٢ ص:٢٩٢]
[7] مسند البزار رقم الحديث:[ ٩٣١٢]
[8] شعب الإيمان للبيهقي رقم الحديث[٥٦٢]
[9] المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث:[٨٣٨]

④ بخاري او مسلم د ابن عمر رضي الله عنه او مسلم د جابر رضي الله عنه او حاكم د ابي هريره رضي الله عنه او ابن عمر رضي الله عنه نه او طبراني د ابن زياد نه روايت كړې دى چې دې تولو بيان كړل چې رسول كريم ﷺ اوفرمائيل چې:

[اياكم والظلم فانه هو الظلمات يوم القيامة] [تاسو د ظلم نه ډير ځان ساتئ ولې چې هم ظلم به د قيامت په ورځ تيرې وى] [1] ، نعوذ بالله من الظلمات ونسأله النور التام يوم القيامة

[يَوْمَ يَقُولُ الْمُنٰفِقُوْنَ وَالْمُنٰفِقٰتُ لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوا انْظُرُوْنَا نَقْتَبِسْ مِنْ نُّوْرِكُمْ] يعنى [په دغه ورځ چې كله منافقان نارينه او زنانه مؤمنانو ته وائى چې لږ شان زمونږ انتظار اوكړئى چې مونږ هم ستاسو د نور نه فائده پورته كړو]

[قِيْلَ ارْجِعُوْا وَرَآءَكُمْ فَالْتَمِسُوْا نُوْرًا] [هغوئ ته بهٔ اوويلې شى چې مخ په شا اوګرځئ ددغې د ويشلو په ځائې كښې ئې تلاش كړئى] دا جواب به يا مؤمنان وركړى يا فرښتې ، لكه څنګه چې ابن عباس رضي الله عنه او قتاده رحمه الله نه دا دوه اقواله نقل شوى دى .

[فَضُرِبَ بَيْنَهُمْ بِسُوْرٍ لَّهٗ بَابٌ ؕ بَاطِنُهٗ فِيْهِ الرَّحْمَةُ وَظَاهِرُهٗ مِنْ قِبَلِهِ الْعَذَابُ] يعنى كله بهٔ دمؤمنانو يا فرښتو جواب واورى منافقان به هغه ځائې ته واپس لاړ شى چرته چې نور ويشلې شوى وو ، هلته به هيڅ بيا نه مومى ، بيا به مؤمنانو طرفته راشى هلته به مؤمنانو ته راؤ نه رسيدې شى بلكه ددوئ او د مؤمنانو تر مينځه په يو ديوال بنديز جوړ كړې شى چې دهغې نه اخوا بهٔ مؤمنان وى چرته به چې رحمت وى او بل طرفته به ئې منافقان وى چرته به چې عذاب وى .

روح المعانى كښې د ابن زيد قول نقل كړې شوې دې چې دغه ديوال به اعراف وى كوم به چې د مؤمنانو او منافقانو ترمينځه بنديز جوړ كړې شى [2] ، او ځينو مفسرينو څه بل ديوال بنديز ګرځولې دې ، په ديوال كښې به چې كومه دروازه ايښودلې شى چې د مؤمنانو او كافرانو تر مينځه د خبرو اترو دپاره به پريښودې شوې وى . يا به د مؤمنانو د ورتلوتو نه پس هغه بنده كړې شى .

**فائده** :: ددې نور په معامله كښې چرته د كافرانو ذكر رانغلو څكه چې دوئ ته د نور وركولو څه احتمال نه شو كيدې . دمنافقانو د نور باره كښې دوه روايتونه راغلل چې داول نه به دوئ ته نور نه ملاويږى . يا به وركولې شى خو پل صراط ته په رسيدو بهٔ ترې ختم كړې شى . او د مؤمنانو او ددوئ په مينځ كښې به يو ديوال حائل كړې شى . ددې مجموعې څخه معلوم شو چې د پل صراط په ذريعه جهنم نه تيريدل يا پورې وتل به صرف مؤمنانو دپاره وى .

كافران او مشركانو به په پل صراط باندې نشى ختلې . هغوئ به د جهنم د دروازو په لاره جهنم كښې اچولې شى . او مؤمنان به پل صراط باندې ورتيريږى ، بيا ګناهګار مؤمنان چې دهغوئ دپاره دهغوئ د عملونو په وجه به په جهنم كښې څو ورځې تيرول وى هغوئ به ددې پل نه جهنم‌ته غوزار شى . باقى مؤمنان به صحيح سالم په آسانه جنت ته ورداخل شى دا خبره ښكاره شاه عبدالقادر دهلوى رحمه الله كړې ده او تائيد ئې دلته درمنثور هم كړې دې ، والله اعلم

[1] صحيح البخاري ابواب المظالم ، و القصاص ، باب الظلم ظلمات يوم القيامة [ج:۱ص:۳۳۱]

[2] تفسير روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۲۰ ص:۳۲۱]

[أَلَمْ يَأْنِ لِلَّذِينَ آمَنُوا أَن تَخْشَعَ قُلُوبُهُمْ لِذِكْرِ اللَّهِ وَمَا نَزَلَ مِنَ الْحَقِّ] يعني آيا او س هم وخت نه دی راغلی دايمان خاوندانو دپاره چې د دوئ زړونه د الله ﷻ ذکر ته ټيټ او نرم شي او دې قرآن عظيم الشان دپاره چې په دوئ نازل کړې شوې دی!

دخشوع قلب نه مراد زړه نرميدل، وعظ او نصيحت قبلول او دهغې تابعداري کول دي [ابن کثير] (١).

قرآن عظيم الشان دپاره خشوع داده چې ددې د احکامو اوامرو او نواهي دمکمل تابعدارئ دپاره تيار شي او په دې باندې په عمل کولو کښې څه سستئ او کمزورئ ته لار ورنکړی. [روح المعاني] (٢).

دا زورنه او خبرداري مؤمنانو ته دی، د عبدالله بن عباس ﷠ نه روايت دی چې الله ﷻ د ځينې مؤمنانو په زړونو کښې د عمل په اعتبار سره څه سستي معلومه کړه په دې باندې دا آيت مبارک نازل شو [ابن کثير] (٣).

امام اعمش ﷫ اوفرمائيل چې مديني منورې ته د رسيدو نه پس کله چې صحابه کرامو ﷡ ته د ژوند څه آسانئ او آرام ملاؤ شو نو په ځينو حضراتو کښې چې په عمل کښې د کوشش عادت وو په هغې کښې څه کمې پيدا شو، په دې باندې دا آيت مبارک نازل شو [روح المعاني] (٤).

د ابن عباس ﷠ په بيان شوی روايت کښې دا هم دی چې دا آيت مبارک د زورنې د قرآن عظيم الشان د نازليدو نه ديارلس کاله پس نازل شو. [هغوئ ﷠ نه د ابن ابی حاتم ﷫ روايت کړو] (٥) او په صحيح مسلم کښې د ابن عباس ﷠ روايت دی چې زمونږ د اسلام راوړو نه څلور کاله پس ددې آيت مبارک په ذريعه په مونږ باندې زورنه او خبرداري نازل کړې شو (٦)، والله اعلم.

بهرحال ددې زورنې او خبردارئ مطلب مؤمنانو ته د مکمل خشوع او نيک عمل ته تيار او چست اوسيدو تعليم و رکړې شوې دې، په خشوع دزړه باندې ټول نيک عملونه انحصار لري. د شداد بن اوس ﷠ روايت دی چې رسول کريم ﷺ اوفرمائيل چې د ټولو نه وړاندې کوم څيز چې د خلقو نه به پورته کولې شي هغه خشوع ده [ابن کثير] (٧).

**آيا هر مؤمن صديق او شهيد دی ؟** [وَالَّذِينَ آمَنُوا بِاللَّهِ وَرُسُلِهِ أُولَٰئِكَ هُمُ الصِّدِّيقُونَ ۖ وَالشُّهَدَاءُ] ددې نه معلوم شو چې صديق او شهيد هر مؤمن ته وئيلې شي او قتاده ﷫ او عمرو بن ميمون ددې آيت مبارک په وجه اوفرمائيل چې:

---

(١) تفسير ابن كثير تحت هذه الآية [ج: ٨ ص:١٩]
(٢) روح المعاني [ج:٢٠ ص:٣٢٧]
(٣) تفسير ابن كثير [ج: ٨ ص:٢٠]
(٤) روح المعاني [ج:٢٠ ص:٣٢٦]
(٥) تفسير ابن ابي حاتم رقم الحديث:[١٨٨٢٥] قوله تعالى: الم يان للذين امنوا.
(٦) صحيح مسلم كتاب التفسير، باب قوله تعالى: الم يان للذين امنوا. [ج:٢ص:٤٢١]
(٧) تفسير ابن كثير [ج: ٨ ص:٢٠] و جامع الترمذي ، ابواب العلم باب ما جاء في ذهاب العلم [ج:٢ ص:٩٣] و المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث:[٧٠٣٣]

هر هغه څوک چې الله ﷻ او رسول ﷺ باندې ايمان راوړي هغه صديق او شهيد دي.
ابن جرير د براء بن عازب رضي الله عنه نه روايت کړې دې چې رسول کريم ﷺ اوفرمائيل چې: [مؤمنوا امتي شهداء] [زما د امت ټول مؤمنان شهيدان دي] او ددې په دليل کښې هغوئ دغه آيت مبارک اولوستلو[1].
ابن ابي حاتم رحمه الله د ابي هريره رضي الله عنه نه روايت کړې دې چې يوه ورځ د هغوئ رضي الله عنه خواته څه صحابهٔ کرام رضي الله عنهم جمع وو، هغوئ رضي الله عنه اوفرمائيل چې:
[کلکم صديق وشهيد] [په تاسو کښې هر يو کس صديق اوشهيد دې]
خلقو تعجب سره تپوس اوکړو چې ابوهريره رضي الله عنه دا څه وائې؟ ابوهريره رضي الله عنه اوفرمائيل چې که زما په خبره مويقين نه وي نو د قرآن عظيم الشان د اآيت مبارک اولولئ:
[وَالَّذِينَ آمَنُوا بِاللَّهِ وَرُسُلِهِ أُولَٰئِكَ هُمُ الصِّدِّيقُونَ ۖ وَالشُّهَدَاءُ] [2]
ليکن د قرآن عظيم الشان د يو بل آيت مبارک نه په ښکاره دا معلوميږي چې صديق او شهيد هر مؤمن نه وي بلکه په مؤمنانو کښې د اعلى درجې خلقوته صديق او شهيد وئيلې شي. آيت دادې چې: [فَأُولَٰئِكَ مَعَ الَّذِينَ أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِم مِّنَ النَّبِيِّينَ وَالصِّدِّيقِينَ وَالشُّهَدَاءِ وَالصَّالِحِينَ] [3] ولې چې په دې آيت مبارک کښې پيغمبرانو ﷺ سره د عامو مؤمنانو درې قسمه خلق په خصوصيت سره بيان کړې شوي دي. چې صديق، شهداء او صالحين دي، او دې نه ښکاره کيږي چې ددې درې واړو په مفهوم او مصداق کښې فرق دې ګنې درې واړه به جدا جدا ذکر کول ضروري نه وو. په دې وجه څينو حضراتو اوفرمائيل چې صديق او شهداء خو په اصل کښې د مؤمنانو څينې خاص د اعلى پائې خلق دي چې لوړ صفات لري، دلته ټولو مؤمنانو ته د صديق او شهيد فرمائيلو حاصل دادې چې هر يو مؤمن هم په يو حيثيت سره د صديقينو او شهيدانو په حکم کښې وي او ددوئ په ډله کښې داخل به ګڼړلې شي.
او په روح المعانى[4] کښې دي چې مناسب دادى چې په دې آيت مبارک کښې د [الَّذِينَ آمَنُوا بِاللَّهِ] نه مراد هغه مؤمنان واخستې شي چې کامل ايمان لري، او د عبادتونو پابندي کوي ګنې هغه مؤمنان چې په شهوتونو او غفلت کښې اخته وي هغوئ ته صديقان او شهيدان نشي وئيلې.
ددې تائيد د هغه حديث پاک نه کيږي چې په کوم کښې رسول کريم ﷺ اوفرمائيل چې: [اللعان لايکونوا شهداء] [5] [څوک چې په خلقو لعنت وائي هغه به شهيدانو کښې نه شامليږي] او فاروق اعظم رضي الله عنه يو ځل خلقو ته اووئيل چې په تاسو څه شوي دي چې يو کس داسې وينئ چې دخلقو بې عزتي کوي او تاسو ئې نه منع کوئي او نه ئې څه بد ګڼړئ.

---

[1] ) تفسير الطبري تحت هذه الآية [ج:۲۳ ص:۱۹۲]
[2] ) تفسير الدرالمنثور تحت هذه الآية [ج:۹ ص:۴۲۱] وابن ابى حاتم رقم :[۱۸۸۳۱]
[3] ) ترجمه:- نوداسې کسان به هم دې حضراتو سره وي چې په هغوئ باندې الله تعالى انعام کړې دې يعنى انبياء او صديقين او شهداء او صالحين.
[4] ) تفسير روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۲۰ ص:۳۳۳]
[5] ) صحيح مسلم كتاب البر و الصلة، باب النهي عن لعن الدواب وغيرها [ج:۲ص:۳۲۳]

دغه حضراتو عرض اوکړو چې مونږ دهغه د بد زبانئ نه ويريږو هغه داسې چې که مونږ ورته څه اووايو نو هغه زمونږ په عزت هم حمله کوي.
عمر فاروق رضی اللہ عنہ اوفرمائيل چې که دا خبره وي نو تاسو خلق شهيدان نشئ کيدې ، [1]ابن کثير رحمہ اللہ چې دا روايت نقل کړونو ددې مطلب ئې دا اوخودلو چې داسې چاپلوسان به په هغې شهيدانو کښې نه شامليږي کوم چې د قيامت په ورځ د پخوانو پيغمبرانو عليهم السلام د امتونو په مقابله کښې ګواهي ورکوي [روح المعاني][2].
تفسير مظهري کښې راغلي دي چې دې آيت مبارک کښې د [الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِاللّٰهِ] څخه مراد صرف هغه کسان دي چا چې د رسول کريم ﷺ په زمانه کښې ايمان راوړو او د رسول کريم ﷺ په صحبت سره مشرف شو[3].
او په آيت مبارک کښې د [هُمُ الصِّدِّيْقُوْنَ] کلمه دحصر په دې دلالت کوي چې صديقيت صرف صحابه کرامو رضی اللہ عنہم دپاره دې ، مجدد الف ثاني رحمہ اللہ اوفرمائيل چې صحابه کرامو رضی اللہ عنہم ټول په ټوله د پيغمبرئ کمالات حاصل کړي وو ، چا چې يو ځل رسول کريم ﷺ اوليدو هغه دپيغمبرئ په کمالاتو کښې ډوب شو ، والله أعلم.

| |
|---|
| اِعْلَمُوْٓا اَنَّمَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا لَعِبٌ وَّلَهْوٌ |
| او پوهه شئ \| چې بيشکه ژوند ددنيا \| لوبې دي \| او عبث مشغولتيا ده |
| پوهه شئ چې ددنيا ژوند خوبس لوبه تماشه او[سامان د] ......... \| |
| وَّزِيْنَةٌ وَّتَفَاخُرٌۢ بَيْنَكُمْ وَتَكَاثُرٌ |
| او ظاهري ښائيست دې \| او فخر کول دي \| په منځ ستاسو کښې \| او ديو بل نه دزياتيدو کوشش دې |
| ښائست دې \| اوپخپل مينځ کښې په يو بل بانديې فخر کول دي \| .....او په مال |
| فِي الْاَمْوَالِ وَالْاَوْلَادِ ۭ كَمَثَلِ غَيْثٍ اَعْجَبَ الْكُفَّارَ |
| په مالونو کښې \| او په اولاد کښې \| لکه په مثال دباران \| چې خوشحاله کړو کروندګر لره \| |
| او په اولاد کښې خپله لوئي ښکاره کول دي \| [دا دنياوي زيب اوزينت] لکه باران دې[چې د هغې زرغونه |
| نَبَاتُهٗ ثُمَّ يَهِيْجُ فَتَرٰىهُ مُصْفَرًّا ثُمَّ يَكُوْنُ |
| بوټو دهغې \| بيا \| هغه فصل اوچيږي \| پس ته وينې هغې لره \| زيړ شوې \| بيا شي هغه |
| زميندار ته ښائسته ښکاري \| بيا اوچه شي \| نوته ئې زيړوينې \| ............... بيا هغه |
| حُطَامًا ۭ وَفِي الْاٰخِرَةِ عَذَابٌ شَدِيْدٌ ۙ وَّمَغْفِرَةٌ مِّنَ اللّٰهِ |
| بوس ذره ذره \| او په آخرت کښې \| عذاب سخت دې \| او بخښنه ده \| دطرفه دالله نه \| |
| ريزمريز شي \| او په آخرت کښې سخت عذاب هم شته \| اودالله تعالى د طرفه بخښنه |

[1]) مصنف عبدالرزاق كتاب الجماع ، باب الأغتياب والشتم رقم الحديث:[۲۰۲۶۱]
[2]) تفسير روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ۱٤ ص:۱۸۳]
[3]) تفسير المظهري[ج:۹ص:۱۹۹]

وَرِضْوَانٌ ؕ وَمَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَآ اِلَّا مَتَاعُ الْغُرُوْرِ ۞

او رضا ده | او نه دي ژوند ددنيا | مګر | سامان ددوکې دي |

اوخوشحالي هم شته | اوددنيا ژوند تش ددهوکې سامان دي |

سَابِقُوْٓا اِلٰى مَغْفِرَةٍ مِّنْ رَّبِّكُمْ وَجَنَّةٍ

په منډه منډه ديو بل نه وړاند والې اوکړئ | بخښنې ته | درب خپل نه | او هغه جنت ته

نودخپل رب بخښنې طرفته منډه کړئ | ..................اود خپل رب هغې جنت طرف ته

عَرْضُهَا كَعَرْضِ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ ۙ اُعِدَّتْ لِلَّذِيْنَ

چې پلنوالې دهغې |پشان دپلنوالې|دآسمان اودزمکې دې |چې تيارکړې شوې دې|دپاره دهغه کسانو

چې د هغې پلنوالې د آسمان ا و د زمکې په برابر دې | ..................دادهغه خلقو دپاره

اٰمَنُوْا بِاللّٰهِ وَرُسُلِهٖ ؕ ذٰلِكَ فَضْلُ اللّٰهِ يُؤْتِيْهِ

چې ايمان ئې راوړې وى | په الله | او په رسولانو دهغه باندې | دا فضل دالله دې | چې وركوى دا |

تيار كړې شوې دې | چې په الله تعالى اودهغه په رسولانو ئې ايمان راوړې دې |داد الله تعالى فضل دې

مَنْ يَّشَآءُ ؕ وَاللّٰهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيْمِ ۞

هغه چاته | چې خوښوى هغه | او الله | خاوند دفضل لوئې دې |

چې چا ته اوغواړى نو فضل پرې اوكړى |اوالله تعالى دډير لوئې فضل مالک دې|

## آسان ترجمه قرآن

ښه پوهه شئ، چه حقيقت د ژوند د دنيا بس دادې، چه دا صرف نوم دې د لوبو ټوقو، اود ظاهرى ډول او ستاسو په يو بل باندې د فخر كولو ، او په مال او اولاد كښې د يو بل نه دمخكښې كيدلو كوشش كول ددې مثال داسې دې، لكه يو باران، چه دهغې په ذريعې سره زرغون شوې شيزونه زميندارو لره خوشحالوى، بيا هغه خپل زور ښائى، بيا ته وينې هغې لره چه زيړ شوې دې، بيا هغه ذرې ذرې شى. او په آخرت كښې يوطرف ته خو سخت عذاب دې، او بل د الله تعالى د طرف نه بخښنه او رضامندى ده ، او ژوند د دنيا د دهوكې نه سوا هيڅ نه دى. ديو بل نه د مخكښې كيدو كوشش اوكړئ، اود خپل پروردګار بخښې طرف ته، او هغې جنت طرف ته، چه دهغې پلنوالې د آسمان او د زمكې د پلنوالى برابر دې، دا د هغې خلقو دپاره تيار كړې شوې دې چه په الله تعالى او دهغه په رسول باندې ئې ايمان راوړې دې، دا د الله تعالى فضل دې، هغه چه چاته اوغواړى، وركوى، او الله تعالى د لوئې فضل خاوند دې.

## خلاصه تفسير

﴿اِعْلَمُوْٓا اَنَّمَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا لَعِبٌ وَّلَهْوٌ﴾[تاسوښه پوهه شئ چه] داخرت په مقابله كښې [ددنياژوند] هركزدمشغوليدوشې نه دې خكه چه [دمحض لهولعب دى او] يوظاهرى ﴿وَّزِيْنَةٌ وَّتَفَاخُرٌۢ بَيْنَكُمْ وَتَكَاثُرٌ فِى الْاَمْوَالِ وَالْاَوْلَادِ ؕ﴾[زينت او په خپل مينځ كښې په يوبل فخركول] په قوت ښانست او دنيوى هنراوكمال كښې [او په مالونو او اولادكښې ديوبل نه ځان زيات ښودل دى] يعنى

ددنيامقصدونه دادی چه په ورکوټوالي کښې دلهو لعب غلبه وی اوپه ځوانۍ کښې دزينت او د فخر اوپه زړوالی کښې دمال دولت آل اولادزياتول اوشميرل اوداټول فانی مقصدونه دی او محض خواب اوخيال دې چه مثال يې داسې دې ﴿كَمَثَلِ غَيْثٍ﴾[لکه چه باران] وشی﴿أَعْجَبَ الْكُفَّارَ نَبَاتُهُ﴾ [چه په دې سره پيداوار] فصل ښه اوشی [زميندارېرې خوشحاليږی ﴿ثُمَّ يَهِيجُ فَتَرَاهُ مُصْفَرًّا﴾ بيادغه] فصل [اوچ شی پس هغې لره ته زيړشوې وينې ﴿ثُمَّ يَكُونُ حُطَامًا﴾ بياهغه خس خس شی] دغه شان ددنياڅو ورځې بهاردې بيازوال اوزائله کيدل داخوددنياحالت شو ﴿وَفِي الْآخِرَةِ عَذَابٌ شَدِيدٌ﴾[اواخرت] داسې دې چه په دې [کښې]دوه څيزونه دی يو خود کفارو دپاره [سخت عذاب دې او] دويم دايماندارو دپاره ﴿وَمَغْفِرَةٌ مِّنَ اللَّهِ وَرِضْوَانٌ﴾[دالله تعالی دطرف نه مغفرت اورضامندی ده] او دا دواړه باقی دی پس اخرت خوباقی دې ﴿وَمَا الْحَيَاةُ الدُّنْيَا إِلَّا مَتَاعُ الْغُرُورِ﴾[او د دنيا ژوندمحض] فانی دې لکه چه فرض که يو [ددهوکې اسباب دی] او ددې تفسير په آل عمران کښې تقريباپه اخر کښې تيرشوې دې پس هرکله چه متاع ددنيافانی او اخرت باقی دې کوم چه دايمان په دولت نصيب کيږی نو تاسولره پکار دی چه ﴿سَابِقُوا إِلَىٰ مَغْفِرَةٍ مِّن رَّبِّكُمْ﴾ [تاسودخپل پروردګار طرف ته منډې وهئ او] دارنګ ﴿وَجَنَّةٍ عَرْضُهَا كَعَرْضِ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ﴾ [داسې جنت طرف ته چه ارتوالې يې داسمان اومزکې دارتوالی هومره دې] يعنی ددې نه کم خونه دې دکموالی نفی ده او دزياتوالی نفی نشته او﴿أُعِدَّتْ لِلَّذِينَ آمَنُوا بِاللَّهِ وَرُسُلِهِ﴾ [هغه دهغو خلقو دپاره تيارکړې شوې دې کوم چه په الله تعالی او دهغه په رسولانو ايمان لری] ﴿ذَٰلِكَ فَضْلُ اللَّهِ يُؤْتِيهِ مَن يَشَاءُ﴾ او [دا] مغفرت او رضوان [دالله تعالی فضل دې هغه خپل فضل چالره چه غواړی ورکوی ﴿وَاللَّهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيمِ﴾ او الله تعالی لوئ فضل والا دې] په دې کښې اشاره ده چه په خپلوعملونو دې څوك مغرور نه شی او په خپلو عملونو دې دجنت دمستحق کيدو مدعی نه وی دامحض فضل دې چه مدارئ زمونږ په مشيت دې مګر مونږ په خپل رحمت سره ددې عملونو دکوونکوسره خپل مشيت متعلق کړو که چرې مونږ غوښتلې نو مشيت به مو ورسره نه متعلق کولو چه القدرة تتعلق بالضدين

## معارف او مسائل

په تيرو شوؤ آيتونو کښې د جنتيانو او جهنميانو دحال بيان وو چې په آخرت کښې به راپيښيږی او هميشه دپاره به وی . او د آخرت د نعمتونو د بې حصې کيدلو او په عذاب کښې د ګرفتاريدلو لوئې سبب انسان دپاه ددنيا فانی خوندونه او په دې کښې بوښتيدل او د آخرت څخه غافل کيدل دی ځکه په دې آيتونو کښې ددنيا فانی کيدل او بې اعتباره کيدل بيان شوی دی .

د انسان د عمر شروع کيدو څخه تر آخره پورې چې څه په دې دنيا کښې کيږی ، او په هغې کښې دنيا دار بوښت ، مشغوله او په هغې خوشحاليږی دهغې بيان ترتيب سره دادې چې ددنيا ژوند خلاصه څو په ترتيب سره څيزونه او څو حالات دی او : لعب بيا لهو، تفاخر د مال ، زينت، دولت په زياتوالی باندې ناز او فخر کول .

لعب هغه لوبې دی چې دهغې فائده بالکل په نظر نه وی ، لکه د ډيرو ماشومانو کړه وړه [حرکتونه] او لهو هغه لوبې دی چې اصل مقصد ئې تفريح او وخت اړول وی او ددې په ترڅ

کښې ورسره ورزش یا بله فائده هم حاصلیږي . لکه د لږو لوي هلکانو لوبې ، بال لامبو یا نخښه ویشتل وغیره ، یو حدیث پاك کښې د نخښې بازئی او لامبو تربیت حاصلولو ته ښه لوبې وئیلې شوی دی دغسې د بدن او جامې وغیره زینت مشهور دې ، هر انسان باندې دا دور رازی چې د عمر ړومبئ حصه یې په خالص لوبو کښې تیریږي ، دې څخه روستو لهو شی وروستو د خپل بدن اوجامې زینت فکر شروع شی ، چې د خپلو همزولو وغیره څخه وړاندې کیدو کوشش او پرې فخر کولو تقاضائې پیدا کیږي .

په انسان باندې په دې ترتیب سره چې څومره ادوار راځي نو چې غور اوکړې شی هغه په هر دور کښې هم په دغه حال باندې تسلی ساتي او دا د ټولو څخه ښه گڼري ، کله چې ددغه اداورو څخه بل دور ته داخل شی نو د تیر شوی دور کمزوری او بیهودگی ورته مخې ته راشي ، لکه د ماشومانو د لعب څه څیز ترې واخستې شی ، داسې گڼری لکه چې د لوئې بنده د ټول ژوند سامان ترې واخستې شی او په دې سره ډیر غمژن شی ، خو دې دور څخه چې ورتیر شی ددې حقیقت ورته معلوم شی چې کوم څیزونه مونږ په دغه وخت کښې د ژوند مقصود جوړ کړی وو هغه هیڅ نه وو.وروستو د هلکتوب په زمانه کښې یې بیا په لهو کښې مشغولیت وی ، په ځوانئ کښې د زینت او تفاخر مشغولیت یو مقصد وی ، د بوډاتوب په زمانه کښې د مال او اولاد د کثرت شغل یې وی ، د خپل مال او اولاد په کثرت او دنسل په زیات والی خوشحالیږي دهغې په شمیر کولو کښې اخته وی ، دې حالت ته په رارسیدو د ځوانئ هغه ټول حرکتونه عبث گڼري څنگه یې چې په ځوانئ کښې د هلکتوب شغلونه عبث گڼړل ، اوس د انسان آخری پنگه پړاؤ بوډا توب دې ، په دې کښې د مال پنگه لوې مقصود وی ، قرآن کریم فرمائی چې داحال هم تیریدونکي او فانی دې . قرآن کریم په دې ترتیب سره ددنیا شغلونه او مقاصد ختمیدونکی نیمگړی او بې اعتباره کیدل بیان کړل او وروستو د یوفصل په مثال سره یې واضح کړو

[كَمَثَلِ غَيْثٍ أَعْجَبَ الْكُفَّارَ نَبَاتُهُ ثُمَّ يَهِيجُ فَتَرَاهُ مُصْفَرًّا ثُمَّ يَكُونُ حُطَامًا] دغیث معنی باران ده ، دمؤمنانو په مقابله کښې د کفار لفظ معنی خو مشهوره ده ، ددې یوه بله لغوی معنی یې دکروندگر ده ، څینې حضراتو دلته ترې هم دا معنی مراد اخستې ده ، او د آیت مبارك مطلب یې دا بیان کړې دې چې څنگه باران سره قسماقسم فصل او زرغونه راټوکیږي چې تك شین شی نو کروندگر یې په کتلو سره خوشحالیږ ی ، او څینو نورو مفسرینو ترې مراد هغه کفار اخستې دی کوم چې د مؤمنانو په مقابله کښې راځي ، خو دې باندې دا اشکال راپورته کیږي چې د فصل په شینوالی او خیررازئ باندې یوازې کفار نه بلکه مؤمنان هم خوشحالیږي نو د کفارو تخصیص بیا څه مطلب لري ؟ ددې جواب مفسرینو دا ورکړې دې چې مؤمنان هم په دې خوشحالیږي خو هغوی یې دالله ﷻ رحمت فضل او مهربانی گڼري اوددې نه یې ذهن بیا برزخ او آخرت ته ورځي یعنی دوئ اصلی آسره الله ﷻ گڼري او نظر یې ټول په الله ﷻ باندې او آخرت وی په خلاف د کفارو چې ټوله آسره یې هم ددنیا دغه څیزونه وی ، برزخ ، قیامت او آخرت دوباره ژوندی کیدل وغیره بالکل نه مني ، نوځکه دلته خوشحالی صرف کافرانو دپاره منسوب کړې شی.]

وروستو ددې مثال خلاصه داده چې ددې په لیدلو سرنه اگر چې هر څوك خوشحالیږي خو کفار پرې ډیر زیات خوشحالیږي څکه د خوشحالیدو نسبت دوئ ته اوکړې شو ، دغه فصل او هر

قسم زرغونه اوچیدل شروع شي اول زيړ شي ، بيا اوچيدو څخه روستو چوره چوره شي ، هم دا مثال د انسان هم دې چې په شروع کښې تازه خوشحاله او ښکلې وي ، د ورو کتوب څخه تر ځوانۍ پورې عمر په دې شان سره تيروی خو آخر پرې بوډاب توب راشي او رو رو ئې ورسره د بدن تازګي او ښکلا ټول ختم کړي او په آخر کښې مړ او ښاؤرې شي ، ددنيا په ځائې نه ټينګيدل او ختميدل ئې چې بيان کړل بيا اصل مقصود دآخرت فکر ته ئې مخې را اړولو سره د آخرت حال بيانوی فرمائي چې:

﴿وَفِي الْآخِرَةِ عَذَابٌ شَدِيدٌ ۙ وَمَغْفِرَةٌ مِّنَ اللَّهِ وَرِضْوَانٌ ۚ﴾ يعنی په آخرت کښې به انسان د دوؤ حالتونو ځينې يو حالت ته ضرور رسيږی . يو حالت د کافرانو دې هغوئ لره سخت عذاب دې ، بل دمؤمنانو دې چې هغوئ دپاره د الله ﷻ دطرفه بخښنه او رحمت دې .

دلته دعذاب بيان ړومبې اوکړې شو ولې چې په د نيا کښې د مستۍ او غرور نتيجه هم سخت عذاب دې او د سخت عذاب په مقابله کښې دوه څيزونه ارشاد اوفرمائيل شو ، يو مغفرت او بل رضوان ، نو په دې کښې اشاره ده چې د ګناهونو او خطاګانو معاف کول يو نعمت دې چې په نتيجه کښې ئې بنده د عذاب څخه خلاص شي ، خو دلته يوازې دا نه ده بلکه دعذاب څخه په خلاصيدو سره بيا دجنت په هميشه هميشه نعمتونو سره هم سربلند کيږی چې سبب ئې رضوان يعنی د الله ﷻ ترې خوشحاليدل دی .

وريسې ددنيا حقيقت په دې مختصرو الفاظو سره بيان فرما ئی چې :﴿وَمَا الْحَيَاةُ الدُّنْيَا إِلَّا مَتَاعُ الْغُرُورِ﴾ يعنی دې ټولو خبرو ته چې انسان اوګوری او په دې ځان پوهه کړی نو دعقل او بصيرت خاوند ته به ددنيا نتيجه سوا ددې څخه بله څه ښکاره شي چې دا د دهوکې پنګه ده . اصل پنګه نه ده،چې په سخت وخت کښې پکار راشي. بيا د آخرت ثواب او عذاب او د دنيا ختميدل بيانولوسره لازمی اثر دا پکار دې چې انسان ددنيا په خوندونو کښې بوښت نه شي، د آخرت د نعمتونو فکر کوی ، ددې بيان په را تلونکې آيتونو مبارکو کښې داسې راغلې دې .

﴿سَابِقُوا إِلَىٰ مَغْفِرَةٍ مِّن رَّبِّكُمْ وَجَنَّةٍ عَرْضُهَا كَعَرْضِ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ﴾ د وړاندې کولو څخه دا مراد هم کيدې شي چې د عمر او روغتيا او قدرت څه اعتبار نشته په نيکو عملونو کښې سستی او آخر ديخوا مه کوئی ، هسې نه چه بيا درته ناروغی يا عذر پيش شي ، او تاسو ددې کار جوګه پرې نږدی ، يا مرګ درباندې رانشی ، نو دوړاندې والی حاصل دادې چې دعاجزۍ ، بې وسۍ، کمزورۍ اومرګ څخه وړاندې والې کوئ ، ددې څخه مخکښې د نيک عمل ذخيره اوکړئی چې جنت ته د رسيدو ذريعه شي .

او د وړاندې والی معنی داهم کيدې شي چې په نيکو عملونو کښې دنورو څخه د وړاندې کيدو کوشش کوئ لکه چې علی رضي الله عنه پخپلو نصيحتونو کښې اوفرمائيل چې تاسو مسجد ته د ټولو څخه اول تلونکی او دټولو څخه روستو راوتونکی جوړ شئ .

عبدالله بن مسعود رضي الله عنه اوفرمائيل چې : د جهاد ړومبو صفونو کښې د شامليدو کوشش کوئی. انس رضي الله عنه اوفرمائيل چې د مونځ په ړومبی تکبير کښې امام سره د يو ځائې کيدو کوشش کوئی .[روح][1]

---

[1] تفسير روح المعاني [ج: ۲۰ ص: ۳۳۶ ]

د جنت په باره کښې ئې داسې اوفرمائيل چې ددې عرض به د آسمان او زمکې برابر وی په سورۂ آل عمران کښې هم ددې مضمون آيت مبارك راغلې دې ، هلته سماوات جمع راغلې ده. دې ځخه معلوميږي چې آسمان ځخه مراد اووۀ آسمانونه دی ، نو معنی به ئې دا شی چې د اووۀ آسمانونو او زمکې د لوئيوالی هومره د جنت پلنوالې دې يعنی چې اووۀ واړه آسمانونه اوزمکه چې يو ځائې شی د هغې هومره پلنوالې بۀ د جنت وی ، اودا ښکاره خبره ده چې د هر څيز اوږدوالې د هغې دپلنوالی ځخه زيات وی په دې بنا بۀ جنت زيات لوئې وی ، کله عرض د مطلق لوئيوالی په معنی کښې استعماليږی . په دواړو صورتونو کښې ترې دجنت عظيم الشان لوئيوالې معلوميږی .

﴿ذٰلِكَ فَضْلُ اللّٰهِ يُؤْتِيْهِ مَنْ يَّشَآءُ ۚ وَاللّٰهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيْمِ﴾ دې ځخه ړومبی آيت مبارك کښې جنت او دهغې د نعمتونو دپاره د وړاندې والی اوکوشش حکم وو، دې ځخه چاته دا خيال پيدا کيدې شو چې جنت او د هغې نه ختميدونکی نعمتونه زمونږ دعمل بدله ده او زمونږ عمل دې دپاره کافی دې ، په دې آيت مبارك کښې الله ﷻ دا ارشاد اوفرمائيلو چې ستاسو عملونه د جنت د حاصلولو دپاره کافی علت نه دې چې په هغې باندې د جنت ورکيدل مرتب کول دې ګنی لازمی وی ، د انسان د ټول عمر عملونه هم دهغې نعمتونو بدله نشی کيدې چې په دنيا کښې دوئ ته ملاؤ شوی دی ، زمونږ داعملونه د جنت د نه ختميدونکو نعمتونو قيمت نشی جوړيږي دې په جنت کښې داخليدل به خالص د الله ﷻ په فضل سره او احسان سره وی لکه په صحيحينو کښې د ابی هريره رضي الله عنه مرفوع روايت کښې راغلی دی چې رسول کريم ﷺ اوفرمائيل چې په تاسو کښې هيچاته صرف دهغه په عمل خلاصې نشی ورکولې ، صحابه کرامو رضي الله عنهم اوفرمائيل چې تاسو ته به هم؟ رسول کريم ﷺ اوفرمائيل چې آؤ ، زۀ هم خپل عمل سره جنت نشم حاصلولې ،سوا ددې ځخه چې د الله ﷻ فضل او رحمت اوشی[1] .

| مَنْ | يَّشَآءُ ۭ | وَاللّٰهُ | ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيْمِ | مَآ اَصَابَ | مِنْ مُّصِيْبَةٍ |
|---|---|---|---|---|---|
| هغه چاته | چې خوښوی هغه | او الله | خاوند دفضل لوئې دې | نۀ رسيږی | يو مصيبت |
| چې چا ته اوغواړی نو فضل پرې اوکړی | | او الله تعالی ډېر لوئې فضل مالک دې | | هر مصيبت چې راځی | |

| فِي الْاَرْضِ | وَلَا فِيْٓ اَنْفُسِكُمْ | اِلَّا | فِيْ كِتٰبٍ |
|---|---|---|---|
| په زمکه کښې | اونۀ په نفسونو ستاسو کښې | مګر | هغه په کتاب کښې ليکلې دی |
| که په دنيا کښې راځی | اوکه خاص په تاسو باندې راځی | نو دا ټول په يو کتاب | |

| مِّنْ قَبْلِ | اَنْ نَّبْرَاَهَا ۭ | اِنَّ ذٰلِكَ | عَلَى اللّٰهِ | يَسِيْرٌ |
|---|---|---|---|---|
| مخکښې ددې نه | چې مونږ پيدا کوؤ هغه | بيشکه دا کار | په الله باندې | آسان دې |
| کښې ليکلې شوې دی | د هغې د پيښيدو نه وړاندې | يقينا الله تعالی ته دا کار ډير آسان دې | | |

[1] تفسير المظهري[ج:۹ص:۲۰۰ و ۲۰۱]و صحيح مسلم كتاب صفة المنافقين .... إلخ ، باب صفة القيامة باب لن يد خل احد الجنة..... إلخ [ج:۲ص:۳۷۶]

لِّكَيْلَا تَأْسَوْا عَلٰى مَا فَاتَكُمْ وَلَا تَفْرَحُوْا

دپاره ددې چې تاسو غمژن نه شئ | په هغه څه باندې | چې اوخې دلاسه ستاسو نه | او خوشحاله نشئ

[داخوځکه کوو چې] تاسو نه څه واخستې شي | په هغې باندې خفه نشئ

بِمَآ اٰتٰىكُمْ ۗ وَاللّٰهُ لَا يُحِبُّ كُلَّ مُخْتَالٍ فَخُوْرِ ۙ﴿۲۳﴾ الَّذِيْنَ

په هغې چې درکړې تاسو ته | او الله | نه خوښوی | هر متکبره | فخرکونکې | هغه غاوره خلق

او چې څه درکړې شي نو په هغې ځان ته غاوره نشئ | او الله تعالی هيڅ متکبر فخر کونکې نه خوښوی

يَبْخَلُوْنَ وَيَأْمُرُوْنَ النَّاسَ بِالْبُخْلِ ۗ وَمَنْ يَّتَوَلَّ

چې شومتيا کوی پخپله | او حکم کوی خلقو ته | په شومتيا سره | او هغه څوک چې مخ اړوی |

چې پخپله هم شومتوب کوی | او نورو خلقو ته هم دشومتوب حکم کوی | او څوک چې

فَاِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْغَنِيُّ الْحَمِيْدُ ﴿۲۴﴾

پس بيشکه الله | خاص هم هغه بې پروا دې | ستائيلې شوې دې |

ددين نه] مخ واړوی | نو الله تعالی [دهغه د تابعدارئ نه] بې پرواه او د تعريف لائق دې|

## آسان ترجمه قرآن

هيڅ يو مصيبت داسې نه دې، چه په زمکه نازليږی، يا ستاسو په نفسونو باندې راځی، مګر هغه په يو کتاب کښې د هغې وخت نه ليکلې شوې دې، چه کله مونږ هغه نفسونه لا پيدا کړې هم نه وو يقين اوکړئ، داخبره د الله تعالی دپاره ډيره آسانه ده. دې دپاره چه کوم څيز ستاسو نه لاړشی، په هغې باندې تاسو غم اونه کړئ، او کوم څيز چه الله تعالی تاسو ته درکړی، په هغې باندې تاسو غرور اونه کړئ او الله تعالی نه خوښوی هغه سړی لره چه غرور کښې مبتلاوی، او فخرکونکې وی. داهغه خلق دی چه کنجوسی کوی، او نورو خلقوته هم د کنجوسئ تلقين کوی او کوم سړې چه مخ واړوی، نو ياد اوساتئ، چه يقيناً الله تعالی چه دې، هم هغه د ټولو نه بے نيازه دې، او ستائلې شوې دې.

## خلاصه تفسير

﴿مَآ اَصَابَ مِنْ مُّصِيْبَةٍ فِي الْاَرْضِ وَلَا فِيْٓ اَنْفُسِكُمْ﴾ [يو مصيبت نه په دنيا کښې راځی اونه خاص ستاسو په نفسونو کښې ﴿اِلَّا فِيْ كِتٰبٍ مِّنْ قَبْلِ اَنْ نَّبْرَاَهَا ۭ﴾ مګر دغه] ټول [په يو کتاب کښې] يعنی په لوح محفوظ کښې [ليکلې شوی دی وړاندې ددې نه چه مونږ روحونو لره پيدا کړو] يعنی ټول مصيبتونه خارجی وی يا داخلی دغه ټول مقدردی او ﴿اِنَّ ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيْرٌ ﴿۲۲﴾﴾ [داد الله تعالی په نزد آسان کار دې] چه د واقع کيدونه ئې وړاندې اوليکلو ځکه چه هغه ته علم غيب حاصل دې او مونږ داخبره په دې وجه ښودلې ده ﴿لِّكَيْلَا تَأْسَوْا عَلٰى مَا فَاتَكُمْ﴾ [چه کوم شې تاسو ته حاصل نه شی] تندرستی يا مال يا اولاد [نو تاسو په دې باند] دومره [غم ونه کړئ] کوم چه د الله تعالی په رضا طلب کولو او د آخرت په کارونو کښې د مشغوليدو نه رکاوټ جوړشی او د طبعی تکليف څه باك نشته ﴿وَلَا تَفْرَحُوْا بِمَآ اٰتٰىكُمْ ۭ﴾ [او چه کوم شې تاسو ته درکړې شی] د هغې په نسبت هم داوګڼړئ چه الله تعالی په خپل فضل وکرم سره ددې راکول تجويز کړی وو او هغه راکړې دې [په هغې لوئی ونه کړئ] ځکه چه لوئی کول خو په هغې وی چه استحقاق ئې ذاتی وی او کله چه دبل

په مشیت اوحکم سره یوشي ملاؤشوي دي په هغې دلویۍ کولو څه حق دي [او] وراندي په دې لویۍ کولو باندي وعیددي چه ﴿وَاللّٰهُ لَا يُحِبُّ كُلَّ مُخْتَالٍ فَخُوْرِ﴾ [الله تعالی لوئی کوونکي فخرکوونکي نه خوښوی] داختیال یعنی لویۍ کولو لفظ اکثرپه اندرونی فضائلو باندي دلویۍ کولودپاره او فخراکثرپه خارجي اشیاؤ مال مرتبه وغیره باندي دلویۍ کولو دپاره مستعملیږي وراندي دبخل مذمت دي چه ﴿الَّذِيْنَ يَبْخَلُوْنَ وَيَأْمُرُوْنَ النَّاسَ بِالْبُخْلِ﴾ [څوك چه داسي وی چه ددنیا دمحبت په وجه سره [په خپله هم] دالله تعالی په نزد په پسندیده حقونوکښي دصرف کولونه [بخل کوی] اګر چه په خپلوخواهشاتو اوګناهونوکښي هرڅومره اسراف کوی [او] ددي ګناه هم مرتکب کیږی چه [نورو خلقو ته هم دبخل ښودنه کوی] دالذین الخ نه کوم چه په ترکیب کښي بدل دي دامقصود نه دي چه وعیدګونددي کارونودمجموعي سره متعلق دي ځکه چه ظاهره ده چه په هربدخصلت باندي وعیددي بلکه اشاره دي طرف ته ده چه ددنیامحبت داسي دي په کوم سره چه اکثربدخصلتونه جمع کیږی اختیال او افتخار هم او بخل هم اوداسي نور [او] داددنیا محبت کله دحق نه روګردانۍ ته رسوی چه دهغه په حق کښي دا وعیددي چه﴿وَمَنْ يَّتَوَلَّ﴾ [کوم سړي چه] دحق دین نه چه یوه فرعه يې دالله تعالی په لاره کښي خرڅ کول دی [مخ واړوی ﴿فَاِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْغَنِيُّ الْحَمِيْدُ﴾ نو الله تعالی] ته هیڅ نقصان نشته ځکه چه هغه دټولو دعبادت اومالونونه [بې نیازه دي] او په خپل ذات او صفاتوکښي کامل او [لائق دثناء دي].

## معارف او مسائل

ددنیا دوه څیزونه انسان لره د الله ﷻ د یاد اود آخرت د فکر څخه غافله کوونکی دی ، یو آرام او مزې چې په کښې اخته کیدو سره انسان الله ﷻ لره هیروی دې څخه د ځان ساتلو هدایت په تیرو شوؤ آیتونو کښې راغلې دې . بل څیز مصیبت او غم دې او دا هم کله چې په انسان راشی نو ځینې وخت انسان نا امیده اود الله ﷻ د یادو څخه غافله شی ، اوس په دې آیتونو کښې ددې بیان دې :

﴿مَآ اَصَابَ مِنْ مُّصِيْبَةٍ فِي الْاَرْضِ وَلَا فِيْٓ اَنْفُسِكُمْ اِلَّا فِيْ كِتٰبٍ مِّنْ قَبْلِ اَنْ نَّبْرَاَهَا﴾ یعنی څه مصیبت چې تاسوته په زمکه باندې په خپلو ځانونو کښې رسی ، هغه ټول مونږ په کتاب ، یعنی لوح محفوظ کښې دمخلوقاتو پیدا کولو څخه هم وړاندې لیکلی وو ، د زمکې د مصیبت څخه مراد قاطی ، زلزله ، د باغونو ، او فصلونو زیان ، په تجارت کښې تاوان ، مال ،دولت ، بربادول ، د یارانو دوستانو او خپلو رشته دارو مړۀ کیدل داټول په کښې داخل دی او د خپلو ځانونو په مصیبت کښې هر قسم مرضونه زخم او ګذارونه وغیره شامل دی .

﴿لِّكَيْلَا تَاْسَوْا عَلٰى مَا فَاتَكُمْ وَلَا تَفْرَحُوْا بِمَآ اٰتٰىكُمْ﴾ ددې آیت مبارك مطلب دادې چې په دنیا کښې هر مصیبت آرام ، خوشحالی یا غم چې انسان ته پیښیږی دا ټول الله ﷻ په لوح محفوظ کښې دانسان دپیدا کیدو څخه رومبې لیکلی دی ، ددې اطلاع تاسوته درکړې شوه چې تاسو ددنیا د خو او خرابو حالاتو زیات خیال نه لرئ ، ددې ځائې تکلیف ، مصیبت یا نقصان اونیشتوالې څه دزیات افسوس څیز دې او نه ددې ځائې آرام اومزې یا مال متاع دومره زیات دخوشحالیدو څیز دې چې په کښې اخته کیدوسره د الله ﷻ د یادو او د آخرت فکر څخه غافله شئ .

عبدالله بن مسعود رضي الله عنه او فرمائيل چې د هر انسان طبيعت په ځينې څيزونو خوشحاليږی ا و په ځينې باندې خفه کيږی خو پکار دی چې په مصيبت باندې صبر اوکړې شی او د آخرت اجر او ثواب اوګټلې شی ا و په راحت او خوشحالئ باندې شکر ادا کړې شی او په دې شان اجر او ثواب حاصل کړی ،[حاکم روايت کړو او صحيح ئې ورته اوونيل دروح څخه](١)

دې پسې آيت مبارك کښې په راحت ، آرام يا مال دولت باندې د نشې فخر کوونکو بدی بيان شوې ده فرمائی چې:

﴿وَاللّٰهُ لَا يُحِبُّ كُلَّ مُخْتَالٍ فَخُوْرٍ﴾ يعنی الله ﷻ فخر ، تکبر کوونکې نه خوښوی. دا ښکاره خبره ده چې نه ئې خوښوی نو دهغه څخه به کرکه کوی ، بد به ئې ګڼړی ، مطلب دا شو چې ددنيا په نعمتونو باندې فخر کوونکی د الله ﷻ بدی شی ، خو د دې دپاره ئې د نه خوښولو عنوان ځکه خوښ کړو چې په دې کښې اشاره اوشی چې د عقل او انجام د فکر لرونکی دا فرض پکار دی چې هغه په هر کار کښې ددې فکر کوی چې هغه د الله ﷻ په نزد خوښ دې که نا خوښه ؟ ځکه ئې دلته نا خوښی بيان کړه.

| لَقَدْ اَرْسَلْنَا | رُسُلَنَا |
|---|---|
| بيشکه اوليږل مونږه | رسولان خپل |
| امونږ خپل پيغمبران | |

| بِالْبَيِّنٰتِ | وَاَنْزَلْنَا | مَعَهُمُ الْكِتٰبَ | وَالْمِيْزَانَ |
|---|---|---|---|
| دواضحه هداياتو سره | او نازل کړو مونږه | دهغوئ سره کتاب | او تله [انصاف] |
| په ښکاره دلائلو سره ليږلی وو | اوهغوئ سره مو کتاب اوانصاف ليږلې وو | چې | |

| لِيَقُوْمَ | النَّاسُ | بِالْقِسْطِ | وَاَنْزَلْنَا | الْحَدِيْدَ | فِيْهِ |
|---|---|---|---|---|---|
| دپاره ددې چې ودريږی | خلق | په انصاف باندې | او نازله کړه مونږه | وسپنه | چې په هغې کښې |
| خلق په انصاف [او اعتدال] ولاړ پاتې شی | | ............اومونږ اوسپنه راليږلې ده | | چې په | |

| بَأْسٌ | شَدِيْدٌ | وَّمَنَافِعُ | لِلنَّاسِ | وَلِيَعْلَمَ | اللّٰهُ |
|---|---|---|---|---|---|
| زور [طاقت] دې | سخت | او فائدې دی | دپاره دخلقو | او دپاره ددې چې معلوم کړی | الله |
| کښې ډير طاقت دې | اوخلقو ته په کښې نورې ډيرې فائدې دی | او دا چې الله تعالی په ظاهری علم سره | | | |

| مَنْ يَّنْصُرُهٗ | وَرُسُلَهٗ | بِالْغَيْبِ | اِنَّ اللّٰهَ | قَوِيٌّ | عَزِيْزٌ ﴿٢٥﴾ |
|---|---|---|---|---|---|
| چې څوك امداد کوی دهغه | او درسول دهغه | بې ليدو | بيشکه الله | طاقتور دې | غالب دې |
| هغه څوك اوپيژنی | چې دهغه ددين او دهغه د رسولانو په ناديده مدد کوی | | بيشکه الله ډير طاقتور اوغالب دې | | |

(١) روح المعاني تحت هذه الآية [ج: ٢٠ ص:٢٣٩] و المستدرك للحاكم رقم الحديث:[٣٧٨٩] و شعب الإيمان للبيهقي رقم الحديث[٢٣٤]

## آسان ترجمه قرآن

حقیقت دادې چه مونږ خپل پیغمبران په ښکاره نښو سره راولیږل، او هغوی سره مو کتاب هم اولیږلو. او تله هم دې دپاره چه خلق په انصاف باندې قائم شي، او مونږ اوسپنه هم راولیږله. چه په هغې کښې جنګې طاقت هم شته، او د خلقو دپاره نورې فائدې هم او دا ددې دپاره چه الله تعالى معلوم کړي هغه څوک چه الله تعالى لره د لیدلو نه بغیر دهغه د دین او د هغه د پیغمبرانو مدد کوي، یقینًا اوساتئ، چه الله تعالى دلوئې قوت، او د لوئې اقتدار مالک دې.

## خلاصه تفسیر

﴿لَقَدْ أَرْسَلْنَا رُسُلَنَا بِالْبَيِّنَٰتِ﴾ [مونږه] ددې اصلاح آخرت دپاره [خپلو پیغمبرانو ته ښکاره احکام ورکړل ومولیږل ﴿وَأَنزَلْنَا مَعَهُمُ الْكِتَٰبَ وَالْمِيزَانَ﴾ اومونږ ددوئ سره کتاب لره او] په دې کتاب کښې خاصکر [د انصاف کولو] حکم [لره] چه تعلق ئې دحقوق العبادسره دې [نازل کړو ﴿لِيَقُومَ النَّاسُ بِالْقِسْطِ﴾ چه خلق] په حقوق الله او حقوق العباد کښې [په اعتدال باندې قائم پاتې شي] په دې کښې ټول شریعت راغې کوم چه معتدل یعنی دافراط تفریط په مینځ کښې دې ﴿وَأَنزَلْنَا الْحَدِيدَ﴾ [اومونږ اوسپنې لره پیداکړې ده ﴿فِيهِ بَأْسٌ شَدِيدٌ﴾ چه په دې کښې سخت هیبت دې] چه ددې په ذریعه دعالم انتظام وی چه دویرې نه ډیرې بې انتظامۍ بندیږی [او] ددې نه علاوه ﴿وَمَنَٰفِعُ لِلنَّاسِ﴾ [دخلقو نورې هم قسم قسم فائدې دی] چنانچه اکثردکار څیزونه د اوسپنې نه جوړیږی [او] په دې وجه مو اوسپنه پیدا کړه ﴿وَلِيَعْلَمَ اللَّهُ مَن يَنصُرُهُۥ وَرُسُلَهُۥ بِالْغَيْبِ﴾ [چه الله تعالى] په ظاهرى طور سره معلوم کړی چه بغیر] دالله تعالى [دلیدونه دهغه او دهغه د رسولانو] یعنی په دین کښې [څوک مددکوی] ځکه چه په جهاد کښې هم په کار راځی نو دا هم اخروی نفع شوه او دجهاد حکم په دې وجه نه دې چه دالله تعالى ورته حاجت دې ځکه چه ﴿إِنَّ اللَّهَ قَوِيٌّ عَزِيزٌ﴾ [الله تعالى] په خپله [قوی زبردست دې] بلکه ستاسودثواب دپاره دې.

## معارف او مسائل

**د آسمانی کتابونو او پیغمبرانو ﷺ دلیږلو اصل مقصد خلقو دپاره په عدل او انصاف قائمول دی:** ﴿لَقَدْ أَرْسَلْنَا رُسُلَنَا بِالْبَيِّنَٰتِ وَأَنزَلْنَا مَعَهُمُ الْكِتَٰبَ وَالْمِيزَانَ لِيَقُومَ النَّاسُ بِالْقِسْطِ ۖ وَأَنزَلْنَا الْحَدِيدَ فِيهِ بَأْسٌ شَدِيدٌ﴾ د لفظ بَيِّنَٰت لغوی معنی ښکاره څیزونه ده، دې څخه دا مراد هم کیدې شی چې ښکاره احکام وی، څنګه چې د تفسیرپه خلاصه کښې هم دا ترجمه اخستې شوې ده اودا هم کیدې شی چې دې څخه معجزې اوپه نبوت اورسالت باندې واضحه دلائل مراد وی [کمافسره به ابن کثیروابن حیان]

او د بَيِّنَٰت څخه پس د أَنزَلْنَا مَعَهُمُ الْكِتَٰبَ خانله ذکر کول په ظاهره هم ددې تفسیر مؤید دې. چې د بَيِّنَٰت څخه معجزې او دلیلونه مراد وی او داحکامو د تفصیل دپاره دکتاب د نازولولو ذکر اوفرمائیلې شو.

کتاب سره د یو بل څیز میزان نازلولو هم ذکر دې، میزان په اصل کښې هغې آلې ته وئیلې شی چې ورباندې د څه څیز تول کولې شی او عام صورت ئې تله ده دغې رواجی تلې څخه علاوه د نور څیزونو د اندازه کولو چې څومره مختلفې آلې دی هغې ته هم میزان وئیلې شی، لکه نن صبا چې د رڼا، هوا، وغیره اندازه کولو دپاره آلې دی.

په دې آيت مبارك كښې دكتاب پشان ميزان دپاره هم د نازولو ذكر فرمائيلې دې. كتاب دآسمان څخه نازول او د فرښتو په ذريعه پيغمبرانو ته رسيدل خو معلوم دى او مشهور دى خو د ميزان د نازليدو څه مطلب دې؟ ددې باره كښې تفسير روح المعانى او تفسير مظهرى وغيره كښې راغلى دى چې د ميزان د نازولولو څخه مراد دهغې احكامو نازولول دى چې دتلې د استعمال او انصاف كولو په باره كښې نازل شوى دى او قرطبى فرمائى چې په اصل كښې خو نازليدل د كتاب دى خو د تلې مقررول او راوښكل او ايجاد كول دې سره لګولې شوى دى لكه د عربو په كلام كښې چې ددې مثالونه موجود دى، ګويا كښې د كلام مطلب دا شو چې ﴿انزلنا الكتاب ووضعنا الميزان﴾ يعنى مونږ نازل كړو كتاب او راؤمونښكله تله. نو ددې تائيد دسورة رحمان په آيت مبارك ﴿وَالسَّمَآءَ رَفَعَهَا وَوَضَعَ الْمِيْزَانَ﴾ سره هم كيدې شى چې د لته ئې ميزان سره د وضع لفظ استعمال كړې دې.

دكتاب اوميزان څخه روستو د دريم څيز دنازولو بيان چې راغلې دې، هغه حديد دې، چې مطلب د نازولو ئې پيدا كول دى، لكه چې قرآن عظيم الشان په يو آيت مبارك كښې د څاروؤ متعلق هم لفظ د انزال استعمال كړې دې: ﴿ وَاَنْزَلَ لَكُمْ مِّنَ الْاَنْعَامِ ثَمٰنِيَةَ اَزْوَاجٍ ﴾ دلته په اتفاق سره د ﴿اَنْزَلْنَا﴾ څخه مراد ﴿ خلقنا﴾ دې په دې كښې اشاره دې ته ده چې د دنيا هر يو څيز د پيدا كيدو او شته كيدو څخه وړاندې په لوح محفوظ كښې ليكلې شوې دې او په دې اعتبار سره ورته د آسمان څخه نازل شوې وئيلې شى. [روح المعانى]

دحديد د نازولو دوه حكمتونه په آيت مبارك كښې بيان كړې شوى دى، اول دا چې په مخالفينو باندې ورسره رعب پريوزى او سرتيزه خلق ددې په ذريعه د الله ﷻ او عدل و انصاف د حكمونو پابند جوړولې شى. بله دا چې په دې كښې د خلقو دپاره ډيرې فائدې الله ﷻ ايخودى دى، هغه داسې چې په ټولو كاريګريانو، ايجادونو او جوړ شوؤ څيزونو د دنيا كښې چې كوم اوس دى يا به كوم څيزونه چې په آئنده كښې پيدا كيږى په هغې كښې د اوسپنې ضرروت دې، د اوسپنې څخه بغير هيڅ قسم كاريګرى نه شى چليدې.

**فائده**: دلته د غور كولو جوګه دا خبره هم ده چې په دې آيت مبارك كښې اصل مقصد د پيغمبرانو ﷺ او كتابونو ليږل او د ميزان د ايجاد كولو او ددې د استعمالولو دابيان كړې شوې دې چې: ﴿لِيَقُوْمَ النَّاسُ بِالْقِسْطِ﴾ [يعنى خلق په انصاف باندې قائم شى] وروسته د دريم څيز اوسپنې د نازولو يعنى د ايجاد كولو بيان دې دا هم په حقيقت كښې د عدل او انصاف د تكميل دپاره ده كوم چې دپيغمبر د راليږلو او د كتاب نازلولو څخه مقصود دې ولې چې پيغمبران ﷺ او آسمانى كتابونه د عدل وانصاف قائمولو ښكاره دليلونه وركوى او د نه كولو په صورت كښې د آخرت د عذاب څخه ويروى.

ميزان هغه حدود ښائى چې په كومو سره چې انصاف كولې شى مګر سرتيزه ضدى چې په څه دليل باندې هم منل نه كوى نه د تلې د ويش مطابق عمل كولو ته تياروى كه دې آزاد پريخودې شى نو په دنيا كښې به عدل او انصاف قائميدل نه پريږدى دداسې كس پابند كول د اوسپنې اوتورې كار دې چې د حكومت او سياست خاوندان ئې په آخر كښې د مجبورئ څخه استعمالوى.

**دوېمه فائده** :: دلته دا خبره هم د غور كولو جوګه ده چې قرآن عظيم الشان په دنيا كښې د عدل او انصاف قائمولو دپاره دوه څيزونه اصل اوګرځول ، يو كتاب ، بل ميزان . كتاب څخه د حقوقو د ادا كولو او په دې كښې دكمي زياتي راوستو د بندې اوممانعت حكمونه معلوميږي او په ميزان كښې هغه حصې تاكلې كيږي چې دنورو حقونه دي هم ددې دواړو څيزونو د نازولو مقصد ﴿لِيَقُوْمَ النَّاسُ بِالْقِسْطِ﴾ ګرځولې دې . دې څخه روستو ئې د حديد بيان په آخر كښې اوفرمائيلو او په دې كښې اشاره ده چې د انصاف او عدل قائمولو دپاره د اوسپنې استعمال د مجبورئ څخه دی ،دا د عدل او انصاف قائمولو اصل ذريعه نه ده .

دې څخه ثابت شو چې دخلقو اصل اصلاح او په عدل وانصاف باندې د دوئ قائمول په حقيقت كښې د ذهنونو د تربيت او تعليم څخه كيږي . د حكومت زور زبردستي په اصل كښې ددې كار دپاره نه ده . بلكه د مجبورئ په وجه د لارې څخه بنديز لرې كولو دپاره ده، ځكه اصل څيز د ذهنونو تربيت او تعليم او تلقين دې .

﴿وَلِيَعْلَمَ اللّٰهُ مَنْ يَّنْصُرُهٗ وَرُسُلَهٗ بِالْغَيْبِ﴾ دلته ﴿وَلِيَعْلَمَ﴾ حرف عطف سره راغلی دی ، روح المعاني كښې دي چې دا عطف په يو محذوفه جمله يعنى لينفعهم باندې دې . مطلب د آيت مبارك دادې چې مونږ اوسپنه دې دپاره پيدا كړې ده چې په مخالفينو باندې رعب پريوزي . او دې دپاره چې خلق دې څخه په كاريګرئ كښې فائده پورته كړی او دې دپاره چې په قانونی اوظاهرى ډول باندې الله ﷻ اودهغه د رسول ﷺ مددګار جوړيږی او دين دپاره جهاد كوی . په قانونی او ظاهرى ډول ځكه وئيلې شوی دی چې په ذاتي ډول خو الله ﷻ ته ټول هر څه مخكښې څخه معلوم دی مګر انسان چې كله عمل كوی نوهغه په عمل نامه كښې ليكلې شی ، په قانونی ډول هم په دې سره ښكاره كيږی .

| وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا | نُوحًا | وَّاِبْرٰهِيْمَ | وَجَعَلْنَا | فِيْ ذُرِّيَّتِهِمَا |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| او بيشكه ليږلي وو مونږه | نوح | او ابراهيم | اوګرځولي وو مونږ | په اولاد ددواړو كښى |
| اوبيشكه مونږ نوح عليه السلام او ابراهيم عليه السلام [خپل خپل قوم ته] ليږلي وو | | | اود دې دواړو په نسل كښې | |

| النُّبُوَّةَ | وَالْكِتٰبَ | فَمِنْهُمْ | مُّهْتَدٍ | وَكَثِيْرٌ | مِّنْهُمْ |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| نبوت [پيغمبري] | او كتاب | پس ځيني دهغوئ نه | لارموندونكى شو | او زيات | دهغوئ نه |
| مو د نبوت اوكتاب سلسله جاري ساتلې وه | بيا په دوئ كښې ځوك په سمه لار پاتې شو | | | او ډير په | |

| فٰسِقُوْنَ ۝ | ثُمَّ قَفَّيْنَا | عَلٰٓى اٰثَارِهِمْ | بِرُسُلِنَا | وَقَفَّيْنَا |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| فاسقان وو | بيا روستو اوليږل مونږه | په هغوئ پسې | رسولان زمونږه | او روستو اوليږو مونږه |
| كښې بدعمله اوختل | بيا ددوئ نه پس مونږ پرله پسې نور پيغمبران اوليږل | | | اودهغوئ نه پس مو |

| بِعِيْسَى ابْنِ مَرْيَمَ | وَاٰتَيْنٰهُ | الْاِنْجِيْلَ | وَجَعَلْنَا | فِيْ قُلُوْبِ الَّذِيْنَ |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| عيسى ځوئي دمريم | او وركړو مونږه هغه ته | انجيل | او واچوؤ مونږه | په زړونو دهغه كسانو كښى |
| د مريم ځوئي عيسى اوليږلو | اوهغه ته مو انجيل وركړو | | اوځوک چي د هغه په لارروان شول | |

اتَّبَعُوْهُ رَاْفَةً وَّرَحْمَةً ۭ وَرَهْبَانِيَّةَ ۨابْتَدَعُوْهَا

چې پیروي ئې اوکړه دهغه | نرمي | او رحم | او دګوټ ناسته چې ده | دخانه جوړه کړې وه هغوئ هغه

نو دهغوئ په زړونو کښې مو نرمي او مهرباني واچوله | او رهبانیت هغوئ پخپله ایجاد

مَا كَتَبْنٰهَا عَلَيْهِمْ اِلَّا ابْتِغَاۗءَ رِضْوَانِ اللّٰهِ

نه وه فرض کړې مونږ هغه | په هغوئ باندې | مګر دپاره دطلب | درضا دالله [هغوئ جوړ کړو دا بدعت]

کړو | مونږ دا په هغوئ فرض کړې نه وو | خوهغوئ پخپله دالله تعالی د رضا مندئ

فَمَا رَعَوْهَا حَقَّ رِعَايَتِهَا ۚ فَاٰتَيْنَا الَّذِيْنَ

پس وې نه کړه پابندي دهغې | الکه څنګه چې حق ووډپابندئ دهغې | پس ورکړومونږه | هغه کسانو له

دپاره [اختیارکړې وو] | خوبیا ئې دهغې پوره پوره لحاظ اونه ساتلو | نو چا چې

اٰمَنُوْا مِنْهُمْ اَجْرَهُمْ ۚ وَكَثِيْرٌ مِّنْهُمْ فٰسِقُوْنَ ﴿۲۷﴾

چې ایمان ئې راوړو | دهغوئ نه | اجر دهغوئ | او زیات دهغوئ نه | فاسقان دي |

په کښې اوس ایمان راوړو | هغوئ ته مو پوره پوره اجر ورکړو | او زیات خلق په کښې نافرمان پاتې شو

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ وَاٰمِنُوْا بِرَسُوْلِهٖ

اے هغه کسانو | چې ایمان مو راوړې دې | اوویرېږئ دالله نه | او ایمان راوړئ | په رسول دهغه باندې

اې د ایمان خاوندانو | د الله تعالی نه اوویرېږئ | اودهغه په پیغمبر باندې ایمان راوړئ | هغه

يُؤْتِكُمْ كِفْلَيْنِ مِنْ رَّحْمَتِهٖ وَيَجْعَلْ لَّكُمْ نُوْرًا

دربه کړې تاسو له | دوه حصې | درحمت خپل نه | او دربه کړې تاسو له | داسې نور

به درته د خپل رحمت دخزانې نه دوچنده درکړې | او یوه داسې رڼا به درکړې

تَمْشُوْنَ بِهٖ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ۭ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۲۸﴾

چې تلل به کوئ په هغې سره | اواوبه بخښې تاسو لره | او الله بخښونکې | مهربانه دې

چې په هغې سره به [وړاندې] تګ کوئ | اوبخښنه به درته اوکړې | او الله تعالی بخښونکې مهربان دې

لِّئَلَّا يَعْلَمَ اَهْلُ الْكِتٰبِ اَلَّا يَقْدِرُوْنَ عَلٰي شَيْءٍ

دپاره ددې چې وپوهېږي | اهل | کتاب | چې نه دي قادران هغوئ | په هیڅ څیز باندې

دا به څکه درکړې] چې کتابیانو ته [په قیامت کښې] دا ښکاره شي

مِّنْ فَضْلِ اللّٰهِ وَاَنَّ الْفَضْلَ بِيَدِ اللّٰهِ يُؤْتِيْهِ مَنْ

دفضل دالله نه | او بیشکه چې فضل | په لاس دالله کښې دې | چې ورکوي هغه | هغه چاته

[چې دالله تعالی په فضل باندې دهغوئ هیڅ اختیار نشته | اودا چې فضل خو هم دالله په لاس کښې دې

يَّشَاۗءُ ۭ وَاللّٰهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيْمِ ﴿۲۹﴾

چې غواړي ئې هغه | او الله | خاوند دفضل لوئ دې |

چاته چې اوغواړي | نو هغه ته ئې ورکوي | او الله تعالی د لوئي فضل مالک دې

## آسان ترجمه قرآن

او مونږ نوح علیه السلام لره او ابراهیم علیه السلام لره پیغمبران راولیږل، او ددې دواړو په اولاد کښې مو د نبوت او د کتاب سلسله جاري کړه. بیا په هغوی کښې څه خو په هدایت باندې راغلل. او په هغوی کښې ډیر خلق نافرمان پاتې شو بیا مونږ د هغوی نه پس د هغوی په نقش قدم باندې خپل نور پیغمبران راولیږل، او د هغوی نه روستو مو عیسیٰ بن مریم علیه السلام راولیږلو. او هغه ته مو انجیل ورکړو، او کومو خلقو چه دهغه تابعداري اوکړه، دهغوی په زړونو کښې مونږ شفقت او رحم دلې پیدا کړه او هرچه رهبانیت دې، نو دا دوی په خپله ایجاد کړې وو او مونږ دا په دوی باندې واجب کړې نه وو لیکن دوی د الله تعالیٰ رضامندۍ اوغوختله. بیا ئې دهغې هغسې رعایت اونه کړې شو. څرنګه چه دهغې حق وو غرض په دوی کښې چه کومو خلقو ایمان راوړې وو هغوی ته مونږ دهغوی اجر ورکړو. او په دوی کښې ډیر خلق نافرمان وو. اے ایمان والو! د الله تعالیٰ نه اویریږئ او دهغه په پیغمبر باندې ایمان راوړئ، دې دپاره چه الله تعالیٰ تاسو ته د خپل رحمت نه دوه حصې درکړی او ستاسو دپاره هغه نور پیدا کړی، چه دهغې په ذریعې سره به تاسو ګرځئ او ستاسو بخشش به اوکړی، او الله تعالیٰ ډیر بخونکې او ډیر مهربان دې، دې دپاره چه اهل کتابو ته معلومه شی، چه د الله تعالیٰ په فضل کښې د هغوی په هیڅ شیز باندې اختیار نشته او دا چه فضل ټول د الله تعالیٰ په اختیار کښې دې، هغه چه چاته اوغواړی ورکوی، او الله تعالیٰ د لوئې فضل خاوند دې.

## خلاصه تفسیر

﴿وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحًا وَإِبْرَاهِيمَ﴾ [اومونږ] دمخلوق داخرت اصلاح دپاره [نوح] عليه السلام [اوابراهیم] عليه السلام [لره پیغمبر جوړ کړو ولیږلو ﴿وَجَعَلْنَا فِي ذُرِّيَّتِهِمَا النُّبُوَّةَ وَالْكِتَابَ﴾ اومونږ ددوئ په اولاد کښې پیغمبری اوکتاب جاری پاتې کړل] یعنی ددوئ په اولادکښې هم ځنولره پیغمبران او په دوئ کښې ځنې صاحب کتاب جوړکړل [پس] کوموکوموخلقو ته چه داپیغمبران راغلل ﴿فَمِنْهُمْ مُهْتَدٍ﴾ [په هغوخلقو کښې ځنوخو هدایت لره بیاموندو ﴿وَكَثِيرٌ مِنْهُمْ فَاسِقُونَ﴾ او ځنې په دوئ کښې نافرمان وو] او دا ذکرشوی پیغمبران خو دمستقل شریعت خاوندان وو په دوئ کښې ځنې دکتاب خاوندان هم وولکه موسی عليه السلام چه دحضرت نوح عليه السلام او حضرت ابراهیم عليه السلام دواړو په اولاد کښې وو اوځنې اګر چه صاحب کتاب نه وو لکه هود عليه السلام او صالح عليه السلام چه ددوئ دکتاب خاوندان کیدل منقول نه دی مګرشریعت ددوئ مستقل وو په هرحال ډیرنبیان خو دمستقل شریعت خاوندان ولیږل ﴿ثُمَّ قَفَّيْنَا عَلَىٰ آثَارِهِمْ بِرُسُلِنَا﴾ [بیا ددوئ نه پس نورو رسولانو لره] کوم چه دمستقل شریعت خاوندان نه وو [په یوبل پسې راولیږل] لکه د موسی عليه السلام نه پس دتورات په احکامو عمل کوونکی ډیر پیغمبران راغلل ﴿وَقَفَّيْنَا بِعِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ﴾ [اومونږ ددوئ نه پس] بیایو دمستقل شریعت خاوند لره یعنی [عیسی ځوئ دمریم لره اولیږلو ﴿وَآتَيْنَاهُ الْإِنْجِيلَ﴾ اومونږ ده ته انجیل ورکړو او] ددوئ عليه السلام په امت کښې دوه قسمه خلق شول یو هغه چه په دوئ ئې ایمان راوړو او دویم انکارکوونکی [اوکوموخلقو چه ددوئ تابعداری کړې وه] یعنی اول قسم خلق ﴿وَجَعَلْنَا فِي قُلُوبِ الَّذِينَ اتَّبَعُوهُ رَأْفَةً وَرَحْمَةً﴾ [مونږ دهغوئ په زړونوکښې شفقت اوترحم] دیوبل سره کوم چه اخلاق حمیده دی [پیداکړو] لکه داقول دالله تعالی په باره داصحابو رضي الله عنهم کښې رحماء

بينهم او شايد په وجه ددې چه ددوئ په شريعت کښې جهادنه وو ددې مقابل صفت اشداءعلى الکفار يې ذکرو اونه فرمائيلو غرض غالب په دغو شفقت اورحمت وو[او] زمونږ دطرف نه خودغوخلقو ته صرف په احکاموکښې د تابعدارئ کولوذکرشوې وولیکن په دغومتبعینوکښې خنې هغه شول چه﴿وَرَهْبَانِيَّةً ابْتَدَعُوهَا﴾ [هغوئ رهبانيت دخان نه ايجادکړو] درهبانيت مطلب دنکاح او جائزو لذتونو اختلاط لره پرېښودل دی او ددې دايجادسبب داجوړ شوې وو چه دعيسى ﷺ نه پس هرکله چه خلقو دالله تعالى احکامو لره پرېښودل شروع کړو نو خنې اهل حق هم وو کوموچه به دحق اظهارکولو داخبره خواهش نفساني لرونکوته مشکله معلومه شوه او دوئ خپلو بادشاهانوته درخواست وکړو چه دغه خلق دې مجبوره کړې شی چه زمونږ په ښان جوړشي هرکله چه هغوئ مجبوره کړې شول نو هغوئ درخواست وکړو چه مونږ ته دې اجازت راکړې شی چه مونږ ددې خلقو سره هيڅ تعلق او غرض نه ساتواو ازاد ژوندتيروو خواه په کوټ کښې کښينويا په سفراوسياحت کښې عمرتيروو چنانچه په دې باندې هغوئ پرېښودې شول لکه چه په درمنثورکښې داسې دی. په دې مقام باندې هم دغه شان ذکر شوی دی چې هغوئ رهبانيت ايجاد کړو ﴿مَا كَتَبْنَاهَا عَلَيْهِمْ إِلَّا ابْتِغَاءَ رِضْوَانِ اللَّهِ﴾ [مونږ په دوئ باندې دې لره واجب کړې نه وو ليکن دوئ د الله تعالى درضادپاره] خپل دين لره دمحفوظ ساتلودپاره [دې لره اختيارکړې وو پس] په دغو راهبانو کښې زيات هغه شول چه ﴿فَمَا رَعَوْهَا حَقَّ رِعَايَتِهَا﴾[دوئ ددې] رهبانيت [پوره رعايت ونه کړو] يعنى دکوم غرض دپاره چه دا اختيارکړې شوې وو اودغه غرض دالله تعالى رضالټول وو اوددې اهتمام يې ونه کړو يعنى اصل احکام يې پوره نه کړو اګرچه صورتا درهبان اواحکامو په خائ کولو اظهارئ کولو دغه شان په راهبانو کښې دوه قسمه خلق شول داحکامو رعايت کوونکی او رعايت نه کوونکی او په دوئ کښې چه کوم دنبى کريم ﷺ دزمانې وو ددوئ په حق کښې داحکامودرعايت يو شرط داهم دې چه په نبى کريم ﷺ باندې ايمان راوړی په دې وجه دنبى کريم ﷺ په عهدمبارک کښې داحکامورعايت او اهتمام کوونکی هغه خلق شول کوموچه په دوئ ﷺ ايمان راوړو اوکومو چه په دوئ ﷺ دايمان راوړونه ډډه وکړه او هغوئ داحکامو په رعايت نه کوونکوکښې شامل شول ﴿فَآتَيْنَا الَّذِينَ آمَنُوا مِنْهُمْ أَجْرَهُمْ﴾[پس په دوئ کښې چه کومو] په نبى کريم ﷺ باندې [ايمان راوړو مونږ دوئ لره ددوئ اجر] وعده کړې شوې [ورکړو] مګرداسې خلق کم وو ﴿وَكَثِيرٌ مِنْهُمْ فَاسِقُونَ﴾[او زيات په دوئ کښې نافرمانه دی] چه په نبى کريم ﷺ يې ايمان رانه وړو او چونکه اکثريت د نافرمانوو په دې وجه درعايت نه کولو نسبت ټولو ته وشو چه فمارعوها يې وفرمائيل معلومه شوه چه دانفى درعايت داکثريت په اعتبارسره ده او لږ کوموچه ايمان راوړې وو دهغوئ بيان دايت په اخرکښې په فاتيناالذين امنومنهم اجرهم کښې وفرمائيلو تردې پورې په عيسايانو کښې دايمان راوړونکو اونه راوړونکو ددوه قسمونوذکر وو وړاندې دايماندارو حکم دې چه ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ﴾[اے] په عيسى ﷺ [ايمان لرونکوتاسو دالله تعالى نه ووېرېږئ او] ددې وېرې په مقتضى عمل کوئ يعنى ﴿وَآمِنُوا بِرَسُولِهِ﴾[دده په رسول] صلى الله عليه وسلم [باندې ايمان راوړئ] ﴿يُؤْتِكُمْ كِفْلَيْنِ مِنْ رَحْمَتِهِ﴾ الله به تاسولره دخپل رحمت نه] دثواب [دوه حصې درکړی] لکه په سوره قصص کښې اولئك يؤتون اجرهم مرتين الاية کښې دی ﴿وَيَجْعَلْ لَكُمْ نُورًا تَمْشُونَ بِهِ﴾[اوتاسوته به داسې نور درکړی چه تاسويه ددې سره ګرځئ] يعنى داسې ايمان به درکړی کوم چه به هروخت

تاسوسره وی ددې ځایْ نه دپل صراط پورې ﴿وَيَغْفِرْ لَكُمْ ۚ﴾[اوتاسولره به وبخښي] ځکه چه په اسلام سره دکفردزماني ټول ګناهونه معاف کیږی ﴿وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۚ﴾[اوالله تعالی غفوررحیم دې] او دا دولتونه به تاسوته ځکه درکولې شی [چه] څه وخت ددې بخښشونو ظهور وشی یعنی دقیامت په ورځ دغه وخت ﴿لِّئَلَّا يَعْلَمَ اَهْلُ الْكِتٰبِ اَلَّا يَقْدِرُوْنَ عَلٰى شَيْءٍ مِّنْ فَضْلِ اللّٰهِ﴾[اهل کتابوته] یعنی کومو چه ایمان نه وو راوړې هغوئ ته [دخبره معلومه شی چه دغوخلقو ته الله تعالی دفضل په یو جزء هم] بغیردایمان راوړو وس نشته] ﴿وَاَنَّ الْفَضْلَ بِيَدِ اللّٰهِ يُؤْتِيْهِ مَنْ يَّشَآءُ ۚ﴾ اوداهم معلومه شی [چه فضل دالله تعالی په لاس کښې دې هغه چه چالره غواړی ورکوی] چنانچه دهغه مشیت دهغه دفضل سره دمسلمانانو سره متعلق شو نو هغوئ ته ئې ورکړو ﴿وَاللّٰهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيْمِ ۟﴾[اوالله تعالی لوئ فضل والا دې] مطلب داچه دهغوئ غرور اوزعم مات شی چه په موجوده حالت باندې هم هغوئ ځان دفضل مورد او دمغفرت محل ګنړی

## معارف او مسائل

په تیرو شوؤ آیتونو کښې ددې عالم د هدایت او په دې کښې د قسط یعنی د عدل او انصاف قائمولو دپاره انبیاء ﷺ او رسولان او دوئ سره د کتاب او میزان د نازولو عمومی بیان وو، اوس په دې آیتونو کښې د هغوئ ﷺ څخه د خاص خاص پیغمبرانو ﷺ بیان دې ، اول د نوح ﷺ بیان دې چې هغوئ ﷺ آدم ثانی دی او د طوفان نوح څخه روستو ټول مخلوق دهغوئ اولاد دی.دې پسې دابراهیم خلیل الله ﷺ بیان دې کوم چې ابوالانبیاء او دخلقو پیشوا دې . ددې دواړو ﷺ څخه روستو ئې دابیان اوکړو چې دې دواړو پیغمبرانو څخه روستو څومره پیغمبرا ﷺ سره د آسمانی کتابونو چې راغلی دی هغه ټول هم ددوئ په اولاد کښې دی یعنی د نوح ﷺ د ا ولاد هغه حصه دې دپاره زیاته غوره اوګرځولې شوه په کومه کښې چې د ابراهیم ﷺ اولاد دې.

د دوئ ﷺ د خصوصی بیان څخه روستو د نورو ټولو پیغمبرانو ﷺ سلسله ئې په دې یو لنډې شان جمله کښې داسې بیان کړې ده چې:

﴿ثُمَّ قَفَّيْنَا عَلٰٓى اٰثَارِهِمْ بِرُسُلِنَا﴾ په آخر کښې خصوصیت سره د بنی اسرائیلو دپیغمبران علیهم السلا څینې ئې د عیسی ﷺ بیان ئې اوکړو او ورسره ئې د خاتم الانبیاء ﷺ اود رسول کریم ﷺ د شریعت بیان اوفرمائیلو ، د عیسی ﷺ د حواریانو خاص صفت دا اوخودلې شو چې ﴿وَجَعَلْنَا فِيْ قُلُوْبِ الَّذِيْنَ اتَّبَعُوْهُ رَاْفَةً وَّرَحْمَةً ۭ﴾ [یعنی کومو خلقو چې د عیسی ﷺ د انجیل تابعداری اوکړه مونږ دهغوئ په زړونو کښې رافت او رحمت پیدا کړو یعنی دا خلق خپل مینځ کښې یو بل باندې مهربانه ا و رحم کوؤنکی دی یا ټولو خلقو سره د دوئ دشفقت او رحمت تعلق دې ، هسې خو د رافت او رحمت دواړه لفظونه د یوبل په معنی او مترادف ګنړلې شی ، دلته دمقابلې په وجه څینې حضراتو فرمائیلی دی چې رافت زیات رحمت ته وئیلې شی چې عام رحمت څخه په کښې مبالغه وی ، او څینو اوفرمائیل چې په چا باندې د رحمت اوشفقت عادةً دوه غوښتنې وی یو دتکلیف زېلی څخه تکلیف لرې کول وی چې رافت بللې شی . بل دا چې د ضرورت څیز ورته ورکړې شی دا رحمت دې ، غرض دا چې د رافت تعلق دفع مضرت سره دې او رحمت تعلق جلب منفعت سره دې ، خو هرکله چې د فع مضرت د جلب منفعت څخه په

هر اعتبار سره وړاندې وي ځکه چرته چې رافت او رحمت دواړه یو ځائې ذکر کولې شي نو رافت د رحمت څخه وړاندې وئیلې شي.
دلته د عیسی ﷺ د اصحابو خصوصي صفت رافت او رحمت بیان شوې دې او د رسول کریم ﷺ د اصحابو ﷺ په سورة فتح کښې ﴿رحماء بينهم﴾ څخه وړاندې ورسره پیوست ﴿اشداء على الكفار﴾ صفت هم بیان شوېدې. د فرق وجه دا معلومیږي چې د عیسی ﷺ په شریعت کښې کافرانو سره د جهاد او قتال احکام نه وو، ځکه دغه صفت د حواریینو بیان نه کړې شو. والله اعلم.

**د رهبانیت مطلب او ضروري تشریح:** ﴿وَرَهْبَانِيَّةً ابْتَدَعُوهَا﴾ رهبانية رهبان طرفته منسوب دې. د رهبان او راهب معنی ده ویریدونکې. د عیسی ﷺ څخه روستو کله چې بنی اسرائیلو کښې فسق و فجور عام شو خاص کر بادشاهانو او رئیسانو کښې د انجیل د حکمونو په ښکاره بغاوت شروع شروع شو. په هغوئ کښې څینې نیکانو او عالمانو دا خلق د دغې بدعملئ څخه منع کړل نو هغوئ اووژل. کله چې نورو پاتې عالمانو او نیکانو دا اولیدل چې اوس د دوئ منع کول مشکل دی او دوئ سره یو ځائې پاتې کیدل هم ګران دی او دې سره به زمونږ دین هم برباد شی، ځکه هغوئ پخپل ځان دا لازم کړل چې اوس ددنیا خوند او رنګ پریږدو او نکاح به نه کوؤ، د خوراك څښاك دسامان فکر به نه کوؤ. داستوګنې د کورونو فکر به نه کوؤ. د خلقو څخه لرې به یو غر او ځنګل کښې خپل ژوند تیروؤ. یا به نوور کډوالو پشان خپل مزل کښې وخت تیروؤ. دې دپاره چې ددین په احکامو باندې پابندئی سره پوره پوره عمل اوکړې شو، هر کله چې د دوئ دا عمل د الله ﷻ د ویرې په وجه وو ځکه داسې خلقو ته راهب یا رهبان اووئیلې شو. او ددوئ طرفته په نسبت کولو سره ددې عمل کولو ته ئې رهبانیت اووئیلو.
هر کله چې د دوئ دا طریقه دمجبورئ په وجه ددین د حفاظت دپاره وه ځکه په اصل کښې څه خراب څیز نه وو. البته یو څیز د الله ﷻ په خاطر پخپل ځان لازم کول او بیائې پریخودل لویه ګناه ده، ځنګه چې د نذر او منبنتې حکم دې. دغې خلقو کښې څینې د رهبانیت په نوم باندې دنیا حاصلول او مزې کول دې څخه جوړ کړل ولې چې د خلقو عقیده پرې راغله نو دالئ او منبنتې ئیې ورته پش کړلې. او قسما قسم نذرانې ورته هم راتلل شروع شو ځکه ترې بې حیایئ جوړه شوه.
ددغې خلقو دا طریقه په اصل کښې خرابه نه وه، د عبدالله بن مسعود ﷺ حدیث په دې ګواه دې. ابن کثیر ﷫ په روایت د ابن ابی حاتم ﷫ او ابن جریر ﷫ یو اوږد حدیث پاك نقل کړې دې چې رسول کریم ﷺ اوفرمائیل چې بنی اسرائیل په دوه اویا فرقو کښې ویشلې شوی وو چې په کښې صرف درې ډلو ته د عذاب څخه خلاصې ورکړې شو، چا چې د عیسی ﷺ څخه روستو ظالمان او جابران بادشاهان، د دولت او طاقت خاوندان، فاسق، فاجر خلق د هغوئ د فسق او فجور څخه بند کړل، د هغوئ په مقابله کښې ئې دحق کلمه اوچته کړه او د عیسی ﷺ د دین طرفته ئې بلنه شروع کړه، د هغوئ څینې روميئ فرقې ښه په زوره د دوئ مقابله اوکړه، مګر د هغوئ په مقابله کښې کمزوري شو او اووژلې شو، بیا ددوئ په ځائې یوه بله ډله اودریده چې د مقابلې دغه هومره طاقت ئې نه لرلو مګر د حق کلمې رسولو دپاره ئې د خپلو ځانونو هم پروا اونکړه او دغه خلق ئې حق ته رابلل. دوئ ټول هم اووژلې

شو ځيني په اور کښې اوسيزلې شو. ځنې په آرو اوڅيرلې شو. خو هغوئ د الله ﷺ درضا دپاره په دې تولو مصيبتونو باندې صبر اوکړو ، دوئ هم خلاصي بيا موندو ، بيا دريمه ډله د دوئ په ځائې اودريده چې هغوئ د مقابلې توان هم نه لرلو او نه دغې خلقو کښې يو ځائې پاتې کيدو سره خپل دين باندې عمل کولې شو ، ځکه هم پخپله ځنګلونو ا و غرونو ته اووتل ا و راهبان جوړ شو ، هم دا هغه خلق دی چې د هغوئ الله ﷺ په دې آيت مبارك کښې ذکر کړې دې : ﴿وَرَهْبَانِيَّةً ابْتَدَعُوهَا مَا كَتَبْنَاهَا عَلَيْهِمْ﴾ (۱)

ددې حديث پاك څخه معلومه شوه چې په بنی اسرائيلو کښې اصل رهبانيت اختيارونکی چا چې د رهبانيت د ضرورياتو لحاظ اوساتلو او په مصيبتونو باندې يې صبر اوکړو هغوئ هم د خلاصی موندونکو ځيني دی.

ددې آيت مبارك د تفسير حاصل دا شو چې په شروع کښې رهبانيت اختيارول څه خراب څيز نه وو ، البته څه شرعی حکم هم نه وو. خو دې خلقو پخپله په ځان باندې لازم کړې وو، اکثرو خلقو د اسرته اونه رسول او په دې باندې يې پوره پوره عمل اونه کړو، هرکله چې اکثر لره حکم د تولو وی په دې بنا باندې تولو ته پرې د عمل نه کولو نسبت اوکړې شو چې ګنې پخپلو ځانونو باندې لازم کړې رهبانيت سرته او نه رسولو او وې فرمائيل :﴿فَمَا رَعَوْهَا حَقَّ رِعَايَتِهَا﴾

دې څخه دا هم معلومه شوه چې د ﴿ابْتَدَعُوهَا﴾ څخه مطلب پخپله خوښه په ځان باندې لازمول دی ، هغه بدعت کول ترې مراد نه دی کوم ته چې په حديث پاك کښې ګمراهی وئيلې شوې ده(۲) د قرآن عظيم الشان په روانئ او چلن باندې چې غور اوکړې شی نو دا خبره به بالکل واضح شی ، د تولو څخه اول خو په دې باندې نظر واچوئی :

﴿وَجَعَلْنَا فِي قُلُوبِ الَّذِينَ اتَّبَعُوهُ رَأْفَةً وَرَحْمَةً ۚ وَرَهْبَانِيَّةً﴾ په دې کښې الله ﷺ د خپل نعمت ښکاره کولو په سلسله کښې فرمائی چې مونږ د دوئ په زړونو کښې رافت ، او رهبانيت او رحمت پيدا کړو د کلام روانی ښائی چې ځنګه رافت او رحمت څه بد نه دی دغسې اختيار کړې رهبانيت هم پخپل ذات کښې څه بد څيز نه وو ګنی دغې دوؤ احسانی څيزونو سره به ئې د يو ځائې کولو هيڅ وجه نه وه ، په دې وجه کومو حضراتو چې مظلوم رهبانيت د و خراب او ممنوع څيز بللې دې نو دلته ئې په عطف کښې غير ضروری تاويلونه کړی دی يعنی په رافت او رحمت باندې ئې عطف نه دې منلې بلکه په يو محذوفې مستقلې جملې باندې ئې عطف بللې دې چې هغه ﴿ابْتَدَعُوا﴾ لکه ځنګه چې قرطبی کړې ده خو په مذکوره تفسير باندې د تاويل کولو هيڅ ضرورت نشته دې ورپسې قرآن عظيم الشان هم په دغې باندې څه بد نه دی ګڼرلی او نه ئې ددې رد کړې دې بلکه دائې بد ګڼړی دی چې پخپله په ځان لازم کړې څيز ئې سر ته او نه رسولو.ددې د حقوقو او شرائطو خيال يې اونه ساتلو، دا هم هله کيديشي چې ابتداع لره په لغوی معنی کښې واخستې شی ، شرعی او اصطلاحی معنی که وې نو قرآن کريم به هم په دې باندې نکير کولو ، ځکه چې بدعت اصطلاحی پخپله يوه ګمراهی ده.

---

۱) تفسير ابن کثير [ج: ۸ ص:۲۹] و المستدرك للحاكم رقم الحديث:[۳۷۹۰] وتفسير سورة الحديد ، و المعجم الكبير للطبراني رقم الحديث:[۱۰۲۰۳]

۲) صحيح مسلم كتاب الجمعة، فصل في الخطبة والصلاة قصدا[ج:۱ص:۲۸٤]

اود عبدالله بن مسعود رضي الله عنه د بیان شوی حدیث ترمخه نوره هم دا خبره واضحه شوه چې رهبانیت اختیارونکی خلق ئې په خلاصی موندونکو خلقو کښې شمیر کړل دوئ د بدعت اصطلاحي مجرمان وی نو په نجات موندونکو کښې به نه شماریدل بلکه په ګمراهانو کښې به یې شمار کړې وی

**آیا رهبانیت مطلقا خراب او نا جائز دې یا په کښې څه تفصیل شته دې ؟:** صحیح خبره داده چې د رهبانیت عام مطلب د خوندونو او مباحو څیزونو پریخودل دی ، ددې څو درجې دی ، یو دا چې یو مباح او حلال څیز په اعتقاد یا عمل کښې حرام اوګرځوی چې دین کښې بدلون راوستل دی په دې لحاظ به رهبانیت بالکل حرام وی څنګه چې په قرآن عظیم الشان فرمائی :
﴿يَأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُحَرِّمُوا طَيِّبَٰتِ مَآ أَحَلَّ اللَّهُ لَكُمْ﴾[۱] په دې کښې د ﴿لَا تُحَرِّمُوا﴾ عنوان اختیارول دغه خبره په ښکاره په ګوته کوی .

دویمه درجه ئې داده چې د اعتقاد یا عمل د مخې څه مباح څیز حرام نه ګرځوی خو دنیوی یا دینی ضرورت ئې وی څکه دهغې د پریخودو پابندی کوی ، لکه د مرض خطره ئې وی او د د ین ضرورت به لکه داسې وی چې دیو مباح څیز په کولو سره به آخرت په ګناه کښې داخته کیدو خطره ئې وی . یعنی خلقو سره ملاویدل په دې وجه نه کوی چې په دروغو او غیبت کښې اخته کیدو خطره ئې وی ، یا د نفسانی رذیله علاج دپاره څو ورځې څینې مباح څیزونه پریږدی او د هغې پریخودلو پابندی دعلاج او دارو په ډول ترهغه وخته پورې کوی تر څو چې دغه رذیله لرې نشی لکه صوفیاء کرام چې پو مبتدی ته دکم خوراك ، کم اوده کیدو او د کم ګډون کولو تاکید کوی چې دا نفس لره په اعتدال باندې د راوستو دپاره یو مجاهده او کوشش کول وی چې ناجائزوته درسیدو خطره ئې پاتې نشی نو دغه پرهیز کول بیا پریخودلې شی دا په حقیقت کښې رهبانیت نه دې ، تقوی ده چې په دین کښې طلب کړې شوې ده او دغسې د پخوانو بزرګانو صحابه کرامو رضي الله عنهم ، تابعینو او ددین امامانو څخه ثابت دی .

دریمه درجه داده چې یو مباح خو حرام نه ګرځوی مګر په سنت سره چې دهغې استعمال څنګه ثابت دې ، د هغې پریخودل هم ثواب او زیات غوره ګڼړی او په دغې شان د هغې مباح څیز د استعمال څخه پرهیز کوی . دا یو قسم غلو یعنی زیاتې کول دی چې د ډیرو احادیثو ترمخه رسول کریم ﷺ منع کړی دی . او په کوم حدیث کښې چې ﴿لارهبانية في الاسلام﴾[۲] راغلې دې د هغې څخه مراد د مباحاتو پریخودل دی . چې کله ئې پریخودل زیات غوره او ثواب ګڼړی ، په بنی اسرائیلو کښې چې رهبانیت اول شروع شو هغه ددین د حفاظت ضرورت وو . نو په دویم قسم یعنی تقوی کښې داخل دې ، لیکن په اهل کتابو کښې د غلو فی الدین آفت زیات ووچې په هغې کښې رومبئ درجې یعنی د حلالولو حرامولو ته اورسیدل کوم چې حرام وو او که په دریمې درجې کښې پاتې شو نو هم دیو ناکاره کار مجرمان جوړ شو . والله أعلم

[۱] ترجمه:- اې ایمان والوا الله تعالی چې کوم څیزونه ستاسو دپاره حلال کړی دی هغې کښې لذت والا څیزونه مه حراموئ.
[۲] شرح السنة للبغوی ، کتاب الصلاة باب فضل القعود فی المسجد لانتظار الصلاة [ج: ۲ ص:۳۷۱] وکشف الخفاء رقم الحدیث [۳۱۵٤]

﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَآمِنُوا بِرَسُولِهِ يُؤْتِكُمْ كِفْلَيْنِ مِن رَّحْمَتِهِ﴾ دې آيت مبارك كښې د ﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا﴾ څخه مراد هغه اهل كتاب دی چې په عيسی ﷺ ئې ايمان راوړې وو.

د قرآن عظيم الشان عام عادت دادې چې د ﴿الَّذِينَ آمَنُوا﴾ لفظ خالص د مسلمانانو دپاره استعمالوی ، او يهود او نصرانيانو دپاره د اهل كتاب لفظ استعمالوی ، ځكه چې يوازې په موسی ﷺ او عيسی ﷺ باندې ايمان راوړل په دې زمانه كښې كافي او معتبر نه دی تر څو چې په رسول كريم ﷺ باندې هم ايمان راؤ نه ړی ، ځكه د ﴿الَّذِينَ آمَنُوا﴾ ونيلو حقدار نه دی خو دلته ددې عام عادت خلاف دا لفظ نصاراؤ دپاره استعمال كړې شوې دې ، شايد چې په دې كښې حكمت دادې چې ورپسې دوئ ته حكم كړې شوې دې چې په عيسی ﷺ باندې د صحيح ايمان راوړلو غوښتنه داده چې په خاتم الانبياء ﷺ باندې ايمان راوړئی چې په ﴿الَّذِينَ آمَنُوا﴾ سره د خطاب كولو حقدار شئ.

ورپسې دايمان په دغې كاملولو سره وعده كړې شوې ده چې دوئ ته بهٔ غبرګ ثواب حاصليږی، يو په ړومبی پيغمبر موسی ﷺ يا عيسی ﷺ باندې د ايمان راوړلو اود هغوئ ﷺ په شريعت باندې د عمل كولو اوبل خاتم الانبياء ﷺ باندې دايمان راوړلو او په شريعت ئې دعمل كولو. په دې كښې اشاره دې طرفته ده چې اګر كه يهوديان او نصرانيان په رسول كريم ﷺ باندې د ايمان نه راوړلو تر وخته پورې كافر وو او هيڅ عبادت يې نه قبليږی ، ددې تقاضا اوغوښته دا وه چې په تير شوی شريعت باندې عمل كول عبث لاړل ، خو دې آيت مبارك څخه معلوم شو چې كله كافر مسلمان شی نو دهغه د كفر د زمانې نيكئ هم قبلولې شی، ځكه ورته دوچند ثواب وركولې شی.

﴿لِئَلَّا يَعْلَمَ أَهْلُ الْكِتَابِ﴾ په دې كښې لا زياتې دې ځكه به ئې معنی ﴿لِيَعْلَمَ﴾ وی او مطلب د آيت مبارك داشو چې دا اوسنی حكمونه ځكه بيان كړې شو چې اهل كتاب پوهه شی چې دوئ پخپل موجوده حالت كښې چې يوازې په عيسی ﷺ ئې ايمان دې په رسول كريم ﷺ نه دې ، پدې حالت كښې دوئ د الله ﷻ د څه فضل حقدار نه دی تر څو چې په رسول كريم ﷺ باندې ايمان راوړی ، والله سبحانه وتعالی اعلم.

تمت سورة الحديد

﴿بحمد الله وعونه للسادس والعشرين من الربيع الثانی يوم الاثنين بعد العشاء ويتلوه انشاء الله سورة المجادلة﴾

[الحمد لله پاره نمبر ۲۷ ختمه شوه]